تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

جلد ٦

شارح: مولانا ظہورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمہ: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

(رجسٹرڈ)
تاج کتب خانہ قصہ خوانی پشاور پاکستان

# د تاج کتب خانے دینی مطبوعات

د جدید دور جدید تفسیر
د مفتی اعظم پاکستان محمد شفیع صاحب
**تفسیر معارف القرآن**
په پښتو ژبه کښې

د فارسیبانو ورونړو د پاره
**معارف القرآن**
په رو مبی ځل فارسی ژبه کښې

د حنفی فقهی مشهور کتاب
**تاج الهدایه**
په پښتو ژبه کښې

د مولانا غلام الله خان د مشهور تفسیر
**جواهر القرآن**
ترجمه په پښتو ژبه کښې

د اشرف علی تهانوی د مشهور کتاب
**بهشتی زیور مکمل**
پښتو ترجمه

د حدیثو د مشهور کتاب
مشکوٰة شریف پښتونه پس
**مشکوٰة شریف فارسی**

د مولانا محمد منظور نعمانی
**معارف الحدیث**
پښتو ترجمه چاپ شو

**آسان ترجمه**
د شاه ولی الله د تفسیر
ترجمه په ساده پښتو کښې

# د تاج کتب خانے دینی مطبوعات

د حدیثو د مشهور او مستند کتاب
## صحیح بخاري شریف
ترجمه او شرح په پښتو کښې

د سیرت سره د مینا لرونکو
د پاره زیری
په سیرت باندے مکمل کتاب
## سیرت النبی
په اسانه او روانه پښتو کښې چاپ شو

د حدیثو یو بل مشهور کتاب
## ابن ماجه شریف
په پښتو ژبه کښې

د تاج کتب خانے پیشکش
د هر کور ضرورت
## اسلامی فقه
په اسانه او عام فهمه پښتو کښې

د احادیثو مشهور کتاب
## ترمذی شریف
په پښتو ژبه کښې
د علم د شائقینو د پاره یوه ښکلے ډالۍ

مشهور درسی کتاب
## قــــــدوری
د پښتو شرحې سره ښکلے چاپ

په اسانه او ساده پښتو کښې د
## نخبته الفکر شرح

د دیني طالبعلمانو د پاره
یوه بله علمی تحفه
## تاج الکافیه پښتو
ښائسته کاغذ او ښکلے چاپ

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

جلد ٦ پاره ٢٦ تا ٣٠

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دار العلوم دیو بند

پښتو ترجمه مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-18

# تاج البخاري پاره ۲۶ دمضامینو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۱. | معانقه كول | ۳۹۳۱ |
| ۲. | لبيك و سعديك سره جواب وركول | ۳۹۳۲ |
| ۳. | ناست سړے دِ نه پاسَوي | ۳۹۳۴ |
| ۴. | كله چه اوونيلے شي چه پاسئے نو پاسے الخ | ۳۹۳۴ |
| ۵. | څوك چه مجلس كښې اودريدو | ۳۹۳۵ |
| ۶. | لاسونو سره احتباء كول | ۳۹۳۶ |
| ۷. | اَډانړے لګولو سره كيناستل | ۳۹۳۶ |
| ۸. | تيز تلل | ۳۹۳۷ |
| ۹. | تخت | ۳۹۳۷ |
| ۱۰. | چا د پاره چه كدئي اوغوړولے شوه | ۳۹۳۷ |
| ۱۱. | جومات كښې قيلوله | ۳۹۳۹ |
| ۱۲. | د چا خائے كښې قيلوله | ۳۹۴۰ |
| ۱۳. | د سهولت مطابق كيناستل | ۳۹۴۲ |
| ۱۴. | سرگوشي كول | ۳۹۴۲ |
| ۱۵. | نيغ څملاستل | ۳۹۴۳ |
| ۱۶. | چه يو پريدي او دوه كسان خپلو كښې سرگوشي كوي | ۳۹۴۴ |
| ۱۷. | رازداري | ۳۹۴۵ |
| ۱۸. | كه د دريو نه زيات كسان وي | ۳۹۴۵ |
| ۱۹. | تر ډېره وخته پورې سرگوشي كول | ۳۹۴۶ |
| ۲۰. | د اوده كيدو وخت كښې تدبيرونه | ۳۹۴۶ |
| ۲۱. | د شپې دروازه بندول | ۳۹۴۷ |
| ۲۲. | په لوئې عمر كښې ختنه كول | ۳۹۴۷ |
| ۲۳. | كومه لوبه چه عبادت نه غافل كړي | ۳۹۴۹ |
| ۲۴. | د عمارت په باره كښې | ۳۹۴۹ |
| | كتاب الدعوات | |
| ۲۵. | اللّٰه رابلئ | ۳۹۵۰ |
| ۲۶. | د تولونه بهتر استغفار | ۳۹۵۱ |
| ۲۷. | په شپه ورځ كښې د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم استغفار | ۳۹۵۲ |
| ۲۸. | توبه | ۳۹۵۳ |
| ۲۹. | په ښي اړخ څملاستل | ۳۹۵۴ |
| ۳۰. | په طهارت كښې شپه تېرول | ۳۹۵۵ |
| ۳۱. | اوده كيدو وخت كښې څه لوستل پكار دي | ۳۹۵۵ |
| ۳۲. | ښې لاس | ۳۹۵۶ |
| ۳۳. | په ښي ډډه باندې اوده كېدل | ۳۹۵۷ |
| ۳۴. | د شپې بيداريدلو وخت كښې دعا | ۳۹۵۷ |
| ۳۵. | د اوده وخت كښې تكبير | ۳۹۵۹ |
| ۳۶. | اوده كيدو وخت كښې اعوذبالله لوستل | ۳۹۶۰ |
| ۳۷. | باب۳۷ | ۳۹۶۱ |
| ۳۸. | د نيمې شپې وخت كښې دعا كول | ۳۹۶۱ |
| ۳۹. | بيت الخلاء د پاره | ۳۹۶۲ |
| ۴۰. | سحر وخت كښې به څه وائي | ۳۹۶۲ |
| ۴۱. | په مونځ كښې دعا | ۳۹۶۳ |
| ۴۲. | مونځ نه پس دعا | ۳۹۶۵ |
| ۴۳. | دوئي د پاره دعا اوكړئ | ۳۹۶۶ |
| ۴۴. | د سَجعې رعايت | ۳۹۶۹ |
| ۴۵. | عزم او يقين سره دعا كول | ۳۹۷۰ |
| ۴۶. | كه چرې بنده جلد بازي اونه كړي | ۳۹۷۱ |
| ۴۷. | په دعا كښې لاسونه پورته كول | ۳۹۷۱ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ٤٨ | قبلې ته مخ کولو نه بغير دُعا | ٣٩٧٢ |
| ٤٩ | قبلې ته مخ کولو سره دعا کول | ٣٩٧٢ |
| ٥٠ | د اوګد عمر او مال د پاره دعا | ٣٩٧٣ |
| ٥١ | د پريشانئ دَ وخت دُعا | ٣٩٧٣ |
| ٥٢ | د سخت مصيبت نه پناه | ٣٩٧٤ |
| ٥٣ | د نبي کريمؐ دُعا | ٣٩٧٤ |
| ٥٤ | د مرګ او ژوند دعا | ٣٩٧٥ |
| ٥٥ | د برکت دعا | ٣٩٧٦ |
| ٥٦ | نبي کريم صلي الله عليه وسلّم باندې درود ليګل | ٣٩٧٨ |
| ٥٧ | آيا د حضورؐ نه علاوه هم بل چا باندې درود وئيلې شي | ٣٩٧٩ |
| ٥٨ | که چرې خما نه چاته تکليف رسيدلې وي | ٣٩٨٠ |
| ٥٩ | د فتنو نه پناه غوښتل | ٣٩٨٠ |
| ٦٠ | خلقو غلبې نه پناه | ٣٩٨١ |
| ٦١ | د قبر د عذاب نه پناه | ٣٩٨٢ |
| ٦٢ | د فتنو نه پناه | ٣٩٨٤ |
| ٦٣ | د ګناه او قرض نه پناه | ٣٩٨٤ |
| ٦٤ | د بزدلئ نه پناه | ٣٩٨٥ |
| ٦٥ | د بُخل نه پناه | ٣٩٨٥ |
| ٦٦ | د ناکاره عمر نه پناه | ٣٩٨٦ |
| ٦٧ | دعا سره وبا لرې کيږي | ٣٩٨٦ |
| ٦٨ | د دنيا آزمائش نه پناه | ٣٩٨٧ |
| ٦٩ | د مالدارئ فتنې نه پناه | ٣٩٨٩ |
| ٧٠ | د محتاجئ نه پناه | ٣٩٨٩ |
| ٧١ | د مال د زياتوالئ دعا | ٣٩٩٠ |
| ٧٢ | د استخارې دعا | ٣٩٩٠ |
| ٧٣ | د اودس وخت کښې دعا | ٣٩٩١ |
| ٧٤ | په غونډئ باندې د ختلو دُعا | ٣٩٩٢ |
| ٧٥ | په ژوره کښې د کوزيدلو وخت کښې دعا | ٣٩٩٢ |
| ٧٦ | د سفر ارادې وخت کښې دعا | ٣٩٩٣ |
| ٧٧ | د واده کونکي د پاره دعا | ٣٩٩٣ |
| ٧٨ | کله چه خپلې بي بي له ورشي | ٣٩٩٤ |
| ٧٩ | اې زمونږه ربه په دنيا او آخرت کښې راته ښيګړه نصيب کړې | ٣٩٩٥ |
| ٨٠ | د دنيا د آزمائش نه پناه | ٣٩٩٥ |
| ٨١ | بار بار دعا کول | ٣٩٩٥ |
| ٨٢ | مشرکينو د پاره بددعا | ٣٩٩٧ |
| ٨٣ | مشرکينو د پاره دعا | ٣٩٩٩ |
| ٨٤ | د مغفرت دعا | ٤٠٠٠ |
| ٨٥ | د جمعې خاص ګهړئ کښې دعا | ٤٠٠١ |
| ٨٦ | د يهودو باره کښې دعاګانې | ٤٠٠١ |
| ٨٧ | آمين وئيل | ٤٠٠٢ |
| ٨٨ | د لا اِلٰه فضيلت | ٤٠٠٢ |
| ٨٩ | د سبحان الله فضيلت | ٤٠٠٤ |
| ٩٠ | د ذکرُ الله فضيلت | ٤٠٠٥ |
| ٩١ | لاحول ولا قوة وئيل | ٤٠٠٧ |
| ٩٢ | د الله خاص نوم | ٤٠٠٧ |
| ٩٣ | وقفې سره وعظ | ٤٠٠٨ |
| ٩٤ | په زړه کښې د نرمئ دعا | ٤٠٠٩ |
| ٩٥ | په آخرت کښې د دنيا مثال | ٤٠١٠ |
| ٩٦ | دنيا کښې د مسافر پشان اوسه | ٤٠١٠ |
| ٩٧ | د اُميد اوګدوالې | ٤٠١١ |
| ٩٨ | د شپيتو کالو عمر | ٤٠١٢ |
| ٩٩ | د الله خوشنودي | ٤٠١٤ |
| ١٠٠ | د دنيا زينت | ٤٠١٤ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۰۱. | د الله وعده حقه ده | ۴۰۱۹ |
| ۱۰۲. | د نیکانو وفات کیدلو په باره کښې | ۴۰۱۹ |
| ۱۰۳. | مال او اولاد آزمائش دے | ۴۰۲۰ |
| ۱۰۴. | مال سرسبز او خوشګوار دے | ۴۰۲۲ |
| ۱۰۵. | د مرګ نه مخکښې چه کوم خرچ اوکړے شو | ۴۰۲۳ |
| ۱۰۶. | کم سامانه خوک دے | ۴۰۲۳ |
| ۱۰۷. | ماته دا خوښه نه ده | ۴۰۲۶ |
| ۱۰۸. | سرمایه داري څه شے دے | ۴۰۲۸ |
| ۱۰۹. | د فقر فضیلت | ۴۰۲۸ |
| ۱۱۰. | د صحابه کرامو زندګئ | ۴۰۳۱ |
| ۱۱۱. | په عمل باندے همیشه والے | ۴۰۳۶ |
| ۱۱۲. | ویرے سره اُمید | ۴۰۳۹ |
| ۱۱۳. | د صبر اجر | ۴۰۴۰ |
| ۱۱۴. | توکل علي الله | ۴۰۴۱ |
| ۱۱۵. | قیل او قال | ۴۰۴۱ |
| ۱۱۶. | د ژبے فضیلت | ۴۰۴۲ |
| ۱۱۷. | د الله د ویرے نه ژړل | ۴۰۴۴ |
| ۱۱۸. | د الله ویره | ۴۰۴۵ |
| ۱۱۹. | ګناهونونه منع کیدل | ۴۰۴۶ |
| ۱۲۰. | که چرے تاسوته معلومه شي | ۴۰۴۷ |
| ۱۲۱. | نفساني خواهشات | ۴۰۴۸ |
| ۱۲۲. | د جنت د قُرب مثال | ۴۰۴۸ |
| ۱۲۳. | لاندے درجے ته خیال کوئ | ۴۰۴۹ |
| ۱۲۴. | چاچه صرف اراده اوکړه | ۴۰۴۹ |
| ۱۲۵. | ګناهونه سپک ګنړل | ۴۰۵۰ |
| ۱۲۶. | د اعمالو اعتبار | ۴۰۵۰ |
| ۱۲۷. | ګوشه نشیني | ۴۰۵۱ |
| ۱۲۸. | امانت پورته کیدل | ۴۰۵۲ |
| ۱۲۹. | ریا او شهرت | ۴۰۵۴ |
| ۱۳۰. | د الله په لار کښے لګول | ۵۰۵۵ |
| ۱۳۱. | تواضع | ۴۰۵۵ |
| ۱۳۲. | د قیامت معامله | ۴۰۵۷ |
| ۱۳۳. | باب ۱۳۳ | ۴۰۵۸ |
| ۱۳۴. | د الله ملاقات محبوب ګنړل | ۴۰۵۸ |
| ۱۳۵. | څنګدن | ۴۰۶۱ |


تمت

# شپږويشتمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

## باب ۱ : اَلۡمُعَانَقَةِ وَ قَوۡلِ الرَّجُلِ كَيۡفَ اَصۡبَحۡتَ.

۱ : حَدَّثَنَا اِسۡحَاقُ اَخۡبَرَنَا بِشۡرُ بۡنُ شُعَيۡبٍ حَدَّثَنِیۡ اَبِیۡ عَنِ الزُّهۡرِیِّ قَالَ اَخۡبَرَنِیۡ عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنِ عَبَّاسٌ اَخۡبَرَهٗ اَنَّ عَلِيًّا يَعۡنِیۡ بۡنَ اَبِیۡ طَالِبٍ خَرَجَ مِنۡ عِنۡدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنَا اَحۡمَدُ بۡنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنۡبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوۡنُسُ عَنِ بۡنِ شِهَابٍ قَالَ اَخۡبَرَنِیۡ عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنَ كَعۡبِ بۡنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبۡدَ اللّٰهِ بۡنَ عَبَّاسٍ اَخۡبَرَهٗ اَنَّ عَلِيَّ بۡنَ اَبِیۡ طَالِبٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُ خَرَجَ مِنۡ عِنۡدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فِیۡ وَجۡعِهِ الَّذِیۡ تُوَفِّیَ فِيۡهِ فَقَالَ النَّاسُ يَا اَبَا الۡحَسَنِ كَيۡفَ اَصۡبَحَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَصۡبَحَ بِحَمۡدِ اللّٰهِ بَارِئًا فَاَخَذَ بِيَدِهٖ الۡعَبَّاسُ فَقَالَ اَلَا تَرَاهُ اَنۡتَ وَاللّٰهِ بَعۡدَ الثَّلَاثِ عَبۡدُ الۡعَصَا وَاللّٰهِ اِنِّیۡ لَاُرٰی رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ سَيُتَوَفّٰی فِیۡ وَجۡعِهٖ وَ اِنِّیۡ لَاَعۡرِفُ فِیۡ وُجُوۡهِ بَنِیۡ عَبۡدِ الۡمُطَّلِبِ الۡمَوۡتَ

## باب ۱ : دَ معانقه (تر غاړه وتلو) بيان او د يو' سړي دا تپوس كول چه سحر كښې دِ طبيعت څنګه وو.

۱ : اسحاق' بشر بن شعيب' شعيب' زهري' عبدالله بن كعب' عبدالله بن عباسؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے. حضرت عليؓ بن ابي طالب حضرت صلي الله عليه وسلم له راغلے (دوئم سند' احمد بن صالح' عنبسه' يونس' ابن كتاب' عبدالله بن كعب بن مالك نه روايت كوي. عبدالله بن عباسؓ بيان اوكه' حضرت عليؓ بن ابي طالب حضور صلي الله عليه وسلم له د حضور صلي الله عليه وسلم د مرګ د مرض حالت كښې ورغے' چه واپس شو' نو خلقو ترے تپوس اوكه' اے ابو الحسنؓ: د رسول الله صلي الله عليه وسلم طبيعت سحر كښې څنګه وو. هغه ووے' الحمد لله' ښه دے. حضرت عباسؓ د هغه لاس اونيولو. ورته ئے ووے' ايا ته نه وينے' په خدائے م دے قسم وي' درے ورځے پس به تاسو د ډنډے غلامان (تابع) شئے. خما خيال دے' رسول الله صلي الله عليه وسلم به دے مرض كښې وفات شي. زه د بني عبدالمطلب د مخ نه د هغوئ د مرګ اثار پيژنم' ماسره رسول الله صلي الله عليه وسلم سره لاړ شه' چه مونږ ترے تپوس

فَاذْهَبْ بِنَا اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْأَلُهُ فِيْمَنْ يَكُوْنُ الْاَمْرُ فَاِنْ كَانَ فِيْنَا عَلِمْنَا ذٰلِكَ وَ اِنْ كَانَ فِيْ غَيْرِنَا اَمَرْنَاهُ فَاَوْصٰى بِنَا قَالَ عَلِيٌّ وَاللّٰهِ لَئِنْ سَاَلْنَا هَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَمْنَعُنَا لَا يُعْطِيْنَاهَا النَّاسُ اَبَدًا وَ اِنِّيْ لَا اَسْأَلُهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَدًا.

اوکړو، چه خلافت به کوم خاندان کښې وي، نو مونږ ته به دا معلومه شي، او که خمونږ نه علاوه د چا بل چا لاس کښې وي، نو مونږ به ورته ووایو، چه مونږ د پاره وصيت اوکړئ. حضرت عليؓ ووے، قسم په خدائے که مونږ د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوکه، او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم منع اوکړله، نو بيا به خلق مونږ له هيڅ کله رانه کړي. زه د دے متعلق د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه تپوس نه کوم.

## بَابٌ ٢ : مَنْ اَجَابَ بِلَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ.

## باب ٢ : جواب کښې د لَبَّيْکَ وَ سَعْدَيْکَ ويلو بيان.

٢ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنْ مُعَاذٍ قَالَ اَنَا رَدِيْفُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ ثُمَّ قَالَ مِثْلَهُ ثَلٰثًا هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلَى الْعِبَادِ اِنْ يَّعْبُدُوْهُ وَلَا يُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً فَقَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ قَالَ هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ اِذَا فَعَلُوْا ذٰلِكَ اَنْ لَا يُعَذِّبَهُمْ.

٢ : موسٰي بن اسماعيل، همام، قتاده، انس، معاذؓ نه روايت کوي، زه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلم پسے وروستو سور ووم، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او وئيل. اے معاذ! ما اووے، لَبَّيک و سعديک. بيا دغسے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم درے ځله او فرمائيل! بيا ئے او فرمائيل، تا ته څه پته شته، چه د اللّٰه په بنده څه حق دے، (د هغه حق دا دے چه) د هغه عبادت وکړي، او هغه سره څوک شريک جوړ نه کړي. بيا لږ لاړلو، او وے فرمائيل. اے معاذ. ما اووے: لبّيک و سعديک. حضورؐ او فرمائيل، تاته معلومه ده چه، د بنديانو په اللّٰه حق څه دے، هر کله چه بنده هغه اوکړي، هغه دا دے، چه اللّٰه هغوي له عذاب ورنه کړي.

٣ : حَدَّثَنَا هُدْبَةُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنْ مُعَاذٍ بِهٰذَا.

٣ : هدبه، همام، قتاده، انس رضي اللّٰه عنه، معاذ رضي اللّٰه عنه نه دا حديث روايت کوي.

۴: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا وَاللّٰهِ أَبُو ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ قَالَ: كُنْتُ أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَرَّةِ الْمَدِينَةِ عِشَاءً اسْتَقْبَلَنَا أُحُدًا فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ مَا أُحِبُّ أَنَّ أُحُدًا لِي ذَهَبًا يَأْتِي عَلَيَّ لَيْلَةٌ أَوْ ثَلاَثٌ عِنْدِي مِنْهُ دِينَارٌ إِلاَّ أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ إِلاَّ أَنْ أَقُولَ بِهِ فِي عِبَادِ اللّٰهِ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ أَرَانَا بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ قُلْتُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الأَكْثَرُونَ هُمُ الأَقَلُّونَ إِلاَّ مَنْ قَالَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا ثُمَّ قَالَ لِي مَكَانَكَ لاَ تَبْرَحْ يَا أَبَا ذَرٍّ حَتَّى أَرْجِعَ فَانْطَلَقَ حَتَّى غَابَ عَنِّي فَسَمِعْتُ صَوْتًا فَخَشِيتُ أَنْ يَكُونَ عُرِضَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تَبْرَحْ فَمَكُثْتُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ سَمِعْتُ صَوْتًا خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ عُرِضَ لَكَ ثُمَّ ذَكَرْتُ قَوْلَكَ فَقُمْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰكَ جِبْرِيلُ

۴: عمر بن حفص، حفص، اعمش، زید بن وهب، ابو ذر (رضي اللّٰه عنه) نه روایت کوي. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم سره د ماسختن په وخت د مقام حره نه تیریدم، خمونږ مخې ته د، اُحد غر ښکاره شولو، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم وفرمائیل، اې ابوذرؓ! زه نه خوښوم، چه د اُحد برابر دې ماسره سره زر وي، او په ما دې یو. شپه یا درې شپې تیرې شي، داسې حال کښې چه هغې کښې ما سره بغیر د قرض نه یو دینار هم نه وي. خو دا چه هغه د اللّٰه په بندیانو داسې او داسې خرچ کړم، او خپل لاس مبارک سره ئې اشاره اوکړله. بیائې او فرمائیل، اې ابوذرؓ ما اووې: لبّیک و سعدیک: یا رسول اللّٰه، حضورؐ او فرمائیل، دنیا کښې زیات مال واله به اخرت کښې تنګدست وي. خو کوم خلق چه داسې او داسې خرچ اوکړي. بیائې ماته او فرمائیل، ته په دې ځائې ایسار شه، اې ابوذرؓ، څو پورې چه زه رانشم، ته دلته ایسار اوسه، نو حضورؐ روان شولو، تر دې چه څما د نظر نه غایب شولو. ما یو اواز واوریدلو، ما سره ویره شوه، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته څه حادثه پیښه شوه. په دې وجه ما ورتلل اوغوښتل. بیا ماته د حضورؐ قول رایاد شولو، چه دلته ایسار اوسه، نو زه ایسار شوم، کوم وخت چه حضورؐ تشریف راوړلو، نو ما عرض اوکه، یا رسول اللّٰه، ما یو اواز واوریدلو، په دې وجه ماسره خوف پیدا شو، چه چرته تاسو ته څه حادثه نه وي پیښه شوي (ما درتلل اوغوښتل) بیا ماته ستاسو حکم رایاد شو، چه دلته ایسار اوسه، نو زه ایسار شوم. حضورؐ او فرمائیل، هغه جبرائیلؑ وو، چه ماله راغلې وو، هغه

اَتَانِيْ فَاَخْبَرَنِيْ اَنَّهُ مَنْ مَّاتَ مِنْ اُمَّتِيْ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ اِنْ زَنٰى وَ اِنْ سَرَقَ قَالَ وَ اِنْ زَنٰى وَ اِنْ سَرَقَ قُلْتُ لِزَيْدٍ اِنَّهُ بَلَغَنِيْ اَنَّهُ اَبُو الدَّرْدَآءِ فَقَالَ اَشْهَدُ لَحَدَّثَنِيْهِ اَبُوْ ذَرٍّ بِالرَّبْذَةِ قَالَ الْاَعْمَشُ وَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِي الدَّرْدَآءِ نَحْوَهُ وَ قَالَ اَبُوْ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْمَشِ يَمْكُثُ عِنْدِيْ فَوْقَ ثَلَاثٍ.

خبردار کړلو، چه ځما امت کښې کوم سړے اللّٰه سره شريک جوړ نه کړي، او هغه مړ شي، نو جنت کښې به داخليږي. ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه! اګر که هغه زنا او غلا اوکړي، حضورؐ او فرمائيل، اګر که هغه غلا او زنا اوکړي. د راوي بيان دے، ما زيد ته اووے، ماته معلومه شوه، چه هغه ابو درداءؓ وو. هغه اووے، زه ګواهي کوم چه ماته ابو ذرؓ ربذه کښې بيان اوکه. اعمش اووے، ماته ابو صالح هغه د ابو درداء نه د هغې په مثل نقل که. او ابو شهاب د اعمش نه: يمكث عندی فوق ثلاثٍ الفاظ نقل کړل.

**باب ۳:** لَا يُقِيْمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَّجْلِسِهِ.

**باب ۳:** هيڅوک دے بل څوک د هغه د ناستے د ځائے نه، نه پاڅوي.

۵ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُقِيْمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَّجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيْهِ.

۵ : اسماعيل بن عبداللّٰه، مالک، نافع، حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هيڅوک دے بل د هغه د ناستے د ځائے نه، نه پاسوي، چه خپله د هغه په ځائے کيني.

**بـاب ۴:** اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجَالِسِ فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ وَ اِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا.

**باب ۴:** هر کله چه تاسو ته ووئيلے شي، چه ناستے د پاره ځائے اوکړئے، نو تاسو ځائے ورکړئے، اللّٰه تعالي به ستاسو د پاره کشادګي پيدا کړي، او کله چه درته اووئيلے شي، چه پاسئے، نو پاسئے الخ.

۶ : حَدَّثَنَا خَلَادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ نَهٰى اَنْ يُّقَامَ

۶ : خلاد بن يحيٰي، سفيان، عبيد اللّٰه، نافع، ابن عمرؓ حضورؐ نه روايت کوي، حضورؐ د دے نه منع او فرمائيله، چه يو سړے د هغه د ځائے نه پاسولے شي، چه د هغه په ځائے دوئم سړے

الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ وَ يَجْلِسَ فِيهِ اٰخَرُ وَلٰكِنْ تَفَسَّحُوْا وَ تَوَسَّعُوْا وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَكْرَهُ اَنْ يَقُوْمَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسَ مَكَانَهُ.

كښني، ليكن خائے ور كړئے، او كشادګي پيدا كړئے. او ابن عمرؓ به دا خبره مكروه ګڼړله. چه يو سړے د هغه د خائے نه پاسولے شي. بيا د هغه په خائے كښيني.

بَاب ۵: مَنْ قَامَ مِنْ مَجْلِسِهِ اَوْ بَيْتِهِ وَ لَمْ يَسْتَاذِنْ اَصْحَابَهُ اَوْتَهَيَّاَ لِلْقِيَامِ لِيَقُوْمَ النَّاسُ.

باب ۵: د هغے سړي بيان چه د خپل مجلس نه يا، د كور نه، د خپل ملګرو د اجازت نه بغير اودريږي، يا په دے وجه د اودريدو اراده اوكړي، چه خلق هم اودريږي.

۷: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ يَذْكُرُ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا تَزَوَّجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ ابْنَةَ جَحْشٍ دَعَا النَّاسَ طَعِمُوْا ثُمَّ جَلَسُوْا يَتَحَدَّثُوْنَ قَالَ فَاَخَذَ كَاَنَّهُ يَتَهَيَّاُ لِلْقِيَامِ فَلَمْ يَقُوْمُوْا فَلَمَّا رَاٰى ذٰلِكَ قَامَ فَلَمَّا قَامَ قَامَ مَنْ قَامَ مَعَهُ مِنَ النَّاسِ وَ بَقِيَ ثَلَاثَةٌ وَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ لِيَدْخُلَ فَاِذَا الْقَوْمُ جُلُوْسٌ ثُمَّ اِنَّهُمْ قَامُوْا فَانْطَلَقُوْا قَالَ فَجِئْتُ فَاَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُمْ قَدِ انْطَلَقُوْا فَجَاءَ حَتّٰى دَخَلَ فَذَهَبْتُ اَدْخُلُ فَاَرْخَى الْحِجَابَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

۷: حسن بن عمر، معتمر، د معتمر پلار، ابو مجلز، انس بن مالكؓ نه روايت كوي، كوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلم بي بي زينبؓ بنت جحش سره نكاه اوكړله، او خلقو له ئے دعوت وركه، نو هغے خلق پس د طعام خوړلو نه كيناستل او خبرے ئے شروع كړلے. د راوي بيان دے. حضورؐ دا ظاهره كړه. چه ګويا اودريدل غواړي، ليكن خلق پانه سيدل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه دا اوليدل، نو اودريدلو. كوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو، نو حضورؐ سره چه كوم خلق وو، هغوي هم اودريدل او لاړل، او درے سړي پاتے شو. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه راغے، نو وے ليدل، چه خلق ناست دي، بيا هغه خلق هم پاسيدل، لاړل. د انسؓ بيان دے. زه راغلم، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته مے بيان اوكه، چه هغه خلق تلے دي. دے اوريدو سره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم راغے، تر دے چه كور كښې داخل شو. زه هم داخليدم، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خما او خپل منځ كښې پرده راوغورځوله. او اللّٰه تعالىٰ دا ايت نازل كړلو: چه اے

لَا تَدْخُلُوا بُيُوْتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَى قَوْلِهِ إِنَّ ذَالِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا.

ايمان والو: د نبي صلي الله عليه وسلّم کورونو کښې مه داخليږئې خو، دا چه تاسو ته اجازت درکړې شي. ان ذٰلک عند اللّٰه عظيمًا. پورې.

باب ۶: اَلْاِحْتِبَآءُ بِالْيَدِ وَ هُوَ الْقُرْفِصَآءُ.

باب ۶: لاس سره د احتباء بيان، او دې ته قرفصاء هم وائي.

۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِيْ غَالِبٍ أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ الْحِزَامِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ مُحْتَبِيًا بِيَدِهٖ هٰكَذَا.

۸: محمد بن ابي غالب، ابراهيم بن منذر حزائي محمد بن فليح، فليح، نافع، ابن عمر نه روايت کوي. ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو. چه د کعبې صحن انګړ، کښې دا شان خپل لاس سره احتباء کړې ناست وو.

ف: احتباء: يعني دواړه کونډئ اوچتې کړې د، کوناټو په زور ناسته، او دواړو لاسونو سره حلقه کول، يعني چه لاسونه ئې چاپيره کړې وي.

باب ۷: مَنِ اتَّكَأَ بَيْنَ يَدَيْ أَصْحَابِهٖ قَالَ خَبَّابٌ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً قُلْتُ أَلَا تَدْعُوا اللّٰهَ فَقَعَدَ.

باب ۷: د خپلو ملګرو مخکښې تکيه لګولې د ناستې بيان. د خباب بيان دې، زه نبيٌّ له راغلم، حضورٌ د څادر نه تکيه جوړه کړې وه. ما عرض اوکه، ايا تاسوٌ اللّٰه نه دُعا نه غواړئې. دې اوريدو سره حضورٌ کيناستلو.

۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ؟ قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الْإِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ عُقُوْقُ

۹: علي بن عبداللّٰه، بشر بن مفضل، جريري، عبدالرحمٰن بن ابي بکره، ابي بکرهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ايا زه تاسو ته د ټولو نه لوئې ګناه او نه ښائيم. خلقو عرض اوکه. ولې نه، يا رسول اللّٰه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه سره شريک جوړول او د مور پلار نافرماني

الْوَالِدَيْنِ.

۱۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ مِثْلَهُ وَ كَانَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ! اَلَا وَ قَوْلُ الزُّوْرِ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتّٰى قُلْنَا لَيْتَهُ سَكَتَ.

كول.

۱۰ : مسدد په واسطه د، بشر دا شان حديث بيان كه، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم تكيه وهلے وه. بيا كيناستلو، او وے فرمائيل، واورئے، دروغو نه بچ شئے. دائے بار بار فرمائيل، تر دے چه مونږ اووے، كاش چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خاموش شولے.

**باب ۸: مَنْ اَسْرَعَ فِيْ مَشْيِهٖ لِحَاجَتِهٖ اَوْ قَصْدٍ.**

**باب ۸: د څه ضرورت په بِنا يا قصدًا د تيز تلو بيان.**

۱۱ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مَلِيْكَةَ اَنَّ عُقْبَةَ بْنَ الْحَارِثِ حَدَّثَهُ قَالَ: صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَصْرَ فَاَسْرَعَ ثُمَّ دَخَلَ الْبَيْتَ.

۱۱ : ابو عاصم، عمر بن سعيد، ابن ابي مليكه، عقبه بن حارث رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د مازيگر مونځ اوكړلو، نو تادي ئے اوكړله. بيا خپل كور كښ داخل شولو.

**باب ۹: السَّرِيْرِ.**

**باب ۹: د تخت بيان.**

۱۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ وَسْطَ السَّرِيْرِ وَ اَنَا مُضْطَجِعَةٌ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ تَكُوْنُ لِيَ الْحَاجَةُ فَاَكْرَهُ اَنْ اَقُوْمَ فَاَسْتَقْبِلَهُ فَاَنْسَلُّ اِنْسِلَالًا.

۱۲ : قتيبه، جرير، اعمش، ابو الضحي، مسروق، بي بي عايشے رضي اللّٰه عنها نه روايت كوي، د هغے بيان دے، رسول صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د تخت په مينځ اودريدلو مونځ به ئے كولو، او زه به د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او قبلے په مينځ كښ ملاسته ووم، كه ما ته به څه ضرورت شو او ما به نه خوښوله، چه پاسم، نو حضورؐ طرف ته به مِ رخ كړلو. په مزه مزه (اهسته اهسته) به (په ملاسته ملاسته) او وتلم.

**باب ۱۰: مَنْ اُلْقِيَ لَهُ وَ سَادَةٌ.**

**باب ۱۰: چا ته د تكيه وركولو بيان.**

۱۳ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۱۳ : اسحاق، خالد او، عبداللّٰه بن محمد، عمرو بن عون، خالد، ابو قلابه، ابو المليح نه روايت كوي، زه

مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَمْرُوُ بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُو الْمَلِيْحِ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ اَبِيْكَ زَيْدٍ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو فَحَدَّثَنَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذُكِرَ لَهُ صَوْمِيْ فَدَخَلَ عَلَيَّ فَاَلْقَيْتُ لَهُ وِسَادَةً مِّنْ آدَمٍ حَشْوُهَا لِيْفٌ فَجَلَسَ عَلَى الْاَرْضِ وَ صَارَتِ الْوِسَادَةُ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ فَقَالَ لِيْ: اَمَا يَكْفِيْكَ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ؟ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ، قَالَ سَبْعًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ، قَالَ تِسْعًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ، قَالَ لَا صَوْمَ فَوْقَ صَوْمِ دَاوُدَ شَطْرَ الدَّهْرِ صِيَامُ يَوْمٍ وَ اِفْطَارُ يَوْمٍ.

ستا پلار زيد سره عبدالله بن عمر له ورغلم، نو هغه ما ته بيان اوكه، نبي صلي الله عليه وسلّم ته څما د روژے متعلق او وئيلے شو، نو حضور صلي الله عليه وسلم ما له تشريف راوړلو. ما د حضور صلي الله عليه وسلّم مخے ته تكيه واچوله چه قجورو د پوستكو نه ډكه وه، حضورؐ په مزكه كيناستلو، او تكيه څما او د حضورؐ منځ كښ وه. بيا حضورؐ ما ته او فرمائيل، ايا تاله مياشت كښ درے روژے كافي نه دي. ما عرض اوكه، يا رسول الله، ما كښ د دے نه زيات طاقت دے، نو وے فرمائيل پنځه (۵)، ما عرض اوكه، يا رسول الله، ما كښ د دے نه زيات طاقت دے، نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، نو اووه (۷)، ما اووے، يا رسول الله، ما كښ د دے نه زيات طاقت دے. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، نو نهه (۹). ما عرض اوكه يا رسول الله، ما كښ د دے نه زيات طاقت دے. حضورؐ او فرمائيل، نو يوولس (۱۱)، ما عرض اوكه، يا رسول الله، ما كښ د دے نه زيات طاقت شته. حضورؐ او فرمائيل، د داؤد عليه السلام د روژو نه زياته هيڅ روژه نشته، په دے طور چه برابر يوه ورځ روژے ساتے او يوه ورځ كوژه.

۱۴ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ شُعْبَةَ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ اَنَّهُ قَدِمَ الشَّامَ وَ حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ ذَهَبَ عَلْقَمَةُ اِلَى الشَّامِ فَاَتَى الْمَسْجِدَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ: اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ جَلِيْسًا

۱۴ : يحيي بن جعفر، يزيد، شعبه، مغيره، ابراهيم، علقمه نه روايت كوي، چه هغه شام ته ورسيد (دوئم سند) ابو الوليد، شعبه، مغيره، ابراهيم نه روايت كوي، د هغه بيان دے، علقمه شام ته اورسيد نو يو جماعت ته راغے، او دوه ركعته مونځ ئے اوكه، او دُعائے اوكړله، يا الله، ماته څوك ملګرے عطا كړے، بيا ابو درداءؓ سره كيناستلو، او تپوس ئے اوكه، ته د كوم ځائے اوسيدونكے

فَقَعَدَ اِلٰى اَبِى الدَّرْدَآءِ فَقَالَ مِمَّنْ اَنْتَ؟ قَالَ مِنْ اَهْلِ الْكُوْفَةِ قَالَ اَلَيْسَ فِيْكُمْ صَاحِبُ السِّرِ الَّذِىْ كَانَ لَا يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ يَعْنِىْ حُذَيْفَةَ اَلَيْسَ فِيْكُمْ اَوْ كَانَ فِيْكُمُ الَّذِىْ اَجَارَهُ اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الشَّيْطَانِ؟ يَعْنِىْ عَمَّارًا اَوَ لَيْسَ فِيْكُمْ صَاحِبُ السِّوَاكِ وَالْوِسَادَةِ يَعْنِى ابْنَ مَسْعُوْدٍ كَيْفَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَقْرَءُ وَاللَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى قَالَ وَالذَّكَرِ الْاُنْثٰى فَقَالَ مَا زَالَ هٰؤُلَاءِ حَتّٰى كَادُوْ يُشَكِّكُوْنِىْ وَ قَدْ سَمِعْتُهَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ئې، هغه ورته اووې، د كوفې اوسيدونكې يم. علقمه اووئيل، ايا تاسو كښې هغه سړې نشته چه په دې راز پوهيدونكې دې، چه د هغه نه سوا پدې هيڅوك نه پوهيږي، يعني حذيفهؓ، ايا تاسو كښې هغه سړې نشته، يا دائې اووې، ايا تاسو كښې هغه سړې نه وو، چه هغه ته الله تعالىٰ د خپل رسول په ژبه د شيطان نه پناه وركړې ده، يعني عمار (رضي اللّٰه عنه)، او ايا تاسو كښې تكيه او مسواك واله يعني ابن مسعود (رضي اللّٰه عنه) نشته دې. عبداللّٰه به: وَاللَّيل اذا يغشى څنګه لوستلو. ابو درداءؓ اووې، خلقو به زه شك كښې غورځولم، حالانكه ما د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دغسې اوريدلې دې.

ف: يا اللّٰه، مونږ له هم د دې درجې په بركت د شيطان نه پناه راكړې. اللّٰهم امين.

## بَاب ۱۱: اَلْقَائِلَةِ فِى الْمَسْجِدِ.

## باب ۱۱: جمات كښې د قيلوله كولو بيان.

۵ ۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِىْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ مَا كَانَ لِعَلِيٍّ اِسْمٌ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِنْ اَبِىْ تُرَابٍ وَ اِنْ كَانَ لَيَفْرَحُ بِهٖ اِذَا دُعِىَ بِهَا جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْتَ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ فَلَمْ يَجِدْ عَلِيًّا فِى الْبَيْتِ فَقَالَ اَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ فَقَالَتْ كَانَ بَيْنِىْ وَ بَيْنَهٗ شَىْءٌ فَغَاضَبَنِىْ فَخَرَجَ فَلَمْ يَقِلْ عِنْدِىْ

۵ ۱: قتيبه بن سعيد، عبدالعزيز بن ابي حازم، ابو حازم، سهل بن سعدؓ نه روايت كويٍ، د هغه بيان دې. د حضرت عليؓ د، ابو تراب نه زيات هيڅ نوم خوښ نه وو. او كله چه به په دې نوم بللې شو، نو ډير به خوشحاله شو. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د بي بي فاطمېؓ كور ته تشريف راوړلو. حضرت عليؓ ئې كور كښې بيا نه مندلو، تپوس ئې اوكه، ستا د تره زوئې چرته دې. بي بي فاطمېؓ ورته اووې، خما او د هغه مينځ كښې څه خبره وشوه، نو هغه ناراضه شو، بهر ته لاړلو، او مونږ سره كور سم نه لاستلو، نبيؐ چا سړي ته او فرمائيل اوګوره چه هغه

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِإِنْسَانٍ: اُنْظُرْ اَيْنَ هُوَ فَجَآءَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ رَاقِدٌ فَجَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ مُضْطَجِعٌ قَدْ سَقَطَ رِدَآءُهٗ عَنْهُ فَاَصَابَهٗ تُرَابٌ فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُهٗ عَنْهُ وَ هُوَ يَقُوْلُ قُمْ اَبَا تُرَابٍ قُمْ اَبَا تُرَابٍ.

(علي) چرته دے، هغه سره واپس راغے، ونيلے، يا رسول اللّٰه، هغه جمات کښې ملاست دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه پله تشريف يوړلو، دغه وخت هغه ملاست وو او څادر د هغه د اړخ نه خويدلے وو. په دے وجه جسم ئے د خاورو شوے وو. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خاوره د هغه د بدن نه څنډله، او فرمائيل به ئے، پاسه اے ابو ترابه، پاسه اے ابو ترابه (د خاورے والا).

## باب ۱۲۰۲: مَنْ زَارَ قَوْمًا فَقَالَ عِنْدَهُمْ.

## باب ۱۲۰۲: يو جماعت له ملاقات له دتلو او هلته د قيلولے کولو بيان.

۱۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ اُمِّ سُلَيْمٍ كَانَتْ تَبْسُطُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِطَعًا فَيَقِيْلُ عِنْدَهَا عَلٰى ذٰلِكَ النِّطَعِ قَالَ فَاِذَا نَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخَذَتْ مِنْ عَرَقِهٖ وَ شَعْرِهٖ فَجَمَعَتْهُ فِيْ قَارُوْرَةٍ ثُمَّ جَمَعَتْهُ فِيْ سُكٍّ قَالَ فَلَمَّا حَضَرَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَلْوَفَاةُ اَوْصٰى اَنْ يَّجْعَلَ فِيْ حُنُوْطِهٖ مِنْ ذٰلِكَ السُّكِّ قَالَ فَجُعِلَ فِيْ حُنُوْطِهٖ.

۱۶: قتيبه بن سعيد، محمد بن عبداللّٰه انصاري، عبداللّٰه انصاري، ثمامه، حضرت انس نه روايت کوي. ام سلمه به نبي صلّي اللّٰه عليه وسلم د پاره د څرمنے فرش غوړولو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به هغے سره په هغه فرش قيلوله کوله. کوم چه به حضور اوده شولو، نو ما به د حضور خوله (سپينه) مبارکه اووينبته اخستل او يو شيشه کښې به مے جمع کول. بيا به مے هغه خوشبوئي کښې جمع کول. د راوي بيان دے. کوم وخت چه د حضرت انس بن مالک د وفات وخت قريب راغے، نو وصيت ئے اوکه چه د دے خوشبو نه څما حنوط کښې يو څائے کړے. نو د هغه حنوط کښې هغه يو څائے کړے شو.

ف: حنوط: د څو خوشبو داره اشياؤ مرکب، چه د مرده د غسل نه پس ورته لږولے شي.

۱۷: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ

۱۷: اسماعيل، مالک، اسحاق بن عبداللّٰه بن ابي

حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا ذَهَبَ اِلٰى قُبَآءٍ يَدْخُلُ عَلٰى اُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ فَتُطْعِمُهُ وَ كَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَدَخَلَ يَوْمًا فَاَطْعَمَتْهُ فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ يَضْحَكُ قَالَتْ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ نَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةً فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَرْكَبُوْنَ ثَبَجَ هٰذَا الْبَحْرِ مُلُوْكًا عَلَى الْاَسِرَّةِ اَوْ قَالَ مِثْلَ الْمُلُوْكِ عَلَى الْاَسِرَّةِ شَكَّ اِسْحَاقُ قُلْتُ ادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَدَعَا ثُمَّ وَضَعَ رَاْسَهُ فَنَامَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ نَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةً فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَرْكَبُوْنَ ثَبَجَ هٰذَا الْبَحْرِ مُلُوْكًا عَلَى الْاَسِرَّةِ فَقُلْتُ ادْعُوا اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ اَنْتِ مِنَ الْاَوَّلِيْنَ فَرَكِبَتِ الْبَحْرَ زَمَانَ مُعَاوِيَةَ فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِيْنَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ.

طلحه، حضرت انس بن مالک نه روايت کوي.ما د هغه نه واوريدل، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم چه به قباء طرف ته تشريف يوړلو، نو دام حرام بنت ملحان کور ته به ورتلو، هغې به حضور صلّي الله عليه وسلّم بانديے ډوډي خوروله، ام حرام د عباده بن صامت ښځه وه. يوه ورځ حضور صلّي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو، نو ام حرام پريے طعام او خوړولو. او رسول الله صلّي الله عليه وسلّم هلته اوده شولو. بيا په خندا بيدار شولو.ام حرام تپوس اوکه، يا رسول الله، تاسو څه څيز اُوخاندولئے حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل. ځما د امت څه خلق د الله لار کښې جهاد کونکي خوب کښې راته پيش کړے شو. چه د دے درياب په مينځ کښې د بادشاهانو په شان په خپل تخت سواره دي (راوي ته شک دے، چه ملوکًا على الاسرةِ او مثل الملوک على الاسرةِ ئے او فرمائيل) ما عرض اوکه (ام حرام وائي) يا رسول الله، الله نه دعا او غواړئے، چه ما هم د دوي د ډلے نه کړئے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته دُعا اوکړله. بيا حضورٌ سر کيښودلو، اوده شولو. او په خندا را پاسيدلو. ما عرض اوکه، تاسو ولے خاندئے. حضورٌ او فرمائيل. ځما دا امت غازيان ځما مخے ته راوستے شو، چه د دے درياب په مينځ کښې سواره دي، د بادشاهانو په شان په تخت ناست دي. ما عرض اوکه، دُعا اوکړئے، چه زه هم د دوي نه، شم، حضورٌ راته او فرمائيل، ته دوړمبنو نه ئے. نو ام حرامٌ د امير معاويهٌ زمانه کښې درياب کښې سوره تله، او خپلے سورلۍ نه راوغورځيدله، او وفات شوله.

## باب ١٣ : اَلْجُلُوْسُ كَيْفَ مَا تَيَسَّرَ.

## باب ١٣ : څنګه چه اساني وي، هغسې د ناست بيان.

١٨ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لِبْسَتَيْنِ وَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ اشْتِمَالِ الصَّمَّآءِ وَالْاِحْتِبَآءِ فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ لَيْسَ عَلٰى فَرْجِ الْاِنْسَانِ مِنْهُ شَيْءٌ وَالْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ حَفْصَةَ وَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُدَيْلٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

١٨ : علي بن عبدالله، سفيان، زهري، عطا بن يزيد ليثي، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه رواي كوي. د هغه بيان دے، حضورؐ د دوه قسمه لبا او دوه قسمه بيع نه منع فرمائيلې ده، يعن اشتمال صماء او يوه كپړه كښې دا شان كوټ وهلو سره ناسته (گوٹ مار کر بیٹھنا) چه د هغه پ شرم گاه هيڅ نه وي او ملامسه او ملابذه نه نے منع فرمائيلې ده. معمر او محمد بن ابي حفصه او عبدالله بن بديل په واسطه د زهري د دے متابعت كښې حديث روايت كړے دے.

١. د دوارو اغوستنو او اخستلو خرخولو تشريح د يو نه زيات ځلے تيره شوے ده.

## باب ١٤ : مَنْ نَّاجٰى بَيْنَ النَّاسِ وَمَنْ لَّمْ يُخْبِرْ لِسِرِّ صَاحِبِهٖ فَاِذَا مَاتَ اَخْبَرَ بِهٖ.

## باب ١٤ : د هغه سړي بيان، چه د خلقو مخكښې سر گوشي اوكړي، او د هغے سړي بيان، چه د خپل ملګري راز چاته خرګند نه كړي، كله چه مړ شي، نو خلقو ته ئے اوښائي.

١٩ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى عَنْ اَبِيْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا فِرَاسٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ حَدَّثَتْنِيْ عَائِشَةُ اُمُّ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَتْ: اِنَّا كُنَّا اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهٗ جَمِيْعًا لَمْ تُغَادَرْ مِنَّا وَاحِدَةٌ فَاَقْبَلَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ تَمْشِيْ لَا وَاللّٰهِ مَا تَخْفٰى مِشْيَتُهَا مِنْ مِشْيَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ

١٩ : موسي، ابو عوانه، فراس، عامر، مسروق، بي بي عائشہؓ نه روايت كوي، د هغے بيان دے، مونږ د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ټولے بيبيانے حضورؐ سره را جم وے. مونږ كښې هيڅوک هم غائبه نه وه. بي بي فاطم راغلـه، او د هغے چال د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّ چال سره زيات مشابه وو. كوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه اوليده، نو په خيره راغلے (خوش امديد) نے ورته اووے. او ورته ئے او فرمائيل: هر ك

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَاٰهَا رَحَّبَ قَالَ مَرْحَبًا بِابْنَتِيْ، ثُمَّ اَجْلَسَهَا عَنْ يَمِيْنِهِ اَوْعَنْ شِمَالِهِ ثُمَّ سَارَّهَا فَبَكَتْ بُكَآءً شَدِيْدًا، فَلَمَّا رَاٰى حُزْنَهَا سَارَّهَا الثَّانِيَةَ اِذَا هِيَ تَضْحَكُ فَقُلْتُ اَنَا مِنْ بَيْنِ نِسَآئِهٖ خَصَّكِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالسِّرِّ بَيْنَنَا ثُمَّ اَنْتِ تَبْكِيْنَ فَلَمَّا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاَلْتُهَا عَمَّا سَارَّكِ قَالَتْ مَا كُنْتُ لِاُفْشِيَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِرَّهُ فَلَمَّا تُوُفِّيَ قُلْتُ لَهَا عَزَمْتُ عَلَيْكِ بِمَالِيْ عَلَيْكِ مِنَ الْحَقِّ لَمَا اَخْبَرْتِنِيْ قَالَتْ: اَمَّا حِيْنَ سَارَّنِيْ فِي الْاَمْرِ الْاَوَّلِ فَاِنَّهٗ اَخْبَرَنِيْ اَنَّ جِبْرِيْلَ كَانَ يُعَارِضُهٗ بِالْقُرْاٰنِ كُلَّ سَنَةٍ مَرَّةً وَاِنَّهٗ قَدْ عَارَضَنِيْ بِهِ الْعَامَ مَرَّتَيْنِ وَ لَا اُرَى الْاَجَلَ اِلَّا قَدِ اقْتَرَبَ فَاتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِيْ فَاِنِّيْ نِعْمَ السَّلَفُ اَنَا لَكِ قَالَتْ فَبَكَيْتُ بُكَائِيَ الَّذِيْ رَاَيْتِ فَلَمَّا رَاٰى جَزَعِيْ سَارَّنِي الثَّانِيَةَ قَالَ يَا فَاطِمَةُ اَلَا تَرْضَيْنَ اَنْ تَكُوْنِيْ سَيِّدَةَ نِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَ سَيِّدَةَ نِسَآءِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ.

راشے. بیائے خپل بني یا ګس طرف ته کینوله. بیائے هغے سره پټه شان خبره اوکړه، نو هغه په زوره په ژړا شوه، چه هغه ئے غمجنه اولیده، دوباره ورسره پټه شان خبره اوکړه، نو هغه په خندا شوله. ما د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم د بیبیانو مینځ کښ اووے، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم زمونږ مینځ کښ تاسره خاص د راز خبره اوکړله، بیا هم ته ژاړے. کوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم بهر ته تشریف یوړلو، نو ما د هغے نه تپوس اوکه، څه خبره ئے درسره اوکړله. بي بي فاطمےؓ اووے، زه د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم راز نه ظاهروم، خو کوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم وفات شولو. نو ما هغے ته اووے، زه تا ته قسم درکوم، چه د هغے حق په عوض کښ چه ځما په تا دے، ته ما ته هغه خبره او ښایه، بي بي فاطمےؓ اووے، او. اوس به ئے درته اوښائیم، نو هغے اووئیل، ورمبنے پټه شان خبره چه حضورؐ ماته اوکړله، هغه دا وه چه حضورؐ ماته اووئیل، جبرائیلؑ به هر کال یو ځل دوره کوله. سخکال ئے دوه دورے اوکړے. اوس مرګ ماته نزدے ښکاري، په دے وجه د اللّٰه نه اویریږه، او صبر کوه، زه ستاسو د پاره ښه مخکښ تلونکے یم، نو زه په ژړا شوم، لکه چه تاسو اولیدل، کوم وخت چه حضورؐ ځما ویره اولیده، نو په دوئم ځل ماته حضورؐ پټ شان او فرمائیل، اے فاطمهؓ، ایا ته دا نه خوښوے، چه د مومنانو د ښځو سرداره شے، یا دائے او فرمائیل، چه د دے امت د ښځو سرداره شے.

## باب ۱۵ : اَلْاِسْتِلْقَآءِ.

## باب ۱۵ : د، سم، سملاستو بیان.

۲۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبَّادُ بْنُ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ مُسْتَلْقِيًا وَاضِعًا إِحْدٰى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرٰى.

۲۰: علي بن عبدالله، سفيان، زهري، عباد بن تميم د خپل تره (چچا) نه روايت کوي، د هغه بيان دے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم جمات کښې دا شان سم ملاست اوليدو، چه حضور صلي الله عليه وسلم يوه پښه په بله پښه اچولے وه.

باب ۱۶: لَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُوْنَ الثَّالِثِ. وَ قَوْلُهُ تَعَالٰى: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَ مَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَ تَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰى اِلٰى قَوْلِهِ وَ عَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ وَ قَوْلِهِ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَ اَطْهَرُ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ اِلٰى قَوْلِهِ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ.

باب ۱۶: دوه سړي دي، چه دريم پريږدي، سرګوش (غوږ کښې خبرے) نه کوي، او د الله تعالٰي قول، اے ايمان والو، کله چه تاسو غوږ کښې خبرے کوئے، نو د ګناه او د ظلم، او د رسول صلي الله عليه وسلم د نافرماني سرګوشي مه کوئے، او ښه خبره او د تقوٰي (پرهيزګاري) سرګوشي کوئے، او د الله تعالٰي قول اے ايمان والو کله چه تاسو رسول سره سرګوشي کوئي نو د سرګوشي نه مخکښې صدقه ورکوئے، دا ستاسو د پاره بهتره او پاکيزه خبره ده. او که تاسو ځان کښې د صدقے طاقت نه بيامومئے، نو الله تعالٰي (جلّ جلاله) بښونکے مهربانه دے: والله خبير بما تعملون: پورے.

۲۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ وَّ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَانُوْا ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُوْنَ الثَّالِثِ.

۲۱: عبدالله بن يوسف، مالک (دوئم سند) اسماعيل، مالک، نافع، حضرت عبدالله نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، هر کله چه درے سړي وي، نو دوه سړي دے دريم پريښودلو سره سرګوش نه کوي.

ف: دے سره د دريم کس شک پيدا شي. چه خدايه څه ئے وے. خما خلاف ئے څه د سازش خبره او کړه يا د بل چا.

**باب ۱۷ : حِفْظِ السِّرِّ.**

۲۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَسَرَّ اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِرًّا فَمَا اَخْبَرْتُ بِهِ اَحَدًا بَعْدَهُ وَ لَقَدْ سَاَلَتْنِيْ اُمُّ سُلَيْمٍ فَمَا اَخْبَرْتُهَا بِهِ.

**باب ۱۷ : د' راز د حفاظت كولو بيان.**

۲۲ : عبدالله بن صباح' معتمر بن سليمان' سليمان' حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي. ماته حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د راز خبره اوكړله' نو ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه پس هيچا ته بيان نه كړه. ما نه اُم سلمٌ د هغې متعلق تپوس اوكه' نو هغې ته هم ما او نه ښودله.

**باب ۱۸ : اِذَا كَانُوْا اَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَةٍ فَلَا بَأْسَ بِالْمُسَارَّةِ وَالْمُنَاجَاتِ.**

۲۳ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجٰى رَجُلَانِ دُوْنَ الْاٰخَرِ حَتّٰى تَخْتَلِطُوْا بِالنَّاسِ اَجْلَ اَنْ يُحْزِنَهُ.

**باب ۱۸ : هر كله چه د درې سړو نه زيات شي' نو بيا په پټه خبره كولو او غوږ كښې خبره كولو كښې هيڅ حرج نشته.**

۲۳ : عثمان' جرير' منصور' ابو وائل' عبدالله رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' هر كله چه تاسو درې سړي ئې' نو دوه سړي دې دريم پريښودو سره خپلو كښې غوږ كښې خبرې نه كوي' څو پورې چه ډير سړي نه وي. ځكه چه دا به هغه دريم كس غمجن كړي.

۲۴ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قِسْمَةً فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْاَنْصَارِ اِنَّ هٰذِهِ لَقِسْمَةٌ مَا اُرِيْدَ بِهَا وَجْهُ اللّٰهِ قُلْتُ اَمَا وَاللّٰهِ لَاٰتِيَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۴ : عبدان' ابو حمزه' اعمش' شقيق' عبدالله نه روايت كوي' نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوه ورځ څه مال تقسيم كړلو' نو يو انصاري اووې' دا هغه تقسيم دې' چه دې كښې د خدائې تعالٰي رضامندي پيش نظر نه ده' ما اووې' په خدائې چه زه به نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم له ورشم' او دې خبرې نه به ئې خبر كړم. نو زه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم' هغه وخت حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم جماعت سره وو. ما پټه

وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ فِي مَلَإٍ فَسَارَرْتُهُ فَغَضِبَ حَتّٰى احْمَرَّ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ: رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلٰى مُوْسٰى اُوْذِيَ بِاَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ.

شان حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته خبره او کړله، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غُصه شولو. تر دے چه د حضورؐ مخ مبارک سُور شولو. او بيائے او فرمائيل چه په موسٰي عليه السّلام دے د خدائے رحمت وي. هغه ته د دے نه هم زيات تکيف ور کړے شو. خو هغه صبر او که.

## بَابُ ١٩: طُوْلِ النَّجْوٰى

## باب ١٩: ډير وخته پورے د سرگوش کولو بيان.

وَ اِذْ هُمْ نَجْوٰى مَصْدَرٌ مِنْ نَاجَيْتُ فَوَصَفَهُمْ بِهَا وَالْمَعْنٰى يَتَنَاجَوْنَ.

ايت: وَ اذ هم نجوٰى: کبش، نجوى: د ناجيت نه مصدر دے، د هغے خلقو وصف بيان کړے شو، د دے معني دا دي، چه هغه خلق سر گوش کوي.

٢٥: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ وَ رَجُلٌ يُنَاجِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا زَالَ يُنَاجِيْهِ حَتّٰى نَامَ اَصْحَابُهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى.

٢٥: محمد بن بشار، محمد بن جعفر، شعبه، عبدالعزيز، حضرت انسؓ نه روايت کوي. د ماسختن د مونځ اذان اوشولو، او يو سړے رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره په مزه مزه (رو، رو، اهسته، اهسته) خبرے کولے. او ډير وخته پورے ئے خبرے کولے. تر دے چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم صحابه اوده شول. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم پاسيدو او مونځ ئے او کړو.

## بَابُ ٢٠: لَا تُتْرَكُ النَّارُ فِي الْبَيْتِ عِنْدَ النَّوْمِ.

## باب ٢٠: د اوده کيدو په وخت کور کښ اور پريښودل نه دي پکاري.

٢٦: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا بْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِيْ بُيُوْتِكُمْ حِيْنَ تَنَامُوْنَ.

٢٦: ابو نعيم، ابن عينيه، زهري، سالم د خپل پلار نه، هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضورؐ او فرمائيل، کوم وخت چه تاسو اوده کيږئے نو خپلو کورونو کښ اور مه پريږدئے.

٢٧: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى

٢٧: محمد بن علاء، ابو اسامه، بريد بن عبداللّٰه، ابو برده، حضرت ابو موسٰيؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، مدينه کښ

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اِحْتَرَقَ بَيْتٌ بِالْمَدِيْنَةِ عَلٰى اَهْلِهٖ مِنَ اللَّيْلِ فَحُدِّثَ بِشَانِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ هٰذِهِ النَّارَ اِنَّمَا هِيَ عَدُوٌ لَكُمْ فَاِذَا نِمْتُمْ فَاطْفِئُوْهَا عَنْكُمْ.

يو كور د، كور بنو سره د شپې اوسوزيدلو. د هغې خلقو واقعه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان كړې شوه. نو حضورؐ او فرمائيل، دا اور ستاسو دشمن دې. كله چه تاسو اوده كيږئې، نو دا وژنئې.

۲۸ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ كَثِيْرٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمِّرُوا الْاٰنِيَةَ وَ اَجِيْفُوْا الْاَبْوَابَ وَ اَطْفِئُوا الْمَصَابِيْحَ فَاِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا جَرَّتِ الْفَتِيْلَةَ فَاَحْرَقَتْ اَهْلَ الْبَيْتِ.

۲۸ : قتيبه، حماد، كثير، حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، خپلو لوښو باندې سر، اړدئې. او دروازې بندوئې. او ډيوې مړې كوئې. ځكه چه مږه اكثر باتئې راكاږي، او كور واله اوسوزي.

## بَاب ۲۱ : اَغْلَاقِ الْاَبْوَابَ بِاللَّيْلِ.

## باب ۲۱ : د شپې د دروازې د بندولو بيان.

۲۹ : حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ اَبِيْ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَطْفِئُو الْمَصَابِيْحَ بِاللَّيْلِ اِذَا رَقَدْتُمْ وَ غَلِّقُو الْاَبْوَابَ وَ اَوْكُو الْاَسْقِيَةَ وَ خَمِّرُوْ الطَّعَامَ وَالشَّرَابَ قَالَ هَمَّامٌ وَ اَحْسِبُهُ قَالَ وَلَوْ بِعُوْدٍ.

۲۹ : حسان بن ابي عباد، همام، عطاء، جابرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د شپې چه تاسو اوده كيږې، نو ډيوې مړې كوئې. او دروازې بندوئې. او د مشك خوله تړئې. او د خوراك، څكاك څيزونه پټوئې (يعني د پاسته پرې سر اړدئې). د همام بيان دې. ځما خيال دې، حضورؐ دا هم او فرمائيل: ولو بعود: (اګر كه يو لرګې ولې نه وي).

## بَاب ۲۲ : اَلْخِتَانِ بَعْدَ الْكِبْرِ وَ نَتْفِ الْاِبِطِ.

## باب ۲۲ : د لوئيدو نه پس د سنت كولو او د ترخ د ويښتو د، اوښكلو بيان.

٣٠: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْفِطْرَةُ خَمْسٌ الْخِتَانُ وَالْاِسْتِحْدَادُ وَ نَتْفُ الْاِبِطِ وَ قَصُّ الشَّارِبِ وَ تَقْلِيْمُ الْاَظْفَارِ.

٣٠: يحيي بن قزعه، ابراهيم بن سعد، ابن كتاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهؓ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. فطري خبرې پنځه دي (١) سنت كول، (٢) د نامې لاندې ويښتان صاف كول، (٣) د ترخ ويښته اوښكل، (٤) بريت قينچي كول او (٥) نوكونه پرې كول.

٣١: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبُ بْنُ اَبِىْ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنِ اَبِىْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اخْتَتَنَ اِبْرَاهِيْمُ بَعْدَ ثَمَانِيْنَ سَنَةً وَاخْتَتَنَ بِالْقَدُوْمِ مُخَفَّفَةً حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا الْمُغِيْرَةُ عَنْ اَبِى الزِّنَادِ وَ قَالَ بِالْقَدُّوْمِ.

٣١: ابو اليمان، شعيب بن ابي حمزه، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ابراهيم عليه السّلام دا اتيا (٨٠) كالو نه پس قدوم كښې (يا د قدوم آلې په ذريعه) سنت اوكړلو. مونږ ته چه قتيبه په واسطه د مغيره، ابو الزناد، كوم حديث روايت كه، هغې كښې د قدوم لفظ بتشديد (تشديد. شد، سره) وو.

٣٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِىْ اِسْحٰقَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سُئِلَ بْنُ عَبَّاسٍؓ مِثْلُ مَنْ اَنْتَ حِيْنَ قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنَا يَوْمَئِذٍ مَخْتُوْنٌ. قَالَ وَ كَانُوْا لَا يَخْتِنُوْنَ الرَّجُلَ حَتّٰى يُدْرِكَ وَ قَالَ بْنُ اِدْرِيْسَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ اِسْحٰقَ عَنْ

٣٢: محمد بن عبدالرّحيم، عباد بن موسٰي، اسمٰعيل بن جعفر، اسرائيل، ابو اسحاق، سعيد بن جبير (رضي اللّٰه عنهم) نه روايت كوي، حضرت ابن عباسؓ نه تپوس اوشو، كوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم وفات شو، هغه وخت ستا څه عمر وو. هغه جواب وركه، هغه وخت خما سنت شوې وو. او وئيلې چه خلقو به هغه وختبه پورې سنت كولو، څو پورې به چه بالغ شوې نه وو. او ابن ادريس د خپل پلار نه، هغه د ابو اسحاق نه، هغه

سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ بْنِ عَبَّاسٍ قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا خَتِيْنٌ.

د سعيد بن جبير نه، هغه د ابن عباسؓ نه روايت اوكه، چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم وفات شو، نو ځما سنت شوے وو.۱

۱ . په اسلامي شريعت كښے ختنه (يعني سُنتؤل) د بالغ كيدلو نه مخكښے مشروع ده، ذ هغے نه پس نه ده، البته شاه اسحاق رحمة اللّٰه عليه به نوي مسلمان ته بلوغ نه پس هم ذ ختنے فتويٰ وركوله. يو خلے د يو پوخ عمر سړي اسلام قبول كړو، او شاه صاحب هغهٔ له ذ ختنے فتويٰ وركړه، نتيجه دا شوه چه ختنے سره د هغه مرګ واقع شو (يعني مړ شو). همدا وجه ده چه عالمان په دے سلسله كښے احتياط كوي او نوي مسلمانانو بالغانو ته هم د ختنے د پاره نه وائي. ولے چه د بلوغ نه پس ختنه كښے غير معمولي (ډير زيات) تكليف وي او بعضے وخت مرګ ته نوبت اورسي.

**باب ۲۳ :** كُلّ لَهْوٍ بَاطِلٌ اِذَا شَغَلَهُ عَنْ طَاعَةِ اللّٰهِ وَ مَنْ قَالَ اِلٰى صَاحِبِهِ تَعَالٰى اُقَامِرُكَ وَ قَوْلُهُ تَعَالٰى وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِىْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

**باب ۲۳ :** د دے امر بيان چه هره هغه لوبه، چه سړے د اللّٰه د ياد نه غافله كوي، هغه باطله ده، او د هغے سړي بيان چه خپل ملګري ته اووائي، راځه، چه جواري اوكړو. او د اللّٰه تعالٰي قول: وَ مِنَ النَّاس من يشترى لَهْوَ الحديث ليضل عن سبيل اللّٰه.

۳۳: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ مِنْكُمْ فَقَالَ فِىْ حَلْفِهِ بِاللَّاتِ وَالْعُزّٰى فَلْيَقُلْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ مَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ اُقَامِرُكَ فَلْيَتَصَدَّقْ.

۳۳: يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن كتاب، حميد بن عبدالرحمٰن، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو كښې چه څوک د لات او، منات قسم او خوري، نو هغه له لا اله الا اللّٰه وئيل پكار دي، او كوم سړے چه خپل ملګري ته اووائي، راځه، چه جواري اوكړو، نو هغه له صدقه كول پكار دي.

**باب ۲۴ :** مَا جَآءَ فِى الْبِنَاءِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اِذَا تَطَاوَلَ رِعَآءُ الْبُهْمِ فِى الْبُنْيَانِ.

**باب ۲۴ :** د هغے څيز بيان چه د عمارتونو متعلق منقول دے. حضرت ابو هريرهؓ د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه نقل اوكه، د قيامت د نښو نه يوه دا ده، چه د څناورو څرونكي به په عمارتونو فخر شروع كړي.

٣٤: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ هُوَ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سَعِيْدٍ عَنِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَاَيْتُنِيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَنَيْتُ بِيَدِيْ بَيْتًا يُكِنُّنِيْ مِنَ الْمَطَرِ وَ يُظِلُّنِيْ مِنَ الشَّمْسِ مَا اَعَانَنِيْ عَلَيْهِ اَحَدٌ مِنْ خَلْقِ اللّٰهِ.

٣٤: ابو نعيم، اسحاق بن سعيد، سعيد، ابن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم زمانه كښې خپل لاس سره يو مكان جوړ كړے وو چه زه به ئے د باران نه بچ كولم، او د نمر نه به ئے سورے راكولو، د هغے جوړولو كښې د الله جلّ جلاله، هيڅ مخلوق څما مدد نه وو كړے.

٣٥: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو قَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَاللّٰهِ مَا وَضَعْتُ لَبِنَةً عَلٰى لَبِنَةٍ وَّ لَا غَرَسْتُ نَخْلَةً مُنْذُ قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سُفْيَانُ فَذَكَرْتُهُ لِبَعْضِ اَهْلِهِ قَالَ وَاللّٰهِ لَقَدْ بَنٰى قَالَ سُفْيَانُ قُلْتُ فَلَعَلَّهُ قَالَ قَبْلَ اَنْ يَّبْنِيَ.

٣٥: علي بن عبدالله، سفيان، د عمرو ابن عمر قول نقل كوي. قسم په خدائے (جلّ جلاله) ما د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د وفات نه پس نه يوه ښخته په بله ښخته كيښنوده (يعني هيڅ مكان مے جوړ نه كړلو) او نه مے څه بوټے اوكرلو، سفيان اووے، ما دا حديث د هغه بعضے كوروالو ته بيان كه، نو وئيلے، په خدائے مے دے قسم وي، هغه مكان جوړ كړلو. سفيان اووے، ما جواب وركه، چه شايد د مكان جوړولو نه ئے مخكښې داسے وئيلے وي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

# كِتَابُ الدَّعَوَاتِ

# كتاب الدعوات (د دعاګانو بيان)

باب ٢٥: قَوْلُهُ تَعَالٰى: اُدْعُوْنِيْ اَسْتَجِبْ لَكُمْ اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ وَ لِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ مُسْتَجَابَةٌ.

باب ٢٥: د الله تعالٰي قول: تاسو ما نه دُعا غواړئے، زه به ئے قبلوم. بيشكه كوم خلق چه څما د عبادت نه مخ اړوي، هغوي به عنقريب جهنّم كښې ذليل شوے داخل شي. او د دے امر بيان، چه د هر نبي يوه دُعا مقبوله وي.

٣٦: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ

٣٦: اسماعيل، مالك، ابو الزناد، اعرج، ابو هريرهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلّي الله

الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ نَبِيّ دَعْوَةٌ يَدْعُوْا بِهَا وَ اُرِيْدُ اَنْ اَخْتَبِئَ دَعْوَتِيْ شَفَاعَةً لِاُمَّتِيْ فِي الْاٰخِرَةِ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ قَالَ مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ نَبِيِّ سَاَلَ سُؤْلًا اَوْ قَالَ لِكُلِّ نَبِيِّ دَعْوَةٌ قَدْ دَعَا بِهَا فَاسْتُجِيْبَ فَجَعَلْتُ دَعْوَتِيْ شَفَاعَةً لِاُمَّتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

عليه وسلّم او فرمائيل: د هر نبي يوه دُعا وي. چه هغه ئے كوي (او هغه مقبوله وي) او زه غواړم چه خپله دُعا اٰخرت كښې د امت د شفاعت د پاره محفوظه اوساتم. او ماته خليفه په واسطه د معتمر او د هغه پلار او انسؓ نه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوكه. حضورؐ او فرمائيل، هر نبي خپل خپل مطلوب اوغښتلو، يا دائے او فرمائيل. د هر يو نبي يوه دُعا مقبوله وي، هغوي دُعا اوكړه، او هغه مقبوله (يعني قبوله) شوه. ليكن ما خپله دُعا د قيامت په ورځ د خپل امت د شفاعت د پاره محفوظه ساتلے ده.

**ف**: دے حديث نه معلومه شوه، چه څوک د حضورؐ امتي وي، حضورؐ به د هغه شفاعت كوي، او جنت له به ځي. اللّٰه پاک دے زمونږ په حقيقي معنو كښ د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم پيروي نصيب كړي، چه هم مو دا دنيا خايسته شي، او هم هغه، اَللّٰهُمَّ اٰمين.

**باب ۲۶: اَفْضَلُ الْاِسْتِغْفَارِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ اِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا وَّ يُمْدِدْكُمْ بِاَمْوَالٍ وَّ بَنِيْنَ وَ يَجْعَلْ لَّكُمْ جَنّٰتٍ وَ يَجْعَلْ لَّكُمْ اَنْهَارًا وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوْبِهِمْ وَ مَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ وَ لَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ.**

**باب ۲۶**: د ټولو نه د بهتر استغفار بيان، او د اللّٰه تعالٰي قول، چه د خپل رب نه مغفرت طلب كوئے (ښښنه غواړئے) بيشكه هغه لوئے ښښونكے دے. چه په تاسو د آسمان نه باران وروونكے دے. او دِ مالونو او اولاد په ذريعه ستاسو مدد كوي، او ستاسو د پاره باغونه او نهرونه جوړوي، او كوم خلق چه د بے حيائي كارونه كوي، يا په خپلو ځانونو ظلم كوي، بيا اللّٰه يادوي، او د خپلو گناهونو ښښنه غواړي. او څوک دے چه د اللّٰه نه سِوا گناهونه اوبښي، او په هغه څيز چه هغوي كوي، سره د پوهے اصرار نه كوي.

۳۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ

۳۷: ابو معمر، عبدالوارث، حسين، عبداللّٰه بن بريده، بشير بن كعب عدوي، شداد بن اوس، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، چه سيد الْاِستغفار دا

بُشَيْرِ بْنِ كَعْبِ الْعَدَوِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَدَّادُ بْنُ اَوْسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيِّدُ الْاِسْتِغْفَارِ اَنْ تَقُوْلَ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِيْ وَ اَنَا عَبْدُكَ وَ اَنَا عَلٰى عَهْدِكَ وَ وَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ اَبُوْءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ وَ اَبُوْءُ بِذَنْبِيْ اِغْفِرْلِيْ فَاِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ قَالَ وَ مَنْ قَالَهَا مِنَ النَّهَارِ مُوْقِنًا بِهَا فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ قَبْلَ اَنْ يُمْسِيَ فَهُوَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ مَنْ قَالَهَا مِنَ اللَّيْلِ وَ هُوَ مُوْقِنٌ بِهَا فَمَاتَ قَبْلَ اَنْ يُصْبِحَ فَهُوَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

دے، چه ته اووائے: اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِیْ وَ اَنَا عَبْدُکَ وَ اَنَا عَلٰی عَهْدِکَ وَ وَعْدِکَ مَا اسْتَطَعْتُ اَعُوْذُ بِکَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ اَبُوْءُ لَکَ بِنِعْمَتِکَ عَلَیَّ وَ اَبُوْءُ لَکَ بِذَنْبِیْ فَاغْفِرْلِیْ فَاِنَّهُ لَا یَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ (اے خـمـا الـلّٰـه، تـه خـمـا رب ئـے، ستا نه سوا هيڅوک معبـود نشتـه، تا زه پيدا کړم، او ستا بنده يم، او زه ستا په عهد او ستا په وعده يم، څومره چه ممکنه ده، څه چه ما اوکړل، د هغے د بدئ نه زه ستا پناه غواړم، او د هغے نعمتونو زه اقرار کوم، چه تا په ما پيرزو کړے دي، او د خپلو ګناهونو اقرار کوم. ما اوبښے. ستا نه سوا د ګناهونو هيڅوک ښښونکے نشته) رَسول اللّٰهؐ او فرمائيل چا چه د زړه په صدق سره دا کلمات اولوستل، او د ماښام کيدو نه مخکښ په هغه ورځ مړ شولو، نو هغه جنّتي دے. او چا چه دا کلمات د زړه صدق سره د شپے اولوستل، او د سحر کيدو نه مخکښ مړ شولو، هغه جنتي دے.

ف: يا اللّٰه، د دے سيد الاَستغفار په برکت، زمونږ د ټولو د، آل و اولاد او ټولو مسلمانانو سره دواړه جهانه خايسته کړے. اللّٰهم اٰمين.

## بَابُ ٢٧: اِسْتِغْفَارِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ.

## بـاب ٢٧: د نبـي صـلّـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّـم ورځـے او شپـے کـښ، د استغفـار وئيلو بيان.

٣٨: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ اِنِّيْ

٣٨: ابـو اليـمـان، شعـيـب، زهـري، ابـو سلمه بـن عبـدالـرحـمـٰن، حـضـرت ابـو هـريـرهؓ نـه روايـت کـوي، د هـغـه بيـان دے. مـا د رسـول الـلّٰـه صـلّـي الـلّٰـه عـلـيـه وسلّـم نـه واوريـدل. پـه خـدائـے (جـل جـلالـه) مے دے قسـم وي، زه

لَاَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَ اَتُوْبُ اِلَيْهِ فِى الْيَوْمِ اَكْثَرِ مِنْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً.

د اللّٰـه تـعـالـي نـه ورخ کـښې د اويـا (۷۰) ځـلـه نه زيات استغفار غوارم.

**باب ۲۸ : اَلتَّوْبَةِ قَالَ قَتَادَةُ تُوْبُوْا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَصُوْحًا الصَّادِقَةُ النَّاصِحَةُ.**

**باب ۲۸ :** د توبې بيان: تُوْبُوْا اِلَى اللّٰهِ توبة نصوحًا : تـفـسير کـښې قتاده اووے، چه: توبةً نصوحًا: نه مراد خالصه او رېښتينې توبه ده.

۳۹: حَـدَّثَـنَـا اَحْـمَـدُ بْـنُ يُـوْنُـسَ حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ شِهَابٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدِيْثَيْنِ اَحدهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْاٰخِرُ عَنْ نَفْسِهِ قَالَ اِنَّ الْمُؤْمِنَ يَرٰى ذُنُوْبَهُ كَاَنَّهُ قَاعِدٌ تَحْتَ جَبَلٍ يَّخَافُ اَنْ يَّقَعَ عَلَيْهِ وَ اِنَّ الْفَاجِرَ يَرٰى ذُنُوْبَهُ كَذُبَابٍ مَرَّ عَلٰى اَنْفِهِ فَقَالَ بِهِ هٰكَذَا قَالَ اَبُوْ شِهَابٍ بِيَدِهٖ فَوْقَ اَنْفِهِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُ اَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهٖ مِنَ الرَّجُلِ نَزَلَ مَنْزِلًا وَ بِهِ مَهْلَكَةٌ وَ مَعَهُ رَاحِلَتُهُ عَلَيْهَا طَعَامُهُ وَ شَرَابُهُ فَوَضَعَ رَاْسَهُ فَنَامَ نَوْمَةً فَاسْتَيْقَظَ فَقَدْ ذَهَبَتْ رَاحِلَتُهُ حَتّٰى اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْحَرُّ وَالْعَطْشُ اَوْ مَا شَآءَ اللّٰهُ قَالَ اَرْجِعُ اِلٰى مَكَانِي فَرَجَعَ فَنَامَ نَوْمَةً ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهُ فَاِذَا رَاحِلَتُهُ عِنْدَهُ تَابَعَهُ اَبُوْ عَوَانَةَ وَ جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ وَ قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ سَمِعْتُ

۳۹: احمد بن يونس، ابو شهاب، اعمش، عماره بـن عـمـيـر، حـارث بـن سـويـد نـه روايـت کـوي، د هغـه بيان دے. مونږ ته عبداللّٰه دوه (۲) حديثونه بيان کړل. يو خو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه، او بـل خپلـه نـقـل کـوي، د هـغـه بيـان دے. مؤمن خپل ګناهونه داسې وينې، ګويا هغه د يو غر لانـدې نـاسـت دے، او ويـريـږي، چـه چـرتـه راونـه غورځيږي. او بدکار سړے خپل ګناهونه د مچ (مکهي) برابر ګنړي، چه د هغه په پوزه تيريږي، بيا هغه (ابو شهاب) په پوزه خپل لاس سره اشارے کولو سره اوښودل. بيائې اووے، چه اللّٰه د خپل بنده د توبې نه د هغې سړي نه هم زيات خوشحاليږي، چه په داسې ځائې کښې کوز شي، چه د ځان ورسره خوف وي، او هغه سره د هغه سورلي وي، چه په هغې د هغه خوراک او څکاک وي. هغه سر ايښودو سره اوده شولو او کوم وخت چه بيدار شولو، نو وې ليدل، چه د هغه سورلي غائبه وه. تر دے چه ګرمي او تندې (پياس، پرې غلبه اوکړله، نو هغه اووے، چه زه خپل ځائې ته واپس ځم، هلته تلو سره هغه لږ شان اوده شولو. بيائې سر اوچت کړلو، نو وې ليدل، چه د هغه سورلي هغه سره ده. ابو عوانه

الْحَارِثُ وَ قَالَ شُعْبَةُ وَ اَبُوْ مُسْلِمٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ وَ قَالَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عُمَارَةَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ.

او جرير، اعمش نه د دے متابعت كښې روايت كړے دے. او ابو اسامه اووے، مونږ ته عماره بيان او كه، چه د حارث نه واوريدل، او شعبه او ابومسلم په واسطه د اعمش، ابراهيم تيمي، حارث بن سويد نه نقل او كه، او ابو معاويه اووے. مونږ ته اعمش په واسطه د، عماره، اسود، عبدالله بيان او كه، او ابراهيم تيمي نه پواسطه د حارث بن سويد، عبدالله، منقول دي.

۴۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنَا هُدْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُ اَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهٖ مِنْ اَحَدِكُمْ سَقَطَ عَلٰى بَعِيْرِهٖ وَ قَدْ اَضَلَّهٗ فِيْ اَرْضِ فَلَاةٍ.

۴۰: اسحاق، حبان، همام، قتاده، حضرت انس بن مالك، حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، دوئم سند، هدبه، همام، قتاده، حضرت انس نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، الله تعالي د خپل بنده په توبه د هغے سړي نه هم زيات خوشحاليږي، چه هغه ته ځنګل كښې ورک شوے اوښ بيا په لاس ورشي.

## باب ۲۹: الضَّجْعِ عَلَى الشِّقِّ الْاَيْمَنِ.

## باب ۲۹: په ښي اړخ د ملاستے بيان.

۴۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً فَاِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ حَتّٰى يَجِيْءَ الْمُؤَذِّنُ فَيُؤْذِنَهٗ.

۴۱: عبدالله بن محمد، هشام بن يوسف، معمر، ظهري، عروه، بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت كوي، د هغے بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم به د شپے يوولس (۱۱) ركعته مونځ كولو. بيا چه به سحر راوختلو، نو دوه (۲) مختصر ركعتونه به ئے او كړل. بيا به په خپل اړخ سملاستلو، تر دے چه اذان كوونكے به راغے، او حضور صلي الله عليه وسلم ته به ئے د نمانځه اطلاع وركړله.

باب ۳۰: اِذَا بَاتَ طَاهِرًا.

۴۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ مَنْصُوْرًا عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَيْتَ مَضْجَعَكَ فَتَوَضَّأْ وَضُوْءَكَ لِلصَّلٰوةِ ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلٰى شِقِّكَ الْاَيْمَنِ وَ قُلْ اللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ نَفْسِيْ اِلَيْكَ وَ فَوَّضْتُ اَمْرِيْ اِلَيْكَ وَاَلْجَأْتُ ظَهْرِيْ اِلَيْكَ رَهْبَةً وَ رَغْبَةً اِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَ لَامَنْجَأَ مِنْكَ اِلَّا اِلَيْكَ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِيْ اَنْزَلْتَ وَ بِنَبِيِّكَ الَّذِيْ اَرْسَلْتَ فَاِنْ مُتَّ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ فَاجْعَلْهُنَّ اٰخِرَ مَا تَقُوْلُ فَقُلْتُ اَسْتَذْكِرُهُنَّ وَ بِرَسُوْلِكَ الَّذِيْ اَرْسَلْتَ قَالَ لَا وَ بِنَبِيِّكَ الَّذِيْ اَرْسَلْتَ.

باب ۳۰: د طهارت (پاکي) حالت کښې د ملاستې بیان.

۴۲: مسدد، معتمر، سعد بن عبیده، براء بن عازب نه روایت کوي، رسول الله صَلّي الله علیه وسلّم او فرمائیل، کله چه ته د خوب ځائې ته د تلو اراده اوکړې، نو اودس اوکړه. څنګه چه مونځ د پاره اودس کوې. بیا ښي طرف ته سمله. او اووایه، څما الله! ما خپل ځان تا ته حواله کړلو، او ما خپل معاملات تاته اوسپارل او ته م خپل پشت پناه جوړ کړلې. ستا د عذاب نه ویریږم، او ستا د رحمت امیدوار یم، او ستا نه د پناه او د خلاصي ځائې ستا نه سوا هیڅوک نشته. ما ستا په هغې کتاب ایمان راوړلو، چه تا نازل کړې دې، او ستا په هغه نبي مي ایمان راوړلو، چه تا رالیږلې دې. که (دا کلمات اولولې، ته اوده شې او) مړ شې، نو فطرت (یعني اسلام) باندې به مړ شې. دا کلمات د ټولو نه اخر کښې اولوله (یعني دې نه پس هیڅ خبره مه کوه، او اوده شه) ما عرض اوکه، ایا: و بِرَسُوْلِکَ الَّذِیْ اَرْسَلْتَ: اِووایم. حضورﷺ او فرمائیل، نه: و نبیک الّذی ارسلت: وایه.

باب ۳۱: مَا يَقُوْلُ اِذَا نَامَ.

۴۳: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَوٰى اِلٰى فِرَاشِهِ قَالَ بِاسْمِكَ اَمُوْتُ وَ اَحْيَا وَ اِذَا قَامَ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا

باب ۳۱: چه اوده کیږي، څه به وائي.

۴۳: قبیصه، سفیان، عبدالملک، ربعي بن حراش، حذیفهؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دې. حضورﷺ چه به خپلې بسترې ته تلو، نو فرمائیل به ئي، بِاسْمِکَ اَمُوْتُ وَ اَحْیٰی (یعني ستا په نوم اُوده کیږم، او ویښیږم) او کوم وخت به پاسیدلو، نو فرمائیل به ئې: الحمد لله الذی احیانا بعد ما اماتنا و الیه النشور. (د الله شکر دې چه هغه مونږ د مرګ نه پس را ژوندي کړلو، او دغه.

بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَ اِلَيْهِ النُّشُوْرُ.

شان دوباره را ژوندي كيدل دي).

۴۴: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ وَ مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ سَمِعَ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ رَجُلًا وَ حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْصٰى رَجُلًا فَقَالَ اِذَا اَرَدْتَ مَضْجَعَكَ فَقُلْ: اَللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ نَفْسِيْ اِلَيْكَ وَ فَوَّضْتُ اَمْرِيْ اِلَيْكَ وَ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ اِلَيْكَ وَ اَلْجَأْتُ ظَهْرِيْ اِلَيْكَ، رَغْبَةً وَّ رَهْبَةً اِلَيْكَ لَا مَلْجَاَ وَ لَا مَنْجَاَ مِنْكَ اِلَّا اِلَيْكَ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِيْ اَنْزَلْتَ وَ بِنَبِيِّكَ الَّذِيْ اَرْسَلْتَ فَاِنْ مُتَّ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ.

۴۴: سعيد بن ربيع او محمد بن عرعره، شعبه، ابو اسحاق، براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم يو سړي له حكم وركړلو (دوئم سند) آدم، شعبه، ابو اسحاق همداني، براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم يو سړي ته وصيت اوكه، او وے فرمائيل، كوم وخت چه ته بسترے ته د تلو اراده اوكړے، نو دا دُعا لوله: اَللّٰهمّ اسلمت نفسى اليک و فوضت امرى اليک و وجهت وجهى اليک والجات ظهرى اليک رغبة و رهبة اليک لا ملجأ ولا منجا منک الا اليک امنت بكتابک الذى انزلت و بنبيک الذى ارسلت: نو كه ته د دے دعا كولو نه پس مړ شے، نو فطرت باندے به مړ شے.

## باب ۳۲: وَضْعِ الْيَدِ الْيُمْنٰى تَحْتَ الْخَدِّ الْاَيْمَنِ.

## باب ۳۲: د ښي انگي (رخسار) لاندے د ښي لاس ايښودو بيان.

۴۵: حَدَّثَنِيْ مُوْسٰى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيٍّ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ اَمُوْتُ وَ اَحْيَا وَ اِذَا اسْتَيْقَظَ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا

۴۵: موسي بن اسماعيل، ابو عوانه، عبدالملک، ربعي، حضرت حذيفه رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم چه به د شپے خپلے بسترے ته تلو، نو خپل ښي لاس به ئے د خپل ښي انگي (رخسار) نه لاندے ايښودلو. بيا به ئے فرمائيل: اَللّٰهُمّ باسمک اموت و احيٰى: او كوم وخت چه به د خوب نه بيدار شولو، نو فرمائيل به ئے: الحمد لله الذى احيانا بعد اماتنا و اليه

بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَ اِلَيْهِ النُّشُوْرُ.

النشور.

## بَاب ۳۳: اَلنَّوْمِ عَلَى الشِّقِ الْاَيْمَنِ.

## بـاب ۳۳: پـه ښـي اړخ د اوده كيـدو بيان.

۴۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ الْمُسَيَّبُ قَالَ حَدَّثَنِىْ اَبِىْ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَوٰى اِلٰى فِرَاشِهٖ نَامَ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ نَفْسِىْ اِلَيْكَ وَ وَجَّهْتُ وَجْهِىَ اِلَيْكَ وَ فَوَّضْتُ اَمْرِىْ اِلَيْكَ وَاَلْجَأْتُ ظَهْرِىْ اِلَيْكَ رَغْبَةً وَ رَهْبَةً اِلَيْكَ لَا مَلْجَاَ وَ لَا مَنْجَاَ مِنْكَ اِلَّا اِلَيْكَ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِىْ اَنْزَلْتَ وَ نَبِيِّكَ الَّذِىْ اَرْسَلْتَ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَهُنَّ ثُمَّ مَاتَ تَحْتَ لَيْلَتِهٖ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ اِسْتَرْهَبُوْهُمْ مِنَ الرَّهْبَةِ مَلَكُوْتٌ. مُلْكٌ مِثْلُ رَهَبُوْتٌ خَيْرٌ مِنْ رَحَمُوْتٍ تَقُوْلُ تَرْهَبُ خَيْرٌ مِنْ اَنْ تَرْحَمَ.

۴۶: مسدد، عبدالواحد بن زياد، علاء بن مسيب، مسيب، حضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه به خپلے بسترے له تلو، نو په خپل ښي اړخ به اوده كيدلو. بيا به ئے فرمائيل: اللّٰهمّ اسلمت نفسي اليک و وجهت وجهي اليک، وَ فوضت امري اليک، والجأت ظهري اليک، رغبة و رهبة اليک، لا ملجأ و لا منجا منكم الا اليک امنت بكتابک الذي انزلت و نبيک الذي ارسلت: او حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل چا چه دا كلمات اولوستل. بيا په هغه شپه مړ شولو، نو په فطرت (يعني اسلام) باندے به مړ شي. استرهبوهم من الرهبة نه، او ملكوت ملک نه مشتق دے. لكه رهبوت خير من رحموت يعني ترهب خير من ان ترحم.

## بَاب ۳۴: اَلدُّعَاءِ اِذَا انْتَبَهَ بِاللَّيْلِ.

## باب ۳۴: د شپے بيداريدو سره د دعا كولو بيان.

۴۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا بْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ

۴۷: علي بن عبدالله، ابن مهدي، سفيان، سلمه، كريب، ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. يوه شپه زه بي بي ميمونےؓ كره ووم، نو نبيؐ پاسيدلو، او د

كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ بِتُّ عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى حَاجَتَهُ وَ غَسَلَ وَجْهَهُ وَ يَدَيْهِ ثُمَّ نَامَ ثُمَّ قَامَ فَأَتَى الْقِرْبَةَ فَأَطْلَقَ شِنَاقَهَا ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوْءً بَيْنَ وُضُوْءَيْنِ لَمْ يُكْثِرْ وَ قَدْ أَبْلَغَ فَصَلّٰى فَقُمْتُ فَتَمَطَّيْتُ كَرَاهِيَةَ أَنْ يَّرٰى أَنِّيْ كُنْتُ أَتَّقِيْهِ فَتَوَضَّأْتُ فَقَامَ يُصَلِّيْ فَقُمْتُ عَنْ يَّسَارِهِ فَأَخَذَ بِأُذُنِيْ فَأَدَارَنِيْ عَنْ يَّمِيْنِهِ فَتَتَامَّتْ صَلٰوتُهُ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ اضْطَجَعَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ وَكَانَ إِذَا نَامَ نَفَخَ فَأٰذَنَهُ بِلَالٌ بِالصَّلٰوةِ فَصَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ وَ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ دُعَائِهِ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا وَّ فِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا وَّ فِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا وَ عَنْ يَّمِيْنِيْ نُوْرًا وَّ عَنْ يَّسَارِيْ نُوْرًا وَّ فَوْقِيْ نُوْرًا وَّ تَحْتِيْ نُوْرًا وَّ أَمَامِيْ نُوْرًا وَّ خَلْفِيْ نُوْرًا وَّاجْعَلْ لِّيْ نُوْرًا قَالَ كُرَيْبٌ وَ سَبْعٌ فِي التَّابُوْتِ فَلَقِيْتُ رَجُلًا مِّنْ وُّلْدِ الْعَبَّاسِ فَحَدَّثَنِيْ بِهِنَّ فَذَكَرَ: عَصَبِيْ وَ لَحْمِيْ وَ دَمِيْ وَ شَعْرِيْ وَ بَشَرِيْ وَ

خپل ضروروت نه فارغ شولو' او خپل مخ او خپل دواړه لاسونه ئے او وينځل. بيا اوده شولو' بيا پاسيدلو' او مشک پلـه ئے تشريف راوړلو. او د هغے خوله ئے پرانستله' بيا د درميانے درجے اودس ئے او کړلو' دا شان چه نه ئے ډيرے لبے او نه ئے ډيرے زياتے او به استعمال کړے. بيا حضور صلّي اللّه عليه وسلّم مونخ او کړلو. ابن عباس رضي اللّه عنه بيان دے. زه هم پاسيدم' ليکن پاسيدو کښې م تاخير او که' خکه چه ما دا خبره بد او کنړله' چه حضور صلّي اللّه عليه وسلّم دا او نه گنړي چه ما ورته کتل. نو ما اودس او که. حضور صلّي اللّه عليه وسلم اودريدلو. مونځ ئے شروع کړلو. نو زه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم گس طرف ته اودريدم. حضورؐ خما غوږ اونيولو (يعني زه ئے د غوږ نه اونيولم) او خپل ښي طرف ته ئے راتاؤ کړلم. حضور صلّي اللّه عليه وسلم پوره ديارلس رکعاته او کړل. بيا سملاست او اوده شولو' تر دے چه خرړائے شروع کړله. او کله چه به اوده شولو' نو خرړيدلو به. بيا بلالؓ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د مانځه خبر ورکه' نو مونځ ئے او کړلو. اودس ئے اونه کړلو. او خپله دُعا کښې ئے دا فرمائيل' يا اللّٰه' ته خما زړهٔ خما سترگو او خما غوږونو کښې او خما ښي او گس طرف ته' او خما د پاسه او لاندے' مخکښې او وروستو نور کړے. او خما د پاره نُور کړے. کريب اووے. جسم کښې اووه (۷) څيزونه دي (چه د هغے حضورؐ ذکر او که) زه د عباسؓ د خاندان يو سړي سره يو ځائے شوم. هغه ماته د دے څيزونو ذکر او که' نو هغے کښې ئے عصبي و لحمي و دمي و شعري و

ذِكْرَ خَصْلَتَيْنِ.

بشري الفاظ بيان کړل. او دوه خصلتونه ئے بيان کړل.

۴۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ اَبِيْ مُسْلِمٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ بْنِ عَبَّاسٍ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتَهَجَّدُ قَالَ اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَ مَنْ فِيْهِنَّ وَ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَ مَنْ فِيْهِنَّ وَ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ الْحَقُّ وَ وَعْدُكَ حَقٌّ وَ قَوْلُكَ حَقٌّ وَ لِقَآءُكَ حَقٌّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ وَالنَّبِيُّوْنَ حَقٌّ وَ مُحَمَّدٌ حَقٌّ اَللّٰهُمَّ لَكَ اَسْلَمْتُ وَ عَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَ بِكَ اٰمَنْتُ وَ اِلَيْكَ اَنَبْتُ وَ بِكَ خَاصَمْتُ وَ اِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَ مَا اَخَّرْتُ وَ مَا اَسْرَرْتُ وَ مَا اَعْلَنْتُ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَ اَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَوْ لَا اِلٰهَ غَيْرُكَ.

۴۸: عبدالله بن محمد، سفيان، سليمان بن ابي مسلم، طاوس، حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حضور صلّي الله عليه وسلّم چه به د شپے پاسيدلو، نو تهجد به ئے کول، او فرمائيل به ئے: اللهم لک الحمد انت نور السموٰت والارض و من فيهن و لک الحمد انت الحق و وعدک الحق وَ قولک الحق و لقاء ک حق والجنة حق. والنار حق والساعة حق والنبيون حق و محمد (صلّى الله عليه وسلّم) حق. اللّٰهم لک اسلمت و عليک توکلت و بک امنت و اليک انبت و بک خاصمت و اليک حاکمت فاغفرلى ما قدمت و ما اخرت و ما اسررت و ما اعلنت انت المقدم و انت الموخر، لا اله الا انت يا لا اله غيرک ئے اوفرمائيل.

باب ۳۵: التَّكْبِيْرِ وَالتَّسْبِيْحِ عِنْدَ الْمَنَامِ.

باب ۳۵: د اوده کيدو په وخت د تکبير او تسبيح لوستو بيان.

۴۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ عَلِيٍّ اَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ شَكَتْ مَا تَلْقٰى فِيْ يَدِهَا

۴۹: سليمان بن حزب، شعبه، حکم، ابن ابي ليلٰي، حضرت عليؓ نه روايت کوي. بي بي فاطمےؓ د هغے پولو (چھالوں) په وجه، چه د هغے په لاس د ميچنے کولو په وجه پيدا شوے وے. نبي صلّي الله عليه وسلّم ته شکايت اوکه، او يو حادم غوښتلو له راغله. خو حضورؐ

مِنَ الرُّحٰى فَاَتَتِ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْأَلُهُ خَادِمًا فَلَمْ تَجِدْهُ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِعَائِشَةَ فَلَمَّا جَآءَ اَخْبَرَتْهُ قَالَ فَجَآءَ نَا فَقَدْ اَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْتُ اَقُوْمُ فَقَالَ مَكَانَكَ فَجَلَسَ بَيْنَنَا حَتّٰى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلٰى صَدْرِىْ فَقَالَ اَلَا اَدُلُّكُمَا عَلٰى مَا هُوَ خَيْرٌ لَّكُمَا مِنْ خَادِمٍ اِذَا اَوَيْتُمَا اِلٰى فِرَاشِكُمَا اَوْ اَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا فَكَبِّرَا ثَلَاثًا وَّ ثَلَاثِيْنَ وَ سَبِّحَا ثَلَاثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ اَحْمَدَا ثَلَاثًا وَّ ثَلَاثِيْنَ فَهٰذَا خَيْرٌ لَّكُمَا مِنْ خَادِمٍ وَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ التَّسْبِيْحُ اَرْبَعٌ وَّ ثَلٰثُوْنَ.

کور کښې موجود نه وو، نو بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها ته ئې دا حال بیان که. کوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم هغې له تشریف راوړلو، نو هغې عرض او کړ د حضرت علي رضي اللّٰه عنه بیان دې. حضورٌ مونږ له تشریف راوړلو، دغه وخت مونږ خپلې بسترې ته تللي وو. زه پاسیدم، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، په خپل ځائې اوسئې، بیا زمونږ په مینځ کښې کیناستلو، تر دې چه ما د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم د قدمونو یخوالې خپلې سینه کښې محسوس که. بیا حضورٌ او فرمائیل، ایا زه تاسو دواړو ته هغه څیز اونه ښائیم، چه ستاسو دواړو د پاره د خادم نه بهتر دې. هر کله چه تاسو دواړه خپلې بسترې ته لاړ شئې، نو درې دیرش (۳۳) ځله اللّٰه اکبر، درې دیرش (۳۳) ځله سبحان اللّٰه او درې دیرش (۳۳) ځله الحمد للّٰه وائې نو دا ستاسو د پاره د خادم نه بهتر دي. او شعبه نه په واسطه د خالد، ابن سیرین منقول دې، چه سبحان اللّٰه څلور دیرش (۳۴) ځله وائې.

## باب ٣٦: اَلتَّعَوُّذِ وَالْقِرَاَةِ عِنْدَ الْمَنَامِ.

## باب ۳۶: د اوده کیدو په وخت د تعوّذ او د قرآن لوستو بیان.

• ٥٠: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِىْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِىْ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اَخَذَ مَضْجَعَهٗ نَفَثَ فِىْ يَدَيْهِ وَقَرَاَ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَ مَسَحَ بِهِمَا جَسَدَهٗ.

• ٥٠: عبداللّٰه بن یوسف، لیث، عقیل، ابن شهاب، عروه، بي بي عایشې رضي اللّٰه عنها نه روایت کوي، د هغې بیان دې. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم چه به خپلې بسترې ته تشریف اوړلو، نو په خپلو دواړو لاسونو باندې به ئې چُف کولو. او معوذات به ئې لوستل، په خپل جسم به ئې دواړه لاسونه مږل.

باب ۳۷:

۱۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَوٰى اَحَدُكُمْ اِلٰى فِرَاشِهٖ فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهٗ بِدَاخِلَةِ اِزَارِهٖ فَاِنَّهٗ لَا يَدْرِيْ مَا خَلَفَهٗ عَلَيْهِ ثُمَّ يَقُوْلُ بِاسْمِكَ رَبِّيْ وَضَعْتُ جَنْبِيْ وَبِكَ اَرْفَعُهٗ اِنْ اَمْسَكْتَ نَفْسِيْ فَارْحَمْهَا وَ اِنْ اَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ الصَّالِحِيْنَ تَابَعَهٗ اَبُوْ ضَمْرَةَ وَ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّآءَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَوَاهُ مَالِكٌ وَابْنُ عَجْلَانَ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۳۷:

۱۵: احمد بن يونس، زهير، عبدالله بن عمر، سعيد بن ابي سعيد مقبري، ابو سعيد مقبري، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي د هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، کله چه تاسو کښې څوک خپلے بسترے ته ورځي، نو خپله بستره دے اوڅنډي، ځکه چه هغه ته نه ده معلومه، چه څه څيز د هغه نه ورستو هغے کښې داخل شوے دے. بيا دے اووائي: بِاسْمِكَ رَبِّ الخ: يعني اے پروردګاره، ستا په نوم ما خپل اړخ کيښودلو، او ستا په مدد به زه دا اوچتوم. که ته ځما روح قبض کړے، نو رحم پرے اوکړے. او که پريږدے، نو حفاظت ئے اوکړے. څنګه چه ته د نيکوکارو خلقو حفاظت کوے. ابو ضمره او ابوبکر بن زکريا د عبدالله نه د دے متابعت کښې روايت اوکه. او يحيٰي او بشر په واسطه د عبيد الله، سعيد، ابو هريره رضي الله عنه، حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. او دا مالک، او ابن عجلان په واسطه د سعيد، ابوهريرهؓ نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت که.

باب ۳۸: اَلدُّعَاءُ نِصْفُ اللَّيْلِ.

۵۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَغَرِّ وَ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى

باب ۳۸: د نيمے شپے نه ورستو د دُعاء کولو بيان.

۵۲: عبدالعزيز بن عبدالله، مالک، ابن شهاب، ابو عبدالله اغر، او ابو سلمه بن عبدالرحمٰن، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، زمونږ ربّ تعالي هره شپه د دنيا اسمان ته راکوزيږي،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَتَنَزَّلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى كُلَّ لَيْلَةٍ اِلَى السَّمَآءِ الدُّنْيَا حِيْنَ يَبْقٰى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْاٰخِرُ يَقُوْلُ مَنْ يَّدْعُوْنِيْ فَاَسْتَجِيْبَ لَهٗ مَنْ يَّسْاَلُنِيْ فَاُعْطِيَهٗ وَ مَنْ يَّسْتَغْفِرُنِيْ فَاَغْفِرَ لَهٗ.

کوم چه اخري تهائي (يعني اخري پهر) د شپې باقي وي. نو فرمائي: څوک شته چه ما نه څه اوغواړي او زه ئې قبوله کړم. څوک شته چه ما ته سوال اوکړي، او زه هغه له ورکړم، او څوک شته چه ما نه ښښنه اوغواړي، او زه ئې اوبښم.

ف: يا الله، د شپې د اخري پهر، د مخه زمونږ د ټولو روغ صورت، نيک اعمال او ښښنه نصيب کړې. او په دواړه جهانه مو، د ټولو مسلمانانو سره سربالا کړې. اللّٰهم اٰمين.

## بَابٌ ٣٩: الدُّعَآءُ عِنْدَ الْخَلَاءِ.

## باب ٣٩: لويو بولو له د وتلو په وخت د دعا کولو بيان.

٥٣: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ الْخَلَآءَ قَالَ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ.

٥٣: محمد بن عرعره، شعبه، عبدالعزيز بن صهيب، حضرت انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه به د حاجت خانې (بيت الخلاء) ته تشريف اوړلو. نو فرمائيل به ئې: اللّٰهم انی اعوذ بک من الخبث والخبائث.

## بَابٌ ٤٠: مَا يَقُوْلُ اِذَا اَصْبَحَ.

## باب ٤٠: د سحر پاسيدو سره څه وئيل په کار دي.

٥٤: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ شَدَّادِ بْنِ اَوْسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَيِّدُ الْاِسْتِغْفَارِ اللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِيْ وَ اَنَا عَبْدُكَ وَ اَنَا عَلٰى

٥٤: مسدد، يزيد بن زريع، حسين، عبداللّٰه بن بريده، بشر بن کعب، شداد بن اوس، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د ټول استغفار سردار دا دې: اللّٰهم انت ربّی لا اله الا انت خلقتني و انا عبدک و انا علٰی عهدک و وعدک ما استطعت ابوء لک بنعمتک و ابوء لک بذنبی فاغفرلی فانه لا يغفر الذنوب

عَهْدِكَ وَ وَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ اَبُوْءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ وَ اَبُوْءُ لَكَ بِذَنْبِيْ فَاغْفِرْلِيْ فَاِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ اِذَا قَالَ حِيْنَ يُمْسِيْ فَمَاتَ دَخَلَ الْجَنَّةَ اَوْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ اِذَا قَالَ حِيْنَ يُصْبِحُ فَمَاتَ مِنْ يَّوْمِهٖ مِثْلُهٗ.

الا انت اعوذبک من شر ما صنعت: هر كله چه يو سړے دا دُعا د ماښام په وخت اولولي، او مړ شي، نو جنت كښې به داخل شي، يا وې فرمائيل، چه د جنتيانو نه به وي. اوچه سحر وخت كښې ئې اولولي، او په هغه ورځ مړ شي، نو دغه شان هغه به هم جنت كښې داخل شي. (اللّٰه پاک دې د دې دُعا په خاطر خمونږ د ټولو جنت نصيب كړي. اللّٰهم امين).

**٥٥:** حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَّنَامَ قَالَ بِاسْمِكَ اَللّٰهُمَّ اَمُوْتُ وَ اَحْيَا وَ اِذَا اسْتَيْقَظَ مِنْ مَّنَامِهٖ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَ اَمَاتَنَا وَ اِلَيْهِ النُّشُوْرِ.

**٥٥:** ابو نعيم، سفيان، عبدالملک بن عمير، ربعي بن حراش، حضرت حذيفهؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه به د اوده كيدو اراده اوكړه، نو فرمائيل به ئې: باسمک اللّٰهم اموت واحيٰی: او كله چه به د خوب نه بيدار شولو، نو فرمائيل به ئې: الحمد للّٰه الذی احيانا بعد ما اماتنا و اليه النشور.

**٥٦:** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ عَنْ خَرْشَةَ بْنِ الْحُرِّ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَخَذَ مَضْجَعَهٗ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ اَللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ اَمُوْتَ وَ اَحْيَا فَاِذَا اسْتَيْقَظَ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَ اِلَيْهِ النُّشُوْرُ.

**٥٦:** عبدان، ابو حمزه، منصور، ربعي بن حراش، خرشه بن حر، حضرت ابوذر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به چه د شپې بسترې ته تشريف اوړلو، نو فرمائيل به ئې: اللّٰهم باسمک اموت واحيی. او كله چه به بيدار شولو، نو فرمائيل به ئې: الحمد للّٰه الذی احيانا بعد اما اماتنا و اليه النشور.

## بَاب ٣١: الدُّعَآءِ فِي الصَّلٰوةِ.

## باب ٣١: مونځ كښې د دعا كولو بيان.

۵۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيُ يَزِيْدُ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍ وَ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِيْقِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِّمْنِيْ دُعَآءً اَدْعُوْا بِهٖ فِيْ صَلَاتِيْ قَالَ قُلْ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ فَاغْفِرْلِيْ مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِيْ اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ رَّحِيْمُ وَ قَالَ عَمْرٌو عَنْ يَزِيْدَ عَنْ اَبِيْ الْخَيْرِ اِنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو وَ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۷: عبداللّٰه بن يوسف، ليث، يزيد، ابو الخير، عبداللّٰه بن عمرو، حضرت ابوبكر صديق رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكه، ما ته څه دعا اوښائې، چه زه ئې خپل مونځ كښې كوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل دا دُعا لوله: اللّٰهم انّي ظلمت نفس ظلمًا كثيرًا و لا يغفر الذنوب الا انت فاغفرلي مغفرةً من عندك وارحمني انك انت الغفور الرحيم. او عمرو پواسطه د يزيد، ابو الخير نه روايت اوكه. هغه د عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه واوريدل، چه حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكه.

۵۸: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ سُعَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلٰوتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا اُنْزِلَتْ فِي الدُّعَآءِ.

۵۸: علي، مالك، بن سعير، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، چه آيت: ولا تجهر بصلاتك و لا تخافت بها: د، دَ دُعا په باره كښې نازل شوې دې.

۵۹: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نَقُوْلُ فِي الصَّلٰوةِ اَلسَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلٰى فُلَانٍ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ

۵۹: عثمان بن ابي شيبه، جرير، منصور، ابو وائل، عبداللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دې. مونږ خلقو به مانځه كښې وئيلے: السلام على اللّٰه السلام على فلان: نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته يوه ورځ او فرمائيل، چه اللّٰه تعالي خو په خپله سلام دې. نو كله چه تاسو كښې څوك مانځه كښې

فَاِذَا قَعَدَ اَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيَقُلِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ اِلٰى قَوْلِهِ الصَّالِحِيْنَ فَاِذَا قَالَهَا اَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ لِلّٰهِ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ صَالِحٍ اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ ثُمَّ يَتَخَيَّرُ مِنَ الثَّنَآءِ مَا شَآءَ.

كيني' نو: التحيات لِلّٰه صالحين: پورې دې اولولي. هر كله چه هغه دا اووائي. نو د آسمان او مزكې هر هغې بنده ته رسي' چه صالح وي. (بيا دې اووائي) اشهد ان لا اله الا اللّٰه و اشهد ان محمدًا عبده و رسوله: بيا چه كومه دُعا غواړي' او دې كړي.

## بـاب ۴۲: الدُّعَـآءِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ.

## باب ۴۲: د مانځه نه پس د دُعا كولو بيان.

۶۰: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ اَخْبَرَنَا وَرْقَآءُ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَهَبَ اَهْلُ الدُّثُوْرِ بِالدَّرَجَاتِ وَالنَّعِيْمِ الْمُقِيْمِ' قَالَ كَيْفَ ذَاكَ قَالَ صَلُّوْا كَمَا صَلَّيْنَا' وَ جَاهَدُوْا كَمَا جَاهَدْنَا وَ اَنْفَقُوْا مِنْ فُضُوْلِ اَمْوَالِهِمْ وَ لَيْسَتْ لَنَا اَمْوَالٌ قَالَ اَفَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَمْرٍ تُدْرِكُوْنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ وَ تَسْبِقُوْنَ مَنْ جَآءَ بَعْدَكُمْ وَ لَا يَاتِيْ اَحَدٌ بِمِثْلِ مَا جِئْتُمْ اِلَّا مَنْ جَآءَ بِمِثْلِهٖ تُسَبِّحُوْنَ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ عَشْرًا وَ تَحْمَدُوْنَ عَشْرًا وَّ تُكَبِّرُوْنَ عَشْرًا تَابَعَهٗ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ سُمَيٍّ وَ رَوَاهُ ابْنُ عَجْلَانَ عَنْ سُمَيٍّ وَّ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ' وَ رَوَاهُ جَرِيْرٌ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ رُفَيْعٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِي الدَّرْدَآءِ وَ

۶۰: اسحاق' يزيد' ورقاء' سمي' ابو صالح' ابوهريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' خلقو عرض اوكه' يا رسول اللّٰه' دولت مند خلق خو درجات او نعمتونو كښې وړاندې شو (يعني زيات شو). حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' څنګه هغوئ اووې' دغه خلق مونځ كوي' څنګه چه مونږ مونځ كوو' او جهاد كوي' څنګه چه مونږ جهاد كوو' او خپل بچ شوې مال هم خرچ كوي. ليكن مونږ سره مال نه شته. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' ايا زه تاسو ته داسې څيز او نه ښانيم' چه د هغې په ذريعه تاسو د هغوي برابر شئ. چه تاسو نه مخكښې تير شوي دي' او د هغوي نه وړاندې شئ' چه ستاسو نه ورستو راخي. او هيڅوک به ستاسو برابر نه وي' خو هغه چه دا اولولي: هر مونځ پسې لس (۱۰) ځله سبحان اللّٰه' او لس (۱۰) ځله الحمد لِلّٰه' او لس (۱۰) ځله اللّٰه اكبر: وائي. عبيد اللّٰه بن عمر د سمي نه' او رجاء بن حيوة نه د دې متابعت كښې روايت اوكه. او جرير د عبدالعزيز بن رفيع نه' هغه د ابو صالح نه' هغه د ابوالدرداء نه روايت اوكه. او دا' سهل د خپل

رَوَاهُ سُهَيْلٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ عَنْ وَرَّادٍ مَوْلَى الْمُغِيْرَةِ قَالَ كَتَبَ الْمُغِيْرَةُ اِلَى مُعَاوِيَةَ بْنِ اَبِيْ سُفْيَانَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ اِذَا سَلَّمَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَ لَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَ لَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ وَ قَالَ شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ قَالَ سَمِعْتُ الْمُسَيَّبَ.

پلار نه، هغه د ابو هريرة رضي اللّٰه عنه نه، او هغه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت که.

۶۱: قتيبه بن سعيد، جرير، منصور، مسيب بن رافع، وراد (د مغيره بن شعبه ازاد کړ غلام) نه روايت کوي، د هغه بيان دے. مغيره رضي اللّٰه عنه، معاويه بن سفيان رضي اللّٰه عنه ته اوليکل، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم به هر مونځ پسے سلام ګرځولو نه پس دا لوستل لا اله الا اللّٰه وحده، لا شريک له، له الملک وله الحمد و هو علی کلّ شيءٍ قدير: اللّٰهم لا مانع لما اعطيت و لا معطی لما منعت، و لا ينفع ذالجدّ منک الجدّ: او شعبه د منصور نه روايت کړے دے. چه ما د مسيب نه دغسے اوريدلي دي.

باب ۴۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَصَلِّ عَلَيْهِمْ وَ مَنْ خَصَّ اَخَاهُ بِالدُّعَاءِ دُوْنَ نَفْسِهِ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ اَبِيْ عَامِرٍ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ ذَنْبَهُ.

باب ۴۳: د اللّٰه تعالي قول، وصلّ عليهم بيان. او د هغے سړي بيان، چه صرف خپل وروړ د پاره دعا اوکړي، ځان د پاره اونه کړي. او د ابو موسٰي بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل: اے اللّٰه، عبيد ابي عامر اوبښے. اے اللّٰه، د عبداللّٰه بن قيس ګناه اوبښے.

۶۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ مَوْلٰى سَلَمَةَ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ الْاَكْوَعِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى خَيْبَرَ قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ

۶۲: مسدد، يحيٰي، يزيد بن ابي عبيد (د سلمه موني) سلمه بن اکوع نه روايت کوي. مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره خيبر طرف ته روان شو. نو جماعت نه يو سړي اووے. اے عامر، کاش چه تا خپل اشعار واورولے، نو هغه د سورلئ نه راکوز شولو، او حُدي ئے شروع کړله، چه قسم په خدائے، که اللّٰه هدايت کونکے

أَيَا عَامِرُ لَوْ اسْمَعْتَنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ فَنَزَلَ يَحْدُوْ بِهِمْ يُذَكِّرُ بِاللّٰهِ لَوْ لَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَيْنَا وَ ذَكَرَ شِعْرًا غَيْرَ هٰذَا وَ لٰكِنِّيْ لَمْ اَحْفَظْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هٰذَا السَّائِقُ؟ قَالُوْا عَامِرُ بْنُ الْاَكْوَعِ قَالَ يَرْحَمُهُ اللّٰهُ وَ قَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ لَا مَتَّعْتَنَا بِهٖ فَلَمَّا صَافَّ الْقَوْمُ قَاتَلُوْهُمْ فَاُصِيْبَ عَامِرٌ بِقَائِمَةِ سَيْفِ نَفْسِهٖ فَمَاتَ فَلَمَّا اَمْسَوْا اَوْقَدُوْا نَارًا كَثِيْرَةً فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هٰذِهِ النَّارُ عَلٰى اَيِّ شَيْءٍ تُوْقِدُوْنَ؟ قَالُوْا عَلٰى حُمُرٍ اِنْسِيَّةٍ فَقَالَ اَهْرِيْقُوْا مَا فِيْهَا وَ كَسِّرُوْهَا قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَانُهَرِيْقُ مَا فِيْهَا وَ نَغْسِلُهَا؟ قَالَ اَوْ ذَاكَ.

٦٣: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو وَ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ اَوْفٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَاهُ رَجُلٌ بِصَدَقَةٍ قَالَ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى اٰلِ فُلَانٍ فَاَتَاهُ اَبِيْ فَقَالَ: اَللّٰهُمَّ صَلِّ

نه وې، نو مونږ به هيڅ كله هدايت نه وو بيا موندې. او د دې نه علاوه څو اشعار ئې اووې، خو ماته ياد پاتې نه شو، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم لو فرمائيل، دا څوک اوښان شړونکې دې؟ خلقو اووې، عامر بن اكوع دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه دې په ده رحم اوكړي. يو سړي عرض اوكه، كاش چه دې عامر نه تاسو مونږ ته نوره هم فايده رسولې وې (يعني چه دې لا نور هم ژوندې پاتې شي). كوم وخت چه خلق صف بسته شول، او جنګ ئې شروع كه، نو عامر ته خپلې تورې سره زخم اولګيدو، چه د هغې د صدمې نه وفات شولو. كوم وخت چه ماښام شو، نو خلقو ډير اور بل كړلو. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دا اور د څه دې، څه څيز نه مو اور بل كړې دې (يعني څه پخوئې) خلقو اووې، د كورنو خرونو غوښې ته (يعني د دې غوښه پخوو). حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. هغه څيز اوغورځوې. كوم چه دې كښې دې. او لوښي مات كړئې. يو سړي عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، ايا مونږ دا غوښه اونه غورځوو، او لوښي اووينزو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، دغسې اوكړئې.

٦٣: مسلم، شعبه، عمرو، ابن ابي اوفٰي رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم له به چه چا صدقه راوړله، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به فرمائيل، يا اللّٰه د فلاني په اٰل باندې رحمت نازل كړې. څما پلار حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له څه څيز راوړلو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، يا اللّٰه، د ابي

عَلٰى اٰلِ اَبِىْ اَوْفٰى. اوفي په اٰل (اولاد) باندے رحمت نازل کړے.

ف: يا اللّٰه، د دے حديثو مبارکو په برکت په مونږ او خمونږ د ټولو په اٰل اولاد باندے هم رحمت نازل کړے. اَللّٰهُمَّ آمين. ثُمَّ امين. يا رب العٰلمين.

۶۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيْرًا قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تُرِيْحُنِيْ مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ وَ هُوَ نُصُبٌ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَهُ يُسَمَّى الْكَعْبَةُ الْيَمَانِيَّةُ قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ رَجُلٌ لَا اَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَصَكَّ فِيْ صَدْرِيْ فَقَالَ اللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًا قَالَ فَخَرَجْتُ فِيْ خَمْسِيْنَ مِنْ اَحْمَسَ مِنْ قَوْمِيْ رُبَّمَا قَالَ سُفْيَانَ فَانْطَلَقْتُ فِيْ عُصْبَةٍ مِنْ قَوْمِيْ فَاَتَيْتُهَا فَاَحْرَقْتُهَا ثُمَّ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا اَتَيْتُكَ حَتّٰى تَرَكْتُهَا مِثْلَ الْجَمَلِ الْاَجْرَبِ فَدَعَا لِاَحْمَسَ وَخَيْلِهَا.

۶۴: علي بن عبداللّٰه، سفيان، اسماعيل، قيس نه روايت کوي، ما د جرير نه واوريدل، چه ماته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ايا ته به ماته د ذي الخلصه نه نجات (خلاصي) رانه کړے. او دا يو بُت وو، چه خلقو به ئے عبادت کولو او د هغے نوم کعبه يمانيه وو. ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، زه داسے سړے يم، چه په اَس نيغ نشم کيناستے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خما په سينه لاس مبارک راښکلو، او وے فرمائيل، يا اللّٰه، دے ثابت قدم، هدايت کونکے، او هدايت بيامندے جوړ کړے. د جرير بيان دے. زه د خپل قوم احمس پنځوسو (۵۰) سړو سره اووتلم. او اکثر سفيان نه مودے الفاظو سره روايت کول واوريدل. فانطلقت في عصبة من قومي: زه هلته اورسيدم، او هغه (بت خانه) مِ او سوځوله. بيا زه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم. او وئيلے مِ، يا رسول اللّٰه، په خدائے مِ دے قسم وي، زه تاسو ته هغه پورے رانغلم، خو پورے چه ما هغه (بت خانه) د خارشي اوښ په شان جوړه نه کړله، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم احمس او د هغے د سورو (سوارووه) د پاره دُعا او فرمائيله.

۶۵: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ قَالَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۶۵: سعيد بن ربيع، شعبه، قتاده نه روايت کوي. ما د انس رضي اللّٰه عنه نه واوريدل، چه خما مور (اُم سُليمؓ) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه، انس رضي اللّٰه عنه ستاسو خادم دے. حضور صلّي اللّٰه عليه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَسٌ خَادِمُكَ قَالَ: اللّٰهُمَّ اَكْثِرْ مَالَهُ وَ وَلَدَهُ وَ بَارِكْ لَهُ فِيْمَا اَعْطَيْتَهُ.

وسلّم او فرمائيل' يا اللّٰه' د ده مال او اولاد زيات کړې. او څه چه دې ده له ورکړې دي' هغې کښې برکت واچوې.

۶۶ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَقْرَأُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَقَدْ اَذْكَرَنِيْ كَذَا وَ كَذَا اٰيَةً اَسْقَطْتُهَا فِيْ سُوْرَةِ كَذَا وَ كَذَا.

۶۶ : عثمان بن ابي شيبه' عبده' هشام د خپل پلار نه' هغه د بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' د هغې بيان دې' نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د يو سړي نه جمات کښې قرآن لوستل واوريدل' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' اللّٰه دې په ده رحم او کړي' ده ماته فلانې فلانې آيت راياد کړلو. چه هغه مانه فلاني فلاني سورت کښې هير شوې وو.

۶۷ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسْمًا فَقَالَ رَجُلٌ: اِنَّ هٰذِهِ لَقِسْمَةٌ مَّا اُرِيْدَ بِهَا وَجْهُ اللّٰهِ فَاَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَغَضِبَ حَتّٰى رَاَيْتُ الْغَضَبَ فِيْ وَجْهِهٖ وَ قَالَ يَرْحَمُ اللّٰهُ مُوْسٰى لَقَدْ اُوْذِىَ بِاَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ.

۶۷ : حفص بن عمر' شعبه' سليمان' ابو وائل' عبداللّٰه نه روايت کوي' د هغه بيان دې. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د غنيمت مال تقسيم کړلو' نو يو سړي اووې' د دې تقسيم نه د اللّٰه خوشنودي مقصود نه ده. ما حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته دا خبره اورسوله' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غُصه شولو' تر دې چه د غُصې آثار ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په مخ مبارک اوليدل. وې فرمائيل' اللّٰه دې په موسٰي عليه السّلام رحم او کړي' هغه ته د دې نه زيات تکليف ورکړې شو. خو هغه صبر او که.

## بَاب ۴۴: مَا يُكْرَهُ مِنَ السَّجْعِ فِي الدُّعَاءِ.

## باب ۴۴: دُعا کښې د قافيه ارائي د کراهت بيان.

۶۸ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ السَّكَنِ حَدَّثَنَا حَيَّانُ بْنُ هِلَالٍ اَبُوْ حَبِيْبٍ حَدَّثَنَا هَارُوْنُ الْمُقْرِئُ حَدَّثَنَا الزُّبَيْرُ بْنُ الْخِرِّيْتِ

۶۸ : يحيٰي بن محمد بن سکن' حبان بن هلال' ابو حبيب' هارون المقري' زبير بن خريت' عکرمه' حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' د هغه بيان دې. هر جمعه (هفته)

عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدِّثِ النَّاسَ كُلَّ جُمُعَةٍ مَرَّةً فَإِنْ أَبَيْتَ فَمَرَّتَيْنِ فَإِنْ أَكْثَرْتَ فَثَلَاثَ مِرَارٍ وَّ لَا تُمِلَّ النَّاسَ هٰذَا الْقُرْاٰنَ وَ لَا أُلْفِيَنَّكَ تَأْتِي الْقَوْمَ وَ هُمْ فِيْ حَدِيْثٍ مِّنْ حَدِيْثِهِمْ فَتَقُصُّ عَلَيْهِمْ فَتَقْطَعُ عَلَيْهِمْ حَدِيْثَهُمْ فَتُمِلُّهُمْ وَ لٰكِنْ أَنْصِتْ فَإِذَا أَمَرُوْكَ فَحَدِّثْهُمْ وَ هُمْ يَشْتَهُوْنَهُ فَانْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ فَإِنِّيْ عَهِدْتُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ لَا يَفْعَلُوْنَ إِلَّا ذٰلِكَ يَعْنِيْ لَا يَفْعَلُوْنَ إِلَّا ذٰلِكَ الْإِجْتِنَابَ.

کښې يو ځل وعظ کوه، که د دې نه زيات غواړې دوه (۲) ځله، او که د دې نه هم زيات (وعظ کول) غواړې، نو درې ځله، ليکن خلق د دې قرآن نه مه ستړې کوه، او زه دې تا داسې کونکې اونه وينم چه ته يو جماعت له راشې. چه خپلو خبرو کښې مشغول وي، او ته د هغوي خبره کټ کړې. وعظ ورته شروع کړې. چه هغې سره هغوي پريشان شي، بلکه خاموش اوسه. او هر کله چه هغوي تاته د وعظ کولو د پاره اووائي، او د هغې خواهش ظاهر کړي، نو وعظ کوه، خو دعا کښې قافيه ارائي نه بچ اوسه، ځکه چه ما رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او اصحاب ليدلې دي، چه دغسې ئې کول. يعني د دې نه ئې پرهيز کولو.

**ف**: قافيه ارائي: د يو شو الفاظو، د حروفو يا د حرکاتو تکرار چه نورو الفاظو سره د يو شعر په اخر کښې راځي، لکه کمال، جمال، جانِ جان، مهربان، يا لکه اجل، عمل او داسې نور. د يو لفظ هم قافيه بل لفظ په شعر کښې راوستل يا ترل، هسې په تو کل شعرونه جوړول. په زور قافيې لټول او تر نه شعرونه جوړول.

## باب ۴۵: لِيَعْزِمِ الْمَسْئَلَةَ فَإِنَّهُ لَا مُكْرِهَ لَهُ.

## باب ۴۴: يقين سره دې دُعا غواړي، ځکه چه الله باندې ځوک جبر کونکې نشته.

۶۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ فَلْيَعْزِمِ الْمَسْئَلَةَ وَ لَا يَقُوْلَنَّ اَللّٰهُمَّ إِنْ شِئْتَ فَأَعْطِنِيْ فَإِنَّهُ لَا مُسْتَكْرِهَ لَهُ.

۶۹: مسدد، اسماعيل، عبدالعزيز، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دې. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو کښې دې ځوک داسې نه وائي، چه يا الله، ما اوبښې، او په ما رحم اوکړې، که ته غواړې يقين سره غوښتل پکار دي. په هغه ځوک جبر کونکې نشته.

۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۷۰: عبدالله بن مسلمه، مالک، ابو الزناد، اعرج،

مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي الزِّنَادُ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُوْلَنَّ اَحَدُكُمُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ اَللّٰهُمَّ لارْحَمْنِيْ اِنْ شِئْتَ لِيَعْزِمِ الْمَسْئَلَةَ فَاِنَّهُ لَا مُكْرِهَ لَهُ.

حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو كښې دې څوک داسې نه وائي چه يا اللّٰه، ما او بښې، او په ما رحم اوكړې، كه ته غواړې. يقين سره غوښتل پكار دي، په هغه څوک جبر كونكے نشته.

**باب ۴۶: يُسْتَجَابُ لِلْعَبْدِ مَا لَمْ يَعْجَلْ.**

**باب ۴۶:** د بنده دُعا قبليږي، هر كله چه هغه د جلد بازي نه كار وانخلي.

۱۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدٍ مَوْلٰى ابْنِ اَزْهَرَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: يُسْتَجَابُ لِاَحَدِكُمْ مَّا لَمْ يَعْجَلْ يَقُوْلُ دَعَوْتُ فَلَمْ يُسْتَجَبْ لِيْ.

۱۷: عبداللّٰه بن يوسف، مالک، ابن شهاب، ابو عبيد (د ابن ازهر مولٰي) حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل تاسو كښې د هر سړي دُعا قَبليږي، خو په شرط د دے چه هغه د جلد بازي نه كار وانخلي (په دے وجه داسې دے نه وائي چه) ما دُعا اوكړله. ليكن قبوله نه شوه.

**بَابُ ۴۷: رَفْعِ الْاَيْدِيْ فِي الدُّعَآءِ.** وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيُّ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ وَ رَاَيْتُ بَيَاضَ اِبْطَيْهِ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ رَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَبْرَاُ اِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ وَ شُرَيْكٍ سَمِعَا اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى

**باب ۴۷:** دُعا كښې د لاس اوچتولو بيان. او ابو موسٰي اشعري بيان اوكه، چه نبي دُعاء اوكړله. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپل لاسونه اوچت كړل. تر دے چه ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د تر خړونو سفيدي اوليده او ابن عمر رضي اللّٰه عنه بيان اوكه. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت كړل، او وے فرمائيل، يا اللّٰه، زه د دے فعل نه بري يم، چه خالد اوكړلو. او عبداللّٰه (بخاري) د، اويس قول نقل كه، چه ماته محمد بن جعفر، هغه د يحيٰي بن سعيد او شريک نه، او دے دواړو د، انس رضي اللّٰه عنه نه واوريدل، هغوي د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى رَاَيْتُ بَيَاضَ اِبْطَيْهِ.

اللّٰه عليه وسلّم خپل دواړه لاسونه مبارک اوچت تر دې چه ما د حضورﷺ د ترخونو سفيدي اوليده.

بـاب ۴۸: اَلدُّعَاءِ، غَيْرَ مُسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةِ.

باب ۴۷: مخ په قبله کیدونه غیر د دعا غوښتل.

۴۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوْبٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّسْقِيَنَا فَتَغَيَّمَتِ السَّمَآءُ وَ مُطِرْنَا حَتّٰى مَا كَانَ الرَّجُلُ يَصِلُ اِلٰى مَنْزِلِهٖ فَلَمْ تَزَلْ تَمْطُرُ اِلٰى جُمُعَةِ الْمُقْبِلَةِ فَقَالَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ اَوْ غَيْرُهُ فَقَالَ ادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّصْرِفَهُ عَنَّا فَقَدْ غَرِقْنَا فَقَالَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَ لَا عَلَيْنَا فَجَعَلَ السَّحَابُ يَتَقَطَّعُ حَوْلَ الْمَدِيْنَةِ وَ لَا يَمْطُرُ اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ.

۴۲: محمد بن یعقوب، ابو عوانه، قتاده، انس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دې. یو ځل نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم د جمعې په ورځ خطبه ورکوله، یو سړې اودریدلو، او عرض ئې اوکه، یا رسول اللّٰه، د اللّٰه نه دُعا او غواړئې، چه په مونږ خلقو باران اوشي. نو په اسمان وریځ خوره شوله، او باران شولو، تر دې چه خلق خپلو کورونو ته (د باران په وجه) نه شو تلې. دوئمې جمعې پورې باران کیدلو. نو هغه سړې یا بل سړې اودریدلو، او عرض ئې اوکه (یا رسول اللّٰه) اللّٰه نه دعا او غواړئې، چه مونږ نه باران واړوي (بل طرف ته مخه ورکړي) مونږ خلق خو، ډوب شو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، یا اللّٰه، ځمونږ په خواو شائې اووروې، او په مونږ ئې مه وَرې، نو وریځ د مدینې خواوشا ته خوره شوه، (هلته باران کیدلو) لیکن مدینه کښې باران نه وریدلو.

بـاب ۴۹: اَلدُّعَاءُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ.

باب ۴۹: مخ په قبله کیدو سره د، دعا کولو بیان.

۴۳: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ يَحْيٰى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى هٰذَا الْمُصَلّٰى يَسْتَسْقِيْ

۴۳: موسيٰ بن اسماعیل، وهیب، عمرو بن یحيٰ، عباد بن تمیم، عبداللّٰه بن زید رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دې. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم عیدګاه ته د، باران دعا غوښتلو د پاره تشریف یوړلو، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم دعا او کړله، او اوبه ئې اوغوښتلې،

فَدَعَا وَاسْتَسْقٰى ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَ قَلَّبَ رِدَآءَهُ.

بیا مخ په قبله شولو. بیا حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم خپل څادر اړولے کړلو.

**باب ۵۰: دَعْوَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَادِمِهٖ بِطُوْلِ الْعُمْرِ وَ بِكَثْرَةِ مَالِهٖ.**

**باب ۵۰: د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم خپل خادم د پاره د عمر د اوږدوالي او ډیر مال دعا کول.**

۷۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا حَرَمِيٌّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَتْ اُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ خَادِمُكَ اَنَسٌ اُدْعُ اللّٰهَ لَهٗ قَالَ: اَللّٰهُمَّ اَكْثِرْ مَالَهٗ وَ وَلَدَهٗ وَ بَارِكْ لَهٗ فِيْمَا اَعْطَيْتَهٗ.

۷۴: عبداللّٰه بن ابي الاسود، حرمي، شعبه، قتاده، انس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. د هغه بیان دے. خما مور اووے، یا رسول اللّٰه، انس (رضي اللّٰه عنه) ستاسو خادم دے. تاسو ورته دعا او کړئے، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، یا اللّٰه، د ده مال او اولاد زیات کړے، او څه چه تا ده له ورکړے دي، هغے کښ ورته برکت عطاء کړے.

**باب ۵۱: اَلدُّعَآءُ عِنْدَ الْكَرْبِ.**

**باب ۵۱: د تکلیف په وخت د دعا کولو بیان.**

۷۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ يَدْعُوْا عِنْدَ الْكَرْبِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَظِيْمُ الْحَلِيْمُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ.

۷۵: مسلم بن ابراهیم، هشام، قتاده، ابو العالیه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به د تکلیف په وخت دا دعا لوستله: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الخ: یعني د اللّٰه تعالیٰ نه سوا هیڅوک معبود نشته، چه ډیرے لوئے حوصلے والـه دے. اللّٰه نه سِوا هیڅوک معبود نشته، چه د اسمانونو او ځمکے رب دے. او د عرش عظیم (لوئے عرش) رب دے.

۷۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامِ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۷۶: مسدد، یحیٰي، هشام بن ابي عبداللّٰه، قتاده، ابو العالیه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے. رَسُوْلُ اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم به د تکلیف په وخت دا

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ عِنْدَ الْكَرْبِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَلِيْمُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ رَبُّ الْاَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ وَ قَالَ وَهْبٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ مِثْلَهُ.

دعا كوله: لا اله الا اللّٰه العظيم الحليم، لا اله الا اللّٰه رب العرش العظيم، لا اله الا اللّٰه رب السمٰوٰت و رب الارض و رب العرش الكريم: او وهب اووے، مونږ ته شعبه پواسطه د قتاده دغه شان بيان او كه.

**ف**: ترجمه ئے مخكښې حديث كښې تيره شويده.

## بـاب ۵۲: التَّعَوُّذُ مِنْ جَهْدِ الْبَلَآءِ.

## باب ۵۲: د سخت مصيبت نه د پناه غوښتلو بيان.

۷۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِاللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ سُمَيٌّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ يَتَعَوَّذُ مِنْ جَهْدِ الْبَلَآءِ وَ دَرْكِ الشَّقَآءِ وَ سُوْءِ الْقَضَآءِ وَ شَمَاتَةِ الْاَعْداءِ قَالَ سُفْيَانُ الْحَدِيْثُ ثَلَاثٌ زِدْتُ اَنَا وَاحِدَةً لَّا اَدْرِيْ اَيَّتُهُنَّ هِيَ.

۷۷: علي بن عبداللّٰه، سفيان، سُمي، ابو صالح حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د سخت مصيبت نه، بدبختي نه، خراب تقدير نه، او د دشمنانو د طعنے (پيغور) نه پناه غوښتله. د سفيان بيان دے. چه حديث كښې درے خبرے وے. په دے ما يوه زياته كړه. ماته ياد نه دي، چه دے كښې هغه كومه ده.

**ف**: يا اللّٰه، مونږ هم د سخت مصيبت نه، بدبختي نه، خراب تقدير نه او د دشمنانو د طعنو نه په امان كړے. اللّٰهم امين.

## باب ۵۳: دُعَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى.

## باب ۵۳: د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم: اللّٰهم الرفيق الاعلي: وئيلو سره دُعا غوښتل.

۷۸: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ بْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ فِيْ رِجَالٍ مِّنْ

۷۸: سعيد بن عفير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب او عروه بن زبير رضي اللّٰه عنه بيان كوي. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه اووے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د خپلے تندرستي په زمانه كښې فرمائيل، هر نبي ته د وفات نه مخكښې جنت كښې د هغه

اَهْلِ الْعِلْمِ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَ هُوَ صَحِيْحٌ لَنْ يُقْبَضَ نَبِيٌّ قَطُّ حَتّٰى يَرٰى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرُ فَلَمَّا نَزَلَ بِهٖ وَ رَاْسُهُ عَلٰى فَخِذِيْ غُشِيَ عَلَيْهِ سَاعَةً ثُمَّ اَفَاقَ فَاَشْخَصَ بَصَرَهُ اِلَى السَّقْفِ ثُمَّ قَالَ: اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى، قُلْتُ اِذًا لَّا يَخْتَارُنَا وَ عَلِمْتُ اَنَّهُ الْحَدِيْثُ الَّذِيْ كَانَ يُحَدِّثُنَا وَ هُوَ صَحِيْحٌ، قَالَتْ فَكَانَتْ تِلْكَ اٰخِرُ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا، اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى.

مقام ښودلے شي. بيا اختيار ورکولے شي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه وفات کيدلو، نو هغه وخت د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سر مبارک خما په پتون وو. لږ ساعت په حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم بيهوشي خوره شوه، بيا ښه شولو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپل نظر مبارک چهت طرف ته اوچت کړلو. بيائے: اللّٰهم الرفيق الاعلٰي: او فرمائيل، زه پوئے شوم چه چه اوس به حضورؐ مونږه نهٔ اختياروي. او زه پوه شوم. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د تندرستي حالت کښې کوم بيان کولو، هغه ريښتينے وو (يعني هغه ريښتيا وو). د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه بيان دے. د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د خولے مبارکے نه چه کوم اٰخري الفاظ اووتل، هغه دا وو: اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى.

## باب ۵۴: اَلدُّعَاءِ بِالْمَوْتِ وَالْحَيَاةِ.

## باب ۵۴: د مرګ او ژوند د دُعا کولو بيان.

۷۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ اَتَيْتُ خَبَّابًا وَ قَدِ اكْتَوٰى سَبْعًا قَالَ لَوْ لَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا اَنْ تَدْعُوا بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِهٖ.

۷۹: مسدد، يحيٰي، اسماعيل، قيس نه روايت کوي، د هغه بيان دے. زه حباب له راغلم، هغه اووه (۷) داغونه لږولي وو. هغه اووے، که رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ د مرګ د، دعا کولو نه، نه منع کولے، نو ما به د دے دُعا کړے وه (يعني چه خدايه ما مړ کړے. خدائے مه کړه).

۸۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ قَالَ اَتَيْتُ خَبَّابًا وَّ قَدِ اكْتَوٰى سَبْعًا فِيْ بَطْنِهٖ فَسَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ: لَوْ لَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

۸۰: محمد بن مثني، يحيي، اسماعيل، قيس نه روايت کوي، د هغه بيان دے، زه حباب له راغلم، چه هغه په خپله خيټه اووه (۷) داغونه لږولي وو، ما د هغه نه واوريدل. که مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د مرګ د دعا کولو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا اَنْ نَدْعُوَ بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِهِ.

نه، نه منع کولے. نو ما به د دے دعا کړې وه.

۸۱: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عُلَيَّةَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَمَنَّيَنَّ اَحَدٌ مِّنْكُمُ الْمَوْتَ لِضُرٍّ نَزَلَ بِهِ فَاِنْ كَانَ لَا بُدَّ مُتَمَنِّيًا لِلْمَوْتِ فَلْيَقُلِ اللّٰهُمَّ اَحْيِنِيْ مَا كَانَتِ الْحَيٰوةُ خَيْرًا لِّيْ وَ تَوَفَّنِيْ اِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِّيْ.

۸۱: ابن سلام، اسماعيل، بن عليه، عبدالعزيز بن صهيب، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي، هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو کښې دے هيڅوک په راتلونکي تکليف د مرګ ارزو نه کوي، او که د مرګ ارزو کوي، نو هغه له داسے وئيل پکار دي، چه يا الله، ما ژوندے لرے، څو پورے چه ژوند څما د پاره بهتر دے، او ما واخلے (يعني وفات م کړے) کوم وخت چه څما وفات څما د پاره بهتر وي.

## باب ۵۵: اَلدُّعَآءِ لِلصِّبْيَانِ بِالْبَرَكَةِ وَ مَسْحِ رُؤُسِهِمْ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى وُلِدَلِيْ غُلَامٌ وَّ دَعَا لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَرَكَةِ.

## باب ۵۵: د بچو د پاره د برکت دعا کولو، او د هغوي په سر د لاس راښکلو بيان. او ابو موسٰي اووے، څما يو هلک پيدا شو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم هغه د پاره د برکت دُعا اوکړله.

۸۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنِ الْجَعْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ يَقُوْلُ ذَهَبَتْ بِيْ خَالَتِيْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ بْنَ اُخْتِيْ وَجِعٌ فَمَسَحَ رَأْسِيْ وَ دَعَا لِيْ بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ تَوَضَّاَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوْئِهٖ ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهٖ

۸۲: قتيبه بن سعيد، حاتم، جعد بن عبدالرحمٰن، سائب بن يزيد رضي الله عنه نه روايت کوي، څما ترور (خاله) زه د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر کړلم. او عرض ئے اوکړو، يا رسول الله، څما دا خورئے (بهانجه) ناجوړه دے. نو حضور صلّي الله عليه وسلم څما په سر لاس مبارک راښکلو. او څما د پاره ئے د برکت دعا اوکړله. بيائے اودس اوکه، نو ما د حضور صلّي الله عليه وسلم د اودس نه پاتے اوبه اوڅکلے، بيا زه د حضور صلّي الله عليه وسلّم شاته اودريدم، نو ما د حضور صلّي الله عليه وسلّم د دواړو اوږو (مونڈهوں) مينځ کښې د نبوت مهر

فَنَظَرْتُ اِلٰى خَاتِمِهٖ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ.

اوليدلو. چه د ناوے (دُلهن) د پردے د بټن (بٹن) په شان وو.

٨٣: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا بْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ عُقَيْلٍ اَنَّهٗ كَانَ يَخْرُجُ بِهٖ جَدُّهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ هِشَامٍ مِنَ السُّوْقِ اَوْ اِلَى السُّوْقِ فَيَشْتَرِي الطَّعَامَ فَلَيَلْقَاهُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَابْنُ عُمَرَ فَيَقُوْلَانِ اَشْرِكْنَا فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ دَعَا لَكَ بِالْبَرَكَةِ فَرُبَّمَا اَصَابَ الرَّاحِلَةَ كَمَا هِيَ فَيَبْعَثُ بِهَا اِلَى الْمَنْزِلِ.

٨٣: عبد اللّٰه بن يوسف، ابن وهب، سعيد بن ابي ايوب، ابو عقيل نه روايت كوي، زه به څما نيكه (دادا) عبداللّٰه بن هشام د بازار نه، يا بازار طرف ته بوتلم، او هغے څائے نه به ئے غله اخستله. هغه سره به ابن زبير او ابن عمر يو څائے كيدل، نو وئيل به ئے چه مونږ هم څان سره شريک کړه، څکه چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ستا د پاره د بركت دعا كړے ده (ده به هغوي شريكول) اكثر به داسے اوشوه، چه به سورلو اچولے شوے غله به كور ته هم هغسے سالمه راتله.

ف: يا اللّٰه، د دے بركت دعا كښ مونږ فقيران هم شريک کړے. اللّٰهُمَّ آمين.

٨٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ وَ هُوَ الَّذِيْ مَجَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ وَجْهِهٖ وَ هُوَ غُلَامٌ مِّنْ بِئْرِهِمْ.

٨٤: عبدالعزيز، عبداللّٰه، ابراهيم بن سعد، صالح بن كيسان، ابن شهاب نه روايت كوي، د هغه بيان دے. ماته محمود بن ربيع بيان اوكه، دا هغه دے چه د هغه د كم عمري په وخت د دوي د كوهي نه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم خپلے خولے كښ اوبه اخستلے وے. او د هغه په خولے كښ ئے اچولے وے.

٨٥: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتٰى بِالصِّبْيَانِ فَيَدْعُوْا لَهُمْ فَاُتِيَ بِصَبِيٍّ فَبَالَ عَلٰى

٨٥: عبدان، عبداللّٰه، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها نه روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم ته به بچي راوستلے شو، او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به هغوي د پاره دُعا كوله. يو بچے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم ته راوستے شو، نو هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم په كپړو واړه بول اوكړل.

ثَوْبِهٖ فَدَعَا بِمَآءٍ فَاَتْبَعَهُ اِيَّاهُ وَ لَمْ يَغْسِلْهُ.

حضور صلّي الله عليه وسلّم اوبه راوغوښتلے او په هغه ئے اوبهيولے او هغه ئے اونه وينزلے.

۸۶ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ ثَعْلَبَةَ بْنِ صُعَيْرٍ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَسَحَ عَنْهُ اَنَّهُ رَاٰى سَعْدَ بْنَ اَبِيْ وَقَّاصٍ يُوْتِرُ بِرَكْعَةٍ.

۸۶ : ابو اليمان، شعيب، زهري بيان كوي، ماته عبدالله بن ثعلبه، چه د هغه په سر حضور صلّي الله عليه وسلّم لاس مبارک راښكلے وو، اووے، چه هغه سعد بن وقاص يو ركعب وتر كولو باندے ليدلے دے.

## باب ۵۶ : اَلصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۵۶ : په نبي صلّي الله عليه وسلّم د درود ليږلو بيان.

۸۷ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ قَالَتْ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ لَقِيَنِيْ كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ فَقَالَ اَلَا اُهْدِيْ لَكَ هَدْيَةً؟ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ عَلِمْنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فَكَيْفَ نُصَلِّيْ عَلَيْكَ؟ قَالَ تَقُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اٰلِ اِبْرٰهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ، اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

۸۷ : آدم، شعبه، حكم، عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما سره كعب بن عجره يو ځائے شولو، او وئيلے ايا زه تاته يوه هديه پيش نه كړم. حضور صلّي الله عليه وسلّم مونږ پله تشريف راوړلو، نو مونږ عرض اوكه، يا رسول الله، مونږ ته په تاسو باندے سلام كول خو معلومه دي نو څنګه په تاسو درود اوليږلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو داسے وائي: اللّٰهمّ صلّ علٰى محمد و علٰى اٰل محمد كما صليت علٰى ابراهيم انک حميد مجيد. اللّٰهمّ بارک علٰى محمد و علٰى اٰل محمد كما باركت علٰى ابراهيم انک حميد مجيد.

۸۸ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ

۸۸ : ابراهيم بن حمزه، ابن حازم او، دراوري، يزيد، عبدالله بن خباب، ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. مونږ عرض

بْنِ خَبَّابٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا السَّلَامُ عَلَيْكَ فَكَيْفَ نُصَلِّيْ قَالَ قُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَ رَسُوْلِكَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرٰهِيْمَ وَ اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ.

او کړه، يا رسول اللّٰه، موږ تاسو ته سلام کول خو پېژنو، ليکن درود درباندې څنګه اوليږو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، داسې وائې: اللّٰهم صلّ على محمد عبدک و رسولک کما صليت على ابراهيم و بارک على محمد و على اٰل محمد کما بارکت على ابراهيم و على اٰل ابراهيم.

باب ۵۷: هَلْ يُصَلّٰى عَلٰى غَيْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ صَلِّ عَلَيْهِمْ اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ.

باب ۵۷: ايا د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه پرته بل چا درود ليږلې شي، او د اللّٰه تعالىٰ قول چه: وصل عليهم ان صلاتک سکن لهم بيان.

۸۹: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ كَانَ اِذَا اَتٰى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَدَقَتِهِ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ فَاَتَاهُ اَبِيْ بِصَدَقَتِهِ فَقَالَ: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى اٰلِ اَبِيْ اَوْفٰى.

۸۹: سليمان بن حرب، شعبه، عمرو بن مره، ابن ابي اوفي نه روايت کوي: هر کله چه به نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته چا صدقه راوړله، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به فرمائيل: اللّٰهم صل عليه: کوم وخت چه څما پلار حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته صدقه راوړله، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل: اللّٰهم صلّ الخ يعني اې اللّٰه، دا بي اوفي په اولاد رحمت نازل کړې.

۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ اَنَّهُمْ قَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ نُصَلِّيْ عَلَيْكَ؟ قَالَ قُوْلُوْا: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ

۹۰: عبداللّٰه بن مسلمه، مالک، عبداللّٰه بن ابي بکر، ابوبکر، عمرو بن سليم زرقي، ابو حميد ساعدي رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دې، خلقو عرض او کړه، يا رسول اللّٰه، موږ په کومه طريقه (څنګه) په تاسو درود اوليږو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، داسې وائې: اللّٰهم صلّ على محمد و ازواجه و ذريته کما صليت على اٰل

بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

ابراهيم و بارک علٰی محمّد و ازوا... و ذريته کما بارکت علٰی اٰل ابراهيم انک حـ... مجيد.

**باب ۵۸: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اٰذَيْتُهٗ فَاجْعَلْهُ لَهٗ زَكَاةً وَّ رَحْمَةً.**

**باب ۵۸**: د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل چه يا اللّٰه' چا ته چه ما تکليف ورکړے دے' نو هغه د هغه د پاره کفاره او رحمت جوړ کړے.

**۱ ۹**: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا بْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ فَاَيُّمَا مُؤْمِنٍ سَبَبْتُهٗ فَاجْعَلْ ذٰلِكَ لَهٗ قُرْبَةً اِلَيْكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

**۱ ۹**: احمد بن صالح' ابن وهب' يونس' ابن شهاب' سعيد بن مسيب' حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' د هغه بيان دے. ما حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل' چه يا اللّٰه' کوم ايمان دار ته چه ما بدرد وئيلي وي (يعني سخته خبره مے ورته کړے وي) نو د قيامت په ورځ هغه د قربت ذريعه جوړه کړے.

**باب ۵۹: التَّعَوُّذِ مِنَ الْفِتَنِ.**

**باب ۵۹**: فتنو نه د پناه غوښتلو بيان.

**۲ ۹**: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سَاَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَحْفَوْهُ الْمَسْئَلَةَ فَغَضِبَ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ لَا تَسْئَلُوْنِيْ الْيَوْمَ عَنْ شَيْءٍ اِلَّا بَيَّنْتُهٗ لَكُمْ فَجَعَلْتُ اَنْظُرُ يَمِيْنًا وَّ شِمَالًا فَاِذَا كُلُّ رَجُلٍ لَافٌّ رَاْسَهٗ فِيْ ثَوْبِهٖ يَبْكِيْ فَاِذَا رَجُلٌ كَانَ اِذَا لَاحَى الرِّجَالَ يُدْعٰى لِغَيْرِ اَبِيْهِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

**۲ ۹**: حفص بن عمر' هشام' قتاده' انس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' خلقو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوسونه شروع کړل' کوم وخت چه خلقو زيات تپوسونه شروع کړل' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته غصه ورغله' منبر ته اوختلو' وے فرمائيل' نن چه تاسو ما نه څه تپوس کوئے' زه به د هغے څرګند جواب درکوم. د راوي بيان دے. ما ښي او ګس طرف ته نظر او زغلولو' نو او مِ ليدل' چه هر سړي خپلے کپړے کښ مخ پټ کړے دے. او ژاړي. هغوي کښ يو سړے داسے هم وو' چه هغه به خلقو د جنګ په وخت د

مَنْ اَبِيْ قَالَ حُذَافَةُ ثُمَّ اَنْشَأَ عُمَرُ فَقَالَ رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَّ بِالْاِسْلَامِ دِيْنًا وَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُوْلًا نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْفِتَنِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَاَيْتُ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ كَالْيَوْمِ قَطُّ اِنَّهُ صُوِّرَتْ لِيَ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ حَتّٰى رَاَيْتُهُمَا وَرَآءَ الْحَآئِطِ وَ كَانَ قَتَادَةُ يَذْكُرُ عِنْدَ هٰذَا الْحَدِيْثِ هٰذِهِ الْاٰيَةَ: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ.

هغه د پلار نه علاوه د بل چا په نوم منسوب کولو. نو هغه تپوس او که، یا رسول الله، خما پلار څوک دے؟ حضور صلي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، حذافه. بيا عمر رضي الله عنه اووے چه: رضينا بالله ربّا الخ: يعني مونږ د الله په رب کيدو، او د اسلام په دين کيدو او د محمد صلّي الله عليه وسلّم په رسول کيدو راضي يو. مونږ د فتنو نه د الله پناه غواړو. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ما د نن په شان خير و شر هيڅ کله نه دے ليدلے. ما جنت او جهنم دواړه د، ديوال شاته اوليدل، او قتاده د دے حديث د بيانولو په وخت دا ايت هم بيانولو: يايها الذين امنو لا تسئلوا عن اشياء ان تبد لكم تسؤكم.

## بَاب ۴۰ : التَّعَوُّذِ مِنْ غَلَبَةِ الرِّجَالِ.

## باب ۴۰ : د خلقو د غلبے نه د پناه غوښتلو بيان.

۹۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ اَبِيْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَنْطَبٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ طَلْحَةَ الْتَمِسْ لَنَا غُلَامًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِيْ فَخَرَجَ بِيْ اَبُوْ طَلْحَةَ يُرْدِفُنِيْ وَرَآءَهُ فَكُنْتُ اَخْدُمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّمَا نَزَلَ

۹۳ : قتيبه بن سعيد، اسماعيل بن جعفر، عمرو بن ابي عمره (د مطلب بن عبدالله بن خطب مولي، انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم، ابو طلحه ته او فرمائيل، خپلو هلکانو کښې يو هلک خما د خدمت د پاره راوليږه، نو ابو طلحه زه ځان پسے سور کړلم، ځان سره ئے بوتلم. ما د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خدمت کولو، کوم وخت چه به حضور صلّي الله عليه وسلّم کوزيدلو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم به اکثر دا فرمائيل: اللّهم اني اعوذ بک من الهمّ والحزن والعجز والکسل والبخل والجبن و ضلع الدين و غلبة الرجال: ما برابر د حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت کولو، تر دے چه

فَكُنْتُ اَسْمَعُهُ يُكْثِرُ اَنْ يَّقُوْلَ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسْلِ وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَ ضَلَعِ الدَّيْنِ وَ غَلَبَةِ الرِّجَالِ، فَلَمْ اَزَلْ اَخْدُمُهُ حَتّٰى اَقْبَلْنَا مِنْ خَيْبَرَ وَ اَقْبَلَ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ قَدْ حَازَهَا فَكُنْتُ اَرَاهُ يُحَوِّيْ وَرَآءَهُ بِعِبَاءَةٍ اَوْ كَسَاءٍ ثُمَّ يُرْدِفُهَا وَرَآءَهُ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ صَنَعَ حَيْسًا فِيْ نِطَعٍ ثُمَّ اَرْسَلَنِيْ فَدَعَوْتُ رِجَالًا فَاَكَلُوْا وَ كَانَ ذٰلِكَ بَنَآءَهُ بِهَا ثُمَّ اَقْبَلَ حَتّٰى بَدَالَهُ اُحُدٌ قَالَ: هٰذَا جُبَيْلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ فَلَمَّا اَشْرَفَ عَلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُحَرِّمُ مَا بَيْنَ جَبَلَيْهَا مِثْلَ مَا حَرَّمَ بِهٖ اِبْرَاهِيْمُ مَكَّةَ، اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ مُدِّهِمْ وَ صَاعِهِمْ.

کوم وخت مونږ د خیبر نه واپس شو، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم، صفیه رضي اللّٰه عنها بنت حیي، چه هغې سره ئې نکاح کړې وه، ما حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته کتل، چه د خپل څادر یا کمبل پرده ئې او کړله، او خپل ورستو ئې ځان پسې هغه سوره کړله. تر دې چه کوم وخت مونږ مقام صَهباء ته اورسیدو، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم حیس تیار کړلو، هغې ئې په دستر خوان کېښودلو. بیائې زه اولیږلم، نو ما خلق راوغوښتل. خلقو ډوډي او خوړله. دا د ولیمې دعوت وو، بیا د هغې ځائې نه مخ په وړاندې روان شو، تر دې چه کوم وخت د احد غر په نظر راغې، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، دا هغه غر دې چه مونږ سره محبت ساتي، او مونږ ده سره محبت ساتو. کوم وخت چه مدینې ته قریب اورسیدو، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، یا اللّٰه، زه د دې دواړو غرونو مینځ کښې زمکه حرم ګرځوم، څنګه چه ابراهیم علیه السلام مکّه حرم ګرځولې وه. اې اللّٰه، د مدینې والو مُد، او، صاع (دوه پیمانې دي) کښې برکت واچوې.

## باب ۶۱: التَّعَوُّذِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

## باب ۶۱: د قبر د عذاب نه د پناه غوښتلو بیان.

۹۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ اُمَّ خَالِدٍ قَالَ وَ لَمْ اَسْمَعْ اَحَدًا سَمِعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَهَا قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ مِنْ

۹۴: حمیدي، سفیان، موسٰي بن عقبه، ام خالد، بنت خالد رضي اللّٰه عنها نه روایت کوي، د هغې بیان دې. ما حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه د قبر د عذاب نه پناه غوښتل واوریدل. موسٰي بن عقبه اوورې، د ام خالد نه سوا، ما د هیچا نه د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه په دې حقله نه دي

عَذَابِ الْقَبْرِ.

اوریدلے.

۹۵: حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ مُصْعَبٍ كَانَ سَعْدٌ يَأْمُرُ بِخَمْسٍ وَ يَذْكُرُهُنَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يَأْمُرُ بِهِنَّ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اُرَدَّ اِلَى اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا يَعْنِيْ فِتْنَةَ الدَّجَّالِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

۹۵: ادم، شعبه، عبد الملک، مصعب نه روایت کوي، چه سعد به د پنځو (۵) خبرونه د پناه غوښتلو حکم کولو، او د دے پنځو خبرو به ئے د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کولو. چه حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به د دے پنځو خبرو نه پناه غوښتله (حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به فرمائیل): اللّٰهمّ انی اعوذ بک من البخل و اعوذ بک من الجبن و اعوذ بک ارد الی ارزل العمر و اعوذ بک من فتنة الدنیا یعنی فتنة الدجال و اعوذ بک من عذاب القبر.

۹۶: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَتْ عَلَيَّ عُجُوْزَانِ مِنْ عُجُزِ يَهُوْدَ الْمَدِيْنَةِ فَقَالَتَا لِيْ اِنَّ اَهْلَ الْقُبُوْرِ يُعَذَّبُوْنَ فِيْ قُبُوْرِهِمْ فَكَذَّبْتُهُمَا وَ لَمْ اُنْعِمْ اَنْ اُصَدِّقَهُمَا فَخَرَجَتَا وَ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُوْلَ اِنَّ عُجُوْزَيْنِ وَ ذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ صَدَقَتَا اِنَّهُمْ يُعَذَّبُوْنَ عَذَابًا تَسْمَعُهُ الْبَهَائِمُ كُلُّهَا، فَمَا رَاَيْتُهُ بَعْدُ فِيْ صَلَاةٍ اِلَّا تَعَوَّذَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

۹۶: عثمان بن ابي شیبه، جریر، منصور، ابو وائل، مسروق، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها نه روایت کوي، مدینه کښې ما ته دوه (۲) یهودیانې ښځے راغلے. هغے دواړو ماته اووے. چه قبر والو ته خپلو قبرونو کښې عذاب ورکولے شي، نو ما د هغوي خبرو ته دروغ اووے، او دا مې ښه اونه ګنړله، چه د هغوي تصدیق اوکړم، هغه دواړه لاړلے، بیا ما پلے نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم تشریف راوړلو. ما حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته عرض اوکه. یا رسول اللّٰه، دوه (۲) بوډۍ ښځے راغلے وے، او حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته مې ټوله واقعه بیان کړله. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. هغے دواړو ټیک خبره کړیده. بیشکه خلقو ته قبر کښې عذاب ورکولے شي. چه هغه (عذاب) ټول چوپایه اوري، نو دے نه پس ما حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم هر مونځ پسے د قبر د عذاب نه پناه غوښتونکے اولیدلو.

ف: اللّٰه پاک دے د خپل رحمت او فضل د مخه مونږ ټول د قبر د عذاب نه په امان کړي. اللّٰهم امین.

## بـاب ٦٢ : التَّعَوُّذِ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ.

٩٧ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ: كَانَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْهَرَمِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ.

## بـاب ٦٢ : د ژوند او مرګ د فتنونه د پناه غوښتلو بیان.

٩٧ : مسدد، معتمر، د معتمر پلار، انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت کوي، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم او فرمائیل: اللّٰهمّ انی اعوذ بک من العجز والکسل والجبن والهرم و اعوذ بک من عذاب القبر و اعوذ بک من فتنة المحیاء والممات. (یا اللّٰه، زه ستا پناه غواړم، د عجز، سستي، بزدلي او ډیر زیات بوډا والي نه، او زه ستا پناه غواړم د ژوند او مرګ د فتنې نه).

## باب ٦٣ : التَّعَوُّذِ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ.

٩٨ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى ابْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وَهَيْبٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَالْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ وَ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَ عَذَابِ النَّارِ وَ مِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنٰى وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ، اللّٰهُمَّ اغْسِلْ عَنِّيْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّ قَلْبِيْ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْاَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَ بَاعِدْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ

## باب ٦٣ : د ګناه او قرض نه د پناه غوښتلو بیان.

٩٨ : معلي بن اسد، وهیب، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها نه روایت کوي. د هغې بیان دې. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به دا دعا کوله: اللّٰهم انی اعوذ بک الخ: یعني اې اللّٰه، زه ستا پناه غواړم، د سستي، بوډا توب نه، او ګناه او قرض او قبر د ازمایش نه، او د قبر د عذاب نه، او د اور د ازمائښت او د، اور د عذاب نه، او د مالداري د ازمائش، شر نه، او ستا پناه غواړم د فقر د ازمائش نه، او ستا پناه غواړم د مسیح، دجّال د فتنې نه. یا اللّٰه، ته مانه خما ګناهونه د واورې او ګلئ په اوبو او وینزې. او خما زړه د ګناهونو نه صاف کړې، څنګه چه تا سپینه کپړه د ګندګئ نه صافه کړه، او خما او خما د ګناهونو په مینځ کښې داسې لرې والې (دوري)

خَطَايَایَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ.

راولے، څنګه لرے والے چه تا د مشرق او مغرب مينځ كښ كړے دے.

## بـــاب ۶۴ : اَلْاِسْتِعَاذَةِ مِنَ الْجِبْنِ وَالْكَسَلِ.

## باب ۶۴ : د بزدلي او سستي نه د پناه غوښتلو بيان.

۹۹ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مُخَلَّدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ اَبِيْ عَمْرٍو وَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَ ضَلَعِ الدَّيْنِ وَ غَلَبَةِ الرِّجَالِ.

۹۹ : خالد بن مخلد، سليمان، عمرو بن ابي عمرو، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به دعا كښ وئيلے: اللّٰهمّ انى اعوذ بک الخ: يا اللّٰه، زه ستا پناه غواړم، د غم او حزن او عجز او سستي او بزدلئ او بخل نه، او د قرض درونند بوج او د خلقو د غلبے نه.

## بَاب ۶۵ : التَّعَوُّذِ مِنَ الْبُخْلِ وَالْبُخْلُ وَالْبَخَلُ وَاحِدٌ مِثْلُ الْحُزْنِ وَالْحَزَنِ.

## باب ۶۵ : د بخل نه د پناه غوښتلو بيان. بُخل (بالضم) او بَخل (بالفتح) يو معنٰي دي، لكه د حُزن او حَزن چه يو معنٰي دي.

ف: (۱) بالضم: پيش (ـُـ) سره. (۲) بالفتح: زبر (ـَـ) سره.

۱۰۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنِيْ غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ مُصْعَبِ ابْنِ سَعْدٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَأْمُرُ بِهٰؤُلَاءِ الْخَمْسِ وَ يُحَدِّثُهُنَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اُرَدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَ اَعُوْذُ بِكَ

۱۰۰ : محمد بن مثنٰي، غندر، شعبه، عبدالملک بن عمر، مصعب بن سعد، سعد بن ابي وقاص نه روايت كوي، سعد به د دے پنځو (۵) څيزونو د پناه غوښتلو حكم كولو. او دا به ئے د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كول (او هغه دا دي) اے اللّٰه، زه ستا پناه غواړم، د بخل نه، او ستا پناه غواړم، د بزدلي نه، او ستا پناه غواړم د دے خبرے نه، چه زه د ډير زوړ عمر طرف ته واړولے شم. او ستا پناه غواړم، د دنيا د فتنے نه، او ستا پناه غواړم،

مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

د قبر د، عذاب نه.

**ف**: ډير زوړ عمر هغه وي، چه هغې کښې سړے هره خبره کښې د بل محتاج وي. الله پاک دے مونږه داسې محتاجۍ نه په امان کړي. آمين.

**بَابٌ ٦٦ : التَّعَوُّذِ مِنْ اَرْذَلِ الْعُمُرِ اَرَاذِلُنَا اَسْقَاطُنَا.**

**باب ٦٦ : د ارزل عمر نه د پناه غوښتلو بيان.**

ارازلنا: اسقاطنا په معنې کښې يو دے.

**١٠١ : حَدَّثَنَا اَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْهَرَمِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ.**

**١٠١** : ابو معمر، عبدالوارث، عبدالعزيز بن صهيب، انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم به پناه غوښتله، او داسې به ئې فرمائيل چه: اے الله، زه ستا پناه غوارم د سستۍ او بزدلۍ نه، او ستا پناه غوارم، د ډير بوډا توب او بخل نه.

**بَابٌ ٦٧ : الدُّعَاءِ بِرَفْعِ الْوَبَاءِ وَالْوَجْعِ.**

**باب ٦٧ : وبا او تکليف دُعا سره لرے کيږي.**

**١٠٢ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَيْنَا الْمَدِيْنَةَ كَمَا حَبَّبْتَ اِلَيْنَا مَكَّةَ اَوْ اَشَدَّ وَانْقُلْ حُمَّاهَا اِلَى الْجُحْفَةِ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ مُدِّنَا وَ صَاعِنَا.**

**١٠٢** : محمد بن يوسف، سفيان، هشام بن عروه، عروه بي بي عائشے رَضِيَ اللّٰهُ عنها نه روايت کوي، د هغې بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، يا الله، څمونږ زړونو کښې د مدينے محبت پيدا کړے څنګه چه د د مکے محبت راکړے دے. او د دے تبه جُحفے طرف ته منتقل کړے. يا الله، زمونږ مُد او، صاع (دوه پيمانے دي) کښې برکت عطا کړے.

**١٠٣ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَامِرِ**

**١٠٣** : موسي بن اسماعيل، ابراهيم بن سعد، ابن شهاب، عامر بن سعد رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه پلار سعد بيان اوکه، حضور صلي الله عليه وسلم

بْـنِ سَـعْـدٍ اَنَّ اَبَـاهُ قَـالَ: عَـادَنِـيُ رَسُوُلُ الـلّٰـهِ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيُـهِ وَسَـلَّـمَ فِـيُ حَـجَّةِ الْـوَدَاعِ مِـنُ شَـكُـوٰى اَشْـفَيُـتُ مِـنُهَـا عَـلَـى الْـمَوُتِ فَـقُـلُـتُ يَـا رَسُوُلَ اللّٰهِ بَلَغَ فِـيُ مَـا تَـرٰى مِنَ الْوَجْعِ وَ اَنَا ذُوُ مَالٍ وَّ لَا يَـرِثُـنِـيُ اِلَّا ابْـنَـةٌ لِّـيُ وَاحِـدَةٌ اَفَـاَ تَـصَـدَّقُ بِثُلُثَـيُ مَـالِـيُ؟ قَـالَ لَا قُـلْـتُ، فَبِشَـطْـرِهٖ قَـالَ لَا قَـالَ: الثُّـلُـثُ كَثِيُـرٌ اِنَّكَ اَنُ تَـذَرَ وَ رَثَتَكَ اَغْـنِـيَـآءَ خَيُـرٌ مِّـنُ اَنُ تَـذَرَهُـمُ عَـالَةً يَتَـكَـفَّفُوُنَ النَّـاسَ وَ اِنَّكَ لَـنُ تُـنُـفِـقَ نَـفَـقَـةً تَبُتَـغِـيُ بِهَـا وَجُـهَ الـلّٰـهِ اِلَّا اُجِـرُتَ حَـتّٰـى مَـا تَـجُـعَـلُ فِـيُ فِـي اِمُـرَاَتِكَ، قُـلُـتُ اَاُخَـلَّفُ بَـعُـدَ اَصُـحَـابِـيُ قَـالَ اِنَّكَ لَـنُ تُـخَـلَّفَ فَتَـعُـمَـلَ عَـمَلًا تَبُتَغِـيُ بِـهٖ وَجُـهَ اللّٰـهِ اِلَّا ازُدَدُتَ بِـهٖ دَرَجَةً وَّ رِفُـعَةً وَ لَـعَـلَّكَ تُخَلَّفُ حَتّٰى يَنُتَفِعَ بِكَ اَقُـوَامٌ وَ يُـضَـرَّ بِكَ اٰخَرُوُنَ اَللّٰهُمَّ اَمُضِ لِاَصُحَابِيُ هِجُرَتَهُمُ وَ لَا تَرُدَّهُمُ عَلٰى اَعُقَابِهِمُ لٰـكِنِ الْبَائِسُ سَعُدُ بُنُ خَـوُلَةَ قَـالَ سَعُدٌ رَثٰى لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى الـلّٰـهُ عَـلَيُـهِ وَسَـلَّمَ مِنُ اَنُ تُوُفِّيَ بِمَكَّةَ.

خـما هغـې بيمارئ كښ، چه هغـې كښ زه مرګ ته نژدې ووم، د حـجة الـودا ع پـه موقع پېښتنې له تشريف راوړلو، مـا عـرض او كه، يا رسول اللّٰه، ما ته چه كوم تكليف دې هـغـه تـاسو وينئ، او زه مالدار يم. ليكن د يوې جينئ نه سوا بـل څوک وارث م نشته. نو ايا زه دو تهائي (۲/۳) مال صدقه كړم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، نه. نو ما تپوس او كه، نو ايا نيم مال (خيرات كړم) حضور صـلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل تهائي (۱/۳) ډير دې. وارثـان مـال دار پـريښودل ستا د پاره د دې نه بهتره ده، چـه هـغوي محتاج پريږدې، چه خلقو ته د سوال لاسونه اوږدوي او كـرخـي (خيـر غواړي) او تـه چـه د اللّـه د رضـامـنـدي د پاره هر څه خرچ كوې اللّٰه به د هغې اجر دركـوي، تر دې چه د هغې نوړې (لقمې، هم، چه ته ئې د خپلـې بـي بي په خوله كښ اچوې. ما اووې، ايا زه به د خپلـو دوستـانـو نـه ورستـو پاتې شم (يعني دوستان به م مدينې ته په هجرت لاړ شي، او زه به مكه كښ پاتې شم، حـضـور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، نه، بلكه څومره چـه د، اللّٰه د مرض پيش نظر عمل كوې، درجه او بلندي كـښ بـه دې زيـاتـې كيـږي. او اميـد دې چه ته به اوس ژونـدې ئـې . او مسلمانان به تا نه نفع اوچتوي، او كافرو تـه بـه درنـه، نـقـصـان رسـي. يـا الـلّٰـه، زمونږ د صحابهؓ ؤ هـجـرت پـوره كـړې. او هـغوي پـه وروستو واپـس مـه كړې. ليكن د سعد بن خوله هجرت پوره نه شولو. سعد بيـان او كه، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د هغه مكه كښ د وفات كيدو په سبب ډيره صدمه اوشوله.

## بـــاب ٦٨ : اَلْاِسْتِعَـاذَةِ مِنُ

## بـــاب ٦٨ : د ډيـــر زيـــات عـــمــر، او د، د

اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ.

دنیا د ازمائش، او د اور د ازمائش نه، د پناه غوښتلو بیان.

۱۰۴: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا الْحُسَيْنُ عَنْ زَائِدَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ مُصْعَبٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ تَعَوَّذُوْا بِكَلِمَاتٍ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ بِهِنَّ، اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ اَنْ اُرَدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَ عَذَابِ الْقَبْرِ.

۱۰۴: اسحاق بن ابراهیم، حسین زائده، عبدالملک، مصعب، د خپل پلار نه روایت کوي، د هغه بیان دے. د دې کلماتو پذریعه پناه غواړې، چه د هغې په ذریعه به حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم پناه غوښتله، (هغه کلمات دا دي) اللّٰهم اني اعوذ بک من الجبن. و اعوذ بک من البخل. و اعوذ بک من ان اردّالي ارزل العمر. و اعوذ بک من فتنة الدنيا و عذاب القبر.

۱۰۵: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَ الْهَرَمِ وَ الْمَغْرَمِ وَ الْمَاْثَمِ، اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَ فِتْنَةِ النَّارِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنٰى وَ شَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ وَ مِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَ الْبَرَدِ وَ نَقِّ قَلْبِيْ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْاَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ وَ بَاعِدْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَّ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ.

۱۰۵: یحیي بن موسي، وکیع، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغې بیان دے. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به دا دعا کوله: اللّٰهم انی اعوذ بک من الکسل والهرم والمغرم والماثم. اللّٰهمَ انی اعوذ بک من عذاب النار. وَ فتنة النار. و عذاب القبر. و شرفتنة الغنٰی و شر فتنة الفقر. و من شر فتنة المسیح الدجال. اللّٰهم اغسل خطایای بماء الثلج والبرد و نق قلبی من الخطایا کما ینقی الثوب الابیض من الدنس و باعد بینی وَ بین خطایای کما باعدت بین المشرق والمغرب.

باب ۶۹: اَلْاِسْتِعَاذَةُ مِنْ فِتْنَةِ الْغِنٰی.

۶۱۰۶: حَدَّثَنَا مُوْسٰی بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ اَبِيْ مُطِيْعٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ خَالَتِهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَعَوَّذُ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْغِنٰی وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ.

باب ۶۹: د مالداري د فتنې نه پناه غوښتلو بيان.

۶۱۰۶: موسی بن اسماعيل، سلام بن ابي مطيع، هشام، د خپل پلار نه هغه د خپلې ترور (خاله) بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت کوي. د هغې بيان دې. حضور صلي الله عليه وسلّم به داسې پناه غوښتله: اللّٰهم انی اعوذ بک من فتنة النار و من عذاب النار. و اعوذ بک من فتنة القبر و اعوذ بک من عذاب القبر. و اعوذ بک من فتنة الغنٰی و اعوذ بک من فتنة القبر. و اعوذ بک من فتنة المسيح الدجال.

بَابُ ۷۰: اَلتَّعَوُّذِ مِنْ فِتْنَةِ الْفَقْرِ.

۶۱۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَ عَذَابِ النَّارِ وَ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنٰی وَ شَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ، اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ قَلْبِيْ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّ قَلْبِيْ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْاَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَ بَاعِدْ بَيْنِيْ وَ

باب ۷۰: د فقر د فتنې نه د پناه غوښتلو بيان.

۶۱۰۷: محمد، ابو معاويه، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم به فرمائيل، يا الله، زه ستا پناه غواړم، د اور د فتنې نه، او د اور د عذاب نه، او د قبر د فتنې نه، او د قبر د عذاب نه، او د مالداري د فتنې د شر نه، او د فقر د فتنې د شر نه. يا الله (جل جلاله)، زه ستا پناه غواړم، د مسيح دجال د فتنې د شر نه، يا الله، څما زړه د واورې او ګلې په اوبو اووينځې. او څما زړه د ګناهونو نه صاف کړې. څنګه چه تا سپينه کپړه د ګندګي نه صافه کړه. او څما او څما د ګناهونو مينځ کښې داسې لرې والې پيدا کړې.

بِمَنْ خَطَايَایَ كَمَا بَاعَدْتَّ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ، اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْمَاْثَمِ وَالْمَغْرَمِ.

خنکه چه تا د مشرق او مغرب په مینځ کښې والے پیدا کړے دے. یا اللّٰه (جل جلاله)، زه پناه غواړم، د سُستي نه او د ګناه او قرض نه.

## باب ۷۱: اَلدُّعَآءِ بِكَثْرَةِ الْمَالِ مَعَ الْبَرَكَةِ.

## باب ۷۱: برکت سره د مال د ډیروالي د دعا کولو بیان.

۱۰۸: حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنْ اُمِّ سُلَيْمٍ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَسٌ خَادِمُكَ اُدْعُ اللّٰهَ لَهُ قَالَ اللّٰهُمَّ اَكْثِرْ مَالَهُ وَ وَلَدَهُ وَ بَارِكْ لَهُ فِيْمَا اَعْطَيْتَهُ وَ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ مِثْلَهُ.

۱۰۸: محمد بن بشار، غندر، شعبه، قتاده، انس، ام سلیم نه روایت کوي، ام سلیم عرض اوکه، یا رسول اللّٰه، انس ستاسو خادم دے. تاسو د اللّٰه (جل جلاله) نه ده د پاره دعا او غواړئ. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائیل، یا اللّٰه، د ده مال او اولاد زیات کړے، او څه چه تا ده ته ورکړي دي، هغے کښې ورله برکت واچوے. او هشام بن زید نه روایت دے. ما د انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه دغسے بیان کول اوریدلے دي.

۱۰۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ زَيْدٍ سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ اَنَسٌ خَادِمُكَ قَالَ اللّٰهُمَّ اَكْثِرْ مَالَهُ وَ وَلَدَهُ وَ بَارِكْ لَهُ فِيْمَا اَعْطَيْتَهُ.

۱۰۹: ابو زید بن سعید بن ربیع، شعبه، قتاده نه روایت کوي، ما د انس رضي اللّٰه عنه نه واوریدل چه ام سلیمؓ عرض اوکه، (یا رسول اللّٰه) انس رضي اللّٰه عنه ستاسو خادم دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائیل، یا اللّٰه، د ده مال او اولاد زیات کړے. او څه چه تا ده ته ورکړے دي. هغے کښې برکت واچوے.

## باب ۷۲: اَلدُّعَآءِ عِنْدَ الْاِسْتِخَارَةِ.

## باب ۷۲: د استخارے په وخت د دعا کولو بیان.

۱۱۰: حَدَّثَنَا مُطَرِّفُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَبُوْ مُصْعَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِی الْمَوَالِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۰: مطرف بن عبداللّٰه، ابو مصعب، عبد الرحمن بن ابي الموال، محمد بن منکدر، حضرت جابر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. د هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم به مونږ خلقو ته ټولو امورو کښې

وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا الْإِسْتِخَارَةَ فِي الْأُمُوْرِ كُلِّهَا كَالسُّوْرَةِ مِنَ الْقُرْاٰنِ اِذَا هَمَّ بِالْاَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَ اَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَ اَسْاَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَ لَا اَقْدِرُ وَ تَعْلَمُ وَ لَا اَعْلَمُ وَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَ مَعَاشِيْ وَ عَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْ قَالَ فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَ اٰجِلِهٖ فَاقْدِرْهُ لِيْ وَ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَ مَعَاشِيْ وَ عَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْ قَالَ فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَ اٰجِلِهٖ فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَ اَقْدِرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ ارْضِنِيْ بِهٖ وَ يُسَمِّيْ حَاجَتَهٗ.

د استخارې تعليم راكولو. څنګه چه به ئې راته د قرآن سورت ښودلو. هر كله چه تاسو كښې يو سړې د څه كار كولو اراده اوكړي، نو دوه ركعاته مونځ دې اوكړي، بيا دې اووائي: اللّٰهم انى استخيرك بعلمك و استقدرك بقدرتك و اسألك من فضلك العظيم فانك تقدر ولا اقدر و تعلم و لا اعلم و انت علام الغيوب. اللّٰهم ان كنت تعلم ان هٰذا الإمر خير لى فى دينى و معاشى و عاقبة امرى (يا وې فرمائيل فى عاجل امرى و اٰجله) فا قدره لى و ان كنت تعلم ان هٰذا الامر شرّلى فى دينى و معاشى وَ عاقبة امرى (يا وې فرمائيل، فى عاجل امرى و اٰجله) فاصرفه عن و اصرفنى عنه واقدر لى الخير حيث كان ثم رضنى به: بيا دې دعا نه پس دې خپل حاجت بيان كړي.

**ف:** يا اللّٰه، د دې استخارې د، دعا په بركت خمونږ د ټولو ديني او دنياوي امور په خير كړې. او دواړه جهانه مو خائسته كړې. اللّٰهم آمين.

## بَاب ۷۳: اَلدُّعَآءِ عِنْدَ الْوُضُوْءِ.

## باب ۷۳: د اودس په وخت د، دُعا كولو بيان.

**۱۱۱:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعُلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بَرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَآءٍ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ اَبِيْ عَامِرٍ وَ

**۱۱۱:** محمد بن علاء، ابو اسامه، بريد بن عبد اللّٰه، ابو برده، حضرت ابو موسٰي رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دې. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم اوبه اوغوښتلې، او اودس ئې اوكه. بيائې دواړه لاسونه اوچت كړل. او دعا ئې اوكړه چه اې اللّٰه، عبيد ابي عامر اوبښې، او ما د حضور صلي اللّٰه عليه وسلم د ترخ

رَاَيْتُ بَيَاضَ اِبْطَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَوْقَ كَثِيْرٍ مِّنْ خَلْقِكَ مِنَ النَّاسِ.

مبارک سفيدي اوليده. بيائے او فرمائيل چه اے الله قيامت په ورځ خپل مخلوق کښې ډيرو سرو کښې ده مرتبه اوچته (بلنده) کړے.

بَاب ۷۴: الدُّعَآءِ اِذَا عَلَا عَقَبَةً قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ عُقْبًا عَاقِبَةً وَّ عُقْبًا وَّ عَاقِبَةً وَّاحِدٌ وَّ هُوَ الْاٰخِرَةُ.

باب ۷۴: په اوچت ځائے د ختلو په وخت، د دُعا کولو بيان.

۲۱۱۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَكُنَّا اِذَا عَلَوْنَا كَبَّرْنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّهَا النَّاسُ ارْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ فَاِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَ لَا غَائِبًا وَّ لٰكِنْ تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ثُمَّ اَتٰى عَلَيَّ وَ اَنَا اَقُوْلُ فِيْ نَفْسِيْ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ فَقَالَ: يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ قُلْ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ فَاِنَّهَا كَنْزٌ مِّنْ كُنُوْزِ الْجَنَّةِ اَوْ قَالَ اَلَا اَدُلُّكَ عَلٰى كَلِمَةٍ هِيَ كَنْزٌ مِّنْ كُنُوْزِ الْجَنَّةِ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ.

۲۱۱۲: سليمان بن حرب، حماد بن زيد، ايوب، ابو عثمان، حضرت ابو موسٰي رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغ بيان دے مونږ خلق نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يو سفر کښې وو. کوم وخت چه به مونږ به بلندئ ختلو، نو تکبير (الله اکبر) به مو وئيلو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اے خلقو، په خپل ځان نرمي کوئے، ځکه چه تاسو څوک کونړ يا غائب نه بلئے. بلکه تاسو هغه څوک بلئے، چه اوريدونکے اوليدونکے دے. بيائے ما پله تشريف راوړلو، (ما خپل زړه کښې لاحول ولا قوة الا بالله وئيلے) نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، اے عبد الله بن قيس: لا حول ولا قوة الا بالله: وايه ځکه چه دا د جنت د خزانو نه يوه خزانه ده، يا (راوي ته شک دے) حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ايا زه تا ته داسے کلمه اونه ښائيم، چه د جنت د خزانو يوه خزانه ده، هغه: لا حول ولا قوة الا بالله: ده.

ف: څوک چه لا حول ولا قوة الا بالله: وائي، نو ګويا چه هغه د جنت د خزانو نه د يوے خزانے مالک دے.

بَاب ۷۵: الدُّعَآءِ اِذَا هَبَطَ وَادِيًا فِيْهِ حَدِيْثٌ

باب ۷۵: يوے وادي کښې د کوزيدو په وخت د دُعا کولو بيان، د دے متعلق د حضرت جابرؓ حديث

جَابِرٍ.

دي.

بَابُ ۷٦: الدُّعَآءُ اِذَا اَرَادَ سَفَرًا اَوْ رَجَعَ.

باب ۷٦: د سفر د ارادې کولو په وخت، یا سفر نه د واپسۍ په وخت د دُعا کولو بیان.

۱۱۳: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوٍ اَوْ حَجٍّ اَوْ عُمْرَةٍ يُكَبِّرُ عَلٰى كُلِّ شَرَفٍ مِنَ الْاَرْضِ ثَلٰثَ تَكْبِيْرَاتٍ ثُمَّ يَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، اٰئِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ صَدَقَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَ نَصَرَ عَبْدَهٗ وَ هَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ.

۱۱۳: اسماعیل، مالک، نافع، عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم چه به کله د جهاد، یا حج، یا عمرې نه واپس کیدلو، نو په هر اوچت ځائې به ئې درې ځله تکبیر وئیلو. بیا به ئې فرمائیل، لَا اِلٰهَ اِلّا اللّٰه وحده لا شریک له الخ: یعني د، یو اللّٰه نه بغیر هیڅ معبود نشته، د هغه هیڅوک شریک نشته، د هغه ملک دې، او هغه د پاره تعریف دې، او هغه په هر څیز قادر دې، مونږ واپس کیدونکي، توبه کونکي، عبادت کونکي د خپل رب حمد (ثنا) بیانونکي یو. اللّٰه، خپل وعده رښتینې اوښودله، هغه د خپل بنده مدد او که، او فوځونو ته ئې یوازې (تنها) شکست ورکړلو.

بَابُ ۷۷: الدُّعَآءُ لِلْمُتَزَوِّجِ.

باب ۷۷: د واده کونکي (د واده د خاوند) د پاره د دُعا کولو بیان.

۱۱۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَاَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَثَرَ صُفْرَةٍ فَقَالَ مَهْيَمْ اَوْمَهْ قَالَ تَزَوَّجْتُ اِمْرَاَةً عَلٰى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ اَوْ لِمْ وَ لَوْ بِشَاةٍ.

۱۱۴: مسدد، حماد بن زید، ثابت، د انس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم په عبد الرحمٰن بن عوف د زردئ نښنه اولیده، نو وې فرمائیل: مَهیم یا، مَه: یعني څه خبره ده، هغه جواب ورکه، ما یوې ښځې سره د یوې کټهکي برابر د سرو زرو په عوض کښې نکاح کړې ده. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل، اللّٰه، دې برکت درکړي. د ولیمې دعوت او که، اګر که یوه چیلې ولې نه وي.

۱۱۵: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ

۱۱۵: ابو نعمان، حماد بن زید، عمر، جابر رضي اللّٰه

حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو وَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ هَلَكَ اَبِيْ وَ تَرَكَ سَبْعَ اَوْ تِسْعَ بَنَاتٍ فَتَزَوَّجْتُ اِمْرَاَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجْتَ يَا جَابِرُ؟ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِكْرًا اَمْ ثَيِّبًا؟ قُلْتُ ثَيِّبًا، قَالَ هَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُهَا وَ تُلَاعِبُكَ اَوْ تُضَاحِكُهَا وَ تُضَاحِكُكَ قُلْتُ هَلَكَ اَبِيْ فَتَرَكَ سَبْعَ اَوْ تِسْعَ بَنَاتٍ فَكَرِهْتُ اَنْ اَجِيْئَهُنَّ بِمِثْلِهِنَّ فَتَزَوَّجْتُ اِمْرَاَةً تَقُوْمُ عَلَيْهِنَّ، قَالَ فَبَارَكَ اللّٰهُ عَلَيْكَ لَمْ يَقُلْ اِبْنُ عُيَيْنَةَ وَ مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ عَمْرٍو، بَارَكَ اللّٰهُ عَلَيْكَ.

عنه نه روايت کوي، ځما پلار وفات شولو. او اوه (۷) يا نهه (۹) لونړه ترې پاتې شوې. ما يوې ښځې سره نکاح اوکړه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، جابره تا واده کړې دې؟ ما اُوې هاؤ جي. وې فرمائيل پيغلې سره يا کُنډې سره. ما اووې، کُنډې سره. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، پيغلې سره دې ولې نکاح اونکړله، چه ته هغې سره لوبيدې او هغه تاسره لوبيده، يا وې فرمائيل، چه تا هغه خاندوله، او هغې ته خاندولې. ما عرض اوکړ ځما پلار چه مړ شو، نو اوه (۷) يا نهه (۹) لونړه ترې پاتې شوې، پدې وجه ما خوښه نه کړله چه هغوي له د هغوي په شان جينۍ راولم، نو ما داسې ښځې سره نکاح اوکړله، چه د هغوي نګراني کوي، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه تعالىٰ دې د برکت خاوند کړه. ابن عينيه او محمد بن مسلم د عمرو نه: بارک اللّٰه عليک الفاظ نه دي نقل کړې.

## بَابُ ۷۸: مَا يَقُوْلُ اِذَا اَتٰى اَهْلَهُ.

## باب ۷۸: چه خپلې بي بي له راځي، نو څه به وائي.

۱۱۶: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ اَنَّ اَحَدَهُمْ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَأْتِيَ اَهْلَهُ قَالَ بِاسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطٰنَ وَ جَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَاِنَّهُ اِنْ يُّقَدَّرْ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِيْ ذٰلِكَ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطَانٌ اَبَدًا.

۱۱۶: عثمان بن ابي شيبه، جرير، منصور، سالم، کريب، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دې. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، که دوي کښې څوک خپلې بي بي له ورځي (يعني د صحبت کولو اراده اوکړي)، او دا اووائي: باسم اللّٰه اللّٰهمّ جنّبنا الشيطان و جنّب الشيطان ما رزقتنا : بيا که د هغې د صحبت نه څه اولاد مقدّر وي، نو هغه ته شيطان هيڅکله ضرر نشي رسولې.

**باب ٧٩: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً.**

**باب ٧٩: د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم د: ربنا اتنا في الدنيا حسنة فرمائيل.**

١١٧: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ اَكْثَرُ دُعَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَ فِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ.

١١٧: مسدد، عبد الوارث، عبد العزيز، انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم اكثر دعا دا وه: اللّٰهم ربنا الخ: يعني اے اللّٰه، مونږ ته دنيا كښې خير راكړے، او آخرت كښې خير راكړے او د دوزخ د اور نه مونږ بچ كړے.

**ف**: يا اللّٰه، مونږ ټول درنه هم دغه دعا غواړو، په خپل لوئے دركاه كښې قبوله او منظوره كړے. اللّٰهم امين.

**باب ٨٠: التَّعَوُّذِ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا.**

**باب ٨٠: د دنيا د فتنے نه د پناه غوښتلو بيان.**

١١٨: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عُبَيْدَةُ ابْنُ حُمَيْدٍ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا هٰٓؤُلَآءِ الْكَلِمَاتِ كَمَا تُعَلَّمُ الْكِتَابَةُ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ اَنْ اُرَدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَ عَذَابِ الْقَبْرِ.

١١٨: فروه بن ابي المغراء، عبيده بن حميد، عبد الملک بن عمير، مصعب بن سعد بن ابي وقاص، خپل پلار (سعد بن ابي وقاص) نه روايت كوي. د هغه بيان دے، مونږ ته به نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دا كلمات داسے ښودل څنګه چه تاسو ليكل زده كوے: اللّٰهم اني اعوذ بک الخ: يعني يا اللّٰه، زه ستا پناه غواړم د بخل نه، او ستا پناه غواړم، د بزدلي نه، او ستا پناه غواړم، د دے خبرے نه، چه ډير زيات عمر بياموم، او ستا پناه غواړم د دنيا د فتنے نه، او د قبر د عذاب نه.

**باب ٨١: تَكْرِيْرِ الدُّعَاءِ.**

**باب ٨١: د مكرر (په بيا بيا) دعا كولو بيان.**

١١٩: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ

١١٩: ابراهيم بن منذر، انس بن عياض، هشام د

بْنُ مُنْذِرٍ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طُبَّ حَتّٰى اِنَّهُ لَيُخَيَّلُ اِلَيْهِ قَدْ صَنَعَ الشَّيْءَ وَ مَا صَنَعَهُ وَ اَنَّهُ دَعَا رَبَّهُ ثُمَّ قَالَ: اَشَعَرْتِ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَفْتَانِيْ فِيْمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيْهِ؟ فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَمَا ذَاكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ جَآءَ نِيْ رَجُلَانِ فَجَلَسَ اَحَدُهُمَا عِنْدَ رَاْسِيْ وَالْاٰخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ فَقَالَ اَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهٖ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ؟ قَالَ مَطْبُوْبٌ قَالَ مَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيْدُ بْنُ الْاَعْصَمِ، قَالَ فِيْمَا ذَا قَالَ فِيْ مُشْطٍ وَّ مُشَاطَةٍ وَ جُفِّ طَلْعَةٍ قَالَ فَاَيْنَ هُوَ؟ قَالَ فِيْ ذَرْوَانَ وَ ذَرْوَانُ بِئْرٌ فِيْ بَنِيْ زُرَيْقٍ، قَالَتْ فَاَتَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَجَعَ اِلٰى عَائِشَةَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَكَاَنَّ مَآءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّآءِ وَ لَكَاَنَّ نَخْلَهَا رُؤُسُ الشَّيَاطِيْنِ. قَالَتْ فَاَتٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت كوي، په رسول الله صلّي الله عليه وسلّم جادو اوكړې شو، تر دې چه حضور صلّي الله عليه وسلّم به خيال كولو، چه يو كار ئې كړې دې: حالانكه هغه به ئې نه وو كړې. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم د خپل رب نه دعا او غوښتله. بيائې او فرمائيل اې عائشې رضي الله عنها، ايا تا ته معلومه ده، چه الله پاک ماته هغه خبره اوښودله، كومه چه ما معلومول غوښتل، بي بي عائشې رضي الله عنها ترې تپوس اوكه، هغه څه خبره وه، يا رسول الله؟ حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل: ما له دوه سړي راغلل، هغوي كښې يو سړې څما سرته، او بل څما پښو ته كيناستلو. هغوي كښې يو خپل ملګري ته اووې. دې سړي ته څه تكليف دې. بل ورته اووې، په ده جادو شوې دې، ورمبني ترې تپوس اوكه. چا پرې جادو كړې دې. جواب ئې وركه، لبيد بن اعصم، تپوس ئې اوكه، څه څيز كښې، جواب ئې وركه، ګومنز كښې او د ګومنز نه وتلو ويښتو كښې، او د قجورې غلاف (پوستكي) كښې. ورمبني سړي ترې تپوس اوكه، هغه د (جادو څيز) چيرته دې. دوئم سړي ورته اووې، ذروان كښې. او ذروان بني زريق كښې يو كوهې دې. د بي بي عائشې رضي الله عنها بيان دې. حضور صلّي الله عليه وسلّم هغې كوهي له تشريف يوړلو. بيا بي بي عائشې رضي الله عنها ته واپس راغې. نو وې فرمائيل، والله، د هغې اوبه د، نكريزو (مهيندي) د نچوړ په شان سرې (سرخ)، دي، او هغې سره د قجورو اونې ګويا د شيطان د سرونو په شان دي. د بي بي عائشې رضي الله عنها

فَأَخْبَرَهَا عَنِ الْبِئْرِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَهَلَّا أَخْرَجْتَهُ قَالَ أَمَّا أَنَا فَقَدْ شَفَانِي اللّٰهُ وَ كَرِهْتُ أَنْ أُثِيْرَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا زَادَ عِيْسَى ابْنُ يُوْنُسَ وَاللَّيْثُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُحِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا وَ دَعَا وَ سَاقَ الْحَدِيْثَ.

بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم واپس تشريف راوړلو. او د كوهي هغه حالت ئې بيان كه. نو ما عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، تاسو هغه (د جادو څيز) ولې راؤ نه بنكلو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه ماله شفاء راكړه، نو ما دا خبره بنه اونه گنړله. چه خلقو ته شر، راپورته كړم، عيسٰي ابن يونس او ليث، هشام نه په وسطه د، عروه، عائشے رضي اللّٰه عنه نقل اوكه، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم باندے چا جادو كړے وو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دُعا اوكړله. بيائې پوره حديث بيان كړلو.

**بَاب ٨٢: الدُّعَاءِ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ.** وَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ أَعِنِّيْ عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ وَ قَالَ اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِأَبِيْ جَهْلٍ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلٰوةِ اللّٰهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَّ فُلَانًا حَتّٰى أَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ.

**باب ٨٢:** مشركينو ته د بددعاء كولو بيان. او ابن مسعود رضي اللّٰه عنه اووے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، اے اللّٰه، ته د دے. كافرو خلاف د يوسف عليه السلام د اوه (٧) كاله قحط پشان د اوه (٧) كاله قحط پذريعه خمونږ مدد اوكړے. او، وے فرمائيل، يا اللّٰه، په ابو جهل لعنت وكړے. او ابن عمرؓ اووے، نبيؐ په مانخه كښې دعا اوكړه، چه يا اللّٰه، په فلاني فلاني لعنت اوكړے، تر دے چه اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل كړلو: ليس لک من الامر شيئي.

**١٢٠** : حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنِ ابْنِ أَبِيْ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِيْ أَوْفٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْأَحْزَابِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيْعَ الْحِسَابِ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ اهْزِمْهُمْ وَ زَلْزِلْهُمْ.

**١٢٠** : ابن سلام، وكيع، ابن ابي خالد، ابن ابي اوفٰي رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په احزابو بد دعا اوكړله. او وے فرمائيل، اے اللّٰه، چه كتاب نازلونكے ئې، او زر حساب اخستونكے ئې، احزابو له شكست وركړے. هغوي په تيښته كړے. او هغوي متزلزل كړے (يعني قدمونه ئې او خويوے).

۱۲۱: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فِي الرَّكْعَةِ الْاٰخِرَةِ مِنْ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ قَنَتَ: اَللّٰهُمَّ اَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ اَبِيْ رَبِيْعَةَ اللّٰهُمَّ اَنْجِ الْوَلِيْدَ بْنَ الْوَلِيْدِ، اَللّٰهُمَّ اَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْاَتَكَ عَلٰى مُضَرَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِيْنَ كَسِنِيْ يُوْسُفَ.

۱۲۱: معاذ بن فضاله، هشام، يحيٰي، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم به چه د ماسختن مونځ كښې آخري ركعت كښې سمع الله لمن حمده وئيلے، نو قنوت به ئے لوستلو، اے الله، عياش بن ربيعه له نجات وركړے. يا الله، وليد بن وليد له نجات وركړے، اے الله، سلمه وليد بن وليد له نجات وركړے، اے الله، سلمه بن هشام له نجات وركړے. يا الله، كمزورو مسلمانانو له نجات وركړے. يا الله، خپل ګرفت په مضر (قبيله) سخت كړے. اے الله، دا كافر د يوسف عليه السلام د قحط سالي په شان په قحط سالي كښې اخته كړے.

۱۲۲: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيْعَ حَدَّثَنَا اَبُوْ الْاَحْوَصِ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّآءَ فَاُصِيْبُوْا فَمَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ عَلٰى شَيْءٍ مَّا وَجَدَ عَلَيْهِمْ فَقَنَتَ شَهْرًا فِيْ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَ يَقُوْلُ اِنَّ عُصَيَّةَ عَصَوُ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ.

۱۲۲: حسن بن ربيع، ابو الاحوص عاصم، انس رضي الله عنه نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلم يوه وړوكے شان دسته اوليږله. دے خلقو ته به ئے قراء (قاريان) وئيلے، هغه خلق قتل كړے شو، نو نبي صلي الله عليه وسلم دومره خفه شولو، چه يوه واقعه كښې ما دومره خفه نه وو ليدلے، نو د سحر مونځ كښې به حضور صلي الله عليه وسلم يو مياشت پورے قنوت لوستلو، او فرمائيل به ئے چه عصيه د الله او رسول صلي الله عليه وسلم نافرماني اوكړله.

۱۲۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ الْيَهُوْدُ يُسَلِّمُوْنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۲۳: عبد الله بن محمد، هشام، معمر، زهري، عروه، بي بي عائشے رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغے بيان دے، چه يهودو به نبي صلي الله عليه وسلم ته سلام كولو، نو وئيل به ئے: السام عليكم. بي بي عائشه رضي الله عنه د دوي په دے خبره پوه شوه، نو هغے ورته

يَقُولُونَ السَّامُ عَلَيْكَ فَفَطِنَتْ عَائِشَةُ اِلَى قَوْلِهِمْ فَقَالَتْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَهْلًا يَا عَائِشَةُ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْاَمْرِ كُلِّهِ فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اَوَ لَمْ تَسْمَعْ مَا يَقُوْلُوْنَ؟ قَالَ اَوَلَمْ تَسْمَعِيْ اَرُدُّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ فَاَقُوْلُ وَ عَلَيْكُمْ.

اووې پـه تـاسـو دې هلاکت او لعنت وي. نبي صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل عائشې (رضي الله عنها) پريږده، الله تعالي ټولو امورو کښې نرمي خوښوي. بي بي عائشې رضي الله عنها عرض او کړ، اې د الله نبيّ ايا تاسو واو نه ريدل. څه چه دې خلقو اووې. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، ايا تا وانه وريدل. څه چه ما دې خلقو ته جواب ور کړې دې، ما ورته ونيلي دي "و عليکم" يعني په تاسو دې وي.

۱۲۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيْرِيْنَ حَدَّثَنَا عَبِيْدَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ يَوْمَ الْخَنْدَقِ فَقَالَ: مَلَاَ اللّٰهُ قُبُوْرَهُمْ وَ بُيُوْتَهُمْ نَارًا كَمَا شَغَلُوْنَا عَنْ صَلَاةِ الْوُسْطٰى حَتّٰى غَابَتِ الشَّمْسُ وَ هِيَ صَلٰوةُ الْعَصْرِ.

۱۲۴: محمد بن مثنّي، انصاري، هشام بن حسان، محمد بن سيرين عبيده، حضرت عليّ بن ابي طالب نه روايت کوي، د هغه بيان دې. مونږ غزوه خندق کښې حضور صلي الله عليه وسلم سره وو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، الله دې د دوي قبرونه او د، دوي کورونه، د اور نه ډک کړي، ځکه چه دې خلقو مونږ د مينځني مونځ نه د نمر پريوتو پورې منع کړو. د مينځني مونځ نه د مازيګر مونځ مراد دې.

بَابُ ۸۳: الدُّعَاءِ لِلْمُشْرِكِيْنَ.

باب ۸۳: مشرکينو د پاره د دعا کولو بيان.

۱۲۵: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَدِمَ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ دَوْسًا قَدْ عَصَتْ وَ

۱۲۵: علي، سفيان، ابو الزناد، اعرج، ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، طفيل بن عمرو د، رسول الله عليه وسلم خدمت کښې راغې، او عرض ئې او کړ، يا رسول الله، د وس نافرماني او کړه، او انکار ئې او کړ، نو تاسوّ دِ هغوي حق کښې بددعا او کړئې، د خلقو.دا خيال وو، چه حضور صلي الله عليه

اَبَتْ فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهَا فَظَنَّ النَّاسُ اَنَّهٗ يَدْعُوْا عَلَيْهِمْ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اَهْدِ دَوْسًا وَّاْتِ بِهِمْ.

وسلّم به هغوي ته خيرے او كړي. ليكن حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل' يا الله' دوس قبيلے ته هدايت اوكړے' او هغوي ماله راولے.

## باب ۸۴: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَ مَا اَخَّرْتُ.

## باب ۸۴: د نبي صلّي الله عليه وسلّم فرمائيل چه: اللّٰهمّ اغفرلی ما قدمت و ما اخّرت: يا الله ما معاف كړے' څه چه ما مخكښ كړي دي' او اخر كښ كړي دي.

۶۱۲۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ بْنِ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ كَانَ يَدْعُوْا بِهٰذَا الدُّعَآءِ رَبِّ اغْفِرْلِيْ خَطِيْئَتِيْ وَجَهْلِيْ وَ اِسْرَافِيْ فِيْ اَمْرِيْ كُلِّهٖ وَ مَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ خَطَايَايَ وَ عَمْدِيْ وَ جَهْلِيْ وَ هَزْلِيْ وَ كُلُّ ذٰلِكَ عِنْدِيْ' اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَ مَا اَخَّرْتُ وَ مَا اَسْرَرْتُ وَ مَا اَعْلَنْتُ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَ اَنْتَ الْمُؤَخِّرُ وَ اَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ مُعَاذٍ وَّ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۱۲۶: محمد بن بشار' عبد الملک بن صباح' شعبه' ابو اسحاق' ابن ابو موسٰي' خپل پلار ابو موسٰي نه' هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به دا دعا كوله: ب اغفرلی خطيئتی وجهلی و اسرافی فی امری كله. و ما انت اعلم به من. اللهم اغفرلی خطاياى و عمدى وجهلی و هزلی و كل ذالک عندى. اللهم اغفرلی ما قدمت وما اخرت وما اسررت و ما اعلنت. انت المقدم و انت المؤخر و انت علی كل شیء قدير. او عبيد اللّٰه بن معاذ د خپل پلار نه پواسطه د ابو اسحاق ابو برده بن ابي موسٰي' حضرت ابو موسٰي رضي اللّٰه عنه' د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوكه.

۶۱۲۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيْدِ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ حَدَّثَنَا اَبُوْ

۶۱۲۷: محمد بن مثني' عبيد اللّٰه بن عبد المجيد' اسرائيل' ابو اسحاق' ابو بكر بن ابي موسٰي او' ابو برده' حضرت

اِسْحَاقَ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى وَ اَبِيْ بُرْدَةَ اَحْسِبُهُ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يَدْعُوْا اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ خَطِيْئَتِيْ وَجَهْلِيْ وَ اِسْرَافِيْ فِيْ اَمْرِيْ وَ مَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّيْ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ هَزْلِيْ وَجِدِّيْ وَ خَطَايَ وَ عَمْدِيْ وَ كُلُّ ذَالِكَ عِنْدِيْ.

ابو موسی اشعري د، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به دا دعا کوله: اللّٰهمّ اغفرلی خطیئتی وجهلی و اسرافی فی امری وما انت اعلم به من. اللهم اغفرلی هزلی وجدی و خطایای. و عمدی و کل ذالک عندی.

## بَابٌ ۸۵: اَلدُّعَآءِ فِي السَّاعَةِ الَّتِيْ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ.

## باب ۸۵: د جمعې په ورځ (مقبول) ساعت کښ د دعا کولو بیان.

۱۲۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجُمُعَةِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا مُسْلِمٌ وَ هُوَ قَائِمٌ يُصَلِّيْ يَسْاَلُ خَيْرًا اِلَّا اَعْطَاهُ وَ قَالَ بِيَدِهٖ قُلْنَا يُقَلِّلُهَا يُزَهِّدُهَا.

۱۲۸ : مسدد، اسماعیل بن ابراهیم، ایوب، محمد، حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے. ابو القاسم صلي اللّٰه علیه وسلم او فرمائیل، د جمعې ورځ کښ یو داسې ساعت دے، چه هغې کښ مسلمان اودریږي، مونځ او کړي، او د خیر دعا او غواړي نو هغه ضرور قبلیږي. او خپل لاس سره ئې اشاره او کړه، ګویا د هغې کمي طرف ته ئې اشاره کوله.

## بَابٌ ۸۶ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْتَجَابُ لَنَا فِي الْيَهُوْدِ وَلَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيْنَا.

## باب ۸۶ : د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیل، د یهودو متعلق ځمونږ دعا قبلیږي، او ځمونږ متعلق د هغوي دُعا نه قبلیږي.

۱۲۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ الْيَهُوْدَ اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۲۹ : قتیبه بن سعید، عبد الوهاب، ایوب، ابن ابي ملیکه، بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها، نه روایت کوي. یهود د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښ حاضر شو، او وئیلې: السام علیک: حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ورته او فرمائیل، و علیکم. بي بي عائشې

وَسَلَّمَ فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكَ، قَالَ وَ عَلَيْكُمْ، فَقَالَتْ عَائِشَةُ السَّامُ عَلَيْكُمْ وَ لَعَنَكُمُ اللّٰهُ وَ غَضِبَ عَلَيْكُمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْلًا يَا عَائِشَةُ عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ وَ اِيَّاكِ وَالْعَنْفَ اَوِ الْفُحْشَ قَالَتْ اَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوْا؟ قَالَ: اَوَلَمْ تَسْمَعِيْ مَا قُلْتُ رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ فَيُسْتَجَابُ لِيْ فِيْهِمْ وَ لَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيَّ.

رضي الله عنها او وئيل: السام عليكم او لعنكم الله: (په تاسو دې هلاکت وي او د، الله لعنت) او په تاسو دې خپل غضب نازل کړي. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، اې عائشې رضي الله عنها، دا خبره پريږده، نرمي اختيار کړه، او سختي کولو نه بچ شه. يا وې فرمائيل، بدګوئي نه بچ شه. بي بي عائشې رضي الله عنها عرض اوکه، ايا تاسو وا ونه ريدل، څه چه دې خلقو (يعني يهوديانو) اووې. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، ايا تا وا ونه ريدل، څه چه ما جواب ورکړلو. زما دعا د هغوي په حق کښې قبليږي. ليکن د هغوي دعا زما حق کښې نه قبليږي.

## باب ۸۷: اَلتَّامِيْنِ.

## باب ۸۷: د، آمين وئيلو بيان.

۶۳۰ ۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَاهُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اِذَا اَمَّنَ الْقَارِئُ فَاَمِّنُوْا فَاِنَّ الْمَلٰٓئِكَةَ تُؤَمِّنُ فَمَنْ وَّافَقَ تَامِيْنُهُ تَامِيْنَ الْمَلٰٓئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

۶۳۰ ۱ : علي بن عبد الله، سفيان، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، کوم وخت چه لوستونکې (يعني امام) آمين اووائي، نو تاسو هم آمين اووائې، ځکه چه فريښتې هم آمين وائي، نو د کوم سړي آمين وئيل چه د فريښتو آمين وئيلو سره موافق شي، نو د هغه مخکښني ګناه اوبښلې شي.

## باب ۸۸: فَضْلِ التَّهْلِيْلِ.

## باب ۸۸: د: لا اله الا الله: وئيلو د فضيلت بيان.

۶۳۱ ۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

۶۳۱ ۱ : عبد الله بن مسلمه، مالک، سمي، ابو صالح، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دې، رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، کوم سړې چه لا اله الا الله وحده لا

وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ فِيْ يَوْمٍ مِّائَةَ مَرَّةٍ كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِكَابٍ وَّ كُتِبَ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَّ مُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ وَ كَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِّنَ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذٰلِكَ حَتّٰى يُمْسِيَ وَ لَمْ يَأْتِ اَحَدٌ بِاَفْضَلَ مِمَّا جَآءَ اِلَّا رَجُلٌ عَمِلَ اَكْثَرَ مِنْهُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو وَ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ قَالَ: مَنْ قَالَ عَشْرًا كَانَ كَمَنْ اَعْتَقَ رَقَبَةً مِّنْ وُّلْدِ اِسْمَاعِيْلَ قَالَ عَمْرُو بْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ رَبِيْعِ بْنِ خُثَيْمٍ مِّثْلَهُ فَقُلْتُ لِلرَّبِيْعِ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ؟ فَقَالَ مِنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ فَاَتَيْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُوْنٍ فَقُلْتُ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ؟ فَقَالَ مِنْ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى فَاَتَيْتُ ابْنَ اَبِيْ لَيْلٰى فَاَتَيْتُ ابْنَ اَبِيْ لَيْلٰى فَقُلْتُ مِمَّنْ سَمِعْتَهُ فَقَالَ مِنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيِّ يُحَدِّثُهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ

شریک لـه لـه الملک ولـه الحمد وهو علٰی کل شيء قدیر : یو ورځ کښې سل ځله اووې، نو هغه ته به د، لسو غلامانو ازادولو ثواب حاصلیږي. او سل ګناهونه ئې رژولے شي، او په هغه ورځ به د ماښامه پورې د شیطان نه محفوظ وي، او د هغه نه به هیڅوک افضل نه وي، خو هغه سړے چه دا کلمات د هغه نه زیات اووائي. عبد اللّٰه بن محمد، په واسطه د عبد الملک بن عمرو، عمر بن ابي زائده، ابو اسحاق، عمرو بن میمون نه روایت کوي، د هغه بیان دے، چا چه لس ځله: لا اله الا اللّٰه وحده: الخ اووے، نو هغه د هغے سړي په شان دے، چه د اسماعیل علیه السلام د اولاد نه لس غلامان ازاد کړي، عمر بن ابي زائده، په واسطه د عبداللّٰه بن ابي اسفر، شعبي، ربیع بن خثیم نه دغه شان روایت کوي. د شعبي بیان دے، ما د ربیع نه تپوس اوکه، چه دا تا د چا نه اوریدلي دي. هغه اووے، د عمرو بن میمون نه. زه عمرو بن میمون له راغلم، او تپوس م ترے اوکه، چه دا تا د چا نه اوریدلي دي، نو هغه اووے، د ابن ابي لیلٰي نه. زه ابن ابي لیلي له راغلم، او تپوس م ترے اوکه، دا تا د چا نه اوریدلي دي، هغه جواب راکه، د ابو ایوب انصاري رضي اللّٰه عنه نه، چه هغه ئے د حضور صلي اللّٰه علیه وسلم نه روایت کوي، او ابراهیم بن یوسف د خپل پلار نه

الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ لَیْلٰی عَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ قَوْلُهٗ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ مُوْسٰی حَدَّثَنَا وُهَیْبٌ عَنْ دَاوُدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ لَیْلٰی عَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اِسْمَاعِیْلُ عَنِ الشَّعْبِیِّ عَنِ الرَّبِیْعِ قَوْلُهٗ وَ قَالَ اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَیْسَرَةَ سَمِعْتُ هِلَالَ بْنَ یَسَافٍ عَنِ الرَّبِیْعِ بْنِ خُثَیْمٍ وَ عَمْرِو بْنِ مَیْمُوْنٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَوْلُهٗ وَ قَالَ الْاَعْمَشُ وَ حُصَیْنٌ عَنْ هِلَالٍ عَنِ الرَّبِیْعِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَوْلُهٗ وَ رَوَاهُ اَبُوْ مُحَمَّدٍ الْحَضْرَمِیُّ عَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

پــه واسطــه د اسحــاق، عـمـرو بـن میمـون، عبد الرحمٰن بن ابي لیلٰي، حضرت ابو ایوب رضي اللّٰـه عنـه نـه د هغـه قول د حضور صلّي اللّٰه علیـه وسلّم نـه نقل کوي. او موسٰي پـه واسطه د وهیب، داؤد، عامر، عبد الرحمٰن، بن ابي لیلٰي، ابو ایوب رضي اللّٰـه عنـه نبي صلّي اللّٰـه علیـه وسلّم نـه روایت کوي. او اسماعیل پـه واسطـه د شعبي، ربیع نـه د هغـه قول نقل کـه. آدم پـه واسطـه د شعبـه، عبد الملک بـن میسره، هلال بـن یساف، ربیع بـن خثیم او عمـرو بن میمون، حضرت ابن مسعود رضي اللّٰـه عنـه نـه د هغه قول نقل کوي. اعمش او حصین، هلال نـه، هغـه ربیع نـه، هغه عبد اللّٰه نـه، د هغه قول نقل کـه. او ابو محمد حضرمي په واسطه د ابو ایوب رضي اللّٰـه عنـه، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي.

## باب ۸۹: فَضْلِ التَّسْبِیْحِ.

## باب ۸۹: د، سبحان اللّٰه: وئیلو د، فضیلت بیان.

**۱۳۲ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَیٍّ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهٖ فِیْ یَوْمٍ مِّائَةَ مَرَّةٍ حُطَّتْ خَطَایَاهُ وَ اِنْ کَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ.

**۱۳۲ :** عبد اللّٰـه بـن مسلمـه، مالک، سمي، ابو صالح، حضرت ابو هریره رضي اللّٰـه عنـه نـه روایت کوي، رسول اللّٰـه صلّي اللّٰـه علیـه وسلّم او فرمائیل، کوم سړے چـه: سبحان اللّٰـه او الحمد للّٰـه: یو ورځ کښې سل ځلـه اووائـي، نو د هغـه ګناه معاف کړے شي. اګر کـه هغـه ګناه د سمندر د ځګ برابرولے نه وي.

**۱۳۳ :** حَدَّثَنَا زُهَیْرُ بْنُ حَرْبٍ

**۱۳۳ :** زهیر بـن حرب، ابـن فضیل، غماره، ابو

حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كَلِمَتَانِ خَفِيْفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيْلَتَانِ فِي الْمِيْزَانِ حَبِيْبَتَانِ اِلَى الرَّحْمٰنِ، سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيْمِ، سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهٖ.

زرعه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، دوه كلمے داسے دي چه په ژبه اسانے (ملكے) دي. ليكن تول كښې وزني دي، او اللّٰه ته خوږے دي، (هغه دا دي): سُبحان اللّٰه العظيم، سُبحان اللّٰه و بحمده.

## بَاب ۹۰ : فَضْلِ ذِكْرِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

باب ۹۰ : د، اللّٰه بزرګ او برتر د، ذكر د فضيلت بيان.

۱۳۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الَّذِيْ يَذْكُرُ رَبَّهٗ وَالَّذِيْ لَا يَذْكُرُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ.

۱۳۴ : محمد بن علاء، ابو اسامه، بريد بن عبد اللّٰه، ابو برده، ابو موسي رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، څوک چه خپل رب يادوي، او كوم چه ئے نه يادوي، د، هغوي مثال د ژوندي او د مړي په شان دے، (يعني خدائے يادونكے ژوندے او نه يادونكے مړے دے).

۱۳۵ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً يَطُوْفُوْنَ فِي الطُّرُقِ يَلْتَمِسُوْنَ اَهْلَ الذِّكْرِ فَاِذَا وَجَدُوْا قَوْمًا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ تَنَادَوْا هَلُمُّوْا اِلٰى حَاجَتِكُمْ قَالَ فَيَحُفُّوْنَهُمْ بِاَجْنِحَتِهِمْ اِلَى السَّمَآءِ الدُّنْيَا قَالَ فَيَسْاَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَ هُوَ

۱۳۵ : قتيبه بن سعيد، جرير، اعمش، ابو صالح، ابو هريرة رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د اللّٰه څه فريښتے دي، چه لارو (راستوں) كښې چكر وهي، او ذكر كونكي لټوي، هر كله چه هغوي يو قوم ذكرُ اللّٰه كښې مشغول اووينې، نو يو بل ته نعرے كړي، چه خپل ضرورت طرف ته راشئ. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هغه فريښتے هغوي په خپلو وزرو كښې پټ كړي، او د، دنيا آسمان ته اورسي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هغوي نه خپل رب تپوس كوي، چه خما بنديان څه كوي، حالانكه هغه ته د هغے فريښتو نه زياته معلومه د د

اَعۡلَمُ مِنۡهُمۡ مَّا يَقُوۡلُ عِبَادِيۡ؟
قَالُوۡا يَقُوۡلُوۡنَ يُسَبِّحُوۡنَكَ وَ يُكَبِّرُوۡنَكَ
وَ يَحۡمَدُوۡنَكَ وَ يُمَجِّدُوۡنَكَ قَالَ
فَيَقُوۡلُ هَلۡ رَاَوۡنِيۡ قَالَ فَيَقُوۡلُوۡنَ
لَا وَاللّٰهِ مَا رَاَوۡكَ قَالَ فَيَقُوۡلُ وَ كَيۡفَ
لَوۡ رَاَوۡنِيۡ قَالَ يَقُوۡلُوۡنَ لَوۡ رَاَوۡكَ كَانُوۡا
اَشَدَّ لَكَ عِبَادَةً وَّ اَشَدَّ لَكَ تَمۡجِيۡدًا وَ
اَكۡثَرَ لَكَ تَسۡبِيۡحًا، قَالَ يَقُوۡلُ فَمَا
يَسۡاَلُوۡنِيۡ قَالَ يَسۡاَلُوۡنَكَ الۡجَنَّةَ
قَالَ يَقُوۡلُ وَ هَلۡ رَاَوۡهَا قَالَ يَقُوۡلُوۡنَ
لَا وَاللّٰهِ يَا رَبِّ مَا رَاَوۡهَا، قَالَ
يَقُوۡلُ، فَكَيۡفَ لَوۡ اَنَّهُمۡ رَاَوۡهَا
قَالَ يَقُوۡلُوۡنَ لَوۡ اَنَّهُمۡ رَاَوۡهَا
كَانُوۡا اَشَدَّ عَلَيۡهَا حِرۡصًا وَّ اَشَدَّ
لَهَا طَلَبًا وَ اَعۡظَمَ فِيۡهَا رَغۡبَةً،
قَالَ فَمِمَّ يَتَعَوَّذُوۡنَ قَالَ يَقُوۡلُوۡنَ
مِنَ النَّارِ قَالَ يَقُوۡلُ وَ هَلۡ
رَاَوۡهَا قَالَ يَقُوۡلُوۡنَ لَا وَاللّٰهِ مَا
رَاَوۡهَا، قَالَ يَقُوۡلُ فَكَيۡفَ لَوۡ
رَاَوۡهَا؟ قَالَ يَقُوۡلُوۡنَ لَوۡ
رَاَوۡهَا كَانُوۡا اَشَدَّ مِنۡهَا فِرَارًا
وَ اَشَدَّ لَهَا مَخَافَةً قَالَ
فَيَقُوۡلُ فَاُشۡهِدُكُمۡ اَنِّيۡ قَدۡ
غَفَرۡتُ لَهُمۡ، قَالَ يَقُوۡلُ مَلَكٌ
مِّنَ الۡمَلَائِكَةِ فِيۡهِمۡ فُلَانٌ لَيۡسَ
مِنۡهُمۡ اِنَّمَا جَاۤءَ لِحَاجَةٍ قَالَ

فريښتې جواب ورکوي، چه هغوي ستا تسبيح او[illegible]
او حمد او لوئي بيانوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم
فرمائيل، اللّٰه پاک فرمائي که هغوي زه ليدلې وې
څه به ئې کولې. فريښتې وائي. که ته ئې ليدلې وې
ستا ډير عبادت به ئې کولو. او ډيره زياته لوئي او پاکي
به ئې بيانوله. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل،
اللّٰه فرمائي، هغوي څما نه څه غواړي، فريښتې وائي،
هغوي تا نه جنت غواړي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او
فرمائيل، اللّٰه د هغوي نه تپوس کوي، ايا هغوي جنت
ليدلې دې، فريښتې وائي، په خدائې چه هغوي خو جنت
نه دې ليدلې. اللّٰه فرمائي، که هغوي جنت ليدلې وې، نو
څه به ئې کولې، فريښتې وائي، که هغوي جنت ليدلې
وې، نو د هغې به ئې ډير زيات حرص کولو، او ډير زيات
به ئې طلب ګار، وو، او هغې ته به ئې زيات رغبت وو.
اللّٰه فرمائي، د څه څيز نه هغوي پناه غواړي، فريښتې به
وائي، د جهنم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او
فرمائيل، اللّٰه فرمائي، ايا هغوي جهنم ليدلې دې، فريښتې
به جواب ورکړي، په خدائې چه هغوي جهنم نه دې
ليدلې. اللّٰه به فرمائي، که هغوي هغه ليدلې وې، نو څه به
ئې کولې، فريښتې به وائي، د هغې نه به ډير زيات
تښتيدل، او ډير زيات به ويريدل. نو حضور صلّي اللّٰه
عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه به فرمائي، زه تاسو ګواه کوم،
چه ما هغوي اوبښل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او
فرمائيل، هغې فريښتو کښې به يوه فريښته وائي. چه
هغوي کښې فلانې سړې هغې ذکر کونکو کښې نه وو،
بلکه هغه څه ضرورت د پاره راغلې وو. اللّٰه به ورته

هُمُ الْجَلَسَآءُ لَا يَشْقٰى بِهِمْ جَلِيْسُهُمْ رَوَاهُ شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ وَ لَمْ يَرْفَعْهُ وَ رَوَاهُ سُهَيْلٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

فرمائي، هغه داسې خلق دي، چه هغوي سره كيناستونكي محرومه كيږي نه. شعبه دا حديث د اعمش نه روايت كه، ليكن مرفوع ئې بيان نه كړلو. او سهيل په واسطه د خپل پلار، هغه د ابو هريره رضي الله عنه، هغه د حضور صلّي الله عليه وسلّم نه دا حديث نقل كه.

**بـاب ٩١ : قَوْلِ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ.**

**باب ٩١ : د، لا حول ولا قوّة الا بالله: ونيلو بيان.**

**١٣٦ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ اَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عَقَبَةٍ اَوْ قَالَ فِيْ ثَنِيَّةٍ قَالَ فَلَمَّا عَلَا عَلَيْهَا رَجُلٌ نَادٰى فَرَفَعَ صَوْتَهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ قَالَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى بَغْلَتِهِ قَالَ فَاِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَ لَا غَائِبًا ثُمَّ قَالَ يَا اَبَا مُوْسٰى اَوْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اَلَا اَدُلُّكَ عَلٰى كَلِمَةٍ مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ قُلْتُ بَلٰى قَالَ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ.

**١٣٦ :** محمد بن مقاتل ابو الحسن، عبد الله، سليمان تيمي، ابو عثمان، حضرت ابو موسٰي اشعري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلم په يوه غونډۍ ختلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دغه وخت په يوه قچره سؤر وو، چه يو سړې په هغې غنډۍ اوختلو، نو هغه په اوچت اواز اووې: لا الٰه الا اللّٰه واللّٰه اكبر: حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو څوک كونړ او غائب نه بلئې، بيائې او فرمائيل، اې ابو موسٰي، يا وې فرمائيل، اې د اللّٰه بنده، ايا زه تا ته داسې يوه كلمه او نه ښائيم، چه د جنت خزانه ده، ما اووې، او. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل: لا حول ولا قوة الا بالله.

**باب ٩٢ : لِلّٰهِ مِائَةُ اسْمٍ غَيْرَ وَاحِدٍ.**

**باب ٩٢ : د اللّٰه تعالٰي يو كم سل (٩٩) نومونه دي.**

**١٣٧ :** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ

**١٣٧ :** علي بن عبد اللّٰه، سفيان، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دې. د اللّٰه تعالٰي يو كم سل (٩٩)

رِوَايَةً قَالَ: لِلّٰهِ تِسْعَةٌ وَّ تِسْعُوْنَ اِسْمًا مِـائَةٌ اِلَّا وَاحِدٌ لَا يَحْفَظُهَا اَحَدٌ اِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ وَ هُوَ وَتْرٌ يُحِبُّ الْوَتْرَ.

نومونه دي. څوک چه دا زباني ياد کړي، هغه به جنت له ځي. او اللّٰه تعالٰي وتر دے. او وتر خوښوي.

**ف**: وتر: هغه عدد چه په دوو پوره تقسيم نشي. تنها. يوازے. يو.

(۲) هغه درے رکعته واجب مونځ چه د ماسختن د فرض او سنتو کښې پس کولے شي.

(۳) څوک چه آسمائے حسنٰي يعني د، اللّٰه پاک يو کم سل (۹۹) نومونه ياد کړي، نو جنت له به ځي. راشئے دا ياد کړئے او جنت له ځئے. دا غنيمت د لاس نه مه او کاږئے.

(۴) په آسمائے حسنٰي سوال هم قبليږي، نو ولے ترے فيض نه اخلے. (اللّٰه پاک دے خمونږ د ټولو د آسمائے حسنٰي فيوضات او برکات نصيب کړي. اللّٰهم آمين). (محمد عباس)

## باب ۹۳: اَلْمَوْعِظَةِ سَاعَةً بَعْدَ سَاعَةٍ.

## باب ۹۳: څه وقفے سره د، وعظ کولو بيان.

**۱۳۸**: حَدَّثَنَا عُمَرُوْ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ قَالَ كُنَّا نَنْتَظِرُ عَبْدَ اللّٰهِ اِذْ جَآءَ يَزِيْدُ بْنُ مُعَاوِيَةَ فَقُلْنَا اَلَا تَجْلِسُ قَالَ لَا وَ لٰكِنْ اَدْخُلُ فَاُخْرِجُ اِلَيْكُمْ صَاحِبَكُمْ وَ اِلَّا جِئْتُ اَنَا فَجَلَسْتُ فَخَرَجَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ هُوَ اٰخِذٌ بِيَدِهٖ فَقَامَ عَلَيْنَا فَقَالَ اَمَّا اِنِّيْ اُخْبَرُ بِمَكَانِكُمْ وَ لٰكِنَّهٗ يَمْنَعُنِيْ مِنَ الْخُرُوْجِ اِلَيْكُمْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ فِي الْاَيَّامِ كَرَاهِيَّةَ السَّاٰمَةِ عَلَيْنَا.

**۱۳۸**: عمرو بن حفص، حفص، اعمش، شقيق نه روايت کوي، مونږ خلقو د، عبد اللّٰه بن مسعود رضي اللّٰه عنه انتظار کولو، يزيد بن معاويه راغے. مونږ اووے، ايا ته نه کينے. هغه اووے، نه. بلکه زه دننه ځم، او تاسوله ستاسو ملګرے راولم، کني زه به راشم، او کينم (اوربيٹھ جاؤں گا) نو عبد اللّٰه بن مسعود رضي اللّٰه عنه راووتلو، او هغه د يزيد بن معاويه لاس نيولے وو. هغه خمونږ خلقو مخکښې اودريدلو. او وئيلے. چه زه دلته ستاسو خلقو د موجودګي نه خبر ووم، ليکن کوم ځيز. چه زه بهرته د، راوتلو نه منع کولم، هغه صرف دا خيال وو. چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم به مونږ ته وعظ کولو کښې د دے خبرے خيال ساتلو، چه چرته خمونږ د ستومانتے سبب جوړ نشي، چه د حضور علّي اللّٰه عليه وسلّم دا خبره ناخوښه وه.

**يوه دُعا**: يا اللّٰه، د دے دعاګانو په خاطر خمونږ ستا رضا، ستا ديدار، او، ته نصيب شے. او په قلعه د: لا اله الا اللّٰه محمد الرسول اللّٰه: کښې زمونږ ستا پناه، ستا امن و امان، ستا حفاظت، ستا سلامتي او عافيت نصيب کړے. اللّٰهم آمين.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

# كِتَابُ الرِّقَاقِ

بَـاب ۹۴ : مَـا جَـآءَ فِـي الـرِّقَـاقِ وَ اَنْ لَّا عيـشَ اِلَّا عيـشُ الْاٰخِرَةِ.

۱۳۹ : حَـدَّثَـنَـا الْـمَـكِّيُّ بْنُ اِبْـرَاهِيْـمَ اَخْبَـرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ هُـوَ ابْـنُ اَبِـيْ هِنْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِـيَ الـلّٰـهُ عَـنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ: نِـعْمَتَـانِ مَـغْبُـوْنٌ فِيْهِمَا كَثِيْرٌ مِّنَ الـنَّـاسِ الـصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ. قَالَ عَبَّاسُ الْعَنْبَرِيُّ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيْسٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ هِنْدٍ عَنْ اَبِيْـهِ سَـمِـعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِـيِّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

۱۴۰ : حَـدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَـدَّثَـنَـا غُـنْـدُرٌ حَـدَّثَـنَـا شُعْبَةُ عَنْ مُـعَاوِيَةَ بْـنِ قُرَّةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اَللّٰهُمَّ لَا عَيْـشَ اِلَّا عَيْـشُ الْاٰخِـرَةِ فَاَصْلِحِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةَ.

۱۴۱ : حَـدَّثَـنِـيْ اَحْـمَـدُ بْـنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

# كتاب (د زړه نرمونكو خبرو بيان)

بــاب ۹۴ : د زړه نــرم كــونكــو خبـرو بيــان او دا چــه د آخــرت ژونــد، ژونــد دے.

۱۳۹ : مكي بن ابراهيم، عبد اللّٰه بن سعيد بن ابي هند، سعيد بن ابي هند، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دوه (۲) نعمتونه داسے دي، چه اكثر خلق د هغے قدر نه كوي، (۱) يو تندرستي او (۲) فراغت. عباس عنبري دا په واسطه د صفوان بن عيسٰي، عبد اللّٰه بن سعيد بن بن ابي هند، سعيد بن ابي هند، ابن عباس رضي اللّٰه عنه، د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دغه شان روايت كوي.

۱۴۰ : محمد بن بشار، غندر، شعبه، معاويه بن قره، حضرت انس رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اے اللّٰه، د آخرت ژوند ژوند دے، په دے وجه انصار او مهاجرين روغ لرے.

۱۴۱ : احمد بن مقدام. فضيل بن سليمان. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي رضي اللّٰه عنه نه

حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ السَّاعِدِيُّ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَنْدَقِ وَهُوَ يَحْفِرُ وَ نَحْنُ نَنْقُلُ التُّرَابَ وَ يَمُرُّ بِنَا فَقَالَ اَللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ اِلَّا عَيْشُ الْاٰخِرَةِ فَاغْفِرْ لِلْاَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ تَابَعَهُ سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

روایت کوي. د هغه بیان دے، مونږ خلق غزوږ خندق کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم سره وو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلم مزک کنوله، او مونږه خاوره لرې کوله. او حضور صلي اللّٰه علیه وسلم په مونږ تیریدلو نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل، یا اللّٰه، د اخرت ژوند ژوند دے، په دے وجه انصار او مهاجرین او ښنې.

باب ۹۵: مَثَلِ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى: اِنَّمَا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَ لَهْوٌ وَّ زِيْنَةٌ وَ تَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَ تَكَاثُرٌ فِي الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًا ثُمَّ يَكُوْنُ حُطَامًا وَّ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيْدٌ وَّ مَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَان وَ مَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ.

باب ۹۵: اخرت کښې د دنیا مثال (څنګه دے) او د اللّٰه تعالیٰ قول، چه دنیاوي ژوند لوبې ټوقې دي، او زینت دے، او په یو بل فخر کول، او زیات مال او اولاد طلب کول دي، لکه د یو باران حالت واخله چه د هغې سبزه په زمیندارو ښه لږي. بیا په زور راشي، بیا چه ګورې ورته، نو زیړه شوې وي. بیا میده شوي وابنه ترې جوړ شي. او اٰخرت کښې سخت عذاب دے، او د اللّٰه نه معافي هم ده، او رضامندي هم، او د، دنیا ژوند چه دے، نو دا د، دهوکې یوه سرمایه ده.

۱۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَ مَا فِيْهَا وَ لَغَدْوَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا.

۱۴۲: عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزیز بن ابي حازم. ابو حازم. سهل نه روایت کوي. د هغه بیان دے ما د نبي صلي اللّٰه علیه وسلم نه واوریدل. جنت کښې د، یوې کوړې ځائے د، دنیا او د، دنیا د ټولو څیزونو نه بهتر دے، او د اللّٰه په لار کښې سحر یا مابنام وخت تلل، د، دنیا او د، دنیا د ټولو څیزونو نه بهتر دي. (لکه یو د هغې نه تبلیغ واخله).

باب ۹۶: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى

باب ۹۶: د نبي صلي اللّٰه علیه وسلم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيْبٌ أَوْ عَابِرِ سَبِيْلٍ.

فرمائيل، دنيا كښې داسې اوسه، ګويا مسافر يا په لاره تيريدونکې ئې.

**١۴٣:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَبُو الْمُنْذِرِ الطُّفَاوِيُّ عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ أَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْكِبَيَّ فَقَالَ كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيْبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيْلٍ وَ كَانَ بْنُ عُمَرَ يَقُوْلُ إِذَا أَمْسَيْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ وَ إِذَا أَصْبَحْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ وَ خُذْ مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ وَمِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ.

**١۴۴:** علي بن عبدالله. محمد بن عبدالرحمٰن ابوالمنذر طفاوي. سليمان اعمش. مجاهد. عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ځما اوږه (مونډها) اونيوله، وې فرمائيل، ته په دنيا کښې داسې اوسه ګويا ته مسافر، يا لار وهونکې ئې. او ابن عمر رضي الله عنه وئيلې. چه ماښام شي، نو د سحر انتظار مه کوه، او کله چه سحر شي، نو د ماښام انتظار مه کوه. او د خپل صحت د اوقاتونه د خپل مرض د وخت د پاره حصه واخله. (يعني د خپل صحت زمانه کښې دومره عبادت اوکړه. که مرض کښې څه کمې راشي نو هغه پوره کړې شي) او د خپل ژوند د وخت نه د خپل مرګ د پاره څه حصه واخله).

**باب ٧٩:** فِي الْأَمَلِ وَ طُوْلِهِ وَ قَوْلِهِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَ أُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوْا وَ يَتَمَتَّعُوْا وَ يُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ وَ قَالَ عَلِيٌّ ارْتَحَلَتِ الدُّنْيَا مُدْبِرَةً وَّ ارْتَحَلَتِ الْاٰخِرَةُ مُقْبِلَةً وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بَنُوْنَ فَكُوْنُوْا مِنْ أَبْنَاءِ الْاٰخِرَةِ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا فَإِنَّ الْيَوْمَ عَمَلٌ وَّ لَا حِسَابَ وَ غَدًا حِسَابٌ وَلَا عَمَلٌ. بِمُزَحْزِحِهِ: بِمُبَاعِدِهِ.

**باب ٧٩:** اميد او د هغې د، درازي بيان، او د الله تعالٰي قول، کوم سړې چه د جهنم نه بچ کړې شو، او جنت کښې داخل کړې شو، نو هغه کامياب شولو. او دنياوي ژوند صرف د، دهوکې سامان دې. دوي پريږده. چه خوري او فايده حاصله کړي، او د عمر د اوږدوالي اميد هغوي د، ايمان نه منع کوي. دوي ته به عنقريب معلومه شي. او حضرت عليؓ اوفرمائيل، دنيا شا کرځونکې ده، او آخرت راتلونکې دې. او هغوي کښې هر يو د پاره فرزند دې نو، تاسو د آخرت فرزند جوړ شئې، د، دنيا فرزند مه جوړيږئې. ځکه چه نن د عمل ورځ ده، د حساب نه ده، او صبا له به د حساب ورځ وي، د عمل به نه وي. مزحزحه: د مباعده په معني دې.

۱۴۴: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ مُنْذِرٍ عَنْ رَّبِيْعِ بْنِ خَيْثَمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ خَطَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطًّا مُّرَبَّعًا وَّ خَطَّ خَطًّا فِي الْوَسَطِ خَارِجًا مِنْهُ وَ خَطَّ خُطَطًا صِغَارًا اِلٰى هٰذَا الَّذِيْ فِي الْوَسَطِ مِنْ جَانِبِهِ الَّذِيْ فِي الْوَسَطِ وَ قَالَ هٰذَا الْاِنْسَانُ وَ هٰذَا اَجَلُهُ مُحِيْطٌ بِهِ اَوْ قَدْ اَحَاطَ بِهِ وَ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ خَارِجٌ اَمَلُهُ وَ هٰذِهِ الْخُطَطُ الصِّغَارُ الْاَعْرَاضُ فَاِنْ اَخْطَاَهُ هٰذَا نَهَشَهُ هٰذَا وَ اِنْ اَخْطَاَهُ هٰذَا نَهَشَهُ هٰذَا

۱۴۴: صدقه بن فضل. يحيٰي. سفيان. د سفيان پلار. منذر. ربيع بن خيثم. عبدالله نه روايت كوي. نبي صلي الله عليه وسلم يو شكل د څلورو خطو (كرښو) جوړ كړلو. او هغې كښې ئې يو خط راښكلو، چه د هغې نه بهر وتلے وو. او د هغې دواړه طرف ته ئې وړے وړے كرښے هغې طرف ته جوړے كړے، كومه حصه چه د هغې مربعې مينځ كښ وه. او وے فرمائيل، دا سړے دے او دا د هغه مرګ دے. چه هغه ئې راګير كړے دے. او كوم خط چه بهر ته وتلے دے د هغه اوږدے ارزو ګانې او اميدونه دي. او دا وړے وړے كرښې اعراض او مصائب دي كه د يو نه بچ شو، او وتلو، نو بل كښې اونښتلو، او كه د هغې نه اووتلو نو بل كښې اونښتلو (د هغې شكل ؛؛ دے).



۱۴۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ خَطَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطُوْطًا فَقَالَ هٰذَا الْاَمَلُ وَ هٰذَا اَجَلُهُ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذٰلِكَ اِذْ جَآءَهُ الْخَطُّ الْاَقْرَبُ.

۱۴۵: مسلم. همام. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه. حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم څو خطونه (كرښے) راښكلے اووے فرمائيل، دا د انسان اوږده اميدونه دي. او دا د هغه مرګ دے. او هغه ددے اميد حالت كښې اوسي، چه دے كښې پرے مرګ راشي.

## بَابُ ۹۸: مَنْ بَلَغَ سِتِّيْنَ سَنَةً فَقَدْ اَعْذَرَ اللّٰهُ اِلَيْهِ فِي الْعُمُرِ لِقَوْلِهِ اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَ جَآءَكُمُ النَّذِيْرُ.

## باب ۹۸: د كوم سړي عمر چه شپيته كاله شي، نو الله تعالي به د عمر متعلق د هغه عذر قبول نه كړي.

ځكه چه الله او فرمائيل، آيا مونږ تاته هغه عمر درنه كړلو چه چا دے كښې نصيحت حاصلول غوښتل نو حاصلولے ئې شو، او تاسو ته ويرونكے هم راغے.

۱۴۶: حَدَّثَنِي عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ مَعْنِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْغِفَارِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ أَبِيْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَعْذَرَ اللّٰهُ إِلَى امْرِئٍ أَخَّرَ أَجَلَهُ حَتَّى بَلَّغَهُ سِتِّيْنَ سَنَةً تَابَعَهُ أَبُوْ حَازِمٍ وَّابْنُ عَجْلَانَ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ.

۱۴۶: عبدالسلام بن مطهر. عمر بن علي. معن بن محمد غفاري. سعيد بن ابي سعيد مقبري. حضرت ابوهريره رضي الله عنه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، اللّٰه تعالي چه چاله اوږد عمر ورکړلو، تردې چه هغه شپيتو کالوته اورسيدو، نو اللّٰه د، هغه عذر نه قبلوي. ابو حازم او ابن عجلان ددې متابعت کښ د سعيد مقبري نه روايت کړے دے.

۱۴۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا أَبُوْ صَفْوَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَزَالُ قَلْبُ الْكَبِيْرِ شَابًّا فِي اثْنَتَيْنِ فِي حُبِّ الدُّنْيَا وَ طُوْلِ الْأَمَلِ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُوْنُسُ وَابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيْدٌ وَ أَبُوْ سَلَمَةَ.

۱۴۷: علي بن عبداللّٰه. ابو صفوان. عبداللّٰه بن سعيد. يونس. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل، د بوډا زړه هميشه دوو خبرو کښ خوان وي. (۱) د دنيا محبت او (۲) د اميد درازي (اوږدوالے). ليث اووے. ماته يونس بيان اوکه. او بان وهب د، يونس نه په واسطه د ابن شهاب، سعيد، او ابو سلمه روايت که.

۱۴۸: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْبَرُ ابْنُ آدَمَ وَ يَكْبَرُ مَعَهُ اثْنَانِ حُبُّ الْمَالِ وَ طُوْلُ الْعُمُرِ رَوَاهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ.

۱۴۸: مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، سړے لوئيږي، او د هغه دوه خيزونه هم لوئيږي، يو د، مال محبت. او بل د عمر درازي (اوږدوالے). شعبه دا د قتاده نه روايت که.

بـاب ۹۹: الْعَمَلِ الَّذِيْ يُبْتَغٰى بِهِ وَجْهُ اللّٰهِ فِيْهِ سَعْدٌ.-

باب ۹۹: د هغې عمل بيان، چه صرف د خدائې د خوشنودي د پاره اوکړې شي. دې باب کښې د سعد روايت دې.

۱۴۹: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ اَسَدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ وَ زَعَمَ مَحْمُوْدٌ اَنَّهُ عَقَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ وَ عَقَلَ مَجَّةً مَجَّهَا مِنْ دَلْوٍ كَانَتْ فِيْ دَارِهِمْ قَالَ سَمِعْتُ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ الْاَنْصَارِيَّ ثُمَّ اَحَدَ بَنِيْ سَالِمٍ قَالَ غَدَا عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَنْ يُوَافِيَ عَبْدٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِهِ وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ.

۱۴۹: معاذ بن اسد. عبداللّٰه. معمر. زهري. محمود بن ربيع رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. او محمد بن ربيع بيان اوکه، ماته ياد دي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خمونږ د کور بورقې (ډول) نه ئې اوبه واخستې او خوله ئې کنګاله کړه د محمود بيان دې ما د عتبان بن مالک انصاري نه واوريدل هغه اووې، ما پله رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم تشريف راوړلو. او وې فرمائيل، چه کوم بنده: لا الٰه الا اللّٰه: صرف د اللّٰه تعالٰي د رضامندي حاصلولو د پاره اووې، نو د قيامت په ورځ به په هغه د جهنم اور حرام وي.

۱۵۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَمْرٍو وَ عَنْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى مَا لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ عِنْدِيْ جَزَآءٌ اِذَا قَبَضْتُ صَفِيَّهُ مِنْ اَهْلِ الدُّنْيَا ثُمَّ احْتَسَبَهُ اِلَّا الْجَنَّةَ.

۱۵۰: قتيبه. يعقوب بن عبدالرحمٰن. عمرو. سعيد مقبري. حضرت ابوهريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي فرمائي، هر هر کله چه زه د، يو مؤمن بنده محبوب څيز د، دې دنيا نه واخلم، بيا هغه د، ثواب په نيت صبر اوکړي، نو د هغه بدله جنت ده.

باب ۱۰۰: مَا يُحْذَرُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَ التَّنَافُسِ فِيْهَا.

باب ۱۰۰: د، دنيا د زينت نه د بچ کيدو او هغې طرف ته د رغبت کولو بيان.

يَمْنَحُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَبْيَاتِهِمْ فَيَسْقِيْنَاهُ.

حضور صلّي اللّٰـه عليه وسلّم بـه هغه پـه مونږ خلقو څکول.

۱۸۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْ اٰلَ مُحَمَّدٍ قُوْتًا.

۱۸۵ : عبد اللّٰـه بن محمد، محمد بن فضيل، فضيل، عماره، ابو زرعه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم دعا اوكړله. اے اللّٰه، آل محمد صلّي الله عليه وسلّم له قوت لا يموت وركړے (يعني دومره چه هغې سره ګذاره قدرے اوكړے شي).

باب ۱۱۱ : اَلْقَصْدِ وَالْمُدَاوَمَةِ عَلَى الْعَمَلِ.

باب ۱۱۱ : اعتدال او عمل باندے د هميشكي كولو بيان.

۱۸۶ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَشْعَثَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ مَسْرُوْقًا قَالَ سَاَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَيُّ الْعَمَلِ كَانَ اَحَبَّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتِ الدَّائِمُ قَالَ قُلْتُ فَاَيَّ حِيْنٍ كَانَ يَقُوْمُ قَالَتْ كَانَ يَقُوْمُ اِذَا سَمِعَ الصَّارِخَ.

۱۸۶ : عبدان، د عبدان پلار، شعبه، اشعث د خپل پلار نه، هغه د مسروق نه، هغه د بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت كوي، وائي، ما د بي بي عائشے رضي الله عنها نه تپوس اوكه، چه كوم عمل د الله په نزد زيات محبوب دے. هغے اووے، هغه عمل كوم چه هميشه اوكړے شي. د مسروق بيان دے. بيا ما تپوس اوكه، چه تهجد د پاره به كوم وخت پاسيدلو، نو هغے اووے، هغه وخت چه د چرګ اذان به ئے واوريدلو.

۱۸۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ قَالَ اَحَبُّ الْعَمَلِ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ يَدُوْمُ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ.

۱۸۷ : قتيبه، مالك، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت كوي، هغے اووے، رسول اللّٰـه صلّي اللّٰـه عليه وسلم ته د ټولو نه زيات محبوب هغه عمل وو، چه په هغے سره هميشكي كوي.

۱۸۸ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ

۱۸۸ : آدم، ابن ابي ذئب، سعيد مقبري، ابو هريره رضي اللّٰـه عنه نه روايت كوي، رسول الله صلّي اللّٰـه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو كښ به هيڅوا ته د هغه

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يُّنَجِّيَ اَحَدًا مِّنْكُمْ عَمَلُهُ قَالُوْا وَ لَا اَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَ لَا اَنَا اِلَّا اَنْ يَّتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ بِرَحْمَةٍ سَدِّدُوْا وَ قَارِبُوْا وَاغْدُوْا وَ رُوْحُوْا وَ شَيْءٌ مِّنَ الدُّلْجَةِ وَالْقَصْدَ الْقَصْدَ تَبْلُغُوْا.

عمل نجات نه ورکوي. خلقو تپوس اوکه: تاسو ته هم نه، يا رسول اللّٰه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. ما ته هم نه، خو دا چه اللّٰه ما خپل رحمت سره پټ کړي (يعني خپل رحمت را باندے او کړي) خپل قول و فعل کښې ميانه روي اختيار کړئے. او اللّٰه سره قربت اختيار کړئے. او سحر ماښام او د شپے اخري حصه کښې (عبادت د پاره) راوځئے. اعتدال اختيار کړئے. اعتدال، نو منزل مقصود ته به اورسئے.

ف: يا اللّٰه، دے منزل مقصود ته مونږ په خير اورسوے. اللّٰهم اٰمين.

۱۸۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ مُوْسٰى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَدِّدُوْا وَ قَارِبُوْا وَاعْلَمُوْا اَنْ لَّنْ يُّدْخِلَ اَحَدَكُمْ عَمَلُهُ الْجَنَّةَ وَ اَنَّ اَحَبَّ الْاَعْمَالِ اَدْوَمُهَا اِلَى اللّٰهِ وَ اِنْ قَلَّ.

۱۸۹: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، سليمان، موسي بن عقبه، سلمه بن عبد الرحمن، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها نه روايت کوي، د هغے بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اعمالو کښې ميانه روي اختيار کړے. او د اللّٰه قربت حاصل کړئے. او پوه شئ، چه تاسو کښې هيڅوک به د هغه عمل جنت، کښې داخل نه کړي، او د اللّٰه په نزد غوريز عمل هغه دے، چه هميشه او کړے شي. اګر که کم وي.

ف: هر څوک چه اللّٰه غواړي، د هغه په فضل به جنت له خي، په خپل عمل نيازيدل نه دي پکار. اللّٰه پاک دے خمونږ د هغه رحمت او فضل نصيب کړے. اللّٰهم اٰمين.

۱۹۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْاَعْمَالِ اَحَبُّ اِلَى اللّٰهِ قَالَ اَدْوَمُهَا وَ اِنْ قَلَّ وَ قَالَ اِكْلَفُوْا

۱۹۰: محمد بن عرعره، شعبه، سعد بن ابراهيم، ابو سلمه، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغے بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه چا تپوس اوکه، کوم عمل د اللّٰه تعالٰي ډير زيات خوښ دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هغه عمل چه هميشه او کړے شي، اګر که کم وي. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د هغے اعمالو پابندي کوئے،

مِنَ الْاَعْمَالِ مَا تُطِيْقُوْنَ.

۱۹۱: حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ سَاَلْتُ اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ عَائِشَةَ قُلْتُ يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ كَيْفَ كَانَ عَمَلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ كَانَ يَخُصُّ شَيْئًا مِّنَ الْاَيَّامِ قَالَتْ لَا كَانَ عَمَلُهُ دِيْمَةٌ وَ اَيُّكُمْ تَسْتَطِيْعُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَطِيْعُ.

۱۹۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الزِّبْرِقَانِ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَدِّدُوْا وَ قَارِبُوْا وَ اَبْشِرُوْا فَاِنَّهُ لَا يُدْخِلُ اَحَدًا نِ الْجَنَّةَ عَمَلُهُ قَالُوْا وَ لَا اَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَ لَا اَنَا اِلَّا اَنْ يَتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ بِمَغْفِرَةٍ وَّ رَحْمَةٍ قَالَ اَظُنُّهُ عَنْ اَبِي النَّضْرِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَ قَالَ عَفَّانُ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ

چه د هغې تاسو طاقت لرئې.

۱۹۱: عثمان بن ابي شيبه، جرير، منصور، ابراهيم، علقمه نه روايت كوي، د هغه بيان دې. ما ام المؤمنين بي بي عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوكړ: اې ام المؤمنين. د حضور صلي الله عليه وسلم څه طريقه وه، آيا څه ورځ د عبادت د پاره مخصوص وه. هغې، جواب راكه، نه. بلكه د حضور صلي الله عليه وسلم عمل كښې هميشګي وه، او تاسو كښې كوم سړې كولې شي، څه چه نبي صلي الله عليه وسلم كولې شو (يعني د پيغمبر هومره طاقت د بل چا نشي كيدې او نه هغه هومره اخلاص د بل چا كيدې شي).

۱۹۲: علي بن عبد الله، محمد بن زبرقان، موسى بن عقبه، ابو سلمه بن عبد الرحمن، بي بي عائشهؓ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، اعمالو كښې ميانه روي اختيار كړئې. او د، الله قربت حاصل كړئې. او تاسو ته دې خوشخبري وي، چه د چا عمل ځوك نشي رسولې. خلقو تپوس اوكه، تاسو هم نه، يا رسول الله. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، او، ما هم نه، خو دا چه الله م د بخشش او مهرباني په سوري كښې پټ كړي. علي بن عبد الله اووې. زه ګمان كوم چه دا حديث د، ابو النضر نه منقول دې. هغه د، ابو سلمه نه، هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها نه نقل اوكه، او عفان اووې، ما ته وهيب په واسطه د، موسى بن عقبه، ابو سلمه، بي بي عائشه رضي الله عنها، نبي صلي الله عليه وسلم نه حديث نقل كه. حضور صلي الله عليه وسلم او

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَدِّدُوْا وَ اَبْشِرُوْا وَ قَالَ مُجَاهِدٌ سَدَادًا سَدِيْدًا صِدْقًا.

فرمائيل: اعتدال اختيار کړئ او د ثواب خوش خبري حاصله کړئ. او مجاهد اووئ: سداد او سديدا د صدقا په معنٰي کښې دي يعني اخلاص سره عبادت کوئ.

۱۹۳: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى لَنَا يَوْمًا الصَّلٰوةَ ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَاَشَارَ بِيَدِهٖ قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ قَدْ اُرِيْتُ الْاٰنَ مُنْذُ صَلَّيْتُ لَكُمُ الصَّلٰوةَ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ مُمَثَّلَتَيْنِ فِيْ قُبُلِ هٰذَا الْجِدَارِ فَلَمْ اَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ فَلَمْ اَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ.

۱۹۳: ابراهيم بن منذر، محمد بن فليح، هلال بن علي، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي. ما د هغه نه واوريدل رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته يو ورځ مونځ راکړلو. بيائے منبر ته تشريف يوړلو. بيائے خپل لاس سره قبله مسجد طرف ته اشاره کولو سره او فرمائيل: اوس چه ما تاسو ته مونځ درکولو، نو د دے ديوال مخے ته ماته جنت او دوزخ اوښودلے شو. ما د نن ورځ په شان هيڅ خير او شر نه دے ليدلے.

## بَاب ۱۱۲: الرَّجَاءِ مَعَ الْخَوْفِ

وَ قَالَ سُفْيَانُ مَا فِي الْقُرْاٰنِ اٰيَةٌ اَشَدُّ عَلَيَّ مِنْ لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِنْ رَّبِّكُمْ.

باب ۱۱۲: خوف سره د اُميد بيان. سفيان اووئ: د قران د دے ايت نه زيات د هيڅ ايت نه خمونږ خوف نه کيږي (هغه ايت دا دے) لستم علي شيء حتي تقيموا التورة والانجيل و ما انزل اليكم من ربكم.

۱۹۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَمْرِو بْنِ اَبِيْ عَمْرٍو وَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ

۱۹۴: قتيبه بن سعيد، يعقوب بن عبد الرحمٰن، عمرو بن ابي عمرو، سعيد بن ابي سعيد مقبري، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے: ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل: الله تعالي چه په کومه ورځ

الرَّحْمَةَ يَوْمَ خَلَقَهَا مِائَةَ رَحْمَةٍ فَأَمْسَكَ عِنْدَهُ تِسْعًا وَّ تِسْعِيْنَ رَحْمَةً وَّ أَرْسَلَ فِيْ خَلْقِهٖ كُلِّهِمْ رَحْمَةً وَّاحِدَةً فَلَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ بِكُلِّ الَّذِيْ عِنْدَ اللّٰهِ مِنَ الرَّحْمَةِ لَمْ يَيْأَسْ مِنَ الْجَنَّةِ وَ لَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ بِكُلِّ الَّذِيْ عِنْدَ اللّٰهِ مِنَ الْعَذَابِ لَمْ يَأْمَنْ مِنَ النَّارِ.

رحمت پيدا كړلو، نو په هغه ورځ ئې د هغې سل (۱۰۰) حصې كړې يو كم سل (۹۹) حصې ئې خان سره او ساتلې، او يو حصه ئې خپل ټول مخلوق ته اوليږله. كه كافرو د اللّٰه تعالیٰ ټول رحمت پيژندلې وې، نو د جنت نه به نااميده شوې نه وو. او كه ايمان دار د اللّٰه تعالیٰ جل جلاله پوره عذاب او پيژني، نو هيڅكله به د جهنم نه بې خوفه نه شي.

**باب ۱۱۳ : الصَّبْرِ عَنْ مَحَارِمِ اللّٰهِ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُوْنَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ وَ قَالَ عُمَرُ وَجَدْنَا خَيْرَ عَيْشِنَا بِالصَّبْرِ.**

**باب ۱۱۳ :** د محرمات الٰهيه نه د، منع كيدو بيان (د اللّٰه تعالیٰ قول چه) صبرناكو ته به د هغوي اجر بې حسابه وركيږي. او حضرت عمر اووې، مونږ بهتر ژوند صبر كښې بيامند.

**۱۹۵ :** حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَطَاءُ ابْنُ يَزِيْدَ أَنَّ أَبَا سَعِيْدٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أُنَاسًا مِّنَ الْأَنْصَارِ سَأَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَسْأَلْهُ أَحَدٌ مِّنْهُمْ إِلَّا أَعْطَاهُ حَتّٰى نَفِدَ مَا عِنْدَهُ فَقَالَ لَهُمْ حِيْنَ نَفِدَ كُلُّ شَيْءٍ بِيَدِهٖ مَا يَكُنْ عِنْدِيْ مِنْ خَيْرٍ لَّا أَدَّخِرُهُ عَنْكُمْ وَ إِنَّهُ مَنْ يَّسْتَعِفَّ يُعِفَّهُ اللّٰهُ وَ مَنْ يَّتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللّٰهُ وَ مَنْ يَّسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللّٰهُ وَ لَنْ تُعْطَوْا عَطَاءً خَيْرًا وَّ أَوْسَعَ مِنَ الصَّبْرِ.

**۱۹۵ :** ابو اليمان، شعيب، زهري، عطاء بن يزيد، ابو سعيد نه بيان اوكه، د انصارو څه خلقو د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه څه څيز اوغوښتلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هر چاله له څه نه څه وركړل، تر دې چه څه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره وو، هغه ختم شو. هغې نه پس حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ماټول څيزونه خرچ كړل. اوس ما سره هيڅ مال پاتې نه شو، زه تاسو نه څه څيز پټ نه اړدم، تاسو كښې چه كوم سړې د سوال نه بچ كيدل غواړي، نو اللّٰه تعالیٰ هغه بچ كوي. او كوم سړې چه صبر كول غواړي، اللّٰه تعالیٰ هغه له صبر وركوي، او كوم سړې چه استغنې ظاهروي، اللّٰه هغه غني كوي. او د صبر نه بهتر او وسيع هيڅ څيز تاسو ته نه دې دركړې شوې.

**ف :** يا اللّٰه، خمونږ د ټولو د ال و اولاد سره د سوال نه بچ كيدل، صبر او استغنې نصيب كړې. اللّٰهم امين.

۱۹۶: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عِلَاقَةَ قَالَ سَمِعْتُ الْمُغِيْرَةَ بْنَ شُعْبَةَ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ حَتّٰى تَرِمَ اَوْ تَنْتَفِخَ قَدَمَاهُ فَيُقَالُ لَهُ فَيَقُوْلُ اَفَلَا اَكُوْنَ عَبْدًا شَكُوْرًا.

۱۹۶: خلاد بن يحيي' مسعر' زياد بن علاقه' مغيره بن شعبه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. نبي صلي الله عليه وسلّم به مونځ كولو' تر دے چه پښے مبارکے به ئے اوپړسيدے' د دے متعلق حضور صلي الله عليه وسلّم ته اووئيلے شو' تاسو دومره تكليف ولے كوئے' حضور صلي الله عليه وسلّم به ورته فرمائيل' ايا زه دے شكر ګذار بنده جوړ نه شم.

ف: ډيرو احساناتو' اكراماتو او انعاماتو سره ډير شكر ګذار جوړيدل پكار دي.

باب ۱۱۴: وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهُ. قَالَ الرَّبِيْعُ بْنُ خُثَيْمٍ مِنْ كُلِّ مَا ضَاقَ عَلَى النَّاسِ.

باب ۱۱۴: كوم سړے چه په الله بهروسه كوي' هغه ورله كافي دے.

۱۹۷: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ حُصَيْنَ ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ كُنْتُ قَاعِدًا عِنْدَ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَقَالَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ اُمَّتِيْ سَبْعُوْنَ اَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ هُمُ الَّذِيْنَ لَا يَسْتَرْقُوْنَ وَلَا يَتَطَيَّرُوْنَ وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ.

۱۹۷: اسحاق' روح بن عباده' شعبه' حصين بن عبد الرحمن نه روايت كوي. د هغه نه ئے واوريدل' زه سعيد بن جبير سره ناست ووم' هغه د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل اوكه' حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل' څما امت كښې به اويا زره (۷۰۰۰۰) سړي جنت ته بے حسابه داخليږي' دا هغه خلق دي' چه جنتر منتر نه كوي' او نه بدفالي كوي' او په خپل رب بهروسه كوي. (الله پاک دے مونږ هم د' دوي نه كړي. اللّٰهم امين).

باب ۱۱۵: مَا يُكْرَهُ مِنْ قِيْلٍ وَقَالٍ.

باب ۱۱۵: د' قيل و قال د مكروه كيدو بيان.

۱۹۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْهُمْ مُغِيْرَةُ وَفُلَانٌ وَرَجُلٌ ثَالِثٌ اَيْضًا عَنِ الشَّعْبِيِّ عن وَرَّادٍ كَاتِبِ

۱۹۸: علي بن مسلم' هشيم د متعدد سړو نه چه هغوي كښې مغيره او فلانے او د يو دريم سړي نه' هغه د شعبي نه' شعبي د وراد' كاتب د مغيره نه نقل اوكه' او معاويه رضي الله عنه' مغيره ته اوليكل'

الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ اَنَّ مُعٰوِيَةَ كَتَبَ اِلَى الْمُغِيرَةِ اَنِ اكْتُبْ اِلَيَّ بِحَدِيثٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَكَتَبَ اِلَيْهِ الْمُغِيرَةُ اَنِّيْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ عِنْدَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلٰوةِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَ وَ كَانَ يَنْهٰى عَنْ قِيْلَ وَ قَالَ وَ كَثْرَةِ السُّؤَالِ وَ اِضَاعَةِ الْمَالِ وَ مَنْعٍ وَّ هَاتِ وَ عُقُوْقِ الْاُمَّهَاتِ وَ وَادِ الْبَنَاتِ وَ عَنْ هُشَيْمٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ وَرَّادًا يُحَدِّثُ هٰذَا الْحَدِيْثَ عَنِ الْمُغِيرَةِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه چه كوم حديث تا اوريدلے وي، هغه ماته ليكلے راوليږه، نو مغيره هغه ته ليكلے اوليږلو. ما د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د مانځه نه د فارغ كيدو په وخت درے ځله دا كلمات لوستل واوريدل: لا اله الا اللّٰه وحده لا شريک له، له الملک وله الحمد و هو علي كل شيء قدير: او قيل و قال او ډير زيات سوال كولو او مال ضائع كولو نه منع فرمائيله. او كوم څيز وركول چه ضروري دي، د هغے نه وركولو سره او د، ميندو د نافرماني نه، او د لونړو ژوندے ښخولو نه ئے منع فرمائيلے ده. او هشيم نه روايت دے، مونږ ته عبد الملک بن عمير بيان اوكه، هغه اووے، ما د وراد نه واوريدل، هغه دا حديث د مغيره نه، او هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كولو.

## باب ۱۱۶ : حِفْظِ اللِّسَانِ. وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَصْمُتْ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ اِلَّا لَدَيْهِ رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ.

## باب ۱۱۶ : د ژبے د حفاظت كولو بيان، او كوم سړے چه اللّٰه او، د، آخرت په ورځ ايمان لري، هغه له پكار دي چه ښه خبره اوكړي، يا خاموش پاتے شي، او د اللّٰه تعالٰي قول چه، سړے هيڅ خبره د خپلے خولے نه نه اوكاږي، چه هغے د پاره څوک محافظ تيار نه وي.

۱۹۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ سَمِعَ اَبَا حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ يَّضْمَنْ لِيْ مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَ مَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ اَضْمَنْ لَهُ

۱۹۹ : محمد بن ابي بكر مقدمه، عمر بن علي، ابو حازم، سهل بن سعد، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، كوم سړے چه د خپلو دواړو جامو (جړول) مينځ كښې د څيز (يعني ژبے) او د، دواړو پښو مينځ كښې د څيز (يعني د شرم ګاه) ضامن شي، نو زه به هغه د پاره د جنت ضامن

الْجَنَّةَ.

يم.

۲۰۰: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَصْمُتْ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ.

۲۰۰: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، ابراهيم بن سعد، ابن شهاب، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، كوم سړے چه اللّٰه او د، قيامت په ورځ ايمان لري، نو هغه له پكار دي، چه ښه خبره اوكړي، كني خاموش دے شي، او كوم سړے چه اللّٰه او د، اخرت په ورځ ايمان لري، هغه دے خپل ګاونډي ته تكليف نه رسوي، او څوك چه اللّٰه او په ورځ د اٰخرت ايمان لري، هغه له پكار دي، چه د ميلمه ميلمستيا اوكړي.

ف: يعني د ميلمه ميلمستيا كول هم د، ايمانداري يوه نښه ده، يا اللّٰه څمونږ دستر خوان د ميلمنو او مسافرو د پاره تل غوړيدلے لرے. اللّٰهم امين.

۲۰۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا لَيْثٌ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيِّ قَالَ سَمِعَ اُذُنَايَ وَ وَعَاهُ قَلْبِيْ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الضِّيَافَةُ ثَلٰثَةُ اَيَّامٍ جَآئِزَتُهُ قِيْلَ مَا جَآئِزَتُهُ قَالَ يَوْمٌ وَّ لَيْلَةٌ وَّ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا اَوْ لِيَسْكُتْ.

۲۰۱: ابو الوليد، ليث، سعيد، مقبري، ابو شريح خزاعي نه روايت كوي، څما دواړو غوږونو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے دي، او څما زړه محفوظ ساتلے دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ميلمستيا درے ورځو پورے ده. د دے جائزه وركړئے. چا تپوس اوكه، د دے جائزه څه ده. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، يوه ورځ او يوه شپه ده، او څوك چه اللّٰه او د، اٰخرت په ورځ ايمان لري، هغه له پكار دي، چه د خپل ميلمه عزت اوكړي، او څوك چه اللّٰه او په ورځ د اٰخرت ايمان لري، هغه له پكار دي، چه ښه خبره اوكړي، كني چپ دے شي.

۲۰۲: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ

۲۰۲: ابراهيم بن حمزه، ابن ابي حازم، محمد بن ابراهيم، عيسٰي بن طلحه تيمي، حضرت ابو هريره

يَزِيدَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيمَ عَنْ عِيْسَى بْنِ طَلْحَةَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمَ بِالْكَلِمَةِ مَا يَتَبَيَّنُ فِيْهَا يَزِلُّ بِهَا فِي النَّارِ اَبْعَدُ مِمَّا بَيْنَ الْمَشْرِقِ.

رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه واوريدل، بنده بعضې وخت خبرې كوي، او د هغې په نتيجه غور نه كوي. او د هغې په وجه او خويږي، جهنم ته لاړ شي، حالانكه هغه د هغې نه دومره لرې وي، څومره لرې والې چه د مشرق او مغرب مينځ كښې دې.

۲۰۳: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ اَبَا النَّضْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ يَعْنِيْ ابْنَ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِّضْوَانِ اللّٰهِ لَا يُلْقِيْ لَهَا بَالًا يَرْفَعُ اللّٰهُ بِهَا دَرَجَاتٍ وَّ اِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللّٰهِ لَا يُلْقِيْ لَهَا بَالًا يَّهْوِيْ بِهَا فِيْ جَهَنَّمَ.

۲۰۳: عبد اللّٰه بن منير، ابو النضر، عبد الرحمٰن بن عبد اللّٰه بن دينار، عبد اللّٰه بن دينار، ابو صالح، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، بعضې وخت بنده د، اللّٰه د، رضامندي خبره كوي، او د هغې هغه ته پرواه هم نه وي، ليكن د هغې په سبب اللّٰه تعالٰي د، هغه درجات اوچتوي. او بعضې وخت بنده، د، اللّٰه تعالٰي د ناراض كولو خبره اوكړي، او د، هغې پرواه نهٔ كوي. ليكن د هغې په سبب هغه جهنّم كښې او غورځيږي.

## باب ۱۱۷: اَلْبُكَاءِ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ.

## باب ۱۱۷: د، اللّٰه د، وېرې نه د، ژړلو بيان.

۲۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ خُبَيْبُ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ ابْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللّٰهُ رَجُلٌ ذَكَرَ اللّٰهَ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ.

۲۰۴: محمد بن بشار، يحيٰي، عبيد اللّٰه، خبيب بن عبد الرحمٰن، حفص بن عاصم، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اووه (۷) سړي داسې دي، چه په هغوي اللّٰه تعالٰي د خپل رحمت سورې كوي. هغوي كښې يو سړې هغه دې، چه د، اللّٰه تعالٰي ذكر كوي، نو د هغه د سترګو نه اوښكې جاري شي.

ف: يا اللّٰه، دا كيفيت زمونږ هم نصيب كړې. اللّٰهم امين.

باب ۱۱۸ : اَلْخَوْفِ مِنَ اللّٰهِ.

۲۰۵ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ رِبْعِيٍّ عَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ يُسِيْئُ الظَّنَّ بِعَمَلِهِ فَقَالَ لِاَهْلِهِ اِذَا اَنَا مُتُّ فَخُذُوْنِيْ فَذَرُّوْنِيْ فِيْ يَوْمٍ صَائِفٍ فَفَعَلُوْا بِهٖ فَجَمَعَهُ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ مَا حَمَلَكَ عَلَى الَّذِيْ صَنَعْتَ قَالَ مَا حَمَلَنِيْ اِلَّا مَخَافَتُكَ فَغَفَرَ لَهٗ.

۲۰۶ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْغَافِرِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ رَجُلًا فِيْ مَنْ كَانَ سَلَفَ اَوْ قَبْلَكُمْ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا وَّ وَلَدًا يَعْنِيْ اَعْطَاهُ فَلَمَّا حُضِرَ قَالَ لِبَنِيْهِ اَيَّ اَبٍ كُنْتُ قَالُوْا خَيْرَ اَبٍ قَالَ فَاِنَّهٗ لَمْ يَبْتَئِرْ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرًا فَسَّرَهَا قَتَادَةُ لَمْ يَدَّخِرْ وَ اِنْ يَّقْدَمْ عَلَى اللّٰهِ يُعَذِّبْهُ فَانْظُرُوْا فَاِذَا مِتُّ فَاَحْرِقُوْنِيْ حَتّٰى اِذَا صِرْتُ فَحْمًا فَاسْحَقُوْنِيْ اَوْ قَالَ فَاسْهَكُوْنِيْ

باب ۱۱۸ : د اللّٰه نه د ویریدلو بیان.

۲۰۵ : عثمان بن ابي شیبه، جریر، منصور، ربعي، حذیفه، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، ستاسو نه مخکښ اُمت کښ یو سړے وو. چه خپل اعمال ئې بدګڼړل. هغه خپل کور والو ته اووے، چه کوم وخت زه مړ شم، نو مانه غبار جوړ کړئې، د ګرمي په ورځو کښ م سمندر کښ او غرخوئې، هغې خلقو دغسې اوکړل. اللّٰه تعالٰي د هغه ټول اجزا جمع کړل. بیائې ورته او فرمائیل، ته څه څیز دې حرکت ته اماده کړې. هغه عرض اوکه، ما صرف ستا د خوف د وجې نه داسې اوکړل، په دې خبره اللّٰه تعالٰي هغه اوبښلو.

۲۰۶ : موسٰي، معتمر، د معتمر پلار، عقبه بن عبد الغافر، ابو سعید خوري، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم، د تیرو اُمتونو د یو سړي متعلق او فرمائیل، اللّٰه پاک هغه له مال او اولاد ورکړې وو. کوم وخت چه د هغه د مرګ وخت رانزدې شو، نو خپل اولاد نه ئې تپوس اوکه، زه ستاسو څنګه پلار ووم، هغوي جواب ورکه. ښه پلار وې. نو هغې سړي اووې، ما اللّٰه پاک سره هیڅ نیکي نه ده جمع کړې. (قتاده د: لم یبتئر: تفسیر: لم یدّخر: بیان که) او اللّٰه تعالٰي له به ورځم، نو هغه به ما له عذاب راکوي، ګورې، کوم وخت چه زه مړ شم، ما، او سوزوئې، تر دې چه کوم وخت زه بالکل سکاره شم، نو ما، اوړه کړئې (فاستحقوني یا فسهکوني: ئې اووې، راوي ته شک دې) بیاچه تیزه هوا راشي، نو ما هغې کښ والوځوئې. هغه خلقو د دې پخه اراده اوکړله، څما

ثُمَّ اِذَا كَانَ رِيحٌ عَاصِفٌ فَاذْرُوْنِيْ فِيْهَا فَاَخَذَ مَوَاثِقَهُمْ عَلٰى ذٰلِكَ وَ رَبِّيْ فَفَعَلُوْا ذٰلِكَ فَقَالَ اللّٰهُ كُنْ فَاِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ اَيْ عَبْدِيْ مَا حَمَلَكَ عَلٰى مَا فَعَلْتَ قَالَ مَخَافَتُكَ اَوْ فَرَقٌ مِّنْكَ فَمَا تَلَا فَاهُ اَنْ رَّحِمَهُ اللّٰهُ فَحَدَّثْتُ اَبَا عُثْمَانَ فَقَالَ سَمِعْتُ سَلْمَانَ غَيْرَ اَنَّهُ زَادَ فَاذْرُوْنِيْ فِي الْبَحْرِ اَوْ كَمَا حَدَّثَ وَ قَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دے په پروردګار قسم وي، چه هغے خلقو د دے مطابق کار اوکړلو. بيا اللّٰه تعالٰي او فرمائيل، چه "شه". نو هغه وخت هغه سړے ولاړ موجود وو. بيا اللّٰه تعالٰي او فرمائيل، اے ځما بنده، ته کوم څيز دے کار ته جوت کړے. هغه جواب ورکه، ستا د خوف د سبب نه ما داسے کړے وو. (مخافتک يا فرق منک: ئے اووے، راوي ته شک دے) نو د هغے تلافي ئے داسے اوکړه، چه اللّٰه په هغه رحم اوکه. ما ابو عثمان ته دا حديث بيان که، نو هغه اووے، ما دا د سلمان نه اوريدلے دے. خو، دا چه د: فأذروني في البحر: اضافه ئے اوکړله. او معاذ په واسطه د شعبه، قتاده، ابو سعيد، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دا حديث نقل که.

## بـاب ۱۱۹ : اَلْاِنْتِهَاءِ عَنِ الْمَعَاصِيْ.

## بـاب ۱۱۹ : د ګناهونو نه د منع کيدلو بيان.

**۲۰۷** : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلِيْ وَ مَثَلُ مَا بَعَثَنِيَ اللّٰهُ كَمَثَلِ رَجُلٍ اَتٰى قَوْمًا فَقَالَ رَاَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنَيَّ وَ اِنِّيْ اَنَا النَّذِيْرُ الْعُرْيَانُ فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ فَاَطَاعَتْهُ طَائِفَةٌ فَاَدْلَجُوْا عَلٰى مَهْلِهِمْ فَنَجَوْا وَ كَذَّبَتْهُ طَائِفَةٌ فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَاجْتَاحَهُمْ.

**۲۰۷** : محمد بن علاء، ابو اسامة، بريد بن عبد اللّٰه بن ابي برده، ابو برده، ابو موسٰي نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ځما مثال او د هغه مثال چه اللّٰه ماته راکولو سره راليږلے يم، د هغے سړي په شان دے، چه خپل قوم له راغے، او وئيلے، ما خپلو سترګو سره لښکر ليدلے دے، او زه تاسو ته څرګند ويرونکے يم. په دے وجه تاسو بچ شئے، تاسو بچ شئے، يو جماعت د هغه خبره اومنله، او د شپے يو محفوظ مقام ته اووتل، نو هغے خلقو خلاصي بيامند. او يو جماعت هغه دروغجن اوګڼړلو، نو سحر وخت کښې يو لښکر په هغوي حمله اوکړه. او هغوي ئے قتل کړل.

**۲۰۸** : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ

**۲۰۸** : ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد،

أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّمَا مَثَلِيْ وَ مَثَلُ النَّاسِ كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّا أَضَآءَتْ مَا حَوْلَهُ جَعَلَ الْفَرَاشُ وَ هٰذِهِ الدَّوَابُّ الَّتِيْ تَقَعُ فِي النَّارِ يَقَعْنَا فِيْهَا فَجَعَلَ يَنْزِعُهُنَّ وَ يَغْلِبْنَهُ فَيَقْتَحِمْنَ فِيْهَا فَأَنَا أٰخُذُ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ وَ أَنْتُمْ تَقْتَحِمُوْنَ فِيْهَا.

عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، څما او د خلقو مثال د هغې سړي په شان دے، چه هغه اور بل كه، نو هر كله چه د هغه خواوشا كښې رڼړا خوره شوه، نو پتنګان او هغه چينجي چه اور كښې غرځيږي، هغې كښې غرځيدل شروع شو. هغې سړي هغه بهرته راوښكل شروع كړل، او هغوي په هغه غالب راغلل، هغې كښې غرځيږي. دغه شان زه تاسو د ملا (كمر) نه نيسم، د اور نه مو بهر ته راكاږم. او تاسو يئې چه په هغې غُرځيږئے.

**۲۰۹**: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهِ وَ يَدِهِ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ.

**۲۰۹**: ابو نعيم، زكريا، عامر، عبد اللّٰه بن عمرو نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، مسلمان هغه دے، چه د هغه د لاس او ژبې نه مسلمان محفوظ وي. او مهاجر هغه دے، چه د اللّٰه تعالٰي منع كړے شوي خيزونه پريږدي.

**باب ۱۲۰**: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَّ لَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا.

**باب ۱۲۰**: د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، زه چه په څه پوهيږم، كه تاسو په هغې پوهيدئے، نو كم به مو خاندل او زيات به مو ژړل.

**۲۱۰**: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**۲۱۰**: يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب نه روايت كوي، د حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، كه تاسو په هغه څه پوهيدئے، په كوم چه زه پوهيږم،

لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَ لَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا.

نو تاسو به ډير کم خاندل' او ډير به مو ژړل.

۲۱۱ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُوْسٰى بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَ لَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا.

۲۱۱ : سليمان بن حرب' شبه' موسي بن انس' انس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' که تاسو په هغه څه پوهيدئے' چه زه پرے پوهيږم' نو خندا به مو کمه وه' او ژړا زياته.

باب ۱۲۱ : حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوٰتِ.

باب ۱۲۱ : دوزخ شهوتونو سره پټ کړے شوے دے.

۲۱۲ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ وَ حُجِبَتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ.

۲۱۲ : اسماعيل' مالک' ابو الزناد' اعرج' حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' دوزخ شهوتونو سره پټ کړے شوے دے' او جنت مصيبتونو سره پټ کړے شوے دے.

باب ۱۲۲ : اَلْجَنَّةُ اَقْرَبُ اِلٰي اَحَدِكُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلَيْهِ وَالنَّارُ مِثْلُ ذٰلِكَ.

باب ۱۲۲ : جنت او دغه شان جهنم هم ستاسو د' پيزار د قسمونه ډير زيات تاسو ته قريب دے.

۲۱۳ : حَدَّثَنِيْ مُوْسٰى بْنُ مَسْعُوْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ وَّالْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْجَنَّةُ اَقْرَبُ اِلٰي اَحَدِكُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهٖ وَالنَّارُ مِثْلُ ذٰلِكَ.

۲۱۳ : موسي بن مسعود' سفيان' منصور' او اعمش' ابو وائل' حضرت عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' د هغه بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل' جنت او دغه شان جهنم هم ستاسو د' پيزار د تسمونه ډير زيات تاسو ته قريب دے.

۲۱۴ : حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَصْدَقُ بَيْتٍ قَالَهُ الشَّاعِرُ. اَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللّٰهُ بَاطِلٌ.

۲۱۴ : محمد بن مثني، غندر، شعبه، عبد الملک بن عمير، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د شاعرانو په شعرونو کښې دا مصرعه د ټولو نه زياته ريښتيا ده، چه اګاه شئ، ټول څيزونه، د اللّٰه (ج) نه سِوا باطل دي.

باب ۱۲۳ : لِيَنْظُرْ اِلٰى مَنْ هُوَ اَسْفَلُ مِنْهُ وَ لَا يَنْظُرْ اِلٰى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ.

باب ۱۲۳ : د هغه طرف ته نظر پکار دے چه (مال و صورت کښې) کم وي، د هغه طرف ته دے نه ګوري چه مال او دولت کښې زيات وي.

۲۱۵ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا نَظَرَ اَحَدُكُمْ اِلٰى مَنْ فُضِّلَ عَلَيْهِ فِي الْمَالِ وَالْخَلْقِ فَلْيَنْظُرْ اِلٰى مَنْ هُوَ اَسْفَلَ مِنْهُ.

۲۱۵ : اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هر کله چه تاسو کښې څوک سړے داسے کس اووينې، چه مال و صورت کښې په هغه فضيلت لري، نو هغے سړي ته هم کتل پکار دي، چه د هغه نه (مال او صورت کښې) پست وي.

باب ۱۲۴ : مَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ اَوْ بِسَيِّئَةٍ.

باب ۱۲۴ : د نيکي يا بدي د اراده کولو بيان.

۲۱۶ : حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا جَعْدٌ اَبُوْ عُثْمٰنَ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ الْعُطَارِدِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا يَرْوِيْ عَنْ رَبِّهٖ عَزَّ وَ جَلَّ قَالَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ الْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ ثُمَّ بَيَّنَ ذٰلِكَ فَمَنْ هَمَّ

۲۱۶ : ابو معمر، عبد الوارث، جعد ابو عثمان، ابو رجاء عطاردي، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د اللّٰه (جل جلاله) بزرګ و برتر متعلق بيان کوي، چه اللّٰه تعالي نيکئ او بدئ ليکلے دي. بيائے هغه بيان کړے دي، نو کوم سړي چه د نيکي اراده وکړه، او د هغے مطابق ئے لا عمل نه دے کړے،

بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً فَاِنْ هُوَ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ عِنْدَهُ عَشَرَ حَسَنَاتٍ اِلٰى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ اِلٰى اَضْعَافٍ كَثِيْرَةٍ وَّ مَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً فَاِنْ هُوَ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ سَيِّئَةً وَّاحِدَةً.

نو اللّٰه تعالىٰ هغه د پاره پوره يوه نيكي اوليكي. او كه هغه نيت كولو سره عمل هم اوكړ، نو هغه د پاره اللّٰه تعالىٰ د لسو (۱۰) نيكو، نه واخله تر اوو سوو (۷۰۰) پورې نيكئ ليكي. او كوم سړي چه د بدئ اراده اوكړله، او په هغې ئې عمل او نه كړ. نو اللّٰه تعالىٰ هغه د پاره يوه پوره نيكي ليكي. او كه نيت سره ئې عمل هم اوكړ، نو هغه د پاره يوه بدئ ليكلې شي.

## بَابٌ ۱۲۵: مَا يُتَّقٰى مِنْ مُحَقَّرَاتِ الذُّنُوْبِ.

## باب ۱۲۵: گناهونه د حقير گڼړلو نه د بچ كيدو بيان.

۲۱۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ عَنْ غَيْلَانَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اِنَّكُمْ لَتَعْمَلُوْنَ اَعْمَالًا هِيَ اَدَقُّ فِيْ اَعْيُنِكُمْ مِنَ الشَّعْرِ اِنْ كُنَّا نَعُدُّهَا عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمُوْبِقَاتِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ يَعْنِي بِذٰلِكَ الْمُهْلِكَاتِ.

۲۱۷: ابو الوليد، مهدي، غيلان، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه اووې، تاسو خلق داسې كارونه كوې، چه ستاسو نظر كښې د، ويښته نه هم زيات باريک دي، حالانكه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې مونږ خلقو دا موبقات كښې شمارل. ابو عبد اللّٰه (بخاري) اووې، موبقات نه مراد مهلكات (يعني هلاكونكي څيزونه) دي.

## بَابٌ ۱۲۶: اَلْاَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيْمِ وَمَا يُخَافُ مِنْهَا.

## باب ۱۲۶: اعمال په خاتمه موقوف دي. او خاتمې نه د، ويريدو بيان (اللّٰه پاک دې څمونږ خاتمه په خير كړي. اللّٰهم امين).

۲۱۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ نَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى رَجُلٍ يُّقَاتِلُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ

۲۱۸: علي بن عياش، ابو غسان، ابو حازم، سهل بن سعد ساعدي نه روايت كوي. د هغه بيان دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو سړې اوليدلو، چه مشركينو سره ئې جنگ كولو. او د، مالدارئ د لحاظ نه د، لويو مسلمانانو نه وو. حضور

كَانَ مِنْ اَعْظَمِ الْمُسْلِمِيْنَ غَنَآءً عَنْهُمْ فَقَالَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّنْظُرَ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْ اَهْلِ النَّارِ فَلْيَنْظُرْ اِلٰى هٰذَا فَتَبِعَهُ رَجُلٌ فَلَمْ يَزَلْ عَلٰى ذٰلِكَ حَتّٰى جُرِحَ فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَقَالَ بِذُبَابَةِ سَيْفِهٖ فَوَضَعَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ فَتَحَامَلَ عَلَيْهِ حَتّٰى خَرَجَ مِنْ بَيْنِ كَتِفَيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ فِيْمَا يَرَى النَّاسُ عَمَلَ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ اِنَّهٗ لَمِنْ اَهْلِ النَّارِ وَ يَعْمَلُ فِيْمَا يَرَى النَّاسُ عَمَلَ اَهْلِ النَّارِ وَ هُوَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِخَوَاتِيْمِهَا.

صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، كه څوک دوزخي سړے ليدل غواړي نو ده ته دے اوګوري. نو يو سړے هغه پسے اولړيدلو. او دغه شان جنګ ئے کولو، چه زخمي شولو. او د تکليف د زياتي په وجه زر مړ کيدل ئے غوښتل، نو هغه د خپلے تورے مخ په خپله سينه کيښودلو، او زور سره ئے دباؤ کړله، تر دے چه توره په کښ ورننوته، او مړ شولو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، بنده داسے کار کوي، چه هغه نور خلق د جنت عمل ګنړي. حالانکه هغه دوزخي وي، او څنے بنده داسے کار کوي، چه د هغے په سبب هغه خلق دوزخي ګنړي، حالانکه هغه جنتي وي. د اعمالو دار و مدار په خاتمه دے.

ف: اللّٰه پاک دے خمونږ د ټولو خاتمه په خير کړي. اللّٰهم امين.

باب ۱۲۷ : اَلْعُزْلَةُ رَاحَةٌ مِنْ خُلَّاةِ السُّوْٓءِ.

باب ۱۲۷ : ګوشه نشيني د خرابو ملګرو نه د بچ کيدو ذريعه ده.

۶۰۱۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ حَدَّثَهٗ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيْ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَآءَ اَعْرَابِيٌّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ قَالَ رَجُلٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهٖ وَ

۶۰۱۹ : ابو اليمان، شعيب، زهري، عطاء بن يزيد، ابو سعيد نه نقل کوي، چا تپوس اوکه، يا رسول اللّٰه (دونم سند) محمد بن يوسف، اوزاعي، زهري، عطاء بن يزيد، ليثي، حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. يو اعرابي د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او عرض ئے اوکه، يا رسول اللّٰه، کوم سړے د ټولو نه ښه دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هغه سړے چه خپل جان و مال سره

مَالِهٖ وَ رَجُلٌ فِيْ شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ يَعْبُدُ رَبَّهُ وَ يَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهٖ تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ وَ سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيْرٍ وَ النُّعْمٰنُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَاءٍ اَوْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ يُوْنُسُ وَابْنُ مُسَافِرٍ وَّ يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ بَعْضِ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ئې جهاد او كه، او هغه سړے چه (د غرونو په) غابنو كښې ناست وي، د خپل پروردګار عبادت كوي، او خلق د خپل شر نه محفوظ ساتي. زبيدي او سليمان بن كثير او نعمان، زهري نه د دے. متابعت كښې روايت كړے دے. او معمر په واسطه د، زهري، عطاء يا عبيد اللّٰه، ابو سعيد رضي اللّٰه عنهم، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه نقل او كه. او يونس او ابن مسافر او يحيي بن سعيد، ابن شهاب نه، هغه د عطاء نه، هغه د، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د چا صحابي نه، او هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه نقل او كه.

۶۲۲۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا الْمَاجِشُوْنَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ خَيْرُ مَالِ الرَّجُلِ الْمُسْلِمِ الْغَنَمُ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَ مَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِيْنِهٖ مِنَ الْفِتَنِ.

۶۲۲۰: ابو نعيم، ماجشون، عبد الرحمٰن بن ابي صعصعه، ابو صعصعه، ابو سعيد نه روايت كوي. هغه اووے، ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، په خلقو به داسے يوه زمانه راشي، چه د مسلمان سړي بهترين مال به د چيلو رمه وي. چه هغے سره به هغه د غرونو څوكو ته او د باران كيدو ځائے ته ځي. او خپل دين به د فتنو نه بچ كوي.

## باب ۱۲۸: رَفْعِ الْاَمَانَةِ.

## باب ۱۲۸: د، امانت د، پاسيدو بيان.

۶۲۲۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا ضُيِّعَتِ الْاَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ قَالَ كَيْفَ

۶۲۲۱: محمد بن سنان، فليح بن سليمان، هلال بن علي، عطاء بن يسار، حضرت ابو هريرة رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، كوم وخت چه امانت ضائع شي، نو د قيامت انتظار كوئے. تپوس اوشو، د دے ضائع كيدل به څنګه وي، يا رسول اللّٰه،

اِضَاعَتُهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ اِذَا اُسْنِدَ الْاَمْرُ اِلٰى غَيْرِ اَهْلِهٖ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ.

حضور صلّي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، كوم وخت چه كار نااهلو ته اوسپارلے شي، نو د قيامت انتظار كوه.

۲۲۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ حَدَّثَنَا حُذَيْفَةُ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثَيْنِ رَاَيْتُ اَحَدَهُمَا وَ اَنَا اَنْتَظِرُ الْاٰخَرَ حَدَّثَنَا اَنَّ الْاَمَانَةَ نَزَلَتْ فِيْ جَذْرِ قُلُوْبِ الرِّجَالِ ثُمَّ عَلِمُوْا مِنَ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ عَلِمُوْا مِنَ السُّنَّةِ وَ حَدَّثَنَا عَنْ رَّفْعِهَا قَالَ يَنَامُ الرَّجُلُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ الْاَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهٖ فَيَظَلُّ اَثَرُهَا مِثْلَ اَثَرِ الْوَكْتِ ثُمَّ يَنَامُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ فَيَبْقٰى اَثَرُهَا مِثْلَ الْمَجْلِ كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ عَلٰى رِجْلِكَ فَنَفِطَ فَتَرَاهُ مُنْتَبِرًا وَّ لَيْسَ فِيْهِ شَيْءٌ فَيُصْبِحُ النَّاسُ يَتَبَايَعُوْنَ فَلَا يَكَادُ اَحَدٌ يُّؤَدِّيْ الْاَمَانَةَ فَيُقَالُ اِنَّ فِيْ بَنِيْ فُلَانٍ رَّجُلًا اَمِيْنًا وَّ يُقَالُ لِلرَّجُلِ مَا اَعْقَلَهٗ وَ مَا اَظْرَفَهٗ وَ مَا اَجْلَدَهٗ وَ مَا فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ حَبَّةِ خَرْدَلٍ مِّنْ اِيْمَانٍ وَّلَقَدْ

۲۲۲: محمد بن كثير، سفيان، اعمش، يزيد بن وهب، حذيفه رضي اللّه عنه نه روايت كوي. مونږ ته رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم دوه خبرے بيان كړے وے، هغے كښې يوه خبره ما اوليده، او د دوئمے انتظار كوم. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم مونږ ته بيان اوكه، امانت د خلقو د زړونو په ژوروالي كښې كوز شو. بيا هغے خلقو د قرآن نه د هغے حكم او پيژندلو. بيائے د سنت نه او پيژندلو. او مونږ ته ئے د هغے د اوچتيدو حال بيان كه. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. سړے به په خوب اُوده وي، او امانت به د هغه دَ زړه نه اوچت كړے شي. او د هغے يوه تته (دهندلا) شان نښه به پاتې شي. بيا به اُوده شي، نو باقي امانت به هم د، هغه د زړه نه اوښكلے شي، او د هغے نښه به د، پولئے (آبلے) په شان باقي پاتے شي، لكه د اور بخرے چه خپلے پښے سره اووښے، او هغه پولے شي، او ته به هغه پړسيدلے اووينے، حالانكه هغے كښې هيڅ څيز نشته. حالت به داوي، چه خلق به خپلو كښې خريد و فروخت كوي، ليكن څوك به امانت نه اداء كوي، تر دے چه او، به وئيلے شي، چه بني فلان كښې يو امانت دار سړے دے. او د چا متعلق به وئيلے شي، چه څومره عاقل دے، څومره ظريف (خوش طبع) دے، او څومره شجاع (تكړه، زړوور، بهادر) دے. حالانكه د هغه زړه كښې به د، اُوري برابر ايمان هم نه وي. او په مونږه يوه داسے زمانه تيره

أَتَى عَلَيَّ زَمَانٌ وَّ مَا أُبَالِيْ أَيَّكُمْ بَايَعْتُ لَئِنْ كَانَ مُسْلِمًا رَدَّهُ عَلَيَّ الْإِسْلَامُ وَ إِنْ كَانَ نَصْرَانِيًّا رَدَّهُ عَلَيَّ سَاعِيْهِ فَأَمَّا الْيَوْمَ فَمَا كُنْتُ أُبَايِعُ إِلَّا فُلَانًا وَّ فُلَانًا.

شوے ده، چه د چا په لاس خريد و فروخت كولو كښې به هيڅ پرواه نه كيدله. كه مسلمان به وو، نو هغه به اسلام او كه نصراني به وو، نو د هغه مددګارو به ګمراهئ نه منع كولو. ليكن نن صبا فلان فلان (يعني خاص خلقو سره خريد و فروخت كوم).

**ف:** اورے، جمامه (ليونے) د شړشمو په شان يو بوټے او د هغے تخم. نرې نرې زيړبخنے غنلوے غنلوے شان دانے، چه په تاثير او خوند كښې د مرچكي نه هم تيز، وي. ډير وړو كے وړو كے څيز. پوټكے.

**۲۲۳:** حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّمَا النَّاسُ كَالْإِبِلِ الْمِائَةِ لَا تَكَادُ تَجِدُ فِيْهَا رَاحِلَةً.

**۲۲۳:** ابو اليمان، شعيب، زهري، سالم بن عبد اللّٰه، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. ما رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، خلق به داسے وي، لكه اوښان، چه په سلو كښې هيلمه يو اوښ د سورلئ قابل وي.

## باب ۱۲۹: الرِّيَاءِ وَالسُّمْعَةِ.

## باب ۱۲۹: د ريا او شهرت بيان.

**۲۲۴:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيٰنَ حَدَّثَنِيْ سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ وَ حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُهُ فَدَنَوْتُ مِنْهُ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللّٰهُ بِهِ وَ مَنْ يُّرَآئِيْ يُرَآئِي اللّٰهُ بِهِ.

**۲۲۴:** مسدد، يحيي، سفيان، سلمه بن كهيل (دوئم سند) ابو نعيم، سفيان، سلمه، جندب رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، (د ده نه علاوه م هيچا نه قال النّبي وئيل نه دي آوريدلي) زه هغه ته نزدے ورغلم، نو هغه نه م واوريدل. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، چا چه د شهرت په خاطر يو كار او كه، نو اللّٰه پاک به هغه له شهرت وركړي، او چا چه، د نمائش په غرض څه كار او كه، نو اللّٰه پاک، به د هغے كار نمود (نمائش) ظاهر كړي.

باب ۱۳۰ : مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ.

۵۲۲۵ : حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا رَدِيْفُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ اِلَّا اٰخِرَةُ الرَّحْلِ فَقَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ قَالَ هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ قُلْتُ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ اَنْ يَّعْبُدُوْهُ وَ لَا يُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَعْدَيْكَ قَالَ هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ اِذَا فَعَلُوْهُ قُلْتُ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ اَنْ لَّا يُعَذِّبَهُمْ.

باب ۱۳۰ : د هغے سړي بيان، چه د، اللّٰه اطاعت کښې کوشش (مجاهده) اوکړي.

۵۲۲۵ : هدبه بن خالد، همام، قتاده، انسبن مالک، معاذ بن جبل رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. زه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم پسے ورستو سور، ووم، خما او د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مينځ کښې صرف د، پالان (کتهے) لرګے حائل وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، اے معاذ، ما عرض اوکه، لبيک يا رسول اللّٰه و سعديک، بيا لږ ساعت روان وو. بيائے او فرمائيل، اے معاذ، ما عرض اوکه، لبيک يا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم و سعديک. بيا لږ ساعت روان وو. او وے فرمائيل. اے معاذ بن جبل. ما عرض اوکه، لبيک يا رسول اللّٰه و سعديک. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تا ته معلومه ده، چه د، اللّٰه پاک په بنده څه حق دے. ما اووے، اللّٰه پاک او د هغه رسول صلّي اللّٰه عليه وسلّم ښه پوهيږي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د اللّٰه (جلّ جلاله) حق په بنده دا دے، چه د هغه عبادت اوکړي، او څوک د هغه شريک جوړ نه کړي. بيا لږ ساعت روان وو. نو وے فرمائيل. اے معاذ بن جبل. ما اووے: لبيک يا رسول اللّٰه و سعديک، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تا ته معلومه ده، چه هر کله بنده دغه کار اوکړي، نو په اللّٰه (جلّ جلاله) د بنده څه حق دے. ما اووے، اللّٰه (ج) او د هغه رسول ښه پوهيږي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د بنده حق په اللّٰه (ج) دا دے، چه هغه ورله عذاب ورنکړي.

باب ۱۳۱ : التَّوَاضُعِ.

باب ۱۳۱ : د، تواضع بيان.

ف: تواضع: عاجزي' انكسار. خاطر مدار. برہ کرہ. نذر. دعوت. روتیي ته بلنه. خوش اخلاقي.

۲۲۶: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا زُهَيْرُ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَةٌ قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ وَ اَبُوْ خَالِدِ الْاَحْمَرُ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَتْ نَاقَةٌ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُسَمَّى الْعَضْبَآءَ وَ كَانَتْ لَا تُسْبَقُ فَجَآءَ اَعْرَابِيٌّ عَلٰى قَعُوْدٍ لَّهٗ فَسَبَقَهَا فَاشْتَدَّ ذٰلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ وَ قَالُوْا سُبِقَتِ الْعَضْبَآءُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ اَنْ لَّا يَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا اِلَّا وَضَعَهٗ.

۲۲۶: مالک بن اسماعيل' زبير' حميد حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے' د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوه اوښه وه. (دوئم سند) محمد' فزاري او ابو خالد احمر حميد طويل' حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے' د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوه اوښه وه' د هغے نوم عضباء وو. هيڅ څاروے د هغے نه مخکښ كيدے نه شو. يو اعرابي په خپل اوښ سور راغے' او د هغے نه مخکښ شو' په مسلمانانو دا بده اولږيده' او وئيلے' عضباء ورستو پاتے شوه. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' په اللّٰه حق دے' چه دنيا كښ كوم څيز اوچت (بلند) كړي' نو هغه (آخر كښ) خكته كړي.

۲۲۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ حَدَّثَنِيْ شَرِيْكُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ قَالَ مَنْ عَادٰى لِيْ وَلِيًّا فَقَدْ اٰذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ وَ مَا تَقَرَّبَ اِلَيَّ عَبْدِيْ بِشَيْءٍ اَحَبَّ اِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ وَ مَا يَزَالُ عَبْدِيْ يَتَقَرَّبُ اِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتّٰى اُحِبَّهٗ فَاِذَا اَحْبَبْتُهٗ كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِيْ يَسْمَعُ بِهٖ وَ

۲۲۷: محمد بن عثمان' خالد بن مخلد' سليمان بن بلال' شريک بن عبد اللّٰه بن ابي نمر' عطاء' ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' اللّٰه پاک فرمائي' چا چه څما دوست سره دشمني او كړه' نو هغه سره اعلان جنګ كوم. او څما بنده څما د فرض شوے محبوب څيزونو په ذريعه ماته قرب حاصلوي' تر دے چه زه هغه سره محبت راواخلم' هر كله چه زه ورسره محبت شروع كړم' نو زه د هغه غوږ شم' چه هغے سره هغه (حق) اوري. او د هغه ستر ګه شم' چه هغے سره هغه (حق) ويني. او د هغه لاس شم'

بَصَرَهُ الَّذِيْ يُبْصِرُ بِهٖ وَ يَدَهُ الَّذِيْ يَبْطِشُ بِهَا وَ رِجْلَهُ الَّذِيْ يَمْشِيْ بِهَا وَ اِنْ سَاَلَنِيْ لَاُعْطِيَنَّهُ وَ لَئِنِ اسْتَعَاذَنِيْ لَاُعِيْذَنَّهُ وَ مَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ اَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِيْ عَنْ نَفْسِ الْمُؤْمِنِ يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَ اَنَا اَكْرَهُ مَسَآءَ تَهُ.

چه هغې سره هغه نيول كوي. او د هغه پښه شم، چه هغې سره هغه ګرځي. او كه هغه خما نه څه څيز غواړي، نو زه ئې وركوم. او كه هغه خمانه پناه اوغواړي، نو زه پناه وركوم. او زه چه كوم كار كونكې يم. د هغې كولو كښې ماته تردّد نه وي. څومره چه ماته د نفس مؤمن نه تردّد وي، چه هغه مرګ بد ګڼړي. او زه د هغه ناګواري نه خوښوم.

**باب ۱۳۲ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنَ وَمَا اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ○**

**باب ۱۳۲** : د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، زه او قيامت داسې راليږلې شوې يو، څنګه چه دا دوه (۲) ګوتې. او د قيامت معامله بس د، ستركې د، رپ په شان ده، بلكه د، دې نه به هم زر وي. بيشكه اللّٰه تعالٰي په هر څيز قادر دې.

**۲۲۸** : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةَ هٰكَذَا وَ يُشِيْرُ بِاَصْبَعَيْهِ فَيَمُدُّ بِهِمَا.

**۲۲۸** : سعيد بن ابي مريم، ابو غسان، ابو حازم، سهل نه روايت كوي، د هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، زه او قيامت داسې راليږلې شوې يو. او خپلو دواړو ګوتو سره ئې اشاره اوكړله. بيائې هغه دواړه خورې كړې.

**۲۲۹** : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ هُوَ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ وَ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ وَالسَّاعَةَ كَهَاتَيْنِ.

**۲۲۹** : عبد اللّٰه بن محمد جعفي، وهب بن جرير، شعبه، قتاده، او ابو التياح، حصرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دې. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. زه او قيامت ددې دواړو ګوتو پشان (نزدې نزدې) ليګلې شوي يو.

**۲۳۰** : حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ

**۲۳۰** : يحيٰي بن يوسف، ابوبكر، ابو حصين، ابو صالح، ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي،

خَصِيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ يَعْنِيْ اِصْبَعَيْنِ تَابَعَهُ اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ حَصِيْنٍ.

نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' زه او قيامت ددې دواړو (ګوتو) پشان (نزدې نزدې) راليګلي شوي يو' اسرائيل په واسطه د ابو حصين د دې متابعت کښې روايت کړې دې.

## باب ١٣٣ :

## باب ١٣٣ : (دا باب بې سرخي دې).

١٢٣١ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَاِذَا طَلَعَتْ فَرَاٰهَا النَّاسُ اٰمَنُوْا اَجْمَعُوْنَ فَذٰلِكَ حِيْنَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِيْ اِيْمَانِهَا خَيْرًا وَ لَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَ قَدْ نَشَرَ الرَّجُلَانِ ثَوْبَهُمَا بَيْنَهُمَا فَلَا يَتَبَايَعَانِهِ وَ لَا يَطْوِيَانِهِ وَلَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَ قَدِ انْصَرَفَ الرَّجُلُ بِلَبَنِ لِقْحَتِهِ فَلَا يَطْعَمُهُ وَ لَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَ هُوَ يَلِيْطُ حَوْضَهُ فَلَا يَسْقِيْ فِيْهِ وَ لَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَ قَدْ رَفَعَ اُكْلَتَهُ اِلٰى فِيْهِ فَلَا يَطْعَمُهَا.

١٢٣١ : ابو اليمان' شعيب' ابو الزناد' عبد الرحمٰن' ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. قيامت به هغه وخت پورې نه راځي' څو پورې چه نمر د مغرب نه طلوع نه شي (راونه خيژي) او کله چه نمر د مغرب (نمر پريواته) نه طلوع کېدونکې اووينې' نو ټول خلق به ايمان راوړي. ليکن دا به داسې وخت وي' چه هغې کښې به د چا ايمان چا ته څه فايده نه شي رسولي. څو پورې چه د مخکښې نه ئې ايمان نه وي راوړې. او قيامت به داسې قايم شي' چه دوه سړو به د خريد و فروخت د پاره کپړه خوره کړې وي. ليکن خريد و فروخت به اونه کړې شي' او نه به هغه اونغښتلې شي. او يو سړي به د اوښې پئې اخستې وي' خو هغه به اونه څکلې شي' چه قيامت به شي. او يو سړي به خپل څناور اوبه کولو د پاره حوض ته تيار کړې وي' او خپل څناور به اوبه نه کړې شي' چه قيامت به شي. او يو سړي به نوړئې (لقمه) اوچته کړې وي' خو هغه به (خولې ته) اوچته نه کړې شي چه قيامت به شي.

## بَابٌ ١٣٤ : مَنْ اَحَبَّ لِقَاءَ اللّٰهِ اَحَبَّ اللّٰهُ لِقَاءَهُ.

## باب ١٣٤ : څوک چه د الله ملاقات خوښوي' نو الله هغه سره ملاقات خوښوي.

۲۳۲: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَحَبَّ لِقَآءَ اللّٰهِ اَحَبَّ اللّٰهُ لِقَآءَهُ وَ مَنْ كَرِهَ لِقَآءَ اللّٰهِ كَرِهَ اللّٰهُ لِقَآءَهُ، قَالَتْ عَائِشَةُ اَوْ بَعْضُ اَزْوَاجِهٖ اِنَّا لَنَكْرَهُ الْمَوْتَ قَالَ لَيْسَ ذَاكَ وَ لٰكِنَّ الْمُؤْمِنَ اِذَا حَضَرَهُ الْمَوْتُ بُشِّرَ بِرِضْوَانِ اللّٰهِ وَ كَرَامَتِهٖ فَلَيْسَ شَيْءٌ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِمَّا اَمَامَهُ فَاَحَبَّ لِقَآءَ اللّٰهِ وَ اَحَبَّ اللّٰهُ لِقَآءَهُ وَ اِنَّ الْكَافِرَ اِذَا حُضِرَ بُشِّرَ بِعَذَابِ اللّٰهِ وَ عُقُوْبَتِهٖ فَلَيْسَ شَيْءٌ اَكْرَهَ اِلَيْهِ مِمَّا اَمَامَهُ كَرِهَ لِقَآءَ اللّٰهِ وَ كَرِهَ اللّٰهُ لِقَآءَهُ اخْتَصَرَهُ اَبُوْ دَاوُدَ وَ عَمْرٌو وَ عَنْ شُعْبَةَ وَ قَالَ سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ زُرَارَةَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۳۲: حجاج، همام، قتاده، انس، عباده بن صامت نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، كوم سړے چه د اللّٰه (ج) ملاقات خوښوي، اللّٰه (ج) هغه سره يو ځائے كيدل خوښوي. او كوم سړے چه اللّٰه (ج) سره ملاقات نه خوښوي، اللّٰه (ج) هغه سره يو ځائے كيدل نه خوښوي. بي بي عائشے ؓ يا د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوے بلے بي بيؓ عرض اوكه، چه مونږ خو مرګ بد ګڼړو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، دا خبره نه ده، بلكه مطلب دا دے، چه د كوم مؤمن د وفات وخت قريب شي، نو هغه ته د، اللّٰه (ج) د، رضا مندي او بزرګي خوش خبري وركولے شي، نو كوم څيز چه د هغه مخكښ وي، د هغے نه بهتر هيڅ څيز هغه ته نه معلوميږي، او هغه اللّٰه (ج) سره يو ځائے كيدل او اللّٰه (ج) هغه سره يو ځائے كيدل خوښوي. او د كافر د مرګ وخت چه نزدے راشي، نو د اللّٰه (ج) د عذاب او د هغه د، ناراضګي خبر ورته اوورولے شي. د هغه مخكښ چه څه څيز وي، د هغے نه زيات ناګواره څيز هغه ته بل هيڅ نه وي. نو هغه اللّٰه (ج) سره يو ځائے كيدل نه خوښوي. ابو داؤد او، عمرو د، شعبه نه دا مختصرًا نقل كړے دے. او سعيد په واسطه د قتاده، زراره، سعد، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها د، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كه.

**ف**: يا اللّٰه (ج)، زمونږ ستا د، رضا مندي او بزرګي خوش خبري نصيب كړے، اللّٰهم اٰمين.

۲۳۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ

۲۳۳: محمد بن علاء، ابو اسامه، بزيد، ابو برده، حضرت ابوموسيٰ، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه

بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَحَبَّ لِقَآءَ اللّٰهِ اَحَبَّ اللّٰهُ لِقَآءَهُ وَ مَنْ كَرِهَ لِقَآءَ اللّٰهِ كَرِهَ اللّٰهُ لِقَآءَهُ.

روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل: كوم سړے چه اللّٰه (ج) سره يو ځائے كيدل خوښوي. اللّٰه (ج) هغه سره يو ځائے كيدل خوښوي. او څوک چه اللّٰه (ج) سره يو ځائے كيدل نه خوښوي، اللّٰه (ج) هغه سره يو ځائے كيدل نه خوښوي.

۲۳۴: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ فِيْ رِجَالٍ مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَ هُوَ صَحِيْحٌ اِنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ قَطُّ حَتّٰى يُرٰى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرُ فَلَمَّا نَزَلَ بِهٖ وَ رَاْسُهُ عَلٰى فَخِذِيْ غُشِيَ عَلَيْهِ سَاعَةً ثُمَّ اَفَاقَ فَاَشْخَصَ بَصَرَهُ اِلَى السَّقْفِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى قُلْتُ اِذًا لَّا يَخْتَارُنَا وَ عَرَفْتُ اَنَّهُ الْحَدِيْثُ الَّذِيْ كَانَ يُحَدِّثُنَا بِهٖ قَالَتْ فَكَانَتْ تِلْكَ اٰخِرَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْلُهُ اللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى.

۲۳۴: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب او عروه بن زبير نه روايت كوي. دې دواړو د، يو څو اهل علم موجودګي كښې بيان او كه، چه بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها ښېر د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د خپلے تندرستي په زمانه كښې فرمائيل. يو نبي هغه وخته پورے نه وفات كيږي، څو پورے چه هغه ته جنت كښې د هغے ځائے اونه ښودلے شي. بيا ژوند او مرګ كښې اختيار وركړے شي. كوم وخت چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، وفات وخت رانزدے شو، نو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سر مبارک ځما په پتون پروت وو، لږ وخته پورے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم باندے بيهوشي راغله. بيا په خپل حال شولو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چهت طرف ته نظر اوكه. بيائے او فرمائيل: اللهم الرفيق الاعلٰي: ما اووے، حضورؐ اوس مونږ سره پاتے كيدل نه غواړي. او زه پوه شوم، دا هغه خبره ده چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به مونږ ته (د تندرستئ په زمانه كښې) فرمائيله. د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها بيان دے. اخري كلمه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيله، هغه دا كلمه وه، چه: اللّٰهم الرفيق الاعلٰي.

بـــاب ۱۳۵ : سَـــكَـــرَاتِ الْمَوْتِ.

۶۲۳۵ : حَـدَّثَـنِـيُ مُحَـمَّدُ بْـنُ عُبَيْـدِ بْـنِ مَيْمُـوْنٍ حَـدَّثَـنَـا عِيْسَـى بْـنُ يُـوْنُـسَ عَـنْ عُمَرَ بْنِ سَـعِيْـدٍ قَـالَ اَخْبَـرَنِـيُ ابْـنُ اَبِـيُ مُـلَيْـكَةَ اَنَّ اَبَـا عَـمْـرو ذَكْوَانَ مَوْلٰى عَـائِشَةَ اَخْبَـرَهُ اَنَّ عَائِشَةَ كَانَتْ تَقُوْلُ اِنَّ رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ صَـلَّـى الـلّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّمَ كَانَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ اَوْعُلْبَةٌ فِيْهَا مَـآءٌ يَّشُكُّ عُـمَـرَ فَـجَـعَلَ يُدْخِلُ يَـدَيْـهِ فِي الْمَـآءِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ وَ يَـقُـوْلُ لَا اِلٰــهَ اِلَّا اللّٰـهُ اِنَّ لِلْمَوْتِ سَـكَـرَاتٍ ثُمَّ نَصَبَ يَدَهُ فَجَعَلَ يَقُوْلُ فِـي الـرَّفِيْـقِ الْاَعْـلٰى حَتّٰى قُبِضَ وَ مَالَتْ يَدَهُ.

۶۲۳۶ : حَـدَّثَـنِيُ صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا عَـبْـدَةُ عَـنْ هِـشَـامٍ عَـنْ اَبِـيْـهِ عَنْ عَـائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رِجَالٌ مِنَ الْاَعْرَابِ جُـفَـاةً يَـاْتُـوْنَ الـنَّـبِـيَّ صَـلَّـى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَيَسْاَلُوْنَهُ مَتَى السَّاعَةُ فَـكَـانَ يَنْظُرُ اِلٰى اَصْغَرِهِمْ فَيَقُوْلُ اِنْ يَّـعِـشْ هٰـذَا لَا يُـدْرِكُـهُ الْهَرَمُ حَتّٰى تَـقُـوْمَ عَلَيْكُمْ سَاعَتُكُمْ قَالَ هِشَامٌ يَعْنِيُ مَوْتَهُمْ.

۶۲۳۷ : حَـدَّثَـنَـا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ

باب ۱۳۵ : د مرګ د سختو (سکرات موت) بیان.

۶۲۳۵ : محمد بن عبید بن میمون، عیسٰي بن یونس، عمر بن سعید، ابن ابي ملیکه، ابو عمرو، ذکوان (د بي بي عائشې رضي الله عنه ازاد کړده غلام) د بي بي عائشې رضي الله عنها متعلق بیان کوي، هغه فرمائي د رسول اللّٰه صلّي الله علیه وسلّم مخکښې (د وفات په وخت رکوه، یا (راوي ته شک دې) علبه یعني یو، لوښې وو، چه هغې کښې اوبه وې. حضور صلّي الله علیه وسلّم به خپل دواړه لاسونه اوبو کښې ختکه کول، او هغه به ئې په خپل مخ مبارک مږل. او فرمائیل به ئې: لا اله الا اللّٰه: بې شکه مرګ کښې لوئې تکلیف دې. بیائې خپل لاسونه اوچت کړل، وې فرمائیل: اللهم رفیق الاعلٰي: تر دې چه د حضور صلّي الله علیه وسلّم روح (مبارک) قبض شولو. او د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم لاس (مبارک) راښکته شولو.

۶۲۳۶ : صدقه، عبده، هشام، د خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها نه روایت کوي. دهغې بیان دې. اعرابیانو (بانډیسانو) کښې څه خلق پښې ابلې پښې د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضریدل، او تپوس به ئې کولو، قیامت به کله وي. حضور صلّي الله علیه وسلّم د هغوي وړوکي طرف ته کتلو سره فرمائیل، که دا سړې ژوندې پاتې شو، نو په ده به بوډا توب نه راځي. تر دې چه تاسو باندې به قیامت راشي. هشام اووې، یعني مرګ به راشي.

۶۲۳۷ : اسماعیل، مالک، محمد بن عمرو

حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ بْنِ رِبْعِيٍّ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرَّ عَلَيْهِ بِجَنَازَةٍ فَقَالَ مُسْتَرِيحٌ وَ مُسْتَرَاحٌ مِنْهُ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا الْمُسْتَرِيحُ وَ الْمُسْتَرَاحُ مِنْهُ قَالَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا وَ أَذَاهَا إِلَى رَحْمَةِ اللّٰهِ وَ الْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيحُ مِنْهُ الْعِبَادُ وَ الْبِلَادُ وَ الشَّجَرُ وَ الدَّوَابُّ.

بن حلحله، معبد بن كعب بن مالك، ابو قتاده بن ربعي انصاري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. يوه جنازه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خوا كښې تيره شوه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دا "مستريح" دے يا "مستراح منه" دے. خلقو تپوس اوكه، يا رسول اللّٰه، مستريح او مستراح منه څه څيز دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم جواب وركه، مؤمن بنده د، دنيا د مشقتونو او مصيبتونو نه د، اللّٰه (ج) رحمت كښې آرام بيامومي او د بدكار بنده نه د، اللّٰه تعالٰي بنديان او، ښارونه، او، اونے او چوپايه (غرض د، اللّٰه تعالٰي ټول مخلوق) آرام بياموMي.

۲۳۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ حَدَّثَنِي ابْنُ كَعْبٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُسْتَرِيحٌ وَ مُسْتَرَاحٌ مِنْهُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ.

۲۳۸ : مسدد، يحيي، عبد ربه بن سعيد، محمد بن عمرو بن حلحله، ابن كعب، ابو قتاده نه روايت كوي، د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. دا مستريح يا مستراح منه دے. ايمان دار آرام بياموMي.

۲۳۹ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلٰثَةٌ فَيَرْجِعُ اثْنَانِ وَ يَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ وَ مَالُهُ وَ عَمَلُهُ فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَ مَالُهُ وَ يَبْقَى عَمَلُهُ.

۲۳۹ : حميدي، سفيان، عبد اللّٰه بن ابي بكر بن عمرو بن حزم، حضرت انس بن مالك رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، مړي پسے درے څيزونه خي. دوه خو واپس راشي، او يو ورسره پاتے شي، د هغه د كور خلق، او د هغه دولت، او د هغه عمل ورسره پاتے شي.

۶۲۴۰ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا مَاتَ اَحَدُكُمْ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ غُدْوَةً وَ عَشِيًّا اِمَّا النَّارُ وَ اِمَّا الْجَنَّةُ فَيُقَالُ هٰذَا مَقْعَدُكَ حَتّٰى تُبْعَثَ.

۶۲۴۰ : ابو نعمان، حماد بن زيد، ايوب، نافع، ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. هر کله چه تاسو کښې څوک مړ شي، نو سحر مابنام هغه ته خپله ټيکاونړه جنت يا دوزخ کښې ښودلے شي، او هغه ته وئيلے شي، دا ستا ټيکاونړه ده، تر دے چه ته د قبر نه پاسولے شي.

۶۲۴۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوا الْاَمْوَاتَ فَاِنَّهُمْ قَدْ اَفْضَوْا اِلٰى مَا قَدَّمُوْا.

۶۲۴۱ : علي بن جعد، شعبه، اعمش، مجاهد، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغے بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، مړو ته بد رد مه وائے، ځکه چه هغوي هغه څيز ته اورسيدل، کوم چه هغوي کړے وو.

الحمد للّٰه، و الشكر للّٰه، د صحيح بخاري شپږويشتمه پاره ختمه شوه.

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۲۷


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-20

# تاج البخاري پاره ۲۷ دمضامینو فهرست


| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۳٦ | شپیلۍ پوکل | ۴۰٦۷ |
| ۱۳۷ | زمکه به د اللّٰه په قبضه کښې وي | ۴۰٦۸ |
| ۱۳۸ | محشر قائمیدل | ۴۰۷۰ |
| ۱۳۹ | د قیامت زلزله | ۴۰۷۴ |
| ۱۴۰ | دغه خلق به پاسولے شي | ۴۰۷۵ |
| ۱۴۱ | په قیامت کښې قصاص اخستل | ۴۰۷۵ |
| ۱۴۲ | په حساب کښې تفتیش | ۴۰۷۷ |
| ۱۴۳ | اویا زره کسان به بے حسابه جنت ته داخلیږي | ۴۰۷۹ |
| ۱۴۴ | د جنت او دوزخ حالت | ۴۰۸۲ |
| ۱۴۵ | صراط د جهنم پُل دے | ۴۰۹۳ |
| ۱۴٦ | حوض کوثر | ۴۰۹٦ |
| | کتاب القدر | |
| ۱۴۷ | تقدیر | ۴۱۰۴ |
| ۱۴۸ | قلم د اللّٰه په علم باندے | ۴۱۰۵ |
| ۱۴۹ | اللّٰه پوهیږي | ۴۱۰۵ |
| ۱۵۰ | د اللّٰه حکم معین دے | ۴۱۰٦ |
| ۱۵۱ | عمل په خاتمے باندے موقوف دے | ۴۱۰۹ |
| ۱۵۲ | نذر او بنده | ۴۱۱۱ |
| ۱۵۳ | گناه نه د بچ کیدلو توفیق | ۴۱۱۱ |
| ۱۵۴ | معصوم خوک دے | ۴۱۱۲ |
| ۱۵۵ | چه کوم خائے یا ښار مونږه هلاکړل اوغواړو | ۴۱۱۳ |
| ۱۵٦ | مونږه تاته خوب اوښودو | ۴۱۱۳ |
| ۱۵۷ | د آدم او موسي علیهما السلام مناجات | ۴۱۱۴ |
| ۱۵۸ | اللّٰه چه څه ورکوي | ۴۱۱۴ |
| ۱۵۹ | بدئ نه د اللّٰه پناه | ۴۱۱۵ |
| ۱٦۰ | په زړه کښې حائل کیدل | ۴۱۱٦ |
| ۱٦۱ | اللّٰه چه مونږ د پاره څه لیکلي دي | ۴۱۱٦ |
| ۱٦۲ | هدایت د اللّٰه تعالیٰ دے | ۴۱۱۷ |
| | کتاب الایمان والنذور | |
| ۱٦۳ | اللّٰه تعالیٰ په لغوه قسمونو باندے مؤاخذه نه کوي | ۴۱۱۸ |
| ۱٦۴ | د خدائے قسم | ۴۱۲۱ |
| ۱٦۵ | د حضورؐ قسم خوړل | ۴۱۲۱ |
| ۱٦٦ | د پلرونو قسم مه خورئ | ۴۱۳۰ |
| ۱٦۷ | د غیر اللّٰه قسم مه خورئ | ۴۱۳۲ |
| ۱٦۸ | بغیر وینا قسم خوړل | ۴۱۳۳ |
| ۱٦۹ | د بل مذهب قسم خوړل | ۴۱۳۳ |
| ۱۷۰ | داسے دِ نهٔ وائي | ۴۱۳۴ |
| ۱۷۱ | ارشادِ الٰهي | ۴۱۳۵ |
| ۱۷۲ | اللّٰه لره گواه جوړول | ۴۱۳٦ |
| ۱۷۳ | د اللّٰه لوظ | ۴۱۳۷ |
| ۱۷۴ | د اللّٰه د ذات او صفاتو قسم | ۴۱۳۸ |
| ۱۷۵ | لَعمر اللّٰه وئیل | ۴۱۳۹ |
| ۱۷٦ | د یمین لغوه په باره کښې | ۴۱۴۰ |
| ۱۷۷ | په هیره ذَ قسم نه خلاف کول | ۴۱۴۰ |
| ۱۷۸ | یمین غموس | ۴۱۴٦ |
| ۱۷۹ | د اللّٰه لوظ خرڅول | ۴۱۴۷ |
| ۱۸۰ | چه ملکیت ئے نه وي او قسم خوري | ۴۱۴۸ |
| ۱۸۱ | نن به خبره نه کوم | ۴۱۵۱ |
| ۱۸۲ | د بي بي خوا له تر میاشتے پورے د نهٔ ورتلو قسم | ۴۱۵۲ |
| ۱۸۳ | د نبیذ نهٔ څکلو قسم | ۴۱۵۳ |
| ۱۸۴ | د سالن نهٔ خوړلو قسم | ۴۱۵۴ |

| باب | مضامین | صفحه |
| --- | --- | --- |
| ۱۸۵ | په قسمونو کښې نیت | ۴۱۵۶ |
| ۱۸۶ | خپل مال د نذر په طور ورکول | ۴۱۵۶ |
| ۱۸۷ | د خوراک څیز حرامول | ۴۱۵۷ |
| ۱۸۸ | نذر پوره کول | ۴۱۵۸ |
| ۱۸۹ | څوک چه نذر نه پوره کوي | ۴۱۵۹ |
| ۱۹۰ | په طاعت کښې نذر منل | ۴۱۶۰ |
| ۱۹۱ | په جاهلیت کښې قسم | ۴۱۶۰ |
| ۱۹۲ | په مړ کیدونکي باندې چه کوم نذر واجب وي | ۴۱۶۱ |
| ۱۹۳ | د معصیت نذر | ۴۱۶۲ |
| ۱۹۴ | د ورځو د روژې نذر | ۴۱۶۴ |
| ۱۹۵ | د قسمونو تفصیل | ۴۱۶۴ |
| ۱۹۶ | د قسمونو کفارې | ۴۱۶۶ |
| ۱۹۷ | د الله تعالیٰ ارشاد | ۴۱۶۷ |
| ۱۹۸ | په کفاره کښې مدد کول | ۴۱۶۸ |
| ۱۹۹ | مسکینانو له ورکول | ۴۱۶۹ |
| ۲۰۰ | د مدینې په صاع کښې د برکت دعا | ۴۱۷۰ |
| ۲۰۱ | غلام آزادول | ۴۱۷۱ |
| ۲۰۲ | په کفاره کښې د غلام آزاد کړي | ۴۱۷۲ |
| ۲۰۳ | کفار کښې برده آزادول | ۴۱۷۲ |
| ۲۰۴ | په قسم کښې انشاء الله وئیل | ۴۱۷۳ |
| ۲۰۵ | د قسم ماتولو نه مخکښې کفاره | ۴۱۷۵ |
| | کتاب الفرائض | |
| ۲۰۶ | د فرائضو تعلیم | ۴۱۸۰ |
| ۲۰۷ | د حضورؐ وراثت | ۴۱۸۰ |
| ۲۰۸ | څوک چه مال پریدي | ۴۱۸۵ |
| ۲۰۹ | د مور پلار د طرفه میراث | ۴۱۸۵ |
| ۲۱۰ | د لونړو میراث | ۴۱۸۶ |
| ۲۱۱ | د نمسي میراث | ۴۱۸۷ |
| ۲۱۲ | د لور موجودګئ کښې نمسئ | ۴۱۸۸ |
| ۲۱۳ | د پلار او رور په موجودګئ کښې د نیکهٔ میراث | ۴۱۸۹ |
| ۲۱۴ | د اولاد موجودګئ کښې د خاوند میراث | ۴۱۹۰ |
| ۲۱۵ | د ښځې میراث | ۴۱۹۱ |
| ۲۱۶ | د لونړو موجودګئ کښې خویندې | ۴۱۹۱ |
| ۲۱۷ | د یوې خور او کنړو خویندو میراث | ۴۱۹۲ |
| ۲۱۸ | د کلاله میراث | ۴۱۹۲ |
| ۲۱۹ | د ښځې د تربورانو تفصیل | ۴۱۹۳ |
| ۲۲۰ | ذوي الارحام | ۴۱۹۴ |
| ۲۲۱ | د لعان کونکي میراث | ۴۱۹۴ |
| ۲۲۲ | ماشوم به ښځې ته ملاویږي | ۴۱۹۵ |
| ۲۲۳ | ولا د آزادونکي حق دے | ۴۱۹۶ |
| ۲۲۴ | د سائبه میراث | ۴۱۹۷ |
| ۲۲۵ | د مالکانو د مرضئ نه خلاف | ۴۱۹۸ |
| ۲۲۶ | د مسلمان په لاس د کافر اسلام راوړل | ۴۱۹۹ |
| ۲۲۷ | ښځه به دَ ولا حق داره وي | ۴۲۰۰ |
| ۲۲۸ | د قوم د آزاد کړده غلام یا د قوم د خورئ حکم | ۴۲۰۱ |
| ۲۲۹ | د قیدي میراث | ۴۲۰۲ |
| ۲۳۰ | د غیر مذهبه میراث | ۴۲۰۲ |
| ۲۳۱ | د نصراني غلام میراث | ۴۲۰۳ |
| ۲۳۲ | که چرې څوک د چا دَ رور یا وراره والي دعوه او کړي | ۴۲۰۳ |
| ۲۳۳ | غیر لره خپل پلار جوړول | ۴۲۰۳ |
| ۲۳۴ | ښځه چه کله د خوئي دعوه او کړي | ۴۲۰۴ |
| ۲۳۵ | قیافه پیژندل | ۴۲۰۵ |
| | کتاب الحدود | |
| ۲۳۶ | شراب به نه څکي | ۴۲۰۶ |
| ۲۳۷ | د شرابي دَ وهلو باره کښې | ۴۲۰۷ |

| باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲۳۸. | د حد هومره د وهلو حکم | ۴۲۰۷ | ۲۴۳. | د کومو حدودو چه کفاره شته | ۴۲۱۱ | ۲۴۷. | په حد کښې سفارش کول | ۴۲۱۴ |
| ۲۳۹. | په لختو او څپلو سره وهل | ۴۲۰۸ | ۲۴۴. | د حد یا حق نه سوا حدود قائمول | ۴۲۱۲ | ۲۴۸. | د غلا کونکو د لاس پریکولو حکم | ۴۲۱۵ |
| ۲۴۰. | په شرابي باندې لعنت | ۴۲۰۹ | ۲۴۵. | حدونه قائمول او الله حرمت | ۴۲۱۳ | ۲۴۹. | د غل توبه | ۴۲۱۸ |
| ۲۴۱. | غل چه کله غلا او کړي | ۴۲۱۱ | ۲۴۶. | په هر چا باندې حد قائمول | ۴۲۱۴ | | | |
| ۲۴۲. | د غل نوم اخستلو نه بغير لعنت کول | ۴۲۱۱ | | | | | تمت | |


ن

# اوه ایشتمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**باب ۱۳۶ : نَفۡخِ الصُّوۡرِ قَالَ مُجَاهِدُ الصُّوۡرِ كَهَيۡئَةِ الۡبُوۡقِ زَجۡرَةٌ صَيۡحَةٌ وَّ قَالَ ابۡنُ عَبَّاسٍ النَّاقُوۡرُ الصُّوۡرُ الرَّاجِفَةُ النَّفۡخَةُ الۡاُوۡلٰى وَ الرَّادِفَةُ النَّفۡخَةُ الثَّانِيَةُ.**

**باب ۱۳۶ :** د شپیلۍ پو كلو (وهلو) بيان. مجاهد اووے. چه صور' د' بوق په شان يو څيز دے. زجره: يعني د' چغے (چيخ) وي. او ابن عباسؓ اووے' چه ناقور نه مراد صور' دے. راجفه نه مراد وړمبنے پو كل دي. او رادفه نه مراد دوئم پو كل (شپيلۍ وهل) دي.

**۲۴۲ : حَدَّثَنِيۡ عَبۡدُ الۡعَزِيۡزِ بۡنُ عَبۡدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيۡ اِبۡرَاهِيۡمُ بۡنُ سَعۡدٍ عَنِ بۡنِ شِهَابٍ عَنۡ اَبِيۡ سَلَمَةَ بۡنِ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ وَ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ الۡاَعۡرَجِ اَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ اَنَّ اَبَا هُرَيۡرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ قَالَ اسۡتَبَّ رَجُلَانِ رَجُلٌ مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ وَ رَجُلٌ مِّنَ الۡيَهُوۡدِ فَقَالَ الۡمُسۡلِمُ وَالَّذِيۡ اصۡطَفٰى مُحَمَّدًا عَلَى الۡعٰلَمِيۡنَ فَقَالَ الۡيَهُوۡدِيُّ وَالَّذِيۡ اصۡطَفٰى مُوۡسٰى عَلَى الۡعٰلَمِيۡنَ قَالَ فَغَضِبَ الۡمُسۡلِمُ عِنۡدَ ذٰلِكَ فَلَطَمَ وَجۡهَ الۡيَهُوۡدِيِّ فَذَهَبَ الۡيَهُوۡدِيُّ اِلٰى رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَاَخۡبَرَهُ بِمَا كَانَ مِنۡ اَمۡرِهٖ وَ اَمۡرِ الۡمُسۡلِمِ فَقَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لَا تُخَيِّرُوۡنِيۡ عَلٰى مُوۡسٰى فَاِنَّ النَّاسَ يَصۡعَقُوۡنَ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ فَاَكُوۡنُ فِيۡ اَوَّلِ مَنۡ يُّفِيۡقُ فَاِذَا**

**۲۴۲ :** عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. او عبدالرحمٰن اعرج. حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي' د هغه بيان دے. دوو سړو يو بل ته بد رد اووے. هغوي كښې يو مسلمان وو' او بل يهودي وو. مسلمان اووے' قسم دے په هغه ذات' چه هغه محمد صلي الله عليه وسلم ته په ټولو دنيا والو فضيلت وركړے دے. يهودي اووے' قسم دے په هغه ذات' چه هغه موسٰي عليه السلام له په ټولو دنيا والو فضيلت وركړے دے. هغه مسلمان په دے خبره غصه شو' او هغه يهودي له ئے په مخ څپيړه وركړله. يهودي د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو' او حضور صلي الله عليه وسلّم ته ئې خپله او د مسلمان معامله بيان كړه (چه د غصے نه په مخ ئے اووهلم) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' ماته په موسٰي عليه السلام فضيلت مه راكوئ' ځكه چه ټول خلق به د قيامت په ورځ بيهوشه شي' زه به د ټولو نه مخكښې په هوش كښې راشم' هغه وخت به اووينم' چه موسٰي عليه السلام د عرش غاړه نيولے ده. زه نه پوهيږم'

مُوْسٰى بَاطِشٌ بِجَانِبِ الْعَرْشِ فَلَا اَدْرِيْ اَكَانَ مُوْسٰى فِيْمَنْ صَعِقَ فَاَفَاقَ قَبْلِيْ اَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنٰى مِنْهُ.

چه ایا موسی علیه السلام د بیهوشي نه پس خما نه مخکښې هوش کښې راغلې دے. یا د هغې خلقو نه دے، چه هغوي به الله تعالی د بیهوشي نه مستثنیٰ کړے وي.

۲۴۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْعَقُ النَّاسُ حِيْنَ يَصْعَقُوْنَ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ قَامَ فَاِذَا مُوْسٰى اٰخِذٌ بِالْعَرْشِ فَمَا اَدْرِيْ اَكَانَ فِيْمَنْ صَعِقَ رَوَاهُ اَبُوْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۴۳ : ابو الیمان. شعیب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، کوم وخت چه ټول خلق بیهوشه شي، زه به د ټولو نه مخکښې هوش کښې راشم، نو وینم به، چه موسی علیه السلام به د عرش پایه نیولې وي. اوس ما ته نه ده معلومه، چه هغه د بیهوشه کیدو والو نه وو (یا نه).

## بَاب ۱۳۷ : يَقْبِضُ اللّٰهُ الْاَرْضَ رَوَاهُ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۳۷ : الله تعالی به ځمکه خپل موټې کښې واخلي. نافع دا د، ابن عمر رضي الله عنه نه، هغه د حضور صلي الله علیه وسلم نه روایت اوکه.

۲۴۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقْبِضُ اللّٰهُ الْاَرْضَ وَ يَطْوِى السَّمَآءَ بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ اَيْنَ مُلُوْكُ الْاَرْضِ.

۲۴۴ : محمد بن مقاتل. عبدالله. یونس. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریره رضي الله عنه، حضور صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، الله تعالی به د قیامت په ورځ زمکه موټې کښې واخلي، او آسمان به خپل ښي لاس سره ونغاړي. بیا به فرمائي، زه بادشاه یم، د زمکې بادشاهان چرته دي.

۲۴۵ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدٍ

۲۴۵ : یحیي بن بکیر. لیث. خالد. سعید بن ابي هلال. زید بن اسلم. عطاء بن یسار. ابو سعید خدري

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ هِلَالٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَكُوْنُ الْاَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُبْزَةً وَاحِدَةً يَتَكَفَّؤُهَا الْجَبَّارُ بِيَدِهٖ كَمَا يَكْفَأُ اَحَدُكُمْ خُبْزَتَهٗ فِي السَّفَرِ نُزُلًا لِاَهْلِ الْجَنَّةِ فَاَتٰى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ بَارَكَ الرَّحْمٰنُ عَلَيْكَ يَا اَبَا الْقَاسِمِ اَلَا اُخْبِرُكَ بِنُزُلِ اَهْلِ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ بَلٰى قَالَ تَكُوْنُ الْاَرْضُ خُبْزَةً وَّاحِدَةً كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْنَا ثُمَّ ضَحِكَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ ثُمَّ قَالَ اَلَا اُخْبِرُكَ بِاِدَامِهِمْ قَالَ اِدَامُهُمْ بَالَامُ وَّ نُوْنٌ قَالُوْا وَمَا هٰذَا قَالَ ثَوْرٌ وَّ نُوْنٌ يَاْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُوْنَ اَلْفًا.

رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، زمكه به د قيامت په ورځ د، يو روټئ په شان وي، چه اللّٰه تعالي به هغه خپللاس كښ د، جنتيانو د ميلمستيا د پاره راغنډه كړي. څنګه چه يو سړے تاسو كښ سفر كښ خپله روټے خپل لاس كښ راغنډوي، يهودو كښ يو سړے راغے، او وئيلے، اے ابو القاسم صلي اللّٰه عليه وسلم، اللّٰه (ج) دے په تاسو بركت نازل كړي، ايا زه د قيامت په ورځ د، اهل جنت د دعوت متعلق تاسو ته خبر درنه كړم، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل، اُو. (يعني خبر راكړه) هغه اووے، چه زمكه به د يوے روټے په شان شي، څنګه چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي وو. هغه شان هغه اووے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ خلقو طرف ته اوكتل. بيائے اوخاندل، تردے چه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلم غاښونه مبارك ښكاره شو. بيائے اوفرمائيل، آيا زه تاسو ته د هغوي د اينكولي (سالن) متعلق اونه ښايم، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د هغوي اينكولے به بالام او نون وي، خلقو عرض اوكه، دا څه څيزونه دي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه غوئے او كب (بيل اومچهلي) دي، چه د هغے د كليجي د نوك نه به اويا زره سړي خوراك كوي.

ف: (۱) كليجي: اينه (۲) نوك: څوكه، د څه څيز نرے سر، مخوكه.

۲۴۶: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى

۲۴۶: سعيد بن ابي مريم. محمد بن جعفر. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، د خلقو حشر به د

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلٰى اَرْضٍ بَيْضَآءَ عَفْرَآءَ كَقُرْصَةِ نَقِيٍّ قَالَ سَهْلٌ اَوْ غَيْرُهٗ لَيْسَ فِيْهَا مَعْلَمٌ لِّاَحَدٍ.

قيامت په ورځ په تکه سپينه زمکه وي، چه د سپينو غنمو د روټے په شان به وي. او سهلؒ يا بل چا، اووے، هغے کښې به د چا جنډه نه وي.

## باب ۱۳۸ : كَيْفَ الْحَشْرُ.

## باب ۱۳۸ : د حشر د کيفيت بيان.

۲۴۷ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُحْشَرُ النَّاسُ عَلٰى ثَلٰثِ طَرَائِقَ رَاغِبِيْنَ رَاهِبِيْنَ وَاثْنَانِ عَلٰى بَعِيْرٍ وَّ ثَلٰثَةٌ عَلٰى بَعِيْرٍ وَّ اَرْبَعَةٌ عَلٰى بَعِيْرٍ وَّ عَشَرَةٌ عَلٰى بَعِيْرٍ وَّ تَحْشُرُ بَقِيَّتَهُمُ النَّارُ تَقِيْلُ مَعَهُمْ حَيْثُ قَالُوْا وَ تَبِيْتُ مَعَهُمْ حَيْثُ بَاتُوْا وَ تُصْبِحُ مَعَهُمْ حَيْثُ اَصْبَحُوْا وَ تُمْسِىْ مَعَهُمْ حَيْثُ اَمْسَوْا.

۲۴۷ : معلي بن اسد. وهيب. ابن طاؤس. طاؤس. ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د خلقو حشر به په درے شانه وي، يوه ډله به د راغبينُ راهبينُ وي، دوئمه ډله به د هغو خلقو وي، چه په يو اوښ به دوه، په څنے اوښ به درے، په څنے به څلور او په څنے اوښ به لس سرِي سواره وي. او بقيه به هغه خلق وي، چه هغوي به اور راټول کرِي، چه کوم ځائے هغوي سملي، هلته به هغه ورسره وي، او کوم ځائے چه هغوي شپه تيروي، هغه اور به ورسره شپه تيروي، او کوم ځائے چه هغوي صبا کوي. هغه به ورسره صبا کوي. أو کوم ځائے چه هغوي ماښام کوي، هلته به ورسره هغه ماښام کوي.

۲۴۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْبَغْدَادِيُّ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسُ ابْنُ مَالِكٍؓ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ كَيْفَ يَحْشَرُ الْكَافِرُ عَلٰى وَجْهِهٖ قَالَ اَلَيْسَ الَّذِىْ اَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِى الدُّنْيَا قَادِرًا عَلٰى اَنْ يُّمْشِيَهٗ عَلٰى وَجْهِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ قَتَادَةُ بَلٰى وَ عِزَّةِ رَبِّنَا.

۲۴۸ : عبدالله بن محمد. يونس بن محمد بغدادي. شيبان. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، يو سرِي عرض اوکه، اے د الله نبيؐ د کافرو حشر به د مخونو په اړخ وي (يعني د پښو په ځائے به په مخونو پاسي). حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا هغه ذات چه هغه دنيا کښې هغه (کافر) د پښو په طرف اوګرځولو. په دے قادر نه دے، چه د قيامت په ورځ د مخونو په طرف ئے اوګرځوي؟ قتاده اووے، او، د خپل پروردګار په عزت م دے قسم وي. (ضرور قادر دے).

٦٢٤٩: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اِنَّكُمْ مُلَاقُوا اللّٰهِ حُفَاةً عُرَاةً مُشَاةً غُرْلًا قَالَ سُفْيَانُ هٰذَا مِمَّا نَعُدُّ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ سَمِعَهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٦٢٤٩: علي. سفيان. عمرو. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي ما د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، تاسو خلق به يقيناً اللّٰه تعالٰي سره يوځائے كيږئے، داسے حال كښ چه تاسو به پښيے ابلے پښيے، بربنډ بدن، پياده پا او ښا سنت كړے ئے. سفيان اووے، مونږ دا حديث هغے حديثونو كښ شمار كوو، چه ابن عباسؓ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے دي.

٦٢٥٠: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ اِنَّكُمْ مُلَاقُوا اللّٰهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا.

٦٢٥٠: قتيبه بن سعيد. سفيان. عمرو. سعيد بن جبير. ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه په منبر واوريدل، بيشكه تاسو اللّٰه سره پښيے ابلے پښيے، بربنډ جسم او ناسنته يوځائے كيدونكے ئے.

٦٢٥١: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُغِيرَةِ ابْنِ النُّعْمَانِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَامَ فِينَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَالَ اِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ الْاٰيَةَ وَ اِنَّ اَوَّلَ الْخَلَائِقِ يُكْسٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ اِبْرَاهِيمُ وَ اَنَّهُ سَيُجَاءُ بِرِجَالٍ مِنْ اُمَّتِيْ فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَاَقُولُ يَا رَبِّ

٦٢٥١: محمد بن بشار. غندر. شعبه. مغيره بن نعمان. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي، زمونږ مينځ كښ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خطبے وركولو د پاره اودريدلو. وے فرمائيل، ستاسو حشر به داسے حال كښ وي، چه تاسو به پښيے ابلے پښيے او بربنډ جسم ئے (اللّٰه تعالٰي فرمائي) په ورمبني ځل مو، چه څنګه پيدا كړي وئے، دغه شان به مو، دوباره پيدا كوو، آخر آيت پورے. او د قيامت په ورځ به د ټولونه مخكښ ابراهيم عليه السلام ته لباس واغستولے شي. خما د امت څنے خلق به راوستے شي. كس لاس واله به وي (يعني اعمالنامه به ئے كس لاس كښ وي) او د هغوي مواخذه به كيږي. زه به عرض اوكړم، اے خما پروردګاره، دا

اَصْحَابِيْ فَيَقُوْلُ اِنَّكَ لَا تَدْرِيْ مَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ فَاَقُوْلُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَا دُمْتُ فِيْهِمْ اِلٰى قَوْلِهِ الْحَكِيْمُ قَالَ فَيُقَالُ اِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّيْنَ عَلٰى اَعْقَابِكُمْ.

خما امت دے، اللّٰه تعالىٰ به فرمائي، تاته نه ده معلومه چه دوي ستانه پس څه څه كړے دے، نو زه به هغه عرض اوكړم، چه صالح بنده (يعني حضرت عيسيٰ عليه السلام) به ئے كوي، چه زه په هغوي گواه ووم، څو پورے چه زه هغوي كښې ووم، او د اللّٰه قول: الحكيم: پورے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. بيا به دا جواب وركړے شي، چه دے خلقو هميشه روگرداني كوله.

۲۵۲ : حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اَبِيْ صَغِيْرَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُحْشَرُوْنَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَآءُ يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ فَقَالَ الْاَمْرُ اَشَدُّ مِنْ اَنْ يُّهِمَّهُمْ ذَاكِ.

۲۵۲ : قيس بن حفص. خالد بن حارث. حاتم بن ابي صغيره. عبداللّٰه بن ابي مليكه. قاسم بن محمد بن ابي بكر نه روايت كوي، د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه تاسو به پښے ابلے پښے، بربنډ بدن او ناسنته پاسولے شے. بي بي عائشه رضي اللّٰه عنها وائي، ما عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، سړي او ښځے به يو بل ته گوري، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه وخت به ددے نه زيات سخت وي، چه هغوي دِ ددے قصد هم اوكړے شي (يعني د هغے وخت د سختي په سبب هيڅوك بل چاته متوجه كيدے نه شي).

۲۵۳ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ قُبَّةٍ فَقَالَ اَتَرْضَوْنَ اَنْ تَكُوْنُوْا رُبُعَ اَهْلِ الْجَنَّةِ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ

۲۵۳ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحق. عمرو بن ميمون. عبداللّٰه نه روايت كوي، مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يو خيمه كښې وو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ايا تاسو دا خوښوئے، چه تاسو د اهل جنت څلورمه (چوتهائي) حصه ئے. مونږ عرض اوكه، جي، او. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ايا تاسو دا خوښوئے. چه تاسو د اهل جنت دريمه حصه ئے،

اَتَرْضَوْنَ اَنْ تَكُوْنُوْا ثُلُثَ اَهْلِ الْجَنَّةِ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ اَتَرْضَوْنَ اَنْ تَكُوْنُوْا شَطْرَ اَهْلِ الْجَنَّةِ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ اِنِّيْ لَاَرْجُوْا اَنْ تَكُوْنُوْا نِصْفَ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ ذٰلِكَ اَنَّ الْجَنَّةَ لَا يَدْخُلُهَا اِلَّا نَفْسٌ مُّسْلِمَةٌ وَّ مَا اَنْتُمْ فِيْ اَهْلِ الشِّرْكِ اِلَّا كَالشَّعَرَةِ الْبَيْضَاءِ فِيْ جِلْدِ الثَّوْرِ الْاَسْوَدِ اَوْ كَالشَّعَرَةِ السَّوْدَاءِ فِيْ جِلْدِ الثَّوْرِ الْاَحْمَرِ.

مونږ جواب اوكه' جي. او. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' آيا تاسو دے خبرے سره خوشحاله ئے' چه تاسو د اهل جنت نيمه (نصف) ئے. مونږ جواب اوكه' جي' او. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' په هغه ذات م دے قسم وي' د چا په قبضه قدرت كښ چه د محمدؐ ساه ده. زهٔ اميد كوم' چه تاسو به نيم (نصف) اهل جنت ئے. او خبره داده چه جنت كښ مسلمان داخليدے شي. او تاسو د اهل شرک مقابله كښ داسے ئے' څنګه چه د تور (سياه) غوئي (بيل) څرمن سپين ويښته يا د سُر (سرخ) غوئي په څرمن تور ويښته وي.

۲۵۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَوَّلُ مَنْ يُدْعٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ اٰدَمُ فَتَرَاءٰى ذُرِّيَّتَهٗ فَيُقَالُ هٰذَا اَبُوْكُمْ اٰدَمُ فَيَقُوْلُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ فَيَقُوْلُ اَخْرِجْ بَعْثَ جَهَنَّمَ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ كَمْ اُخْرِجُ فَيَقُوْلُ اَخْرِجْ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةً وَ تِسْعِيْنَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِذَا اُخِذَ مِنَّا مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَّ تِسْعُوْنَ فَمَاذَا يَبْقٰى مِنَّا قَالَ اِنَّ اُمَّتِيْ فِي الْاُمَمِ كَالشَّعَرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي الثَّوْرِ الْاَسْوَدِ.

۲۵۴: اسماعيل. برادر اسماعيل. ثور. ابو الغيث. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' د قيامت په ورځ به د ټولونه مخكښ آدم عليه السلام اوبللے شي. هغه به خپل بال بچ (ذريّت) ويني. هغوي ته به وئيلے شي' چه دا ستاسو پلار آدم عليه السلام دے' (ددے په جواب كښ به) آدم عليه السلام عرض اوكړي' لبيک و سعديک. الله تعالىٰ به فرمائي' جهنم ته چه ستا كوم اولاد ليږلے شي' هغوي راوكاږه (راجدا كړه). حضرت آدم عليه السلام به عرض اوكړي. اے پروردګاره' څومره كسان ترے راجدا كړم' الله تعالىٰ به فرمائي' هر سل كښ يو كم سل راوكاږه خلقو عرض اوكه' يا رسول اللهؐ هر كله چه مونږ كښ سلو كښ يو كم سل راوښكاږے شي' نو مونږ كښ څومره باقي پاتے شي. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل' د' نورو امتونو مقابله كښ څما امت د سپين ويښته په شان دے' چه د تور غوئي په څرمن وي.

باب ١٣٩ : قَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ اِنَّ زَلْـزَلَةَ السَّـاعَةِ شَیْءٌ عَظِیْمٌ اَزِفَةِ الْاٰزِفَةُ اِقْتَرَبَةِ السَّاعَةُ.

٢٥٥ : حَدَّثَنِیْ یُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰی حَدَّثَنَا جَرِیْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ سَعِیْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ اللّٰهُ یَا اٰدَمُ فَیَقُوْلُ لَبَّیْكَ وَ سَعْدَیْكَ وَالْخَیْرُ فِیْ یَدَیْكَ قَالَ یَقُوْلُ اَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ قَالَ وَمَا بَعْثُ النَّارِ قَالَ مِنْ كُلِّ اَلْفٍ تِسْعَ مِائَةٍ وَ تِسْعَةً وَّ تِسْعِیْنَ فَذَاكَ حِیْنَ یَشِیْبُ الصَّغِیْرُ وَ تَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَ تَرَی النَّاسَ سُكٰرٰی وَمَاهُمْ بِسُكٰرٰی وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِیْدٌ فَاشْتَدَّ ذٰلِكَ عَلَیْهِمْ فَقَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَیُّنَا ذٰلِكَ الرَّجُلُ قَالَ اَبْشِرُوْا فَاِنَّ مِنْ یَّاْجُوْجَ وَ مَاْجُوْجَ اَلْفٌ وَّ مِنْكُمْ رَجُلٌ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِیْ نَفْسِیْ فِیْ یَدِهٖ اِنِّیْ لَاَطْمَعُ اَنْ تَكُوْنُوْا ثُلُثَ اَهْلِ الْجَنَّةِ قَالَ فَحَمِدْنَا اللّٰهَ وَ كَبَّرْنَا ثُمَّ قَالَ وَالَّذِیْ نَفْسِیْ فِیْ یَدِهٖ اِنِّیْ لَاَطْمَعُ اَنْ تَكُوْنُوْ شَطْرَ اَهْلِ الْجَنَّةِ اِنَّ مَثَلَكُمْ فِی الْاُمَمِ كَمَثَلِ الشَّعَرَةِ الْبَیْضَاءِ فِیْ جِلْدِ الثَّوْرِ الْاَسْوَدِ اَوِ الرَّقْمَةِ فِیْ ذِرَاعِ

باب ١٣٩ : د اللّٰه تعالٰي قول' بيشكه د قيامت زلزله يو ډير لوئے څيز دے' (د' اللّٰه تعالٰي قول چه) راتلونكے راغے' او قيامت نزدے راغے.

٢٥٥ : يوسف بن موسٰي. جرير. اعمش. ابو صالح. ابو سعيد نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' اللّٰه تعالٰي به فرمائي' اے اٰدم عليه السلام. اٰدم عليه السلام به عرض او كړي' لبيک و سعديک' خير ستا لاس كښ دے. اللّٰه تعالٰي به فرمائي' دوزخ ته آستولو د پاره خلق راوكاږه. اٰدم عليه السلام به عرض اوكړي څومره. اللّٰه تعالٰي به فرمائي' هر زرو كښ يو كم زر (حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي) دا وخت به هغه وي' چه بچے به بوډا شي' او هر حمل واله به خپل حمل اوغورځوي' او ته به خلق د بيهوشي حالت كښ بيامومے. حالانكه هغوي به بيهوشه نه وي' ليكن د اللّٰه عذاب ډير سخت دے. په صحابهؓ دا امر ډير سخت تير شو. او هغوي عرض اوكه' يا رسول اللّٰه (هغه يو سړے به) مونږ كښ څوک وي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' ياجوج ماجوج كښ به يو زر او تاسونه به يو فرد' وي. بيائے اوفرمائيل' په هغه ذات مې دے قسم وي' د چا په قبضه كښ چه څما ساه ده' زه اميد كوم چه تاسو به د اهل جنت دريمه حصه ئے. مونږ الحمدللّٰه او اللّٰه اكبر: اووے. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' په هغه ذات مې دے قسم وي' د چا په قبضه كښ چه څما ساه ده' چه تاسو به نيم (نصف) اهل جنت ئے. د نورو امتونو د اعتبار نه به ستاسو مثال داسے وي' لكه سپين ويښته چه د تور غوئي په څرمن كښې وي'

الْحِمَارِ.

باب ۱۴۰ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى: اَلَا يَظُنُّ اُولٰٓئِكَ اَنَّهُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ لِيَوْمٍ عَظِيْمٍ يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ تَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ قَالَ الْوُصْلَاتُ فِي الدُّنْيَا.

۲۵۶ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبَانَ حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْفٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ قَالَ يَقُوْمُ اَحَدُهُمْ فِيْ رَشْحِهٖ اِلٰى اَنْصَافِ اُذُنَيْهِ.

۲۵۷ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمٰنُ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَعْرَقُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتّٰى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِي الْاَرْضِ سَبْعِيْنَ ذِرَاعًا وَّ يُلْجِمُهُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ اٰذَانَهُمْ.

باب ۱۴۱ : اَلْقِصَاصِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ هِيَ الْحَاقَّةُ لِاَنَّ فِيْهَا الثَّوَابَ وَ حَوَآقَ الْاُمُوْرِ الْحَقَّةُ وَالْحَاقَّةُ وَاحِدٌ وَّالْقَارِعَةُ وَالْغَاشِيَةُ وَالصَّاخَّةُ

يا سپين داغ چه د خر په مخکښي پټون کښې وي.

باب ۱۴۰ : د الله تعالي قول' آيا هغه خلق يقين نه كوي' چه هغوي به په يوه لويه ورخ پاسولے شي' په كومه ورخ چه به خلق د' رب العلمين مخكښې اودريږي' او ابن عباسؓ اووے: و تقطعت بهم الاسباب: (د كافرو ټول اسباب به منقطع شي) او وئيلے' چه ميل جول صرف دنيا پورے دے.

۲۵۶ : اسماعيل بن ابان. عيسي بن يونس. ابن عون. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' په كومه ورخ چه خلق د رب العلمين مخكښې اودريږي' نو د خپل نيم غوږونو پورے به خوله (پسينه) كښې غرق وي.

۲۵۷ : عبدالعزيز بن عبدالله. سليمان. ثور بن زيد. ابوالغيث. حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' د قيامت په ورخ به خلق خپله خوله (پسينه) كښې ډوب وي' تردے چه د هغوي خوله به زمكه كښې اويا گزه خوره شي. او د هغوي خولو ته رسيدو سره به د هغوي غوږونو ته اورسي.

باب ۱۴۱ : قيامت كښې د قصاص اخستلو بيان. او ددے نوم حاقه دے' ځكه چه په دغه ورخ به د ټولو كارونو بدله وركيدے شي' حقه او حاقه او قارعه او غاشيه او د صاخه يو معني دي. او د تغابن معني دي' د

وَالتَّغَابُنُ غَبْنُ اَهْلِ الْجَنَّةِ اَهْلِ النَّارِ.

اهل جنت دوزخ واله هيرول.

٢٥٨ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَّلُ مَا يُقْضٰى بَيْنَ النَّاسِ بِالدِّمَآءِ.

٢٥٨ : عمر بن حفص. حفص. اعمش. شقيق. حضرت عبدالله نه روايت كوي، د هغه بيان دے حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د قيامت په ورځ به د هر څه نه مخكښې د، خون (وينے يعني قتل) فيصله كيږي.

٢٥٩ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَتْ عِنْدَهُ مَظْلِمَةٌ لِاَخِيْهِ فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهَا فَاِنَّهُ لَيْسَ ثَمَّ دِيْنَارٌ وَلَا دِرْهَمٌ مِّنْ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُؤْخَذَ لِاَخِيْهِ مِنْ حَسَنَاتِهٖ فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُ حَسَنَاتٌ اُخِذَ مِنْ سَيِّاٰتِ اَخِيْهِ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ.

٢٥٩ : اسماعيل. مالك. سعيد مقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كوم سړي چه په خپل ورور ظلم كړے وي، نو د هغه نه دے معافي اوغواړي، دَ، دے نه مخكښې چه د هغه د ورور د پاره د، هغه نيكئ واخستے شي. او كه هغه سره نيكئ نه وي، نو د هغه د مظلوم ورور گناه به په هغه ورځ په هغه واچولے شي، (ځكه چه په هغه ورځ به درهم و دينار نه وي).

٢٦٠ : حَدَّثَنِي الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ ذُرَيْعٍ وَّ نَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيِّ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْلُصُ الْمُؤْمِنُوْنَ مِنَ النَّارِ فَيُحْبَسُوْنَ عَلٰى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَيُقَصُّ لِبَعْضِهِمْ مِّنْ بَعْضٍ مَّظَالِمُ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا حَتّٰى اِذَا هُذِّبُوْا وَ نُقُّوْا اُذِنَ لَهُمْ فِيْ

٢٦٠ : صلت بن محمد. يزيد بن ذريع بيان اوكه (و نزعنا لما في صدورهم من غل) سعيد. قتاده. ابوالمتوكل. ناجي. حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، مومنان به د دوزخ نه خلاصے بيامومي، نو په يو پُل به ايسار كړے شي، چه د جنت او جهنم مينځ كښې به وي. نو د يو نه به بل ته بدله وركولے شي. چه هغوي په يو بل دنيا كښې ظلمونه كړے وي. تردے چه هغوي به پاك او صاف شي، نو هغوي ته به جنت كښې د، داخلے (يعني ورتلو) اجازت وركړے شي. په هغه ذات م

دُخُولَ الْجَنَّةِ فَوَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَاَحَدُهُمْ اَهْدٰى بِمَنْزِلِهٖ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهٖ كَانَ فِي الدُّنْيَا.

دے قسم وي، د چا په قبضه کښې چه د محمد صلي الله عليه وسلم ساه ده، هر سړے به جنت کښې خپل کور د دنيا د کور نه زيات ښه پيژني.

**ف**: الله دے خمونږ د ټولو نصيب کړي. اللّهم امين.

**بـاب ١٤٢ : مَنْ نُوْقِشَ الْحِسَابَ عُذِّبَ.**

**باب ١٤٢** : د چا حساب کښې چه تفتيش اوشي، نو هغه له عذاب دے.

**٢٦١** : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْاَسْوَدِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ نُوْقِشَ الْحِسَابَ عُذِّبَ قَالَتْ قُلْتُ اَلَيْسَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيْرًا قَالَ ذٰلِكَ الْعَرْضُ.

**٢٦١** : عبدالله بن موسي. عثمان بن اسود. ابن ابي مليكه. بي بي عائشة. نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، د چا حساب کښې چه تفتيش اوشي، نو هغه له عذاب دے (الله دے ترے مونږ په امان کړي. اللّهم امين) د بي بي عائشې بيان دے، ما عرض او که، آيا دا د الله تعالي قول نه دے، چه عنقريب آسان حساب به وي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، دا خو (صرف) پيشي ده.

**٢٦٢** : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْاَسْوَدِ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ وَ تَابَعَهُ ابْنُ جُرَيْجٍ وَّ مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمٍ وَ اَيُّوْبُ وَ صَالِحُ بْنُ رُسْتُمٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**٢٦٢** : عمرو بن علي. يحيي. عثمان بن اسود. ابن ابي مليکه. بي بي عائشے نه روايت کوي. د هغے بيان دے. ما د حضور صلي الله عليه وسلم نه اوريدلے دي، ابن جريج او محمد بن سليم او ايوب او صالح بن رستم په واسطه د، ابن ابي مليکه، بي بي عائشے الله عنها، حضور صلي الله عليه وسلم نه ددے متابعت کښې روايت کړے دے.

**٢٦٣** : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اَبِيْ صَغِيْرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ

**٢٦٣** : اسحق بن منصور. روح بن عباده. حاتم بن ابي صغيره. عبدالله بن ابي مليکه. قاسم بن محمد. بي بي عائشے رضي الله عنها

اللّٰهِ بْنُ اَبِیْ مُلَیْكَةَ حَدَّثَنِی الْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَتْنِیْ عَآئِشَةُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَیْسَ اَحَدٌ یُحَاسَبُ یَوْمَ الْقِیَامَةِ اِلَّا هَلَكَ فَقُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَیْسَ قَدْ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی فَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ كِتَابَهٗ بِیَمِیْنِهٖ فَسَوْفَ یُحَاسَبُ حِسَابًا یَّسِیْرًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا ذٰلِكَ الْعَرْضُ وَ لَیْسَ اَحَدٌ یُنَاقِشُ الْحِسَابَ یَوْمَ الْقِیَامَةِ اِلَّا عُذِّبَ.

نه روايت كوي. د هغې بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د قيامت په ورځ چه د چا حساب واخستے شي، نو هغه به هلاک شي. ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، آيا اللّٰه تعالي دا نه دي فرمائيلي، د کوم سړي عمل نامه چه هغه ته په ښي لاس ورکړے شي، نو عنقريب هغه نه به آسان حساب واخستے شي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا خو صرف پيشي ده. او د قيامت په ورځ د چا په حساب کښې چه تفتيش اوشي، نو هغه له به عذاب ورکولے شي.

۲۶۴ : حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا سَعِیْدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍؓ اَنَّ نَبِیَّ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ كَانَ یَقُوْلُ یُجَآءُ بِالْكَافِرِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فَیُقَالُ لَهٗ اَرَئَیْتَ لَوْ كَانَ لَكَ مِلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا اَكُنْتَ تَفْتَدِیْ بِهٖ فَیَقُوْلُ نَعَمْ فَیُقَالُ لَهٗ قَدْ كُنْتَ سُئِلْتَ مَا هُوَ اَیْسَرُ مِنْ ذٰلِكَ.

۲۶۴ : علي بن عبداللّٰه. معاذ بن هشام. قتاده. حضرت انسؓ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي (دوئم سند) محمد بن معمر. روح بن عباده. سعيد. حضرت انسؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د قيامت په ورځ چه کافر راوغوښتلے شي، نو هغه ته به اووئيلے شي، وايه، که تا سره د زمکې برابر سره زر وے، نو هغه به بدله کښې ورکولو سره به تا عذاب نه خلاصي غوښتلے، هغه به وائي او. نو هغه ته به اوئيلے شي چه تا نه د نه نه کم څيز غوښتلے شوے وو.

۲۶۵ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِیْ قَالَ

۲۶۵ : عمر بن حفص. حفص. اعمش. خيثمه. عدي بن حاتم نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم

حَدَّثَنِيُ الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيُ خَيْثَمَةُ عَنُ عَدِيِّ بُنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ مَا مِنُكُمُ مِنُ اَحَدٍ اِلَّا وَ سَيُكَلِّمُهُ اللّٰهُ يَوُمَ الْقِيٰمَةِ لَيُسَ بَيُنَ اللّٰهِ وَ بَيُنَهُ تَرُجُمَانٌ ثُمَّ يَنُظُرُ فَلَا يَرٰى شَيُئًا قُدَّامَهُ ثُمَّ يَنُظُرُ بَيُنَ يَدَيُهِ فَتَسُتَقُبِلُهُ النَّارُ فَمَنِ اسُتَطَاعَ مِنُكُمُ اَنُ يَتَّقِيَ النَّارَ وَلَوُ بِشِقِّ تَمُرَةٍ قَالَ الْاَعُمَشُ حَدَّثَنِيُ عَمُرٌو وَ عَنُ خَيُثَمَةَ عَنُ عَدِيِّ بُنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ اِتَّقُوا النَّارَ ثُمَّ اَعُرَضَ وَ اَشَاحَ ثُمَّ قَالَ اتَّقُوا النَّارَ ثُمَّ اَعُرَضَ وَ اَشَاحَ ثَلٰثًا حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ يَنُظُرُ اِلَيُهَا ثُمَّ قَالَ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوُ بِشِقِّ تَمُرَةٍ فَمَنُ لَمُ يَجِدُ بِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ.

اوفرمائيل: تاسو کښې به هر سړي سره د قيامت په ورځ الله تعالىٰ خبرې کوي، په دا شان چه د هغه او د الله مينځ کښې به هيڅ ترجمان نه وي. بيا به هغه نظر اوچت کړي، نو خپلې مخې ته به هيڅ اونه ويني. بيا به خپلې مخې ته نظر اوکړي. نو دوزخ به ورته مخې ته راشي. نو تاسو کښې چه څوک د دوزخ نه بچ کيدل غواړي (هغه دې ځان بچ کړي) اگر که د قجورې د يوې ټکړې په ذريعه ولې نه وي. اعمش په واسطه د: عمرو، خثيمه، عدي بن حاتم: نبي صلي الله عليه سلّم نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د اور نه بچ شئې. بيائې خپل مخ واوړلو. اووې فرمائيل. اور نه بچ شئې. بيائې خپل مخ واړولو، درې ځله ئې داسې اووې، تردې چه مونږ گمان اوکه، چه حضور صلي الله عليه وسلّم هغه ويني. بيائې اوفرمائيل، د اور نه بچ شئې: اگر که د قجورې د يوې ټکړې په ذريعه ولې نه وي، او چا ته چه دا هم حاصل نه وي، نو د ښو خبرو پذريعه (دې ځان د اور نه بچ کړي).

## بَاب ۱۴۳: يَدُخُلُ الْجَنَّةَ سَبُعُوْنَ اَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ.

## باب ۱۴۳: جنت کښې به اويا زره (سړي) بې حسابه داخليږي.

۲۶۶: حَدَّثَنَا عِمُرَانُ بُنُ مَيُسَرَةَ حَدَّثَنَا بُنُ فُضَيُلٍ حَدَّثَنَا حُصَيُنٌ وَ حَدَّثَنِيُ اُسَيُدُ بُنُ زَيُدٍ حَدَّثَنَا هُشَيُمٌ عَنُ حُصَيُنٍ قَالَ كُنُتُ عِنُدَ سَعِيُدِ بُنِ جُبَيُرٍ فَقَالَ حَدَّثَنِيُ ابُنُ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ عُرِضَتُ عَلَيَّ الْاُمَمُ

۲۶۶: عمران بن ميسره. ابن فضيل. حصين او اسيد بن زيد. هشيم. حصين. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ځما مخکښې امتونه پيش کړې شو، نو يو نبي تير شولو چا سره چه يو اُمت وو، چا سره يوه ډله وه: چا سره لس او چا سره پنځه سړي وو: او څوک يوازې روان وو. بيا ما نظر اوچت کړلو، نو په يو لوئې جماعت مِ نظر پريوتلو:

فَاَخَذَ النَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ الْاُمَّةُ وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ النَّفَرُ وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ الْعَشَرَةُ وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ مَعَهُ الْخَمْسَةُ وَالنَّبِيُّ يَمُرُّ وَحْدَهُ فَنَظَرْتُ فَاِذَا سَوَادٌ كَثِيْرٌ قُلْتُ يَا جِبْرِيْلُ هٰؤُلَاۤءِ اُمَّتِيْ قَالَ لَا وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْاُفُقِ فَنَظَرْتُ فَاِذَا سَوَادٌ كَثِيْرٌ قَالَ هٰؤُلَاۤءِ اُمَّتُكَ وَهٰؤُلَاۤءِ سَبْعُوْنَ اَلْفًا قُدَّامَهُمْ لَا حِسَابَ لَهُمْ وَلَا عَذَابَ قُلْتُ وَلِمَ قَالَ كَانُوْا لَا يَكْتَوُوْنَ وَلَا يَسْتَرْقُوْنَ وَلَا يَتَطَيَّرُوْنَ وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ فَقَامَ اِلَيْهِ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ ادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ ثُمَّ قَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ اٰخَرُ قَالَ ادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ.

ما اووے اے جبرائیلؑ دا خما اُمت دے؟ جبرائیلؑ اووے نه. افق طرف ته اوګوره ما اوکتل نو یو لوئے جماعت به نظر راغے. جبرائیلؑ اووے دا ستاسو اُمت دے. او دوی نه مخکښ چه کوم اویا زره دی هغوي سره به نه حساب وي او نه به پرے عذاب وي. ما تپوس اوکه ولے؟ جبرائیلؑ اووے دے خلقو به داغ نه لګولو او نه به ئے جنتر منتر کولو او نه به ئے بدفالي کوله او صرف خپل رب باندے ئے بهروسه کوله. عکاشه بن محصن حضور صلي الله عليه وسلم ته مخکښ اودریدلو او عرض ئے اوکه (یا رسول الله) الله تعالي نه دعا اوغواړئے چه ما د دے خلقو نه کړي. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائیل: یا الله دے دے کسانو نه کړے. بیا یو بل سړے اودریدلو او عرض ئے اوکه (یا رسول الله) الله تعالي نه دعا اوغواړئے چه ما هم د دے خلقو نه کړي. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائیل چه عکاشه ستا نه نمبر یوړلو (یعني مخکښ شولو).

۲۶۷ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ اَسَدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَدْخُلُ مِنْ اُمَّتِيْ زُمْرَةٌ هُمْ سَبْعُوْنَ اَلْفًا تُضِيْءُ وُجُوْهُهُمْ اِضَاۤءَةَ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقَامَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ الْاَسَدِيُّ يَرْفَعُ نَمِرَةً عَلَيْهِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

۲۶۷ : معاذ بن اسد. عبدالله. یونس. زهري. سعید بن مسیب. ابوهریرةؓ نه روایت کوي ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوریدل خما د اُمت نه به د اویا زرو یو جماعت داخل شي. د هغوي مخونه به داسے ځلیږي څنګه چه د څوارلسمے شپے سپوږمۍ ځلیږي. د ابوهریرةؓ بیان دے عکاشه بن محصن اسدي خپل څادر اوچتولو سره پاسیدلو او عرض ئے اوکه یا رسول الله الله نه دعا اوغواړئے چه ما د دے خلقو نه کړي. حضور صلي الله عليه وسلم

اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ ثُمَّ قَامَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَقَالَ سَبَقَكَ عُكَّاشَةُ.

او فرمائيل، اے اللّٰه! دے ددوي نه کړے. بيا انصارو کښې يو سړے اودريدلو او عرض ئې او کړ: يا رسول اللّٰه، اللّٰه نه دعا او غواړئ چه ما هم ددوي نه کړي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل، عکاشه تا نه مخکښې شولو.

۱۔ د اوياؤ يا اويا زرو تعداد په عربي کښې عموما د کثرت او مبالغې اظهار د پاره استعمالولے شي او په دے احاديثو کښې هم په دے معني کښې استعمال شوے دے. حقيقي معني ئې مراد نه ده.

**۲۶۸:** حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ مِنْ اُمَّتِيْ سَبْعُوْنَ اَلْفًا اَوْ سَبْعُ مِائَةِ اَلْفٍ شَكَّ فِيْ اَحَدِهِمَا مُتَمَاسِكِيْنَ اٰخِذٌ بَعْضُهُمْ بِبَعْضٍ حَتّٰى يَدْخُلَ اَوَّلُهُمْ وَ اٰخِرُهُمْ الْجَنَّةَ وُجُوْهُهُمْ عَلٰى ضَوْءِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ.

**۲۶۸:** سعيد بن ابي مريم، ابو غسان، ابو حازم، سهل بن سعد نه روايت کوي، د هغه بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، خما د اُمت اويا (۷۰) زره يا، وے فرمائيل، اوه (۷) لاکھه (راوي ته شک دے) سړي به جنت کښې داخليږي. د يو بل لاس به ئې نيولے وي، تر دے چه دوي کښې مخکښني او ورستني به ټول جنت کښې داخل شي. او د هغوي مخونه به د څوارلسمے (۱۴) سپوږمئ په شان ځليږي.

**۲۶۹:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ حَدَّثَنَا نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا دَخَلَ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَ اَهْلُ النَّارِ النَّارَ ثُمَّ يَقُوْمُ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ يَا اَهْلَ النَّارِ لَا مَوْتَ وَ يَا اَهْلَ الْجَنَّةِ لَا مَوْتَ خُلُوْدٌ.

**۲۶۹:** علي بن عبد اللّٰه، يعقوب بن ابراهيم، ابراهيم، صالح، نافع، ابن عمرؓ، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل، کوم وخت چه جنت واله جنت کښې او دوزخ واله دوزخ کښې داخل شي، نو د هغوي مينځ کښې به يو اعلان کونکے اعلان او کړي، اے، دوزخ والو، دلته مرګ نشته، او، اے جنت والو، دلته مرګ نشته، هميشه اوسيدل دي.

**۲۷۰:** حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ

**۲۷۰:** ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج،

أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لِأَهْلِ الْجَنَّةِ خُلُوْدٌ لَّا مَوْتَ وَ لِأَهْلِ النَّارِ يَا أَهْلَ النَّارِ خُلُوْدٌ لَّا مَوْتَ.

حضرت ابو هريرة نه روايت كوي. د هغه بيان دے نبي صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل. جنت والو ته به اوونيلے شي. اے جنت والو. دلته هميشه اوسيدل دي. دلته مرګ نشته. او دوزخ والو ته به هم اوونيلے شي. اے دوزخ والو. دلته هميشه اوسيدل دي. مرګ نشته.

## باب ۱۴۴ : صِفَةِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ

## باب ۱۴۴ : د جنت او دوزخ د صفت بيان

وَ قَالَ أَبُوْ سَعِيْدٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ طَعَامٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ زِيَادَةُ كَبِدِ حُوْتٍ عَدْنٌ خُلْدٌ عَدَنْتُ بِأَرْضٍ أَقَمْتُ وَ مِنْهُ الْمَعْدِنُ فِيْ مَعْدِنِ صِدْقٍ فِيْ مَقْعَدِ صِدْقٍ.

ابو سعيد اووے. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل. جنتيان به د ټولو نه وړمبے چه کوم طعام خوري. هغه به د کب (مچھلی) اينه وي. عدن معني دي: هميشه اوسيدل. عدنت بارض: معني دي: ما دے زمکه کښې قيام اوکه. معدن صدق: کښې "معدن" دے نه ماخوذ دے. يعني د ربښتياؤ د پيدا کيدو ځائے.

۶۱۷۱ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ أَبِيْ رَجَاءٍ عَنْ أَبِيْ رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ.

۶۱۷۱ : عثمان بن هيثم. عوف. ابو رجاء. عمران. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. ما جنت کښې اوکتل. هلته م اکثر فقيران اوليدل (اللّٰه دے خمونږ هم نصيب کړي. اللّهم آمين). او. چه دوزخ کښې م او کتل. نو هغے کښې زياتے اوسيدونکے ښځے وے.

۶۱۷۲ : مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ فَكَانَ عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِيْنَ وَ أَصْحَابُ الْجَدِّ مَحْبُوْسُوْنَ غَيْرَ أَنَّ أَصْحَابَ النَّارِ قَدْ

۶۱۷۲ : مسدد. اسمعيل. سليمان. تيمي. ابو عثمان. حضرت اسامه. حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل. زه د جنت په دروازه اودريدم. څه ګورم. هلته زيات داخليدونكي مسكينان دي. او مال واله محبوس (قيد) وو. سوا د دوزخيانو نه. چه د هغوي دوزخ ته د بوتلو حكم وركړے شوے وو. او زه د دوزخ په دروازه

أُمِرَ بِهِمُ إِلَى النَّارِ وَ قُمْتُ عَلٰى بَابِ النَّارِ فَإِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَآءُ.

اودريدم: نو او: م ليدل: چه هلته داخليدونكو كښې زياتے ښځے وے.

۲۷۳: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ اَسَدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ حَدَّثَهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَارَ اَهْلُ الْجَنَّةِ اِلَى الْجَنَّةِ وَ اَهْلُ النَّارِ اِلَى النَّارِ جِيْءَ بِالْمَوْتِ حَتّٰى يُجْعَلَ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ ثُمَّ يُذْبَحُ ثُمَّ يُنَادِيْ مُنَادِيًا اَهْلَ الْجَنَّةِ لَا مَوْتَ يَا اَهْلَ النَّارِ لَا مَوْتَ فَيُزَادُ اَهْلُ الْجَنَّةِ فَرَحًا اِلٰى فَرَحِهِمْ وَ يَزْدَادُ اَهْلُ النَّارِ حُزْنًا اِلٰى حُزْنِهِمْ.

۲۷۳: معاذ بن اسد: عبد اللّٰه: عمر بن محمد بن زيد: محمد بن زيد: ابن عمرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے: رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: كوم وخت چه جنت والا جنت كښې او دوزخ والا دوزخ كښې داخل شي، نو مرګ به راوستے شي، تر دے چه د جنت او دوزخ مينځ كښې به كيښودے شي: بيا به ذبح كړے شي. بيا به يو اعلان كونكے اعلان اوكړي، اے جنت والو: دلته مرګ نشته. او اے دوزخ والو: دلته مرګ نشته. د جنتيانو په خوشحالي كښې به ايضافه اوشي، او د: دوزخيانو غم به زيات شي.

۲۷۴: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ اَسَدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ زَيْدِ ابْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ لِاَهْلِ الْجَنَّةِ يَا اَهْلَ الْجَنَّةِ يَقُوْلُوْنَ لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَ سَعْدَيْكَ فَيَقُوْلُ هَلْ رَضِيْتُمْ فَيَقُوْلُوْنَ وَ مَا لَنَا لَا نَرْضٰى وَ قَدْ اَعْطَيْتَنَا مَا لَمْ تُعْطِ اَحَدًا مِّنْ خَلْقِكَ فَيَقُوْلُ اَنَا اُعْطِيْكُمْ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ

۲۷۴: معاذ بن اسد، عبد اللّٰه، مالک بن انس: زيد بن اسلم، عطاء بن يسار، ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: اللّٰه تعالي به فرمائي، اے جنت والو: هغوي به عرض اوكړي، اے خمونږ پروردګاره لبيک و سعديک. بيا به اللّٰه تعالي فرمائي، آيا تاسو خوشحاله نے، هغه خلق به وائي، مونږ دے ولے راضي نه يو: هر كله چه تا مونږ ته هغه څيز عطاء كړے دے، چه خپل مخلوق كښې دے هيچا ته نه دے وركړے. اللّٰه تعالي به ورته فرمائي، زه به تاسو ته د دے نه بهتر څيز دركړم، هغه خلق به

قَالُوْا يَا رَبِّ وَاَيُّ شَيْءٍ اَفْضَلُ مِنْ ذٰلِكَ فَيَقُوْلُ اُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِيْ فَلَا اَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهٗ اَبَدًا.

تپوس او کړي، اے ربه، د دے نه بهتر څه څیز دے، الله تعالی به اوفرمائي، زه به په تاسو خپله رضامندي نازله کړم، دے نه پس به زه تاسو نه هیڅ کله ناراضه نه شم.

۲۷۵ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو وَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ اُصِيْبَ حَارِثَةُ يَوْمَ بَدْرٍ وَ هُوَ غُلَامٌ فَجَآءَتْ اُمُّهٗ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ عَرَفْتَ مَنْزِلَةَ حَارِثَةَ مِنِّيْ فَاِنْ يَّكُ فِي الْجَنَّةِ اَصْبِرُ وَ اَحْتَسِبُ وَ اِنْ تَكُنِ الْاُخْرٰى تَرٰى مَا اَصْنَعُ فَقَالَ وَيْحَكِ اَوْ هَبِلْتِ اَوْ جَنَّةٌ وَّاحِدَةٌ هِيَ اِنَّهَا جِنَانٌ كَثِيْرَةٌ وَ اِنَّهٗ لَفِيْ جَنَّةِ الْفِرْدَوْسِ.

۲۷۵ : عبد الله بن محمد، معاویه بن عمرو، ابو اسحق، حمید نه روایت کوي، د هغه بیان دے، ما د انسؓ نه واوریدل، حارثه د بدر په ورځ شهید شولو، هغه کم عمره وو، د هغه مور د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. او عرض ئے او کړه، یا رسول اللّٰه، تاسوؐ ته معلومه ده، چه د، حارثه مرتبه څما په زړه کښې څه ده، که هغه جنت کښې وي، نو زه به صبر کوم، او ثواب به حاصلوم، او که بل ځائے وي، نو تاسو به اووینئے، چه زه څه کوم. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ورته: ویحک یا هبلت: (یعني احمق) او فرمائیل، آیا جنت څه یو دے، جنتونه خو ډیر دي، او هغه به جنت فردوس کښې وي.

۲۷۶ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ اَسَدٍ اَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا الْفُضَيْلُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَيْنَ مَنْكَبَيِ الْكَافِرِ مَسِيْرَةُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ لِلرَّاكِبِ الْمُسْرِعِ وَ قَالَ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا الْمُغِيْرَةُ بْنُ سَلَمَةَ حَدَّثَنَا وَهِيْبٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَّسِيْرُ

۲۷۶ : معاذ بن اسد، فضل بن موسي، فضیل، ابو حازم، حضرت ابو هریرهؓ، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، د کافر، د، دواړو اوږو (مونډهوں) په مینځ کښې به د تیز رفتار سور (سوار) د، درے ورځو مسافت وي. او اسحاق بن ابراهیم په واسطه د مغیره بن سلمه، وهیب، ابو حازم، سعد بن سهل رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، جنت کښې به یوه اونه وي، د هغے په سوري کښې به یو سور (سوار) سل کاله پورے مزل کوي، او د هغه

الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا قَالَ اَبُوْ حَازِمٍ فَحَدَّثْتُ بِهِ النُّعْمَانَ بْنَ اَبِيْ عَيَّاشٍ فَقَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِيْ الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيْرُ الرَّاكِبُ الْجَوَادَ الْمُضَمَّرَ السَّرِيْعَ مِائَةَ عَامٍ مَّا يَقْطَعُهَا.

سفر به هيڅله نه ختميږي د ابو حازم بيان دے. ما دا حديث نعمان بن ابي عياش ته بيان كه، هغه اووے، ماته ابو سعيد بيان اوكه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، جنت كښې به يوه اونه وي، د هغې په سوري كښې به تيز رفتاره چست اس سوار سل كاله پورے مزل كوي. بيا به هم د هغه سفر ختم نه شي.

۲۷۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ مِنْ اُمَّتِيْ سَبْعُوْنَ اَوْ سَبْعُ مَائَةِ اَلْفٍ لَّا يَدْرِيْ اَبُوْ حَازِمٍ اَيُّهُمَا قَالَ مُتَمَاسَكُوْنَ اٰخِذٌ بَعْضُهُمْ بَعْضًا لَّا يَدْخُلُ اَوَّلُهُمْ حَتّٰى يَدْخُلَ اٰخِرُهُمْ وَجُوْهُهُمْ عَلٰى صُوْرَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ.

۲۷۷: قتيبه، عبد العزيز، ابو حازم، سهل بن سعد نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ځما اُمّت كښې به اويا زره يا (وے فرمائيل) اوه لاكهه سړي جنت كښې داخليږي. د ابو حازم بيان دے، ماته ياد نه دي، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اويا زره يا اوه لاكهه او فرمائيل، ذ يو بل لاس به ئے نيولے وي. څو پورے چه ذ هغوي وروستي داخل نه شي، هغه وخت پورے به وړومبي نه داخليږي، د هغوي مخونه به لكه ذ څوارلسمے ذ سپوږمئ په شان ځليږي.

۲۷۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَهْلَ الْجَنَّةِ لَيَتَرَآءَوْنَ الْغُرَفَ فِيْ الْجَنَّةِ كَمَا تَتَرَآءَوْنَ الْكَوْكَبَ فِيْ السَّمَآءِ قَالَ اَبِيْ فَحَدَّثْتُ النُّعْمَانَ بْنَ اَبِيْ عَيَّاشٍ فَقَالَ اَشْهَدُ لَسَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدٍ يُحَدِّثُ وَ يَزِيْدُ فِيْهِ كَمَا تَرَآءَوْنَ الْكَوْكَبَ

۲۷۸: عبد اللّٰه بن مسلمه، عبد العزيز خپل پلار نه، هغه ذ سهل نه، او سهل د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، جنت واله به جنت كښې بالاخانو كښې داسے ويني، څنګه چه تاسو آسمان كښې ستوري وينئ. ځما پلار بيان اوكه. ما نعمان بن ابي عياش ته دا حديث بيان كه، هغه اووے، ما ذ ابو سعيد نه واوريدل، او دومره ئے نور زيات بيان اوكه، چه څنګه تاسو ډوبيدونكي ستوري په مشرقي او

الْغَارِبَ فِيْ الْاُفُقِ الشَّرْقِيِّ وَالْغَرْبِيِّ.

مغربي اُفق ويني.

۶۲۷۹: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى لِاَهْوَنِ اَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ لَوْ اَنَّ لَكَ مَا فِيْ الْاَرْضِ مِنْ شَيْءٍ اَكُنْتَ تَفْتَدِيْ بِهٖ فَيَقُوْلُ نَعَمْ فَيَقُوْلُ اَرَدْتُّ مِنْكَ اَهْوَنَ مِنْ هٰذَا وَ اَنْتَ فِيْ صُلْبِ اٰدَمَ اَنْ لَّا تُشْرِكَ بِيْ شَيْئًا فَاَبَيْتَ اِلَّا اَنْ تُشْرِكَ بِيْ.

۶۲۷۹: محمد بن بشار، غندر، شعبه، ابو عمران، انس بن مالك، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، اللّه تعالٰي به د قيامت په ورځ د ټولو نه كم عذاب والا ته اوفرمائي، كه تاسره د زمكې برابر څه څيز (يعني دولت) وي، نو آيا ته به د هغې ور كولو سره د عذاب نه خلاصي غوښتلو. هغه به جواب وركړي. او. اللّه به فرمائي، ماتانه د دې نه لږ څيز غوښتلې وو، كوم وخت چه ته د آدم په صلب كښې وې، هغه دا چه ماسره څوك مه شريكوه، ليكن تا انكار اوكه، او ماسره دې شريك جوړ كړلو.

۶۲۸۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ بِالشَّفَاعَةِ كَاَنَّهُمُ الثَّعَارِيْرُ قُلْتُ مَا الثَّعَارِيْرُ قَالَ الضَّغَابِيْسُ وَ كَانَ قَدْ سَقَطَ فَمُهٗ لِعَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ اَبَا مُحَمَّدٍ سَمِعْتَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَخْرُجُ بِالشَّفَاعَةِ مِنَ النَّارِ قَالَ نَعَمْ.

۶۲۸۰: ابو النعمان. حماد، عمرو جابر نه روايت كوي، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، د شفاعت په ذريعه به څه خلق د دوزخ نه اوځي، دا شان چه هغه به ثعارير، وي. ما تپوس اوكه ثعارير څه څيز دې. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، ضغابيس دې. د هغوي خولې (منه) به راغرځيدلې وي. د حماد بيان دې ما د عمرو بن دينار نه تپوس اوكه، آيا تا د جابر بن عبد اللّه نه اوريدلي دي، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم فرمائيلي دي، خلق به د شفاعت په ذريعه دوزخ نه اوځي، هغه اووې. او.

۶۲۸۱: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بَعْدَ

۶۲۸۱: هدبه بن خالد، همام، قتاده، حضرت انس بن مالك، نبي صلّي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلم او فرمائيل. څه خلق به د عذاب بيامندو نه، پس د دوزخ نه

مَا مَسَّهُمْ مِنْهَا سَفْعٌ فَيَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ فَيُسَمِّيْهِمْ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَهَنَّمِيِّيْنَ.

اوځي، جنت کښې به داخل شي او جنت واله به هغوي د دوزخيانو په نوم بلي.

۲۸۲ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ ؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا دَخَلَ اَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَ اَهْلُ النَّارِ النَّارَ يَقُوْلُ اللّٰهُ مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ مِّنْ اِيْمَانٍ فَاَخْرِجُوْهُ فَيَخْرُجُوْنَ قَدِ امْتُحِشُوْا وَ عَادُوْا حُمَمًا فَيُلْقَوْنَ فِيْ نَهَرِ الْحَيَاةِ فَيَنْبُتُوْنَ كَمَا تَنْبُتُ الْحَبَّةُ فِيْ حَمِيْلِ السَّيْلِ اَوْ قَالَ حَمِيَّةِ السَّيْلِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَمْ تَرَوْا اَنَّهَا تَنْبُتُ صَفْرَآءَ مُلْتَوِيَةً.

۲۸۲ : موسي، وهيب، عمرو بن يحيي، يحيي. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلم فرمائيل. کوم وخت چه جنت واله جنت کښې او دوزخ واله دوزخ کښې داخل شي، نو الله تعالي به فرمائي، د کوم سړي په زړه کښې چه دَ اُوري (رائي) برابر ايمان وي، هغه د دوزخ نه اوکاږئ. هغه به اُوښکلي شي. هغوي به دَ سکاره (کوئلي) په شان راوځي. نو هغوي به دَ ژوندانه په نهر (نهرحيات) کښې واچولي شي. او هغوي به داسې ترو تازه راوځي، ځنګه چه دَ درياب په غاړه ډيراني (کوڑا کرکٹ) کښې تروتازه دانه زرغنيږي. او حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، آيا تاسو نه ګورئ. چه هغه دانه انغښتې زيړه راوځي.

۲۸۳ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اَهْوَنَ اَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَرَجُلٌ تُوْضَعُ فِيْ اَخْمَصِ قَدَمَيْهِ جَمْرَةٌ يَغْلِيْ مِنْهَا دِمَاغُهٗ.

۲۸۳ : محمد بن بشار، غندر، شعبه، ابو اسحاق، نعمان، حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. ما د حضور صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، د قيامت په ورځ به د ټولو نه کم عذاب واله هغه سړې وي، چه د هغه په دواړو پښو به دَ اُور بخري لږيدلي وي. او هغې سره به د هغه دماغ ويشيږي، ځنګه چه کټوئ ويشيږي.

۲۸۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ

۲۸۴ : عبد الله بن رجاء، اسرائيل، ابو اسحاق، نعمان بن بشير نه روايت کوي. د هغه بيان دې.

اسحٰق عن النُّعمان بن بشيرٍ قال سمعت النبيَّ صلَّى اللّٰه عليه وسلَّم يقول انَّ اهون اهل النَّار عذابًا يَّوم القيٰمة رجلٌ على اخمص قدميه جمرتان يغلي منهما دماغه كما يغلي المرجل والقمقم.

ما د حضور صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل د قيامت په ورځ به د ټولو نه کم عذاب په هغه سړي وي چه د هغه په دواړو پښو به دوه د اور خرو ټکے لږيدلے وي او د هغے دواړو په سبب به د هغه دماغ داسے جوش وهي ځنگه چه کټوئ يا ديگ جوش وهي.

٢٨٥: حدَّثنا سليمان بن حرب حدَّثنا شعبة عن عمرٍو عن خيثمة عن عديِّ ابن حاتمٍ النبيَّ صلَّى اللّٰه عليه وسلَّم ذكر النَّار فاشاح بوجهه فتعوَّذ منها ثمَّ قال اتَّقوا النَّار ولو بشقِّ تمرةٍ فمن لَّم يجد فبكلمةٍ طيِّبةٍ.

٢٨٥: سليمان بن حرب، شعبه، عمرو، خيثمه، عدي بن حاتم نه روايت کوي. نبي صلي الله عليه وسلّم د دوزخ ذکر اوکه. نو خپل مخ مبارک ئے واړولو. او د هغے نه ئے پناه او غوښتله. بيائے او فرمائيل، دوزخ نه بچ شئے، اگر که د قجورے په يوه ټکړه ولے نه وي. او چاسره چه داهم نه وي (يعني بالکل لينگ وي) نو د نيکو خبرو په ذريعه (دے ځان بچ کړي).

٢٨٦: حدَّثنا ابرٰهيم بن حمزة حدَّثنا ابن ابي حازمٍ والدَّارا وردىُّ عن يزيد عن عبد اللّٰه بن خبَّابٍ عن ابي سعيد الخدريِّ رض انَّه سمع رسول اللّٰه صلَّى اللّٰه عليه وسلَّم و ذكر عنده عمُّه ابو طالبٍ فقال لعلَّه تنفعه شفاعتي يوم القيٰمة فيجعل في ضحضاحٍ مِّن النَّار يبلغ كعبيه يغلي منه امُّ دماغه.

٢٨٦: ابراهيم بن حمزه، ابن ابي حازم او، دراوردي، بريد، عبد الله بن خباب، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل. حضور صلي الله وسلّم ته د خپل تره (چچا) ذکر اوشو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، شايد د قيامت په ورځ خما شفاعت د هغه په کار راشي، چه اور به د هغه تر گيټو پورے وي. او هغے سره به د هغه مازغه (دماغ) يشيږي.

٢٨٧: حدَّثنا مسدَّدٌ حدَّثنا ابو عوانة عن قتادة عن انسٍ قال قال رسول اللّٰه صلَّى اللّٰه عليه وسلَّم يجمع اللّٰه

٢٨٧: مسدد، ابو عوانه، قتاده، انس نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، الله به د قيامت په ورځ خلق جمع کړي، نو خلق به وائي. کاش چه د الله دربار کښې څوک خمونږ شفاعت اوکړي. چه

النَّاسَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُوْلُوْنَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا عَلٰى رَبِّنَا حَتّٰى يُرِيْحَنَا مِنْ مَكَانِنَا فَيَأْتُوْنَ اٰدَمَ فَيَقُوْلُوْنَ اَنْتَ الَّذِيْ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ نَفَخَ فِيْكَ مِنْ رُوْحِهٖ وَ اَمَرَ الْمَلَائِكَةَ فَسَجَدُوْا لَكَ فَاشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّنَا فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهٗ وَ يَقُوْلُ ائْتُوْا نُوْحًا اَوَّلَ رَسُوْلٍ بَعَثَهُ اللّٰهُ فَيَأْتُوْنَهٗ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهٗ ائْتُوْا اِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ اتَّخَذَهُ اللّٰهُ خَلِيْلًا فَيَأْتُوْنَهٗ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهٗ ائْتُوا مُوْسٰى الَّذِيْ كَلَّمَهُ اللّٰهُ فَيَأْتُوْنَهٗ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ فَيَذْكُرُ خَطِيْئَتَهٗ ائْتُوْا عِيْسٰى فَيَأْتُوْنَهٗ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ ائْتُوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَ مَا تَاَخَّرَ فَيَأْتُوْنِيْ فَاَسْتَاْذِنُ عَلٰى رَبِّيْ فَاِذَا رَاَيْتُهٗ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِيْ مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ يُقَالُ ارْفَعْ رَاْسَكَ سَلْ تُعْطَهْ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَاَرْفَعُ رَاْسِيْ فَاَحْمَدُ

مونږ د دے خانے نه خلاصي بيامومو. نو هغه خلق به حضرت آدم عليه السلام له راشي ورته به وايي تاسو الله پاک خپل لاس سره پيدا کړے يئ، او تاسو کښې ئے خپل روح واچولو. او فريښتو ته ئے حکم اوکه، نو هغوي درته سجده اوکړله. تاسو خمونږ پروردګار ته سفارش اوکړئے آدم عليه السلام به ورته فرمائي: زه د دے لائق نه يم او د خپلے غلطي ذکر به اوکړي، او فرمائي به نوح عليه عليه السلام له ورشئے، هغه د ټولو نه وړمبنے رسول دے. چه الله مبعوث کړلو، خلق به هغه له ورشي، هغه به د خپلے غلطي ذکر اوکړي، فرمائي به زه د دے لائق نه يم، تاسو ابراهيم عليه السلام له ورشئے، چه الله خپل خليل جوړ کړلو خلق به هغه له ورشي نو هغه به د خپلے غلطي ذکر اوکړي فرمائي به: زه د دے لائق نه يم، تاسو موسي عليه السلام له ورشے، چه هغه سره الله کلام (خبرے) کړے دي. خلق به هغه له ورشي. هغه به فرمائي زه نن د دے قابل نه يم، او د خپلے غلطي ذکر به اوکړي. فرمائي به: تاسو عيسي عليه السلام له ورشے. خلق به عيسي عليه السلام له ورشي. هغه به فرمائي، زه نن د دے قابل نه يم، تاسو حضرت محمد صلي الله عليه وسلم له ورشے د هغه مخکني او ورستني ګناهونه معاف شوے دي. خلق به ماله راشي (حضور صلي الله عليه وسلم فرمائي) زه به د خپل پروردګار نه اجازت اوغواړم. کوم وخت چه زه الله اووينم، نو په سجده به پريوځم. څو پورے چه د الله خوښه وي، ما به دے حالت کښې ساتي. بيا به راته اوونيلے شي. خپل سر اوچت که. عواړه دربه کړے شي. اووايه اوريدلے به

رَبِّيْ بِتَحْمِيْدٍ يُعَلِّمُنِيْ ثُمَّ اَشْفَعُ فَيَحُدُّلِيْ حَدًّا ثُمَّ اُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَ اُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ اَعُوْدُ فَاَقَعُ سَاجِدًا مِثْلَهُ فِي الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ حَتّٰى مَا بَقِيَ فِي النَّارِ اِلَّا مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْاٰنُ. وَ كَانَ قَتَادَةُ يَقُوْلُ عِنْدَ هٰذَا اَيْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُوْدُ.

شي. او شفاعت کوه. قبليږي به، نو زه به خپل سر اوچت کړم، د خپل پروردګار به هغه حمد او کړم. چه اللّه به ئے ماته اوښائي. بيا به زه شفاعت کوم، نو اللّه پاک به ما د پاره حد مقرر کړي. بيا به زه هغوي د دوزخ نه روکاړم، او جنت کښې به ئے داخل کړم. بيا به زه واپس راشم. او په سجده به هغه شان پريوځم، په دريم يا څلورم ځل به هم دغسے او کړم، تر دے چه دوزخ کښې به هيڅوک سړے باقي پاتے نشي، ماسوا دَ هغه نه چه هغه قرآن بند کړے وي. او قتاده د دے تفسير بيانولو، دے نه مراد هغه سړے دے، چه د هغه متعلق د هميشه پاتے کيدو حکم (قرآن کښې) بيان شوے دے.

۲۸۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ الْحَسَنِ بْنِ ذَكْوَانَ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ يُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّيْنَ.

۲۸۸ : مسدد، يحيي، حسن بن ذکوان، ابو رجاء، عمرنا بن حصين نه روايت کوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، د محمد صلّي اللّه عليه وسلّم د شفاعت په ذريعه به يو جماعت دَ دوزخ نه اوځي، بيا به هغه خلق جنت کښې داخل شي. چه جنت کښې اوسيدونکي به هغوي دَ جهنميانو په نوم بلي.

۲۸۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ اُمَّ حَارِثَةَ اَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَدْ هَلَكَ حَارِثَةُ يَوْمَ بَدْرٍ اَصَابَهُ غَرْبُ سَهْمٍ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ عَلِمْتَ مَوْقِعَ حَارِثَةَ مِنْ قَلْبِيْ فَاِنْ كَانَ فِي الْجَنَّةِ

۲۸۹ : قتيبه، اسمٰعيل بن جعفر، حميد، حضرت انسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، د حضرت حارثهؓ مور د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. او حضرت حارثهؓ جنګ بدر کښې يو تير سره شهيد شوے وو. هغے عرض او کړو، تاسوؐ ته معلومه ده، څما زړه کښې دَ حارثهؓ مقام څه دے. که هغه جنت کښې وي.

لَمْ اَبْكِ عَلَيْهِ وَ اِلَّا سَوْفَ تَرٰى مَا اَصْنَعُ فَقَالَ لَهَا هَبِلْتِ اَجَنَّةٌ وَّاحِدَةٌ هِيَ اِنَّهَا جِنَانٌ كَثِيْرَةٌ وَّ اِنَّهُ فِي الْفِرْدُوْسِ الْاَعْلٰى وَ قَالَ غَدْوَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَ مَا فِيْهَا وَ لَقَابُ قَوْسِ اَحَدِكُمْ اَوْ مَوْضِعُ قَدَمٍ مِّنَ الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَ مَا فِيْهَا وَ لَوْ اَنَّ امْرَاَةً مِّنْ نِّسَآءِ اَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَتْ اِلَى الْاَرْضِ لَاَضَآءَتْ مَا بَيْنَهُمَا وَ لَمَلَاَتْ مَا بَيْنَهُمَا رِيْحًا وَ لَنَصِيْفُهَا يَعْنِي الْخِمَارَ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَ مَا فِيْهَا.

نو زه به په هغه نه ژاړم، کني عنقريب تاسو به اووينئ چه زه څه کوم. حضور صلى الله عليه وسلم ورته، اوفرمائيل، کم عقلے، آيا جنت څه يو دے. جنتونه خو ډير دي، هغه به فردوس اعلى کښ وي. او وے فرمائيل، د الله په لار کښ سحريا مابنام تلل د دُنيا او د دُنيا د ټولو ځيزونو نه بهتر دي. او جنت کښ د يو قدم برابريا د ليندے د فاصلے برابر جائے د دُنيا او د دُنيا د ټولو ځيزونو نه بهتر دے. که د جنتي ښځو نه يوه ښځه دُنيا طرف ته تا قدرے او کړي (او کوري) نو ټوله زمکه به روښانه شي، او د خوشبوئ نه به ډکه شي، او د هغے پړونے د دُنيا او دے کښ د ټولو ځيزونو نه بهتر دے.

**۶۲۹۰** : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ اَحَدٌ الْجَنَّةَ اِلَّا اُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ لَوْ اَسَآءَ لِيَزْدَادَ شُكْرًا وَّ لَا يَدْخُلُ النَّارَ اَحَدٌ اِلَّا اُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ لَوْ اَحْسَنَ لِيَكُوْنَ عَلَيْهِ حَسْرَةً.

**۶۲۹۰** : ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج، ابو هريرهؓ نه روايت کوي. حضرت صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، جنت کښ چه کوم سړے هم داخل شي، دوزخ کښ به د هغه ټيکاونړه هغه ته ښودلے شي. که هغه بدي کولے، د پاره د دے چه هغه زيات شکر اوباسي، او کوم سړے چه هم دوزخ کښ داخل شي، هغه ته به جنت کښ د هغه ټيکاونړه ښودلے شي، که هغه نيکي کولے، د پاره د دے چه ورته افسوس وي.

**۶۲۹۱** : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ اَنَّهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِكَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَقَالَ لَقَدْ

**۶۲۹۱** : قتيبه بن سعيد، اسمٰعيل بن جعفر، عمرو، سعيد بن ابي سعيد مقبري، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، ما عرض اوکه، يا رسول الله د قيامت په ورځ به ستاسو د شفاعت سعادت زيات کوم سړے حاصلوي. حضور صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، اے ابو هريرهؓ خما خيال وو، چه ستانه به

ظَنَنْتُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ ؓ اَنْ لَّا يَسْأَلُنِيْ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ اَحَدٌ اَوَّلُ مِنْكَ لِمَا رَاَيْتُ مِنْ حِرْصِكَ عَلَى الْحَدِيْثِ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ خَالِصًا مِنْ قِبَلِ نَفْسِه.

مخکښې هيڅوک څما نه د دې خبرې متعلق تپوس نه کوي، په دې سبب چه ته ما په حديث (زده کولو) کښې د ټولو نه زيات حريص (ډېر خواهشمند) اوليدې. د قيامت په ورځ به څما د شفاعت د سعادت د ټولو نه زيات حاصلونکې هغه سړې وي، چا چه د زړه صدق او خلوص سره: لآ اله الا اللّٰه: ونيلې وي.

۲۹۲ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ اٰخِرَ اَهْلِ النَّارِ خُرُوْجًا مِنْهَا وَ اٰخِرَ اَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُوْلًا رَّجُلٌ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ كَبْوًا فَيَقُوْلُ اللّٰهُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَيَأْتِيْهَا فَيُخَيَّلُ اِلَيْهِ اَنَّهَا مَلْاٰى فَيَرْجِعُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ وَجَدْتُّهَا مَلْاٰى فَيَقُوْلُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَيَأْتِيْهَا فَيُخَيَّلُ اِلَيْهِ اَنَّهَا مَلْاٰى فَيَرْجِعُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ وَجَدْتُّهَا مَلْاٰى فَيَقُوْلُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَاِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَ عَشَرَةَ اَمْثَالِهَا وَ اِنَّ لَكَ مِثْلَ عَشَرَةِ اَمْثَالِ الدُّنْيَا فَيَقُوْلُ تَسْخَرُ مِنِّيْ اَوْ تَضْحَكُ مِنِّيْ وَ اَنْتَ الْمَلِكُ فَلَقَدْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ وَ كَانَ يُقَالُ ذٰلِكَ اَدْنٰى اَهْلِ الْجَنَّةِ

۲۹۲ : عثمان بن ابي شيبه، جريره، منصور، ابراهيم، عبيد، عبد اللّٰه نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. زه هغه سړې پيژنم، چه د ټولو نه به آخر کښې د دوزخ نه اُوځي. او د ټولو نه آخر کښې به جنت کښې داخليږي هغه به هغه سړې وي. چه دوزخ نه به اړولې مخ اوځي. او اللّٰه تعالٰي به ورته فرمائي. څه جنت کښې داخل شه، هغه به جنت ته راشي. هغه ته به خيال راشي. چه هغه (يعني جنت) ډک دې. نو هغه به واپس شي. او عرض به او کړي، پاکه ربه، ما هغه ډک بيامند. اللّٰه تعالٰي به ورته فرمائي. څه، جنت کښې داخل شه. هغه چه جنت له ورشي، نو خيال به ورسره پيدا شي. چه ډک دې. بيا به واپس شي، او عرض به او کړي، اې پروردګاره، ما خو هغه ډک بيامند، اللّٰه تعالٰي به ورته فرمائي څه، جنت کښې داخل شه، ستا د پاره دَ دُنيا او د هغې په شان لس (۱۰) چنده دې. يا وې فرمائيل، ستا د پاره دَ دُنيا په مثل لس (۱۰) چنده (جنت) دې. هغه به وائي، آيا تاسو ماسره ټوقې يا خندا کوئې، حالانکه تاسو بادشاه ئې. ما رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته او کتل، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او خاندل، تر دې چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غاښونه مبارک ښکاره شو.

مَنْزِلَةً.

او ونيلے' دا د جنت والو ادني مرتبه ده.

ف: يعني د دے دُنيا' لس (۱۰) چنده جنت د يو ادنيٰ جنتي خائے دے.

۲۹۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنِ الْعَبَّاسِ اَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ نَفَعْتَ اَبَا طَالِبٍ بِشَيْءٍ.

۲۹۳: مسدد' ابو عوانه' عبد الملک' عبد الله بن حارث بن نوفل' حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. هغه حضور صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکه' تاسو' ابو طالب ته څه فائده اورسوله.

## باب ۱۴۵: الصِّرَاطُ جِسْرُ جَهَنَّمَ.

## باب ۱۴۵ صراط د جهنم پل دے.

۲۹۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدٌ وَّ عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَؓ اَخْبَرَهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ اُنَاسٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ نَرٰى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَقَالَ هَلْ تُضَآرُّوْنَ فِي الشَّمْسِ لَيْسَ دُوْنَهَا سَحَابٌ قَالُوْا لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ هَلْ تُضَآرُّوْنَ فِي الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَيْسَ دُوْنَهُ سَحَابٌ قَالُوْا لَا يَا

۲۹۴: ابو اليمان' شعيب' زهري' سعيد او عطاء بن يزيد' ابو هريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي (دوئم سند) محمود' عبد الرّزاق' معمر' زهري' عطاء بن يزيديثي' ابو هريرهؓ نه روايت کوي' څنې خلقو عرض اوکه' يا رسول الله' آيا مونږ ته به د قيامت په ورځ خپل پروردګار' وينو. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل آيا تاسو ته د نمر د ليدو نه نقصان رسي' هر کله چه په هغه وريځ نه وي. خلقو عرض اوکه' نه' يا رسول الله. بيا حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل' آيا ليلة القدر کښې تاسو ته د سپوږمۍ ليدو نه تکليف وي' هر کله چه په هغے وريځ نه وي. خلقو عرض اوکه' نه' يا رسول الله. نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل' تاسو به د قيامت په ورځ الله دغسے وينئے. الله تعالي به خلق راجمع کړي' او فرمائي به' کوم سړي چه د کوم څيز عبادت کولو' هغه سره دے شي' نو د نمر عبادت کونکي به نمر سره' د سپوږمۍ عبادت کونکي به

رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاِنَّكُمْ تَرَوْنَهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كَذٰلِكَ يَجْمَعُ اللّٰهُ النَّاسَ فَيَقُوْلُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ شَيْئًا فَلْيَتَّبِعْهُ فَيَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الشَّمْسَ وَ يَتْبَعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الطَّوَاغِيْتَ وَ تَبْقٰى هٰذِهِ الْاُمَّةُ فِيْهَا مُنَافِقُوْهَا فَيَاْتِيْهِمُ اللّٰهُ فِيْ غَيْرِ الصُّوْرَةِ الَّتِيْ يَعْرِفُوْنَ فَيَقُوْلُ اَنَا رَبُّكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ هٰذَا مَكَانُنَا حَتّٰى يَاْتِيَنَا رَبُّنَا فَاِذَا اَتَانَا رَبُّنَا عَرَفْنَاهُ فَيَاْتِيْهِمُ اللّٰهُ فِيْ الصُّوْرَةِ الَّتِيْ يَعْرِفُوْنَ فَيَقُوْلُ اَنَا رَبُّكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ اَنْتَ رَبُّنَا فَيَتْبَعُوْنَهُ وَ يُضْرَبُ جِسْرُ جَهَنَّمَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ يُّجِيْرُ وَ دُعَاءُ الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ اَللّٰهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ وَ بِهٖ كَلَالِيْبُ مِثْلُ شَوْكِ السَّعْدَانِ اَمَا رَاَيْتُمْ شَوْكَ السَّعْدَانِ؟ قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاِنَّهَا مِثْلُ شَوْكِ السَّعْدَانِ غَيْرَ اَنَّهَا لَا يَعْلَمُ قَدَرَ عَظَمِهَا اِلَّا اللّٰهُ فَتَخْطَفُ النَّاسَ بِاَعْمَالِهِمْ مِنْهُمُ الْمُوْبَقُ بِعَمَلِهٖ وَ

سپوږمۍ سره او دُ بُتانو عبادت کونکے به بُتانو سره شي. او دا اُمت به باقي پاتے شي. چه د دے اُمت منافقان به هم په کښې وي، نو اللّٰه تعالٰي به هغوي ته دَ هغے نه علاوه صورت کښې راشي، چه کوم کښې هغوي پيژندلو. بيا به اللّٰه تعالٰي فرمائي، زه ستاسو پروردګار يم. هغه خلق به وائي. مونږ تانه دَ اللّٰه پناه غواړو، مونږ به دلته کښې يو، څو پورے چه څمونږ پروردګار مونږ له رانشي. کوم وخت چه څمونږ پروردګار مونږ له راشي، نو مونږ به هغه اوپيژنو. بيا به اللّٰه تعالٰي هغوي ته په هغے صورت کښې راشي کوم صورت کښې چه هغوي پيژندلو. او فرمائي به زه ستاسو رب يم. هغه خلق به وائي، بيشکه ته څمونږ رب ئے. هغه خلق به هغه سره شي. او د جهنّم پُل به قائم کړے شي. د ټولو نه به مخکښې پرے زه (حضور فرمائي) پور يوځم. او د ټولو رسولانو دُعا به په دغه ورځ: اللّٰهم سلِّم سلِّم: وي. او دَ، سعدان دَ ازغو په شان اَزغي به وي، آيا تاسو دَ سعدان ازغي ليدلے دي. خلقو اووے او. يا رسول اللّٰه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. هغه به د سعدان دَ ازغو په شان وي. خو د هغے د غټ والي مقدار، دَ اللّٰه تعالٰي نه سِوا بل څوک نه پيژني. هغه ازغي به د هغوي دُ اعمالو موافق هغوي کښې ځکه کيږي. هغوي کښې به بعضے خلق د خپل عمل په سبب هلاک کيږي. او د بعضو اعمال به دَ اُوري (رائي) برابر (لږ) وي. بيا به نجات بيامومي. تر دے چه کوم وخت اللّٰه تعالٰي خپلو بنديانو د فيصلے نه فارغ شي. او د لا اله الا اللّٰه (اللّٰه نه سِوا بل معبود نشته) د شهادت کونکو نه چه کوم سړے اوښکن غواړي نو فريښتو ته به

مِنۡهُمۡ الۡمُخَرۡدَلُ ثُمَّ يَنۡجُوۡا حَتّٰى
اِذۡ فَرَغَ اللّٰهُ مِنَ الۡقَضَآءِ بَيۡنَ
عِبَادِهٖ وَ اَرَادَ اَنۡ يُّخۡرِجَ مِنَ النَّارِ
مَنۡ اَرَادَ اَنۡ يُّخۡرِجَ مِمَّنۡ كَانَ
يَشۡهَدُ اَنۡ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَمَرَ
الۡمَلٰٓئِكَةَ اَنۡ يُّخۡرِجُوۡهُمۡ
فَيَعۡرِفُوۡنَهُمۡ بِعَلَامَةِ اٰثَارِ
السُّجُوۡدِ وَ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَى
النَّارِ اَنۡ تَاۡكُلَ مِنِ ابۡنِ
اٰدَمَ اَثَرَ السُّجُوۡدِ فَيُخۡرِجُوۡنَهُمۡ
قَدِ امۡتُحِشُوۡا فَيُصَبُّ عَلَيۡهِمۡ
مَآءٌ يُّقَالُ لَهٗ مَآءُ الۡحَيٰوةِ
فَيَنۡبُتُوۡنَ نَبَاتَ الۡحِبَّةِ فِىۡ
حَمِيۡلِ السَّيۡلِ وَ يَبۡقٰى رَجُلٌ
مُّقۡبِلٌ بِوَجۡهِهٖ عَلَى النَّارِ
فَيَقُوۡلُ يَا رَبِّ قَدۡ قَشَبَنِىۡ
رِيۡحُهَا وَ اَحۡرَقَنِىۡ ذَكَآؤُهَا
فَاصۡرِفۡ وَجۡهِىۡ عَنِ النَّارِ فَلَا
يَزَالُ يَدۡعُوا اللّٰهَ فَيَقُوۡلُ لَعَلَّكَ
اِنۡ اَعۡطَيۡتُكَ اَنۡ تَسۡاَلَنِىۡ غَيۡرَهٗ
فَيَقُوۡلُ لَا وَ عِزَّتِكَ لَا اَسۡاَلُكَ
غَيۡرَهٗ فَيَصۡرِفُ وَجۡهَهٗ عَنِ النَّارِ
ثُمَّ يَقُوۡلُ بَعۡدَ ذٰلِكَ يَا رَبِّ قَرِّبۡنِىۡ
اِلٰى بَابِ الۡجَنَّةِ فَيَقُوۡلُ اَلَيۡسَ
قَدۡ زَعَمۡتَ اَنۡ لَّا تَسۡاَلَنِىۡ غَيۡرَهٗ
وَيۡلَكَ ابۡنَ اٰدَمَ مَآ اَغۡدَرَكَ فَلَا

حکم ورکړي. چه هغه د جهنم نه اوکاږي، فرېښتې به
هغوي د سجدو د نښو په سبب پېژني. او الله تعالیٰ په
اور حرام کړې دي، چه د بني آدم د سجدې ځائې او
خوري، نو فرېښتې به هغوي اوکاږي، داسې حال کښې
چه هغوي د سکرو (کوئلې) په شان وي. بيا به په هغوي
اوبه اُوبهيولې شي. چه هغې ته د ژوندانه اُوبه (ماءالحيات)
وئيلې شي. او هغوي به داسې ترو تازه شي، ځنګه چه د
درياب په غاړه ځځلو (کوڑاکرکٹ) کښې دانه زرغنيږي
يو سړې به دوزخ ته مخ کړې اُودريږي. او عرض به
اوکړي. اې پروردګاره، زه د دې هوا او چمک
اوسيزلم، ځما مخ د دوزخ نه واړوې، هغه به الله تعالیٰ نه
دُعا غواړي، اللّٰه تعالیٰ به ورته فرمائي، که زه درسره
دغسې اوکړم، نو اُميد دې، چه ته به د دې نه علاوه هم
څه غواړې. هغه به عرض اوکړي، نه، ستا په عزت مِ دې
قسم وي، د دې نه علاوه به درنه هيڅ سوال نه کوم، نو د
هغه مخ به د دوزخ نه واړولې شي. بيا به عرض اوکړي،
اې ربه، ما د جنت دروازې ته نزدې کړې، الله به ورته
فرمائي، آيا تا دا نه وو وئيلې، چه دې نه علاوه به ما نه
هيڅ څيز نه غواړې. اې بني آدمه په تا افسوس دې، تا
خپله وعده ماته کړله. هغه به دغه شان دُعا کوي. الله
تعالیٰ به ورته فرمائي، اُميد دې. که زه تا ته دا درکړم، نو
د دې نه علاوه به هم بيا مانه څه سوال کوې. هغه سړې
به عرض اوکړي، ستا په عزت مِ دې قسم وي، د دې نه
علاوه به درنه اوس بل هيڅ سوال نه کوم. بيا به الله سره
عهد و اقرار اوکړي، چه دې نه علاوه به بل څه نه
غواړي، نو اللّٰه پاک به ئې د جنت دروازې ته قريب

يَزَالُ يَدْعُوا فَيَقُولُ لَعَلِّيْ اِنْ اَعْطَيْتُكَ ذٰلِكَ تَسْاَلُنِيْ غَيْرَهٗ فَيَقُوْلُ لَا وَ عِزَّتِكَ لَا اَسْاَلُكَ غَيْرَهٗ فَيُعْطِي اللّٰهَ عَنْ عُهُوْدٍ وَّ مَوَاثِيْقَ اَنْ لَّا يَسْاَلَهٗ غَيْرَهٗ فَيُقَرِّبُهٗ اِلٰى بَابِ الْجَنَّةِ فَاِذَا رَاٰى مَا فِيْهَا سَكَتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّسْكُتَ ثُمَّ يَقُوْلُ رَبِّ اَدْخِلْنِى الْجَنَّةَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَوَ لَيْسَ قَدْ زَعَمْتَ اَنْ لَّا تَسْاَلَنِيْ غَيْرَهٗ وَيْلَكَ يَابْنَ اٰدَمَ مَا اَغْدَرَكَ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ لَا تَجْعَلْنِيْ اَشْقٰى خَلْقِكَ فَلَا يَزَالُ يَدْعُوْا حَتّٰى يَضْحَكَ فَاِذَا ضَحِكَ مِنْهُ اَذِنَ لَهٗ بِالدُّخُوْلِ فِيْهَا فَاِذَا دَخَلَ فِيْهَا قِيْلَ تَمَنَّ مِنْ كَذَا فَيَتَمَنّٰى ثُمَّ يُقَالُ لَهٗ تَمَنَّ مِنْ كَذَا فَيَتَمَنّٰى حَتّٰى تَنْقَطِعَ بِهِ الْاَمَانِيُّ فَيَقُوْلُ لَهٗ هٰذَا لَكَ وَ مِثْلُهٗ مَعَهٗ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ اٰخِرُ اَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُوْلًا قَالَ وَ اَبُوْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيُّ جَالِسٌ مَعَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضـ لَا يُغَيِّرُ عَلَيْهِ شَيْئًا مِنْ حَدِيْثِهٖ حَتّٰى انْتَهٰى اِلٰى قَوْلِهٖ هٰذَا لَكَ وَ مِثْلُهٗ مَعَهٗ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ هٰذَا لَكَ وَ عَشَرَةُ اَمْثَالِهٖ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ حَفِظْتُ مِثْلَهٗ مَعَهٗ.

کړي. بيا چه هغه څه اووينې، چه جنت کښ دي. نو څو پورے چه اللّٰه غواړي، هغه سړے به خاموش وي. بيا به عرض اوکړي، يا ربه، ما جنت کښ داخل کړے. بيا به ورته اللّٰه تعالٰي او فرمائي، آيا تا نه وو وئيلے، چه دے نه علاوه به بل څه نه غواړے. افسوس اے بني آدمه، تا دَ وعدے خلاف کار اوکه. هغه به عرض اوکړي، يا ربه، ما خپل مخلوق کښ د ټولو نه زيات بدبخت مه کړے. هغه به دغسے دُعا کوي، تر دے چه اللّٰه تعالٰي به اوخاندي، هر کله چه اللّٰه تعالٰي اوخاندي نو هغه ته به جنت کښ دَ داخليدو اجازت ورکړي. څه وخت چه هغه جنت کښ داخل شي، نو ورته به اووئيلے شي، چه څه ستا آرمان وي، هغه بيان کړه، هغه به خپله آرزو بيان کړي. بيا به هغه ته اووئيلے شي. چه خواهش اوکړه، نو هغه به خپل خواهش بيان کړي، تر دے چه د هغه ټول ارمانونه (خواهشونه) به ختم شي، نو اللّٰه تعالٰي به ورته او فرمائي، چه دا ستا ارزو ده، او دومره نور هم (واخله). ابو هريرهؓ اووے دا سړے به جنت کښ د ټولو نه آخر کښ دَ داخليدونکو نه وه. د عطاء بيان دے، ابو سعيد خدري، ابو هريرهؓ سره ناست وو. حديث کښ ئے څه اختلاف او نه که. تر دے چه کوم وخت: هٰذَا لَکَ وَ مِثْلِهٖ: ته اورسيدو، نو ابو سعيدؓ اووے، ما دَ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے دي: هٰذَا لَکَ وَ عَشَرَةُ اَمْثَالِهٖ: (يعني دا هم واخله، او د دے په شان لس (١٠) نور هم واخله). ابو هريرهؓ اووے. ماته: مِثْلَهٗ مَعَهٗ: (د دے په شان نور هم) ياد دي.

## باب ١٤٦ : فِي الْحَوْضِ. وَ

## باب ١٤٦ : دَ حوض بيان. او دَ اللّٰه تعالٰي

قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّاۤ اَعۡطَيۡنٰكَ الۡكَوۡثَرَ وَ قَالَ عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ زَيۡدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اصۡبِرُوۡا حَتّٰى تَلۡقَوۡنِيۡ عَلَى الۡحَوۡضِ.

قول: بيشكه مونږ تاته كوثر عطا كړے دے. او عبد الله بن زيد بيان او كه، نبي صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، صبر كوئ، حتي چه ماسره په حوض كوثر يو ځائے شئ.

۲۹۵: حَدَّثَنِيۡ يَحۡيَى بۡنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا اَبُوۡ عَوَانَةَ عَنۡ سُلَيۡمَانَ عَنۡ شَقِيۡقٍ عَنۡ عَبۡدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اَنَا فَرَطُكُمۡ عَلَى الۡحَوۡضِ. وَ حَدَّثَنِيۡ عَمۡرُو بۡنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ جَعۡفَرٍ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنِ الۡمُغِيۡرَةِ قَالَ سَمِعۡتُ اَبَا وَآئِلٍ عَنۡ عَبۡدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنَا فَرَطُكُمۡ عَلَى الۡحَوۡضِ وَ لَيُرۡفَعَنَّ رِجَالٌ مِنۡكُمۡ ثُمَّ لَيُخۡتَلَجُنَّ دُوۡنِيۡ فَاَقُوۡلُ يَا رَبِّ اَصۡحَابِيۡ فَيُقَالُ اِنَّكَ لَا تَدۡرِيۡ مَا اَحۡدَثُوۡا بَعۡدَكَ تَابَعَهُ عَاصِمٌ عَنۡ اَبِيۡ وَآئِلٍ وَّ قَالَ حُصَيۡنٌ عَنۡ اَبِيۡ وَآئِلٍ عَنۡ حُذَيۡفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ.

۲۹۵: يحيي بن حماد، ابو عوانه، سليمان، شقيق، عبد الله (بن مسعود) حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، زه به په حوض ستاسو پيش خيمه يم. (دوئم سند) عمرو بن علي، محمد بن جعفر، شعبه، مغيره، ابو وائل. حضرت عبد اللّٰهؓ حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، زه به په حوض ستاسو پيش خيمه يم. تاسو كښې به څه خلق څما مخے ته راوستے شي. بيا به څما نه جُدا كړے شے. نو زه به وائم، اے څما پروردګاره. دا څما دَ اُمت خلق نه دي، نو ما ته به جواب راكړے شي، تاته نه ده معلومه، څه چه دوي ستانه پس څه كړے دي. عاصم دَ ابو وائل نه د دے متابعت كښې روايت كړے دے. او حصين په واسطه دَ ابو وائل، حضرت حذيفهؓ دَ حضور صلي الله عليه وسلم نه نقل كړے دے.

۲۹۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحۡيٰى عَنۡ عُبَيۡدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيۡ نَافِعٌ عَنِ ابۡنِ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَمَامَكُمۡ حَوۡضٌ كَمَا بَيۡنَ جَرۡبَآءَ وَ اَذۡرُحَ.

۲۹۶: مسدد، يحيي، عبيد الله، نافع، حضرت ابن عمرؓ. حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. ستاسو مخكښې به حوض (كوثر په دومره فاصله) وي، څومره فاصله چه دَ جرباء او اذرح، مينځ كښې ده.

۲۹۷: حَدَّثَنِيۡ عَمۡرُو بۡنُ

۲۹۷: عمرو بن محمّد، هشيم، ابو بشر او عطاء

مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ وَّ عَطَآءُ بْنُ السَّائِبِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ الْكَوْثَرُ الْخَيْرُ الْكَثِيْرُ الَّذِىْ اَعْطَاهُ اللّٰهُ اِيَّاهُ قَالَ اَبُوْ بِشْرٍ قُلْتُ لِسَعِيْدٍ اِنَّ اُنَاسًا يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُ نَهْرٌ فِى الْجَنَّةِ فَقَالَ سَعِيْدُ النَّهَرُ الَّذِىْ فِى الْجَنَّةِ مِنَ الْخَيْرِ الَّذِىْ اَعْطَاهُ اللّٰهُ اِيَّاهُ.

بن سائب، سعيد بن جبير، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. كوثر (نه مراد) خير كثير (لوئے خير) دے، چه الله تعالٰي حضور صلّي الله عليه وسلّم ته وركړے دے. دَ ابو بشر بيان دے. ما سعيد ته اووے. خلق ګمان كوي، چه هغه جنت كښ يو نهر دے. سعيد اووے، هغه نهر چه جنت كښ دے، منجمله د خير نه دے. چه الله تعالٰي حضور صلّي الله عليه وسلّم ته عطاء كړے دے.

۲۹۸: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِىْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ اَبِىْ مُلَيْكَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَوْضِىْ مَسِيْرَةُ شَهْرٍ مَّآءُهُ اَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ وَ رِيْحُهُ اَطْيَبُ مِنَ الْمِسْكِ وَ كِيْزَانُهُ كَنُجُوْمِ السَّمَآءِ مَنْ شَرِبَ مِنْهَا فَلَا يَظْمَأُ اَبَدًا.

۲۹۸: سعيد بن ابي مريم، نافع بن عمر، ابن ابي مليكه، حضرت عبد الله بن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، څما حوض په درے مياشتو د مسافت برابر دے، د هغے اُوبه د پيؤ نه زياتے سپينے، او د مشک نه زياتے خوشبوداره دي، او د هغے كوزے دَ اسمان د ستورو په شان (ډير تعداد كښ) دي. څوک چه ترے اوڅكي، نو هيڅ كله به بيانه ترے كيږي.

۲۹۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِىْ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنِىْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ قَدْرَ حَوْضِىْ كَمَا بَيْنَ اَيْلَةَ وَ صَنْعَآءَ مِنَ الْيَمَنِ وَ اِنَّ فِيْهِ مِنَ الْاَبَارِيْقِ كَعَدَدِ نُجُوْمِ السَّمَآءِ.

۲۹۹: سعيد بن عفير، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، څما د حوض مقدار (مسافت) دومره دے، كوم چه ايله او صنعائے يمن مينځ كښ دے. او هلته لوټے دومره تعداد كښ دي. څنګه چه آسمان كښ ستوري (يعني ډير تعداد كښ دي).

۳۰۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۳۰۰: ابو الوليد، همام، قتاده، حضرت انس، حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي (دوئم سند) هدبه بن خالد، همام، قتاده، حضرت انس بن مالكؓ

وَ حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا اَسِيْرُ فِي الْجَنَّةِ إِذَا اَنَا بِنَهَرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ الدُّرِّ الْمُجَوَّفِ قُلْتُ مَا هٰذَا يَا جِبْرِيْلُ قَالَ هٰذَا الْكَوْثَرُ الَّذِيْ اَعْطَاكَ رَبُّكَ فَاِذَا طِيْنُهُ اَوْ طِيْبُهُ مِسْكٌ اَذْ فَرُشَكَّ هُدْبَةُ.

حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، ما جنت كښې سيل كولو، ډېر يو نهر ته اورسيدم، چه د هغې دواړو طرفونو ته دَ ډېرو موتيانو ګنبدونه جوړ شوي وو. ما تپوس اوكه. اے جبرائيل، دا څه دي، هغه اووے، دا هغه (حوض) كوثر دے، چه ستاسو رب تاسو ته عطاء كړے دے. د هغې خاوره يا خوشبوي د مشكْ وه. هدبه ته شك شو، چه حضور صلّي اللّه عليه وسلّم طين يا طيب (خاوره يا خوشبو) كښې كوم لفظ او فرمائيلو.

۳۰۱: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ نَاسٌ مِنْ اَصْحَابِيْ الْحَوْضَ حَتّٰى عَرَفْتُهُمْ اخْتُلِجُوْا دُوْنِيْ فَاَقُوْلُ اَصْحَابِيْ فَيَقُوْلُ لَا تَدْرِيْ مَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ.

۳۰۱: مسلم بن ابراهيم، وهيب، عبد العزيز، انسؓ، نبي صلّي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل. څما مخكښې به څما دَ اُمت څه خلق په حوض كوز شي. تر دے چه زه به هغوي اوپيژنم. هغوي به څما د مخے نه راښكلے شي. زه به وائيم. چه دا څما دَ اُمت خلق دي، نو اللّه تعالٰي به فرمائي، تا ته نه ده معلومه، چه ستا نه پس دوي څه كړے دي.

۳۰۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ مَنْ مَرَّ عَلَيَّ شَرِبَ وَ مَنْ شَرِبَ لَمْ يَظْمَأْ اَبَدًا لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ اَقْوَامٌ اَعْرِفُهُمْ وَ يَعْرِفُوْنِيْ ثُمَّ يُحَالُ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُمْ قَالَ اَبُوْ حَازِمٍ فَسَمِعَنِي النُّعْمَانُ بْنُ

۳۰۲: سعيد بن ابي مريم، محمد بن مطرف، ابو حازم، سهل بن سعد نه روايت كوي، د هغه بيان دے حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، زه به په حوض ستاسو پيش خيمه يم. او كوم سړے چه څما خوا كښې تيريږي هغه به تږے څكي، او چا چه تړے اوڅكلے، نو هيڅ كله به نه تږے كيږي. څما مخے ته به څه خلق راكوز شي، چه زه به ئے پيژنم، او هغه خلق به ما پيژني، بيا به څما او د هغوي تر مينځه پرده حائله شي. دَ ابو حازم بيان دے، مانه چه نعمان بن ابن عياش واوريدل، نو

اَبِیْ عَیَّاشٍ فَقَالَ هٰکَذَا سَمِعْتُ مِنْ سَهْلٍ فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ اَشْهَدُ عَلٰی اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ لَسَمِعْتُهٗ وَ هُوَ یَزِیْدُ فِیْهَا فَاَقُوْلُ اِنَّهُمْ مِنِّیْ فَیُقَالُ اِنَّكَ لَا تَدْرِیْ مَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ فَاَقُوْلُ سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ غَیَّرَ بَعْدِیْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ سُحْقًا بُعْدًا یُقَالُ سَحِیْقٌ بَعِیْدٌ وَّ اَسْحَقَهٗ اَبْعَدَهٗ وَ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ شَبِیْبِ بْنِ سَعِیْدِ الْحَبَطِیُّ حَدَّثَنَا اَبِیْ عَنْ یُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِیْدِ بْنِ الْمُسَیَّبِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَؓ اَنَّهٗ کَانَ یُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ یَرِدُ عَلَیَّ یَوْمَ الْقِیَامَةِ رَهْطٌ مِنْ اَصْحَابِیْ فَیُحَلَّؤُوْنَ عَنِ الْحَوْضِ فَاَقُوْلُ یَا رَبِّ اَصْحَابِیْ فَیَقُوْلُ اِنَّكَ لَا عِلْمَ لَكَ بِمَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ اِنَّهُمْ ارْتَدُّوْا عَلٰی اَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرٰی.

وئیلے آبا تا د سهل نه دغسے آوریدلے دي. ما وے: او. هغه اووے، زه په ابو سعید خدري ګواهي ورکوم، ما د هغه نه دومره زیات اوریدلے دي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، زه به وایم، دا خلق خما ذَ اُمت دي، نو راته او به وئیلے شي، تاته نه ده معلومه، چه ستا نه پس دے خلقو څه څه کړے دي. زه به وایم: د اللّٰه ذَ رحمت نه دے هغه سرے لرے وي، چه هغه خما نه پس تبدیلي اوکړله. ابن عباسؓ اووے: سحقًا: نه مراد لرے کیدل دي. سحیق د بعید معنٰي کښ دے. او اسحقه: معني دي، هغه ئے لرے کړلو. او احمد بن شبیب بن سعید الحبطي په واسطه د سعید حبطي، یونس، ابن شهاب، سعید بن مسیب، حضرت ابو هریرةؓ نه نقل اوکه. هغه حدیث بیانولو، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. خما د اُمت نه څه خلق به د قیامتؔ په ورځ خما مخے ته کوز شي. بیا به هغوي د حوض نه جدا کړے شي، نو زه به وایم، یا ربه، دا خو خما ذَ اُمت خلق دي. جواب به اوشي. تا ته د دے علم نشته، چه دے خلقو ستانه پس نوے خبرے پیدا کړے. دا خلق ذَ دین نه ګرځیدلي وو.

۳۰۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ یُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَیَّبِ اَنَّهٗ کَانَ یُحَدِّثُ عَنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ یَرِدُ عَلَی الْحَوْضِ رِجَالٌ مِّنْ اَصْحَابِیْ فَیُحَلَّئُوْنَ عَنْهُ فَاَقُوْلُ اِنَّكَ لَا عِلْمَ لَكَ

۳۰۳: احمد بن صالح، ابن وهب، یونس، ابن شهاب، ابن مسیب نه روایت کوي. هغه د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم د صحابهؓ نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. خما ذَ اُمت څه خلق به په حوض کوز شي، بیا به د هغے نه جدا کړے شي. زه به وایم، اے ربه، دا خو خما د اُمت خلق دي. اللّٰه تعالٰي به فرمائي، تا ته د دے علم

بِمَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ اِنَّهُمُ ارْتَدُّوْا عَلٰى اَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرٰى وَ قَالَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ كَانَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُجْلَوْنَ وَقَالَ عُقَيْلٌ فَيُحَلَّئُوْنَ مَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نشته. ستا نه پس دے خلقو نوے خبرے پیدا کړے. دا خلق د خپل دین نه واوړیدل. او شعیب دَ زهري نه نقل اوکه، چه حضرت ابو هریرهؓ دَ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه: فیجلون: لفظ نقل کړے دے. او زبیدي په واسط دَ زهري، محمد بن علي، عبید اللّٰه بن ابي رافع، حضرت ابو هریرهؓ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه نقل کړے دے.

۳۰۴: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنِيْ هِلَالٌ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا قَائِمٌ اِذَا زُمْرَةٌ حَتّٰى اِذَا عَرَفْتُهُمْ خَرَجَ رَجُلٌ مِّنْ بَيْنِيْ وَ بَيْنِهِمْ فَقَالَ هَلُمَّ فَقُلْتُ اَيْنَ قَالَ اِلَى النَّارِ وَاللّٰهِ قُلْتُ وَ مَا شَاْنُهُمْ قَالَ اِنَّهُمُ ارْتَدُّوْا بَعْدَكَ عَلٰى اَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرٰى ثُمَّ اِذَا زُمْرَةٌ حَتّٰى اِذَا عَرَفْتُهُمْ خَرَجَ رَجُلٌ مِّنْ بَيْنِيْ وَ بَيْنِهِمْ فَقَالَ هَلُمَّ قُلْتُ اَيْنَ قَالَ اِلَى النَّارِ وَاللّٰهِ قُلْتُ مَا شَاْنُهُمْ قَالَ اِنَّهُمُ ارْتَدُّوْا بَعْدَكَ عَلٰى اَدْبَارِهِمُ الْقَهْقَرٰى فَلَا اَرَاهُ يَخْلُصُ مِنْهُمْ اِلَّا مِثْلُ هَمَلِ النَّعَمِ.

۳۰۴: ابراهیم بن منذر، محمد بن فلیح، هلال، عطاء بن یسار، حضرت ابو هریرهؓ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، دے دوران کښ زه اُو ولاړ وم، په یوه ډله مِ نظر او غورځیږي، تر دے چه زه به هغه اوپیژنم، نو خما او د هغوي مینځ کښ به یو سړے راوځي، او وائي به، دیخوا راځئ، زه به وائم، چرته، هغه به وائي، دوزخ طرف ته، په خدائے مِ دے قسم وي، زه به وائم، د هغوي څه حال دے. هغه به وائي، دوي ستاسوُنه پس اُوړیدلے وو. زه ګمان کوم، چه هغوي کښ به صرف دَ اُوښ د ګوارچي برابر (یعني ډیر کم) نجات بیاموم.

۶۳۰۵: حَدَّثَنِي إِبْرٰهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ خُبَيْبٍ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَيْنَ بَيْتِي وَ مِنْبَرِي رَوْضَةٌ مِّنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ وَ مِنْبَرِي عَلٰى حَوْضِي.

۶۳۰۵: ابراهيم بن منذر، انس بن عياض، عبيد اللّٰه، حبيب، حفص بن عاصم، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، څما د كور او څما د مبر ميښ كښې د جنت د باغونو يو باغ دے. او څما منبر څما حوض (كوثر) باندے دے.

۶۳۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَنَا فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ.

۶۳۰۶: عبدان، دَ عبدان پلار، شعبه، عبد الملک، جندبؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، زه به په حوض ستاسو پيش خيمه يم.

۶۳۰۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا فَصَلّٰى عَلٰى أَهْلِ أُحُدٍ صَلٰوتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ ثُمَّ انْصَرَفَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ إِنِّي فَرَطٌ لَّكُمْ وَ أَنَا شَهِيدٌ عَلَيْكُمْ وَ إِنِّي وَاللّٰهِ لَأَنْظُرُ إِلٰى حَوْضِيَ الْآنَ وَ إِنِّي أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الْأَرْضِ أَوْ مَفَاتِيحَ الْأَرْضِ وَ إِنِّي وَاللّٰهِ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بَعْدِي وَ لٰكِنْ أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنَافَسُوا فِيهَا.

۶۳۰۷: عمرو بن خالد، ليث، يزيد، ابو الخير، عقبهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوه ورځ بهرته تشريف روړلو، اُحد والو باندے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونځ او كړلو، څنګه چه مُرده باندے مونځ كولے شي. بيا منبر طرف ته واپس شولو، او وے فرمائيل، زه ستاسو پيش خيمه يم، او په اللّٰه مِ دے قسم وي، زه خپل حوض ته دا وخت هم ګورم، او ماته د زمكے خزانے راكړے شوے يا (وے فرمائيل) دَ زمكے قنجيانے راكړے شوے. او په خدائے مِ دے قسم وي. ما سره ستاسو متعلق دا آنديښنه نشته، چه ما نه پس به شرک شروع كړئے. ليكن زه ويريږم، چه تاسو به دَ دُنيا حصول كښ يو بل سره مقابله كول راواخلئے.

۳۰۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ اَنَّهُ سَمِعَ حَارِثَةَ بْنَ وَهْبٍ يَّقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَكَرَ الْحَوْضَ فَقَالَ كَمَا بَيْنَ الْمَدِيْنَةِ وَ صَنْعَآءَ وَ زَادَ ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ عَنْ حَارِثَةَ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْلَهُ حَوْضُهُ مَا بَيْنَ صَنْعَآءَ وَالْمَدِيْنَةِ فَقَالَ لَهُ الْمُسْتَوْرِدُ اَلَمْ تَسْمَعْهُ قَالَ الْاَوَانِيْ قَالَ لَا قَالَ الْمُسْتَوْرِدُ تُرٰى فِيْهِ الْاٰنِيَةُ مِثْلَ الْكَوَاكِبِ.

۳۰۸: علي بن عبد اللّٰه، حرمي بن عماره، شعبه، معبد بن خالد، حارثه بن وهب نه روايت كوي. د هغه بيان دے، ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د حوض ذكر كولو كښې او فرمائيل. څومره چه د مدينے او صنعاء مينځ كښې فاصله ده. دغه هومره دَ دے مسافت دے. او ابن ابي عدي د شعبه نه، هغه د معبد بن خالد نه، هغه د حارثه نه، هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه ارشاد واوريدلو، چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د حوض فاصله دومره ده څومره چه د صنعاء او د مدينے مينځ كښې فاصله ده. هغه ته مستورد اووے، آيا تا هغه نه دي اوريدلے. څه چه اواني وئيلے دي. وئيلے نه دي. مستورد اووے، چه هغے كښې به لوښي دَ ستورو په شان (بے شماره) په نظر راځي.

۳۰۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ عَنْ نَافِعِ بْنِ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ اَسْمَآءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍؓ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ عَلَى الْحَوْضِ حَتّٰى اَنْظُرَ مَنْ يَّرِدُ عَلَيَّ مِنْكُمْ وَ سَيُؤْخَذُ نَاسٌ دُوْنِيْ فَاَقُوْلُ يَا رَبِّ مِنِّيْ وَ مِنْ اُمَّتِيْ فَيُقَالُ هَلْ شَعَرْتَ مَا عَمِلُوْا بَعْدَكَ وَاللّٰهُ مَا بَرِحُوْا يَرْجِعُوْنَ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ فَكَانَ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اِنَّا نَعُوْذُ بِكَ اَنْ نَرْجِعَ عَلٰى اَعْقَابِنَا اَوْ نُفْتَنَ عَنْ دِيْنِنَا اَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُوْنَ تَرْجِعُوْنَ

۳۰۹: سعيد بن ابي مريم، نافع بن عمر، ابن ابي مليكه، اسماء بنت ابي بكرؓ نه روايت كوي، د هغے بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، زه به په حوض يم، تر دے چه زه به اووينم، چه تاسو كښې به څوک ماته راځي. او څه خلق به څما د مخے نه نيولے بوتلے شي، زه به عرض اوكړم. يا ربه، دا خو څما دَ اُمت خلق دي. جواب به راكړے شي، آيا تاته معلومه ده. چه دے خلقو تا نه پس څه څه كړے دي. په خدائے م دے قسم وي، دا خلق اوړيدلے دي، ابن ابي مليكه به دُعا كوله، يا اللّٰه، د دے خبرے نه مونږ ستا پناه غواړو، چه مونږ دے (دَ دين نه) اوګرځو يا مونږ دے د دين معامله كښې فتنه كښې پريوځو: اعقابكم تنكصون: معني دي، چه تاسو به په خپلو پوندو واپس شئے. (يا اللّٰه مونږ هم، دَ دے خبرے

عَلَى الْعَقِبِ.

نه ستا پناه غواړو. ته مونږ په آمان کړې. اللّٰهم امين).

## بَاب ۱۴۷ : فِي الْقَدَرِ.

## باب ۱۴۷ : کتاب التقدير (دَ تقدير بيان).

۶۱۰۳: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَنْبَأَنِي سُلَيْمَانُ الْأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ قَالَ إِنَّ أَحَدَكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا ثُمَّ عَلَقَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ مَلَكًا فَيُؤْمَرُ بِأَرْبَعٍ بِرِزْقِهِ وَ أَجَلِهِ وَ شَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ فَوَاللّٰهِ إِنَّ أَحَدَكُمْ أَوِ الرَّجُلَ يَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتّٰى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهَا غَيْرُ بَاعٍ أَوْ ذِرَاعٍ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا وَ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهَا غَيْرُ ذِرَاعٍ أَوْ ذِرَاعَيْنِ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُهَا قَالَ آدَمُ إِلَّا ذِرَاعٌ.

۶۱۰۳: ابو الوليد، هشام بن عبد الملک، شعبه، سليمان اعمش، زيد بن وهب، عبد اللّٰه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، مونږ ته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه صادق او مصدوق دے. او فرمائيل، تاسو کښې هر سړے د خپلے مور په خيټه کښې څلويښت ورځو پورے جمع وي، بيا دے څلويښت ورځو کښې دَ چکه وينے په شکل کښې شي. بيا څلويښت ورځو کښې دَ غوښے يوه ټکړه شي. بيا اللّٰه تعالي فريښته راليږي، او د څلورو خيزونو يعني دَ (۱) رزق، (۲) مرګ، (۳) بدبخت، يا (۴) نيک بخت، کيدو متعلق د ليکلو حکم ورکوي. په خدائے چه تاسو کښې يو يا (وے فرمائيل) سړے د دوزخيانو کار کوي. تر دے چه د هغه او دوزخ مينځ کښې دَ يو لاس يا ګز فاصله پاتے شي. په هغهٔ کتاب (د تقدير نوشته) غالب شي. نو هغه دَ جنتيانو په شان کار شروع کړي. او هغے کښې داخل شي. او يو سړے دَ جنتيانو په شان عمل کوي، تر دے چه د هغه او جنت مينځ کښې يو ګز يا دوه ګزه فاصله پاتے شي، په هغه کتاب يعني دَ تقدير ليک غالب شي، او هغه دَ دوزخيانو په شان عمل راواخلي. او دوزخ کښې داخل شي. آدمُ: إِلَّا ذِرَاع: يعني صرف دَ يو ګز لفظ نقل کړے دے.

۶۱۱۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ

۶۱۱۳: سليمان بن حرب، حمّاد، عبيد اللّٰه بن ابي بکر بن انس، انس بن مالکؓ، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه نقل کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او

اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ كَّلَ اللّٰهُ بِالرَّحِمِ مَلَكًا فَيَقُوْلُ اَىْ رَبِّ نُطْفَةٌ اَىْ رَبِّ عَلَقَةٌ اَىْ رَبِّ مُضْغَةٌ فَاِذَا اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّقْضِيَ خَلْقَهَا قَالَ اَىْ رَبِّ ذَكَرٌ اَمْ اُنْثٰى اَشَقِيٌّ اَمْ سَعِيْدٌ فَمَا الرِّزْقُ فَمَا الْاَجَلُ فَيُكْتَبُ كَذٰلِكَ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ.

فرمائيل، اللّٰه تعالىٰ په رحِم يوه فريښته مقرر وي، هغه عرض كوي، يا ربه، نطفه (قرار ګرځولے شوے) ده. يا ربه، علقه (چكه وينه شوے) ده يا ربه، مضغه (دَ غوښے ټكړه شوے) ده. كوم وخت چه اللّٰه تعالىٰ د هغے خلقت پوره كول غواړي. نو فريښته وائي، يا ربه، سړے به وي يا ښځه، بدبخت به وي يا نيک بخت، نو څومره رزق او ژوند چه ئے وي، هغه، هغه وخت اوليكلے شي. چه هغه لا د مور په خيټه كښ وي.

## باب ۱۴۸: جَفَّ الْقَلَمُ عَلٰى عِلْمِ اللّٰهِ وَ اَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا اَنْتَ لَاقٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ لَهَا سَابِقُوْنَ سَبَقَتْ لَهُمُ السَّعَادَةُ.

باب ۱۴۸: قلم دَ اللّٰه تعالىٰ په علمِ خشك شوے دے. او دَ اللّٰه قول، اللّٰه هغه ګمراه كړے دے، باوجود، د دے چه هغه په دے پوهيږي. او ابو هريرهؓ اووے ماته نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، قلم خشک شوے دے، څه سره چه تاسو يو ځائے كيدونكے ئے. ابن عباسؓ اووے: لها سابقون: معني دي، هغوي د پاره سعادت د مخكښ نه مقرر شوے دے.

۲۱۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ الرِّشْكُ قَالَ سَمِعْتُ مُطَرِّفَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ الشِّخِّيْرِ يُحَدِّثُ عَنْ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يُعْرَفُ اَهْلُ الْجَنَّةِ مِنْ اَهْلِ النَّارِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَلِمَ يَعْمَلُ الْعَامِلُوْنَ قَالَ كُلٌّ يَّعْمَلُ لِمَا خُلِقَ لَهٗ اَوْ لِمَا يُسِّرَلَهٗ.

۲۱۳: آدم، شُعبَه، يزيد، رشک، مطرف بن عبد اللّٰه بن شخير، عمران بن حصينؓ نه روايت كوي، يو سړي عرض اوكه، يَا رسول اللّٰه آيا جنتيان به دَ دوزخيانو نه پيژندے شي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل او. هغه عرض اوكه. بيا عمل والا دے ولے عمل اوكړي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هر سړے عمل كوي كوم د پاره چه پيدا شوے دے، يا كوم څيز چه هغه د پاره آسان كړے شوے دے.

## باب ۱۴۹: اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا عٰمِلِيْنَ.

باب ۱۴۹: اللّٰه تعالىٰ هغه څيز پيژني، چه خلق ئے كونكي وو.

۲۱۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ

۲۱۳: محمد بن بشار، غندر، شعبه، ابو بشر،

حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَوْلَادِ الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ.

سعيد بن جبير، حضرت عباسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه د مشرکينو دَ اولاد متلق تپوس اوشو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، اللّٰه تعالٰي په هغه څيز زيات پوهيږي، چه هغوي کوي.

۶۳۱۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَأَخْبَرَنِي عَطَاءُ بْنُ يَزِيدَ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَرَارِيِّ الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ.

۶۳۱۴: يحيي بن بکير، ليث، يونس، ابن شهاب، عطاء بن يزيد، حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د مشرکينو دَ اولاد متعلق پښتنه اوشوله، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل اللّٰه په هغه څيز زيات ښه پوهيږي، چه هغوئ ئے کوي.

۶۳۱۵: حَدَّثَنِي إِسْحٰقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَوْلُودٍ إِلَّا يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ كَمَا تُنْتِجُونَ الْبَهِيمَةَ هَلْ يَجِدُونَ فِيهَا مِنْ جَدْعَاءَ حَتَّى تَكُونُوا أَنْتُمْ تَجْدَعُونَهَا قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَفَرَأَيْتَ مَنْ يَمُوتُ وَهُوَ صَغِيرٌ قَالَ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ.

۶۳۱۵: اسحاق، عبد الرزاق، معمر، همام، حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. بچے په فطرت پيدا کيږي. بيا د هغه مور پلار هغه يهودي يا نصراني جوړ کړي، څنګه چه چوپايه بچے راوړي آيا تاسو هغے کښې څوک غوږ پريکړے وينئے، څو پورے چه تاسو خپله د هغے غوږ پرے نه کړے. خلقو عرض اوکه، يا رسول اللّٰه د دے متعلق او فرمائيے چه د کم عمرئ په حالت کښې څوک مړ شي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، اللّٰه تعالٰي ښه پوهيږي. چه هغوي به څه کول.

باب ۱۵۰: وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَقْدُورًا.

باب ۱۵۰: دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه دَ اللّٰه حکم يو قدر معين سره دے.

۶۳۱۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۶۳۱۶: عبد اللّٰه بن يوسف، مالک، ابو الزناد،

يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِی الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْاَلِ الْمَرْاَةُ طَلَاقَ اُخْتِهَا لِتَسْتَفْرِغَ صَحْفَتَهَا وَلْتَنْكِحْ فَاِنَّ لَهَا مَا قُدِّرَ لَهَا.

اعرج، ابو هريرةؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، هيڅ ښځه دے د خپلے خور طلاق نه غواړي، چه دَ هغے دَ رکابي نه نجات حاصل کړي. بلکه هغه دے نکاح اوکړي، ځکه چه هغے ته به هغه رسي، چه دَ هغے مقدر کښې وي.

۳۱۷: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ اَبِیْ عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ جَآءَهُ رَسُوْلُ اِحْدٰی بَنَاتِهٖ وَ عِنْدَهٗ سَعْدٌ وَّ اُبَیُّ بْنُ كَعْبٍ وَّ مُعَاذٌ اَنَّ ابْنَهَا يَجُوْدُ بِنَفْسِهٖ فَبَعَثَ اِلَيْهَا لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَلِلّٰهِ مَا اَعْطٰی كُلٌّ بِاَجَلٍ فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ.

۳۱۷: مالک بن اسمٰعيل، اسرائيل، عاصم، ابو ثمان، اسامه نه روايت کوي. وائي زه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست ووم، او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره سعدؓ ابي بن کعبؓ او معاذؓ هم موجود وو. دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د يوے لور راليږلے شوے سړے حاضر شولو. او عرض ئے اوکه، د هغې بچے د زنکدن حالت کښې دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته جواب اوليږلو، هغه څيز د اللّٰه دے، چه هغه واخستلو. او د اللّٰه هغه څيز دے، چه هغه ورکه. د هر سړي يوه موده مقرر ده. نو پکار دي، چه هغه صبر اوکړي. او دا ثواب اوګنړي.

۳۱۸: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰی اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِیِّ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَيْرِزِ الْجُمَحِیُّ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِیَّ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ عِنْدَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا نُصِيْبُ سَبْيًا وَ نُحِبُّ الْمَالَ كَيْفَ تَرٰی فِی الْعَزْلِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَ اِنَّكُمْ

۳۱۸: حبان بن موسي، عبد اللّٰه، يونس، زهري، عبد اللّٰه بن محيريز جمحي، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. دغے دوران کښې مونږ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو، چه انصارو کښې يو سړے راغے، او عرض ئے اوکه، يا رسول اللّٰه، مونږ وينزو له ورځو. او مال سره محبت کوو. تاسو د عزل متعلق څه فرمائے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، آيا تاسو دا کوئے. که تاسو دا اونه کړے. نو په تاسو څه فرق نه پريوځي (يعني تاسو عزل کول

تَفْعَلُوْنَ ذٰلِكَ لَا عَلَيْكُمْ اَنْ لَّا تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ لَيْسَتْ نَسَمَةٌ كَتَبَ اللّٰهُ اَنْ تَخْرُجَ اِلَّا هِيَ كَائِنَةٌ.

او نه کول برابر دي. ځکه چه د کوم نفس پيدا کول الله تعالٰي ليکلے دي، هغه به (ضرور) پيدا کيږي.

ف: عزل: ښځے سره دَ جماع (صحبت) کولو په وخت بغير خلاصيدو (انزال) نه جدا کيدل.

**٣١٩:** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ مَسْعُوْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ لَقَدْ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطْبَةً مَا تَرَكَ فِيْهَا شَيْئًا اِلٰى قِيَامِ السَّاعَةِ اِلَّا ذَكَرَهٗ عَلِمَهٗ مَنْ عَلِمَهٗ وَ جَهِلَهٗ مَنْ جَهِلَهٗ اِنْ كُنْتُ لَاَرَى الشَّيْءَ قَدْ نَسِيْتُ فَاَعْرِفُ مَا يَعْرِفُ الرَّجُلُ اِذَا غَابَ عَنْهُ فَرَاٰهُ فَعَرَفَهٗ.

**٣١٩:** موسٰي بن مسعود، سفيان، اعمش، ابو وائل، حذيفهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته خطبه راکړه، نو د قيامته پورے کيدونکے هيڅ خبره ئے پرے نه ښوده، چا چه ياد ساتل، هغه ياد اوساتل، او چا چه هيرول، هغه هير کړل، که زه څه داسے څيز اووينم. چه زه هغه هير کړم، نو زه هغه پيژنم، څنګه چه يو سړے څوک پيژني، کوم وخت چه هغه غائب شي، بيا چه هغه اووينى. نو وے پيژني.

**٣٢٠:** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهٗ عُوْدٌ يَنْكُتُ فِي الْاَرْضِ وَ قَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا قَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهٗ مِنَ النَّارِ اَوْمِنَ الْجَنَّةِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ اَلَا نَتَّكِلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ لَا اِعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ ثُمَّ قَرَاَ فَاَمَّا مَنْ

**٣٢٠:** عبدان، ابو حمزه، اعمش، سعد بن عبيده، ابو عبد الرحمٰن، سلمي، حضرت عليؓ نه روايت کوي. مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره يو لرګے وو. هغے سره ئے زمکه وګروله. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، تاسو کښې هيڅوک سړے داسے نشته، چه د هغه ټيکاونړه جنت يا دوزخ کښې نه وي ليکلے شوے. جماعت نه يو سړي عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، بيا مونږ دے په دے بهروسه ولے اونه کړو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل نه، تاسو عمل کوے. ځکه چه هر سړي ته هغه عمل آسان دے. کوم د پاره چه پيدا شوے دے. بيائے آيت: فامّا من اعطٰى واتقٰى: آخرپورے

اَعْطٰى وَاتَّقٰى الْاٰيَةَ.

تلاوت کړلو.

## بَـــاب ۱۵۱: اَلْـعَـمَـلُ بِالْخَوَاتِيْمِ.

## باب ۱۵۱: عمل په خاتمه موقوف دے.

۱۳۲۱: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ شَهِدْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ مِّمَّنْ مَّعَهٗ يَدَّعِى الْاِسْلَامَ هٰذَا مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَلَمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ مِنْ اَشَدِّ الْقِتَالِ وَ كَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ فَاَثْبَتَتْهُ فَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَءَيْتَ الَّذِىْ تَحَدَّثْتَ اَنَّهٗ مِنْ اَهْلِ النَّارِ قَدْ قَاتَلَ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مِنْ اَشَدِّ الْقِتَالِ فَكَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَا اِنَّهٗ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَكَادَ بَعْضُ الْمُسْلِمِيْنَ يَرْتَابُ فَبَيْنَمَا هُوَ عَلٰى ذٰلِكَ اِذْ وَجَدَ الرَّجُلُ اَلَمَ الْجَرْحِ فَاَهْوٰى بِيَدِهٖ اِلٰى كِنَانَتِهٖ فَانْتَزَعَ مِنْهَا سَهْمًا فَانْتَحَرَ بِهَا فَاشْتَدَّ رِجَالٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَدَّقَ اللّٰهُ

۱۳۲۱: حبان بن موسيٰ، عبد الله، معمر، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. مونږ رسول الله صلّي الله عليه وسلّم سره خيبر کښې موجود وو. نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خپلو ملګرو کښې د يو سړي متعلق، چه دَ اسلام دعوې ئے کوله، او فرمائيل. چه دے دوزخي، نه دے، کوم وخت چه د جنګ وخت راغے، نو هغے سړي ډير زيات جنګ اوکه، او ډير زخمي شو، او ثابت قدمي ئے اوښودله، د حضور صلّي الله عليه وسلّم صحابهؓ ؤ کښې يو سړے د حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، د کوم سړي متعلق چه تاسوؐ فرمائيلے وو، چه هغه دوزخيانو (اهلِ نار) نه دے، هغه خو دَ الله په لار کښې زبردست جنګ اوکه، او د هغے په وجه سخت زخمي شوے دے. اوس تاسو د هغه متعلق څه فرمائے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته او فرمائيل، واوره، هغه دَ دوزخيانو نه دے. بعضے مسلمانانو ته دے کښې شبهه شوه، هغه سړے لا، دے حال کښې وو، چه هغه دَ زخم تکليف برداشت نه کړے شو. نو خپل لاس ئے ترکش طرف ته ورمخکښې که. د هغے نه ئے يو تير راوښکلو، او خپل ګردن کښې ئے ور اُتومبلو. نو مسلمانانو کښې څنے خلق په منډه دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، الله تعاليٰ ستاسو خبره رښتيني

حَدِيثَكَ قَدِ انْتَحَرَ فُلَانٌ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بِلَالُ قُمْ فَاَذِّنْ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ اِلَّا مُؤْمِنٌ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ.

اوښودله فلاني سړي خپل ځان ووژلو. رسول الله صلي الله عليه وسلم او فرمائيل: اے بلاله! او درېږه اعلان او کړه چه جنت کښې به صرف مؤمن داخليږي. او الله تعالي د دے دين د فاجر سړي نه هم مدد اخلي.

۲۲ ۳: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ اَنَّ رَجُلًا مِّنْ اَعْظَمِ الْمُسْلِمِيْنَ غَنَاءً عَنِ الْمُسْلِمِيْنَ فِيْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّنْظُرَ اِلَى الرَّجُلِ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَلْيَنْظُرْ اِلٰى هٰذَا فَاتَّبَعَهُ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ وَ هُوَ عَلٰى تِلْكَ الْحَالِ مِنْ اَشَدِّ النَّاسِ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى جُرِحَ فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَجَعَلَ ذُبَابَةَ سَيْفِهٖ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ حَتّٰى خَرَجَ مِنْ بَيْنِ كَتِفَيْهِ فَاَقْبَلَ الرَّجُلُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْرِعًا فَقَالَ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالَ وَ مَا ذَاكَ قَالَ قُلْتَ لِفُلَانٍ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّنْظُرَ اِلٰى رَجُلٍ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَلْيَنْظُرْ اِلَيْهِ وَ كَانَ مِنْ اَعْظَمِنَا غَنَاءً عَنِ الْمُسْلِمِيْنَ فَعَرَفْتُ اَنَّهٗ لَا يَمُوْتُ عَلٰى ذٰلِكَ فَلَمَّا جُرِحَ اسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ

۲۲ ۳: سعد بن ابي مريم، ابو غسان، ابو حازم، سهل نه روايت کوي. يو سړے يوه غزا کښې حضور صلي الله عليه وسلم سره شريک شو. او د مسلمانانو د طرف نه ئے ډير شدت سره جنګ کولو. حضور صلي الله عليه وسلم چه اوليدلو، نو وے فرمائيل: څوک چه دوزخي ليدل غواړي، نو دے سړي ته دے اوګوري. مسلمانانو کښې يو سړے هغه سره شو، او هغه مشرکانو سره دومره سختي سره جنګ کولو، تر دے چه زخمي شولو. او زر مړکيدل ئے غوښتل. هغه د تورے مخ په خپله سينه کيښودلو، او زور ئے ورکه، تر دے چه هغه ئے د اوږو (مونډهوں) نه اووتله (او مړ شولو) نو هغه سړے د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت کښې په تلوار راغے. او وئيلے: زه ګواهي کوم، چه تاسو د الله رسول ئے. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل: څه خبره ده؟ هغه عرض او که، تاسو د فلاني سړي متعلق فرمائيلے وو، چه څوک دوزخي ليدل غواړي، نو ده ته دے اوګوري. هغه د مسلمانانو د طرف نه سخت جنګ کولو. نو ما اووے، هغه به دے حالت کښې نه مري. بيا چه هغه زخمي شو، نو هغه تادئ سره مړ کيدل

فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذٰلِكَ اِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ النَّارِ وَ اِنَّهُ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ يَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ اِنَّهُ مِنْ اَهْلِ النَّارِ وَ اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيْمِ.

غوښتل. خود كشي ئے او كړله. دے خبرے اوريدو سره حضور صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، يو بنده د دوزخيانو شان عمل كوي. حالانكه هغه د جنتيانو نه وي. او د جنتيانو شان عمل كوي. حالانكه هغه د دوزخيانو نه وي، او (خبره دا ده چه) اعمال په خاتمه موقوف دي

ف: الله پاك دے خمونږ خاتمه په خير كړي. اللّٰهم آمين.

**باب ۱۵۲ : اِلْقَاءِ النَّذْرِ الْعَبْدَ اِلَى الْقَدَرِ.**

**باب ۱۵۲ : د نذر، د بنده د قدر د حواله كولو بيان.**

۳۲۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النَّذْرِ قَالَ اِنَّهُ لَا يَرُدُّ شَيْئًا وَّ اِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهٖ مِنَ الْبَخِيْلِ.

۳۲۳: ابو نعيم، سفيان، منصور، عبد الله بن مره، حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، حضور صلى الله عليه وسلم د نذر منلو نه منع فرمائيلے ده. حضور صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، نذر څه څيز دفع كولے نشي، صرف د دے په ذريعه د بخيل مال خرچ شي.

۳۲۴: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَاْتِ ابْنَ اٰدَمَ النَّذْرُ بِشَيْءٍ لَمْ يَكُنْ قَدْ قَدَّرْتُهُ وَ لٰكِنْ يُلْقِيْهِ الْقَدَرُ وَ قَدْ قَدَّرْتُهُ لَهُ اَسْتَخْرِجُ بِهٖ مِنَ الْبَخِيْلِ.

۳۲۴: بشر بن محمد، عبد الله، معمر، همام بن منبه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه حضور صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، نذر سړي له هغه څيز نشي راوړے. چه د هغه تقدير كښې نه وي ليكلے شوے. ليكن هغه له تقدير راوړي. او هغه نذر هم. د هغه په تقدير كښې ليكلے شوے دے، چه د بخيل نه د هغه مال خرچ كړے شي.

**باب ۱۵۳ : لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ.**

**باب ۱۵۳ : لا حول و لا قوة الا بالله: ګناه نه د بچ كيدو طاقت او د عبادت قوت د الله نه دے.**

۳۲۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ

۳۲۵: محمد بن مقاتل، ابو الحسن، عبد الله، خالد حذآء، ابو عثمان نهدي، حضرت ابو موسي

أَخْبَرَنَا خَالِدُ الْحَذَّآءُ عَنْ أَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزَاةٍ فَجَعَلْنَا لَا نَصْعَدُ شَرَفًا وَّ لَا نَعْلُوْ شَرَفًا وَّ لَا نَهْبِطُ فِيْ وَادٍ إِلَّا رَفَعْنَا أَصْوَاتَنَا بِالتَّكْبِيْرِ قَالَ فَدَنَا مِنَّا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَـٰٓأَيُّهَا النَّاسُ ارْبَعُوْا عَلٰى أَنْفُسِكُمْ فَإِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ أَصَمَّ وَ لَا غَآئِبًا إِنَّمَا تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ثُمَّ قَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ أَلَا أُعَلِّمُكَ كَلِمَةً هِيَ مِنْ كُنُوْزِ الْجَنَّةِ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ.

نه روايت كوي، د هغه بيان دے. يو غزا كښې مونږ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره شريک وو، كوم وخت چه به مونږ په يوې بلندئ ختلو او اوچت به شو، يا يو وادي كښې به راكوز شو، نو مونږ خلقو به په اوچت آواز تكبير (اللّٰه اكبر) وئيلو. د حضرت ابو موسيٰ رضي الله عنه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه مونږ ته قريب شو نو وې فرمائيل، اے خلقو په خپلو ځانونو رحم كوئے، تاسو څوک كونړ يا غير حاضر نه بلئے، تاسو خو هغه څوک بلئے، چه آوريدونكے ليدونكے دے. بيائے او فرمائيل، اے عبد اللّٰه بن قيس، زه تاته هغه كلمه او نه ښايم، چه د جنت د خزانو نه يوه خزانه ده. هغه: لا حول و لا قوة الا باللّٰه: ده.

## بَابُ ۱۵۴ : اَلْمَعْصُوْمُ مَنْ عَصَمَ اللّٰهُ. عَاصِمٌ مَّانِعٌ قَالَ مُجَاهِدٌ سَدًّا عَنِ الْحَقِّ يَتَرَدَّدُوْنَ فِي الضَّلَالَةِ دَسَّاهَا أَغْوَاهَا.

**باب ۱۵۴ :** معصوم هغه دے، چه اللّٰه ئے بچ كړي. دَ عاصم معني دي، بچ كونكے. او مجاهد اووے: سداً عن الحق: معني دي، چه هغوي به گمراهي كښې اخوا ديخوا حيران وي. دسّاها: معني دي، هغه ئے گمراه كړلو.

۶۳۲۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اسْتُخْلِفَ خَلِيْفَةٌ إِلَّا لَهُ بِطَانَتَانِ بِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ بِالْخَيْرِ وَ تَحُضُّهُ عَلَيْهِ وَ بِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ بِالشَّرِّ وَ تَحُضُّهُ عَلَيْهِ وَالْمَعْصُوْمُ مَنْ

۶۳۲۶: عبد اللّٰه، عبد اللّٰه، يونس، زهري، ابو سلمه، حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. هيڅ سړے خليفه نشي جوړولے، خو هغه د پاره دوه (۲) باطن وي. يو باطن هغه ته د خير حكم وركوي، او د هغې رغبت وركوي، او دوئم باطن هغه ته د شر حكم وركوي، او شر طرف ته ئے راپاروي، او معصوم هغه دے، چه اللّٰه ئے

عَصَمَ اللّٰهُ.

محفوظ اوساتي.

**بــاب ۱۵۵ : وَ حَــرَامٌ عَـلٰـى قَـرْيَةٍ اَهْـلَـكْـنٰـهَـا اَنَّـهُمْ لَا يَـرْجِـعُـوْنَ اَنَّـهُ لَـنْ يُّـؤْمِـنَ مِـنْ قَـوْمِكَ اِلَّا مَـنْ قَـدْ اٰمَـنَ وَ لَا يَـلِـدُوْا اِلَّا فَـاجِـرًا كَـفَّـارًا وَّ قَـالَ مَـنْـصُـوْرُ ابْـنُ الـنُّـعْمَانِ عَنْ عَكْرَمَةَ عَـنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍؓ وَّ حِرْمٌ بِـالْحَبْشِيَّةِ وَجَبَ.**

**باب ۱۵۵ : دَ اللّٰـه تـعـالٰـي قول** ' د كوم ښار' د هلاكت چه موږ اراده اوكړو' په هغې حرام دي چه واپس راشي (يعني د ګمراهي نه منع شي) او كومو خلقو چه ستا د قوم نه ايمان راوړے دے. د هغوي نه سِوا نور هيڅوک اوس ايمان نه راوړي' هغوي به صرف بدكاري بچي راوړي' او منصور بن نعمان په واسطه د عكرمه' ابن عباسؓ نه نقل اوكه' چه حبشي ژبه كښ د حرم معني دي' واجب كيدل.

**۳۲۷: حَـدَّثَـنِـىْ مَـحْـمُـوْدُ بْنُ غَيْلَانَ حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ الـرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَـعْـمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاءُوْسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍؓ قَالَ مَا رَاَيْتُ شَيْـًٔا اَشْبَهَ بِاللَّمَمِ مِمَّا قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ عَـلَـى ابْنِ اٰدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا اَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظْرُ وَ زِنَـا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ وَالنَّفْسُ تَمَنّٰي وَ تَشْتَهِيْ وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ وَ يُكَذِّبُهُ وَ قَـالَ شَبَـابَةُ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنِ ابْنِ طَـاوُسٍ عَـنْ اَبِـىْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**۳۲۷:** محمود بن غيلان' عبد الرَّزاق' معمر' ابن طاؤس' حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے' چه دَ لمم (وَړو وَړو ګناهونو) مشابه د دے نه زيات ما هيڅ څيز نه دے ليدلے' چه حضرت ابو هريرهؓ دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه نقل كړے دے' اللّٰه تعالٰي په بني آدم دَ زنا حصه ليكلے ده. چه هغه به هغه يقيناً بيامومي' د سترګے زنا كتل دي' دَ ژبے زنا وئيل دي' او نفس د هغے' تمنّا او خواهش كوي. او فرج (شرم ګاه) د هغے تصديق او تكذيب كوي. او شبابه په واسطه د ورقاء ابن طاؤس' طاؤس' حضرت ابو هريرهؓ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوكه.

**بـاب ۱۵۶ : وَمَـا جَـعَـلْـنَـا الـرُّؤْيَـا الَّتِـىْ اَرَيْـنٰكَ اِلَّا فِتْـنَـةً لِّلنَّاسِ.**

**باب ۱۵۶ : د اللّٰـه تـعـالٰـي قول** ' چه موږ كوم خوب تا ته اوښودلو' هغه صرف د خلقو دَ آزمائش د پاره وو.

**۳۲۸: حَـدَّثَـنَـا الْـحُـمَيْـدِيُّ**

**۳۲۸:** حميدي' سفيان' عمرو' عكرمه'

حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ مَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ قَالَ هِيَ رُؤْيَا عَيْنٍ اُرِيَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ اِلٰى بَيْتِ الْمَقْدِسِ قَالَ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ فِي الْقُرْاٰنِ قَالَ هِيَ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ.

حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے. چه آیت: و ما جعلنا الرؤیا التی اریناک الا فتنه للناس: کښې رویا نه مراد د سترګے لیدل دي، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته ئے په هغه شپه اوښودلو، چه هغے کښې بیت المقدس طرف ته بوتلے شوے وو. او ابن عباسؓ اووے، قرآن کښې "شجرة ملعونه" نه مراد: د زقوم اُونه ده.

## بَاب ۱۵۷ : تَحَاجَّ اٰدَمُ وَ مُوْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ.

## باب ۱۵۷ : د آدمؑ او موسیٰؑ اللّٰه سره نزدے د خبرو اترو کولو بیان.

۳۲۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنْ عَمْرٍو عَنْ طَاؤسٍ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ احْتَجَّ اٰدَمُ وَ مُوْسٰى فَقَالَ لَهٗ مُوْسٰى يَا اٰدَمُ اَنْتَ اَبُوْنَا خَيَّبْتَنَا وَ اَخْرَجْتَنَا مِنَ الْجَنَّةِ قَالَ لَهٗ اٰدَمُ يَا مُوْسٰى اصْطَفَاكَ اللّٰهُ بِكَلَامِهٖ وَ خَطَّ لَكَ بِيَدِهٖ اَتَلُوْمُنِيْ عَلٰى اَمْرٍ قَدَّرَ اللّٰهُ عَلَيَّ قَبْلَ اَنْ يَّخْلُقَنِيْ بِاَرْبَعِيْنَ سَنَةً فَحَجَّ اٰدَمُ مُوْسٰى ثَلٰثًا قَالَ سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ.

۳۲۹: علي بن عبد اللّٰه، سفیان، عمرو، طاؤس، حضرت ابو هریرهؓ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. آدمؑ او موسیٰؑ بحث اوکه. موسیٰؑ ورته اووے. اے آدمؑ، تاسو خمونږ پلار ئے، تا مونږ محروم کړلو. او جنت نه مو اوښکلو، آدمؑ ورته او فرمائیل، اے موسي علیه السلام ته اللّٰه تعالي خپل کلام سره برګزیده کړلے. او خپل لاس سره ئے ستا د پاره اولیکل، آیا ته ما په هغه خبره ملامته کوے، چه اللّٰه تعالي خما تقدیر کښې خما د پیدائش نه څلویښت کاله آګاهو لیکلے وه. آدمؑ په موسیٰؑ دے بحث کښې غالب راغے. دا درے خله حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. سفیان په واسطه، ابو الزناد، ابو هریرهؓ، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه د دے په مثل نقل کړے دے.

## بَاب ۱۵۸ : لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَى اللّٰهُ.

## باب ۱۵۸ : چاله چه اللّٰه ورکړي، هغه څوک منع کولے (بندولے) نشي.

**٦٣٣٠:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ أَبِي لُبَابَةَ عَنْ وَرَّادٍ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ كَتَبَ مُعَاوِيَةُ إِلَى الْمُغِيرَةِ اكْتُبْ إِلَيَّ مَا سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ خَلْفَ الصَّلٰوةِ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَ لَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَ لَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي عَبْدَةُ أَنَّ وَرَّادًا أَخْبَرَهُ بِهٰذَا ثُمَّ وَفَدْتُ بَعْدُ إِلَى مُعَاوِيَةَ فَسَمِعْتُهُ يَأْمُرُ النَّاسَ بِذٰلِكَ الْقَوْلِ.

**٦٣٣٠:** محمد بن سنان، فليح، عبده بن ابي لبابه، وراد (د مغيره بن شعبه آزاد كرده غلام) نه روايت كوي. د هغه بيان دے. امير معاويهؓ مغيره ته خط اوليكه، ماته اوليكه، څه چه تا د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د مانځه نه پس لوستل آوريدلے دي. نو مغيره په ما اوليكل، هغه اووے. ما د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د مانځه نه پس لوستل واريدل: لا اله الا اللّٰه الخ: يعني د اللّٰه نه سوا بل څوک معبود نشته، چه يو دے، د هغه څوک شريک نشته آيا اللّٰه چاله چه ته وركوے، هغه څوک بندولے نشي. او چاله چه وركول بند كړے، نو څوک وركونكے ئے نشته. او كوشش كونكي ته كوشش نفع نشي وركولے. (څو پورے چه اللّٰه نفع وركولو اونه غواړي). د ابن جريج بيان دے. ماته عبده اووے، چه ماته وراد، دا بيان اوكه. بيا دے نه پس زه معاويهؓ له لاړم، نو ما د هغه نه د دے دُعا د لوستلو حكم وركول واوريدل.

## باب ١٥٩ : مَنْ تَعَوَّذَ بِاللّٰهِ مِنْ دَرْكِ الشَّقَآءِ وَسُوْءِ الْقَضَآءِ وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ.

**باب ١٥٩ :** د هغے سړي بيان، چه د بدبختي او خراب تقدير نه د اللّٰه پناه غواړي. د اللّٰه تعالٰي قول، ورته او وايه، چه زه د مخلوقاتو د شر نه د سحر د رڼا د رب پناه غواړم.

**٦٣٣١:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنْ جَهْدِ الْبَلَآءِ وَ دَرْكِ الشَّقَآءِ وَ سُوْءِ الْقَضَآءِ وَ شَمَاتَةِ الْأَعْدَآءِ.

**٦٣٣١:** مسدد، سفيان، سُمي، ابو صالح، حضرت ابو هريرهؓ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د مصيبت د سختي، بدبختي د تقدير د خرابي او د دښمنانو د خندا نه د اللّٰه تبارک و تعالي پناه غواړئ.

**ف:** يا اللّٰه، مونږ ټول له د آل و اولاد سره د مصيبت د سختي، بدبختي د تقدير د خرابي او د دشمنانو د

شر نه پناه راكړې. اللّٰهم آمين.

**باب ١٦٠ : يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَ قَلْبِهِ.**

**٣٣٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُوَ الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ كَثِيْرًا مِمَّا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْلِفُ لَا وَ مُقَلِّبِ الْقُلُوْبِ.**

**باب ١٦٠ :** اللّٰه تعالي د انسان او د هغه د زړه مينځ كښې حائل وي. (دې)

**٣٣٢:** محمد بن مقاتل ابو الحسن، عبد اللّٰه، موسٰي بن عقبه، سالم، حضرت عبد اللّٰه نه روايت كوي. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم به اكثر قسم داسې خوړلو: لا و مقلب القلوب (يعني قسم دې دَ زړونو دَ ګرځونكي).

**٣٣٣: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حَفْصٍ وَ بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَا اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِابْنِ صَيَّادٍ خَبَأْتُ لَكَ خَبِيْئًا. قَالَ الدُّخُّ قَالَ اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُ وَ قَدْرَكَ قَالَ عُمَرُ ائْذَنْ لِيْ فَاَضْرِبَ عُنُقَهُ قَالَ دَعْهُ اِنْ يَكُنْ هُوَ فَلَا تُطِيْقُهُ وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ هُوَ فَلَا خَيْرَ لَكَ فِيْ قَتْلِهِ.**

**٣٣٣:** علي بن حفص، او بشر بن محمد، عبد اللّٰه، معمر، زهري، سالم، حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ابن صياد ته او فرمائيل، ما خپل زړه كښې يوه خبره پټه كړې وه، هغه اووې، هغه لوګې (دهواں) دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، خاموش شه. ته د خپل تقدير نه مخكښې نه شې تلې. عمرؓ عرض اوكه (يا رسول اللّٰه) اجازت راكړئې، چه زه دَ ده ګردن والوځوم، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، دې پريږده كه دا هغه (دجّال) وي. نو ته دَ ده طاقت نه لرې، او كه هغه نه وي، نو دَ ده قتلولو كښې ستا د پاره هيڅ خير نشته.

**باب ١٦١ : قُلْ لَّنْ يُّصِيْبَنَا اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَنَا قَضٰى قَالَ مُجَاهِدٌ بِفَاتِنِيْنَ بِمُضِلِّيْنَ اِلَّا مَنْ كَتَبَ اللّٰهُ اَنَّهُ يَصْلَى الْجَحِيْمِ قَدَّرَ فَهَدٰى قَدَّرَ**

**باب ١٦١ :** (آيت) ورته او وايه، مونږ ته به هغه رسي، چه اللّٰه تعالي مونږ د پاره ليكلې وي. كتب: معني دي فيصله كړې. فاتنين: معني دي، ګمراه كيدونكي. (الامن هو صال الجحيم) معني دي. خو دَ چا چه جهنّم كښې داخليدل اللّٰه ليكلې دي، قدر فهدي: معني دي. چه بدبختي

الشَّقَآءَ وَالسَّعَادَةَ وَ هَدَى الْاَنْعَامَ لِمَرَاتِعِهَا.

او نیک بختي تقدیر کښې لیکلے شوے وي. او (هدي الانعام لمراتعها) معني دي. خناور ورشو (څړاګاه) ته رسَول.

۳۳۴: حَدَّثَنِیْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِیْمَ الْحَنْظَلِیُّ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ اَبِی الْفُرَاتِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَیْدَةَ عَنْ یَحْیَی بْنِ یَعْمَرَ اَنَّ عَآئِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا سَاَلَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُوْنِ فَقَالَ کَانَ عَذَابًا یَبْعَثُهُ اللّٰهُ عَلٰی مَنْ یَّشَآءُ فَجَعَلَهُ اللّٰهُ رَحْمَةً لِّلْمُؤْمِنِیْنَ مَا مِنْ عَبْدٍ یَّکُوْنُ فِیْ بَلَدٍ یَّکُوْنُ فِیْهِ وَ یَمْکُثُ فِیْهِ لَا یَخْرُجُ مِنَ الْبَلَدِ صَابِرًا مُّحْتَسِبًا یَّعْلَمُ اَنَّهٗ لَا یُصِیْبُهٗ اِلَّا مَا کَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ اِلَّا کَانَ لَهٗ مِثْلُ اَجْرِ شَهِیْدٍ.

۳۳۴: اسحاق بن ابراهیم حنظلي، نضر، داؤد بن ابي الفرات، عبد اللّٰه بن بریده، یحیٰی بن معمر، بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. د هغې بیان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه د طاعون باره کښې تپوس اوشو، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل، دا یو عذاب دے. چه اللّٰه تعالیٰ ئے راليږي، په چا چه غواړي. مسلمانانو د پاره دا رحمت ګرځوي. که سړے یو داسے ښار کښې وي، چه هلته طاعون وي، او هغه هلته ایسار شي، صبر کوي. او د ثواب کار ګنړلو سره د هغے ښار نهٔ نه اوځي، او هغه دا یقین اوکړي، چه هغهٔ ته به هغه رسي، چه اللّٰه تعالیٰ د هغه په تقدیر کښې لیکلے وي، نو د شهید ثواب به ورته ملاؤ شي.

ف: یا اللّٰه، ته خپل امر باندے غالب ئے (وَاللّٰه غالبٌ عَلٰی امره) که خمونږ تقدیر ښه نه وي، نو ته ئے ښه کړے، مونږ د هر قسم دنیاوي او اُخروي بدخیرئ، شر، او خراب آنجام نه ستا پناه غواړو. اللّٰهم اٰمین. ثم اٰمین. یا ربّ العٰلمین.

بَاب ۱۶۲: وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِیَ لَوْ لَا اَنْ هَدٰنَا اللّٰهُ لَوْ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰنِیْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِیْنَ.

باب ۱۶۲: دَ اللّٰه تعالیٰ قول، مونږ به هدایت بیامندونکے نه وو، که اللّٰه مونږ ته هدایت نه وے کړے، او که اللّٰه ماته هدایت کړے وے. نو زه به دَ متقیانو نه ووم.

۳۳۵: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ اَخْبَرَنَا جَرِیْرٌ هُوَ ابْنُ حَازِمٍ عَنْ اَبِیْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ رَاَیْتُ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

۳۳۵: ابو النعمان، جریر بن حازم، ابو اسحاق، حضرت براء بن عازبؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے، ما حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم د خندق په ورځ اولیدلو، چه

يَوْمَ الْخَنْدَقِ مَعَنَا التُّرَابَ وَ هُوَ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ.

لَوْ لَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَيْنَا
وَ لَا صُمْنَا وَ لَا صَلَّيْنَا
فَأَنْزِلَنَّ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا
وَ ثَبِّتِ الْاَقْدَامَ اِنْ لَاقَيْنَا
وَالْمُشْرِكُوْنَ قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا
اِذَا اَرَادُوْا فِتْنَةً اَبَيْنَا

مونږ سره ئې خاوره چلوله. او فرمائيل ئې په خدائې م دې قسم وي. كه اللّٰه تعالىٰ مونږ ته هدايت نه كولې. نو نه به مونږ روژه نيولې او نه به مو مونځ كولو، په مونږ سكينه نازل كړې او كه مونږ د دشمن مقابل شو، نو مونږ ثابت قدم لرې. او مشركينو په مونږ ظلم كړې دې. كوم وخت چه هغوي د د فتنې اراده او كړي، نو مونږ انكار كوؤ.

ف: سكينه. تسلي. آرام. سكون. آسائش. د يوې فريښتې نوم.

# كِتَابُ الْاَيْمَانِ وَالنُّذُوْرِ (د قسمونو او نذرونو بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

**باب ۱۶۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى** لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ فَكَفَّارَتُهٗ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ وَاحْفَظُوْا اَيْمَانَكُمْ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ.

**باب ۱۶۳: د اللّٰه تعالىٰ قول،** چه اللّٰه تاسو په لغو قسمونو نه نيسي، بلكه په هغه قسمونو به مو نيسي، چه تاسو ئې قصداً خوړلې او د هغې كفاره په لس (۱۰) مسكينانو په اوسط درجې طعام خوړول دي، چه تاسو ئې په خپل كور والو خوروئې. يا د هغوي كپړې اغستول يا يو غلام آزادول دي، كوم سړي ته چه دا حاصل نه دي. نو درې روژې دې اونيسي، دا ستاسو د قسمونو كفاره ده، كله چه تاسو قسم او خوړئې. او د خپلو قسمونو حفاظت كوئې. دا شان اللّٰه تعالىٰ ستاسو د پاره خپلې نښې بيانوي، شايد چه تاسو شكر گذار جوړ شئې

**۶۳۳۶:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ

**۶۳۳۶:** محمد بن مقاتل ابو الحسن، عبد اللّٰه، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشې نه روايت كوي. د هغې بيان دې. حضرت ابوبكر به هيڅ كله قسم نه

عَائِشَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ لَمْ يَكُنْ يَحْنَثُ فِيْ يَمِيْنٍ قَطُّ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ كَفَّارَةَ الْيَمِيْنِ وَ قَالَ لَا اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَرَاَيْتُ غَيْرَهَا خَيْرًا مِّنْهَا اِلَّا اَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ وَ كَفَّرْتُ عَنْ يَمِيْنِيْ.

ماتولو، تر دې چه الله تعالىٰ د كفاره يمين آيت نازل كړلو. او هغه اووې، چه زه په كوم څيز هم قسم اوخورم، او د هغې نه علاوه زه خير بياموم، نو زه هغه څيز اختياروم. چه د خير وي. او زه د خپل قسم كفاره وركوم.

ف: كفاره: هغه خيرات چه ګناهونه رژوي. د ګناه عوض.

۳۳۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ سَمُرَةَ لَا تَسْاَلِ الْاِمَارَةَ فَاِنَّكَ اِنْ اُوْتِيْتَهَا مِنْ غَيْرِ مَسْئَلَةٍ وُّكِلْتَ اِلَيْهَا وَ اِنْ اُوْتِيْتَهَا مِنْ غَيْرِ مَسْئَلَةٍ اُعِنْتَ عَلَيْهَا وَ اِذَا حَلَفْتَ عَلٰى يَمِيْنٍ فَرَاَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِّنْهَا فَكَفِّرْ عَنْ يَمِيْنِكَ وَاْتِ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ.

۳۳۷: ابو النعمان محمد بن فضل، جرير بن حازم، حسن، عبد الرحمن بن سمرهؓ نه روايت كوي. ده هغه بيان دې. حضور صلى الله عليه وسلم او فرمائيل، اے عبد الرحمن بن سمرهؓ د امارت (اميري) طلب مه كوه. ځكه كه تا ته د طلب كولو نه پس امارت دركړے شو، نو ته به هغې ته حواله كړے شے، او كه بے غوښتلو تا ته حاصل شي، نو ستا به (خدائي) مدد كولے شي. او كله چه ته په څه خبره قسم او خوړے، او خير د هغې نه علاوه خبره كښې بياموے، نو د خپل قسم كفاره ادا كوه، او هغه څه كوه، چه د دے نه بهتر وي.

۳۳۸: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَهْطٍ مِّنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ اَسْتَحْمِلُهُ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا اَحْمِلُكُمْ وَ مَا عِنْدِيْ مَا اَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ

۳۳۸: ابو النعمان، حماد بن زيد، غيلان بن جرير، ابو برده د خپل پلار نه روايت كوي، زه د نبي صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښې د اشعريانو يو جماعت سره د سورلي غوښتلو د پاره حاضر شوم، حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، په خدائے چه زه تاسو له سورلي درنه كړم، او نه ماسره څه څيز شته، چه په هغې سورلي اوكړے. د راوي بيان دے، مونږ صبر كولو څو پورے چه الله ته منظوره وه. بيا حضور صلّي الله عليه

قَالَ ثُمَّ لَبِثْنَا مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ نَّلْبَثَ ثُمَّ اُتِيَ بِثَلٰثِ ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرٰى فَحَمَلَنَا عَلَيْهَا فَلَمَّا انْطَلَقْنَا قُلْنَا اَوْ قَالَ بَعْضُنَا وَاللّٰهِ لَا يُبَارَكُ لَنَا اَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْتَحْمِلُهُ فَحَلَفَ اَنْ لَّا يَحْمِلَنَا ثُمَّ حَمَلَنَا فَارْجِعُوْا بِنَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنُذَكِّرُهُ فَاَتَيْنَاهُ فَقَالَ مَا اَنَا حَمَلْتُكُمْ بَلِ اللّٰهُ حَمَلَكُمْ وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَا اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِّنْهَا اِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَّمِيْنِيْ وَ اَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ اَوْ اَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ وَّ كَفَّرْتُ عَنْ يَّمِيْنِيْ.

وسلّم ته درې (۳) خوبصورته اوښې راوستلې شوې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ په هغې سواره کړلو، څه وخت چه مونږ روان شو. نو مونږ (خپلو کښې) اووې. يا مونږ کښې چا اووې، په خدائې چه، مونږ کښې به برکت نه وي مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم له سورلۍ غوښتلو د پاره راغلې وو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم قسم او خوړلو، چه مونږ له به سورلي نه راکوي، بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته سورلي راکړې. (معلوميږي چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه خپله خبره هيره شوه) مونږ د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې واپس حاضر شو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. ما تاسو سواره کړې نه ئې، بلکه اللّٰه تعالٰي تاسو سواره کړې ئې. او په خدائ چه، کله چه زه دَ اللّٰه د مشيّت مطابق قسم اوخورم، او د هغې نه علاوه خبرې کښې خير وينم، نو زه خپل قسم کفاره ادا کوم، او څه چه بهتر وي هغه کوم. يا (دائې) او فرمائيل، زه هغه کوم، کوم چه بهتر وي، او د خپل قسم کفاره ور کوم.

**۶۳۳۹:** حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ قَالَ هٰذَا مَا حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ لَاَنْ يَّلِجَّ اَحَدُكُمْ بِيَمِيْنِهٖ فِيْ اَهْلِهٖ اٰثَمُ لَهٗ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ اَنْ يُّعْطِيَ

**۶۳۳۹:** اسحٰق بن ابراهيم، عبد الرزّاق، معمر، همام بن منبه، حضرت ابو هريرةؓ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، مونږ (د ظهور دَ اعتبار نه د تولو نه) آخر يو. ليکن د قيامت په ورځ به مخکښې يو. بيا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د خپل کور والو معامله کښې ستاسو په خپلو قسمونو ټينګيدل (مُصر پاتې کيدل) دَ زياتې ګناه خبره ده، په نسبت د دې، چه د هغې کفاره ور کړئې، چه اللّٰه تعالٰي به

كَفَّارَتَهُ الَّتِيْ افْتَرَضَ اللّٰهُ عَلَيْهِ.

۶۳۴۰: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ يَعْنِيْ بْنَ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَلَجَّ فِيْ اَهْلِهِ بِيَمِيْنٍ فَهُوَ اَعْظَمُ اِثْمًا لِيَبَرَّ يَعْنِي الْكَفَّارَةَ.

تاسو فرض كړے ده.

۶۳۴۰: اسحٰق بن ابراهيم، يحيٰي بن صالح، معاويه، يحيٰي، عكرمه، ابو هريرهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، كوم سړے چه د خپل كور والو معامله كښې په خپل قسم اصرار كوي، نو هغه ډير لوئے ګنهګار دے. هغه له پكار دي، چه قسم پاک كړي، يعني كفاره ادا كړي.

باب ۱۶۴: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَيْمُ اللّٰهِ.

باب ۱۶۴: د نبي صلّي الله عليه وسلّم وَ اَيْمُ الله (قسم په خدائي) فرمائيل.

۶۳۴۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ بْنِ عُمَرَ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا وَّ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطَعَنَ بَعْضُ النَّاسِ فِيْ اِمْرَتِهٖ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنْ كُنْتُمْ تَطْعُنُوْنَ فِيْ اِمْرَتِهٖ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعُنُوْنَ فِيْ اِمْرَةِ اَبِيْهِ مِنْ قَبْلُ وَ اَيْمُ اللّٰهِ اِنْ كَانَ لَخَلِيْقًا لِّلْاِمَارَةِ وَ اِنْ كَانَ لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ وَ اِنَّ هٰذَا لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ بَعْدَهٗ.

۶۳۴۱: قتيبه بن سعيد، اسمٰعيل بن جعفر، عبد الله بن دينار، ابن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلم يو لښكر اوليږلو، او اسامه بن زيد، ئے په هغے امير مقرر كړلو. بعضے خلقو د هغه په سرداري ملامتيا اوكړه، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اودريدلو وے فرمائيل، كه (نن) تاسو دَ ده په سرداري ملامتيا كوئے. نو دَ ده نه مخكښې تاسو دَ دهٔ دَ پلار په سرداري هم بد، وئيلے وو. په خدائے مِ دے قسم وي. هغه دَ امارت (اميري سرداري. مشرئ) مستحق وو. او خلقو كښې ځما په نزد ډير زيات محبوب وو. او د هغه نه پس دے (يعني اسامهؓ) خلقو كښې ماته د ټولو نه زيات محبوب دے.

باب ۱۶۵: كَيْفَ كَانَتْ يَمِيْنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَ قَالَ سَعْدٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيَ بِيَدِهٖ

باب ۱۶۵: د نبي صلّي الله عليه وسلّم قسم به څنګه وو. او حضرت سعدؓ او وے، حضور صلّي الله عليه وسلّم: وَالّذى نفسى بيده: او فرمائيل. او ابو قتاده اووے، حضرت ابوبكرؓ دَ حضور

وَ قَالَ اَبُوْ قَتَادَةَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا وَاللّٰهِ اِذًا يُقَالُ وَ اللّٰهِ وَ بِاللّٰهِ وَ تَاللّٰهِ.

صلى الله عليه وسلم: لا والله: اووے. کوم خاتے چه والله او بالله او تالله: وئیلے شي.

٦٤٤٢: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُوْسَى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَتْ يَمِيْنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا وَ مُقَلِّبِ الْقُلُوْبِ.

٦٤٤٢: محمد بن يوسف، سفيان، موسي بن عقبه، سالم، حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. د حضور صلي الله عليه وسلم قسم داوو: لا و مقلب القلوب: (قسم دے د زړونو په ګرځونکي).

٦٤٤٣: حَدَّثَنَا مُوْسَى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلَا قَيْصَرَ بَعْدَهٗ وَ اِذَا هَلَكَ كِسْرٰى فَلَا كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَتُنْفَقُنَّ كُنُوْزُهُمَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

٦٤٤٣: موسي ابو عوانه، عبد الملک، جابر بن سمره، نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي. کوم وخت چه قيصر هلاک شو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، دے نه پس به هيڅ قيصر نه وي. او څه وخت چه کسري هلاک شو. نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، دے نه پس به هيڅ کسري نه وي، په هغه ذات م دے قسم وي، چه د هغه په قبضه کښ ځما ساه ده. چه د دے دواړو خزانے به د الله په لار کښ خرچ کيږي. (يعني د مسلمانانو په لاس به راشي او خرچ کيږي به).

٦٤٤٤: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا هَلَكَ كِسْرٰى فَلَا كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَ اِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلَا قَيْصَرَ بَعْدَهٗ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَتُنْفَقُنَّ كُنُوْزُهُمَا

٦٤٤٤: ابو اليمان، شعيب، زهري، سعيد بن مسيب، ابو هريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. چه کسري هلاک شو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ده نه پس به هيڅ کسري نه وي، او چه قيصر هلاک شو، نو حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، ده نه پس به هيڅ قيصر نه وي. قسم دے په هغه ذات، چه د هغه په قبضه کښ د محمد صلي الله عليه وسلم ساه ده. چه د دے دواړو خزانے به د الله په لار کښ خرچ

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

كولے شي.

۶۴۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ وَاللّٰهِ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا وَّ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا.

۶۴۵: محمد، عبده، هشام بن عروه، عروه، بي بي عائشے نه روايت كوي. د هغې بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل، اے د محمد صلي الله عليه وسلم امت: قسم په خدائے، كه تاسو ته معلومه وے. څه چه ماته معلوم دي نو زيات به مو ژړل او كم به مو خاندل.

۶۴۶: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حَيْوَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عَقِيْلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ اَنَّهُ سَمِعَ جَدَّهُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ هِشَامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ اٰخِذٌ بِيَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَاَنْتَ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ اِلَّا مِنْ نَفْسِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ حَتّٰى اَكُوْنَ اَحَبَّ اِلَيْكَ مِنْ نَّفْسِكَ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ فَاِنَّهُ الْاٰنَ وَاللّٰهِ لَاَنْتَ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ نَّفْسِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاٰنَ يَا عُمَرُ.

۶۴۶: يحيي بن سليمان، ابن وهب، حيوه، ابو عقيل، زهره بن معبد، د خپل نيكه (دادا) عبد الله بن هشام نه روايت كوي. د هغه بيان دے. مونږ حضور صلي الله عليه وسلم سره وو. او حضور صلي الله عليه وسلم د حضرت عمر بن خطاب لاس نيولے وو. حضرت عمر حضور صلي الله عليه وسلم ته عرض اوكه، يا رسول الله تاسو ماته بغير د ځپل ځان نه د نورو ټولو څيزونو نه زيات محبوب ئے. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، په هغه ذات م دے قسم وي، چه د هغه په قبضه كښې ځما ساه ده (ستا ايمان كامل نه دے) څو پورے چه زه تاته ستا د ځان نه هم زيات محبوب نشم. حضرت عمر عرض اوكه. اوس، په خدائے م دے قسم ري، تاسو ماته د خپل ځان نه هم زيات (عزيز) محبوب ئے. نو نبي صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، اوس اے عمر (ستا ايمان كامل دے).

۶۴۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدٍ

۶۴۷: اسمعيل، مالك، ابن شهاب، عبيد الله بن عبد الله بن عتبه بن مسعود، ابو هريره، زيد بن خالد نه روايت كوي. د دے دواړو بيان دے. دوه (۲) سړي د رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كښې په جګړه

بْنِ خَالِدٍ اَنَّهُمَا اَخْبَرَاهُ اَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَحَدُهُمَا اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَ قَالَ الْاٰخَرُ وَ هُوَ اَفْقَهُهُمَا اَجَلْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَ اْذَنْ لِّيْ اَنْ اَتَكَلَّمَ قَالَ تَكَلَّمْ قَالَ اِنَّ ابْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا عَلٰى هٰذَا قَالَ مَالِكٌ وَالْعَسِيْفُ الْاَجِيْرُ زَنٰى بِامْرَاَتِهٖ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ عَلَى ابْنِي الرَّجْمَ فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَّ جَارِيَةٍ لِّيْ ثُمَّ اِنِّيْ سَاَلْتُ اَهْلَ الْعِلْمِ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ مَا عَلَى ابْنِيْ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ وَ اِنَّمَا الرَّجْمُ عَلَى امْرَاَتِهٖ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ اَمَّا غَنَمُكَ وَ جَارِيَتُكَ فَرَدٌّ عَلَيْكَ وَ جَلَدَ ابْنَهٗ مِائَةً وَّ غَرَّبَهٗ عَامًا وَّ اُمِرَ اُنَيْسُ الْاَسْلَمِيُّ اَنْ يَّاْتِيَ امْرَاَةَ الْاٰخَرِ فَاِنِ اعْتَرَفَتْ رَجَمَهَا فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا.

راغلل. هغوي کښې يو اووے خمونږ مينځ کښې د کتاب اللّٰه مطابق فيصله اوکړے. او هغه دوئم چه هغے دواړو کښې پوه وو. وئيلے' او. يا رسول اللّٰه' خمونږ مينځ کښې د کتاب اللّٰه مطابق فيصله اوکړے. او ماته اجازت راکړئے. چه زه عرض اوکړم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' وايه' هغه اووے. خما خوئے ده سره مزدور وو. مالک اووے ذَ عسيف نه مراد مزدور دے. خما خوئے ذَ ده ښځے سره زنا اوکړه. خلقو ماته اووے. چه خما خوئے به سنګسار کړے شي. ما سل (۱۰۰) چيلئے او يوه وينزه فديه کښې ورکړه. هغه مِ خلاص کړلو. بيا ما ذَ اهلِ علمو نه تپوس اوکه. نو هغوي اووے' چه خما خوئے به سل (۱۰۰) کوړے وهلے شي' او يو کال د پاره به بے وطنه (جلا وطن) کولے شي' او سنګساره خو به ذَ ده ښځه کولے شي' نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' په هغه ذات مِ دے قسم وي' چه د هغه په قبضه کښې خما ساه ده. زه به ستاسو فيصله ذَ کتاب اللّٰه مطابق کوم. ستا چيلئے او وينزه تاته واپس کولے شي' او ذَ هغه خوئے ئے سل (۱۰۰) کوړے او وهلو' او يو کال د پاره ئے جلاوطن کړلو. او انيس اسلمي ته ئے حکم ورکه. چه د هغے دوئم سړي ښځے له ورشي' که هغه اعتراف اوکړي' نو هغه دِے سنګساره کړے شي. هغے اعتراف اوکه. (يعني ورے منله' چه ما زنا کړے ده) نو هغه سنګساره کړے شوه.

۶۳۴۸: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ يَعْقُوْبَ عَنْ عَبْدِ

۶۳۴۸: عبد اللّٰه بن محمد' وهب' شعبه' محمد بن ابي يعقوب' عبد الرحمٰن بن ابي بکره' خپل پلار ابي بکرهؓ نه' هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه

الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِىْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ اَسْلَمُ وَ غِفَارُ وَ مُزَيْنَةُ وَ جُهَيْنَةُ خَيْرًا مِّنْ تَمِيْمٍ وَّ عَامِرِ بْنِ صَعْصَعَةَ وَ غَطْفَانَ وَ اَسَدٍ خَابُوْا وَ خَسِرُوْا قَالُوْا نَعَمْ فَقَالَ وَالَّذِىْ نَفْسِىْ بِيَدِهٖ اِنَّهُمْ خَيْرٌ مِّنْهُمْ.

روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، او وايه، كه اسلم او غفار او مُزينه او جهينه (دَ قبيلو نومونه دي) قبيلـه تميم او عامر بن صعصعه او غطفان او اسد نه بهتر وي. نو هغه خلق تاوان او نقصان كښ دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، قسم دے په هغه ذات چه دَ هغه قبضه كښ ځما ساه ده. چه هغه خلق دَ دوي نه بهتر دي.

۶۳۴۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِىْ عُرْوَةُ عَنْ اَبِىْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَ عَامِلًا فَجَآءَهُ الْعَامِلُ حِيْنَ فَرَغَ مِنْ عَمَلِهٖ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا لَكُمْ وَ هٰذَا اُهْدِىَ لِىْ فَقَالَ لَهٗ اَفَلَا قَعَدْتَّ فِىْ بَيْتِ اَبِيْكَ وَ اُمِّكَ فَنَظَرْتَ اَيُهْدٰى لَكَ اَمْ لَا ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشِيَّةً بَعْدَ الصَّلٰوةِ فَتَشَهَّدَ وَ اَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَمَا بَالُ الْعَامِلِ نَسْتَعْمِلُهٗ فَيَاْتِيْنَا فَيَقُوْلُ هٰذَا مِنْ عَمَلِكُمْ وَ هٰذَا اُهْدِىَ لِىْ اَفَلَا قَعَدَ فِىْ بَيْتِ اَبِيْهِ وَ اُمِّهٖ فَنَظَرَ هَلْ يُهْدٰى لَهٗ اَمْ لَا فَوَ الَّذِىْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَا يَغُلُّ اَحَدُكُمْ مِنْهَا شَيْئًا اِلَّا جَآءَ بِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَحْمِلُهٗ عَلٰى عُنُقِهٖ اِنْ

۶۳۴۹: ابو اليمان، شعيب، زهري، عروه، ابي حميد ساعدي نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو سړے عامل جوړ كړلو، عامل چه خپل كار نه فارغ شولو، نو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو. او عرض ئے اوكه. يا رسول اللّٰه، دا (مال) ستاسو دے، او دا ماته هديه كښ راليږلے شوے دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، ته د خپل مور پلار كور كښ ولے نه كيناستلے. بيا به مو كتلے. چه تا ته هديه درليږلے شي. كه نه. بيا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د ماسختن د مانځه نه پس اوريدلو. تشهد ئے اووے. دَ اللّٰه تعريف ئے بيان كه. چه د هغے مستحق دے. بيائے او فرمائيل. اما بعد: داسے عامل څه حال دے. چه مونږ هغه عامل جوړ كړو. بيا هغه مونږ ته راشي. او وائي چه دا ستاسو حاصل شوے مال دے. او دا ماته هديه كښ راكړے شوے دے. هغه د خپل مور پلار كور كښ ولے نه كيني. چه بيا اوګورو، هغه ته څوك هديه راليږي، كه نه. په هغه ذات م دے قسم وي، چه د هغه په قبضه كښ ځما ساه ده. تاسو كښ چه كوم سړے هم څه خير [illegible] حان سره اوساتي. نو د

كَانَ بَعِيرًا جَاءَ بِهِ لَهُ رُغَاءٌ وَّ اِنْ كَانَتْ بَقَرَةً جَاءَ بِهَا لَهَا خُوَارٌ وَّ اِنْ كَانَتْ شَاةً جَاءَ بِهَا تَيْعَرُ فَقَدْ بَلَّغْتُ فَقَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ ثُمَّ رَفَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ حَتّٰى اِنَّا لَنَنْظُرُ اِلٰى عُفْرَةِ اِبْطَيْهِ فَقَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ وَّ قَدْ سَمِعَ ذٰلِكَ مَعِي زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلُوْهُ.

قيامت په ورځ به هغه، هغه څيز داسے راوړي، چه هغه څيز به د هغه په ګردن سوروي. كه هغه اوبښ وي. نو هغه به برړيږي. او كه هغه غوا وي، يا چيلے وي، نو هغه به چغږے وهي، ما تاسو خلقو ته رسولے دے. ذ ابو حميد بيان دے. بيا رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خپل لاس مبارك اوچت كړلو. تر دے چه مونږ خلقو د حضور صلّي الله عليه وسلّم ذ ترخونو سپيدي اوليده. ابو حميد اووے. ما سره دا زيد بن ثابت هم ذ نبي صلّي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي، د هغه نه تپوس او كړئے.

۶۳۵۰: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ هُوَ ابْنُ يُوْسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي قَالَ قَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا وَّ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا.

۶۳۵۰: ابراهيم بن موسٰي، هشام بن يوسف، معمر، همام، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. ابو القاسم صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، په هغه ذات م دے قسم وي. چه د هغه په قبضه كښ د محمد صلّي الله عليه وسلّم ساه ده، كه تاسو ته هغه معلومه وے، څه چه ماته معلومه دي. نو زيات به مو ژړل او كم به مو خاندل.

۶۳۵۱: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنِ الْمَعْرُوْرِ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ انْتَهَيْتُ اِلَيْهِ وَ هُوَ يَقُوْلُ فِيْ ظِلِّ الْكَعْبَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ وَ رَبِّ الْكَعْبَةِ قُلْتُ مَا شَاْنِيْ اَيُرٰى فِيَّ شَيْءٌ مَا شَاْنِيْ فَجَلَسْتُ اِلَيْهِ وَ هُوَ يَقُوْلُ فَمَا اسْتَطَعْتُ اَنْ اَسْكُتَ وَ

۶۳۵۱: عمر بن حفص، حفص، اعمش، معرور، ابو ذرؓ نه روايت كوي. زه د حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښ اوليږلے شوم، هغه وخت حضور صلّي الله عليه وسلّم د كعبے په سوري كښ فرمائيل، هغه خلق نقصان كښ دي. د كعبے په پروردګار م دے قسم وي، هغه خلق نقصان كښ دي. څما خيال راغلے څما څه حالت دے، آيا ما كښ څه خبره په نظر راغلے ده، څه خبره ده. نو زه حضور صلّي الله عليه وسلّم سره كيناستم. او حضور صلّي الله عليه وسلّم به دا فرمائيل، ما حضور صلّي الله عليه وسلّم خاموش نهٔ كړے شو. او

تَغْشَانِي مَا شَآءَ اللهُ فَقُلْتُ مَنْ هُمْ بِأَبِيْ أَنْتَ وَ أُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ الْأَكْثَرُوْنَ أَمْوَالًا إِلَّا مَنْ قَالَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا.

څو پورې چه الله ته منظور وه. په ما د غم کیفیت خور وو. ما عرض او که، یا رسول الله خما مور پلار دې په تاسوٌ قربان وي. هغه کوم خلق دي. حضور صلّي الله علیه وسلّم او فرمائیل، هغه خلق چه زیات مال والا دي، خو هغه چه داسې او داسې او داسې خرچ کوي.

۳۵۲: حَدَّثَنَا أَبُوْ الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سُلَيْمَانُ لَأَ طُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلٰى تِسْعِيْنَ امْرَأَةً كُلُّهُنَّ تَأْتِيْ بِفَارِسٍ يُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ إِنْ شَآءَ اللهُ فَلَمْ يَقُلْ إِنْ شَآءَ اللهُ فَطَافَ عَلَيْهِنَّ جَمِيْعًا فَلَمْ يَحْمِلْ مِنْهُنَّ إِلَّا امْرَأَةٌ وَّاحِدَةٌ جَآءَتْ بِشِقِّ رَجُلٍ وَ أَيْمُ الَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَوْ قَالَ إِنْ شَآءَ اللهُ لَجَاهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فُرْسَانًا أَجْمَعُوْنَ.

۳۵۲: ابو الیمان، شعیب، ابو الزناد، عبد الرحمٰن اعرج، ابو هریرهؓ نه روایت کوي، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم او فرمائیل، سلیمان علیه السلام اووې، زه به خپلو لس کم سلو (۹۰) بیبیانو کښې هرې یوې له یوه شپه کښې ورځم، هغې کښې به هره یوه داسې بچې راوړي، چه شهسوار به وي، او دَ الله په لار کښې به جهاد کوي. یو ملګري ورته اووې، انشاء الله اووائې، خو هغه انشاء الله اونهٔ وې نو خپلو ټولو بیبیانو له ورغې، خو هغوي کښې صرف یوه بي بي حامله شوه، چه هغې یو نیمګړې بچې راوړلو، او قسم دې په هغه ذات، چه دَ هغه په قبضه کښې دَ محمد ساه ده، که هغه (یعني سلیمانٌ) انشاء الله وئیلې وې، نو دَ ټولو بیبیانو نه به ئې داسې بچي پیدا شوي وؤ، چه شهسواران به وو، او ټولو به دَ الله په لار کښې جهاد کولو.

۳۵۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ الْأَحْوَاصِ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ ؓ قَالَ أُهْدِيَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرَقَةٌ مِنْ حَرِيْرٍ فَجَعَلَ النَّاسُ يَتَدَاوَلُوْنَهَا بَيْنَهُمْ وَ يَعْجَبُوْنَ مِنْ حُسْنِهَا وَلِيْنِهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ

۳۵۳: محمد، ابو الاحواص، ابو اسحٰق، براء به عازبؓ نه روایت کوي. نبي صلّي الله علیه وسلّم ته دَ ریښمو یوه ټکړه هدیه کښې اولیږلې شوه خلقو به هغه لاس په لاس اخستله. او دَ هغې نرمي او خوبصورتیٔ ته ئې دَ تعجب په نظر کتل، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم او فرمائیل، آیا تاسو دې ته تعجب اوړي يئ. خلقو جواب ورکهٔ، او. یا رسول الله. حضور صلّي الله علیه

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَعْجَبُوْنَ مِنْهَا قَالُوْا نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَالَّذِىْ نَفْسِىْ بِيَدِهٖ لَمَنَادِيْلُ سَعْدٍ فِى الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنْهَا لَمْ يَقُلْ شُعْبَةُ وَ اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِىْ اِسْحٰقَ وَالَّذِىْ نَفْسِىْ بِيَدِهٖ.

وسلّم ورته او فرمائيل، قسم دے په هغه ذات، چه دَ هغه په قبضه كښې دَ محمدؐ ساه ده، البته دَ سعد رومالونه جنت كښې دَ دے نه بهتر دي. شعبه او اسرائيل په واسطه دَ، اسحاق (چه كوم روايت او كړ هغې كښې) والذي نفسي بيده: (قسم دے په هغه ذات، چه دَ هغه په قبضه كښې زما ساه ده) الفاظ نه دي بيان كړي.

۳۵۴: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِىْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ اِنَّ هِنْدَ بِنْتَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا كَانَ مِمَّا عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَهْلُ اَخْبَآءٍ اَوْ خِبَآءٍ اَحَبَّ اِلَىَّ اَنْ يَّذِلُّوْا مِنْ اَهْلِ اَخْبَاءِكَ اَوْ خِبَآئِكَ شَكَّ يَحْيٰى ثُمَّ مَا اَصْبَحَ الْيَوْمَ اَهْلُ اَخْبَآءٍ اَوْ خِبَآءٍ اَحَبَّ اِلَىَّ مِنْ اَنْ يَّعِزُّوْا مِنْ اَهْلِ اَخْبَاءِكَ اَوْ خِبَآئِكَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَيْضًا وَّالَّذِىْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ مِّسِّيْكٌ فَهَلْ عَلَىَّ حَرَجٌ اَنْ اُطْعِمَ مِنَ الَّذِىْ لَهٗ قَالَ لَا اِلَّا بِالْمَعْرُوْفِ.

۳۵۴: يحيي بن بكير، ليث، يونس، ابن شهاب، عروه بن زبير، بي بي عائشې نه روايت كوي: دَ هغې بيان دے. هند بنت عتبه بن ربيعه عرض او كړ، يا رسول اللّٰه (يو وخت داسې وو، چه) دَ زمكې په مخ څما د تولو نه دا خبره خوښه وه، چه تاسو خيمې واله (يعني ستاسوؐ تابع خلق) ذليل وي. ليكن نن مانه دَ دے نه غوريزه خبره بله نه ښكاري، چه ستاسو دَ خيمې خلق دے غالب وي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، په هغه ذات م دے قسم وي، چه دَ هغه په قبضه كښې دَ محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم ساه ده. دے كښې به اوس نوره ترقي كيږي. هند عرض او كړ، يا رسول اللّٰه، ابو سفيان يو بخيل سړے دے، آيا ما د پاره دے خبره كښې څه حرج شته، كۀ زۀ دَ هغه دَ مال نه (دَهغه په اولاد) اوخورو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، نه، خو په شرط دَ دے، چه دَ دستور مطابق وي.

۳۵۵: حَدَّثَنِىْ اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ اِسْحٰقَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مَيْمُوْنٍ قَالَ

۳۵۵: احمد بن عثمان، سريح بن مسلمه، ابراهيم، دَ ابراهيم پلار، ابو اسحاق، عمرو بن ميمون، حضرت عبد اللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. يو ځل حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم، دَ يماني

حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضِيْفٌ ظَهْرَهُ اِلٰى قُبَّةٍ مِّنْ آدَمٍ يَمَانٍ اِذْ قَالَ لِاَصْحَابِهِ اَتَرْضَوْنَ اَنْ تَكُوْنُوْا رُبُعَ اَهْلِ الْجَنَّةِ قَالُوْا بَلٰى قَالَ اَفَلَمْ تَرْضَوْا اَنْ تَكُوْنُوْا ثُلُثَ اَهْلِ الْجَنَّةِ قَالُوْا بَلٰى قَالَ فَوَ الَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ اِنِّيْ لَاَرْجُوْا اَنْ تَكُوْنُوْا نِصْفَ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

څرمنے خیمے سره شا لږولے وه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپلو ملګرو ته او فرمائيل، آيا تاسو په دے خبره راضي يئ؟، چه تاسو دے دَ اهل جنت څلورمه حصّه يئي. خلقو اووے. جي. او. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، آيا ستاسو دا خوښه ده، چه تاسو دے دَ اهل جنّت دريمه حصه يئي. خلقو اووے. جي. او. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، قسم دے په هغه ذات، چه دَ هغه په قبضه کښ دَ محمدٌ ساه ده. زۀ اُميد کوم، چه تاسو به دَ، اهلِ جنت نيمه حصه يئي.

۳۵۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّ رَجُلًا سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ يُرَدِّدُهَا فَلَمَّا اَصْبَحَ جَآءَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهٗ وَ كَاَنَّ الرَّجُلَ يَتَقَآلُّهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّهَا لَتَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ.

۳۵۶: عبد اللّٰه بن مسلمه، مالک، عبد الرحمٰن بن عبد اللّٰه بن عبد الرحمٰن، عبد اللّٰه بن عبد الرحمٰن، ابو سعيد نه روايت کوي، يو سړي دَ چا نه: قل هو اللّٰه احد: لوستل واوريدل او هغه ئے بار بار لوستلو. کوم وخت چه سحر شو، نو هغه دَ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښ حاضر شولو، او هغے سړي دَ دے سورت تلاوت کم ګڼړلو، نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، قسم دے په هغه ذات، چه دَ هغه قبضه کښ خما ساه ده، چه دا سورت دَ، قرآن دَ، دريمے حصّے برابر دے (يعني دومره ثواب لري، کۀ چا درے ځله اووے، نو ګويا چه قرآن ئے ختم کۀ، مطلب دا چه لوئے فضيلت لري).

۳۵۷: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍؓ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَتِمُّوا الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ فَوَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنِّيْ لَاَرَاكُمْ مِنْ بَعْدِ ظَهْرِيْ اِذَا

۳۵۷: اسحاق، حبان، همام، قتاده، حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل تاسو رکوع او سجده پوره کوئي، په هغه ذات مِ دے قسم وي، دَ چا په قبضه کښ چه خما ساه ده، چه زۀ تاسو دَ وروستو نه وينم، کله چه تاسو رکوع او

مَا رَكَعْتُمْ وَ اِذَا مَا سَجَدْتُمْ.

**۳۵۸: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ امْرَاَةً مِنَ الْاَنْصَارِ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهَا اَوْلَادٌ لَهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّكُمْ لَاَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ قَالَهَا ثَلٰثَ مِرَارٍ.**

**بَاب ۱۶۶ : لَا تَحْلِفُوْا بِاٰبَائِكُمْ.**

**۳۵۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍؒ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَدْرَكَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ وَ هُوَ يَسِيْرُ فِيْ رَكْبٍ يَحْلِفُ بِاَبِيْهِ فَقَالَ اَلَا اِنَّ اللّٰهَ يَنْهَاكُمْ اَنْ تَحْلِفُوْا بِاٰبَائِكُمْ مَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ اَوْ لِيَصْمُتْ.**

**۳۶۰: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ سَالِمٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ سَمِعْتُ عُمَرَؓ يَقُوْلُ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ يَنْهَاكُمْ اَنْ تَحْلِفُوْا بِاٰبَائِكُمْ قَالَ**

سجده كوئي.

**۳۵۸:** اسحٰق، وهب بن جرير شعبه، هشام بن زيد، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، ذ انصارو يوه ښځه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضره شوه. هغے سره ذ هغے بچي وو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل په هغه ذات م دے قسم وي، ذ چا قبضه كښ چه ځما ساه ده، چه تاسو په، خلقو كښ ماته زيات محبوب يئي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم داسے درے ځله اوفرمائيل.

**باب ۱۶۶ :** په خپلو پلورونو قسم مه خورئي.

**۳۵۹:** عبد اللّٰه بن مسلمه، مالك، نافع، حضرت عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي ذ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم حضرت عمر له ورغے. هغه وخت هغه په اَس سور وو. او په خپل پلار ئے قسم خوړلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. خبردار. اللّٰه تعالىٰ تاسو، ذ دے خبرے نه منع كوي، چه په خپلو پلرونو دے قسم اوخورئي. كوم سړے چه (خامخا) قسم خوري، نو هغه دے په اللّٰه تعالىٰ قسم خوري. يا خاموش دِ اوسي.

**۳۶۰:** سعيد بن عفير، ابن وهب. يونس. ابن شهاب. سالم. حضرت ابن عمر. حضرت عمرؓ نه روايت كوي، د هغه نه ئے واوريدل، ماته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، چه اللّٰه تعالىٰ په خپلو پلرونو ذ قسم خوړلو نه منع كوي. ذ حضرت عمر بيان دے په خدائے م دے قسم وي، ذ

عُمَرُؓ فَوَاللّٰهِ مَا حَلَفْتُ بِهَا مُنْذُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكِرًا وَّ لَا اٰثِرًا قَالَ مُجَاهِدٌ اَوْ اَثْرَةٍ مِنْ عِلْمٍ يَّأْثُرُ عِلْمًا تَابَعَهُ عُقَيْلٌ وَّالزُّبَيْدِيُّ وَ اِسْحَاقُ الْكَلْبِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمَرَ.

كوم وخت چه ما، دا، دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم نه اوريدلے دي، نو نه قصداً او نه په هيره مِ په پلار قسم خوړلے دے. مجاهد اووے: او اثرة من علم: نه مراد: ياثر: علم: دے. عقيل او زبيدي او اسحاق قلبي دَ، زهري نه دَ دے متابعت کښ روايت کړے دے. او ابن عيينه او معمر په واسطه دَ، سالم، ابن عمر، حضرت عمرؓ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کړے دے.

۱۳۶۱: حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحْلِفُوْا بِاٰبَآئِكُمْ.

۱۳۶۱: موسٰي بن اسمٰعيل، عبد العزيز بن مسلم، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت عبد اللّٰه بن عمر نه روايت کوي، دَ هغه نه ئے واوريدل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دَ خپلو پلرونو قسمونه مه خورئ.

۱۳۶۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ وَالْقَاسِمِ التَّيْمِيِّ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ كَانَ بَيْنَ هٰذَا الْحَيِّ مِنْ جَرْمٍ وَّ بَيْنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ وُدٌّ وَّ اِخَاءٌ فَكُنَّا عِنْدَ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ فَقُرِّبَ اِلَيْهِ طَعَامٌ فِيْهِ لَحْمُ دَجَاجٍ وَ عِنْدَهُ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ تَيْمِ اللّٰهِ اَحْمَرُ كَاَنَّهُ مِنَ الْمَوَالِيْ فَدَعَاهُ اِلَى الطَّعَامِ فَقَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُهُ يَاْكُلُ شَيْئًا فَقَذِرْتُهُ فَحَلَفْتُ اَنْ

۱۳۶۲: قُتَيبه، عبد الوهاب، ايوب، ابو قلابه، قاسم تيمني، زهدم نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. دَ جَرم او اشعريانو قبيلو مينځ کښ وروروليي او دوستي وه. مونږ ابو موسٰي اشعري سره وو، هغه ته طعام راوړے شو. هغے کښ دَ چرګے غوښه وه. دَ بني تميم يو سړے هغه سره وو، دَ هغه سُر (سرخ) رنګ وو. هغه ئے ډوډئ ته راوغوښتلو، نو هغه اووے، ما دا په نجاست خوړلو ليدلے دے، نو خما طبيعت ترے متنفر شو او قسم مِ او خوړلو، چه چرګ به نه خورم، هغه ورته اووے. راپاسه، زه تاته د دے بابت کښ حديث بيانوم. زه دَ رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښ څو اشعريانو سره دَ سورلئ غوښتلو د پاره حاضر شوم، حضور صلّي الله عليه وسلّم

لَا اُكَلِّمُهُ فَقَالَ قُمْ فَلَاُ حَدِّثَنَّكَ عَنْ ذَاكَ اِنِّىْ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ نَفَرٍ مِّنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ نَسْتَحْمِلُهُ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا اَحْمِلُكُمْ وَ مَا عِنْدِىْ مَا اَحْمِلُكُمْ فَاُتِىَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَهْبِ اِبِلٍ فَسَاَلَ عَنَّا فَقَالَ اَيْنَ النَّفَرُ الْاَشْعَرِيُّوْنَ فَاَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرٰى فَلَمَّا انْطَلَقْنَا قُلْنَا مَا صَنَعْنَا حَلَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحْمِلُنَا تَغَفَّلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِيْنَهُ وَاللّٰهِ لَا نُفْلِحُ اَبَدًا فَرَجَعْنَا اِلَيْهِ فَقُلْنَا لَهُ اِنَّا اَتَيْنَاكَ لِتَحْمِلَنَا فَحَلَفْتَ اَنْ لَّا تَحْمِلَنَا وَ مَا عِنْدَكَ مَا تَحْمِلُنَا فَقَالَ اِنِّىْ لَسْتُ اَنَا حَمَلْتُكُمْ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ حَمَلَكُمْ وَاللّٰهِ لَا اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِّنْهَا اِلَّا اَتَيْتُ الَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ وَّ تَحَلَّلْتُهَا.

او فرمائيل، قسم په خدائے زه به تاسو ته سورلي درنه كړم، او نه ماسره څه څيز شته، چه په هغې تاسو سوارۀ كړم. دے كښې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له د مال غنيمت اوښان راغلل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم څمونږ متعلق تپوس اوكۀ. اشعريان چرته دي، او مونږ د پاره ئے د پنځو ښو اوښو راكولو حكم اوكړو. كوم وخت چه مونږ روان شو، نو مونږ اووے، دا مونږ څه اوكړل، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم قسم خوړلے وو، چه مونږ له به سورلي نه راكوي، او نه هغوي سره څه سورلي شته، چه مونږ پرے سواره كړي. بيا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ له سورلئ راكړے، شايد مونږ ترے قسم هير كړلو، په خدائے مو دے قسم وي، دے صورت كښې به مونږ فلاح (خلاصي) بيا نه مومو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له واپس راغلو، او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته مو عرض اوكه، چه مونږ تاسو له د سورلئ په غرض راغلي وو خو تاسو قسم اوخوړلو، چه مونږ خلقو له به سورلي نه راكړے او نه تاسو سره څه څيز شته، چه مونږ پرے سوارۀ كړئے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل ما تاسو له سورلئ درنه كړے، ليكن اللّٰه تاسو له دركړے. په خدائے، چه زه په څه خبره قسم اوخورم، او د هغے نه سيوا بله خبره كښې خير (نيكي) وي، نو زه هغه صورت اختياروم، كوم چه بهتر وي، او زه قسم مات كړم.

## باب ۱۶۷ : لَا يُحْلَفُ بِاللَّاتِ وَالْعُزّٰى وَ لَا بِالطَّوَاغِيْتِ.

## باب ۱۶۷ : په لات و عزي او بتانو دے قسم نه خوري.

۳۶۳: حَدَّثَنِىْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۳۶۳: عبد اللّٰه بن محمد، هشام بن يوسف،

مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ فَقَالَ فِيْ حَلْفِهِ بِاللَّاتِ وَالْعُزّٰى فَلْيَقُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ مَنْ قَالَ لِصَاحِبِهٖ تَعَالَ اُقَامِرْكَ فَلْيَتَصَدَّقْ.

معمر، زهري، حميد بن عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريرهٔ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، کوم سړے چه (دَ اللّٰه نه سِوا په بل چا) قسم او خوري. لکه په لات او عزيٰ، نو هغه دے لا اله الا اللّٰه اووايي. او کوم سړے چه خپل دوست ته اووائي. راځه چه جواري اوکړو نو هغه دے خيرات اوکړي (دَ کفارے په طور دے صدقه اوکړي).

## باب ۱۶۸ : مَنْ حَلَفَ عَلَى الشَّيْءِ وَ اِنْ لَّمْ يُحَلَّفْ.

باب ۱۶۸ : بغير قسم ورکولو قسم خوړل.

۳۶۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصْطَنَعَ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ وَّ كَانَ يَلْبَسُهٗ فَيَجْعَلُ فَصَّهٗ فِيْ بَاطِنِ كَفِّهٖ فَصَنَعَ النَّاسُ ثُمَّ اِنَّهٗ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَنَزَعَهٗ فَقَالَ اِنِّيْ كُنْتُ اَلْبَسُ هٰذَا الْخَاتَمَ وَ اَجْعَلُ فَصَّهٗ مِنْ دَاخِلٍ فَرَمٰى بِهٖ ثُمَّ قَالَ وَاللّٰهِ لَآ اَلْبَسُهٗ اَبَدًا فَنَبَذَ النَّاسُ خَوَاتِيْمَهُمْ.

۳۶۴: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوکه. وے مونږ ته ليث بن سعد. هغه دَ نافع نه، هغه دَ ابن عمر رضي الله عنه نه، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ سرو زرو يوه ګوته جوړه کړه. هغه به ئے اچوله او غمے به ئے تلي طرفته کولو. خلقو هم دَ (حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ليدو سره) دَ سرو زرو ګوتے جوړے کړے. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په منبر کيناستلو. او ګوته ئے اوبنکله. وے فرمائيل، ما دا ګُته اچوله. د دے غمے به مِ دننه طرفته ساتلو. بيا هغه ګُته ئے او غورځوله. وے فرمائيل قسم په خدائے اوس به زهٔ هيچرے دا وانهٔ چوم. خلقو هم دے ليدو سره خپلے خپلے ګُتے اوغورځولے.

## باب ۱۶۹ : مَنْ حَلَفَ بِمِلَّةٍ سِوٰى مِلَّةِ الْاِسْلَامِ. وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ بِاللَّاتِ وَالْعُزّٰى فَلْيَقُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ لَمْ يَنْسِبْهُ اِلَى

باب ۱۶۹ : کوم سړے چه دَ اسلام نه سِوا بل (مذهب) باندے دَ کيدو قسم اوخوري، او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل (دا حديث هم موصولًا تير شوے وه) چه کوم سړے لات او عزيٰ باندے قسم او خوري هغه دے لا اله الّا اللّٰه اووائي. ليکن هغه ته ئے

الْكُفرِ.

۳۲۶۵: حَدَّثَنَا مَعَلّى ابْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وَهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِىْ قِلَابَةَ عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَاكِ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ مِلَّةِ الْاِسْلَامِ فَهُوَ كَمَا قَالَ وَ مَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَىْءٍ عُذِّبَ بِهٖ فِىْ نَارِ جَهَنَّمَ وَ لَعْنُ الْمُؤْمِنِ كَقَتْلِهٖ وَ مَنْ رَمٰى مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَتْلِهٖ.

کافر اونهٔ فرمائيل.

۳۲۶۵: مونږ ته معلي بن اسد بيان اوکهٔ. وے مونږ ته وهب بن خالد. هغه دَ ايوب هغه دَ ابو قلابه نه هغه دَ ثابت بن ضحاک نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل کوم سړے چه دَ اِسلام نه سِوا بل مذهب (ملّت) باندے دَ کيدو قسم او خوري. نو هغه به هغسے شي. او کوم سړے چه يو څيز سره ځان قتل کړي. (مثلًا وَسلے سره يا زهرو سره) نو دوزخ کښې به هغے څيز سره عذاب ورکولے شي. او مسلمان باندے لعنت کول. دَ هغه دَ قتلولو برابر دي. دغسے مسلمان ته کافر وئيل هم دَ هغه دَ قتلولو برابر دي.

باب ۱۷۰: لَا يَقُوْلُ مَا شَآءَ اللّٰهُ وَ شِئْتَ وَ هَلْ يَقُوْلُ اَنَا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ وَ قَالَ عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِىْ عَمْرَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ ثَلٰثَةً فِىْ بَنِىْ اِسْرَآئِيْلَ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّبْتَلِيَهُمْ فَبَعَثَ مَلَكًا فَاَتَى الْاَبْرَصَ فَقَالَ تَقَطَّعَتْ بِىَ الْحِبَالُ فَلَا بَلَاغَ لِىْ اِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

باب ۱۷۰: داسے وئيل منع دي. چه څه اللّٰه غواړي او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غواړي، او آيا څوک سړے داسے وئيلے شي چه ماته دَ اللّٰه آسره ده. بيا دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم. او عمرو بن عاصم اووے (دا حديث موصولًا اخبار بني اسرائيل کښې تير شويدے) مونږ ته همام بن يحيٰي بيان اوکه. وے، مونږ ته اسحاق بن عبد اللّٰه اووے. وے مونږ ته عبد الرحمٰن بن عمر. هغه ته ابو هريرهؓ بيان اوکه هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، بني اسرائيلو کښې درے سړي وو. اللّٰه تعالي دَ هغوي ازمائيل اوغوښتل (بيا ټوله قصه ئے بيان کړله) ملائکه ئے جذامي (کوړهي) ته اوليږله. هغه ته ئے اووے. خما دَ روزئ ټولے ذريعے کټ شوے دي اوس بس صرف دَ اللّٰه آسره ده. بيا ستا (يعني اوس دَ اللّٰه مدد پکار دے. بيا ستا).

باب ۱۷۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ. وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ فَوَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَتُحَدِّثَنِيْ بِالَّذِيْ اَخْطَأْتُ فِي الرُّؤْيَا قَالَ لَا تُقْسِمْ.

باب ۱۷۱: دَ اللّٰه تعالٰي فرمائيل دا منافق په اللّٰه غټ پاخۀ قسمونه خوري. او ابن عباسؓ اووے (دا حديث به كتاب التعبير كښې مخكښې موصولًا مذكور شي. ابوبكر صديقؓ اووے. دَ اللّٰه قسم يا رسول اللّٰه. ماته بيان كړئے. چه ما تعبير وركولو كښې څۀ غلطي او كړه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. قسم مه خوره.

۳۶۶: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانَ عَنْ اَشْعَثَ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَشْعَثَ عَنْ مُعَاوِيَةَ ابْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَآءِؓ قَالَ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاِبْرَارِ الْمُقْسِمِ.

۳۶۶: مونږ ته قبيصه بن عتبه بيان اوكه، وے مونږ ته سفيان ثوري هغه دَ اشعث بن ابي الشعثاء نه، هغه دَ معاويه بن سويد بن مقرن نه هغه دَ براء بن عازبؓ نه هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. دويم سند امامِ بخاريؒ اووے او ماته محمد بن بشار بيان اوكه. وے مونږ ته غندر محمد بن جعفر اووے. مونږ ته شعبه. هغه دَ اشعث نه. هغه دَ معاويه بن سويد بن مقرن نه. هغه دَ براءؓ نه. هغه اووے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم قسم خوړونكي ته دَ رښتيا كولو دَ پاره حكم اوفرمائيلو.

۳۶۷: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا عَاصِمُ الْاَحْوَلُ سَمِعْتُ اَبَا عُثْمَانَ يُحَدِّثُ عَنْ اُسَامَةَ اَنَّ ابْنَةً لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَتْ اِلَيْهِ وَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَّ سَعْدٌ وَّ اُبَيٌّ اَنَّ ابْنِيْ قَدِ احْتُضِرَ فَاشْهَدْنَا

۳۶۷: مونږ ته حفص بن عمر حوشي بيان اوكه. وے. مونږ ته شعبه بن حجاج اووے مونږ ته عاصم احول خبر راكه. وے. ما دَ ابو عثمان نهدي نه واؤريدل. هغه د اسامه بن زيد نه نقل كړل. چه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوے لور (بي بي زينبؓ) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته پيغام راوليږلو، چه دَ هغې بچے مرګ ته قريب دے. تاسو تشريف راوړئ. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته جواب اوليږلو. خما سلام ورته وايه. او دا چه ټول دَ اللّٰه مال دے، څۀ چه هغه واخستل او څۀ چه هغۀ عنايت (عطا. پيرزو) كړل. او دَ هر څيز هغۀ سره يو

فَاَرْسَلَ يَقْرَأُ السَّلَامَ وَ يَقُوْلُ اِنَّ لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَ مَا اَعْطٰى وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ مُسَمًّى فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ فَاَرْسَلَتْ اِلَيْهِ تُقْسِمُ عَلَيْهِ فَقَامَ وَ قُمْنَا مَعَهٗ فَلَمَّا قَعَدَ رُفِعَ اِلَيْهِ فَاَقْعَدَهٗ فِيْ حَجْرِهٖ وَ نَفْسُ الصَّبِيِّ تَقَعْقَعُ فَفَاضَتْ عَيْنَا رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدٌ مَّا هٰذَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ يَّضَعُهَا اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَ اِنَّمَا يَرْحَمُ اللّٰهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَآءَ.

وخت مقرر دے. صبر کوه. الله نه ذَ ثواب اُميد لره. لور بي بي قسم ورکولو سره ورته عرض او کۀ چه تاسو ضرور تشريف راوړئ. نو هغه وخت حضور صلّي الله عليه وسلّم راپاسيدلو. مونږ خلق ورسره هم راپاسيدلو. کوم وخت چه حضور صلّي الله عليه وسلّم ذ لور بي بي کور ته اورسيدلو. هلته کيناستلو نو بچے ئے اوچت کۀ، حضور صلّي الله عليه وسلّم ته ئے راوړلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم هغه غيږ کښې واخستلو. ذ هغه ساه په ختووه دے حال پُرملال ليدو سره حضور صلّي الله عليه وسلّم ذ سترګو مبارکو نه اُوښکے او بهيدے (په ژړا شولو) سعد بن حفص عرض او کۀ. يا رسول الله. دا ژړا څنګه (دا خو ستاسو ذ شان خلاف ده) حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل، دا ژړا ذ رحم په وجه وه. او الله تعالي ذ کوم بنده زړۀ کښې چه غواړي رحم اچوي. چه الله تعالي په هغے خپلو بنديانو رحم کوي. څوک چه نورو باندے رحم کوي.

۳۶۸: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مٰلِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضـ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمُوْتُ لِاَحَدٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ثَلٰثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ تَمَسُّهُ النَّارُ اِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ.

۳۶۸: مونږ ته اسمٰعيل بن اويس بيان وے ماته امام مالک، هغه ذ ابن شهاب نه هغه ذ سعيد بن مسيب نه. هغه ذ ابو هريرهؓ نه چه حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل ذ کوم مسلمان چه درے (۳) بچے مړۀ شي نو ذ دوزخ عذاب به ئے مس کوي هم نه. خو صرف قسم پوره کولو ذ پاره.

۳۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنِيْ غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَّعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنِ

۳۶۹: مونږ ته محمد بن مثني بيان او که وے. ماته غندر (محمد بن جعفر) وے مونږ ته شعبه، هغه ذ معبد بن خالد نه. وے. ما ذ حارثه بن وهب نه واوريدل.

وَهْبٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَلَا اَدُلُّكُمْ عَلٰى اَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيْفٍ مُتَضَعَّفٍ لَوْ اَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَاَ بَرَّهُ وَ اَهْلُ النَّارِ كُلُّ جَوَّاظٍ عُتُلٍّ مُسْتَكْبِرٍ.

هغه وئيل. زهٔ تاسو خلقو ته اوښايم چه جنتيان خلق څوک دي؟ هر غريب ناتوان، چه دَ اللّٰه دَ فضل و کرم په بهروسه قسم او خوري، نو اللّٰه هغه ريښتنے کړي (دَ هغه مطلب پوره کړي). او دوزخيان کوم خلق دي. هرغټ. جګړه مار. مغرور.

**باب ۱۷۴۲ : اِذَا قَالَ اَشْهَدُ بِاللّٰهِ اَوْ شَهِدْتُ بِاللّٰهِ.**

**باب ۱۷۴۲ :** که چا اووے. اشهد باللّٰه يا شهدت باللّٰه، نو دا به قسم وي، يا نه؟

**۳۷۰:** حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ قَالَ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَجِيْءُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ اَحَدِهِمْ يَمِيْنَهُ وَ يَمِيْنُهُ شَهَادَتَهُ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ وَ كَانَ اَصْحَابُنَا يَنْهَوْنَا وَ نَحْنُ غِلْمَانٌ اَنْ نَّحْلِفَ بِالشَّهَادَةِ وَالْعَهْدِ.

**۳۷۰:** مونږ ته سعد بن حفص بيان او که وے مونږ ته شيبان بن عبد الرحمٰن نحوي. هغه د منصور بن معتمر نه. هغه دَ ابراهيم نخعي هغه دَ عبيده سلماني نه. هغه دَ عبد اللّٰه بن مسعود نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوشو. کوم خلق بهتر دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. خما دَ زمانے (يعني صحابهؓ) بيا چه دَ هغوي نه پس دي (يعني تابعينؒ) بيا چه دَ هغوي نه پس دي (يعني تبع تابعينؒ) بيا به داسے خلق پيدا شي، چه دَ قسم نه مخکښې به ګواهئ ورکوي. او دَ ګواهئ نه مخکښے به قسمونه خوري. ابراهيم نخعيؒ (دَ سند سره) اووے. کوم وخت چه مونږ بچي وو، نو خمونږ بزرګانو (مشرانو) به مونږ منع کولو، چه مونږ ګواهي يا عهد کښ قسم او خورو.

**باب ۱۷۴۳ : عَهْدِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.**

**باب ۱۷۴۳ :** کوم سړے چه علٰى عَهْدَ اللّٰه اووائي نو څهٔ حکم دے.

**۳۷۱:** حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا بْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ وَ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ

**۳۷۱:** ماته محمد بن بشار بيان او که. وے مونږ ته محمد بن ابي عدي. هغه دَ شعبه نه. هغه دَ سليمان بن اعمش او منصور بن معتمر نه. هغوي، دواړو دَ ابو وائل نه. هغه دَ عبد اللّٰه بن مسعود نه هغه دَ حضور صلّي اللّٰه

اللّٰهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنِ كَاذِبَةٍ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ اَوْ قَالَ اَخِيْهِ لَقِيَ اللّٰهَ وَ هُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيْقَهُ اِنَّ الَّذِيْنَ يُشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ قَالَ سُلَيْمَانُ فِيْ حَدِيْثِهِ فَمَرَّ الْاَشْعَثُ بْنُ قَيْسٍ فَقَالَ مَا يُحَدِّثُكُمْ عَبْدُ اللّٰهِ قَالُوْا لَهُ فَقَالَ الْاَشْعَثُ نَزَلَتْ فِيَّ وَ فِيْ صَاحِبٍ لِيْ فِيْ بِئْرٍ كَانَتْ بَيْنَنَا.

عليه وسلّم نه. حضورؐ او فرمائيل. کوم سړے چه د يو مسلمان مال (يا حق) وهلو دَ پاره دروغ قسم اوخوري. يا داسے ئے او فرمائيل، دَ خپل وروړ مال (يا حق) وهلو دَ پاره، نو هغه چه اللّٰه سره (دَ حشر په ورځ) يو ځائے کيږي، اللّٰه به په هغه غصه وي. بيا اللّٰه تعالٰي قرآن شريف کښې دَ دے تصديق نازل که (سورهٔ آل عمران کښې ئے) او فرمائيل اِنَّ الَّذِيْنَ يُشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا. اعمش په خپل روايت کښې داسے اووے. دے نه پس اشعث بن قيس (صحابي) اخوا تير شو. هغه دَ خلقو نه تپوس اوکه، عبد اللّٰه تاسو ته دَ څهٔ حديث بيانولو. هغوي بيان که. اشعث اووے، چه دا آيت خو ځما او ځما د ملګري په باره کښې نازل شوے دے چه دَ يو کوهي باره کښې ځمونږ دواړو جګړه وه.

## بَاب ١٧٤٣ : اَلْحَلَفِ بِعِزَّةِ اللّٰهِ وَ صِفَاتِهِ وَ كَلِمَاتِهِ.

## باب ١٧٤٣ : دَ اللّٰه په عزت او عظمت او دَ هغه په صفات او کلام قَسم خوړل.

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَعُوْذُ بِعِزَّتِكَ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْقٰى رَجُلٌ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ اصْرِفْ وَجْهِيْ عَنِ النَّارِ لَا وَ عِزَّتِكَ لَا اَسْأَلُكَ غَيْرَهَا وَ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ لَكَ ذٰلِكَ وَ عَشَرَةُ اَمْثَالِهِ

او ابن عبّاس اووے (دا خپله امامِ بخاري توحيد کښې وصل که) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به داسے فرمائيل، يا اللّٰه، ستا دَ عظمت پناه غواړم. او ابو هريرهؓ دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوکه، چه يو سړے به دَ دوزخ او جنت مينځ کښې پاتے شي. هغه به داسے دُعا کوي. اے پروردګاره، دومره اوکړے چه ځما مخ دَ دوزخ طرفنه واړوے. بس ستا په عزت مِ دے قسم وي. زهٔ به بل څهٔ سوال نهٔ کوم. او ابو سعيد اووے (دا روايت هم دے حديث کښې ذِکر شويدے) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. اللّٰه تعالٰي به او فرمائي دا هم واخله او دَ دے لس چنده نور او ايوب پيغمبرؑ اووے (دا حديث كتاب الطهارة کښې

وَ قَالَ اَیُّوْبُ وَ عِزَّتِكَ لَا غِنٰی عَنْ بَرَکَتِكَ.

موصولًا تیر شوے دے) اے پروردګاره ستا په عزت م دے قسم وي. زۀ ستا دَ برکت نه بے پروا کیدے نشم.

٣٧٢: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَزَالُ جَهَنَّمُ تَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ حَتّٰى يَضَعَ رَبُّ الْعِزَّةِ فِيْهَا قَدَمَهٗ فَتَقُوْلُ قَطْ قَطْ وَ عِزَّتِكَ وَ يُزْوٰى بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ وَّرَوَاهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ.

٣٧٢: مونږ ته اٰدم بن ابي ایاس بیان او که وے مونږ ته شیبان. وے. مونږ ته قتاده. هغه دَ انس بن مالک نه، چه حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. دوزخ به دا برابر وائي. نور څۀ شته نور څۀ شته. تر دے چه پروردګار به خپله پښه هغے کښ کیږدي. نو هغه وخت به دوزخ وائي. بس بس (زۀ ډک شوم) ستا په عزت م قسم. اورا غُنډ به شي. دا حدیث شعبه هم دَ قتاده نه روایت کړے دے.

باب ١٧٥: قَوْلِ الرَّجُلِ لَعَمْرُ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ لَعَمْرُكَ لَعَيْشُكَ.

باب ١٧٥: دَ اللّٰه دَ بقا قسم خوړل. ابن عباس اووے (دا ابن ابي حاتم وصل که). دا چه (سورۀ حجر کښ) او فرمائیل: لَعَمْرُک انهم لفی سکرتهم یعمهون. (دلته عمرک نه دَ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ژوند مراد دے. اللّٰه په دے قسم او خوړلو).

٣٧٣: حَدَّثَنَا الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح وَ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ حَدِيْثِ عَائِشَةَؓ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ مَا قَالُوْا فَبَرَّاَهَا اللّٰهُ

٣٧٣: مونږ ته عبد العزیز بن عبد اللّٰه اویسي بیان او کۀ. وے مونږ ته ابراهیم بن سعد هغه دَ صالح بن کیسان نه هغه دَ ابن شهاب نه. (دویم سند) امامِ بخاريؒ اووے. او مونږ ته حجاج بن منهال. وے. مونږ ته عبد اللّٰه بن عمر نمیري. وے. مونږ ته یونس بن یزید وئیلي وه. ما دَ زهري نه واوریدل وے. ما دَ عروه ابن زبیر او سعید بن مسیب او علقمه بن وقاص او عبید اللّٰه بن عبد اللّٰه نه، دے ټولو، بي بي عائشےؓ باندے چه کوم طوفان ښَودلے شوے وو، دَ هغے قصه بیان کړه. او اللّٰه تعالیٰ چه دَ هغے پاکدامني ظاهر کړه دوي کښ هر سړي دَ حدیث یوه یوه ټکړه ماته نقل کړه. آخر حضور صلّي اللّٰه علیه

وَكُلٌّ حَدَّثَنِي طَآئِفَةً مِّنَ الْحَدِيثِ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَعْذَرَ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيٍّ فَقَامَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ فَقَالَ لِسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ لَعَمْرُ اللّٰهِ لَنَقْتُلَنَّهُ.

وسلّم اودريدلو. او ذَ عبد اللّٰه بن ابي سلول (منافق) مقابله کښې ئې ذَ خلقو نه مدد اوغوښتلو. دے آورېدو سره اُسيد بن حُضير (صحابيؓ) اودريدلو او سعد بن عباده ته ئې اووے ذَ اللّٰه په بقاء مو دے قسم وي، مونږ به هغه قتل کړو.

باب ۱۷۶ : لَا يُوَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّوَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ.

باب ۱۷۶ : ذَ اللّٰه تعالىٰ سُورة بقره کښې فرمائيل: اللّٰه تعالىٰ په لغو قسمونو تاسو نهٔ نيسي ليکن په دے مواخذه کوي چه تاسو ذَ زړهٔ نه قصد اوکړئے. او اللّٰه ښښونکے برداشت کونکے (زغمونکے).

۳۷۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَنْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَؓ لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ قَالَتْ اُنْزِلَتْ فِيْ قَوْلِهٖ لَا وَاللّٰهِ وَ بَلٰى وَاللّٰهِ.

۳۷۴: ماته محمد بن مثنٰي بيان اوکه. مونږ ته يحيٰي بن سعيد قطان. هغه ذَ هشام بن عروه نه. هغه اووے، زهٔ خپل پلار خبر کړم. هغه ذَ بي بي عائشےؓ نه. هغے اووے: لا يؤاخذكم اللّٰه باللغو في ايمانكم: کښې لغو قَسم نه دا مراد دے. ذَ سړي خبرو کښې) لا واللّٰه بلٰي واللّٰه وئيل.

باب ۱۷۷ : اِذَا حَنِثَ نَاسِيًا فِي الْاَيْمَانِ. وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَا اَخْطَأْتُمْ بِهٖ وَ قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِمَا نَسِيْتُ.

باب ۱۷۷ : که قسم خوړلو نه پس په هيره هغه مات کړي (نو کفاره به لازميږي يا نه). او اللّٰه تعالىٰ او فرمائيل څهٔ چه تاسو خطاء اوکړه هغے کښې تاسو باندے ګناه نشته. او وے فرمائيل هيره باندے مانه مواخذه مهٔ کوه.

۳۷۵: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةَ حَدَّثَنَا زُرَارَةُ بْنُ اَوْفٰى عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ يَرْفَعُهٗ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ تَجَاوَزَ بِاُمَّتِيْ عَمَّا وَسْوَسَتْ اَوْ حَدَّثَتْ بِهٖ اَنْفُسَهَا مَا لَمْ تَعْمَلْ

۳۷۵: مونږ ته خلا بن يحيٰي بيان اوکه، وے مونږ ته مسعر بن کدام اووے. مونږ ته قتاده اووے. مونږ ته زراره بن اوفي. هغه ذَ ابو هريرهؓ نه. هغه ذَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. اللّٰه، تعالىٰ زما اُمت ته ذَ زړهٔ وسوسه، يا زړهٔ کښې چه څهٔ خطره راشي، معاف کړے ده (په هغے مواخذه

بِهٖ اَوْ تَكَلَّمَ.

نشته) څو پورې چه په هغې عمل يا وئيل اونه کړي.

۶۷۶: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ اَوْ مُحَمَّدٌ عَنْهُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ شِهَابٍ يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ عِيْسٰى بْنُ طَلْحَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ حَدَّثَهٗ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا هُوَ يَخْطُبُ يَوْمَ النَّحْرِ اِذْ قَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ فَقَالَ كُنْتُ اَحْسَبُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَذَا وَ كَذَا قَبْلَ كَذَا وَ كَذَا ثُمَّ قَامَ اٰخَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كُنْتُ اَحْسَبُ كَذَا وَ كَذَا لِهٰٓؤُلَآءِ الثَّلٰثِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْعَلْ وَ لَا حَرَجَ لَهُنَّ كُلِّهِنَّ يَوْمَئِذٍ فَمَا سُئِلَ يَوْمَئِذٍ عَنْ شَيْءٍ اِلَّا قَالَ افْعَلْ وَ لَا حَرَجَ.

۶۷۶: مونږ ته عثمان بن هشيم بيان اوکړ يا محمد بن يحيي ديلمي دَ عثمان بن هشيم نه (دا امام بخاريؒ ته شک دے) هغه دَ ابن جريج نه وے ما دَ ابن شهاب نه واؤريدل. هغه وئيل. ما ته عيسیٰ بن طلحه بيان اوکه. هغه ته عبد الله بن عمرو بن عاص بيان اوکه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په لسم تاريخ دَ ذوالحجے خطبه لوستله. دے کښې يو (نامعلومه) سړے اودريدلو. او عرض ئے اوکه يا رسول اللّٰه، ما داسے اوګنړله چه دَ حج فلانے کار دَ فلاني کار نه مخکښې کول پکار دي (او يا هغسے اوکړل) بيا دويم سړے اودريدلو عرض ئے اوکه يا رسول اللّٰه، ما اوګنړله، چه دا کار دَ هغې نه مخکښې کول پکار دي دَ دے درے کارونو په نسبت دواړه سړو تپوس اوکه (يعني دَ حلق، نحر او، رمي په نسبت) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. اوس اوکړئے. هيڅ حرج نشته دَ دے درے کارونو په نسبت په هغه ورځ ئے دا جواب ورکړلو. او په هغه ورځ چه کوم تپوس دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوشو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا جواب ورکړلو. چه اوس ئے اوکړئے. هيڅ حرج نشته.

۶۷۷: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ رُفَيْعٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۶۷۷: مونږ ته احمد بن يونس بيان اوکه وے مونږ ته ابوبکر بن عباسؓ. هغه دَ عبد العزيز بن رفيع نه. هغه دَ عطاء بن ابي رباح نه. هغه دَ ابن عباسؓ نه. هغه اووے. يو سړي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه ما دَ رمي نه مخکښې طوافِ زيارت اوکه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هيڅ حرج نشته

زُرْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ لَا حَرَجَ قَالَ اٰخَرُ حَلَقْتُ قَبْلَ اَنْ اَذْبَحَ قَالَ لَا حَرَجَ قَالَ اٰخَرُ ذَبَحْتُ قَبْلَ اَنْ اَرْمِيَ قَالَ لَا حَرَجَ.

دويم سړے اووے. ما ذَ ذبح نه مخکښ سر او خرئيلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. هيڅ حرج نشته. دويم سړي اووے ما ذَ رَمي نه مخکښ ذبح او کړه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. هيڅ حرج نشته.

۳۷۸: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا اَبُو اُسَامَةَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ اَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ يُصَلِّيْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَجَآءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَرَجَعَ فَصَلّٰى ثُمَّ سَلَّمَ فَقَالَ وَ عَلَيْكَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ فَاَعْلِمْنِيْ قَالَ اِذَا قُمْتَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاَسْبِغِ الْوُضُوْءَ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ وَاقْرَاْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ رَاْسَكَ حَتّٰى تَعْتَدِلَ قَآئِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَسْتَوِيَ وَ تَطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى

۳۷۸: مونږ ته اسحاق بن منصور بيان او کړه. وے مونږ ته اسامه اووے. مونږ ته عبيد اللّٰه بن عمر. هغه ذَ سعيد بن ابي سعيد نه هغه ذَ ابو هريرهؓ نه. چه يو سړے (خلاد بن رافع) مسجدِ نبويّ ته راغے. مونځ ئے شروع که. هغه وخت حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذَ جُومات يو کُنج کښ تشريف فرما وو. مونځ کولو نه پس راغے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے سلام او که. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. واپس لاړشه. بيا مونځ او که، تا مونځ نۀ دے کړے هغه لاړ. دوباره ئے مونځ او که. بيا واپس راغے سلام ئے او که. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذَ سلام جواب ورکۀ. ورته ئے او فرمائيل. لاړشه مونځ او که. تا مونځ نۀ دے کړے. آخر په دريم ځل هغه عرض که. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوښائے، چه زۀ څرنګ مونځ او کړم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل، هر کله چه تۀ مانځه ذَ پاره اودريږے نو پوره اودس او کړه بيا قبلے طرفته مخ کړه. اللّٰه اکبر اووايه. او څومره آسانۍ سره چه لوستے شي قرآن شريف اولوله. هغے نه پس اطمينان سره رکوع او کړه. بيا سر اوچت که. نيغ اودريږه بيا اطمينان سره سجده او کړه بيا سر اوچت که، اطمينان سره نيغ کينه. بيا دويمه سجده هم اطمينان سره او کړه.

تَسْتَوِيَ قَائِمًا ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِيْ صَلَاتِكَ كُلِّهَا.

بيا سر اوچت کړه او نيغ اودريږه. دغسې ټوله مونځ اوکه.

۶۳۷۹: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ اَبِي الْمَغْرَآءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ هُزِمَ الْمُشْرِكُوْنَ يَوْمَ اُحُدٍ هَزِيْمَةً تُعْرَفُ فِيْهِمْ فَصَرَخَ اِبْلِيْسُ اَيْ عِبَادَ اللّٰهِ اُخْرَاكُمْ فَرَجَعَتْ اُوْلَاهُمْ فَاجْتَلَدَتْ هِيَ وَ اُخْرَاهُمْ فَنَظَرَ حُذَيْفَةُ ابْنُ الْيَمَانِ فَاِذَا هُوَ بِاَبِيْهِ فَقَالَ اَبِيْ اَبِيْ قَالَتْ فَوَ اللّٰهِ مَا انْحَجَزُوْا حَتّٰى قَتَلُوْهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ غَفَرَ اللّٰهُ لَكُمْ قَالَ عُرْوَةُ فَوَاللّٰهِ مَا زَالَتْ فِيْ حُذَيْفَةَ مِنْهَا بَقِيَّةٌ حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ.

۶۳۷۹: مونږ ته فروه بن ابي المغراء بيان اوکه. وې مونږ ته علي بن مسهر. هغه د هشام بن عروه نه. هغه د خپل پلار نه هغه دَ بي بي عائشې رضي الله عنها نه. هغې اووې، اوشو داسې، چه جنګ اُحد کښې مخکښې کافرو ته څرګند شکست اوشه. هغه وخت ابليس ملعون آواز اوکه. دَ خدائې بندیانو. ورستو چه کوم خلق راروان دي. هغوي نه بچ شئې. وې آوريدو سره مخکښې واله مسلمانانُ په ورستو مسلمانانو حمله اوکړه او خپلو کښې جنګ شروع شو. حذيفه بن يمان (صحابيؓ) اوليدل. چه خلقو دَ هغه پلار کافر ګنړلو سره ئې قتلوي. هغه ورته آواز اوکه. اې ورونړو. دا ځما پلار دې (دې مه وژنئې) خو چا آوريدل. بي بي عائشهؓ وائي. مسلمانانو هغه پرې نښودلو تر دې چه هغه ئې قتل کړلو. آخر حذيفهؓ اووې اللّٰه دې تاسو اوبخښي. قسم په خدائې. حذيفهؓ چه څو پورې ژوندې وو. دَ هغه زړهٔ کښې دَ هغه (يعني دَ خپل پلار دَ قتل) غم او افسوس وو.

۶۳۸۰: حَدَّثَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَوْفٌ عَنْ خِلَاسٍ وَ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَكَلَ نَاسِيًا وَّ هُوَ صَائِمٌ فَلْيُتِمَّ صَوْمَهٗ فَاِنَّمَا اَطْعَمَهُ اللّٰهُ وَ سَقَاهُ.

۶۳۸۰: ماته يوسف بن موسٰي بيان اوکهٔ. وې مونږ ته ابو اسامه. وې. ماته عوف اعرابي هغه دَ خلاص بن عمرو او محمد بن سيرين نه. هغه دَ ابو هريرهؓ نه. هغه اووې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. څوک چه روژه کښې په هيره څه او خوړي (اوڅکي) هغه دې خپله روژه پوره کړي. ځکه چه هغه خپله اونهٔ خوړل. بلکه اللّٰه تعالٰي پرې اوخورول، او څکول.

۶۳۸۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ

۶۳۸۱: مونږ ته آدم بن ابي اياس بيان اوکه، وې.

اَيَّاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُحَيْنَةَ قَالَ صَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ قَبْلَ اَنْ يَجْلِسَ فَمَضٰى فِيْ صَلٰوتِهٖ فَلَمَّا قَضٰى صَلٰوتَهُ انْتَظَرَ النَّاسُ تَسْلِيْمَهُ فَكَبَّرَ وَ سَجَدَ قَبْلَ اَنْ يُّسَلِّمَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهُ ثُمَّ كَبَّرَ وَ سَجَدَ ثُمَّ رَفَعَ رَاْسَهُ وَسَلَّمَ.

مونږ ته محمد بن عبد الرحمٰن بن ابي ذئب. هغه ز زهري نه هغه دَ اعرج نه. هغه دَ عبد اللّٰه بن بحينه نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ ماسپخين مونځ ورکړلو او دوه رکعاته کولو سره کښيناستلو. په هيره اودريدلو. چه مونځ ئے پوره که. خلق دَ سلام په انتظار کښي وو. دے کښي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ سلام ګرځولو نه مخکښي اللّٰه اکبر اووے او سجده ئے اوکړله. بيا دَ سجدے نه سر مبارک اوچتولو سره اللّٰه اکبر ئے اووے او دويمه سجده ئے اوکړه. بيا سر مبارک ئے اوچت که. سلام ئے اوګرځولو.

۳۸۲: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ سَمِعَ عَبْدَ الْعَزِيْزِ بْنِ عَبْدِ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمْ صَلٰوةَ الظُّهْرِ فَزَادَ اَوْ نَقَصَ مِنْهَا قَالَ مَنْصُوْرٌ لَّا اَدْرِيْ اِبْرٰهِيْمُ وَهِمَ اَوْ عَلْقَمَةُ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَقَصُرَتِ الصَّلٰوةُ اَمْ نَسِيْتَ قَالَ وَ مَا ذَاكَ قَالُوْا صَلَّيْتَ كَذَا وَ كَذَا قَالَ فَسَجَدَ بِهِمْ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ هَاتَانِ السَّجْدَتَانِ لِمَنْ لَّا يَدْرِيْ

۳۸۲: ماته اسحاق بن راهويه بيان اوکه هغه دَ عبد العزيز بن عبد الصمد نه واوريدل. وےٴ. مونږ ته منصور بن معتمر بيان اوکه. هغه دَ ابراهيم نخعي نه، هغه دَ علقمه نه هغه دَ عبد اللّٰه بن مسعودؓ نه. هغه اووے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ ماسپخين مونځ ورکولو. هغے کښي (په هيره) څۀ کمے بيشي اوشو. معتمر بن منصور وائي. ماته نۀ ده معلومه دا شک (چه مونځ کښے کمے اوشو، يا بيشي) ابراهيم نخعي ته اوشو يا علقمه ته. خير (مانخه نه پس) خلقو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، آيا مونځ کښي کمے اوشو، يا تاسو نه هيره اوشوه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. څۀ خبره ده. خلقو عرض اوکه. تاسو دومره رکعاته اوکړل. ابن مسعودؓ وائي. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم (دَ سهوے) دوه (۲) سجدے اوکړے. اووے فرمائيل دا دوه سجدے هغه سړي دَ پاره دي چه هغه ته ياد پاتے نشي. چه هغه مونځ کښي کمے

زَادَ فِيْ صَلٰوتِهٖ اَمْ نَقَصَ فَيَتَحَرَّ الصَّوَابَ وَ يُتِمُّ مَا بَقِيَ ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ.

اوكۀ يا بيشي نو هغه له پكار دي چه سوچ كولو سره څه ورته ټيک معلوم شي. هغې حساب سره مونځ پوره كړي. بيا (: سهوې) دوه (۲) سجدې اوكړي.

۳۸۳: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ حَدَّثَنَا اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِمَا نَسِيْتُ وَ لَا تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا قَالَ كَانَتِ الْاُوْلٰى مِنْ مُوْسٰى نِسْيَانًا.

۳۸۳: مونږ ته عبد الله بن زبير حميدي بيان اوكه. وې. مونږ ته سفيان بن عينيه اووې مونږ ته عمرو بن دينار. وې. ماته سعيد بن جبير خبر راكه. وې. ما ابن عباسؓ ته اووې. هغه اووې. مونږ ته ابي بن كعبؓ بيان اوكه. هغه دَ دې آيت تفسير كښې (چه سورهٔ كهف كښې دې) لا تؤاخذني بما نسيت ولا ترهقني من امري عسرًا' دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واؤريدل چه وړومبې سوال چه موسیٰؑ كړې وو' هغه دَ هيرې په وجه وو.

۳۸۴: قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ كَتَبَ اِلَيَّ مُحَمَّدُ ابْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ قَالَ الْبَرَآءُ بْنُ عَازِبٍؓ وَ كَانَ عِنْدَهُمْ ضَيْفٌ لَّهُمْ فَاَمَرَ فَلَهٗ اَنْ يَّذْبَحُوْا قَبْلَ اَنْ يَّرْجِعَ لِيَاْكُلَ ضَيْفُهُمْ فَذَبَحُوْا قَبْلَ الصَّلٰوةِ فَذَكَرُوْا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَهٗ اَنْ يُّعِيْدَ الذَّبْحَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ عِنْدِيْ عَنَاقٌ جَذَعٌ عَنَاقُ لَبَنٍ هِيَ خَيْرٌ مِّنْ شَاتَيْ لَحْمٍ فَكَانَ ابْنُ عَوْنٍ يَّقِفُ فِيْ هٰذَا الْمَكَانِ عَنْ حَدِيْثِ الشَّعْبِيِّ وَيُحَدِّثُ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ سِيْرِيْنَ بِمِثْلِ هٰذَا

۳۸۴: امام بخاريؒ اووې' محمد بن بشار ماته اوليكل' چه مونږ ته معاذ بن جبلؓ بيان كه' چه مونږ ته محمد بن عون' هغه دَ شعبي نه. هغه اووې. براء بن عازبؓ سره يو ميلمه كوز شو. هغه (دَ بقرِ عيد په ورځ) خپلو خلقو ته اووې. زۀ چه دَ اختر مونځ كولو نه واپس شم' نو تاسو دَ هغې نه مخكښې قرباني اوكړئ' چه ميلمه ته طعام حاصل شي. آخر هغوي دَ مونځ نه مخكښې قرباني اوكړه هغې نه پس حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ئې دَ دې ذكر اوكه. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. بيا قرباني اوكړه. هغه اووې' يا رسول اللّٰه' اوس خو ماسره يو حلوان (ګډورې) دې. اوس لا پئې څكي. ګويا هغه دَ غوښې دَ' دوه چيلو نه بهتر دې. ابن عون راوي دَ شعبي نه دا حديث نقل كولو سره دلته ايساريږي. او محمد ابن سيرين نه ئې هم دغسې حديث نقل كولو. او په دې ځائې به ايساريدلو. بيا به ئې وئيل.

الْحَدِيْثِ وَ يَقِفُ فِيْ هٰذَا الْمَكَانِ وَ يَقُوْلُ لَآ اَدْرِيْٓ اَبَلَغَتِ الرُّخْصَةُ غَيْرَهٗٓ اَمْ لَا رَوَاهُ اَيُّوْب عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ماته نۀ ده معلومه چه دا، اجازت (چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے ګډوري دَ قربانئ ور کړے وو) صرف براء دَ پاره وو، يا نورو دَ پاره هم. دا حديث ايوب سختياني هم دَ ابن سيرين نه هغه دَ انس نه روايت کړے دے. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه.

**۳۸۵:** حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا قَالَ شَهِدْتُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى يَوْمَ عِيْدٍ ثُمَّ خَطَبَ ثُمَّ قَالَ مَنْ ذَبَحَ فَلْيُبَدِّلْ مَكَانَهَا وَ مَنْ لَّمْ يَكُنْ ذَبَحَ فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللّٰهِ.

**۳۸۵:** مونږ ته سُليمان بن حرب بيان اوکه. چه مونږ ته شعبه. هغه دَ اسود بن قيس نه. هغه اووے. ما دَ جندب نه واوريدل. هغه وے. دَ قربانئ دَ اختر مونځ کښ زۀ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره موجود وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوّل مونځ اوکه. بيائے خُطبه واؤروله. هغے نه پس ئے اوفرمائيل. چاچه دَ مانځه نه مخکښ قرباني اوکړه. هغه دے دويمه قربانئ اوکړي. او چا چه نۀ وي کړے هغه دے اوس دَ اللّٰه په نوم قرباني اوکړي.

**بَاب ۱۷۸: اَلْيَمِيْنِ الْغَمُوْسِ.** وَ لَا تَتَّخِذُوْا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَ تَذُوْقُوا السُّوْٓءَ بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ دَخَلًا مَكْرًا وَّ خِيَانَةً.

**باب ۱۷۸:** غموس (دروغ) قِسم بيان. او اللّٰه تعالٰي (سورۀ نحل کښ) او فرمائيل. خپل قسمونه. خپلو کښ دَ فساد (مکر و فريب) ذريعه مه جوړوئے. ځکه چه اسلام باندے دَ خلقو قدم جمهٔ شي. بيا په ورستو اوخويږي. او د اللّٰه دَ لار نه دَ منع کولو بدل کښ تاسو دَ دوزخ اُور اوڅکئے. او سخته سزا درکړے شي. دے آيت کښ چه دَخَلًا لفظ دے، دَ هغے معنٰي دَ مکر او فريب دي.

**۳۸۶:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا فِرَاسٌ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ

**۳۸۶:** مونږ ته محمد بن مقاتل بيان اوکه وے. مونږ ته نضر بن شميل خبر راکه. وے. مونږ ته شعبه بن حجاج اووے. مونږ ته فراس بن يحيٰي بيان اوکه. وے. ما دَ شعبه نه واوريدل هغه دَ عبد اللّٰه بن عمر بن عاصؓ نه،

بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْكَبَائِرُ الْإِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَقَتْلُ النَّفْسِ وَالْيَمِيْنُ الْغَمُوْسُ.

هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. لوئے گناهونه دا دي (۱) اللّٰه سره شرک کول (۲) دَ مور پلار آزارول (۳) ناحق خون کول. (۴) غموس يعني دروغ قسم خوړل.

**باب ۱۷۹ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَقَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ عُرْضَةً لِّاَيْمَانِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْا وَتَتَّقُوْا وَتُصْلِحُوْا بَيْنَ النَّاسِ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ وَقَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَلَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا اِنَّ مَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ وَاَوْفُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ اِذَا عَاهَدْتُّمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْاَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيْدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللّٰهَ عَلَيْكُمْ كَفِيْلًا.**

**باب ۱۷۹ : دَ اللّٰه تعالٰي** (سوره اٰل عمران کښې) فرمائيل، کوم خلق چه دَ اللّٰه نوم آخستو سره لوظ کولو سره قسمونو خوړلو باندے لږ قيمت اَخلي. دَ هغوي آخرت کښې هيڅ حصه نشته اللّٰه تعالٰي به هغوي سره خبره پورے اونکړي نه به ورته دَ قيامت په ورځ دَ رحمت په نظر اوګوري نه به هغوي پاک کړي. او هغوي دَ پاره دردناک عذاب دے. او اللّٰه تعالٰي (سورهٔ بقره کښې) او فرمائيل. او دَ اللّٰه نوم دَخپلو قسمونو دَ پاره نشانه مه ګرځوئے. چه دَ نيکئ، تقويٰ او دَ خلقو تر مينځه دَ روغے راوستلو نه پرے ځان منع کړئے، او اللّٰه هر څهٔ آوري او په هر څهٔ پوهه دے. او سورهٔ نحل کښې ئے او فرمائيل، دَ اللّٰه عهد کولو سره دَ دُنيا لږ مال مه آخلئے اللّٰه سره چه څه (ثواب او اجر) دے هغه ستاسو دَ پاره بهتر دے، که تاسو پوهيږئے. او (دے سورت کښې) اوفرمائيل. او دَ اللّٰه نوم سره چه. کوم عهد اوکړئے، هغه پوره کړئے. او پاخهٔ قسمونه خوړلو نه پس بيا هغه مهٔ ماتوئے (ځنګه به ئے ماتوئے) تاسو دَ اللّٰه ضمانت په هغه خبره ورکړے دے.

**۳۸۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَآ اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ**

**۳۸۷:** مونږ ته موسٰي بن اسمٰعيل بيان اوکه. وے. مونږته ابو عوانه (وضاح يشکري) هغه دَ، اعمش نه هغه دَ ابو وائل نه، هغه دَ عبد اللّٰه بن مسعود نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، کوم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنِ صَبْرٍ يَّقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِىءٍ مُّسْلِمٍ لَقِيَ اللّٰهَ وَ هُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيْقَ ذٰلِكَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ فَدَخَلَ الْاَشْعَثُ بْنُ قَيْسٍ فَقَالَ مَا حَدَّثَكُمْ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فَقَالُوْا كَذَا وَ كَذَا فَقَالَ فِيَّ اُنْزِلَتْ كَانَتْ لِيْ بِئْرٌ فِيْ اَرْضِ ابْنِ عَمٍّ لِّيْ فَاَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَيِّنَتُكَ اَوْ يَمِيْنُهُ قُلْتُ اِذًا يَّحْلِفُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنِ صَبْرٍ وَّ هُوَ فِيْهَا فَاجِرٌ يَّقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِىءٍ مُّسْلِمٍ لَقِيَ اللّٰهَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ هُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ.

سړے چه مجبوریدو سره (يعني دَ حاکم دَ حکم نه چه دَ هغے تعميل کول ضروري وي) قسم او خوري. او قسم خوړلو سره دَ چا مُسلمان مال (يا حق) اووهي، هغه چه اللّٰه سره (آخرت کښې) يو ځائے شي، نو اللّٰه به پرے غصه وي. بيا اللّٰه تعالٰي دَ دے تصديق خپل کتاب کښې نازل که: ان الذين يشترون بعهد اللّٰه و ايمانهم ثمنًا قليلًا (چه سورهٔ اٰل عمرٰن کښې دے) عبد اللّٰه دا حديث بيان کړے وو، چه دے کښې اشعث بن قيس (دويم (صحابي) راغے. هغه دَ خلقو نه تپوس اوکه. ولے عبد اللّٰه بن مسعود، تاسو ته څه حديث بيان که. هغوي ورته اووے داسے داسے (حديث ئے بيان که) اشعث اووے، دا آيت خو څما مقدمه کښې نازل شوے دے. او شوه داسے چه څما دَ تره يو ځوئے وو. دَ هغه په مزکه څما يو کوهے وو. زهٔ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له راغلم (دَ خپل کوهي دعوي مِ اوکړه) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ګواه راوله. يا دَ مدعٰي عليه نه قسم واخله. ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، هغه خو، به قسم او خوري (دَ دروغو) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. څوک چه دروغ قسم په دے غرض او خوري چه دَ چا مُسلمان حق اووهي، دَ قيامت په ورځ چه اللّٰه سره يو ځائے شي. نو اللّٰه تعالٰي به پرے غصه وي.

## بَابٌ ١٨٠: اَلْيَمِيْنِ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ وَ فِي الْمَعْصِيَةِ وَ فِي الْغَضَبِ.

## باب ١٨٠: ملک حاصلولو نه مخکښے يا دَ ګناه خبرے دَ پاره يا دَ غصے حالت کښې دَ قسم خوړلو حکم.

۳۸۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ

۳۸۸: ماته محمد بن علاء بيان اوکه. وے

بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ اَرْسَلَنِيْ اَصْحَابِيْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْاَلُهُ الْحُمْلَانَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا اَحْمِلُكُمْ عَلٰى شَيْءٍ وَ وَافَقْتُهُ وَ هُوَ غَضْبَانُ فَلَمَّا اَتَيْتُهُ قَالَ انْطَلِقْ اِلٰى اَصْحَابِكَ فَقُلْ اِنَّ اللّٰهَ اَوْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُكُمْ.

مونږ ته ابو اسامه' هغه دَ برید بن عبد اللّٰه نه. هغه دَ ابي برده هغه دَ' ابو موسٰي اشعري: هغه اووے. څما قوم والو (اشعري خلقو)' سورلئ غوښتلو دَ پاره زهٔ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته اوليږلم. زهٔ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له ورغلم. اتفاقي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه وخت غصه کښ وو. وے فرمائيل قَسم په خدائے زهٔ تاسو ته هيڅ سورلي نه درکوم. دے آوريدو سره زهٔ واپس شوم. او خپل قوم مِ خبر کهٔ. لږ ساعت کښ بلالؓ زهٔ اوبللم. زهٔ دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' خپل قوم له ورشه. او ورته اووايه' چه اللّٰه تعالٰي يا دَ اللّٰه تعالٰي رسُول تاسوته سورلئ درکوي.

٣٨٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح وَ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدَ الْاَيْلِيُّ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدَ ابْنَ الْمُسَيِّبِ وَ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ وَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ حَدِيْثِ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ مَا قَالُوْا فَبَرَّاَهَا اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا كُلٌّ حَدَّثَنِيْ طَائِفَةً

٣٨٩: مونږ ته عبد العزيز بن عبد اللّٰه اويسي بيان اوکه. وے. مونږ ته ابراهيم بن سعد' هغه دَ صالح بن کيسان نه هغه دَ ابنِ شهاب نه. دويم سند. امامِ بخاريؒ اووے. او مونږ ته حجاج بن منهال بيان اوکه. مونږ ته عبد اللّٰه بن عمر نميري اووے. مونږ ته يونس بن يزيد ايلي اووے. ما دَ زهري نه واوريدل وے. ما دَ عروه بن زبير او سعيد بن مسيب او علقمه بن وقاص او عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه بن عتبه نه. هغه دَ بي بي عائشےؓ نه' چه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم بيَ بي وه' هر کله چه طوفان والو دَ هغے په نسبت طوفان اوچت کهٔ (تهمت ئے اولګولو) او اللّٰه تعالٰيَ دَ هغے پاکدامني نازله کړه. دا قصه هغے څلورو: هريو بيان کړه. بيا اللّٰه تعالٰي (دَ سُورة نور) دا آيت نازل که: ان الذين جآء وا بالافک آخير لس (١٠) آيتونو پورے او هر يو څما پاکدامني بيان

مِنَ الْحَدِيْثِ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْاِفْكِ الْعَشْرَ الْاٰيَاتِ كُلَّهَا فِيْ بَرَآءَتِيْ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرِ الصِّدِّيْقُ وَ كَانَ يُنْفِقُ عَلٰى مِسْطَحٍ لِقَرَابَتِهٖ مِنْهُ وَاللّٰهِ لَا اُنْفِقُ عَلٰى مِسْطَحٍ شَيْئًا اَبَدًا بَعْدَ الَّذِيْ قَالَ لِعَآئِشَةَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ لَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْا اُولِي الْقُرْبٰى الْاٰيَةَ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ بَلٰى وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاُحِبُّ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لِيْ فَرَجَعَ اِلٰى مِسْطَحٍ النَّفَقَةَ الَّتِيْ كَانَ يُنْفِقُ عَلَيْهِ وَ قَالَ وَاللّٰهِ لَآ اَنْزِعُهَا عَنْهُ اَبَدًا.

کړه. دے واقعے نه پس چه ابوبکر صديقؓ دَ رشته دارۍ په وجه مسطح بن اثاثه سره (چه دَ هغه خاله زاد يعني د ترور ځوئے وو) څۀ خير ښيګړه کوله، دا اووے، قسم په خدائے، اوس به زۀ مسطح سره هيڅکله څۀ ښيګړه نۀ کوم، هر کله چه هغه (دَ احسان بدله کښې) داسے اوکړل، چه بي بي عائشےؓ باندے (چه خپله دَ مسطح وريره ده. دا تهمت او لګولو) نو هغه وخت اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل که: ولا ياتل اولوا الفضل منکم والسعة ان يؤتوا اولي القربٰي اخير پورے. ابوبکر صديقؓ اووے وَلے نه. قسم په خدائے. زۀ خو دا غواړم، چه اللّٰه تعالٰي ما اوبښي. او مسطح سره چه ئے څۀ خير ښيګړه کوله. هغه ئے بيا جاري اوساتله. او وئيلے. قسم په خدائے زۀ به هيڅ کله دا ښيګړه بند نۀ کړم.

**۶۰۹۰:** حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنِ الْقٰسِمِ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَفَرٍ مِّنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ فَوَافَقْتُهُ وَ هُوَ غَضْبَانُ فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَحَلَفَ اَنْ لَّا يَحْمِلَنَا ثُمَّ قَالَ وَاللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَآ اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِّنْهَآ اِلَّا اَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ وَّ تَحَلَّلْتُهَا.

**۶۰۹۰:** مونږ ته ابو معمر (عبد اللّٰه بن عمر مقعد) بيان اوکه. وے. مونږ ته عبد الوارث بن سعيد اووے. مونږ ته ايوب سختياني هغه دَ قاسم بن عاصم نه. هغه دَ زهدم بن مضرب جرمي نه. هغه اووے. مونږ ابو موسٰي اشعري سره ناست وو، هغه اووے. زۀ نور څو اشعري سړو سره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته راغلم. اتفاقي هغه وخت حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غصه کښې وو، مونږ ترے سورلئ اوغوښتے نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم قسم اوخوړلو. چه زۀ تاسو ته سورلئ نۀ درکوم. بيائے او فرمائيل قسم په خدائے، که اللّٰه ته منظوره وي، زۀ چه په کومه خبره قسم اوخورم. او دَ هغے خلاف کول بهتر اوګنړم نو کوم کار چه بهتر وي، هغه کوم. او قسم په کفاره ورکولو سره مات کړم.

**باب ۱۸۱ : إِذَا قَالَ وَاللّٰهِ لَا أَتَكَلَّمُ الْيَوْمَ فَصَلَّى أَوْ قَرَأَ أَوْ سَبَّحَ أَوْ كَبَّرَ أَوْ حَمِدَ أَوْ هَلَّلَ فَهُوَ عَلَى نِيَّتِهِ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ الْكَلَامِ أَرْبَعٌ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ كَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى هِرَقْلَ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ وَقَالَ مُجَاهِدٌ كَلِمَةُ التَّقْوٰى لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ.**

**باب ۱۸۱ :** كه يو سړي داسے قسم اوخوړلو چه نن به زهٔ خبرے نهٔ كوم. بيائے مونځ اوكهٔ يا قرآن ئے اولوستهٔ يا تسبيح او تكبير او تهليل ئے۱ اوكهٔ، نو دَ هغه دَ نيت موافق به حكم وي. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل تهولو كلامونو كښې افضل څلور (۴) كلام دي. (۱) سبحان اللّٰه (۲) الحمد للّٰه (۳) لا اله الا اللّٰه (۴) اللّٰه اكبر (دا امام نسائي ابو هريرةؓ سره وصل كه) او ابو سفيان اووے، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هرقل (شاه روم) ته اوليكل، كتاب والو هغے خبرے ته راشئے. چه مونږ او تاسو كښې برابر منلے شي (يعني دَ توحيدِ الٰهي خبره ئے اوفرمائيله) او مجاهد اووے (دا عبد بن حميد وصل كه) تقويٰ يعني دَ پرهيزګارئ كلمه لا الٰه الّا اللّٰه ده.

۱. يعني اګرچه دا هم د كلام په حكم كښې راځي ليكن په خبرو اَترو كښې په دے څيزونو باندے د كلام اِطلاق نهٔ كيږي. دے د پاره كه چرے دَ قسم خوړلو وخت كښې ئے ددے شاملولو نيت هم كړے وي نو ددے كولو سره به هم قسم مات شي ګنے نه به وي.

**۱۳۹۱: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَمَّا حَضَرَتْ أَبَا طَالِبٍ الْوَفَاةُ جَاءَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قُلْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ كَلِمَةً أُحَاجُّ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللّٰهِ.**

**۱۳۹۱:** مونږ ته ابو اليمان بيان اوكه. وے مونږ شعيب خبر كړو. هغه دَ زهري نه. وے. زهٔ سعيد بن مسيب خبر كړم. هغه دَ خپل پلار (مسيب بن حزن) نه. هغه اووے، كوم وخت چه ابو طالب مرګ ته قريب شو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورغلو. ورته ئے اوفرمائيل (اے تره) تهٔ دَ لا اله الّا اللّٰه كلمه اووايه. بس زهٔ به دَ قيامت په ورځ اللّٰه سره ستا دَ پاره حُجّت كوم (يعني ستا دَ بخشش دَ پاره به سفارش كوم).

**۱۳۹۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا**

**۱۳۹۲:** مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوكه. وے. مونږ ته محمد بن فضيل. وے مونږ ته عماره بن قعقاع

عَمَارَةُ بُنُ الْقَعُقَاعِ عَنْ اَبِيُ زُرُعَةَ عَنْ اَبِيُ هُرَيُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ كَلِمَتَانِ خَفِيُفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيُلَتَانِ فِي الْمِيُزَانِ حَبِيُبَتَانِ اِلَى الرَّحُمَانِ سُبُحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمُدِهٖ سُبُحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيُمِ.

خبر راكه، هغه ذ ابو زرعه نه، هغه ذ ابو هريرة نه، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. دوه كلمې داسې دي چه په ژبه آسانې (مختصرې) دي. او ذ قيامت په ورځ ذ اعمالو تله (ميزان) كښ درنې دي. ذ اللّٰه ډيرې خوښې دي (او هغه دا دي) سبحان اللّٰه و بحمده. سبحان اللّٰه العظيم.

۳۹۳: حَدَّثَنَا مُوُسَى بُنُ اِسُمَاعِيُلَ حَدَّثَنَا عَبُدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعُمَشُ عَنُ شَقِيُقٍ عَنُ عَبُدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ كَلِمَةً وَّ قُلُتُ اُخُرٰى مَنُ مَّاتَ يَجُعَلُ لِلّٰهِ نِدًّا اُدُخِلَ النَّارَ وَ قُلُتُ اُخُرٰى مَنُ مَّاتَ لَا يَجُعَلُ لِلّٰهِ نِدًّا اُدُخِلَ الْجَنَّةَ.

۳۹۳: مونږ ته موسٰي بن اسماعيل بيان اوكه. وې. مونږ ته عبد الواحد بن زياد اروې وې. مونږ ته اعمش. هغه ذ شقيق بن سلمه نه هغه ذ عبد اللّٰه بن مسعود نه. هغه اووې، يو كلمه خو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيله، يعني څوک چه داسې حالت كښ مړ شي، چه اللّٰه سره څوک شريک جوړوي، هغه به دوزخ له ځي، او يوه كلمه زۀ ذ خپل طرفنه وايم. يعني څوک چه داسې حالت كښ مړ شي، چه اللّٰه سره شريک نه جوړوي (بلكه موحّدوي) نو هغه (يوه نه يوه ورځ ضرور) جنّت له ځي.

بَاب ۱۸۲: مَنُ حَلَفَ اَنُ لَّا يَدُخُلَ عَلٰى اَهُلِهٖ شَهُرًا وَّ كَانَ الشَّهُرُ تِسُعًا وَّ عِشُرِيُنَ.

باب ۱۸۲: كه يو سړې داسې قَسم اوخوري چه زۀ به خپلې ښځې له يو مياشت پورې نۀ ورځم، او اتفاق سره هغه مياشت ذ يو كم ديرش ورځو وي.

۳۹۴: حَدَّثَنَا عَبُدُ الْعَزِيُزُ بُنُ عَبُدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيُمَانُ بُنُ بِلَالٍ عَنُ حُمَيُدٍ عَنُ اَنَسٍ قَالَ اٰلٰى رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ مِنُ نِّسَائِهٖ وَ كَانَتِ انُفَكَّتُ رِجُلُهُ فَاَقَامَ فِيُ مَشُرُبَةٍ تِسُعًا وَّ عِشُرِيُنَ لَيُلَةً ثُمَّ

۳۹۴: مونږ ته عبد العزيز بن عبد اللّٰه بيان اوكه. وې. مونږ ته سليمان ابن بلال. هغه ذ حميدطويل نه هغه ذ انس نه. هغه اووې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو مياشت پورې خپلو بيبيانو سره ايلاء اوكړله. (چه نزديكت به ورسره نۀ كوم) او پښه كښ ئې بريخ هم راغلې وو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو كم ديرش (۲۹) ورځو پورې يوه بالاخانه كښ وو. هغې نه پس

نَـزَلَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اٰلَيْتَ شَهْرًا فَـقَـالَ اِنَّ الشَّهْـرَ يَـكُـوْنُ تِسْعًـا وَّ عِشْرِيْنَ.

راکوز شولو (بیبیانو له ورغے) هغوي اووے' یا رسول اللّٰه. تاسو خو د یو میاشت ایلاء کړے وه. وے فرمائیل هاں میاشتے د ۲۹ ورځو هم دي.

**بـــاب ١٨٣ : اِنْ حَـلَـفَ اَنْ لَا يَشْـــرَبَ نَبِيْـــذًا فَشَـرِبَ طِلَآءً اَوْ سَكَـرًا اَوْ عَـصِيْـرًا لَـمْ يَحْنَثْ فِـيْ قَـوْلِ بَـعْـضِ الـنَّـاسِ وَ لَيْسَـتْ هٰذِهٖ بِاَنْبِذَةٍ عِنْدَهٗ**

**باب ۱۸۳ :** که یو سړي داسے قسم اوخوړلو. چه نبیذ به نهٔ ځکم. بیا هغه طلاء یا سکر. یا عصبر اوځکل. نو دَ هغو قسم نهٔ ماتیږي. دَ بعضے خلقو (یعني حنفیه) دا قول دے. ځکه چه دا ځیزونه دَ هغوي په نزد نبیذ نهٔ دي.

٥٩٣: حَـدَّثَـنِـيْ عَـلِـيٌّ سَمِعَ عَبْـدَ الْـعَـزِيْـزِ بْـنِ اَبِـيْ حَـازِمٍ اَخْبَـرَنِـيْ اَبِـيْ عَـنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ اَبَـآ اُسَيْـدٍ صَـاحِـبَ الـنَّبِـيِّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ اَعْرَسَ فَـدَعَـا الـنَّبِـيَّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ بِـعَـرْسِـهٖ فَـكَـانَتِ الْعُرُوْسُ خَـادِمُهُـمْ فَـقَـالَ سَهْـلٌ لِلْقَوْمِ هَلْ تَـدْرُوْنَ مَـا سَقَتْهُ قَالَ اَنْقَعَتْ لَهٗ تَمْرًا فِيْ تَوْرٍ مِّنَ اللَّيْلِ حَتّٰى اَصْبَحَ عَلَيْهِ فَسَقَتْهُ اِيَّاهُ.

٥٩٣: ماته علي بن عبد اللّٰه بیان اوکهٔ هغه دَ عبد العزیز بن ابي حازم نه واؤریدل. هغه اووے' زهٔ خما پلار خبر کړم. هغه دَ سهل بن سعد نه' چه دَ ابو اُسید وادهٔ اوشو. هغه حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته دعوت ورکه. او دَ هغه ناوے (اُم اسید بنت وهب بن سلافه) خپله دَکور کار کولو. سهل خلقو ته اووے (چانه ئے چه دا حدیث بیان که) تاسو خبر ئے چه اُم اسید' حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم باندے څه ځکولے وو. هغوي اووے' څهٔ وو. دَ شپے ئے خورین لوښي کښ قجورے خوسنے کړے وے. سحر ته ئے دغه شربت په حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوځکولو.

٦٩٣: حَـدَّثَـنَـا مُحَـمَّـدُ بْـنُ مُـقَـاتِـلٍ اَخْبَـرَنَـا عَبْدُ اللّٰـهِ اَخْبَرَنَـا اِسْـمٰعِيْلُ بْنُ اَبِىْ خَالِدٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عِـكْـرِمَةَ عَـنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍؓ عَنْ سَـوْدَةَ زَوْجِ الـنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ قَـالَـتْ مَـاتَتْ لَنَا شَاةٌ فَدَبَغْنَا مَسْـكَهَا ثُـمَّ مَـازِلْـنَـا نَنْبِذُ فِيْهِ حَتّٰى

٦٩٣: مونږ تـه محـمـد بن مقاتل بیان اوکهٔ وے' مونږ عبد اللّٰه بن مالک خبر کړو. وے مونږ اسمٰعیل بن ابي خالد' هغه دَ شعبي نه. هغه دَ عکرمه نه. هغه دَ ابن عباسؓ نه. هغه دَ ام المؤمنین بي بي سوده بن زمعه نه. هغے اووے. خمونږ یوه چیلئے مړه شوے ده. مونږ دَ هغے دَ ځرمن د باغت اوکه (نچه موکړله) هغے کښ به نبیذ جوړؤل' تر دے

صَارَتْ شَنًّا.

چه هغه زړه شوه.

بَاب ۱۸۴ : اِذَا حَلَفَ اَنْ لَّا يَأْتَدِمَ فَأَكَلَ تَمْرًا بِخُبْزٍ وَّ مَا يَكُوْنُ مِنَ الْاُدْمِ.

باب ۱۸۴ : كه چا دا قسم او خوړلو، چه اينكولے به نه خورم. بيا قجورو سره ئے روټئ خوړله.

۳۹۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ مَا شَبِعَ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خُبْزِ بُرٍّ مَّا دُوْمٍ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ حَتّٰى لَحِقَ بِاللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ قَالَ لِعَائِشَةَ بِهٰذَا.

۳۹۷: مونږ ته محمد بن يُوسف ببكندي بيان اوكړے. مونږ ته سفيان بن عينيه. هغه ډ عبد الرحمٰن بن عابس نه هغه ډ خپل پلار (عابس بن ربيعه نخعي) نه هغه د بي بي عائشے رضي الله عنها نه. هغے اووے، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم آل هيڅ كله درے (۳) ورځے برابر د غنمو روټئ اينكولي سره په مړه خيټه نه ده خوړلے تر دے چه وفات شولو. او محمد بن كثير اووے. مونږ سفيان ثوري خبر كړو. هغه د عبدالرحمٰن نه هغه د خپل پلار نه هغه د عائشے رضي الله عنها نه روايت كړے دے.

۳۹۸: قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ لِاُمِّ سُلَيْمٍ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَعِيْفًا اَعْرِفُ فِيْهِ الْجُوْعَ فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ فَقَالَتْ نَعَمْ فَاَخْرَجَتْ اَقْرَاصًا مِّنْ شَعِيْرٍ ثُمَّ اَخَذَتْ خِمَارًا لَّهَا فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهٖ ثُمَّ اَرْسَلَتْنِيْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَهَبْتُ فَوَجَدْتُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى

۳۹۸: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوكه، هغه ډ امام مالك نه، هغه ډ اسحاق بن عبد اللّٰه بن ابي طلحه نه هغه ډ انس بن مالك رضي الله عنه نه واوريدل هغه اووے. ابو طلحه، اُم سليم (خپله بي بي) ته اووے. نن ما ډ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم آواز كښ كمزورتيا اوليده، ځما خيال دے. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوږے دے. تاسره خوراك ډ پاره څه شته (نو راكه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے اوليږم) اُمّ سليم اووے. هاں شته. بيا هغے ډ، وربشو څو روټئ راوښكلے. خپل پړوني كښ ئے هغه روټئ پټے كړے. او ماته ئے راكړے، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے اُورسوم. زهٔ چه اورسيدم، نو څه گورم، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم جومات كښ تشريف فرما دے. خلق ورسره ناست دي. زهٔ هلته رسيدو سره خاموش اودريدم. حضور صلّي اللّٰه عليه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَ مَعَهُ النَّاسُ فَقُمْتُ عَلَيْهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَكَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَنْ مَّعَهُ قُوْمُوْا فَانْطَلِقُوْا وَ انْطَلَقْتُ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ حَتّٰى جِئْتُ اَبَا طَلْحَةَ فَاَخْبَرْتُهُ فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ يَا اُمَّ سُلَيْمٍ قَدْ جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَيْسَ عِنْدَنَا مِنَ الطَّعَامِ مَا نُطْعِمُهُمْ فَقَالَتِ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَانْطَلَقَ اَبُوْ طَلْحَةَ حَتّٰى لَقِيَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ طَلْحَةَ حَتّٰى دَخَلَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمِّي يَا اُمَّ سُلَيْمٍ مَّا عِنْدَكِ فَاَتَتْ بِذَالِكَ الْخُبْزِ قَالَ فَاَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذٰلِكَ الْخُبْزِ فَفُتَّ وَ عَصَرَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ عُكَّةً لَهَا فَاَدَمَتْهُ ثُمَّ قَالَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّقُوْلَ ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَاَذِنَ لَهُمْ فَاَكَلُوْا حَتّٰى شَبِعُوْا ثُمَّ خَرَجُوْا ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَ، فَاَذِنَ لَهُمْ فَاَكَلَ الْقَوْمُ

وسلّم خپله مانه تپوس او كه' آيا ته ابو طلحهؓ رالېږلے ئے. ما عرض اوكه. جي هاں. دے آوريدو سره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپلو ملګرو ته و فرمائيل. څې چه خو. هغوي روان شو' زهٔ د هغوي نه مخكښې مخكښې (تادئ سره) لاړم' ابو طلحه م خبر كه (چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دومره سړو سره (راروان دے) هغه اُمّ سليمؓ ته اووے (اوس څه كول پكار دي) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خو راورسيدلو' او مونږ سره دومره طعام نشته' چه هغوي دَ پاره كافي شي. اُمّ سليم اووے (تاسره څه فكر دے) اللّٰه او رسُول (خپل مصلحت) ښهٔ پيژني. خير ابو طلحه دَ كور نه راووتلو. او لار كښې حضورؐ صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره يو ځائے شولو. بيا ابو طلحهؓ او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دواړه يو ځائے كور كښې داخل شو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اُمّ سليمؓ ته او فرمائيل. كوم طعام چه تاسره موجود دے' هغه حاضر كړه. اُمّ سليمؓ هغه روټئ راؤړلے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم حكم اوكه' نو روټئ ماتے كړے شوے. اُمّ سليمؓ پرے دَ پاسه دَ كُپئ نه غوړي نچوړي كړل. دا ګويا اينګولے وو. بيا كومه دُعا چه اللّٰه ته منظوره وه' په هغې طعام ئے اوكړله (وے فرمائيل بسم اللّٰه يا اللّٰه. دے كښې ډير بركت واچوے) او ابو طلحهؓ ته ئے او فرمائيل. دَ بهر نه لس (١٠) سړي راوغواړه. هغه لس سړوَ ته اِجازت اوكړو. هغوي راغلل او په مړه خيټه واپس لاړل. بيائے او فرمائيل اوس نور لس (١٠) سړي راوغواړه. ابو طلحهؓ هغوي ته هم اِجازت وركه. هغوي په مړه خيټه طعام اوخوړلو. غرض دغسے ټولو په مړه خيټه

كُلُّهُمْ وَ شَبِعُوْا وَالْقَوْمُ سَبْعُوْنَ او ثَمَانُوْنَ رَجُلًا.

خوراک اوکه. دا ټول شمیر کښې اویا (۷۰) یا اتیا (۸۰) کسان وو.

**باب ۱۸۵ : النِّيَّةِ فِي الْاَيْمَانِ.**

**باب ۱۸۵ : قَسم کښې به دَ نیت اعتبار وي.**

**۳۹۹:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيْدٍ يَقُوْلُ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَنَّهُ سَمِعَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ اللَّيْثِيَّ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ وَ اِنَّمَا لِاَمْرِئٍ مَّا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ فَهِجْرَتُهُ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ وَ مَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ اِلٰى دُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوِ امْرَاَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ.

**۳۹۹:** مونږ ته قتیبه بن سعید بیان اوکه. وې مونږ ته عبد الوهاب ثقفي اووې. ما دَ یحیٰي بن سعید انصاري نه واؤریدل هغه وئیل. ماته محمد بن ابراهیم تیمي خبر راکه، هغه دَ علقمه بن وقاص لیثي نه واؤریدل. هغه وئیل ما دَ عمر بن خطابؓ نه واوریدل. هغه وئیل. ما دَ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه واؤریدل فرمائیل ئې. اعمالو کښې دَ نیت اعتبار دے. او هر سړي ته به هغه حاصلیږي. څه چه دَ هغهٔ نیت وي. بیا څوک چه اللّٰه تعالٰي او رسول دَ پاره هجرت اوکړي. دَ هغې ثواب به ورته حاصلیږي او څوک چه دَ یوې ښځې وادهٔ کولو دَ پاره یا دَ دُنیا مال ګټلو دَ پاره هجرت اوکړي، نو دَ هغه هجرت به هغې څیزونو دَ پاره وي (هغه ته به دَ هجرت ثواب نهٔ حاصلیږي).

**باب ۱۸۶ : اِذَا اَهْدٰى مَالَهُ عَلٰى وَجْهِ النَّذْرِ وَالتَّوْبَةِ.**

**باب ۱۸۶ : که یو سړے نذر یا دَ توبې په طور خپل مال خیرات کړي.**

**۴۰۰:** حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا بْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَّ كَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيْهِ حِيْنَ عَمِيَ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ فِيْ حَدِيْثِهِ وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ

**۴۰۰:** مونږ ته احمد بن صالح بیان اوکه. وې. مونږ ته عبد اللّٰه بن وهب وې. ماته یونس خبر راکه (یعني یونس خبر کړم) هغه دَ ابن شهاب نه. وې. ماته عبد الرحمٰن بن عبد اللّٰه بن کعب بن مالکؓ (هغه دَ خپل پلار عبد اللّٰه بن کعب نه) وې عبد اللّٰه به کعب بوتلو، کوم وخت چه هغه ړوند شوے وو. هغه اووې ما دَ کعب (خپل پلار) نه واؤریدل. هغه دَ دے آیت (چه سُورهٔ توبه کښې دے) وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِينَ خلّفوا: قصه بیانوله. آخر

الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا فَقَالَ فِيْ اٰخِرِ حَدِيْثِهٖ اِنَّهُ مِنْ تَوْبَتِيْ اَنْ اَنْخَلِعَ مِنْ مَّالِيْ صَدَقَةً اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكَ.

كښې كعبؓ دا اووې: يا رسُول اللّٰه، زه دَ خپلې توبې قبليدو شكريه كښې دا كوم، چه خپل ټول مال دَ اللّٰه تعالٰي او دَ هغه دَ رسولؐ لار كښې خيرات كوم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ورته او فرمائيل. لږ مال خان دَ پاره هم اوساته. دا ستا حق كښې بهتره ده.

**باب ۱۸۷ : اِذَا حَرَّمَ طَعَامَهُ** وَ قَوْلُهُ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِيْ مَرْضَاةَ اَزْوَاجِكَ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ وَ قَوْلُهُ لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ.

**باب ۱۸۷ :** كه يو سړے څۀ طعام حرام كړي. او اللّٰه تعالٰي (سُورۀ تحريم كښې) او فرمائيل. اے پيغمبره، تۀ خان باندے هغه څيزونه ولې حراموے، چه اللّٰه ستا دَ پاره حلال كړي دي تۀ دَ خپلو بيبيانو خوشحالي غواړے. او اللّٰه تعالٰي بښونكے مهربانه دے. او په تاسو ئې دَ قسمونو ماتول لازم كړي دي. او (سورۀ مائده كښې) او فرمائيل اللّٰه چه كوم پاكيزه څيزونه ستاسو دَ پاره حلال كړي دي. هغه په خان مه حراموئ.

۱۰۴ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ زَعَمَ عَطَآءٌ اَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ يَّقُوْلُ سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَزْعُمُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَّ يَشْرَبُ عِنْدَهَا عَسَلًا فَتَوَاصَيْتُ اَنَا وَ حَفْصَةُ اَنَّ اَيَّتُنَا دَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْتَقُلْ اِنِّيْ اَجِدُ مِنْكَ رِيْحَ مَغَافِيْرَ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ فَدَخَلَ عَلٰى اِحْدٰهُمَا

۱۰۴ : مونږ ته حسن بن محمد بن صباح بيان اوكه. وے. مونږ ته حجاج بن محمد، هغه دَ ابن جريج نه. هغه اووے. عطاء بن ابي رباح اووے، ما دَ عبيد بن عمر نه واوريدل، هغه وئيل. ما دَ بي بي عائشےؓ نه واوريدل. هغے اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به اُمّ المومنين بي بي زينب بنتِ جحش سره ايساريدلو. هلته به ئې شهد څكل (په دے مونږ ته رشک اوشو) ما او بي بي حصفهؓ دواړو دَ اصلاح او كړه. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ دواړو كښې كومے يوے له راشي، نو هغه دے ورته داسے ووائي (چه يا رسُول اللّٰه) ستاسو دَ خُلې نه دَ ګوندو بوې راخي. شايد تاسو مغافير ريز قسم بدبوءدار ګوند) خوړلے وي. خير حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ كښې يوے له راغلو. نو هغے ورته هغسے

فَقَالَتْ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ لَا بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَ لَنْ اَعُوْدَ لَهُ فَنَزَلَتْ يَا اَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ اِلٰى قَوْلِهٖ اِنْ تَتُوْبَا اِلَى اللّٰهِ لِعَائِشَةَ وَ حَفْصَةَ وَ اِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا لِقَوْلِهٖ بَلْ شَرِبْتُ عَسَلًا وَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى عَنْ هِشَامٍ وَّ لَنْ اَعُوْدَ لَهُ وَ قَدْ حَلَفْتُ فَلَا تُخْبِرِيْ بِذٰلِكَ اَحَدًا.

اووے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. نه (ما كوند نه دي خوړلي) بلكه زينب بنت جحش كره م شهد (شات) څكلے دي. اوس به آئنده شهد (شات) نه څكم. نو هغه وخت دا آيت نازل شو: يا ايها النبي لم تحرم ما احل الله لك: دے آيت پورے: ان تتوبا الي الله. دا آيت بي بي عائشےؓ او حفصےؓ طرفته خطاب دے. دا چه پيغمبر خپلے يو بي بي ته او فرمائيل د راز خبره ئے اوكړه. دے نه دا مراد دے چه ما شات څكلے وو (بيا به ئے نه څكم) ابراهيم بن موسي هم دا حديث د هشام بن يوسف نه روايت كه (هغه د ابن جريج نه) دے كښ دا دي، اوس به زهٔ شات نه څكم. د دے قسم م خوړلے دے. نو د دے ذكر چاته مه كوه.

## باب ۱۸۸: اَلْوَفَاءِ بِالنَّذْرِ وَ قَوْلِهٖ يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ.

باب ۱۸۸: نذر او منت (منبنته) پوره كول واجب دي. الله تعالي (سورهٔ دهر كښ) او فرمائيل.

۴۰۲: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الْحَارِثِ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَؓ يَقُوْلُ اَوَلَمْ تُنْهَوْا عَنِ النَّذْرِ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ النَّذْرَ لَا يُقَدِّمُ شَيْئًا وَّ لَا يُؤَخِّرُ وَ اِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِالنَّذْرِ مِنَ الْبَخِيْلِ.

۴۰۲: مونږ ته يحيي بن صالح بيان اوكه. وے مونږ ته فليح بن سُليمان. وے. مونږ ته سعيد بن حارث. هغه د عبد الله بن عمرؓ نه واوريدل. هغه وئيل، آيا تاسو ته د نذر كولو نه ممانعت نهٔ دے شوے. بيائے اووے. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. نذر (يعني منبنته كولو) سره، هيڅ خبره، چه تقدير كښ ليكلے شوے وي، مخكښ ورستو كيدے نه شي. بلكه د نذر په وجه دومره كيږي، چه د بخيل د جيب نه مال اوبنكلے شي.

۴۰۳: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۴۰۳: مونږ ته خلاد بن يحيي بيان اوكه. مونږ ته سُفيان ثوري. هغه د منصور بن معسر نه هغه اووے. زهٔ عبد الله بن مرّه خبر كړم. هغه د عبد الله بن

مُـرَّةَ عَـنْ عَـبْـدِ اللّٰـهِ بْـنِ عُـمَـرَ نَهَـى الـنَّـبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ عَـنِ الـنَّـذْرِ وَ قَـالَ اِنَّـهُ لَا يَـرُدُّ شَيْـئًـا وَّ لٰـكِـنَّـهُ يُسْتَخْـرَجُ بِـهٖ مِـنَ الْبَخِيْلِ.

مرَه خبر كرِم، هغه د عبد اللّه بن عمرؓ نه. هغه اووې حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نذر منلو نه منع فرمائيلې ده. او وې چه دې سره هيڅ نۀ كيږي. كوم آفت چه تقدير كښ دې هغه نه لرې كيږي. صرف دومره كيږي چه د دې په وجه د بخيل (شوم) د جيب نه څه روپئ اوښكلې شي.

۴۰۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَأْتِي ابْنَ اٰدَمَ النَّذْرُ بِشَيْءٍ لَّمْ يَكُنْ قُدِّرَ لَهٗ وَ لٰـكِنْ يُّلْقِيْهِ النَّذْرُ اِلَى الْقَدْرِ قَدْ قُدِرَ لَهٗ فَيَسْتَخْرِجُ اللّٰهُ بِهٖ مِنَ الْبَخِيْلِ فَيُؤْتِيْ عَلَيْهِ مَا لَمْ يَكُنْ يُؤْتِيْ عَلَيْهِ مِنْ قَبْلُ.

۴۰۴: مونږ ته ابو اليمان بيان اوكه. وې. مونږ شعيب خبر كړو. وې. مونږ ته ابو الزناد هغه ذ اعرج نه. هغه ذ ابو هريرهؓ نه. هغه اووې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل نذر منلو سره چاته څه فائده نۀ رسي كومه چه ذ هغه تقدير كښ نشته، بلكه نذر سړے دے امر طرفته بوځي. كوم چه ذ هغه تقدير كښ دے. او اللّٰه تعالٰي ذ نذر په وجه ذ بخيل ذ جيب نه څۀ مال اوكاږي. اللّه تعالي فرمائي، سړے نذر كولو سره ماته هغه راكوي، چه ذ نذر نه مخكښ نۀ راكوي.

## باب ۱۸۹: اِثْمِ مَنْ لَّا يَفِيْ بِالنَّذْرِ.

باب ۱۸۹: ذ نذر نه پوره كولو ګناه.

۴۰۵: حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ عَـنْ يَـحْيٰـى عَـنْ شُـعْبَةَ قَـالَ حَـدَّثَـنِـيْ اَبُوْ جَمْـرَةَ حَـدَّثَـنَـا زَهْـدَمُ بْـنُ مُـضَـرِّبٍ قَـالَ سَـمِـعْـتُ عِـمْـرَانَ بْـنَ حُـصَيْـنٍؓ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ قَـالَ خَيْـرُكُـمْ قَـرْنِـيْ ثُـمَّ الَّـذِيْـنَ يَـلُـوْنَهُـمْ ثُـمَّ الَّـذِيْـنَ يَـلُـوْنَهُـمْ قَـالَ

۴۰۵: مونږ ته مسدّد بيان اوكه، هغه ذ يحيٰي قطان نه. هغه ذ شعبه بن حجاج نه. وې. ماته ابو حمزه. وې. مونږ ته زهدم بن مضرب. وې. ما ذ عمران بن حصينؓ نه. هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كولو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، بهترِ خلق زمانه كښ دي (يعني صحابهؓ) بيا چه ذ هغوي نه پس دي (يعني تابعين) بيا چه د هغوي نه پس دي (يعني تبع تابعين). عمران وائي. ماته ياد نۀ دي. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ خپلې زمانې نه پس ثم الّذين يلونهم

عِمْرَانُ لَا اَدْرِیْ ذَكَرَ اثْنَتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا بَعْدَ قَرْنِهٖ ثُمَّ يَجِيْءُ قَوْمٌ يَنْذُرُوْنَ وَلَا يَفُوْنَ وَ يَخُوْنُوْنَ وَلَا يُؤْتَمَنُوْنَ وَ يَشْهَدُوْنَ وَ لَا يُسْتَشْهَدُوْنَ وَ يَظْهَرُ فِيْهِمُ السِّمَنُ.

دوه خله او فرمائيل' يا درې خله. بيا به داسې خلق پيدا شي. چه نذرونه به مني. بيا پوره كوي به ئې نه. او خيانت به كوي. امانت دار به نۀ وي. او ګواهي غوښتلو بغير به ګواهي كوي او هغوي كښې به غټ والے (موټاپا) زيات شي (يعني حرام مال خوړلو خوړلو سره به بنه سنډاګان شي).

بَابٌ ۱۹۰ : النَّذْرِ فِى الطَّاعَةِ. وَ مَا اَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَةٍ اَوْ نَذَرْتُمْ مِنْ نَذْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهٗ وَ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ.

باب ۱۹۰ : د هغې نذر پوره كول لازم دي' چه د عبادت او اطاعت كار د پاره او كړې شي' نه چه ګناه د پاره. او اللّٰه تعالي (سورهٔ بقره كښې) او فرمائيل. څه چه تاسو د اللّٰه لار كښې خرچ كړئې (يا د شيطان لار كښې) اللّٰه تعالي د هغې نه خبر دے' دغسې كوم نذر چه تاسو اُومنئې. آخر آيت پورې.

۶۴۰۶ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَآئِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ نَذَرَ اَنْ يُّطِيْعَ اللّٰهَ فَلْيُطِعْهُ وَمَنْ نَذَرَ اَنْ يَّعْصِيَهٗ فَلَا يَعْصِهٖ.

۶۴۰۶ : مونږ ته ابو نعيم بيان او كه. وے. مونږ ته امام مالكؒ. هغه د طلحه بن عبد الملك نه. هغه د قاسم بن محمد نه. هغه د بي بي عائشېؓ نه هغې اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل څوك چه د اللّٰه د اطاعت نذر اوكړي' هغه دِ پوره كړي او كوم سړے چه د ګناه د كار نذر اوكړي. هغه دِ د ګناه كار نه كوي (داسې نذر دے نه پوري كوي).

بَابٌ ۱۹۱ : اِذَا نَذَرَ اَوْ حَلَفَ اَنْ لَّا يُكَلِّمَ اِنْسَانًا فِى الْجَاهِلِيَّةِ ثُمَّ اَسْلَمَ.

باب ۱۹۱ : يو سړي د جاهليت زمانه كښې (چه هغه لا كافر وو) نذر اومنلو يا قسم ئې اوخوړلو. چه فلاني سړي سره به خبرې نه كوم بيا هغه مسلمان شو نو څه حكم دے.

۶۴۰۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَّافِعٍ

۶۴۰۷ : مونږ ته محمد بن مقاتل بيان او كه. وے. مونږ ته عبد اللّٰه بن مبارك خبر راكه. وے. مونږ ته عبد اللّٰه عمري. هغه د نافع نه هغه د عبد اللّٰه بن عمرؓ نه.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَنْ اَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ قَالَ اَوْفِ بِنَذْرِكَ.

حضرت عمرؓ عرض اوکه: یا رسول الله. ما د جاهلیت زمانه کښې دا نذر منلے وو. چه یوه شپه به مسجد حرام کښې اعتکاف کوم. اوس تاسو څه فرمائې. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل: خپل نذر پوره کړه.

**باب ۱۹۲ : مَنْ مَّاتَ وَ عَلَيْهِ نَذْرُهٗ وَ اَمَرَ ابْنُ عُمَرَ امْرَاَةً جَعَلَتْ اُمُّهَا عَلٰى نَفْسِهَا صَلٰوةً بِقُبَآءٍ فَقَالَ صَلِّيْ عَنْهَا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَحْوَهٗ.**

باب ۱۹۲ : که یو سړے مړ شي او په هغه څه نذر وي. نو د هغه وارث دے د هغه د طرفنه پوره کړي. او عبد الله بن عمرؓ یوې ښځې ته حکم اوکړ چه د هغې مور مسجد قبا کښې د مونځ کولو نذر منلے وو. چه ته د هغې د طرفنه مونځ اوکه. او ابن عباسؓ هم داسې وئيلي دي.

۴۰۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَبَّاسٍؓ اَخْبَرَهٗ اَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ الْاَنْصَارِيَّ اسْتَفْتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَذْرٍ كَانَ عَلٰى اُمِّهٖ فَتُوُفِّيَتْ قَبْلَ اَنْ تَقْضِيَهٗ فَاَفْتَاهُ اَنْ يَّقْضِيَهٗ عَنْهَا فَكَانَتْ سُنَّةً بَعْدُ.

۴۰۸: مونږ ته ابو اليمان بيان اوکړ. وے. مونږ ته شعيب خبر راکړه. هغه د زهري نه. وے. زۀ عبيد الله بن عبد الله خبر کړم هغه د عبد الله بن عباسؓ نه: چه سعد بن عباده انصاريؓ د حضور صلي الله عليه وسلم نه دا مسئله اوپوښتله چه د هغه په مور يو نذر وو، هغه د هغې د ادا کولو نه مخکښې مړه شوه. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل، ته ئې د هغې د طرفنه ادا که. بيا دا طريقه قائمه شوه.

۴۰۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهٗ اِنَّ اُخْتِيْ نَذَرَتْ اَنْ تَحُجَّ وَ اِنَّهَا مَاتَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ

۴۰۹: مونږ ته آدم بن اياس بيان اوکړه. وے. مونږ ته شعبه. هغه د ابو بشر نه. وے. ما د سعيد بن جبير نه واوريدل. هغه د ابن عباسؓ نه روايت کولو. يو سړے (عقبه بن عامر جهني) حضور صلي الله عليه وسلم له راغے. عرض ئے اوکه. خما خور (نوم نامعلومه) د حج کولو نذر منلے وو. ليکن هغه (د نذر ادا نه مخکښې) مړه شوه. حضور صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل. که په هغې څه قرضه وے، نو تا به ادا کوله، که نه. هغې

كَانَ عَلَيُهَا دَيُنٌ اَكُنُتُ قَاضِيَهٗ قَالَ نَعَمُ قَالَ فَاقُضِ اللّٰهَ فَهُوَ اَحَقُّ بِالْقَضَآءِ.

سرې اووے، جي هاں. ادا کوله به م. نو حضورؐ ورته او فرمائيل. بيا د الله قرض هم ادا که. دَ هغې ادا کول خو زيات مقدم دي.

**باب ١٩٣ : النَّذُرِ فِيُمَا لَا يَمُلِكُ وَ فِيُ مَعُصِيَتِهٖ.**

**باب ١٩٣ :** که يو سړے داسے نذر اوکړي چه په هغې دَ هغه ملک نۀ وي، يا دَ ګناه.

**۴١٠ :** حَدَّثَنَا اَبُوُ عَاصِمٍ عَنُ مَالِكٍ عَنُ طَلُحَةَ بُنَ عَبُدِ الْمَلِكِ عَنِ الْقَاسِمِ عَنُ عَائِشَةَؓ قَالَتُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ مَنُ نَذَرَ اَنُ يُطِيُعَ اللّٰهَ فَلُيُطِعُهُ وَ مَنُ نَذَرَ اَنُ يَعُصِيَهٗ فَلَا يَعُصِهٖ.

**۴١٠ :** مونږ ته ابو عاصم نبيل بيان اوکه هغه د امام مالک نه. هغه دَ طلحه بن عبد الملک نه. هغه د قاسم بن محمد نه. هغه د بي بي عائشےؓ نه. هغې اووے حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل. کوم سړے چه د الله دَ اطاعت (نيک کار) نذر اوکړي. هغه دے په ځائے راؤړي. او کوم سړے چه د الله تعالي د نافرمانئ (ګناه) نذر اومني. نو هيڅکله دے هغه کار نۀ کوي.

**۴١١ :** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحُيٰى عَنُ حُمَيُدٍ عَنُ ثَابِتٍ عَنُ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنُ تَعُذِيُبِ هٰذَا نَفُسَهٗ وَ رَوَاهُ يَمُشِيُ بَيُنَ ابُنَيُهِ وَ قَالَ الْفَزَارِيُّ عَنُ حُمَيُدٍ حَدَّثَنِيُ ثَابِتٌ عَنُ اَنَسٍؓ.

**۴١١ :** مونږ ته مسدّد بيان اوکه. وے. مونږ ته يحيي بن سعيد قطان، هغه دَ حميد نه. هغه دَ ثابت نه. هغه د انسؓ نه. هغه د حضور صلّي الله عليه وسلّم نه. حضور صلّي الله عليه وسلّم يو بوډا (ابو اسرائيل) ته اوفرمائيل الله ته د هغه پروا نشته. چه هغه دے ځان ته تکليف ورکړي. دا بوډا د خپل دوه (٢) ځامنو په تکيه (پياده حج له) روان وو. او مروان بن معاويه فزاري دا حديث د حميد نه روايت که. هغې کښې داسے دي. ماته ثابت بيان اوکه. هغه دَ انسؓ نه.

**۴١٢ :** حَدَّثَنَا اَبُوُ عَاصِمٍ عَنِ ابُنِ جُرَيُجٍ عَنُ سُلَيُمَانَ الْاَحُوَلِ عَنُ طَاوُسٍ عَنِ ابُنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَطُوُفُ بِالْكَعُبَةِ بِزِمَامٍ اَوُ غَيُرِهٖ

**۴١٢ :** مونږ ته ابو عاصم نبيل بيان اوکه. هغه د ابن جريج نه. هغه دَ سليمان احول نه. هغه دَ طاؤس نه. هغه د ابن عباسؓ نه. چه حضور صلّي الله عليه وسلّم يو سړے اوليدلو، چه دَ کعبے شريفے طواف ئے کولو، چه رسئ يا بل څيز سره تړلے وو. حضور صلّي الله عليه

فَقَطَعَهُ.

۶۴۱۳: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سُلَيْمَانُ الْاَحْوَلُ اَنَّ طَاوُسًا اَخْبَرَهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ وَ هُوَ يَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ بِاِنْسَانٍ يَقُوْدُ اِنْسَانًا بِخَزَامَةٍ فِيْ اَنْفِهٖ فَقَطَعَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ ثُمَّ اَمَرَهُ اَنْ يَقُوْدَهُ بِيَدِهٖ.

۶۴۱۴: حَدَّثَنَا مُوْسٰى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ اِذَا هُوَ بِرَجُلٍ قَائِمٍ فَسَاَلَ عَنْهُ فَقَالُوْا اَبُوْ اِسْرَائِيْلَ نَذَرَ اَنْ يَقُوْمَ وَ لَا يَقْعُدَ وَ لَا يَسْتَظِلَّ وَ لَا يَتَكَلَّمَ وَ يَصُوْمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْهُ فَلْيَتَكَلَّمْ وَلْيَسْتَظِلَّ وَلْيَقْعُدْ وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

وسلّم هغه رسئ پريکړله.

۶۴۱۳: مونږته ابراهيم بن موسٰي بيان اوکه. وے. مونږ ته هشام بن يوسف خبر راکه. هغه د ابن جريج نه. وے ماته سُليمان احول بيان اوکه. هغه د طاؤس نه. هغه د ابن عباسؓ نه چه حضور صلّي اللّه عليه وسلّم يو سړے په طواف کولو اوليدلو، چه هغه بل سړے د هغه پوزه کښې رسئ اچولو سره طواف کوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم هغه رسئ پريکړله. ورته ئے او فرمائيل. لاس نيولے پرے طواف اوکه.

۶۴۱۴: مونږته موسي بن اسماعيل بيان اوکه. وے. مونږ ته وهب بن خالد. وے مونږ ته ايوب سختياني. هغه د عکرمه نه هغه دَ ابن عبّاسؓ نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم خطبه لوستله. دے کښې يو سړے ئے اوليدلو، چه نمر (ډوپ) کښې ولاړ دے حضور صلّي اللّه عليه وسلّم د هغه د حال تپوس اوکه. خلقو ورته عرض اوکه چه دا سړے ابو اسرائيل دے (قيشر يا ميسر يا قيصر)، دهٔ دا نذر منلے دے، چه ولاړ به وي، کيني به نه. نه به سوري ته ځي. نه به خبرے کوي (نه به څه خوري څکي، بلکه) روژه به ئے وي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل، دهٔ ته اووائے چه خبرے کوي. سوري کښې دِ کيني او خپله روژه پوره کړي. عبد الوهاب شقفي دا حديث داسے روايت که، مونږته ايوب بيان اوکه. هغه دَ عکرمه نه. هغه د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نه (مرسلاً دَ ابن عبّاسؓ نه ذکر ئے اونهٔ که).

بـــاب ۱۹۴ : مَــنْ نَــذَرَ اَنْ يَـصُـوْمَ اَيَّامًا فَـوَافَـقَ الـنَّـحْـرَ اَوِ الْفِطْرَ.

۴۱۵ : حَـدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ اَبِيْ بَـكْـرِ الْـمُـقَـدَّمِـيُّ حَـدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْـمَـانَ حَـدَّثَـنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ حَـدَّثَنَا حَكِيْمُ بْنُ اَبِيْ حُرَّةَ الْاَسْلَمِيُّ اَنَّـهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ سُئِلَ عَنْ رَجُـلٍ نَّـذَرَ اَنْ لَّا يَـأْتِيَ عَلَيْهِ يَوْمٌ اِلَّا صَـامَ فَـوَافَـقَ يَـوْمَ اَضْحٰى اَوْ فِطْرٍ فَـقَـالَ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْـوَةٌ حَـسَـنَـةٌ لَـمْ يَكُنْ يَصُوْمُ يَوْمَ الْاَضْحٰى وَالْفِطْرِ وَ لَا يَرٰى صِيَامَهُمَا.

۴۱۶ : حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰـهِ بْـنُ مَسْـلَـمَةَ حَـدَّثَـنَـا يَـزِيْـدُ بْـنُ زُرَيْـعٍ عَـنْ يُـوْنُـسَ عَـنْ زِيَـادِ بْـنِ جُبَيْـرٍ قَـالَ كُـنْـتُ مَـعَ ابْـنِ عُـمَـرَ فَسَـاَلَـهُ رَجُـلٌ فَـقَـالَ نَـذَرْتُ اَنْ اَصُـوْمَ كُـلَّ يَـوْمٍ ثَلَاثَـآءَ اَوْ اَرْبِـعَـآءَ مَــا عِشْـتُ فَـوَافَـقْـتُ هٰـذَا الْـيَـوْمَ يَـوْمَ الـنَّـحْـرِ فَـقَـالَ اَمَـرَ الـلّٰـهُ بِـوَفَـآءِ الـنَّـذْرِ وَ نُهِيْـنَـا اَنْ نَّصُوْمَ يَـوْمَ الـنَّـحْـرِ فَاَعَادَ عَلَيْهِ فَقَالَ مِثْلَهٗ لَا يَزِيْدُ عَلَيْهِ.

بـاب ۱۹۵ : هَـلْ يَـدْخُـلُ فِـــي الْاَيْـمَـــانِ وَالـنُّـذُوْرِ الْاَرْضُ

باب ۱۹۴ : كـه يو سړي څو مقررو ورځو كښې د روژې د نـذر نيت اوكـه. اتـفـاق سره هغه ورځو كښې وړوكې يا لوئې اختر شو.

۴۱۵ : مـونـږ تـه مـحـمد بن ابي بكر مقدمي بيان اوكـه. وې. مـونـږ تـه فـضـيـل بـن سليمان وې. مونږ ته مـوسى بن عقبه' وې. مونږ ته حكيم بن ابي حره اسلمي. هـغـه د عـبـد الـلّٰـه بـن عمرؓ نه واؤريدل. هغه نه چا تپوس اوكـه. كـه يـو سـړي داسـې نـذر اُومـنلو چه فلانې ورځ راشي' نـو زهٔ بـه روژه كوم. اتفاقاً په هغه ورځ وړوكې يا لـوئې اخـتـر شـولـو. نو هغه اووې. تاسو له د رسُول اللّٰه صـلَّى اللّٰه عليه وسلّم پيروي پكار ده حضور صلّي اللّٰه عـلـيـه وسلّم به وړوكي او لوئې اختر كښې روژه نهٔ نيوله. اونه دې ورځو كښې روژه نيول ئې درست ګنړل.

۴۱۶ : مـونـږ تـه عبـد الـلّٰه بن مسلمه قعنبي بيان اوكـه. وې. مـونـږ ته يزيد بن زريع هغه ذ يونـس نه' هغه ذ زيـاد بـن جبيـر نـه. هـغـه اووې' زهٔ عبد اللّٰه بن عمرؓ سره ووم' دې كـښې يـو سـړي (نـوم نامعلومه) ذ هغه نه تپوس اوكـه مـا دا نـذر مـنـلـې وو' چـه پـه هر نهې (منګل) يا چارشنبې (بدھ) بـه روژه نيسم. اتفاقًا په هغه ورځ لوئې اختـر شـو. عبـد الـلّٰـه اووې. اللّٰه تعالي د نذر پوره كولو حكم كړې دې. او د لوئې اختر په ورځ موبږ ته ذ روژې نيـولـو مـمـانـعـت شـوې دې. هغه بيا تپوس اوكه' صافه مسئله اُوښائې. دې ورځو كښې روژه اونيسم يا نه نيسم. عبد اللّٰه ورته بيا هغسې اووې.

باب ۱۹۵ : كـه چا د مال نذر اومنلو' نو آيا مال كـښې مـزكـه اوچيلئ او نور اسباب (اسونه وسله. كپړې

وَالْغَنَمُ وَالزُّرُوْعُ وَالْاَمْتِعَةُ. وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ عُمَرُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصَبْتُ اَرْضًا لَمْ اُصِبْ مَالًا قَطُّ اَنْفَسَ مِنْهُ قَالَ اِنْ شِئْتَ حَبَسْتَ اَصْلَهَا وَ تَصَدَّقْتَ بِهَا وَ قَالَ اَبُو طَلْحَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ اَمْوَالِيْ اِلَيَّ بَيْرُحَاءَ لِحَائِطٍ لَهُ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ.

وغيره) هم داخل دي. او عبد اللّٰه بن عمرؓ اوويے. حضرت عمرؓ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه ما يوه مزکه حاصله کړے ده. ذ هغے نه ښه مال ماته نۀ دے حاصل شوے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل. که تۀ غواړے نو اصل مال خان سره اوساته' او ذ هغے پيداوار خيرات کړئے او ابو طلحهؓ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض کړے وو. خما ټولو مالونو کښې بيرحا خما زيات خوښ دے. بيرحا د مسجد نبويّ مخے ته يو باغ وو (دا هم کتاب الوصايا کښې ذکر شوے دے).

۶۱۶۷: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مٰلِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ الدِّيْلِيِّ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ مَوْلَى بْنِ مُطِيْعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ فَلَمْ تَغْنَمْ ذَهَبًا وَّلَا فِضَّةً اِلَّا الْاَمْوَالَ وَالثِّيَابَ وَالْمَتَاعَ فَاَهْدٰى رَجُلٌ مِنْ بَنِي الضُّبَيْبِ يُقَالُ لَهُ رِفَاعَةُ ابْنُ زَيْدٍ لِّرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا يُقَالُ لَهُ مِدْعَمٌ فَوَجَّهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى وَادِ الْقُرٰى حَتّٰى اِذَا كَانَ بِوَادِ الْقُرٰى بَيْنَمَا مِدْعَمٌ يَحُطُّ رَحْلًا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَهْمٌ عَائِرٌ فَقَتَلَهُ فَقَالَ النَّاسُ هَنِيْئًا لَهُ الْجَنَّةَ فَقَالَ رَسُوْلُ

۶۱۶۷: مونږ ته اسماعيل بن ادريس بيان اوکه. وے. ماته امام مالک. هغه ذ ثور بن زيد ديلي نه. هغه ذ ابو الغيث نه' چه ذ ابن مطيع غلام وو' هغه ذ ابو هريرهؓ نه. هغه اووے. مونږ جنګ خيبر کښې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره اووتلو. هلته مونږ ته لوټ کښې سرۀ' سپين زر' نه' البته مالونه راته حاصل شو (اوښان چيلے وغيره) او کپړے او نور سامان. ذ بني ضبيب يو سړي رفاعه بن زيد' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته يو غلام تحفه کښې ورکه' چه ذ هغه نوم مدعم وو. هغے نه پس حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم وادي القرٰي طرفته روان شولو' مدعم' ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم کجاوه سمؤله دے کښې يو غشے راغے' هغے باندِ اولګيد. او مدعم مړ شولو. خلقو اووے' دے ته دے جنّت مُبارک وي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل' هيڅکله نه. په هغه ذات م دے قَسَم وي' چه هغه

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَّا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّ الشَّمْلَةَ الَّتِيْ اَخَذَهَا يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ الْمَغَانِمِ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا فَلَمَّا سَمِعَ ذٰلِكَ النَّاسُ جَآءَ رَجُلٌ بِشِرَاكٍ اَوْ شِرَاكَيْنِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ شِرَاكٌ مِنْ نَّارٍ اَوْ شِرَاكَانِ مِنْ نَّارٍ.

قبضه كښې خما ساه ده، دۀ دَ خيبر په ورځ دَ لوټ دِ مال نه يو كمبل پټ كړے وو. هغه اُور جوړيږ سره پرے بليږي خلقو چه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا ارشاد واوريدلو نو يو سړي (ويريدو سره) دَ پيزار يو تسمه يا دوه ئے راوړلے (شايد هغه دَ لوټ مال نه اخستے وے) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دا دَ اُور تسمه ده: يا دوه تسمے دَ اوُر دي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

دَ اللّٰه نوم سره شروع كوم چه ډير مهربانه او رحم كونكے دے

## باب ۱۹۶ : كَفَّارَاتِ الْاَيْمَانِ.

## باب ۱۹۶ : دَ قسم دَ كفارو بيان كښې.

وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَكَفَّارَتُهٗ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِيْنَ وَ مَا اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ نَزَلَتْ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ وَّ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ وَّ عَطَآءٍ وَّعِكْرِمَةَ مَا كَانَ فِي الْقُرْاٰنِ اَوْ اَوْ فَصَاحِبُهٗ بِالْخِيَارِ وَ قَدْ خَيَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَعْبًا فِي الْفِدْيَةِ.

او اللّٰه تعالٰي (سُورۀ مائده كښې) او فرمائيل. بيا دَ قسم كفاره لس مسكينانو باندے طعام خورول دي. او كوم وخت چه دا آيت (سُورۀ بقره) نازل شو: ففدية من صيام او صدقه او نسک. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم، كعب بن حجره ته خه حكم وركه (دا حديث وړاندے راځي) او ابن عبّاسؓ. عطاء بن ابي رباحؒ. او عكرمهؒ نه منقول دي. چرته چه قرآن كښې اَوْ اَوْ راغلے دي، نو هلته سړي ته اختيار دے كومه كفاره چه غواړي، ادا كړي. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم، كعب بن عجره ته اختيار وركړے وو (كومه فديه چه غواړي ور د كړي).

۴۱۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ اَتَيْتُهٗ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۱۸: مونږ ته احمد بن يونس بيان اوكه. وے: مونږ ته ابو شهاب عبد ربه بن نافع هغه دَ عبد اللّٰه بن عون نه، هغه دَ مجاهد نه، هغه دَ عبد الرحمٰن بن ليلٰي نه. هغه دَ كعب بن عجره نه. هغه اووے. زۀ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له راغلم. نو وے فرمائيل نزدے راشه. زۀ نزدے ورغلم. نو وے فرمائل، تاته سر كښې دَ سپږو

وَسَلَّمَ فَقَالَ اُدْنُ فَدَنَوْتُ فَقَالَ اَيُؤْذِيْكَ هَوَآمُّكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ وَّ اَخْبَرَنِي ابْنُ عَوْنٍ عَنْ اَيُّوْبَ قَالَ صِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ وَالنُّسُكُ شَاةٌ وَّ مَسَاكِيْنُ سِتَّةٌ.

تکليف دے. ما عرض اوکه. جي هان، نو وے فرمائيل (سر اوخريه) فِديه ورکړه. يا روژے اونيسه يا خيرات يا قرباني ورکړه (دے سند سره ابو شهاب اووے) زۀ عبد اللّٰه بن عون خبر کړم، هغه دَ ايوب نه، هغه اووے، روژے درے (۳) دي. او قربانئ نه يوه چيلے او خيرات نه شپږ مسکينانو باندے طعام خوړول مراد دي.

باب ١٩٧ : قَوْلِهٖ تَعَالٰى قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ وَاللّٰهُ مَوْلَاكُمْ وَ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ مَتٰى تَجِبُ الْكَفَّارَةُ عَلَى الْغَنِيِّ وَالْفَقِيْرِ.

باب ١٩٧ : دَ اللّٰه تعَالٰي (سُورۀ تحريم کښ دا فرمائيل: اللّٰه تعالٰي تاسو باندے دَ قسمونو پوره کول. يعني کفاره ورکول) واجب کړے دي. او اللّٰه تعالٰي ستاسو کارساز دے هغه دَ عِلم او حِکمت خاوند دے. او کفاره مالدار او محتاج دواړو باندے واجب ده.

٤١٩ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُهُ مِنْ فِيْهِ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَكْتُ قَالَ مَا شَأْنُكَ قَالَ وَقَعْتُ عَلٰى امْرَاَتِيْ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ تَسْتَطِيْعُ تُعْتِقُ رَقَبَةً قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيْعُ اَنْ تَصُوْمَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيْعُ اَنْ تُطْعِمَ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا قَالَ لَا قَالَ اِجْلِسْ فَجَلَسَ فَاُتِيَ النَّبِيُّ

٤١٩ : مونږ ته علي بن عبد اللّٰه مديني بيان اوکه. وے. مونږ ته سفيان بن عينيه هغه د زهري نه. سفيان اووے، ما دا حديث دَ زهري دَ خُلے نه واوريدلو. هغه دَ حميد بن عبد الرحمٰن بن عوف نه، هغه دَ ابو هريره نه. هغه اووے. يو سړي (سلمه صخر بياضي) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له راغے. هغه اووے (يا رسُول اللّٰه) زۀ تباه شوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ترے تپوس اوکه، څۀ چل اوشو. عرض ئے اوکه، زۀ رمضان کښ (دَ ورځے) خپلے ښځے سره يو ځائے شوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل ښه نو، تۀ يو غلام (وينزه) آزادولے شے. هغه عرض اوکه، نه. خما دومره وَس نشته. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دوه مياشتے پرله پسے روژے نيولے شے. عرض ئے اوکه نه جي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ښه نو. شپيتۀ مسکينانو باندے طعام خوړولے شے. وئيلے نه جي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيْهِ تَمْرٌ وَالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ الضَّخْمُ قَالَ خُذْ هٰذَا فَتَصَدَّقْ بِهٖ قَالَ أَعَلٰى أَفْقَرَ مِنَّا فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ قَالَ أَطْعِمْهُ عِيَالَكَ.

فرمائیل بنه کیه. دے کښې حضور صلي الله علیه وسلم نه د قجورو یو ټهیلي راغله. (چه هغې کښې پنځلس ص... قجورے راتلے) حضور صلي الله علیه وسلم ورته، فرمائیل دا بوری یوسه او په فقیرانو ئے خیرات کړه. هغه اووے یا رسول الله! په چائے خیرات کړم؟ په هغه چه موږ نه زیات محتاج وی (یعني موږ نه زیات محتاج څوک نشته) دے آوریدو سره حضورؐ او خاندل چه ورستني غاښونه مبارک ئے ښکاریږ شو. نو حضورؐ ورته اوفرمائیل خیر. خپل بال بچ باند او خوروه.

## باب ۱۹۸ : مَنْ أَعَانَ الْمُعْسِرَ مِنَ الْكَفَّارَةِ.

## باب ۱۹۸ : کفاره ادا کولو کښې د محتاج مدد کول.

۳۲۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوْبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَكْتُ فَقَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ وَقَعْتُ بِأَهْلِيْ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ تَجِدُ رَقَبَةً قَالَ لَا قَالَ هَلْ تَسْتَطِيْعُ أَنْ تَصُوْمَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا قَالَ فَتَسْتَطِيْعُ أَنْ تُطْعِمَ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا قَالَ لَا

۳۲۰ : موږ ته محمد بن محبوب بصري بیان اوکه. وے. موږ ته عبد الواحد بن زیاد وے. موږ ته معمر بن راشد. هغه د زهري نه هغه د حمید بن عبد الرحمٰن بن عوف نه. هغه د ابو هریرهؓ نه. هغه اووے. یو سړے حضور صلي الله علیه وسلم ته راغے. عرض ئے اوکه، یا رسول الله. زهٔ تباه شوم. حضور صلي الله علیه وسلم ترے تپوس اوکه، څه چل اوشو. وے زهٔ خپلے ښځے سره رمضان کښې د ورځے یو ځائے شوم حضور صلي الله علیه وسلم ترے تپوس اوکه. تهٔ یو غلام یا (وینزه) آزادولے شے. عرض ئے اوکه، نه جي. وے فرمائیل. ښه نو دوه (۲) میاشتے پرله پسے روژے نیولے شے. هغه اووے، نه جي حضور صلي الله علیه وسلم ترے تپوس اوکه، ښه نو شپیتهٔ مسکینانو باندے طعام خورولے شے، وے نه جي. راوي وائي. دے کښې یو انصاري د قجورو یوه بوریٔ راوړله. چه هغې ته عرق

قَالَ فَجَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْأَنصَارِ بِعَرَقٍ وَّالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ فِيهِ تَمْرٌ فَقَالَ اذْهَبْ بِهٰذَا فَتَصَدَّقْ بِهِ قَالَ عَلٰى أَحْوَجَ مِنَّا يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَحْوَجُ مِنَّا ثُمَّ قَالَ اذْهَبْ فَأَطْعِمْهُ أَهْلَكَ.

وائي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغې سړي ته او فرمائيل دا قجورې واخله او فقيرانو باندې خيرات كړه. هغه عرض اوكه' يا رسُولَ اللّٰه. دا په هغې چا خيرات كړم چه مونږ نه زيات محتاج وي. په هغه پروردګار م دې قسم وي چه تاسو ئې په حقه پيغمبر راليږلې ئې. د مدينې دواړو غاړو (كاڼړيجنو سرونو) كښې دې سر نه هغې سر پورې هيڅ كورواله مونږ نه زيات محتاج نشته) دې آوريدو سره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. خپل كور والو (بال بچ) باندې اوخوروه.

**باب ۱۹۹ : يُعْطِي فِي الْكَفَّارَةِ عَشَرَةَ مَسَاكِينَ قَرِيبًا' أَوْ كَانَ بَعِيدًا.**

**باب ۱۹۹ :** ذ قسم كفاره كښې لس مسكينانو باند خوروَل پكار دي. ذ نزدې رشته داروي يا ذ لرې.

**۶۴۲۱:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَلَكْتُ قَالَ وَمَا شَأْنُكَ قَالَ وَقَعْتُ عَلٰى امْرَأَتِي فِي رَمَضَانَ قَالَ هَلْ تَجِدُ مَا تُعْتِقُ رَقَبَةً قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ لَا أَجِدُ

**۶۴۲۱:** مونږ ته عبد اللّٰه بن مسلمه قعنبي بيان اوكه. وې مونږ ته سفيان ابن عينيه هغه ذ زهري نه. هغه ذ حميد بن عبد الرحمٰن نه' هغه ذ ابو هريرةؓ نه. هغه اووې يو سړې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته راغې. عرض ئې اوكه. زۀ تباه شوم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوكه' څه چل اوشو. عرض ئې اوكه. رمضان كښې (ذ ورځې) زۀ خپلې ښځې سره يو ځائې شوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ترې تپوس اوكه. تۀ يو غلام (يا وينزه) آزادولې شې. وئيلې. نه جي (وَس م نشته). بيا تپوس ئې ترې اوكه. پرله پسې دوه مياشتې روژې نيولې شې. وئيلې نه جي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل' ښه نو. شپيتۀ مسكينانو له طعام خوړولې شې. هغه اووې' نه جي. دې كښې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ذ قجورو يوه ټوكرۍ راغله. حضور

فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَقٍ فِيْهِ تَمْرٌ قَالَ خُذْ هٰذَا فَتَصَدَّقْ بِهٖ فَقَالَ اَعَلٰى اَفْقَرَ مِنَّا مَا بَيْنَ لَا بَتَيْهَا اَفْقَرُ مِنَّا ثُمَّ قَالَ خُذْهُ فَاَطْعِمْهُ اَهْلَكَ.

ورته او فرمائيل. څه. دا يوسه، خيرات ئې كړه. هغه اووې. په هغه چا، ئې خيرات كړم، چه مونږ نه زيات محتاج وي. د مدينې دواړو سرونو كښې دې سر نه واخله، هغې سر پورې هيڅوک مونږ نه زيات محتاج نشته، نو حضور صلّي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ښه ده. ته ئې يوسه. او په خپل بال بچ ئې اوخوروه.

**باب ۲۰۰: صَاعِ الْمَدِيْنَةِ وَ مُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَرَكَتِهٖ وَ مَا تَوَارَثَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ مِنْ ذٰلِكَ قَرْنًا بَعْدَ قَرْنٍ.**

**باب ۲۰۰:** دَ مدينې والو صاع. او دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم مُد او هغې كښې دَ بركت كيدو. او مدينې والو كښې دَ كوم صاع رواج چه قرنًا بعد قرن راغلې دې. دَ هغې بيان.

۴۲۲: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مَالِكٍ الْمُزَنِيُّ حَدَّثَنَا الْجُعَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ كَانَ الصَّاعُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُدًّا وَّ ثُلُثًا بِمُدِّكُمُ الْيَوْمَ فَزِيْدَ فِيْهِ فِيْ زَمَنِ عُمَرَ بْنَ عَبْدَ الْعَزِيْزِ.

۴۲۲: مونږ ته عثمان بن ابي شيبه بيان اوكه. وې. مونږ ته قاسم بن مالک مزني وې. مونږ ته جعيد بن عبد الرحمان، هغه دَ سائب بن زيد نه. هغه اووې. دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم زمانه كښې صاع د هغې وخت يو مُد اوتهائي مُد او بيا دَ عمر بن عبد العزيز زمانه كښې صاع زيات شو.

۴۲۳: حَدَّثَنَا مُنْذِرُ بْنُ الْوَلِيْدِ الْجَارُوْدِيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ قُتَيْبَةَ وَ هُوَ سَلْمٌ حَدَّثَنَا مٰلِكٌ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُعْطِيْ زَكٰوةَ رَمَضَانَ بِمُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُدِّ الْاَوَّلِ وَ فِيْ كَفَّارَةِ الْيَمِيْنِ بِمُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُوْ قُتَيْبَةَ قَالَ لَنَا مَالِكٌ مُدُّنَا اَعْظَمُ مِنْ

۴۲۳: مونږ ته منذر بن وليد جارودي بيان اوكه. وې. مونږ ته ابو قتيبه سلم شعري وې. مونږ ته امام مالک. هغه دَ نافع نه. هغه اووې. عبد الله بن عمرؓ دَ فطر صدقه دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم مُد سره اوښكله (چه د يو رطل او تهائي رطل وي) يعني د مخكښنې زمانې مُد. او دَ قسم كفاره كښې هم دَ هغې مُد په حساب سره ابو قتيبه (دې سند سره) اووې. امام مالک اووې. خمونږ (يعني د مدينې والو) مُد ستاسو دَ

مُدِّكُمْ وَ لَا نَرَى الْفَضْلَ اِلَّا فِيْ مُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ لِيْ مَالِكٌ لَوْ جَآءَكُمْ اَمِيْرٌ فَضَرَبَ مُدًّا اَصْغَرَ مِنْ مُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَيِّ شَيْءٍ كُنْتُمْ تُعْطُوْنَ قُلْتُ كُنَّا نُعْطِيْ بِمُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَفَلَا نَرٰى اَنَّ الْاَمْرَ اِنَّمَا يَعُوْدُ اِلٰى مُدِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

مُد نه زيات دے (يعني د بني اُميه د مُد نه) او مونږ خو هغه مُد افضل ګڼرو، كوم چه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مُد وو. او امام مالک ماته اووے فرض كه، كه يو بل حاكم راغے. او ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د مُد نه هم وړوکے مُد جاري كړي. نو تاسو به صدقهٔ فطر او كفاره وغيره ذ كوم مُد په حساب سره وركوئے. ما اووے. مونږ به ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مُد سره وركوو هغه اووے. آخر تاسو بيا ذ حضور مُد ته راغلئے. نو اوس هم د دے مُد حساب ساتئے. بني اُميه سره ستاسو څه غرض ذ هغوي مُد وَلے اخلئے.

۴۲۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ مِكْيَالِهِمْ وَ صَاعِهِمْ وَ مُدِّهِمْ.

۴۲۴: مونږ ته عبد اللّٰه بن يُوسف تنيسي بيان اوكه. وے. مونږ امام مالک خبر كړو. هغه ذ اسحاق بن عبد اللّٰه ابن ابي طلحه نه. هغه ذ انس بن مالک نه. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مدينے والو ته داسے دُعا اوكړه، يا اللّٰه ذ، دوي ناپ او صاع او مد كښې بركت واچوے (يا اللّٰه خمونږ د پاكستان ناپ تول او وزن كښې هم بركت واچوے. اللّٰهم آمين.)

## بَاب ۱ ۰ ۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ وَّ اَيُّ الرِّقَابِ اَزْكٰى.

باب ۱ ۰ ۲: ذ اللّٰه تعالي دا فرمائيل (سورهٔ مائده كښې ذ قسم كفاره كښې) او تحرير رقبه يعني يو برده آزادول. او كوم برده (غلام. وينزه) آزادول افضل دي.

۴۲۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ اَبِيْ غَسَّانَ مُحَمَّدِ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ مَرْجَانَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

۴۲۵: مونږ ته محمد بن عبد الرحيم بيان اوكه. وے. مونږ ته داؤد بن رشيد. وے. مونږ ته وليد بن مسلم. هغه ذ امام زين العابدين نه، هغه ذ سعيد بن مرجانه نه. هغه د ابو هريرهؓ نه. هغه ذ ابو هريرهؓ نه هغه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل كوم سړے چه مسلمان برده آزاد كړي. اللّٰه

اَعۡتَقَ رَقَبَةً مُّسۡلِمَةً اَعۡتَقَ اللّٰهُ بِكُلِّ عُضۡوٍ مِنۡهُ عُضۡوًا مِّنَ النَّارِ فَرۡجَهٗ بِفَرۡجِهٖ.

تعالىٰ به د هغه د هر اندام بدل كښې ذَ آزاد كونكي هر اندام ذَ دوزخ نه آزاد كړي، تر دې چه ذ هغه د شرمگاه بدل كښې ذَ آزاد كونكي شرمگاه هم.

**باب ۲۰۲: عِتۡقِ الۡمُدَبَّرِ وَ اُمِّ الۡوَلَدِ وَالۡمُكَاتَبِ فِي الۡكَفَّارَةِ وَ عِتۡقِ وَلَدِ الزِّنَا وَ قَالَ طَاوٗسٌ يُجۡزِئُ الۡمُدَبَّرُ وَ اُمُّ الۡوَلَدِ.**

**باب ۲۰۲:** كفاره كښې مُدبر. اُم ولد او د مكاتب[۱] آزاد كول درست دي. دغسې د ولد الزنا. او طاؤس (تابعي) اووې. د اُم ولد او مُدبر آزادول كافي دي.

۱. دلته د غلام داسې درې قسمونه بيان شوي دي كوم چه يو غلام ذَ مكملې غلامئ ذَ زُمرې نه اوباسي. مُدبَّر هغه غلام ته وائي د چا مالک چه دا وئيلي وي چه خما د مرګ نه پس دې آزاد دې. اُمِّ وَلَد: هغه وينزه ده د چا د خيټې نه چه د مالک ماشوم اوشي. داسې وينزه د مالک د مرګ نه پس ذَ شريعت په نظر كښې خود بخود آزاده ده. مكاتب: هغه غلام دې چا چه د خپل مالک سره په يو مقرره موده كښې د يو خاص رقم معاهده كړې وي چه په دې موده كښې كه چرې هغه رقم ادا كړي نو آزاد به شي. په دې ټولو صورتونو كښې غلام مكمل غلام نه دې او نۀ ورته آزاد ويلې كيدې شي. مصنفؒ بحث دا كړې دې چه آيا په دې صورت كښې هم كفارې شته، د دوئ آزادي د يو غلام ذَ ازادئ په حكم كښې راځي.

۶۲۲۶: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعۡمَانِ اَخۡبَرَنَا حَمَّادُ بۡنُ زَيۡدٍ عَنۡ عُمَرٍ وَ عَنۡ جَابِرٍ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الۡاَنۡصَارِ دَبَّرَ مَمۡلُوۡكًا لَهٗ وَ لَمۡ يَكُنۡ لَهٗ مَالٌ غَيۡرُهٗ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنۡ يَّشۡتَرِيۡهِ مِنِّيۡ فَاشۡتَرَاهُ نُعَيۡمُ بۡنُ النَّحَّامِ بِثَمَانِ مِائَةِ دِرۡهَمٍ فَسَمِعۡتُ جَابِرَ بۡنَ عَبۡدَ اللّٰهِ يَقُوۡلُ عَبۡدًا قِبۡطِيًّا مَّاتَ عَامَ اَوَّلَ.

۶۲۲۶: مونږ ته ابو النعمان بيان اوكه، وې مونږ ته حمان بن زيد. هغه د عمر بن دينار. هغه ذَ جابر بن عبد اللّٰه انصاري نه. يو انصاري سړي (ابو مذكور) خپل يو غلام (يعقوب نومې) مدبر كړې وو. هغه سره بل هيڅ مال نه وو. دا خبر چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته اورسيدو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه غلام نيلام كه. وې فرمائيل. څوک دې خريد كوي. بيا نعيم بن نحام هغه په اتۀ سوه (۸۰۰) درهمه خريد كړلو. عمرو بن دينار وائي. ما ذَ جابر بن عبد اللّٰه انصاري نه واوريدل. وئيل ئې. دا غلام قبطي وو. (ذَ فرعون ذَ قوم) په وړمبني كال مړ شولو.

**بـــاب ۲۰۳: اِذَا اَعۡتَقَ فِي الۡكَفَّارَةِ لِمَنۡ يَّكُوۡنُ**

**باب ۲۰۳:** كوم سړې چه كفاره كښې برده آزاد كړي يا مشرک برده آزاد كړي نو ذَ هغه ولاء به

وَ لَآءُهٗ.

ځوک اخلي.

۴۲۷: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا اَرَادَتْ اَنْ تَشْتَرِیَ بَرِيْرَةَ فَاشْتَرَطُوْا عَلَيْهَا الْوَلَآءَ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لِلنَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اشْتَرِيْهَا اِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

۴۲۷: مونږ ته سليمان بن حرب بيان او که. وے. مونږ ته شعبه. هغه دَ حکم بن عتبه نه. هغه دَ ابراهيم نخعي نه. هغه دَ اسود بن يزيد نه. هغه دَ بي بي عائشےؓ نه. هغے بريره خريد کول اوغوښتل. ليکن دَ هغے مالکانو دا شرط اولګولو چه دَ بريره ولاء به مونږ اخلو. بي بي عائشےؓ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ دے ذِکر او که نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل تهٔ ئے خريد کړه (او آزاده ئے کړه) ولاء خو به هغے چاته حاصليږي چه آزاده ئے کړي.

باب ۲۰۴: اَلْاِسْتِثْنَآءِ فِی الْاَيْمَانِ.

باب ۲۰۴: که يو سړے قَسم کښې انشاء اللّٰه اووائي.

۴۲۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ اَبِیْ بُرْدَةَ بْنِ اَبِیْ مُوْسٰی عَنْ اَبِیْ مُوْسَی الْاَشْعَرِیِّ قَالَ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِیْ رَهْطٍ مِّنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ اَسْتَحْمِلُهٗ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا اَحْمِلُكُمْ مَا عِنْدِیْ مَا اَحْمِلُكُمْ ثُمَّ لَبِثْنَا مَا شَآءَ اللّٰهُ فَاُتِیَ بِاِبِلٍ فَاَمَرَ لَنَا بِثَلٰثَةِ ذَوْدٍ فَلَمَّا انْطَلَقْنَا قَالَ بَعْضُنَا لِبَعْضٍ لَّا يُبَارِكُ اللّٰهُ لَنَا اَتَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْتَحْمِلُهٗ فَحَلَفَ

۴۲۸: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان او که. وے. مونږ ته حمان بن يزيد. هغه دَ غيلان بن جرير نه، هغه دَ ابو هرده بن موسٰي نه. هغه دَ خپل پلار ابو موسٰي اشعري نه. هغه اووے. زهٔ څو نورو اشعري سړو سره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته سورلئ غوښتلو دَ پاره راغلم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل زهٔ خو قَسم په خدائے، تاسوله سورلي نه درکوم بيا څومره وخت چه خدائے ته منظوره وه. مونږ اِيسار وو. هغے نه پس حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته څهٔ اوښان راغلل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم درے (۳) اوښان مونږ ته راکړل. مونږ چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روان شو. نو خپلو کښې مو اووے، دا اوښان به ستاسو حق کښې راست نهٔ راځي. (مبارک به نهٔ وي) ځکه چه مونږ ته حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم قَسم خوړلے وو، چه زهٔ

اَنْ لَّا يَحْمِلَنَا فَحَمَلَنَا فَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى فَاَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْنَا ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ مَا اَنَا حَمَلْتُكُمْ بَلِ اللّٰهُ حَمَلَكُمْ اِنِّىْ وَاللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَا اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا اِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَّمِيْنِىْ وَ اَتَيْتُ الَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ.

تاسو ته سورلۍ نهٔ در کوم بیا (شاید هیره کښې) حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم مونږ ته سورلۍ را کړلے. ابو موسیٰ وائي. مونږ خلق واپس حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته راغلو. او حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته مو حال بیان که. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل ما دا سورلۍ تاسو ته نهٔ دي در کړے (خما قسم اوسه پورے قائم دے) بلکه اللّٰه تعالي در کړے دي. او زهٔ خو قسم په خدائے څه چه اللّٰه ته منظوره وي. هر کله چه په څه خبره قسم او خورم. بیا دَ هغے خلاف بهتر اووینم. نو دَ خپل قسم کفاره ورکوم. او کوم کار چه بهتر معلومیږي هغه کوم.

۴۲۹: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ وَ قَالَ اِلَّا كَفَّرْتُ يَمِيْنِىْ وَ اَتَيْتُ الَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ اَوْ اَتَيْتُ الَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ وَّ كَفَّرْتُ.

۴۲۹: مونږ ته ابو النعمان بیان او که. مونږ ته حماد بن زید. بیا دا حدیث ئے نقل که. هغے کښې دا دي. زهٔ دَ خپل قسم کفاره ورکوم. او کوم کار چه بهتر وي. هغه کوم. یا داسے ئے او فرمائیل. زهٔ چه کوم کار بهتر وي هغه کوم. او دَ قسم کفاره ادا کوم.

۴۳۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ حُجَيْرٍ عَنْ طَاوُسٍ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ سُلَيْمَانُ لَاَطُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلٰى تِسْعِيْنَ امْرَاَةً كُلٌّ تَلِدُ غُلَامًا يُقَاتِلُ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ قَالَ سُفْيَانُ يَعْنِى الْمَلَكَ قُلْ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَنَسِىَ فَطَافَ بِهِنَّ فَلَمْ تَاْتِ امْرَاَةٌ مِّنْهُنَّ بِوَلَدٍ اِلَّا وَاحِدَةٌ بِشِقِّ

۴۳۰: مونږ ته علي بن عبد اللّٰه مدیني بیان او که. وے. مونږ ته سفیان بن عینیه. هغه دَ هشام بن حجیر نه هغه دَ طاؤس نه. هغه دَ ابو هریرهؓ نه واوریدل. حضرت سلیمان پیغمبرؑ اووے. نن شپه به زهٔ نوے (۹۰) بیبیانو له ورځم. هرے بي بي نه به یو هلک پیدا کیږي چه دَ اللّٰه تعالي لار کښې به جهاد کوي. دَ هغه ملګري هغه ته اووے. سفیان اووے. یعني ملائکے ورته اووے. انشاء اللّٰه اووایه. لیکن هغه نه انشاء اللّٰه ونیل هیر شو. خیر دَ شپے ټولو بیبیانو له ورغے. لیکن یوے هم بچے راوړے رانه او کومے یوے چه راوړلو. هغه هم نیمګړے بچے وو. ابو هریرهؓ دَ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه

غُلَامٍ فَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يَرْوِيْهِ قَالَ لَوْ قَالَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمْ يَحْنَثْ وَكَانَ دَرَكًا لَهُ فِيْ حَاجَتِهٖ وَكَانَ مَرَّةً قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوِ اسْتَثْنٰى وَحَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ مِثْلَ حَدِيْثِ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

روايت اوكه. كه سُليمان عليه السّلام انشاء الله ونيلے وے. نو د هغه قسم به رښتيا شوے وو. او مطلب به ئے پوره شوے وو. كله ابو هريرهؓ داسے اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. كه سُليمان استثناء كړے وے (يعني انشاء الله ونيلے وے) سفيان به عينيه (دے سند سره) اووے. دا حديث مونږ ته ابو الزناد هم د اعرج نه، هغه د ابو هريرهؓ نه دغسے نقل كه.

## بَابُ ٢٠٥ : اَلْكَفَّارَةِ قَبْلَ الْحِنْثِ وَبَعْدَهٗ.

## باب ٢٠٥ : دَ قسم كفاره قسم ماتولو نه مخكښ او هغے نه پس دواړه شانه وركولے شي.

٤٣١: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ الْقَاسِمِ التَّمِيْمِيْ عَنْ زَهْدَمٍ الْجَرْمِيِّ قَالَ كُنَّا عِنْدَ اَبِيْ مُوْسٰى وَكَانَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ هٰذَا الْحَيِّ مِنْ جَرْمٍ اِخَآءٌ وَّمَعْرُوْفٌ قَالَ وَقُدِّمَ فِيْ طَعَامِهٖ لَحْمُ دَجَاجٍ قَالَ وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ تَيْمِ اللّٰهِ اَحْمَرُ كَاَنَّهٗ مَوْلًى قَالَ فَلَمْ يَدْنُ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى اُدْنُ فَاِنِّيْ قَدْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْكُلُ مِنْهُ قَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُهٗ يَاْكُلُ شَيْئًا فَقَذِرْتُهٗ فَحَلَفْتُ اَنْ لَّا اَطْعَمَهٗ اَبَدًا فَقَالَ اُدْنُ اُخْبِرْكَ عَنْ ذٰلِكَ اَتَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

٤٣١: مونږ ته علي بن حجر بيان اوكه وے. مونږ ته اسمٰعيل بن ابراهيم. هغه د ايوب سختياني نه. هغه د قاسم تميمي نه. هغه دَ زهدم جرمي نه. هغه اووے. مونږ ابو موسي اشعري سره وو. او مونږ خلقو كښ او د جرم قبيلے خلقو كښ ورورولي او دوستي وه. خير ابو موسيٰ ته طعام راوړلے شو، هغے كښ دَ چرګے غوښه هم وه. هغه وخت خلقو كښ د بني تيم الله قبيلے دَ سُور رنګ يو سړے هم ناست وو. معلوميده چه غلام دے. هغه طعام ته رانغے. ابو موسي ورته اووے. ولے. طعام ته نهٔ راځے. ما حضور صلّي الله عليه وسلّم دَ دے په خوراک ليدلے وے. هغه اووے، ما چركه په نجاست خوړلو ليدلے ده. خما ترے نفرت اوشو، نو ما قسم اوخوړلو، چه اوس به د چرګے غوښه نهٔ خورم. ابو موسيٰ ورته اووے. زهٔ تاته د قسم علاج هم ښايم. اوشو داسے چه مونږ اشعري خلق سورلئ غوښتلو د پاره حضور صلّي الله عليه وسلّم له راغلو هغوی هغه وخت د صدقے اوښان تقسيمول ايوب راوي اووے. خما خيال دے. قاسم دا هم اووے. چه هغه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَهْطٍ مِّنَ الْأَشْعَرِيِّيْنَ اَسْتَحْمِلُهُ وَهُوَ يَقْسِمُ نَعَمًا مِّنْ نَّعَمِ الصَّدَقَةِ قَالَ اَيُّوْبُ اَحْسِبُهُ قَالَ قَالَ وَهُوَ غَضْبَانُ قَالَ وَاللّٰهِ لَا اَحْمِلُكُمْ وَمَا عِنْدِيْ مَا اَحْمِلُكُمْ قَالَ فَانْطَلَقْنَا فَأُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَهْبِ اِبِلٍ فَقِيْلَ اَيْنَ هٰؤُلَاءِ الْاَشْعَرِيُّوْنَ اَيْنَ هٰؤُلَاءِ الْاَشْعَرِيُّوْنَ فَاَتَيْنَا فَاَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرٰى قَالَ فَانْدَفَعْنَا فَقُلْتُ لِاَصْحَابِيْ اَتَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْتَحْمِلُهُ فَحَلَفَ اَنْ لَّا يَحْمِلَنَا ثُمَّ اَرْسَلَ اِلَيْنَا فَحَمَلَنَا نَسِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِيْنَهُ وَاللّٰهِ لَئِنْ تَغَفَّلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِيْنَهُ لَا نُفْلِحُ اَبَدًا اِرْجِعُوْا بِنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْنُذَكِّرْهُ يَمِيْنَهُ فَرَجَعْنَا فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتَيْنَاكَ نَسْتَحْمِلُكَ فَحَلَفْتَ اَنْ لَّا تَحْمِلَنَا ثُمَّ حَمَلْتَنَا فَظَنَنَّا اَوْ فَعَرَفْنَا اَنَّكَ نَسِيْتَ يَمِيْنَكَ قَالَ انْطَلِقُوْا فَاِنَّمَا

وخت حضور صلي الله عليه وسلم غصه کښې وو. وې فرمائيل. قسم په خدائې زۀ تاسو ته سورلي نۀ درکوم. او ما سره (زياتې) سورلئ شته هم نه. خير مونږ لاړو بيا داسې اوشو چه دَ لوټ څه اُوښان حضور صلي الله عليه وسلم ته راغلل. حضور صلي الله عليه وسلم تپوس اوکه، هغه اشعري خلق (چه سورلئ غوښتلو دَ پاره راغلي وو) چرته لاړل. (بلالؓ مونږ ته آواز اوکه) مونږ بيا راغلو. حضور صلي الله عليه وسلم ډير ښۀ سپين قب والا پنځه اُوښان مونږ ته عطا کړل مونږ هغې اُوښانو سره لاړلو. ما خپلو ملګرو ته اووې. مونږ چه حضور صلي الله عليه وسلم ته سورلئ غوښتلو دَ پاره ورغلي وو. نو حضور صلي الله عليه وسلم قسم خوړلې وو. چه مونږ ته به سورلئ نۀ راکوي. بيا دا سورلئ ئې راته عطا کړلې. څمونږ خيال دې چه حضور صلي الله عليه وسلم ته خپل قسم ياد نۀ دې پاتې شوې قسم په خدائې، که مونږ حضور صلي الله عليه وسلم ته خپل قسم ورياد نۀ کړو. او دا اُوښان (دهوکه کښې) بوځو. نو دې کښې به مونږ دَ پاره هيڅ خير نۀ وي. ځئې. چه بيا حضور صلي الله عليه وسلم له ورشو. او ورته عرض اوکړو او خپل قسم ورته ورياد کړو. خير مونږ واپس راغلو او عرض مو اوکه، يا رسول الله. مونږ چه تاسو ته سورلئ غوښتلو دَ پاره راغلي وو، نو تاسو قسم خوړلې وو، چه مونږ ته به سورلئ نۀ راکوې. او بيا تاسوٌ دا سورلي راکړې. څمونږ ګمان دې، شايد تاسو نه خپل قسم هير شوې دې. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل (مانه قسم نۀ دې هير) خبره داده، چه دا سورلئ الله تاسو ته درکړې دي، مانه

حَمَلَكُمُ اللّٰهُ اِنِّیْ وَاللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَا اَحْلِفُ عَلٰی یَمِیْنٍ فَاَرٰی غَیْرَهَا خَیْرًا مِّنْهَا اِلَّا اَتَیْتُ الَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ وَ تَحَلَّلْتُهَا تَابَعَهٗ حَمَّادُ بْنُ زَیْدٍ عَنْ اَیُّوْبَ عَنْ اَبِیْ قِلَابَةَ وَالْقَاسِمِ بْنِ عَاصِمِ الْکُلَیْبِیِّ.

دي در کړې) او زۀ خو که په څۀ خبره قسم اوخورم. بيا ذ هغې خلاف بهتر اوګنړم، نو کوم کار چه بهتر وي، هغه کوم. او ذ قسم کفاره ورکوم. اسماعيل سره دا حديث عماد بن زيد هم ذ ايوب نه، هغه ذ ابو قلابه او قاسم بن عاصم کليبي نه روايت که (دا خپله امام بخاريؒ باب فرض الخمس کښې وصل که).

۴۳۲: حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَیُّوْبَ عَنْ اَبِیْ قِلَابَةَ وَالْقَاسِمِ التَّمِیْمِیِّ عَنْ زَهْدَمٍ بِهٰذَا.

۴۳۲: مونږ ته قتيبه بيان اوکه. وې. مونږ ته عبد الوهاب. هغه ذ ايوب سختياني نه. هغه ذ ابو قلابه او قاسم تميمي نه. هغه ذ، زهدم نه. بيا دا حديث نقل که.

۴۳۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَیُّوْب عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ زَهْدَمٍ بِهٰذَا.

۴۳۳: مونږ ته معمر بيان اوکه. وې. مونږ ته عبد الوارث. وې. مونږ ته ايوب سختياني. هغه ذ قاسم نه. هغه ذ زهدم نه دا حديث نقل که.

۴۳۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ بْنِ فَارِسٍ اَخْبَرَنَا ابْنَ عَوْنٍ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْاَلِ الْاِمَارَةَ فَاِنَّكَ اِنْ اُعْطِیْتَهَا مِنْ غَیْرِ مَسْئَلَةٍ اُعِنْتَ عَلَیْهَا وَ اِذَا حَلَفْتَ عَلٰی یَمِیْنٍ فَرَاَیْتَ غَیْرَهَا خَیْرًا مِّنْهَا فَاْتِ الَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ وَّ کَفِّرْ عَنْ یَمِیْنِكَ تَابَعَهٗ اَشْهَلُ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ وَّ تَابَعَهٗ یُوْنُسُ وَ سِمَاكُ ابْنُ

۴۳۴: مونږ ته محمد بن عبد اللّٰه بيان اوکه. وې. مونږ ته عثمان بن عمر بن فارس وې. مونږ ته عبد اللّٰه بن عون خبر راکه هغه ذ حضرت امام حسن بصريؒ نه. هغه ذ عبد الرحمٰن بن سمره نه. هغه اووې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. تۀ ذ دُنيا حکومت (خدمت يا عهده) ذ خپل طرفنه مه غواړه. که بغير غوښتلو تاته حاصل شي نو اللّٰه به ستا مدد کوي. او که په غوښتلو درته حاصل شي، نو اللّٰه به ستا مدد پرېږدي. تۀ پوهې شه او ستا کار پوهې او هر کله چه تۀ ذ يوې خبرې قسم اوخورې بيا ذ هغې خلاف کول تاته ښۀ ښکاره شي. نو کوم چه ښه ګنړې، هغه کار اوکړه. او ذ خپل قسم کفاره ورکړه. عثمان بن عمر سره دا حديث اشهل بن حاتم هم عبد اللّٰه بن عون نه روايت اوکه (دا ابو عوانه او

عَطِيَّةَ وَ سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ وَّ حُمَيْدٌ وَّ قَتَادَةُ وَمَنْصُوْرٌ وَّ هِشَامٌ وَّالرَّبِيْعُ.

حاكم وصل كه) او عبد الله بن عون سره دا حديث يونس او سماك بن عطيه او سماك بن حرب او حميد او قتاده او منصور او هشام او ربيع هم روايت كه.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

د الله نوم سره شروع كوم چه ډير مهربانه او رحم كونكے دے

# كِتَابُ الْفَرَائِضِ

# (يعني دَ ميراثے دَ حصّو بيان)

وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ وَ اِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ وَ لِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنْ كَانَ لَهُ وَلَدٌ فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُ وَلَدٌ وَّ وَرِثَهُ اَبَوَاهُ فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ فَاِنْ كَانَ لَهُ اِخْوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْ بِهَا اَوْ دَيْنٍ اٰبَآؤُكُمْ وَ اَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ. اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا. وَ لَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُكُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ وَلَدٌ فَاِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ

او الله تعالى (سورهٔ نساء كښې) او فرمائيل الله تعالى تاسو ته د اولاد په باره كښې دا حكم دركوي چه هلك (خوئ) ته به دوه حصے او لور ته به يوه حصه وركيږي. كه د مړي خوئے نه وي، ټولے لونړه وي (دوه (۲) يا د دوؤ نه زياتے) نو هغوي ته به تهائي تركه حاصليږي. كه د مړي يوه لور وي نو هغے ته نيمه تركه (ميراثه) حاصليږي. او د مړي مور پلار هر يو ته به ميراثه كښې شپږمه شپږمه حصه وركيږي كه د مړي اولاد وي (خوئے يا لور. نمسے. نمسئ) كه اولاد نه وي. او صرف مور پلار ئے وارثان وي. نو مور ته به دَ مال تهائي حصه (باقي ټول به پلار ته) وركيږي. كه (دَ مور پلار نه سوا) دَ مړي څو وروڼه خويندے وي بيا به مور ته شپږمه حصه. دا ټولے حصے به د مړي دَ وصيت او قرض ادا كولو نه پس كولے شي. تاسو ته څه معلومه ده، چه پلار او ځامنو كښې تاسو ته د چا نه زياته فائده رسي (ځكه خپلے رائے له دے كښې دخل مه وركوي) دا حصے الله مقرر كړي دي (هغه خپل مصلحت ښه پيژني) ځكه چه الله دَ لوئے علم او حكمت خاوند دے. او ستاسو ښځے چه كوم مال او اسباب پريږدي. او ستاسو اولاد نه وي (نهٔ خوئے نه لور) بيا به تاسو ته نيمه ميراثه (تركه)

فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكُمْ وَلَدٌ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً أَوِ امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسُ فَإِنْ كَانُوا أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ وَصِيَّةً مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ.

در كيبري. او كه اولاد وي نو څلورمه برخه. دا هم د وصيّت او قرضے ادا كولو نه پس. دغسے تاسو چه كوم مال پريږدئے. او ستاسو اولاد (خوئے لور) هيڅ نه وي نو ستاسو ښځو ته به د هغے نه څلورمه برخه ور كيږي كه اولاد وي. نو اتمه حصّه. دا هم د وصيّت او قرض ادا كولو نه پس او كه څوک سړے يا ښځه مړه شي. او هغه كلاله وي (نه ئے پلار وي نه خوئے) بلكه مور راوړے يو ورور يا خور وي (يعني اضافي) نو هر يو ته به شپږمه حصّه وركيږي. دغسے كه (اضافي) څو ورونړه خويندے وي نو ټول به يو تهائي بياموي. دا هم د وصيّت او قرض ادا كولو نه پس، په شرط د دے چه مړي وارثانو ته نقصان رسولو د پاره وصيّت نه وي كړے (يعني ثلث مال نه زيات) دا ټول فرمان د الله، دے. او الله د هر يو حال ښه پيژني. لوئے بردبار او زغمونكے دے.

۵۳۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ مَرِضْتُ فَعَادَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَبُو بَكْرٍ وَ هُمَا مَاشِيَانِ فَأَتَانِي فَقَدْ أُغْمِيَ عَلَيَّ فَتَوَضَّأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَبَّ عَلَيَّ وَضُوءَهُ فَأَفَقْتُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ أَصْنَعُ فِي مَالِي كَيْفَ أَقْضِي فِي مَالِي فَلَمْ يُجِبْنِي بِشَيْءٍ حَتَّى نَزَلَتْ آيَةُ الْمَوَارِيثِ.

۵۳۵: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوكړه وے. مونږ ته سفيان بن عيينه نه، هغه د محمد بن منكدر نه هغه د جابر بن عبد الله نه واوريدل. هغه وے. زۀ ناروغه شوم. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم او ابوبكرؓ پياده څما تپوس له راغلل. كوم وخت چه راورسيدل، نو زۀ بيهوشه ووم. حضور صلّي الله عليه وسلّم د خپل اودس اوبۀ په ما واچولے، نو زۀ هوش كښ راغلم. ما عرض اوكه يا رسول الله. زۀ د خپل مال څنګه فيصله اوكړم. حضور صلّي الله عليه وسلّم هيڅ جواب رانكړلو. تر دے چه د ميراثے آيت (يوصيكم الله في اولادكم) نازل شو.

بَاب ۲۰۶: تَعْلِيْمُ الْفَرَائِضِ. وَ قَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ تَعَلَّمُوْا قَبْلَ الظَّانِّيْنَ يَعْنِيْ الَّذِيْنَ يَتَكَلَّمُوْنَ بِالظَّنِّ.

باب ۲۰۶: دَ فرائض علم ښوول. او عقب بن عامر اووے (دَ دين) علم زده کړے. دينه مخکښې چه اټکل والا پيدا شي، (يعني بے د شرعي دليل نه په خپل ګمان خبرے کوي).

۶۳۴۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوٗسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ اَكْذَبُ الْحَدِيْثِ وَ لَا تَحَسَّسُوْا وَ لَا تَجَسَّسُوْا وَ لَا تَبَاغَضُوْا وَ لَا تَدَابَرُوْا وَ كُوْنُوْا عِبَادَ اللّٰهِ إِخْوَانًا.

۶۳۴۶: مونږ ته موسٰي بن اسماعيل بيان اوکه. وے مونږ ته وهب بن خالد. وے. مونږ ته عبد اللّٰه بن طاؤس هغه دَ خپل پلار نه. هغه دَ ابو هريرةؓ نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. تاسو دَ ګمان نه بچ اوسئے (يعني چه هغے دليل نهٔ وي) ځکه چه ګمان ډير دروغ خبره ده. او جاسوسي مهٔ کوئے. خپلو کښې حسد مه کوئے يو بل ته مه شا کوئے (ملاقات ترک کولو سره) بلکه ورونړه ورونړه او دَ اللّٰه بنديان جوړ شئے.

بَاب ۲۰۷: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ.

باب ۲۰۷: دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا فرمائيل. ځمونږ پيغمبرانو هيڅوک وارث نهٔ وي کوم مال چه مونږ پريږدو هغه صدقه ده.

۶۳۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ ؓ اَنَّ فَاطِمَةَ ؓ وَالْعَبَّاسَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ اَتَيَا اَبَابَكْرٍ يَلْتَمِسَانِ مِيْرَاثَهُمَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُمَا حِيْنَئِذٍ يَطْلُبَانِ اَرْضَيْهِمَا مِنْ فَدَكٍ وَّ سَهْمَهُمَا مِنْ خَيْبَرَ فَقَالَ لَهُمَا

۶۳۴۷: مونږ ته عبد اللّٰه بن محمد بيان اوکه. وے. مونږ ته هشام بن يُوسف يماني اووے. وے. مونږ ته معمر خبر راکه. هغه دَ زهري نه. هغه دَ عروه نه، هغه دَ بي بي عائشےؓ نه. هغے اووے. بي بي فاطمهؓ او حضرت عبّاسؓ دواړه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ وفات نه پس ابوبکر صديقؓ له راغلل. د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ترکه (ميراثه) ئے ترے غوښتله، يعني کومه مزکه چه ئے فدک کښې وه، او خيبر کښې چه کومه حصّه وه. ابوبکرؓ دا جواب ورکه، ما دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلي دي. فرمائيلے دي. ځمونږ پيغمبرانو ځوک

اَبُوْبَكْرٍ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ اِنَّمَا يَاْكُلُ اٰلُ مُحَمَّدٍ مِّنْ هٰذَا الْمَالِ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ وَّاللّٰهِ لَا اَدَعُ اَمْرًا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُهٗ فِيْهِ اِلَّا صَنَعْتُهٗ قَالَ فَهَجَرَتْهُ فَاطِمَةُ فَلَمْ تُكَلِّمْهُ حَتّٰى مَاتَتْ.

وارث نهٔ وي. کوم مال چه مونږ نه پاتې شي. هغه صدقه دے، البته دا ده، چه دَ حضرت محمد صلّي الله عليه وسلّم آل به دَ هغې نه خوري څکي ابوبکرؓ دا هم اووے. زهٔ خو قَسم په خدائے، کوم کار چه کله حضور صلّي الله عليه وسلّم کولو، هغسې به کوم. دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم هيڅ کار پريښودونکے نهٔ يم (داسې نه چه زهٔ گُمراه شم) دے آوريدو سره بي بي فاطمےؓ صديق اکبرؓ سره ملاقات کول پريښودل. وفات پورے ئے ورسره خبرے اونکړے.

۴۳۸: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبَانَ اَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ.

۴۳۸: مونږ ته اسماعيل بن ابان بيان اوکه. وے. مونږ ته عبد الله بن مُبارک خبر راکه. هغه دَ يُونس نه. هغه دَ زهري نه، هغه دَ عروه نه. هغه دَ بي بي عائشےؓ نه. هغے اووے. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل څمونږ پيغمبرانو څوک وارث نه وي. څه چه مونږ پريږدو هغه صدقه ده.

۴۳۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكُ ابْنُ اَوْسِ ابْنِ الْحَدَثَانِ وَكَانَ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ ذَكَرَ لِيْ مِنْ حَدِيْثِهٖ ذٰلِكَ فَانْطَلَقْتُ حَتّٰى دَخَلْتُ عَلَيْهِ وَسَاَلْتُهٗ فَقَالَ انْطَلَقْتُ حَتّٰى اَدْخُلَ عَلٰى عُمَرَ فَاَتَاهُ حَاجِبُهٗ يَرْفَاُ فَقَالَ هَلْ لَّكَ فِيْ عُثْمَانَ وَعَبْدِ الرَّحْمٰنِ

۴۳۹: مونږ ته اسماعيل بن بکرؓ بيان اوکه. وے. مونږ ته ليث بن سعد، هغه دَ عقيل نه، هغه دَ ابن شهاب نه، هغه اووے، ماته مالک بن اوس بن حدثان خبر راکه، ابن شهاب اووے، محمد بن جبير بن مطعم ماته دَ مالک بن اوس څه حديث مخکښ بيان کړے وو. بيا زهٔ خپله مالک بن اوس له ورغلم. او هغه نه مِ دا حديث اوپوښتلو. هغه بيان اوکه. زهٔ لاړم او حضرت عمرؓ ته اورسيدم. دے کښ دَ هغه دربان يرفا نومے راغے. عرض ئے اوکه، حضرت عثمانؓ او عبد الرحمٰن بن عوف او زبير بن عوام او سعد بن ابي وقاص، تاسوته راتلل غواړي. حضرت عمرؓ اووے ښه ده، راځي دے. يرفا

وَالزُّبَيْرِ وَ سَعْدٍ قَالَ نَعَمْ فَأَذِنَ لَهُمْ ثُمَّ قَالَ هَلْ لَّكَ فِيْ عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ عَبَّاسٌ يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ هٰذَا قَالَ أَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ الَّذِيْ بِإِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْأَرْضُ هَلْ تَعْلَمُوْنَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفْسَهُ فَقَالَ الرَّهْطُ قَدْ قَالَ ذٰلِكَ فَأَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمَانِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذٰلِكَ قَالَا قَدْ قَالَ ذٰلِكَ قَالَ عُمَرُ فَإِنِّيْ أُحَدِّثُكُمْ هٰذَا الْأَمْرَ أَنَّ اللّٰهَ قَدْ كَانَ خَصَّ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ لَمْ يُعْطِهٖ أَحَدًا غَيْرَهُ فَقَالَ عَزَّ وَ جَلَّ مَا أَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ إِلٰى قَوْلِهٖ قَدِيْرٌ فَكَانَتْ خَالِصَةً لِّرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا احْتَازَهَا دُوْنَكُمْ وَ لَا اسْتَأْثَرَ

هغوي له اجازت ورکه. بيا يرفا اووے. حضرت عليؓ او حضرت عباسؓ تاسوته راتلل غواړي. وے، راځي دے. هغوي راغلل. حضرت عباسؓ اووے. اے امير المؤمنين خما او د دهٔ (يعني عليؓ) مينځ کښې فيصله اوکړه. حضرت عمرؓ اووے. زهٔ تاسو ته د هغے پروردګار قسم درکوم، چه د هغه حُکم سره مزکه او آسمان قائم دي. آيا تاسوته دا معلومه نه ده چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي، خمونږ پيغمبرانو څوک وارث نهٔ وي، څه چه مونږ پريږدو هغه صدقه ده. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپل ځان مراد واخستلو. هغه وخت حضرت عُثمانؓ او د هغه ملګرو اووے بيشکه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خو دغسے فرمائيلي دي بيا حضرت عمرؓ حضرت عليؓ او حضرت عباسؓ ته مخاطب شو. او وئيلے. آيا تاسو دواړو ته معلومه ده، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم داسے فرمائيلي دي. هغوي اووے، هان، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم داسے فرمائيلي دي. نو حضرت عمرؓ ورته اووے اوس زهٔ تاسو ته حقيقت حال بيانوم. اوشوه داسے، چه اللّٰه تعالي دَ لوټ هغه مال چه بے جنګه په لاس راغے، خپل پيغمبر صلّي اللّٰه عليه وسلّم د پاره خاص کړه. هغے کښې ئے دَ بل چا حصّه اونکړه، لکه چه سُورهٔ حشر کښې ئے او فرمائيل ما اَفاء اللّٰه علي رسوله قدير پورے. نودا بنو نضير. خيبر. فدک وغيره، خاص د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مال وو. خو قسم په خدائے، حضور صلّي الله عليه وسلّم هغه خپل ذات د پاره پرے نښودل. نه تاسو پريښودو سره خاص خپلے مرضئ کښې ئے خرچ کړل بلکه تاسو خلقو

بِهَا عَلَيْكُمْ لَقَدْ أَعْطَاكُمُوْهُ
وَبَثَّهَا حَتَّى بَقِيَ مِنْهَا هٰذَا
الْمَالُ فَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلٰى
أَهْلِهِ مِنْ هٰذَا الْمَالِ نَفَقَةَ
سَنَةٍ ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ
فَجَعَلَ مَالِ اللّٰهِ فَعَمِلَ بِذٰلِكَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ حَيَاتَهُ أَنْشُدُكُمْ
بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمُوْنَ ذٰلِكَ قَالُوْا
نَعَمْ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ
أَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ
ذٰلِكَ قَالَ نَعَمْ فَتَوَفَّى اللّٰهُ
نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍؓ أَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَقَبَضَهَا فَعَمِلَ بِمَا عَمِلَ
بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ
أَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ أَنَا وَلِيُّ وَلِيِّ
رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقَبَضْتُهَا سَنَتَيْنِ
أَعْمَلُ فِيْهَا مَا عَمِلَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَأَبُوْبَكْرٍؓ ثُمَّ جِئْتُمَانِيْ وَ
كَلِمَتُكُمَا وَاحِدَةٌ وَأَمْرُكُمَا

له ئې در کړلو او په تاسو ئې تقسیم کړلو. حضور صلّي
اللّٰه علیه وسلّم به داسې کول، چه خپل کور والو د پاره
به ئې د یو کال خرچ دې مال نه اوښکو. او څه چه به
باقي بچ شو، هغه به هغې کارونو کښې صرف کول، چه
هغې کښې د بیت المال (قومي خزانې) روپې خرچ
کیږي. (یعني مصالح او منافع عامه کښې) حضور صلّي
اللّٰه علیه وسلّم به خپل ټول ژوند کښې دغسې کول.
ستاسو دې په اللّٰه قسم وي، تاسو ته دا معلومه نهٔ ده.
حضرت عُثمانؓ او د هغهٔ ملګرو اووې. بیشکه معلومه
ده. بیا حضرت عليؓ او حضرت عباسؓ ته مخاطب شو.
هغوي ته ئې اووې. ستاسو دې په خدائې قسم وي.
اووائې چه تاسو ته معلومه ده یا نه. دواړو اووې. بیشکه
معلومه ده. بیا حضرت عمرؓ اووې دې نه پس اللّٰه تعالي
خپل پیغمبر واخستلو. نو حضرت ابوبکر صدیق خلیفه
شولو، هغه اووې، زهٔ د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ولي
(کار چلونکې) یم. هغه د هغوي جائیدادونه خپل قبضه
کښې اوساتل. او کوم کارونو کښې چه حضور صلّي اللّٰه
علیه وسلّم خرچ کولو. هغې کارونو کښې ئې خرچ
کوؤ. بیا اللّٰه تعالي ابوبکرؓ هم واخستلو نو ما دا اووې،
چه زهٔ د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم د ولي، ولي یم. او
دوه (۲) کاله پورې ما دا ټول جائیدادونه خپله قبضه
کښې اوساتل. او کومو کومو کارونو کښې چه حضور
صلّي اللّٰه علیه وسلّم او ابوبکرؓ هغه خرچ کول. هغې
کښې ما هم خرچ کول. بیا عليؓ او عبّاسؓ ستاسو دواړه
ماله راغلئې هغه وخت تاسو دواړه یوه خُله، یو زړهٔ وې.
(یعني خپلو کښې متفق وې) اې عبّاسؓ، تا خو دا اووې

جَمِيْعٌ جِئْتُمَانِي تَسْأَلِنِي نَصِيْبَكَ عَنْ ابْنِ اَخِيْكَ وَ اَتَانِي هٰذَا يَسْأَلُنِي نَصِيْبَ امْرَاَتِهٖ مِنْ اَبِيْهَا فَقُلْتُ اِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا بِذَالِكَ فَتَلْتَمِسَانِ مِنِّي قَضَآءً غَيْرَ ذٰلِكَ فَوَاللّٰهِ الَّذِي بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ لَا اَقْضِي فِيْهَا قَضَآءً غَيْرَ ذٰلِكَ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ فَاِنْ عَجَزْتُمَا فَادْفَعَاهَا اِلَيَّ فَاَنَا اَكْفِيْكُمَاهَا.

څما دَ ورارهٔ مال کښې ماله حصّه راکړه. او اَے عليؓ تا دا اووے چه څما دَ بي بي حصّه دَ هغے دَ پلار مال کښې هغے لـه ورکړه. ما اووے. دَ پيغمبر مال نشي تقسيميدے. البته زهٔ پـه دے شرط دا ټول جائيداد (انتظامًا) تاسو ته حواله کولے شم. اوس تاسو دا غواړئ، چه زهٔ دَ دے جائيداد پـه حقله څهٔ بله فيصله اوکړم. نو (دا ممکنه نهٔ ده) په هغه پروردګار مِ دے قسم وي، چه دَ هغه حُکم سره مزکه او آسمان قائم دي. زهٔ قيامته پورے بله فيصله کونکے نهٔ يم البته دا کيدے شي. که تاسو خلقو نـه دَ دے جائيداد نګراني نشي کيدے. نو بيا ماته ئے حوالے کړے. زه به پـخپله ددے بندوبست کوم.

۶۳۴۰ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقْتَسِمُ وَرَثَتِي دِيْنَارًا مَّا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَآئِي وَ مَؤُوْنَةِ عَامِلِي فَهُوَ صَدَقَةٌ.

۶۳۴۰ : مونږ ته اسماعيل بن ابي اويس بيان اوکه. وے. مونږ تـه امام مالکؒ، هغه دَ ابو الزناد نـه. هغه دَ اعرج نـه. هغـه دَ ابو هريرهؓ نه. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. څما ورثه به د دينار پشان نـه تقسيميږي بلکه کوم جائيداد چه زهٔ پريږدم. هغے نـه دے څما دَ بيبيانو او عملے خرچ اوښکلو سره، څـه چـه بچ شي. هغه دے دَ اللّٰه تعالیٰ لار کښې خيرات کړے شي.

۶۳۴۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَؓ اَنَّ اَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَدْنَ اَنْ يَّبْعَثْنَ عُثْمَانَ اِلَى

۶۳۴۱ : مونږ تـه عبد اللّٰه بـن سلمه قعنبي بيان اوکه. هغه دَ امام مالکؒ نه هغه دَ ابن شهاب نه، هغه دَ عروه نه هغه دَ بي بي عائشےؓ نه، هغے اووے. کوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم وفات شو. نو بيبيانو مبارکو ئے دا قصه اوکړه، چه حضرت عُثمانؓ ئے دَ خپل طرفنه حضرت صديق اکبرؓ ته اوليږي. او دَ خپلے ميراثے

اَبِیْ بَکْرٍؓ يَسْأَلْنَهُ مِيْرَاثَهُنَّ فَقَالَتْ عَائِشَةُ اَلَيْسَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ.

مطالبه اوكړي. هغه وخت ما اووې، تاسوته دا' نۀ ده معلومه. چه حضور صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي. چه دَ پيغمبرانو څوک وارث نۀ وي. مونږ چه څه پريږدو هغه صدقه ده.

باب ۲۰۸: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِاَهْلِهِ.

باب ۲۰۸: حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. كوم سړے چه مال اسباب پريږدي هغه به د هغهٔ وارثانو ته حاصليږي.

۶۳۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنَا اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ فَمَنْ مَّاتَ وَ عَلَيْهِ دَيْنٌ وَّلَمْ يَتْرُكْ وَفَآءً فَعَلَيْنَا قَضَآؤُهٗ وَ مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهٖ.

۶۳۴۲: مونږ ته عبدان بيان اوكه. وے مونږ عبد اللّٰه بن مبارک خبر کړو. وے مونږ ته يُونس بن يزيد ايلي. هغه دَ ابن شهاب نه وے. ماته ابو سلمه بن عبد الرحمٰن بيان اوكۀ هغه دَ ابو هريرهؓ نه. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. زۀ په مُسلمانانو دَ هغوي دَ ځانونو نه زيات حق لرم (په هغوي دَ هغوي نه زيات مهربان يم) كه څوک مُسلمان مړ شي او قرض پرے پاتے شي. ادائيگي دَ پاره ئے جائيداد نۀ وي، نو مونږ به دَ هغه قرضه (دَ بيت المال نه) ادا كوؤ. او كوم مُسلمان چه مال دولت پريږدي، نو هغه دَ هغهٔ دَ وارثانو حق دے.

باب ۲۰۹: مِيْرَاثُ الْوَلَدِ مِنْ اَبِيْهِ وَ اُمِّهٖ. وَ قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ اِذَا تَرَكَ رَجُلٌ اَوِ امْرَاَةٌ بِنْتًا فَلَهَا النِّصْفُ وَ اِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ اَوْ اَكْثَرَ فَلَهُنَّ الثُّلُثَانِ وَ اِنْ كَانَ مَعَهُنَّ ذَكَرٌ بُدِئَ بِمَنْ شَرِكَهُمْ فَيُؤْتٰى فَرِيْضَتَهٗ فَمَا بَقِيَ فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ

باب ۲۰۹: اولاد ته به دَ مور پلار دَ مال نه څه حاصليږي. زيد بن ثابتؓ اووے (چه دَ فرائضُ لوئے عالم وو) كه څوک سړے يا ښځه يوه لور پريږدي نو هغه به نيم مال اخلي. او كه دوه يا زياتے لونړه وي، نو دوهٔ تهائي ۲/۳ به اخلي. او كه هغے لونړو سره څوئے وي. بيا خو' دَ لونړو به هيڅ مقرره حصّه نه وي. بلكه نورو دَ ذي الفروضُ (حصے والو مثلًا مور پلار ته) وركولو سره چه كوم مال بچ شي. هغے كښ به سړي ته دوه (۲) حصے

الْاُنْثَيَيْنِ.

۴۴۳: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْحِقُوْا الْفَرَائِضَ بِاَهْلِهَا فَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِاَوْلٰى رَجُلٍ ذَكَرٍ.

او ښځې ته يوه حصّه حاصليږي.

۴۴۳: مونږ ته موسي بن اسماعيل بيان اوکه وې. مونږ ته وهيب. مونږ ته عبد الله بن طاؤس. هغه د خپل پلار نه. هغه د ابن عباسؓ نه. هغه د حضور صلي الله عليه وسلم نه حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. ذوي الفروض يعني حصّه دارو ته د هغوي مقرره حصّه ورکړئې. کوم مال چه حصې ورکولو نه هغوي ته پاتې شي. هغه د قريب رشته دار (يعني عصبه) دې.

باب ۲۱۰: مِيرَاثُ الْبَنَاتِ.

باب ۲۱۰: د لونړو د ترکې (ميراثې) بيان.

۴۴۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ مَرِضْتُ بِمَكَّةَ مَرَضًا فَاَشْفَيْتُ مِنْهُ عَلَى الْمَوْتِ فَاَتَانِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ لِيْ مَالًا كَثِيْرًا وَّ لَيْسَ يَرِثُنِيْ اِلَّا ابْنَتِيْ اَفَاَ تَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِيْ قَالَ لَا قَالَ قُلْتُ فَالشَّطْرُ قَالَ لَا قُلْتُ الثُّلُثُ قَالَ الثُّلُثُ كَبِيْرٌ اِنَّكَ اِنْ تَرَكْتَ وَلَدَكَ اَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَتْرُكَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ فَاِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً اِلَّا اُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتَّى اللُّقْمَةَ تَرْفَعُهَا

۴۴۴: مونږ ته عبد الله بن زبير حميدي بيان اوکه. وې. مونږ ته سفيان بن عينيه. وې. مونږ ته زهري. وې. مونږ ته عامر بن سعد بن ابي وقاص خبر راکه. هغه د خپل پلار نه هغه اووې. زهٔ مکه کښې (حجة الوداع) کښې داسې ناروغه شوم. چه مرګ ته قريب شوم. حضور صلي الله عليه وسلم خما تپوس د پاره تشريف راؤړلو. ما عرض اوکه يا رسول الله زهٔ ډير مالدار يم. يوې لور (اُم حکم کبريٰ) نه سِوا بل څوک وارث م نشته آيا زهٔ خپل دوتهائي (۲/۳ حصّه) مال خيرات کړم. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' نه. ما اووې' بيا. نيم مال. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل نه. ما اووې' بيا دريمه حصّه (تهائي ۱/۳) مال. حضور صلي الله عليه وسلم او فرمائيل. بس تهائي (۱/۳ حصّه) مال ډير دې. خبره دا ده' کهٔ ته خپل اولاد مالدار پريږدې' نو هغه دينه بهتره ده' چه ته هغوي محتاج پريږدې' چه د خلقو مخې ته لاس غزوي (سوال کوي ګرځي) او تا ته به هر خرچ باند ثواب حاصليږي

اِلٰى فِيْ امْرَاَتِكَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُخَلَّفُ عَنْ هِجْرَتِيْ فَقَالَ لَنْ تُخَلَّفَ بَعْدِيْ فَتَعْمَلَ عَمَلًا تُرِيْدُ بِهٖ وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا ازْدَدْتَ بِهٖ رِفْعَةً وَّ دَرَجَةً لَعَلَّكَ اَنْ تُخَلَّفَ بَعْدِيْ حَتّٰى يَنْتَفِعَ بِكَ اَقْوَامٌ وَ يُضَرَّبِكَ اٰخَرُوْنَ لٰكِنِ الْبَآئِسَ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ يَرْثِيْ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ مَّاتَ بِمَكَّةَ قَالَ سُفْيَانُ وَ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ عَامِرِ ابْنِ لُؤَيٍّ.

(چه د الله د رضامندئ د پاره ئې او کړې) تر دې چه هغې نوړئې باندې هم۔ چه د خپلې ښځې خُلې ته ئې اوچته کړې ما عرض او که، یا رسول الله. آیا خما هجرت به خراب شي. زۀ به ورستو پاتې شم. حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل. که ته بالفرض خما نه پس هم (مکه کښې) پاتې شې (نو څۀ به وي) کوم عمل چه ته د الله د رضامندئ د پاره او کړې. په هغې به ړتاته ثواب حاصليږي) ستا درجه به اوچتيږي. ستا شان به لوئې کيږي. او شايد چه ته خما نه پس ژوندې پاتې شې (ستا عُمر اوږدوي) تانه څه خلق فائده اوچته کړي، څه درنه نقصان بياموسي (نو تۀ بنه پاتې شوې) خو سعد بن باندې افسوس دې. حضور صلّي الله عليه وسلّم په سعد بن خوله افسوس او که. ځکه چه هغه مکه کښې مړ شوې وو (حالانکه هلته نه ئې هجرت کړې وو) سُفيان بن عينيه اووې، چه سعد بن خوله ذ بني عامر بن لُؤي ذ قبيلې نه يو سړې وو.

**۴۴۵**: حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا اَبُو النَّضْرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ شَيْبَانُ عَنْ اَشْعَثَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ اَتَانَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ بِالْيَمَنِ مُعَلِّمًا وَّ اَمِيْرًا فَسَاَلْنَاهُ عَنْ رَّجُلٍ تُوُفِّيَ وَ تَرَكَ ابْنَتَهٗ وَ اُخْتَهٗ فَاَعْطَى الْاِبْنَةَ النِّصْفَ وَالْاُخْتَ النِّصْفَ.

**۴۴۵**: ماته محمود بن غيلان بيان او که. وې. مونږ ته ابو النصر. وې. مونږ ته ابو معاويه شيبان. هغه د اشعث بن ابي الشعثاء نه. هغه ذ اسود بن يزيد نه. هغه اووې. معاذ بن جبلؓ خلقو ته تعليم ورکولو د پاره يا حاکم جوړيدو سره يمن کښې مونږ ته راغې. مونږ هغه نه د دې مسئلې تپوس او که. يو سړې مړشو. هغه يوه لور او يوه خور پريښودۀ، نو څۀ حُکم دې هغۀ نيم مال لورته او نيم مال خورته ورکړلو.

**باب ۲۱۱**: مِيْرَاثُ ابْنِ الْاِبْنِ اِذَا لَمْ يَكُنِ ابْنٌ. وَ قَالَ زَيْدٌ

**باب ۲۱۱**: د نمسي د ميراث بيان. هر کله چه د مړي خوئې نه وي. زيد بن ثابتؓ اووې. د خامنو اولاد

وَلَدُ الْاَبْنَآءِ بِمَنْزِلَةِ الْوَلَدِ اِذَا لَمْ يَكُنْ دُوْنَهُمْ وَلَدٌ ذَكَرُهُمْ كَذَكَرِهِمْ وَاُنْثَاهُمْ كَاُنْثَاهُمْ يَرِثُوْنَ كَمَا يَرِثُوْنَ وَيَحْجُبُوْنَ كَمَا يَحْجُبُوْنَ وَلَا يَرِثُ وَلَدُ الْاِبْنِ مَعَ الْاِبْنِ.

په مثل دَ خپل اولاد دے. هر کله چه دَ مړي (صلبي) ځوئے نهٔ وي، نو دَ ځامنو ځامن دَ خپلو ځامنو په شان او دَ ځامنو لونړه دَ خپلو لونړو په شان دي. دَ ځامنو اولاد دَ ځامنو په شان وارث دے. او نور وارثان محروم کوي. البته که ځوئے موجود وي، نو دَ ځوئے اولاد ته به هيڅ نه ملاويږي.

۶۳۴۶: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحِقُوا الْفَرَائِضَ بِاَهْلِهَا فَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِاَوْلٰى رَجُلٍ ذَكَرٍ.

۶۳۴۶: مونږ ته مسلم بن ابراهيم بيان اوکه. وے مونږ ته وهيب. وے. مونږ ته عبد اللّٰه بن طاؤس. هغه دَ خپل پلار نه هغه دَ ابن عباسؓ نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. اول دَ ذوي الفرض حصے ورکړئے. بيا چه څه بچ شي. هغه به هغے چاته ورکيږي، چه دَ نارينه مړي ډير نزدے رشته دار وي.

## بَاب ۲۱۲: مِيْرَاثِ ابْنَةِ ابْنٍ مَعَ ابْنَةٍ.

## بـاب ۲۱۲: کـه لـور سـره نـمسئ هم وي.

۶۳۴۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ قَيْسٍ سَمِعْتُ هُزَيْلَ بْنَ شُرَحْبِيْلَ قَالَ سُئِلَ اَبُوْ مُوْسٰى عَنِ ابْنَةٍ وَّابْنَةِ ابْنٍ وَّ اُخْتٍ فَقَالَ لِلْاِبْنَةِ النِّصْفُ وَ لِلْاُخْتِ النِّصْفُ وَاْتِ ابْنَ مَسْعُوْدٍ فَسَيُتَابِعُنِيْ فَسُئِلَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَّ اُخْبِرَ بِقَوْلِ اَبِيْ مُوْسٰى فَقَالَ لَقَدْ ضَلَلْتُ اِذًا وَّ مَا اَنَا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ

۶۳۴۷: مونږ ته آدم بن ابي اياس بيان اوکه. وے. مونږ ته شعبه. وے. مونږ ته ابوقيس (عبد الرحمٰن بن شروان) وے. ما دَ هزيل بن شرحبيل نه واوريدل. هغه وئيل. ابو موسٰي اشعري نه دا مسئله اوپوښتلے شوه. که يو سړے مړ شي او يوه لور يوه نمسئے اويوه خور پريږدي نو هغه اووے، لور ته به نيمه حصه حاصليږي نيمه به خور ته (نمسئے به محرومه وي) ليکن تهٔ داسے اوکه، چه عبد اللّٰه بن مسعودؓ له ورشه. هغه نه تپوس اوکه. شايد هغه هم داسے اووائي. هغه سړے ورغے. عبد اللّٰه بن مسعودؓ نه ئے تپوس اوکه. او ابو موسٰي چه کومه فتويٰ ورکړے وه، هغه ئے هم هغه ته بيان کړه. نو هغه اووے. که زهٔ داسے فتويٰ ورکړم نو ګمراه به شم.

اَقْضِيْ فِيْهَا بِمَا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْاِبْنَةِ النِّصْفُ وَ لِاِبْنَتِهِ ابْنِ السُّدُسُ تَكْمِلَةَ الثُّلُثَيْنِ وَ مَا بَقِيَ فَلِلْاُخْتِ فَأَتَيْنَا اَبَا مُوْسٰى فَاَخْبَرْنَاهُ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ فَقَالَ لَا تَسْئَلُوْنِيْ مَا دَامَ هٰذَا الْحِبْرُ فِيْكُمْ.

او دَ صحيح لارے نه به بے لارے شم. زۀ خو به دے مسئله كښې هغه حكم وركوم، كوم چه حضور صلّي الله عليه وسلّم حكم كړے وو. يعني لور ته نيمه حصّه او نمسئې ته شپږمه حصه. چه دوه (۲) تهائے پوره شي، مابقي دَ خور. تپوس كونكے وائي. بيا مونږ. عبد الله بن مسعودؓ نه ابو موسٰي ته واپس راغلو. هغه ته مو بيان اوكه نو هغه اووے. څو پورے چه دا عالم (يعني عبد الله بن مسعودؓ) تاسو كښې موجود دے، نو مانه څه مسئله مه پوښتئے.

## بَاب ۲۱۳: مِيْرَاثِ الْجَدِّ مَعَ الْاَبِ وَالْاِخْوَةِ وَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّابْنُ عَبَّاسٍؓ وَّابْنُ الزُّبَيْرِ الْجَدُّ اَبٌ قَرَاَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ يَا بَنِيْ اٰدَمَ وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَائِيْ اِبْرَاهِيْمَ وَ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ وَ لَمْ يُذْكَرْ اَنَّ اَحَدًا خَالَفَ اَبَا بَكْرٍ فِيْ زَمَانِهٖ وَ اَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَوَافِرُوْنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ يَرِثُنِيْ ابْنُ ابْنِيْ دُوْنَ اِخْوَتِيْ وَ لَا اَرِثُ اَنَا ابْنَ ابْنِيْ وَ يُذْكَرُ عَنْ عُمَرَؓ وَ عَلِيٍّؓ وَّابْنِ مَسْعُوْدٍؓ وَ زَيْدٍ اَقَاوِيْلُ مُخْتَلِفَةٌ.

باب ۲۱۳: دَ پلار، يا ورونړو موجودګئ كښې دَ نيكه (ورور) دَ ميراث بيان. او ابوبكرؓ او ابن عبّاسؓ او ابن زبيرؓ اووے، نيكۀ (دادا) دَ پلار په شان دے (يعني هر كله چه پلار نوي) او ابن عباسؓ دا آيت (دَ سورۀ اعراف) اولوست يا بني آدم. او (سُورۀ يُوسف) دا آيت واتبعت ملة آبائي ابراهيم و اسحاق و يعقوب. او ابوبكر صديقؓ چه نيكه (دادا) دَ پلار په شان اوګرځولو نو هيڅ صحابيؓ ئے مخالفت اونۀ كه. حالانكه هغه وخت دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ډير صحابه موجود وو (ګويا دَ ټولو اجماع سكوتي شوه) او ابن عباسؓ اووے. نمسے خو ځما وارث شو. او ورور دے محروم وي. او زۀ دے دَ خپل نمسي وارث نۀ يم. دا ځنګه كيدے شي. او حضرت عليؓ. حضرت عمرؓ. ابن مسعودؓ او زيد بن ثابتؓ نه دے باب كښې مختلف اقوال منقول دي.

۴۴۸: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى

۴۴۸: مونږ ته سُليمان بن حرب بيان اوكه. وے مونږ ته وهيب بن خالد. هغه دَ عبد اللّٰه بن عباسؓ نه هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْحِقُوا الْفَرَائِضَ بِاَهْلِهَا فَمَا بَقِيَ فَلِاَوْلٰى رَجُلٍ ذَكَرٍ.

وسلم او فرمائيل: ذوي الفروض ته د هغوي حصے ورکړے. بيا کوم مال چه بچ شي. هغه به هغے رشته دار سړي ته ورکيږي چه مړي سره ډيره نزدے وشبته لري.

۴۴۹: حَدَّثَنَا اَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اَمَّا الَّذِيْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِّنْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ خَلِيْلًا لَاتَّخَذْتُهُ وَلٰكِنْ خُلَّةُ الْاِسْلَامِ اَفْضَلُ اَوْ قَالَ خَيْرٌ فَاِنَّهُ اَنْزَلَهُ اَبًا اَوْ قَالَ قَضَاهُ اَبًا.

۴۴۹: موښر ته ابو معمر بيان اوکه. وے موښر ته عبد الوارث بن سعيد. وے. موښر ايوب سختياني ازوے هغه د عکرمه نه، هغه د ابن عباسؓ نه. هغه اووے. د کوم سړي حق کښے چه حضور صلي الله عليه وسلم دا وفرمائيل که ما د دے امت خلقو کښ څوک خاني دوست جوړولے، نو هغه به م جوړ کړے وو ليکن د اسلام دوستي، دا افضله ده يا بهتره ده. هغه (يعني ابوبکر صديقؓ) خو نيکه (دادا) د پلار په ځائے کيدلو. يا داسے ئے اووے د نيکه (دادا) په نسبت ئے دا حکم ورکړلو، چه هغه د پلار په شان دے.

## باب ۲۱۴: مِيْرَاثُ الزَّوْجِ مَعَ الْوَلَدِ وَغَيْرِهٖ.

## باب ۲۱۴: اولاد سره به خاوند ته څه حاصليږي.

۴۵۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ وَرْقَاءَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَانَ الْمَالُ لِلْوَلَدِ وَكَانَتِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ فَنَسَخَ اللّٰهُ مِنْ ذٰلِكَ مَا اَحَبَّ فَجَعَلَ لِلذَّكَرِ مِثْلَ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ وَجَعَلَ لِلْاَبَوَيْنِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسَ وَجَعَلَ لِلْمَرْاَةِ الثُّمُنَ وَالرُّبُعَ وَلِلزَّوْجِ الشَّطْرَ وَالرُّبُعَ.

۴۵۰: موښر ته محمد بن يوسف فريابي بيان اوکه، هغه د ورقاء يشکري نه، هغه د ابن ابي نجيح نه هغه د عطاء ابن ابي رباح نه، هغه د ابن عباسؓ نه. هغه اووے (د اسلام شروع زمانه کښ) د مړي مال به ټول د هغه اولاد ته ورکيدے شو. او مور پلار د پاره به چه مړي څه وصيت اوکه، هغه به ورکيدے شو. بيا الله تعالي چه د هغے نه څومره غوښتل، هغه ئے منسوخ کړل. او نارينه ته ئے د زنانه دوچند حصّه ورکړله. او مور پلار کښ هر يو ته شپږمه حصّه او ښځے ته اتمه يا څلورمه حصّه، او خاوند ته نيمه حصّه (که د مړي اولاد نهٔ وي) يا څلورمه حصّه (که د مړي اولاد وي).

باب ۲۱۵ : مِيرَاثُ الْمَرْاَةِ وَالزَّوْجِ مَعَ الْوَلَدِ وَغَيْرِهِ.

۶۴۵۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ قَالَ قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ جَنِيْنِ امْرَاَةٍ مِّنْ لِحْيَانَ سَقَطَ مَيِّتًا بِغُرَّةٍ عَبْدٍ اَوْ اَمَةٍ ثُمَّ اِنَّ الْمَرْاَةَ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا بِالْغُرَّةِ تُوُفِّيَتْ فَقَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَنَّ مِيْرَاثَهَا لِبَنِيْهَا وَ زَوْجِهَا وَ اَنَّ الْعَقْلَ عَلٰى عَصَبَتِهَا.

باب ۲۱۵ : ښځې او خاوند ته به اولاد وغيره سره څه حاصليږي.

۶۴۵۱ : مونږ ته قتيبه بن سعيدٔ بيان اوکه. وې مونږ ته امام ليث بن محمد. هغه ذ ابن شهابٌ نه. هغه د سعيد بن مسيب نه. هغه د ابو هريرهؓ نه. هغه اووې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ بني لحيان د يوې ښځې (مليکه بنتِ عويم يا عوير) دا فيصله اوکړه. چه ذ هغې د خيټې بچې مړ شوې غورځولې شوې وو. چه وژونکې ښځه دِ يوه برده (غلام يا وينزه) ورکړي. بيا داسې اوشو کومې ښځې ته چه ذ برده ورکولو حکم شوې وو (يعني غورځونکې ته) هغه مړه شوه نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغې ترکه ذ هغې خامنو او خاندان ته ورکړله، او خاوند والو ته ئې ورنهٔ کړله. او د ديت ادا کولو حکم ئې ذ هغې خاندان والو ته ورکړې وو.

باب ۲۱۶ : مِيْرَاثِ الْاَخَوَاتِ مَعَ الْبَنَاتِ عَصَبَةً.

۶۴۵۲ : حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ قَضٰى فِيْنَا مَعَاذُ بْنُ جَبَلٍ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النِّصْفُ لِلْاِبْنَةِ وَالنِّصْفَ لِلْاُخْتِ ثُمَّ قَالَ سُلَيْمَانُ قَضٰى فِيْنَا وَ لَمْ يَذْكُرْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۱۶ : لُونړو سره خويندې عصبه شي.

۶۴۵۲ : مونږ ته بشر بن خالد بيان اوکه. وې مونږ ته محمد بن جعفر. هغه ذ شعبه بن حجاج نه. هغه ذ سُليمان. اعمش نه. هغه ذ ابراهيم نخعي نه. هغه ذ اسود بن يزيد نه. هغه اووې. ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښ معاذ بن جبلؓ مونږ يمن والو ته حکم کړې وو، چه نيمه ترکه (ميراث) ذ لور او ذ خور ده (هر کله چه ذ مړي دا دوه (۲) وارثان وي) بيا سُليمان چه دا حديث ئې روايت کړه، دومره اووې. معاذ مونږ يمن والو ته دا حکم اوکه، دائې اونه وې. چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښ.

۴۵۳: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍؓ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ قَيْسٍ عَنْ هُذَيْلٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَاَقْضِيَنَّ فِيْهَا بِقَضَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْاِبْنَةِ النِّصْفُ وَ لِاِبْنَةِ الْاِبْنِ السُّدُسُ وَ مَا بَقِيَ فَلِلْاُخْتِ.

۴۵۳: مونږ ته عمرو بن عباسؓ بیان اوکړو ورے مونږ ته عبد الرحمٰن بن مهدي. ورے. مونږ ته سفیان ثوري. هغه ذَ ابو قیس (عبد الرحمٰن بن غزوان) نه هغه د هزیل بن شرجیل نه. هغه اوورے. عبد الرحمٰن بن سعد (د ابو موسیٰ اشعري فتویٰ آوریدو سره) دا اوورے. زهٔ خو به دے مسئله کښې هغه حکم ورکوم، چه ما ذَ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه آوریدلے دي. لورته به نیمه حصّه ورکیږي او نمسئے ته شپږمه حصّه. او مابقي خور ته (نو خور عصبه شوه).

## باب ۲۱۷: مِيْرَاثُ الْاَخَوَاتِ وَالْاِخْوَةِ.

## باب ۲۱۷: وروڼړو خویندو ته به څه حاصلیږي.

۴۵۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُثْمَانَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا قَالَ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا مَرِيْضٌ فَدَعَا بِوَضُوْءٍ فَتَوَضَّاَ ثُمَّ نَضَحَ عَلَيَّ مِنْ وَضُوْئِهٖ فَاَفَقْتُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّمَا لِيْ اَخَوَاتٌ فَنَزَلَتْ اٰيَةُ الْفَرَائِضِ.

۴۵۴: مونږ ته عبد اللّٰه بن عثمان بیان اوکه. ورے. مونږ ته عبد اللّٰه بن مبارک خبر راکړو. ورے مونږ ته شعبه بن حجاج هغه ذَ محمد بن منکدر نه. هغه اوورے. ما ذَ جابر بن عبد اللّٰه انصاريؓ نه واوریدل. هغه اوورے حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ځما تپوس له راغلو. ذَ اودس اوبه ئے اوغوښتلے. اودس ئے اوکه. بیا ذَ اودس اوبه ئے په ما اونوستلے. زهٔ بیهوشه ووم. اوبه اچولو سره زهٔ هوش کښې راغلم. ما عرض اوکه، یا رسُول اللّٰه. ځما څو خویندے دي نو هغه وخت ذَ فرائض آیت نازل شو.

## باب ۲۱۸: يَسْتَفْتُوْنَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِى الْكَلٰلَةِ اِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَهٗ اُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ وَ هُوَ يَرِثُهَا اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا وَلَدٌ فَاِنْ كَانَتَ

## باب ۲۱۸: ذَ اللّٰه تعالیٰ سُورهٔ نساء کښې دا فرمائیل خلق تانه تپوس کوي. نو ورته اووایه اللّٰه تعالیٰ تاسو ته ذَ کلاله باره کښې دا حکم درکوي. که یَو سړے مړ شي. او ذَ هغه اولاد (یعني ځوئے) نه وي یوه خور، ئے وي (سکه یا علاتي) نو هغې ته به نیمه ترکه (میراثه) حاصلیږي دغسے دا سړے به ذَ خپلے خور وارث وي.

اثْـنَتَيْـنِ فَـلَهُـمَـا الثُّـلُثٰـنِ مِـمَّـا تَـرَكَ وَ اِنْ كَـانُـوْا اِخْـوَةً رِّجَـالًا وَّ نِـسَـآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَـظِّ الْاُنْثَيَيْـنِ يُبَيِّـنُ الـلّٰـهُ لَـكُمْ اَنْ تَـضِـلُّـوْا وَاللّٰـهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ○

که دَ خورنے څوک خوئے نهٔ وي. بیا که دوه خویندے وي، نو هغوي به دوه تهائي ترکه بیاموميي. که وروڼړه خويندے ګډوډ وي، نو نارينه ته به دوه حصے او زنانه ته به يوه حصّه حاصليږي. اللّٰه تعالىٰ دا حکم تاسو ته ځکه بيانوي، چه چرته تاسو ګمراه نه شئے. او اللّٰه تعالىٰ په هر څه پوه دے.

۴۵۵: حَـدَّثَـنَـا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰي عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَـرَآءِ قَـالَ اٰخِرُ اٰيَةٍ نَزَلَتْ خَاتِمَةُ سُـوْرَةِ الـنِّـسَـآءِ يَسْتَفْتُوْنَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ.

۴۵۵: مونږ ته عبيد اللّٰه بن موسىٰ بيان او که. هغه دَ اسرائيل نه. هغه دَ ابو اسحاق نه، هغه دَ براء بن عازبؓ نه. هغه اووے، اخير آيت، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم باندے نازل شو، هغه دَ سُورهٔ نساء اخير کښې دے يستفتونک قل اللّٰه يفتيکم في الکلاله.

## بـاب ۲۱۹: اِبْـنَـيْ عَـمٍّ اَحَـدُهُـمَـا اَخٌ لِّلْاُمِّ وَالْاٰخَـرُ زَوْجٌ. وَ قَـالَ عَـلِـيٌّ لِـلـزَّوْجِ الـنِّـصْفُ وَ لِلْاَخِ مِـنَ الْاُمِّ السُّـدُسُ وَمَـا بَـقِـيَ بَيْـنَهُـمَـا نِصْفَانِ.

## باب ۲۱۹: که يوه ښځه مړه شي. او خپل دوه دَ تره ځامن پريږدي. يو ځو هغے کښې دَ هغے اخيافي ورور وي، دوئم دَ هغے خاوند وي. او حضرت عليؓ اووے، خاوند ته به نيمه حصّه ورکيږي. او اخيافي ورور ته شپږمه حصّه (بموجب دَ فرض) بياکوم مال چه بچ شي، يعني يو ثلث. هغه به دواړو کښې برابر برابر تقسيميږي (ځکه چه دواړه عصبه دي).

۴۵۶: حَـدَّثَـنَـا مَـحْـمُـوْدٌ اَخْبَـرَنَـا عُبَيْـدُ الـلّٰـهِ عَنْ اِسْـرَآئِيْلَ عَـنْ اَبِـيْ حُـصَيْـنٍ عَـنْ اَبِـيْ صَـالِـحٍ عَـنْ اَبِـيْ هُـرَيْـرَةَؓ قَالَ قَـالَ رَسُـوْلُ الـلّٰـهِ صَـلَّـي الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ اَنَـا اَوْلٰـي بِـالْـمُـؤْمِـنِيْـنَ مِـنْ اَنْـفُسِهِـمْ فَـمَنْ مَّـاتَ وَ تَـرَكَ مَـالًا فَـمَـالُـهٗ لِمَوَالِـيَ

۴۵۶: مونږ ته محمود بن غيلان بيان او که. وے. مونږ عبيد اللّٰه بن موسىٰ خبر کړو. هغه دَ اسرائيل نه. هغه دَ ابو حصين نه، هغه دَ ابو صالح نه، هغه دَ ابو هريرهؓ نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. زهٔ په مؤمنانو دَ هغوي دَ ذات نه زيات حق لرم. بيا کوم مؤمن چه مړ شي. او مال او اسباب پريږدي هغه به دَ هغه عصبه وارثانو ته ورکيږي. او کوم سړے چه بوج. قرض او اهل و عيال پريږدي (چه دَ هغه خبر

الْعَصَبَةِ وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا اَوْ ضِيَاعًا فَاَنَا وَلِيُّهُ فَلِاُدْعٰى لَهُ.

کیرنه وي) نو زهٔ د هغه ولي يم. هغوئ د پاره غوښتنه دې ماته او کړے شي.

۴۵۷: حَدَّثَنَا اُمَيَّةُ بْنُ بِسْطَامٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْحِقُوا الْفَرَائِضَ بِاَهْلِهَا فَمَا تَرَكَتِ الْفَرَائِضُ فَلِاَوْلٰى رَجُلٍ ذَكَرٍ.

۴۵۷: مونږ ته اُميه بن بسطام بيان او که. وے مونږ ته يزيد بن زريع. هغه د روح بن قاسم نه، هغه د عبد اللّه بن طاؤس نه. هغه د خپل پلار نه. هغه د ابن عباسؓ نه. هغه د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلي اللّه عليه وسلّم او فرمائيل. د ذوي الفروض حصے د مخکښې نه ور کړئے. بيا کوم مال چه بچ شي. هغه د هغے رشتے او سړد حق دے، چه مړي ته د ټولو نه زيات نزدے وي.

بـاب ۲۲۰: ذَوِي الْاَرْحَامِ.

باب ۲۲۰: د ذوي الارحام (رشته دارو) بيان کښيے.

۴۵۸: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ اُسَامَةَ حَدَّثَكُمْ اِدْرِيْسُ حَدَّثَنَا طَلْحَةُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَّ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ قَالَ كَانَ الْمُهَاجِرُوْنَ حِيْنَ قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ يَرِثُ الْاَنْصَارِيُّ الْمُهَاجِرِيَّ دُوْنَ ذَوِيْ رَحِمِهٖ لِلْاُخُوَّةِ الَّتِيْ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ جَعَلْنَا مَوَالِيَ قَالَ نَسَخَتْهَا وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ.

۴۵۸: ماته اسحاق بن ابراهيم بيان او که. وے ما ابو اسامه ته او وے. تاسو ته ادريس بن يزيد دا حديث بيان کړو. وے. مونږ ته طلحه بن مصرف بيان که، هغه د سعيد بن جبير نه. هغه د ابن عباسؓ نه، هغه اووے دا آيت چه نازل شو: والذين عقدت ايمانکم. دا د اسلام د ابتداء دے. هر کله چه مهاجرين مدينے ته راغلل (او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو يو مهاجر د يو يو انصاري ورور جوړ کړلو) نو د انصاري وارث به هغه مهاجر وو. د هغه به نور رشته دار نهٔ وو. د دے بهائي چارے (يعني وروررولی) په وجه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ کښې جوړه کړے وه. هغے نه پس چه دا آيت نازل شو، ولکلّ جعلنا موالي ما ترک الولدان والاقربون. نو دا آيت والذين عقدت ايمانکم: منسوخ شولو.

بـاب ۲۲۱: مِيْرَاثُ

باب ۲۲۱: لعان کونکي ښځه د خپل بچي وارثه

الْمُلَاعِنَةِ.

٤٥٩: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَجُلًا لَا عَنَ امْرَاَتَهُ فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَانْتَفٰى مِنْ وَّلَدِهَا فَفَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا وَ اَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْاَةِ.

وي (ليكن د هغې خاوند به د هغې د مال وارث نوي.

٤٥٩: مونږ ته يحيي بن قزعه بيان اوكه. وې مونږ ته امام مالک. هغه د نافع نه. هغه د عبد الله بن عمرؓ نه. چه يو سړي (عويمر) خپلې ښځې (خوله بنت قيس) سره د حضور صلي الله عليه وسلم زمانه کښې لعان اوکه' او د هغې بچي ته ئې اووې' چه دا خما بچې نه دې. حضور صلي الله عليه وسلم دواړو کښې جدائي اوکړه. او بچې ئې ښځې ته ورکه.

بَابٌ ٢٢٢: اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ حُرَّةً كَانَتْ اَوْ اَمَةً.

باب ٢٢٢: بچې به د هغې چاوي' د چا د ښځې يا وينزې نه چه هغه پيداوي (او زنا کونکي بانديې به کانړي پريوځي).

٤٦٠: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ عَهِدَ اِلٰى اَخِيْهِ سَعْدٍ اَنَّ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ مِنِّيْ فَاَقْبِضْهُ اِلَيْكَ فَلَمَّا كَانَ عَامُ الْفَتْحِ اَخَذَهُ سَعْدٌ فَقَالَ ابْنُ اَخِيْ عَهِدَ اِلَيَّ فِيْهِ فَقَامَ عَبْدُ ابْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ اَخِيْ وَابْنُ وَلِيْدَةِ اَبِيْ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَتَسَاوَقَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدٌ يَّا رَسُوْلَ

٤٦٠: مونږ ته عبد الله بن يُوسف تنيسي بيان اوکه. وې. مونږ ته امام مالک هغه د ابن شهاب نه' هغه د عروه بن زبيرؓ نه' هغه د بي بي عائشيؓ نه. هغې اووې. عتبه بن ابي وقاصؓ (چه مړ کيده' نو هغه) خپل ورور سعد بن ابي وقاصؓ ته وصيّت اوکه. چه د زمعه بن قيس وينزه (نوم نامعلومه) خوزئې خما د نطفې نه دې' نو هغه خپله قبضه کښې که. په کوم کال چه مکه فتح شوه. نو سعد هغه هلک (عبد الرحمٰن) واخست وې' دا خما وراره دې. خما ورور د دهٔ د اخستو ماته وصيّت کړې وو. دې حال ليدلو سره عبد بن زمعه اُودريد وئيلې (واه واه) دا خو خما ورور دې. خما د پلار وينزې نه پيدا دې دواړو کښې جګړه شوه. نو حضور صلي الله عليه وسلم له راغلل. سعد اووې' يا رسول الله. دا خما وراره دې. خما ورور د هغه باره کښې ماته وصيت کړې دې. عبد بن زمعه اووې. دا خما ورور دې. خما د پلار د

اللّٰهِ ابْنُ اَخِيْ قَدْ كَانَ عَهِدَ اِلَيَّ فِيْهِ فَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ اَخِيْ وَابْنُ وَلِيْدَةِ اَبِيْ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ ثُمَّ قَالَ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ احْتَجِبِيْ مِنْهُ لِمَا رَاٰى مِنْ شَبَهِهٖ بِعُتْبَةَ فَمَا رَاٰهَا حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ.

وينزے نه پيدا شويدے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. اے عبد بن زمعه. دا بچے ته واخله. بچے دَ هغه دے دَ چا دَ ښځے يا وينزے دَ خيتے نه چه پيدا شي. او په زنا كونكي كانړي پريوتل دي (سنګسار كول دي) باوجود دَ دے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم بي بي سوده بنت زمعه (چه دَ هغے هلک خور كيده) ته اوفرمائيل، چه ته دَ دے هلک نه پرده كوه. ځكه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے هلک شكل و صورت دَ عتبه بن ابي وقاصؓ په شان اوليدو. غرض بي بي سوده (دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم تبر مُباركه) هغے هلک مركه پورے اُونه ليده.

۴٦١: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْوَلَدُ لِصَاحِبِ الْفِرَاشِ.

۴٦١: مونږ ته مسدد بن مسرهد بيان اوكه. وے. مونږ ته يحيٰي بن سعيد قطان، هغه دَ شعبه نه، هغه دَ محمد بن زياد نه، هغه دَ ابو هريرهؓ نه واوريدل. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. بچے دَ هغه دے، دَ چا ښځے يا وينزے نه چه هغه پيدا شوے وي.

بَابُ ۲۲۳: اَلْوَلَاءُ لِمَنْ اَعْتَقَ مِيْرَاثُ اللَّقِيْطِ وَقَالَ عُمَرُ اللَّقِيْطُ حُرٌّ.

باب ۲۲۳: دَ غلام وينزے تركه (ميراثه) به هغه څوک اخلي. څوک چه ئے آزاد كړي او كوم هلک چه لار كښې پروت بيامونده شي. دَ هغه وارث به څوک وي. دَ دے بيان. حضرت عمرؓ اووے. لار كښې چه كوم هلک پروت بيامونده شي (د هغه مور پلار معلوم نه وي. نو هغه به آزادوي)

☆☆☆☆☆

۴٦۲: حَدَّثَنَا حَفْصُ ابْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ

۴٦۲: مونږ ته حفص بن عمر حوضي بيان اوكه. وے. مونږ ته حجاج بن حجاج. هغه دَ حكم بن عتيبه نه. هغه دَ ابراهيم نخعي نه. هغه دَ اسود بن يزيد نه. هغه دَ بي

الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ ؓ قَالَتِ اشْتَرَيْتُ بَرِيْرَةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرِيْهَا فَاِنَّ الْوَلَاءَ لِمَنْ اَعْتَقَ وَ اُهْدِيَ لَهَا شَاةٌ فَقَالَ هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَ لَنَا هَدِيَّةٌ قَالَ الْحَكَمُ وَ كَانَ زَوْجُهَا حُرًّا وَّ قَوْلُ الْحَكَمِ مُرْسَلٌ وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ؓ رَاَيْتُهُ عَبْدًا.

بي عائشې ؓ نه' هغې اووې . ما بريره خريد كول اوغوښتل نو حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل' ته بريره خريد كړه. ولاء خو به هغه شوك اخلي' چه آزاده ئے كړي. او دغسے اوشو. بريره ته دَ خيرات يوه چيلئے راغله. حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. دا چيلئے بريره ته خيرات كښ حاصله شوے ده. او مونږ دَ پاره (دَ دې طرفنه) تحفه ده. حكم بن عتيبه (دې سند سره) اووې . دَ بريره خاوند مغيث آزاد وو. امام بخاريؒ اووې . دَ حكم دا قول مرسل دے. او ابن عباس وائي. ما هغه خپلو سترګو سره ليدلے وو. هغه غلام وو.

۶۲۳ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

۶۲۳ : مونږ ته اسماعيل بن ابي اويس بيان اوكه. وے . ماته امام مالکؒ. هغه دَ نافع نه. هغه دَ ابن عمر ؓ نه' هغه دَ حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم نه. حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائيل. ولاء دَ هغې چا حق دے' شوک ئے چه آزاد كړي.

## باب ۲۲۴ : مِيْرَاثِ السَّائِبَةِ.

## باب ۲۲۴ : دَ سائبه ميراث به چاته ورکيږي.

۶۲۴ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ ابْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ قَيْسٍ عَنْ هُزَيْلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَهْلَ الْاِسْلَامِ لَا يُسَيِّبُوْنَ وَ اِنَّ اَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوْا يُسَيِّبُوْنَ.

۶۲۴ : مونږ ته قبيصه بن عقبه بيان اوكه. وے . مونږ ته سُفيان ثوري. هغه دَ ابو قيس (عبد الرحمٰن بن شروان) نه هغه دَ هذيل نه. هغه دَ عبد اللّٰه بن مسعودؓ نه هغه اووے . مُسلمانان خو سائبه نه پريږدي. البته دَ جاهليّت مشرک خلقو به سائبه پريښودله.

۶۲۵ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عُوَانَةَ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ اَنَّ عَائِشَةَ ؓ اشْتَرَتْ بَرِيْرَةَ لِتُعْتِقَهَا وَاشْتَرَطَ اَهْلُهَا وَلَاءَهَا

۶۲۵ : مونږ ته موسٰي بن اسماعيل بيان اوكه. وے. مونږ ته ابو عوانه (وضاح يشكري)' هغه دَ منصور بن معتمر نه. هغه دَ ابراهيم نخعي نه. هغه دَ اسود بن يزيد نه. هغه اووے . بي بي عائشې ؓ بريره آزادولو دَ پاره خريد كول غوښتل. او دَ بريره مالكانو دا شرط اوكړلو.

فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنِّيْ اشْتَرَيْتُ بَرِيْرَةَ لِاُعْتِقَهَا وَ اِنَّ اَهْلَهَا يَشْتَرِطُوْنَ وَلَاءَهَا فَقَالَ اَعْتِقِيْهَا فَاِنَّمَا الْوَلَآءَ لِمَنْ اَعْتَقَ اَوْ قَالَ اَعْطِيَ الثَّمَنَ قَالَ فَاشْتَرَتُهَا فَاَعْتَقَتْهَا قَالَ وَ خُيِّرَتْ فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا وَ قَالَتْ لَوْ اُعْطِيْتُ كَذَا وَ كَذَا مَا كُنْتُ مَعَهُ قَالَ الْاَسْوَدُ وَ كَانَ زَوْجُهَا حُرًّا قَوْلُ الْاَسْوَدِ مُنْقَطِعٌ وَّ قَوْلُ ابْنِ عَبَّاسٍؓ رَاَيْتُهُ عَبْدًا اَصَحُّ.

چه ولاء به هغوي اخلي نو حضور صلّے اللّٰه عليه وسلم بي بي عائشےؓ ته اوفرمائيل' ته بريره خريد کړه. بيائے آزاد کړه ځکه چه ولاء خو به د هغے چاوي' چه آزاده ئے کړي' يا داسے ئے اوفرمائيل' چه قيمت ئے ورکړي. اسود وائي. بيا بي بي عائشے بريره خريد کړه. او آزاده ئے کړه. اسود وائي بريره ته اختيار حاصل شو هغے خاوند پريښودل اختيار کړل. او وئيلے. که ماته دومره دومره دولت هم حاصل شي. بيا هم زۀ هغه سره نه اوسم. اسود اووے. د هغے خاوند (مغيث) آزاد وو. امام بخاريؒ اووے. د اسود دا قول منقطع دے. او د ابن عباسؓ قول' چه ما هغه خپلو سترګو سره اوليدلو' او هغه غلام وو' زيات صحيح دي.

## باب ۲۲۵ : اِثْمِ مَنْ تَبَرَّاَ مِنْ مَوَالِيْهِ.

باب ۲۲۵ : کنوم غلام چه خپل اصل مالک پريږدي' نور مالکان جوړ کړي (هغوي سره موالات اوکړي).

۴۲۶ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ عَلِيٌّؓ مَا عِنْدَنَا كِتَابٌ نَقْرَاُهُ اِلَّا كِتَابُ اللّٰهِ غَيْرَ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ قَالَ فَاَخْرَجَهَا فَاِذَا فِيْهَا اَشْيَاءُ مِنَ الْجِرَاحَاتِ وَ اَسْنَانِ الْاِبِلِ قَالَ وَ فِيْهَا الْمَدِيْنَةُ حَرَمٌ مَا بَيْنَ عَيْرٍ اِلٰى ثَوْرٍ فَمَنْ اَحْدَثَ فِيْهَا حَدَثًا اَوْ اٰوٰى مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ صَرْفٌ

۴۲۶ : مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوکه. وے. مونږ ته جرير بن عبد الحميد. هغه د سُليمان بن اعمش نه هغه د ابراهيم تيمي نه. هغه د خپل پلار يزيد بن شريک بن طارق تيمي نه. هغه اووے. حضرت عليؓ اوفرمائيل. مونږ سره د اللّٰه د کتاب نه سِوا بل هيڅ کتاب نشته چه مونږ هغه لولو (پڑھتے ہیں) البته دا يوه پاڼره ده بيا هغه ئے راوښکله' نو هغے کښې څو خبرے ليکلے وے. د زخمونو احکام او د اوښانو نصاب راوي اووے' هغے کښې دا هم ليکلے وو' چه مدينه طيّبه د عير نه ثور پورے (دا' دواړه مدينه طيّبه کښې غرونه دي) حرم دے. څوک چه دے کښې نوے بدعت راوکاږي' يا بدعتي له ځائے ورکړي په هغه د اللّٰه. ملائکو او د ټولو

وَّ لَا عَدْلٌ وَّ مَنْ وَّ الٰى قَوْمًا بِغَيْرِ اِذْنِ مَوَالِيْهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ صَرْفٌ وَّ لَا عَدْلٌ وَّ ذِمَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَاحِدَةٌ يَّسْعٰى بِهَا اَدْنَاهُمْ فَمَنْ اَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ صَرْفٌ وَّ لَا عَدْلٌ.

خلقو لعنت وي. ذَ قيامت په ورځ به د هغه نه فرض قبول وي، نه نفل. او كوم غلام چه ذَ خپل اصل مالكانو د اجازت نه بغير نورو خلقو سره موالات (دوستي) اوكړي. نو په هغه دے ذَ اللّٰه تعالٰي ملائكو او ټولو خلقو لعنت وي. د قيامت په ورځ به نه د هغه فرض او نه نفل قبول وي. او ذَ مسلمانانو ذمّه يوه ده. ادنٰي مسلمان آمان وركولے شي. چا چه ذَ مسلمان عهد مات كه، په هغه دے ذَ اللّٰه ملائكو او د ټولو خلقو لعنت وي. ذَ قيامت په ورځ به نه ذَ هغه فرض قبول وي نه نفل.

۶۷ ۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَ عَنْ هِبَتِهٖ.

۶۷ ۴: مونږ ته ابو نعيم بيان اوكه. مونږ ته سفيان ثوري. هغه ذَ عبد اللّٰه بن دينار نه. هغه ذَ عبد اللّٰه بن عمرؓ نه. هغه اووے. حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ذَ ولاء ذَ بيع او هبه نه منع فرمائيلے ده.

## بـاب ۲۲۶: اِذَا اَسْلَمَ عَلٰى يَدَيْهِ وَ كَانَ الْحَسَنُ لَا يَرٰى لَهٗ وَلَايَةً وَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ وَ يُذْكَرُ عَنْ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ رَفَعَهٗ قَالَ هُوَ اَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَ مَمَاتِهٖ وَاخْتَلَفُوْا فِيْ صِحَّةِ هٰذَا الْخَبَرِ.

باب ۲۲۶: هر كله چه څوک سړے ذَ چا په لاس مسلمان شي، نو هغه ذَ هغه وارث وي، يا نه. او حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. ولاء به هغے چاته حاصليږي، چه آزاد ئے كړي (دا حديث موصولاً تير شوے دے) او تميم بن اوس داري نه. منقول دي. هغه مرفوعاً روايت كه، چه هغه ژوند او مرګ دواړو حالتونو كښ په هغه ذَ ټولو نه زيات حق لري. ليكن ذَ دے حديث صحت كښ اختلاف دے.

۶۸ ۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ اَنَّ عَائِشَةَ اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَرَادَتْ اَنْ تَشْتَرِيَ

۶۸ ۴: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوكه هغه ذَ امام مالكؒ نه، هغه ذَ نافع نه، هغه ذ عبد اللّٰه بن عمرؓ نه، چه اُم المؤمنين بي بي عائشےؓ يوه وينزه (بريره) خريد كولو سره آزادول غوښتل. ذَ هغے مالكانو اووے. مونږ

جَارِيَةً تَعْتِقَهَا فَقَالَ اَهْلُهَا نَبِيْعُكِهَا عَلٰى اَنَّ وَلَآءَهَا لَنَا فَذَكَرَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا يَمْنَعُكِ ذٰلِكِ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

ئې په دې شرط خرڅوو. چه دَ دې ولاء به مونږ اخلو. بي بي عائشې حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ته دَ دې ذکر اوکه. نو حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. ته هغه خريد کړه. بيائې آزاده کړه. ولاء خو دَ هغې چاده چه آزاده ئې کړي.

۴۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ اشْتَرَيْتُ بَرِيْرَةَ فَاشْتَرَطَ اَهْلُهَا وَلَاءَهَا فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَعْتِقِيْهَا فَاِنَّ الْوَلَآءَ لِمَنْ اَعْطَى الْوَرِقَ قَالَتْ فَاَعْتَقْتُهَا قَالَتْ فَدَعَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَيَّرَهَا مِنْ زَوْجِهَا فَقَالَتْ لَوْ اَعْطَانِيْ كَذَا وَ كَذَا مَا بِتُّ عِنْدَهٗ فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا قَالَ وَ كَانَ زَوْجُهَا حُرًّا.

۴۶۹: ماته محمد بن سلام (يا محمد بن يُوسف بيکندي) بيان اوکه. وې. مونږ جرير خبر کړو. هغه دَ منصور بن معتمر نه، هغه دَ ابراهيم نخعي نه، هغه دَ اسود بن يزيد نه، هغه دَ اُمّ المؤمنين بي بي عائشې صديقې نه. هغې اووې. ما بريره خريد کول غوښتل. نو دَ هغې مالکانو دا شرط اوتړلو، چه ولاء به مونږ اخلو. ما حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ته دَ دې ذِکر اوکه. نو حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل تهٔ ئې خريد کړه. بيائې آزاده کړه. ولاء خو به دَ هغې چاوي، چه روپئې خرچ کړي يعني خريد ئې کړي. بي بي عائشهٔ فرمائي. ما هغه خريد کولو سره آزاده کړله. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه راوغوښتله. ورته ئې اوفرمائيل اوس تاته اختيار دې، که خپل (مخکني) خاوند سره نکاح قائمه ساتې، يا فسخ کوې ئې. بريره اووې که هغه ماله دومره دومره دولت هم راکوي. بيا به هم زهٔ هغه سره يوه شپه هم تيره نکړم آخر خپل خاوند نه جُدا شوه. اَسود اووې، دَ هغې خاوند آزاد وو.

## بَاب ۲۲۷: مَا يَرِثُ النِّسَآءُ مِنَ الْوَلَآءِ.

## بَاب ۲۲۷: ښځو ته هم ولاء ورکيږي.

۴۷۰: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ

۴۷۰: مونږ ته حفص بن عمر حوضي بيان اوکه. وې. مونږ ته همام بن يحيٰي. هغه دَ نافع ، هغه دَ ابن

ابْنِ عُمَرَ قَالَتْ اَرَادَتْ عَائِشَةُ اَنْ تَشْتَرِيَ بَرِيْرَةَ فَقَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُمْ يَشْتَرِطُوْنَ الْوَلَآءُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرِيْهَا فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ.

عمرؓ نه. هغه اووې. بي بي عائشې اوغوښتل، چه بريره خريد کړي. او حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ته ئے عرض اوکه، چه دَ دې مالکان دَ ولاء شرط اِږدي (يعني ولاء به هغوي آخلي) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. ته ئے خريد که. او آزاده ئے کړه. ولاء خو، به هغه آخلي، چه غلام يا وينزه آزاده کړي.

۱ ۷ ۴: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْطَى الْوَرِقَ وَ وَلِيَ النِّعْمَةَ.

۱ ۷ ۴: مونږ ته محمد بن سلام بيان اوکه. وې. مونږ وکيع خبر کړو. هغه دَ سُفيان ثوري نه. هغه دَ منصور بن معتمر نه. هغه دَ ابراهيم نخعي نه، هغه دَ اسود نه، هغه دَ بي بي عائشېؓ نه. هغې دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ولاء به هغه آخلي چه چاندي ورکړي (روپې خرچ کړي) او احسان اوکړي (يعني آزاده ئے کړي).

باب ۲۲۸: مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَابْنُ الْاُخْتِ مِنْهُمْ.

باب ۲۲۸: کوم سړے چه دَ يو قوم وي. او آزاد کړے شي. نو هغې قوم کښې به شميرلے شي. دغسې دَ يو قَول خورئے (بهانجا) هم هغې قوم کښې داخلَ دے.

۲ ۷ ۴: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ قُرَّةَ وَ قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْ اَنْفُسِهِمْ اَوْ كَمَا قَالَ.

۲ ۷ ۴: مونږ ته اٰدم بن ابي اياس بيان اوکه. وې. مونږ ته شعبه. وې. مونږ ته معاويه بن قره او قتاده، هغوي دَ انس بن مالکؓ نه. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. دَ هر يو قول غلام، چه آزاد کړے شي. هغې قوم کښې به شمير وي. (دغسې دَ يو قوم خورئے (بهانجا) هم هغې قوم کښې داخل دے).

۳ ۷ ۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْنُ اُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ اَوْ مِنْ

۳ ۷ ۴: مونږ ته ابو الوليد بيان اوکه. وې مونږ ته شعبه. هغه دَ قتاده نه. هغه دَ انس بن مالکؓ نه. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضورَ صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، دَ يو قوم خورئے (بهانجا) هم هغې قوم

اَنْفُسِهِمْ.

باب ۲۲۹: مِيْرَاثُ الْاَسِيْرِ. قَالَ وَ كَانَ شُرَيْحٌ يُوَرِّثُ الْاَسِيْرَ فِيْ اَيْدِي الْعَدُوِّ وَ يَقُوْلُ هُوَ اَحْوَجُ اِلَيْهِ وَ قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدُ الْعَزِيْزِ اَجِزْ وَصِيَّةَ الْاَسِيْرِ وَ عَتَاقَهُ وَ مَا صَنَعَ فِيْ مَالِهٖ مَالَمْ يَتَغَيَّرْ عَنْ دِيْنِهٖ فَاِنَّمَا هُوَ مَالُهٗ يَصْنَعُ فِيْهِ مَا يَشَاءُ.

۶۷۶۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيٍّ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهٖ وَ مَنْ تَرَكَ كَلًّا فَاِلَيْنَا.

باب ۲۳۰: لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَ لَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ وَ اِذَا اَسْلَمَ قَبْلَ اَنْ يُقْسَمَ الْمِيْرَاثُ فَلَا مِيْرَاثَ لَهٗ.

۶۷۶۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

کښې داخل دي.

باب ۲۲۹: که یو وارث د کافرو لاس کښې قید شي. نو هغه ته به ترکه (میراثه) کښې حصه حاصلیږي یا نه. امام بخاري اوويې شریح (د کوفې قاضي) به قیدي ته میراثه (ترکه) ور کوله. اوونیل به ئې هغه خو لا زیات محتاج دې. او عمر بن عبد العزیز اوويې. د قیدي وصیّت او د هغه آزادي به د هغه مال کښې نافذ وي، څو پورې چه هغه د خپل دین نه اونه ګرځي. ځکه چه مال د هغه مال دې (قید کیدو سره د هغه ملکیّت نه ختمیږي) هغه خپل مال کښې چه څنګه تصرّف کول غواړي، کولې شي (دا عبد الرزاق وصل که).

۶۷۶۳: مونږ ته ابو الولید بیان اوکه. وې مونږ ته شعبه. هغه د عدي بن ثابت انصاري نه، هغه د ابو حازم نه، هغه د ابو هریره رضي الله عنه نه. هغه د حضور صلّي الله علیه وسلّم نه. حضور صلّے الله علیه وسلّم اوفرمائیل. کوم سړے چه مړ شي مال او اسباب پریږدي. هغه د هغه د وارثانو دې. او څوک چه قرض او اهل و عیال پریږدي. د هغوي بندوبست زما په ذمّه دې.

باب ۲۳۰: مُسلمان د کافر وارث نهٔ دې او کافر د مُسلمان. که یو سړے د میراث تقسیمدو نه مخکښې مُسلمان شي (او کوم وخت چه مورث مړ شوے وو. کافر وو) نو هغه ته به میراث نه حاصلیږي.

۶۷۶۴: مونږ ته ابو عاصم بیان اوکه. هغه د ابن جریج نه، هغه د ابن شهاب نه. هغه د امام زین العابدین نه علي بن حُسین نه. هغه د عمر بن عثمان بن عفان نه، هغه د اسامه بن زید نه. هغه اووې. حضور صلّے الله علیه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ.

وسلّم او فرمائيل مُسلمان د كافر وارث كيدے نشي او نه كافر د مُسلمان.

**بَـابٌ ۲۳۱ : مِيْرَاثُ الْعَبْدِ النَّصْرَانِيِّ وَمُكَاتِبِ النَّصْرَانِيِّ وَإِثْمِ مَنِ انْتَفٰى مِنْ وَّلَدِهٖ.**

**باب ۲۳۱ :** كه ذ چا غلام نصراني وي يا مكاتب نصراني وي، هغه مړ شي. نو د هغه مال به د هغه مالک ته حاصليږي (نه بطريق وراثت بلكه بوجه غلامي او ملوكيت) او كوم سړے چه بلاوجه خپل بچي ته اووائي، چه دا خما بچے نه دے. ذ دے گناه.

☆☆☆☆☆

**بَابٌ ۲۳۲ : مَنِ ادَّعٰى اَخًا اَوِ ابْنَ اَخٍ.**

**باب ۲۳۲ :** كوم سړے چه د خپل ورور يا وراره دعوي او كړي.

**۴۷۶ :** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رضي الله عنها اَنَّهَا قَالَتِ اخْتَصَمَ سَعْدُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ وَّعَبْدُ ابْنُ زَمْعَةَ فِيْ غُلَامٍ فَقَالَ سَعْدٌ هٰذَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ابْنُ اَخِيْ عُتْبَةَ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اَلَيَّ اَنَّهُ ابْنُهُ اُنْظُرْ اِلٰى شَبَهِهٖ وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ هٰذَا اَخِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِ اَبِيْ مِنْ وَّلِيْدَتِهٖ فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى شَبَهِهٖ فَرَاٰى شَبَهًا بَيِّنًا بِعُتْبَةَ فَقَالَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ وَاحْتَجِبِيْ مِنْهُ يَا سَوْدَةُ بِنْتُ زَمْعَةَ قَالَتْ فَلَمْ يَرَ سَوْدَةَ قَطُّ.

**۴۷۶ :** مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان او كه. وے مونږ ته امام ليث بن سعد، هغه ذ ابن شهاب نه، هغه ذ عروه نه. هغه ذ بي بي عائشےؓ نه. هغے اووے. سعد بن ابي وقاصؓ او عبد بن زمعهؓ په يو بچي (عبد الرحمٰن) جګړه او كړه. سعدؓ اووے، يا رسُول اللّٰه، خما ورور عتبه ابن ابي وقاص ذ مړ كيدو وخت ماته وصيّت كړے وو، چه دا خما خوئے دے، تاسو ذ دهٔ شكل ته اوګورئے، ذ عتبه په شان دے او عبد بن زمعه او وې، يا رسُول اللّٰه. دا خما ورور دے. خما د پلار ذ وينزے نه پيدا شوے وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم بچي ته او كتل، نو عتبه سره خرګند مشابهت ئے بيامونډلو ليكن حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا حكم او كړلو اے عبد بن زمعه، بچے ذ هغه وي چه ذ هغه ښځه يا وينزه وي. او حرام كار ذ پاره كانړي (سنګسار كيدل دي. باوجود ذ دے ذ مؤمنانو مور، بي بي سودهؓ، بنت زمعه ته ئے او فرمائيل، ته د دهٔ نه پرده كوه. نو هغے بچي ټول عمر بي بي سودهؓ اونهٔ ليده.

**بَابٌ ۲۳۳ : مَنِ الدَّعٰى اِلٰى**

**باب ۲۳۳ :** كوم سړے چه ذ خپل واقعي پلار نه

غَيْرِ اَبِيْهِ.

سِوا، دَ بل چا ځوئے جوړ شي.

۴۷۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ ادَّعٰى اِلٰى غَيْرِ اَبِيْهِ وَهُوَ يَعْلَمُ اَنَّهٗ غَيْرُ اَبِيْهِ فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ فَذَكَرْتُهٗ لِاَبِيْ بَكْرَةَ فَقَالَ وَ اَنَا سَمِعَتْهُ اُذُنَايَ وَ وَعَاهُ قَلْبِيْ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۷۷: مونږ ته مسدد بيان اوکه. وے. مونږ ته خالد بن عبد الله طحان. وے. مونږ ته خالد بن مهران خداء. هغه دَ ابو عثمان نهدي نه. هغه دَ سعد بن ابي وقاصؓ نه. هغه اووے. ما دَ رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه واوريدل، څوک چه دَ خپل اصل پلار نه سِوا بل څوک خپل پلار جوړ کړي. او پوهيږي، چه هغهٔ پلار نۀ دے، نو په هغه جنت حرام دے ابو عثمان نهدي اووے. ما دا حديث ابوبکره صحابي ته بيان که. نو هغه اووے. څما غوږونو هم دا حديث دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم نه واوريدلو. او ياد م اوساتلو.

۴۷۸: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ بْنُ الْفَرَجِ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو وَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنْ عِرَاكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَرْغَبُوْا عَنْ اٰبَآئِكُمْ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ اَبِيْهِ فَهُوَ كُفْرٌ.

۴۷۸: مونږ ته اصبغ بن فرج بيان اوکه. وے مونږ عبد الله بن وهب خبر کړو. وے. ماته عمرو بن حارث مصري، هغه دَ جعفر بن بيعه نه، هغه دَ عراک بن مالک نه، هغه دَ ابو هريرهؓ نه، هغه دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم نه، چه وے فرمائيل، تاسو دَ خپلو پلرونو نه انحراف مه کوئ (يعني نور خلق خپل پلاران مه جوړوئے) کوم سړے چه خپل پلار پريږدي. بل څوک خپل پلار جوړ کړي، نو هغه ناشکري اوکړه.

## باب ۲۳۴: اِذَا ادَّعَتِ الْمَرْاَةُ ابْنًا.

## باب ۲۳۴: دَ ښځے دعويٰ کول چه دا څما بچے دے.

۴۷۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ

۴۷۹: مونږ ته ابو اليمان بيان اوکه. مونږ شعيب خبر کړو. وے. مونږ ته ابو الزناد بيان اوکه. هغه دَ اعرج نه. هغه دَ ابو هريرهؓ نه، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل (بني اسرائيلو کښ) دوه ښځے وے (نوم نامعلومه) دَ، هرے يو يو بچے وو. دے کښ شرمخ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَتِ امْرَأَتَانِ مَعَهُمَا ابْنَاهُمَا جَآءَ الذِّئْبُ فَذَهَبَ بِابْنِ اِحْدٰهُمَا فَقَالَتْ لِصَاحِبَتِهَا اِنَّمَا ذَهَبَ بِابْنِكِ فَتَحَاكَمَتَا اِلٰى دَاوٗدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَضٰى بِهٖ لِلْكُبْرٰى فَخَرَجَتَا عَلٰى سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوٗدَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ فَاَخْبَرَتَاهُ فَقَالَ ائْتُوْنِىْ بِالسِّكِّيْنِ اَشُقُّهٗ بَيْنَهُمَا فَقَالَتِ الصُّغْرٰى لَا تَفْعَلْ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ هُوَا بْنُهَا فَقَضٰى بِهٖ لِلصُّغْرٰى قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَاللّٰهِ اِنْ سَمِعْتُ بِالسِّكِّيْنِ قَطُّ اِلَّا يَوْمَئِذٍ وَّ مَا كُنَّا نَقُوْلُ اِلَّا الْمُدْيَةَ.

راغـې او ذ يوې بچے ئې اوتښتولو. اوس دواړه په جګړه شوې. يوې، بلې ته اووې. ستا بچے ئې اوتښتولو. بلې اووې، نه. ستا بچے ئې يوړلو. آخر دواړه حضرت داؤد عليه السّلام ته فيصلې ذ پاره حاضرې شوې. هغوي هغه بچے ذ لوئې عمر (مشرې) ښځې ته ورکړلو. بيا هغه دواړه ښځې (دوباره فيصلې ذ پاره) حضرت سُليمان پيغمبرؑ ته راغلې او خپله خپله دعويٰ ئې ورته بيان کړله (دغه وخت ذ حضرت عليه السّلام عمر يؤلس (۱۱) کاله وو) هغه دا حکم اوکه. چاړه راؤړئې. زۀ دا بچے نيم په نيمه پريکولو سره دواړوله ورکوم دې آوريدو سره کم عمر والا (کشرې) ښځې عرض اوکه اللّٰه دې په تاسو رحم اوکړي. دا بچے دې (مشرې) ښځې له ورکړئې (خو نيموې ئې مه) آخر هغه بچے ئې کم عمر والا ښځې له ورکه. ابو هريرهؓ راوي اووې، ما چاړۀ ذ پاره سکين لفظ دې حديث کښې واؤريدلو. مونږ خلقو به چاړۀ ته مُديه وې.

## باب ۲۳۵ : اَلْقَائِفِ.

## باب ۲۳۵ : د قيافه شناس بيان.

۴۸۰ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيَّ مَسْرُوْرًا تَبْرُقُ اَسَارِيْرُ وَجْهِهٖ فَقَالَ اَلَمْ تَرَى اَنَّ مُجَزِّزًا نَّظَرَ اٰنِفًا اِلٰى زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ وَ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ فَقَالَ اِنَّ هٰذِهِ الْاَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ.

۴۸۰ : مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوکه. وې مونږ ته ليث بن سعد. هغه ذ ابن شهاب نه. هغه ذ عروه نه، هغه ذ بي بي عائشې رضي الله عنها نه. هغې اووې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماپله په خوشحالئ خوشحالئ تشريف راؤړلو. ذ خوشحالئ نه ئې مخ مُبارک چمک وهلو. وې فرمائيل، تا اوليدل. محزز بن اعور بن جعده مدلجي (چه لوئې قيافه شناس وو) اوس هغه ذ زيد بن حارثه او اُسامه بن زيد قدمونه ليدو سره اووې. دا قدمونه خو ذ يو بل نه وتلې دي (يعني ذ پلار. ځوئ دي).

۶۴۸۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ وَّ هُوَ مَسْرُورٌ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ اَلَمْ تَرَى اَنَّ مُجَزِّزًا اَلْمُدْلِجِيَّ دَخَلَ فَرَاٰى اُسَامَةَ وَزَيْدًا وَعَلَيْهِمَا قَطِيفَةٌ قَدْ غَطَّيَا رُءُوسَهُمَا وَبَدَتْ اَقْدَامُهُمَا فَقَالَ اِنَّ هٰذِهِ الْاَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ م بَعْضٍ.

۶۴۸۱: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوكه. وے. مونږ ته سُفيان بن عيينه، هغه دَ زهري نه، هغه دَ عروه نه، هغه دَ بي بي عائشےؓ نه. هغے اووے داسے اووے، چه يوه ورځ حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم خوشحالئ خوشحالئ کښې ماپله تشريف راوړلو. وے فرمائيل. اَے عائشےؓ. تا اوليدل چه مجزز مدلجي دلته راغے. هغه اُسامهؓ او زيد اوليدل. دواړو يو څادر اَغوستے سرونه ئے پټ کړي وو. او پښے ئے ښکاريدے کړے وے. نو وئيلے. دا پښے خو ديو بل نه وَتلے معلوميږي (يعني دَ پلار ځوئ دي).

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

دَ اللّٰه نوم سره شروع کوم چه ډير مهربانه او رحم کونکے دے

# كِتَابُ الْحُدُوْدِ

# دَ سزا ګانو بيان

وَمَا يُحَذَّرُ مِنَ الْحُدُوْدِ.

او دَ حدي ګناهونو وعيد (سزا).

باب ۲۳۶: لَا يُشْرَبُ الْخَمْرُ.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُنْزَعُ مِنْهُ نُوْرُ الْاِيْمَانِ فِي الزِّنَا.

باب ۲۳۶: دَ زنا او شراب خورئ په بيان کښې. ابن عباسؓ اووے. زنا کولو کښې دَ ايمان نور اوچتولے شي (دا ابن ابي شيبه کتاب الايمان کښې وصل که).

۶۴۸۲: حَدَّثَنِي يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزْنِي الزَّانِي حِيْنَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِيْنَ يَشْرَبُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَّ لَا يَسْرِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَّ لَا يَنْتَهِبُ نُهْبَةً يَّرْفَعُ النَّاسُ

۶۴۸۲: ماته يحيٰي بن بکير بيان اوکه. وے. مونږ ته ليث بن سعد. هغه دَ عقيل نه، هغه دَ ابن شهاب نه، هغه دَ ابوبکر بن عبد الرحمٰن ابن حارث نه. هغه دَابو هريرهؓ نه، چه حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. زنا کونکے چه زنا کوي نو هغه وخت هغه مؤمن نهٔ وي (يعني کامل الايمان) او شرابي چه کوم وخت شراب څکي. هغه وخت هغه مؤمن نهٔ وي او غل چه کوم وخت غلا کوي. هغه وخت هغه مؤمن نه وي. او لوټ مار چه لوټ کوي، چه خلق ورته سترګے

اِلَيْهِ فِيْهَا اَبْصَارُهُمْ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَّ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَاَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهِ اِلَّا النُّهْبَةَ.

او چتولو سره ګوري (او منع کولے ئے نشي) نو هغه مؤمن نه وي. او ابن شهاب دَ سعيد بن مسيب او ابو سلمه بن عبد الرحمٰن نه. دوي دواړو دَ ابو هريرهؓ نه. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. دغسے روايت کړے دے.

## باب ۲۳۷: مَا جَآءَ فِيْ ضَرْبِ شَارِبِ الْخَمْرِ.

## باب ۲۳۷: دَ شراب څکونکي دَ سزا بيان.

۴۸۳: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ فِي الْخَمْرِ بِالْجَرِيْدِ وَالنِّعَالِ وَجَلَدَ اَبُوْ بَكْرٍؓ اَرْبَعِيْنَ.

۴۸۳: مونږ ته حفص بن عمر حوضي بيان اوکه. وے. مونږ ته هشام دستوائي. هغه دَ قتاده بن دعامه نه. هغه دَ انسؓ نه. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه (دويم سند) او مونږ ته آدم بن ابي اياس بيان اوکه. وے. مونږ دَ شعبه نه. وے. مونږ دَ قتاده نه. هغه دَ انس بن مالکؓ نه. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَشرابو سزا کښ (شرابي) پنړو او لختو سره اووهلو. او ابوبکر صديقؓ (خپل خلافت کښ) څلويښت کوړے اووهلو.

## باب ۲۳۸: مَنْ اَمَرَ بِضَرْبِ الْحَدِّ فِي الْبَيْتِ.

## باب ۲۳۸: کور کښ دننه حد لګول.

۴۸۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ جِيْءَ بِالنُّعَيْمَانِ اَوْ بِابْنِ النُّعَيْمَانِ شَارِبًا فَاَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ فِي الْبَيْتِ اَنْ يَّضْرِبُوْهُ فَكُنْتُ اَنَا فِيْمَنْ ضَرَبَهُ بِالنِّعَالِ.

۴۸۴: مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوکه. وے. مونږ ته عبد الوهاب ثقفي. هغه دَ ايوب سختياني نه، هغه دَ ابن ابي مليکه نه. هغه دَ عقبه بن حارث نه. هغه اووے. نعيمان يا دَ نعيمان ځوئے، حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم ته پيش کړے شو، هغه شراب څکلے وو (نشه کښ وو) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم کور کښ چه کوم خلق وو، هغوي ته ئے حکم ورکه، چه دے اووهئ، نو هغوي اووهلو. عقبه وائي. زهٔ هم هغه خلقو کښ ووم چه هغه ئے پنړو سره اووهلو.

## بَابٌ ۲۳۹ : الضَّرْبَ بِالْجَرِيْدِ وَالنِّعَالِ.

۴۸۵ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبُ بْنُ خَالِدٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِنُعَيْمَانَ أَوْ بِابْنِ نُعَيْمَانَ وَ هُوَ سَكْرَانُ فَشَقَّ عَلَيْهِ وَأَمَرَ مَنْ فِي الْبَيْتِ أَنْ يَّضْرِبُوْهُ بِالْجَرِيْدِ وَالنِّعَالِ وَكُنْتُ فِيْمَنْ ضَرَبَهُ.

۴۸۶ : حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ جَلَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَمْرِ وَ بِالْجَرِيْدِ وَالنِّعَالِ وَجَلَدَ أَبُوْ بَكْرٍ أَرْبَعِيْنَ.

۴۸۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُوْ ضَمْرَةَ أَنَسٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ الْهَادِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرٰهِيْمَ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ قَالَ اضْرِبُوْهُ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهٖ وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهٖ وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهٖ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ أَخْزَاكَ اللّٰهُ قَالَ

## باب ۲۳۹ : شرابو كښې پنړو او لختو سره وهل.

۴۸۵ : مونږ ته سُليمان بن حرب بيان اوكړو. مونږ ته وهيب بن خالد. هغه دَ ايوب نه. هغه دَ عبد اللّٰه بن ابي مليكه نه. هغه دَ عقبه بن حارث نه. هغه اووې. نعيمان يا دَ نعيمان ځوئے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته راوستے شو. هغه نشه كښې وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم باندې دا امر سخت ناګوار تير شو. كوم خلق چه هغه وخت كور كښې وو. هغوي ته ئے اوفرمائيل چه دے اووهئے، نو هغوي پنړو او لختو سره اووهلو. عقبه اووې. زۀ هم هغې وهونكو كښې شريک ووم.

۴۸۶ : مونږ ته مسلم بن ابراهيم بيان اوكړو. مونږ ته هشام دستوائي. وې. مونږ ته قتاده. هغه دَ انسؓ نه. هغه اووې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم شرابو كښې (شرابي) لختو او پنړو سره اووهلو. او ابوبكر صديقؓ څلويښت كوړې وركړلې.

۴۸۷ : مونږ ته قتيبه بن سعيد بيان اوكړو. وې. مونږ ته ابو ضمره انس بن عياض هغه دَ ابو سلمه نه. هغه دَ ابو هريرهؓ نه. هغه اووې. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته يو سړے (نعيمان يا عبد اللّٰه حمار) راوستے شو. هغه شراب څكلي وو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم صحابهؓ ؤ ته او فرمائيل. دے اووهئے. ابو هريرهؓ وائي. دے ارشاد آوريدو سره مونږ كښې چا هغه په لاسونو اووهلو، چا پنړو سره چا كپړے سره هغه چه (وهل خوړلو سره) واپس لاړ. نو بعضے خلقو (لكه حضرت عمرؓ) اووې. اللّٰه دِ دے ذليل كړي. (چه شراب نه پريږدي) نو حضور

لا تَقُولُوا هٰكَذَا لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ.

صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل. دَ هغه مقابله كښې دَ شيطان مدد مه كوئې.

۴۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُوْ حُصَيْنٍ سَمِعْتُ عُمَيْرَ بْنَ سَعِيْدِ النَّخْعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍؓ قَالَ مَا كُنْتُ لِاُقِيْمَ حَدًّا عَلٰى اَحَدٍ فَيَمُوْتُ فَاَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ اِلَّا صَاحِبَ الْخَمْرِ فَاِنَّهُ لَوْمَاتَ وَدَيْتُهُ وَ ذٰلِكَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسُنَّهُ.

۴۸۸: مونږ ته عبد اللّٰه بن عبد الوهاب بيان اوكه. وې مونږ ته خالد بن حارث وې. مونږ ته سُفيان ثوري. وې. مونږ ته ابو حصين (عثمان بن عاصم اسدي) وې. ما دَ عمير بن سعيد نه واوريدل. هغه وئيل. ما دَ حضرت علي نه واؤريدل. كه زۀ چاته شرعي حد ورکړم او هغه مړ شي. نو ماته به دَ دې څه تردّد نه وي (كه مړشو نو مړشو) ليكن شرابي ته كه حد وركړم، او هغه مړشو، نو زۀ به دَ هغه ديت (خون بها) وركړم. ځكه چه حضور صلي الله عليه وسلم شرابو كښې څه حد نۀ دې مقرر كړې.

۴۸۹: حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْجُعَيْدِ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ خُصَيْفَةَ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدٍ قَالَ كُنَّا نُؤْتِيْ بِالشَّارِبِ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِمْرَاةِ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ صَدْرًا مِّنْ خِلَافَةِ عُمَرَؓ فَنَقُوْمُ اِلَيْهِ بِاَيْدِيْنَا وَ نِعَالِنَا وَاَرْدِيَتِنَا حَتّٰى كَانَ اٰخِرِ اِمْرَاةِ عُمَرَ فَجَلَدَ اَرْبَعِيْنَ حَتّٰى اِذَا عَتَوْا وَفَسَقُوْا جَلَدَ ثَمَانِيْنَ.

۴۸۹: مونږ ته مكي بن ابراهيم بيان اوكه هغه دَ جعيد بن عبد الرحمٰن نه. هغه دَ يزيد بن خصيفه نه، هغه دَ سائب بن يزيد نه. هغه اووې. دَ حضور صلى الله عليه وسلم. ابوبكر صديقؓ. او عمر فاروقؓ دَ خلافت شروع كښې شرابي به څمونږ مخې ته راوستلې شو. نو مونږ به پاسيدو. لاسونو. پڼړو او څادرونو سره به مووهلو تر دې چه دَ حضرت عمرؓ دَ خلافت آخره زمانه شوه. نو هغه وخت به هغه شرابي څلويښت كوړې وهلو. هر كله چه خلقو شرارت او زيات شراب څكل شروع كړل، نو هغه به اَتيا (۸۰) كوړې وهلو.

باب ۲۴۰: مَا يُكْرَهُ مِنْ لَعْنِ شَارِبِ الْخَمْرِ وَ اِنَّهُ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنَ الْمِلَّةِ.

باب ۲۴۰: شراب څكونكې بـه دَ اسلام نه بهر نـۀ وي. نه په هغه لعنت كول پكار دي.

۴۹۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ

۴۹۰: مونږ ته يحيٰي بن بكير بيان اوكه. وې.

حَدَّثَنِيُ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيُ خَالِدُ بُنُ يَزِيُدَ عَنُ سَعِيُدِ بُنِ اَبِيُ هِلَالٍ عَنُ زَيْدَ بُنِ اَسُلَمَ عَنُ اَبِيُهِ عَنُ عُمَرَ بُنَ الْخَطَّابِ اَنَّ رَجُلًا عَلٰى عَهُدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ كَانَ اسُمُهٗ عَبُدَ اللّٰهِ وَ كَانَ يُقَلَّبُ حِمَارًا وَّ كَانَ يُضُحِكُ رَسُوُلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ قَدُ جَلَدَهٗ فِي الشَّرَابِ فَاُتِيَ بِهٖ يَوُمًا فَاَمَرَ بِهٖ فَجُلِدَ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوُمِ اَللّٰهُمَّ الْعَنُهُ مَا اَكْثَرَ مَا يُؤُتٰى بِهٖ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ لَا تَلُعَنُوُهُ فَوَ اللّٰهِ مَا عَلِمُتُ اِلَّا اِنَّهٗ يُحِبُّ اللّٰهُ وَرَسُوُلَهٗ.

ماته ليث وي .ماته خالد بن يزيد' هغه دَ سعيد بن ابي هلال نه. هغه دَ زيد بن اسلم نه هغه دَ خپل پلار نه. هغه دَ حضرت عمرؓ نه. چه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښې يو سړے وو. خلقو به هغه ته عبد اللّٰه حمار وے. هغه به حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خاندولو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په هغه دَ شرابو حد هم لګولے وو. يو ځل داسے اوشو. چه خلقو هغه راوستلو (هغه شراب څکلي وو. دا واقعه غزوه خيبر کښې شوے وه) حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم حکم اوکه.هغه ته کوړے ورکړے شوے. دے کښې خلقو کښې يو سړي (حضرت عمرؓ) اووے يا اللّٰه! په دهٔ لعنت اوکړے. کم بخت څو ځله دَ شرابو علّت کښې راغلے دے (منع کيږي نه) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل په ده لعنت مه کوئے. قسم په خدائے. دے دَ اللّٰه او دَ هغه رسُول سره محبت کوي.

۶۳۹۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بُنُ عَبُدِ اللّٰهِ بُنِ جَعُفَرٍ حَدَّثَنَا اَنَسُ بُنُ عِيَاضٍ حَدَّثَنَا ابُنُ اِبُرٰهِيُمَ عَنُ اَبِيُ سَلُمَةَ عَنُ اَبِيُ هُرَيُرَةَ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ بِسَكُرَانَ فَاَمَرَ بِضَرُبِهٖ فَمِنَّا مَنُ يَّضُرِبُهٗ بِيَدِهٖ وَ مِنَّا مَنُ يَّضُرِبُهٗ بِنَعُلِهٖ وَ مِنَّا مَنُ يَضُرِبُهٗ بِثَوُبِهٖ فَلَمَّا انُصَرَفَ قَالَ رَجُلٌ مَّا لَهٗ اَخُزَاهُ اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ

۶۳۹۱: مونږ ته علي بن عبد اللّٰه بن جعفر بيان اوکه. وے مونږ ته انس بن عياض وے. مونږ ته عبد اللّٰه بن شداد بن هاد. هغه دَ مُحمّد بن ابراهيم نه. هغه دَ ابو سلمه بن عبد الرحمٰن نه. هغه دَ ابو هريرهؓ نه. هغه اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته يَو نشه کښې مست (مخمور) راوستے شو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د هغه دَ وهلو حکم اوکړو اوس مونږ چا هغه په لاسونو وهلو. چا په پنړو چا په کپړو. هغه چه وَهل خوړلو نه پس واپس شو نو يو سړي (حضرت عمرؓ) اووے. دے کم بخت له څه شوے دي (چه بيا بيا (باربار) شراب څکي) اللّٰه دِ دے ذليل کړي. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم

لَا تَكُوْنُوْا عَوْنَ الشَّيْطَانِ عَلٰى اَخِيْكُمْ.

ورته اوفرمائيل چه. دَ خپل ورور مقابله کښې دَ شيطان مدد مهٔ کوئ.

## باب ۱۴۲۱: اَلسَّارِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ.

باب ۱۴۲۱: غل چه هر کله غلا کوي.

۶۴۹۲: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دَاوُدَ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ غَزْوَانَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزْنِي الزَّانِيْ حِيْنَ يَزْنِيْ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَّ لَا يَسْرِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ .

۶۴۹۲: ماته عمرو بن علي فلاس بيان اوکه. وے. مونږ ته عبد اللّٰه بن داؤد. وے. مونږ ته فضيل بن غزوان. هغه دَ عکرمه نه. هغه دَ ابن عباسؓ نه. هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. وے فرمائيل. زنا کار چه زنا کوي. نو هغه وخت مؤمن نهٔ وي. او غل چه غلا کوي هغه وخت مؤمن نهٔ وي.

## باب ۱۴۲۲: لَعْنِ السَّارِقِ اِذَا لَمْ يُسَمَّ.

باب ۱۴۲۲: غل بانديے مطلق بے نوم اخستو لعنت کول درست نهٔ دي.

۶۴۹۳: حَدَّثَنَا عُمَرَ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ السَّارِقَ يَسْرِقُ الْبَيْضَةَ فَتُقْطَعُ يَدَهٗ وَ يَسْرِقُ الْحَبْلَ فَتُقْطَعُ يَدَهٗ قَالَ الْاَعْمَشُ كَانُوْا يَرُوْنَ اَنَّهٗ مِنْهَا مَا يَسْوِى دِرَاهِمَ.

۶۴۹۳: مونږ ته عمر بن حفص بن عياث بيان اوکه. وے ماته خما پلار وے. مونږ ته اعمش وے. ما دَ ابو صالح نه واؤريدل هغه دَ ابو هريرهؓ نه' هغه دَ حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم نه' وے فرمائيل. اللّٰه تعالٰي دے په غل لعنت کړي (کم بخت) اګئ (اَنڈا) پټوي. نو دَ هغه لاس پريکولے شي. رسئ پټوي. نو دَ هغه لاس پريکولے شي. اعمش اووے. دَ خلقو خيال وو' چه دَ اګئ (انڈے) نه مراد دَ اُوسپنے جنګي توپئ (خود) دے او دَ رسئ نه رسئ مراد دے' چه دَ څو (کم نه کم څلور) درهمو مساوي قيمت لري.

## باب ۱۴۲۳: اَلْحُدُوْدُ كَفَّارَةٌ.

باب ۱۴۲۳: حد قائمولو سره دَ ګناه کفاره کيږي.

۶۴۹۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا ابْنُ

۶۴۹۴: مونږ ته محمد بن يُوسف (فريابي يا بيکندي) بيان اوکه. وے. مونږ ته سُفيان بن عينيه. هغه

عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَجْلِسٍ فَقَالَ بَايِعُونِي عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا تَسْرِقُوا وَلَا تَزْنُوا وَقَرَأَ هٰذِهِ الْآيَةَ كُلَّهَا فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَتُهُ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَسَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ إِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ وَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ.

دَ زهري نه. هغه دَ ابو ادريس خولاني نه. هغه دَ عباده بن صامتؓ نه. هغه اووے. مونږ يو مجلس كښې حضور صلي الله عليه وسلّم سره ناست وو. دے كښې حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. مانه په دے خبرو بيعت اوكړئے. الله سره څه څيز شريك نه جوړؤل. غلا نه كول. زنا نه كول. او دا آيت (دَ سورهٔ ممتحنه) ئے اولوست: يا ايها النبي اذا جاءك المؤمنات آخير آيت پورے. وے فرمائيل. څوك چه دا شرطونه پوره كړي. هغه ته به الله سره ثواب حاصليږي. او څوك چه دے ګناهونو كښې يوه ګناه كښې اُونښلي. بيا هغه ته (دُنيا كښې) سزا وركړے شي (حد او خوري) نو هغه به دَ دے ګناه كفاره شي. او څوك چه دے ګناهونو كښې څه ګناه اوكړي. ليكن الله تعالي (دُنيا كښې) دَ هغه قصور پټ كړي. نو (آخرت كښې) الله اختيار لري. كه غواړي هغه ګناه به اوبښي. كه غواړي عذاب به وركړي.

## باب ۲۴۴: ظَهْرُ الْمُؤْمِنِ حِمًى إِلَّا فِي حَدٍّ أَوْ حَقٍّ.

باب ۲۴۴: دَ مسلمان شا محفوظ ده. هاں. هر كله چه دَ څه حدكار اوكړي نو هغه په شا وهل خوړلے شي.

۴۹۵: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ عَبْدُ اللَّهِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ أَلَا أَيُّ شَهْرٍ تَعْلَمُونَهُ أَعْظَمُ حُرْمَةً قَالُوا

۴۹۵: مونږ ته محمد بن عبد الله بيان اوكه. وے. مونږ ته عاصم بن علي. وے. مونږ ته عاصم بن محمد. هغه دَ واقد بن محمد نه. هغه اووے. ما دَ خپل پلار محمد بن زيد بن عبد الله بن عمرؓ نه واؤريدل. چه څما نيكه (دادا) عبد الله بن عمرؓ اووے. حضور صلي الله عليه وسلّم حجة الوداع كښې اوفرمائيل. اَے خلقو. تاسو ته معلومه ده كومه مياشت دَ ډير حرمت (اَدب) ده. هغوي عرض اوكه. دا' دَ ذي الحجه مياشت. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. كوم ښار دَ لوئے

أَلَا شَهْرُنَا هٰذَا قَالَ أَلَا أَيُّ بَلَدٍ بَلَدُنَا هٰذَا قَالَ أَلَا أَيُّ يَوْمٍ تَعْلَمُوْنَهُ أَعْظَمُ حُرْمَةً قَالُوْا أَلَا يَوْمُنَا هٰذَا قَالَ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى قَدْ حَرَّمَ دِمَآءَ كُمْ وَ أَمْوَالَكُمْ وَ أَعْرَاضَكُمْ إِلَّا بِحَقِّهَا كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ ثَلٰثًا كُلُّ ذٰلِكَ يُجِيْبُوْنَهُ أَلَا نَعَمْ قَالَ وَ يَحَكُمْ أَوْ وَيْلَكُمْ لَا تَرْجِعُنَّ بَعْدِيْ كُفَّارًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ.

حرمت (ادب) والا دے. خلقو عرض اوکه، دا ښار (مکه معظمه) بیا حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل کومه ورځ ذ لوئے حرمت ده خلقو اووے دا ورځ (یعني یوم النحر). بیا حضور صلی الله علیه وسلّم او فرمائیل. ګورے الله تعالیٰ ستاسو وینه (خون) مال او آبرو (عزّت) په یو بل حرام کړي دي. خو، هاں ذ چا حق بدل کښ، څنګه چه ذ دے ورځ. ښار او میاشتے حرمت دے واورئے. ما درته ذ الله حکم اورسولو. درے ځله ئے دغسے اوفرمائیل هر ځل به خلقو جواب ورکولو بیشکه. تاسو ذ الله حکم راورسولو. بیا حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل. ګورے. کم بختو چرته داسے اونکړئے. چه ځما نه پس ذ یو بل ګردنونه وهلو سره کافر شئے.

## بَابُ ٢٤٥: إِقَامَةِ الْحُدُوْدِ وَالْاِنْتِقَامِ لِحُرُمَاتِ اللّٰهِ.

## باب ٢٤٥: ذ حدونو قائمول او ذ الله حرمت چه څوک مات کړي. هغه نه بدله اخستل.

٦٤٩٢: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ ؓ قَالَتْ مَا خُيِّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَمْرَيْنِ إِلَّا اخْتَارَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَأْثَمْ فَإِذَا كَانَ الْإِثْمُ كَانَ أَبْعَدَهُمَا مِنْهُ وَاللّٰهِ مَا انْتَقَمَ لِنَفْسِهِ فِيْ شَيْءٍ يُؤْتَى إِلَيْهِ قَطُّ حَتّٰى تُنْتَهَكَ حُرُمَاتُ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمُ

٦٤٩٢: مونږ ته یحیٰي بن بکیر بیان اوکه. وے. مونږ ته لیث بن سعد. هغه ذ عقیل نه. هغه ذ ابن شهاب نه. هغه ذ عروه نه. هغه ذ عروه نه. هغه ذ بي بي عائشے ؓ نه. هغے اووے. حضور صلي الله علیه وسلّم ته چه به دوه کارونو کښ ذ یو کار اختیار ورکړے شو. نو هغه کار به ئے اِختیارولو چه زیات آسان به وه. په شرط ذ دے چه هغه به ګناه نه وه. که ګناه به وه، نو ذ ټولو خلقو نه به زیات ذ هغے نه لرے اوسیدلو. او قسم په خدائے. حضور صلّے الله علیه وسلّم خپل ذات ذپاره هر کله چه هغه به مخے ته راغے، چانه بدله نه ده آخستے. البته که ذ الله حرمت به چا مات که، نو الله ذ پاره به ئے ذهغه نه

لِلّٰهِ.

بدله آخسته.

**بَابٌ ۲۴۶ : اِقَامَةِ الْحُدُوْدِ عَلَى الشَّرِيْفِ وَالْوَضِيْعِ.**

**باب ۲۴۶ : شريف او كم ذات تولو خلقو باندې به ئې برابر حد قائمول.**

۴۹۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ اُسَامَةَ كَلَّمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي امْرَأَةٍ فَقَالَ اِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يُقِيْمُوْنَ الْحَدَّ عَلَى الْوَضِيْعِ وَيُتْرُكُوْنَ الشَّرِيْفَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْ فَاطِمَةُ ؓ فَعَلَتْ ذٰلِكَ لَقَطَعْتُ يَدَهَا.

۴۹۷ : مونږ ته ابو الوليد بيان اوكه. وې مونږ ته ليث بن سعد. هغه ډ ابن شهاب نه. هغه ډ عروه نه. هغه ډ بي بي عائشې ؓ نه چه اسامه بن زيد ؓ چه ډ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ډير محبوب وو، ډ يوې زنانه سفارش اوكه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل (واه واه) تاسونه مخكښ چه كوم اُمتونه تير شوي دي. هغوي په دې وجه تباه شو. چه غريب سړي باندې به ئې حد قائمولو او شريف به ئې پريښودلو. په هغه پروردګار مې دې قسم وي. كه فاطمه ؓ (ځما لور) هم غلا اوكړي نو زۀ به ډ هغې لاس هم پريكړم.

**بَابٌ ۲۴۷ : كَرَاهِيَةِ الشَّفَاعَةِ فِي الْحَدِّ اِذَا رُفِعَ اِلَى السُّلْطَانِ.**

**باب ۲۴۷ : هر كله چه حدي مقدّمه حاكم ته اورسي نو بيا سفارش كول منع دي.**

۴۹۸ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ ؓ اَنَّ قُرَيْشًا اَهَمَّتْهُمُ الْمَرْأَةُ الْمَخْزُوْمِيَّةُ الَّتِيْ سَرَقَتْ فَقَالُوْا مَنْ يُكَلِّمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ يَّجْتَرِئُ عَلَيْهِ اِلَّا اُسَامَةُ حِبُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَ رَسُوْلَ

۴۹۸ : مونږ ته قتيبه بن سُليمان بيان اوكه. وې مونږ ته ليث بن سعد. هغه ډ ابن شهاب نه. هغه ډ عروه نه. هغه ډ بي بي عائشې ؓ نه، چه قريشو خلقو سره ډ يوې مخزومي ښځې په وجه سخت فِكر شو (هغه غلا كښ ګرفتاره شوې وه) هغوي اووې دې مقدّمه كښ به حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته څوك عرض اوكړي (چه ډ هغې لاس پرې نكړې شي. او څه بله سزا اوخوري يا معاف كړې شي) خلقو اووې. داسې جرأت ډ اُسامه نه بغير بل څوك كولې شي. هغه خو ډ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم محبوب دې. هغه وَيلې شي خير اُسامه دې

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَتَشْفَعُ فِيْ حَدٍّ مِّنْ حُدُوْدِ اللّٰهِ ثُمَّ قَامَ فَخَطَبَ قَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا ضَلَّ مَنْ قَبْلَكُمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا اِذَا سَرَقَ الشَّرِيْفُ تَرَكُوْهُ وَ اِذَا سَرَقَ الضَّعِيْفُ فِيْهِمْ اَقَامُوْا عَلَيْهِمُ الْحَدَّ وَ اَيْمُ اللّٰهِ لَوْ اَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعَ مُحَمَّدٌ يَدَهَا.

باب كښې عرض اوكه، حضور صلّي الله عليه وسلّم (غُصّه كښې اوفرمائيل) آيا ته دَ الله حد كښې سفارش كوې. دې نه پس حضور صلّي الله عليه وسلّم اُودريدلو. خطبه كښې اوفرمائيل. اې خلقو. تاسو نه وړمبني اُمتونونه په دې گُمراه شو چه شريف سړي به غلا اوكړي، نو په هغه به ئې پريښودلو. اوكه غريب (بې وسيلې) سړي به غلا اوكړه، نو هغه باندې به ئې دَ اللّٰه تعالٰي حد قائمولو، قسم په خدائې، كه فاطمهؓ (دَ محمدؐ لور) هم غلا اوكړي، نو محمّدؐ به دَ هغې لاس هم پريكړي.

## بَاب ۲۴۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا اَيْدِيَهُمَا وَ فِيْ كَمْ يُقْطَعُ وَ قَطَعَ عَلِيٌّ مِنَ الْكَفِّ وَقَالَ قَتَادَةُ فِيْ امْرَاَةٍ سَرَقَتْ فَقُطِعَتْ شِمَالُهَا لَيْسَ اِلَّا ذٰلِكَ.

باب ۲۴۸: دَ اللّٰه تعالٰي (سُورۀ مائده) كښې فرمائيل دَ غل سړي او غلې ښځې لاس پريكړې. دې باب كښې دا بيان دې. چه څومره ماليت غلا كولو باندې لاس پريكولې شي. او حضرت عليؓ دَ غل لاس مړوند پورې پريكړلو. او قتاده اووې. كه يوې ښځې غلا اوكړه او غلطئ سره دَ هغې گس لاس پريكړې شو نو اوس به بيا لاس ئې نشي پريكولې.

۴۹۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُقْطَعُ الْيَدُ فِيْ رُبْعِ دِيْنَارٍ فَصَاعِدًا تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ وَّابْنُ اَخِيْ الزُّهْرِيِّ وَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۴۹۹: مونږ ته عبد اللّٰه بن مسلمه قعنبي بيان اوكه. وې. مونږ ته ابراهيم بن سعد. هغه دَ ابن شهاب نه. هغه دَ عروه نه. هغه دَ بي بي عائشېؓ نه. هغې اووې. حضور صلّې اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دَ غل لاس دَ ربع (۱/۴) دينار ماليت غلا كښې پريكولې شي. يا دينه زيات ماليت كښې ابراهيم بن سعد دا حديث عبد الرحمٰن بن خالد او دَ زهري ورارۀ او معمر هم دَ زهري نه روايت كه.

۵۰۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ

۵۰۰: مونږ ته اسماعيل بن ابي اويس بيان اوكه. هغه دَ عبد الله بن وهب نه. هغه دَ يونس نه، هغه دَ

عَنْ يُوْنُسَ عَنِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ وَ عَمْرَةَ عَنْ عَآئِشَةَ ؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تُقْطَعُ يَدُ السَّارِقِ فِيْ رُبْعِ دِيْنَارٍ.

ابن شهاب نه هغه دَ حضرت عروه او بي بي عمره نه. دے دواړو دَ بي بي عائشے ؓ نه. هغے دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل چه دَ غل لاس به ربع دينار (۱/۴ دينار) يا دَهغے نه زيات ماليت غلا کولو کښې پريکولے شي.

۵۰۱: حَدَّثَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْا اُسَامَةَ قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ اَخْبَرَنَا عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ لَمْ تُقْطَعُ يَدُ سَارِقٍ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَدْنٰى مِنْ ثَمَنِ الْمَجِنِّ تُرْسٍ اَوْ حَجَفَةٍ وَّ كَانَ كُلٌّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا ذَا ثَمَنٍ.

۵۰۱: ماته يُوسف بن موسٰي بيان اوکه وے. مونږ ته ابو اسامه، چه هشام بن عروه مونږ ته دَ خپل پلار نه خبر راکه. هغه دَ بي بي عائشے ؓ نه. هغے اووے. دَ حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښې به لاس دَ ډهال يا سپر نه کم قيمت کښې نشو پريکولے. هغے کښې هر يو څيز قيمت دار وو.

۵۰۲: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ نَّافِعٍ مَّوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ فِيْ مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلٰثَةُ دَرَاهِمَ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ اِسْحٰقَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ قِيْمَتَهُ.

۵۰۲: مونږ ته اسمٰعيل بن ابي اويس بيان اوکه. وے. ماته امام مالک ؒ. هغه دَ نافع نه. هغه دَ بن عمر ؓ نه. چه حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم دَ يو ډهال بدل کښې دَ غل لاس پريکړلو، چه دَ هغے قيمت درے درهم وو. امام مالک سره دا حديث محمد بن اسحاق هم روايت که. او ليث بن سعد داسے اووے. ماته نافع بيان اوکه. دَهغه روايت کښې دَ ثمنه، بدل کښې قيمته دے.

۵۰۳: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ قَالَ قَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلٰثَةُ دَرَاهِمَ.

۵۰۳: مونږ ته موسٰي بن اسماعيل بيان اوکه. وے. مونږ ته جويريه، هغے دَ نافع نه، هغه دَ ابن عمر ؓ نه، چه حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم دَ يو ډهال غلا کښې دَ غل لاس پريکړلو. دَ هغے قيمت درے درهم وو.

۵۰۴: حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ

۵۰۴: مونږ ته عمران بن مېسره بيان اوکه.

مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ عَنْ يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَتْهُ أَنَّ عَائِشَةَ رضي الله عنها حَدَّثَتْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُقْطَعُ فِيْ رُبْعِ دِيْنَارٍ.

وې. مونږ ته عبد الوارث. وې. مونږ ته حسين معلم. هغه دَ يحيٰي ابن كثير نه هغه دَ محمد بن عبد الرحمٰن انصاري نه. هغه دَ بي بي عمره بنت عبد الرحمٰن نه، هغې ته بي بي عائشې بيان اوكه، چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دَ غل لاس به چوتهائي دينار كښې پريكولے شي.

۵۰۵: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ أَخْبَرَتْنِيْ عَائِشَةُ أَنَّ يَدَ السَّارِقِ لَمْ تُقْطَعْ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا فِيْ ثَمَنِ مِجَنٍّ حَجَفَةٍ أَوْ تُرْسٍ.

۵۰۵: مونږ ته عثمان بن ابي شيبه بيان اوكه. وې. مونږ ته عبده بن سُليمان. هغه دَ هشام بن عروه نه، هغه دَ خپل پلار نه. وې. زۀ بي بي عائشې خبر كړم. هغې اووې. دَ حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې به لاس نه شو پريكولے خو دَ ډهال قيمت كښې. (يعني دَ ډهال دَ قيمت برابر ... كښې به پريكولے شو. يا ربع دينار كښې).

۵۰۶: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها مِثْلَهُ.

۵۰۶: مونږ ته عمان بن ابي شيبه بيان اوكه. وې. مونږ ته حميد بن عبد الرحمٰن. وې. مونږ ته هشام بن عروه، هغه دَ خپل پلار نه هغه دَ بي بي عائشې نه. بيا دغه شان حديث ئے نقل كه.

۵۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عُرْوَةُ رضي الله عنه عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ لَمْ تَكُنْ تُقْطَعُ يَدُ السَّارِقِ فِيْ أَدْنٰى مِنْ حَجَفَةٍ أَوْ تُرْسٍ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ذُوْ ثَمَنٍ رَوَاهُ وَكِيْعٌ وَابْنُ إِدْرِيْسَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ مُرْسَلًا.

۵۰۷: مونږ ته محمد بن مقاتل بيان اوكه. وې. مونږ عبد اللّٰه بن مُبارک خبر كړو. وې. مونږ هشام بن عروه، هغه دَ خپل پلار نه. هغه دَ بي بي عائشې نه. هغې اووې. دَ غل لاس به دَ ډهال يا سپرنه دَ كم قيمت څيز كښې نه شو پريكولے. دا دواړه څيزونه قيمت دار دي دا وكيع او عبد اللّٰه بن ادريس دَ هشام نه روايت كه. هغه دَ خپل پلار مرسل روايت كه.

۵۰۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ

۵۰۸: مونږ ته مسدّد بيان اوكه. وې. مونږ ته يحيٰي بن سعيد قطان. هغه دَ عبيد اللّٰه نه. وې. ماته نافع

نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَجِنٍّ ثَمَنُهُ ثَلٰثَةُ دَرَاهِمَ.

بیان اوکه. هغه دَ عبد الله بن عمرؓ نه' چه حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم دَ یو ډهال غلا کښې لاس پریکړلو' چه دَ هغې قیمت درې (۳) درهم وو.

**۶۵۰۹ :** حَدَّثَنَا اِبْرٰهِیْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ قَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ سَارِقٍ فِيْ مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلٰثَةُ دَرَاهِمَ.

**۶۵۰۹ :** ماته ابراهیم بن منذر بیان اوکه. وې. مونږ ته ابو ضمره (انس بن عیاض) وې. مونږ ته موسٰي بن عقبه' هغه دَ نافع نه' چه عبد الله بن عمرؓ اووې' حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم دَ سپر (ډهال) دَ غل لاس پریکړلو. دَ هغې قیمت درې (۳) درهم وو.

**۶۵۱۰ :** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ السَّارِقُ يَسْرِقُ الْبَيْضَةَ فَتُقْطَعُ يَدُهٗ وَيَسْرِقُ الْحَبْلَ فَتُقْطَعُ يَدُهٗ.

**۶۵۱۰ :** مونږ ته موسٰي بن اسمٰعیل بیان اوکه. وې. مونږ ته عبد الواحد. وې. مونږ ته اعمش. وې. مونږ دَ ابو صالح نه واوریدل. وې. ما دَ ابو هریرهؓ نه. وې. حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. اللّٰه تعالٰي دَ په غل لعنت اوکړي. اګئ (انډا) پټوي. نو دَ هغه لاس پریکولے شي. رَسئ (پړې) پټوي' نو دَ هغه لاس پریکولے شي.

## باب ۲۴۹ : تَوْبَةُ السَّارِقِ.

## باب ۲۴۹ : دَ غل (چور) دَ توبې بیان.

**۶۵۱۱ :** حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ يَدَ امْرَاَةٍ قَالَتْ عَآئِشَةُؓ وَ كَانَتْ تَاْتِيْ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاَرْفَعُ حَاجَتَهَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَابَتْ وَحَسُنَتْ تَوْبَتُهَا.

**۶۵۱۱ :** مونږ ته اسماعیل بن ابي اویس بیان اوکه. وې. مونږ ته عبد الله بن وهب هغه دَ یونس نه' هغه دَ ابن شهاب نه. هغه دَ عروه نه. هغه دَ بي بي عائشےؓ نه. هغې اووې' حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم دَ یوې غلې ښځې (فاطمه مخزومیه) لاس پریکړے وو (لاس ځکه پریکولے شي چه غلا لاس سره کیږي). بي بي عائشهؓ وائي. دې سزا نه پس به هغه ښځه مونږ کره راتله. بیا به ما دَ هغې چه څهٔ کار وو' حضور صلّے اللّٰه علیه وسلّم ته وئیلو. غرض هغې توبه کړه. او ښه توبه ئې اوبنکله.

**۶۲۱۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ اِدْرِيْسَ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَهْطٍ فَقَالَ اُبَايِعُكُمْ عَلٰى اَنْ لَّا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَّلَا تَأْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهُ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَاَرْجُلِكُمْ وَ لَا تَعْصُوْنِيْ فِيْ مَعْرُوْفٍ فَمَنْ وَفّٰى مِنْكُمْ فَاَجْرُهُ عَلَى اللّٰهِ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَاُخِذَ بِهٖ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَ طَهُوْرٌ وَّ مَنْ سَتَرَهُ اللّٰهُ فَذٰلِكَ اِلَى اللّٰهِ اِنْ شَآءَ عَذَّبَهُ وَ اِنْ شَآءَ غَفَرَ لَهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اِذَا تَابَ السَّارِقُ بَعْدَ مَا قُطِعَ يَدُهُ قُبِلَتْ شَهَادَتُهُ وَ كُلُّ مَحْدُوْدٍ كَذٰلِكَ اِذَا تَابَ قُبِلَتْ شَهَادَتُهُ.**

**۶۲۱۵ :** مونږ ته عبد اللّٰه بن مُحمد جُعفي بيان اوكه. وې. مونږ ته هشام بن يُوسف. وې. مونږ ته معمر خبر راكه. هغه دَ زهري نه. هغه دَ ابو ادريس خولاني نه، هغه دَ عباده بن صامت نه، هغه اووې. ما نورو څو سړو سره دَ حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم نه بيعت اوكه، حضور صلّے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. زهٔ تاسونه په دې خبره بيعت اَخلم چه اللّٰه سره به څوک نه شريكوئې. او غلا به نه كوئې. خپل اولاد به نه قتلوئې. په چا به تهمت نه لګوئې. نيكه خبره كښې به څما نافرماني نه كوئ څوک چه دا شرطونه پُوره كړي. دَ هغه ثواب په اللّٰه دې. او څوک چه دې كښې څه خطا اوكړي. هغه به دُنيا كښې سزا بياموميږي. نو هغه به ئې كفاره شي. هغه به ئې پاک كړي، او كه اللّٰه تعالیٰ دَ هغه خطا پټه كړي. نو اوس (آخرت كښې) به اللّٰه تعالیٰ ته اختيار وي. خواه هغه ته عذاب وركړي. خواه معاف ئې كړي. امام بخاريؒ اووې. غل كه لاس پريكولو نه پس توبه اوباسي. نو دَ هغه ګواهي به قبوله وي. دغسې هر حد كښې چه توبه اوكاږي نو ګواهي به ئې قبليږي.

# الحمد للّٰه والشكر للّٰه

## دَ اللّٰه په فضل اوويشتمه (۲۷) پاره ختمه شوه.

تاج

# تاج البخاریؒ

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۲۸


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-20

# تاج البخاري پاره ۲۸ دمضامينو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۵۰. | كفار او مرتد | ۴۲۲۳ |
| ۲۵۱. | محارب مرتد | ۴۲۲۳ |
| ۲۵۲. | محارب مرتد باندې اوبه نهٔ څکول | ۴۲۲۴ |
| ۲۵۳. | د سترګو ويستلو واقعه | ۴۲۲۵ |
| ۲۵۴. | چا چه فحش كارونه پريښودل | ۴۲۲۶ |
| ۲۵۵. | په زناكارو باندې ګناه | ۴۲۲۷ |
| ۲۵۶. | واده شوې زناكار | ۴۲۲۹ |
| ۲۵۷. | ليونې زاني يا زانيه | ۴۲۳۰ |
| ۲۵۸. | زاني د پاره كاڼړي | ۴۲۳۱ |
| ۲۵۹. | بلاط كښې سنګسارول | ۴۲۳۱ |
| ۲۶۰. | عيدګاه كښې سنګسارول | ۴۲۳۲ |
| ۲۶۱. | كومه ګناه كښې چه حد نيشته | ۴۲۲۷ |
| ۲۶۲. | د حد اقرار كول | ۴۲۳۴ |
| ۲۶۳. | اقرار كونكي نه | ۴۲۳۵ |
| ۲۶۴. | مُقِر نه تپوس كول | ۴۲۳۵ |
| ۲۶۵. | د زنا اقرار | ۴۲۳۶ |
| ۲۶۶. | د زنا نه حامله كيدل | ۴۲۳۸ |
| ۲۶۷. | د ناواده كړي حكم | ۴۲۴۳ |
| ۲۶۸. | اهل معاصي | ۴۲۴۴ |
| ۲۶۹. | د چا په غير موجودګئ كښې چه د حد حكم اوشي | ۴۲۴۵ |
| ۲۷۰. | ارشادِ الٰهي | ۴۲۴۶ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۷۱. | كه چرې وينزه زنا اوكړي | ۴۲۴۶ |
| ۲۷۲. | وينزې ته ملامتيا | ۴۲۴۷ |
| ۲۷۳. | دَ ذميانو احكام | ۴۲۴۷ |
| ۲۷۴. | د زنا تهمت لګول | ۴۲۴۸ |
| ۲۷۵. | ادب ښودل | ۴۲۴۹ |
| ۲۷۶. | كه چرې ښځې سره څوک اووينې | ۴۲۵۰ |
| ۲۷۷. | د تعريض په باره كښې | ۴۲۵۱ |
| ۲۷۸. | د تعزيز او ادب دَ خاطره | ۴۲۵۱ |
| ۲۷۹. | فحش كارونه | ۴۲۵۴ |
| ۲۸۰. | تهمت لګول | ۴۲۵۶ |
| ۲۸۱. | په غلامانو باندې تهمت لګول | ۴۲۵۶ |
| ۲۸۲. | د امام حكم د حد په باره كښې څه دې؟ | ۴۲۵۷ |
| | كتاب الديات | |
| ۲۸۳. | مومن لره قصداً قتلونكې | ۴۲۵۸ |
| ۲۸۴. | مَنْ اَحْياها | ۴۲۶۰ |
| ۲۸۵. | تاسو باندې قصاص فرض كړې شوې دې | ۴۲۶۴ |
| ۲۸۶. | قاتل نه تپوس كول | ۴۲۶۴ |
| ۲۸۷. | كه چرې څوک په كاڼړي يا ډنډې سره اووجني | ۴۲۶۵ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۸۸. | دَ خان په بدل كښې خان | ۴۲۶۶ |
| ۲۸۹. | په كاڼړو سره د وژلو قصاص | ۴۲۶۶ |
| ۲۹۰. | ديت يا قصاص | ۴۲۶۷ |
| ۲۹۱. | كه چرې ناحقه قتلول اوغواړي | ۴۲۶۸ |
| ۲۹۲. | په خطا قتل كښې معاف كول | ۴۲۶۹ |
| ۲۹۳. | مومن د پاره جائز نه دي | ۴۲۶۹ |
| ۲۹۴. | قاتل چه يو ځل اقرار اوكړي | ۴۲۷۰ |
| ۲۹۵. | د ښځې په بدل كښې دَ سړي قتل | ۴۲۷۰ |
| ۲۹۶. | د سړي او ښځې په مينځ كښې | ۴۲۷۱ |
| ۲۹۷. | كوم سړې چه خپل حق واخلي | ۴۲۷۱ |
| ۲۹۸. | كله چه څوک په ګڼړه كښې مړ شي | ۴۲۷۲ |
| ۲۹۹. | كله چه څوک په غلطئ سره خپل ځان قتل كړي | ۴۲۷۳ |
| ۳۰۰. | كه چق لګولو سره غابښونه پريوځي | ۴۲۷۳ |
| ۳۰۱. | د غابښ بدل كښې غابښ | ۴۲۷۴ |
| ۳۰۲. | د ګوتو ديت | ۴۲۷۴ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۰۳. | کله چه کنړ کسان څوک قتل کړي | ۴۲۷۵ |
| ۳۰۴. | قسامه | ۴۲۷۶ |
| ۳۰۵. | که څرے په چواندي کښیے د کتونکي ستر که زخمي کړے شي | ۴۲۸۲ |
| ۳۰۶. | عاقله | ۴۲۸۳ |
| ۳۰۷. | د جنین دیت | ۴۲۸۳ |
| ۳۰۸. | دیت به په چا باندے وي | ۴۲۸۵ |
| ۳۰۹. | عاریةً غلام اخستل | ۴۲۸۵ |
| ۳۱۰. | په درنګ او کوهي کښیے مړ کیدونکي | ۴۲۸۶ |
| ۳۱۱. | د ځناورو خون | ۴۲۸۷ |
| ۳۱۲. | ذمي لره بے ګناه قتلول | ۴۲۸۷ |
| ۳۱۳. | مسلمان د کافر په بدل کښیے | ۴۲۸۸ |
| ۳۱۴. | کله چه مسلمان یهودي لره په سپیره اووهي | ۴۲۸۸ |
| | کتاب استتابة المرتدین | |
| ۳۱۵. | شرک ډیر لوئے ظلم دے | ۴۲۹۰ |
| ۳۱۶. | مرتد که ښځه وي که سړے وي | ۴۲۹۲ |
| ۳۱۷. | څوک چه د فرائضو قبلولو نه انکار او کړي | ۴۲۹۵ |
| ۳۱۸. | حضور ته د ګستاخئ الفاظ ویونکیے | ۴۲۹۶ |
| ۳۱۹. | باب ۳۱۹ | ۴۲۹۷ |
| ۳۲۰. | دَ خوارج جو قتل | ۴۲۹۸ |
| ۳۲۱. | تالیف قلوب | ۴۳۰۰ |
| ۳۲۲. | تر هغه وخته به جنګ نه کیږي | ۴۳۰۱ |
| ۳۲۳. | د تاویل کونکو په باره کښیے | ۴۳۰۲ |
| | کتاب الاکراه | |
| ۳۲۴. | چا باندے چه جبر کړے شوے وي | ۴۳۰۶ |
| ۳۲۵. | څوک چه په کفر باندے قتلیدلو له ترجیح ورکړي | ۴۳۰۸ |
| ۳۲۶. | د مجبور حقوق | ۴۳۰۹ |
| ۳۲۷. | د مجبور نکاح جائز نه ده | ۴۳۱۰ |
| ۳۲۸. | په مجبورلو سره څه اخستل | ۴۳۱۱ |
| ۳۲۹. | د اِکراه مطلب | ۴۳۱۱ |
| ۳۳۰. | په مجبوره کړے شوے ښځے باندے حد نیشته | ۴۳۱۲ |
| ۳۳۱. | د ملګري په باره کښیے قسم | ۴۳۱۳ |
| | کتاب الحیل | |
| ۳۳۲. | حیلے ترک کول | ۴۳۱۵ |
| ۳۳۳. | په مونځ کښیے خیله | ۴۳۱۶ |
| ۳۳۴. | په زکوٰة کښیے حیله | ۴۳۱۶ |
| ۳۳۵. | باب ۳۳۵ | ۴۳۱۹ |
| ۳۳۶. | په خرخولو اخستلو کښیے حیله | ۴۳۲۰ |
| ۳۳۷. | د تناجش مکروه والے | ۴۳۲۰ |
| ۳۳۸. | په خرخولو اخستلو کښیے دهوکه | ۴۳۲۰ |
| ۳۳۹. | د وَلي حیله سازي | ۴۳۲۱ |
| ۳۴۰. | وینزه غصب کول | ۴۳۲۱ |
| ۳۴۱. | باب ۳۴۱ | ۴۳۲۲ |
| ۳۴۲. | په نکاح کښیے حیله سازي | ۴۳۲۲ |
| ۳۴۳. | خاوند او بنو سره حیله | ۴۳۲۵ |
| ۳۴۴. | طاعون نه د تختیدلو حیله | ۴۳۲۶ |
| ۳۴۵. | په هبه او شُفعه کښیے حیله | ۴۳۲۷ |
| ۳۴۶. | دَ عامل حیله کول | ۴۳۳۰ |
| | کتاب التعبیر | |
| ۳۴۷. | د خوب تعبیر | ۴۳۳۲ |
| ۳۴۸. | د نیکانو خلقو خوبونه | ۴۳۳۵ |
| ۳۴۹. | خوب د الله د طرفه | ۴۳۳۵ |
| ۳۵۰. | ښه خوب | ۴۳۳۶ |
| ۳۵۱. | بشارتونه | ۴۳۳۷ |
| ۳۵۲. | د یوسف علیه السلام خوب | ۴۳۳۸ |
| ۳۵۳. | د حضرت ابراهیم علیه السلام خوب | ۴۳۳۸ |


ب

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۵۴. | يو قسمه خوب راغي | ۴۳۳۹ |
| ۳۵۵. | د مفسدانو او مشركانو خوبونه | ۴۳۳۹ |
| ۳۵۶. | په خوب كښې نبي كريم صلي الله عليه وسلم ليدل | ۴۳۴۲ |
| ۳۵۷. | د شپے خوب ليدل | ۴۳۴۴ |
| ۳۵۸. | د ورځے خوب ليدل | ۴۳۴۵ |
| ۳۵۹. | د ښځو خوبونه | ۴۳۴۷ |
| ۳۶۰. | خراب خوب | ۴۳۴۸ |
| ۳۶۱. | په خوب كښې پڼے ليدل | ۴۳۴۸ |
| ۳۶۲. | د پيو ډيروالے | ۴۳۴۹ |
| ۳۶۳. | په خوب كښې قميص ليدل | ۴۳۴۹ |
| ۳۶۴. | قميص په راښكلے كيدو ليدل | ۴۳۵۰ |
| ۳۶۵. | په خوب كښې شينكے ليدل | ۴۳۵۰ |
| ۳۶۶. | د ښځے مخ ليدل | ۴۳۵۱ |
| ۳۶۷. | ريښمي كپړه ليدل | ۴۳۵۲ |
| ۳۶۸. | په لاس كښې چابيانے ليدل | ۴۳۵۲ |
| ۳۶۹. | قلابه وغيره ليدل | ۴۳۵۳ |
| ۳۷۰. | په خوب كښې تكيه لاندے ستن ليدل | ۴۳۵۳ |
| ۳۷۱. | په خوب كښې جنت ته داخليدل | ۴۳۵۳ |
| ۳۷۲. | قيد والے ليدل | ۴۳۵۴ |
| ۳۷۳. | بهيدونكے چينه ليدل | ۴۳۵۵ |
| ۳۷۴. | د كوهي نه اوبه راويستل | ۴۳۵۶ |
| ۳۷۵. | يو ډول كمزورئ سره راويستل | ۴۳۵۷ |
| ۳۷۶. | آرام كول | ۴۳۵۸ |
| ۳۷۷. | محل ليدل | ۴۳۵۸ |
| ۳۷۸. | اودس كول | ۴۳۵۹ |
| ۳۷۹. | څوك د كعبے په طواف كولو ليدل | ۴۳۶۰ |
| ۳۸۰. | پاتے شوے څيز بل ته پيش كول | ۴۳۶۰ |
| ۳۸۱. | ويره لرے كيدل | ۴۳۶۱ |
| ۳۸۲. | واپس په لاره تلل | ۴۳۶۲ |
| ۳۸۳. | پياله ليدل | ۴۳۶۳ |
| ۳۸۴. | څه څيز په الوتلو ليدل | ۴۳۶۴ |
| ۳۸۵. | غوا په حلاليدو ليدل | ۴۳۶۴ |
| ۳۸۶. | په خوب كښې پُوكے وهل | ۴۳۶۵ |
| ۳۸۷. | يو څيز په بل ځائے كښې لګول | ۴۳۶۵ |
| ۳۸۸. | توره ښځه ليدل | ۴۳۶۶ |
| ۳۸۹. | ببر سرے ښځه ليدل | ۴۳۶۶ |
| ۳۹۰. | تُوره ليدل | ۴۳۶۷ |
| ۳۹۱. | دروغ خوب بيانول | ۴۳۶۷ |
| ۳۹۲. | ناخوښه څيز ليدل | ۴۳۶۹ |
| ۳۹۳. | د خوب د تعبير تفصيل | ۴۳۷۰ |
| ۳۹۴. | د سحر د مونځ نه پس د خوب تعبير بيانول | ۴۳۷۱ |
| | تمت | |

# اتيشتمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

**باب ۲۵۰ : كِتَابُ الْمُحَارِبِيْنَ مِنْ أَهْلِ الْكُفْرِ وَالرِّدَّةِ. قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى إِنَّمَا جَزَآءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوْا أَوْ يُصَلَّبُوْا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيْهِمْ وَ أَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ.**

**باب ۲۵۰ : ذ جنګ کونکي کافر او مرتد بيان. د' الله تعالٰي قول د دے نه سوا بله خبره نه ده چه د دے خلقو سزا چه الله او رسول سره جنګ کوي او زمکه کښې فساد خوري' دا ده' چه هغوئ دے قتل کړے شي' يا په سولي دے کړے شي' يا د هغوئ لاس پښے دے ادل بدل پريکړے شي' يا دے بے وطنه (جلاوطن) کړے شي.**

۵۱۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ ابْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ أَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ قِلَابَةَ الْجَرَمِيُّ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَرٌ مِنْ عُكْلٍ فَأَسْلَمُوْا فَاجْتَوَوُا الْمَدِيْنَةَ فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَّأْتُوْا إِبِلَ الصَّدَقَةِ فَيَشْرَبُوْا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا فَفَعَلُوْا فَصَحُّوْا فَارْتَدُّوْا وَقَتَلُوْا رُعَاتَهَا وَاسْتَاقُوْا فَبَعَثَ فِيْ آثَارِهِمْ فَأُتِيَ بِهِمْ فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ وَ سَمَلَ أَعْيُنَهُمْ ثُمَّ لَمْ يَحْسِمْهُمْ حَتّٰى مَاتُوْا.

۵۱۳ : علي بن عبد الله' وليد بن مسلم' اوزاعي' يحيي بن ابي کثير' ابو قلابه جرمي' حضرت انسؓ نه روايت کوي ذ هغه بيان دے د نبي صلعم خدمت کښې ذ عکل (قبيلے) خلق حاضر شو. او اسلام ئے راوړلو. د مدينے آب و هوا ذ هغوئ موافق رانغله نو حضورؐ هغے خلقو ته حکم اوکه چه ذ' صدقے اُوښانو له دے لاړ شي ذ هغے متيازے او پئے دے څکي. هغوئ دغسے اوکړل. او تندرست شول. بيا هغه خلق مرتد شول او ذ حضورؐ ګوارچي (چرواهه) ئے قتل کړو او څاروي ئے اوتختول. حضورؐ هغوي پسے سړي اوليږل هغوي راوستے شو (ګرفتار کړے) د حضورؐ په حکم ذ هغوئ لاس پښے پريکړے شو' سترګے ورله راوښکلے شوے. او هغوئ ته (ذ پريکولو په ځائے) داغ ورنکړے شو' تر دے چه مړه شول.

**باب ۲۵۱ : لَمْ يَحْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُحَارِبِيْنَ**

**باب ۲۵۱ : نبيؐ مرتد جنګ کونکو ته داغ اونه لږولو' تر دے چه هغوئ هلاک**

مِنْ اَهْلِ الرِّدَّةِ حَتّٰى هَلَكُوْا.

۵۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّلْتِ اَبُوْ يَعْلٰى حَدَّثَنَا اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ الْعُرَنِيِّيْنَ وَلَمْ يَحْسِمْهُمْ حَتّٰى مَاتُوْا.

شول.

۵۱۴: محمد بن صلت ابو يعلٰي، وليد اوزاعي، يحيٰي، ابو قلابه، حضرت انسؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، چه بيشك نبي صلّي الله عليه وسلّم دَ اهلِ عرينه لاس پښے پريكړے او هغه خلقو ته ئے داغ اونه لږولو، تر دے چه هغوئ مړه شول.

## بَابٌ ۲۵۲: لَمْ يُسْقَ الْمُرْتَدُّوْنَ الْمُحَارِبُوْنَ حَتّٰى مَاتُوْ.

## باب ۲۵۲: د دے امر بيان، چه حضورؐ مرتد محاربينو ته اوبه نه څكولے، تر دے چه هغوئ هلاك شول.

۵۱۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ وُهَيْبٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمَ رَهْطٌ مِنْ عُكْلٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوْا فِيْ صُفَّةٍ فَاجْتَوُوا الْمَدِيْنَةَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَبْغِنَا رِسْلًا فَقَالَ مَا اَجِدُلَكُمْ اِلَّا اَنْ تَلْحَقُوْا بِاِبِلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَوْهَا فَشَرِبُوْا مِنْ اَلْبَانِهَا وَاَبْوَالِهَا حَتّٰى صَحُّوْا وَسَمِنُوْا وَ قَتَلُوْا الرَّاعِيَ وَاسْتَقُوْا الذَّوْدَ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّرِيْخُ فَبَعَثَ الطَّلَبَ فِيْ اٰثَارِهِمْ فَمَا تَرَجَّلَ النَّهَارُ حَتّٰى اُتِيَ بِهِمْ فَاَمَرَ بِمَسَامِيْرَ فَاُحْمِيَتْ فَكَحَلَهُمْ وَ قَطَعَ اَيْدِيَهُمْ وَ وَاَرْجُلَهُمْ وَ مَا حَسَمَهُمْ ثُمَّ اُلْقُوْا فِيْ

۵۱۵: موسٰي بن اسمٰعيل، وهيب، ايوب، قلابه، حضرت انسؓ نه روايت كوي دَ عكل يو جماعت د رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو، او هغه خلق صفه كښ اوسيدل. خو دَ مدينے آب و هوا پرے موافق رانغلله. هغوئ عرض اوكه، يا رسول الله، مونږ د پاره دَ پيو خاروي تلاش كړئے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، زه بغير د دے نه بل صورت نه بيامومم چه څمونږ اوښانو كښ اوسيږئے نو هغه خلق هلته لاړل او دَ هغوئ (يعني دَ اوښانو) متيازے او پئے به ئے څكل، تر دے چه تندرست او غټ شول، نو، كوارچي ئے قتل كه، او اُوښان ئے اوتښتول، نبي صلي الله عليه وسلّم، ته يو خبر رسان راغے، حضورؐ دَ هغوئ دَ تلاش د پاره سړي اُوزغلول. ورځ لا نه وه تيره شوے چه هغوئ نيولے (گرفتار شوے) راوستے شو. حضورؐ سيخونه گرم كړل او دَ هغوئ په ستر گو كښ ئے اووهل او لاس پښے ئے ورله پريكړل. او هغوئ ته ئے داغ اونه لږولو. بيا هغوئ په گرمه زمكه او غرځولے شو اوبه ئے غوښتلے.

الْحَرَّةِ يَسْتَسْقُوْنَ فَمَا سَقَوُا حَتّٰى مَاتُوا قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ سَرَقُوا وَ قَتَلُوْا وَحَارَبُوا اللّٰه وَرَسُوْلَهُ.

خو اوبه ورنه کړے شوے' تر دے چه هغوئ مړه شول. ابو قلابه اووے. هغوي غلا او کړه' او قتل ئے کړے وو' او الله رسول سره ئے جنگ اوکه.

ف: څوک چه الله او رسول سره جنگ کوي نو دغه به ئے نتيجه وي.

۱. دا حديث ددے نه مخکښے هم په مختلفو خايونو کښے تير شوے دے او نوټ هم ورباندے ليکلے شوے دے. پيو بسره ئے د متيازو څکلو هم اجازت دے د پاره ورکړے وو چه په کوم مرض کښے هغوئ مبتلا وو د هغے په دغه زمانه کښے همدغه علاج وو. دغه خلقو روستو دَ غلا هم ارتکاب او کړو ارتداد ئے اختيار کړو او څرورنکے ئے نه صرف قتل کړو بلکه د هغه لاسونه خپے ئے هم پريکړي وو' په دے وجه هغوئ له هم همدغه شان سزا ورکړے شوه ليکن دا په مدينه منوره کښے د پاک حضرتؐ د قيام ابتدائي زمانه وه' روستو په دے طريقے سره د سزا دَ ممانعت حکم اوشو. قاتل چه څرنګے هم قتل اوکړي بهرحال هغه به د هغے په بدله کښے صرف قتلولے شي' د هغه لاس خپو پريکولو سره به د هغه مُثله نشي کولے.

## باب ۲۵۳: سَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْيُنَ الْمُحَارِبِيْنَ.

باب ۲۵۳: دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم' دَ جنگ کونکو سترګو دَ' راوبنکلو بيان.

۶۴۱۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَهْطًا مِنْ عُكْلٍ اَوْ قَالَ عُرَيْنَةَ وَاَعْلَمُهُ اِلَّا قَالَ مِنْ عُكْلٍ قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ فَاَمَرَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلِقَاحٍ وَاَمَرَهُمْ اَنْ يَخْرُجُوْا فَيَشْرَبُوْا مِنْ اَبْوَالِهَا وَ اَلْبَانِهَا فَشَرِبُوْا حَتّٰى اِذَا بَرِءُوْا قَتَلُوا الرَّاعِيَ وَاسْتَاقُوا النَّعَمَ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُدْوَةً فَبَعَثَ الطَّلَبَ فِيْ اَثْرِهِمْ فَمَا ارْتَفَعَ النَّهَارُ حَتّٰى جِيْءَ بِهِمْ فَاَمَرَبِهِمْ فَقَطَعَ

۶۴۱۵: قتيبه بن سعيد' حماد' ايوب' ابو قلابه' حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي. د عکل (قبيلے) يو جماعت' يا وئيلے' دَ عرينه يو جماعت (د' ابو قلابه بيان دے. هغه عکل وو) مدينے ته راغلل. هغوي د پاره نبي صلعم د' اوبنو (اونٹيوں) حکم اوکه. او هغوئ ته ئے حکم اوکه چه هغے اوبنوله لاړشئ' او دَ هغوئ متيازے او پئے دے څکي. هغوئ اوڅکل' تر دے چه کوم وخت هغوئ تندرست شو. نو ګوارچي ئے قتل که' او څاروي ئے اوتبنتول. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته سحر وخت کښے خبر اورسيد' نو دَ هغوئ تلاش پسے ئے سړي اوليږل' اُوس له ورځ سمه ختلے هم نۀ وه چه هغوئ ګرفتار کړے راوستے شو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغوي د لاس' پښو پريکولو حکم اوکړلو. بيائے دَ هغوئ سترګے راوښکلے (يعني سترګے ئے ورله ړندے

أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ وَسَمَرَ أَعْيُنَهُمْ فَأَلْقَوْا بِالْحَرَّةِ يَسْتَسْقُوْنَ فَلَا يُسْقَوْنَ، قَالَ أَبُوْ قِلَابَةَ هٰؤُلَاءِ قَوْمٌ سَرَقُوْا وَقَتَلُوْا وَكَفَرُوْا بَعْدَ إِيْمَانِهِمْ وَحَارَبُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ.

کړلے) او هغوي ئے په ګرمه زمکه او غرځول. هغوئ اوبه غوښتلے، خو ورنه کړے شوے ابو قلابه اووے، دا هغه جماعت دے، چه غلا ئے کړے وه، او قتل ئے کړے وو، او د ايمان راوړلو نه پس کافر شوے وو، او الله او رسول سره ئے جنګ کړے وو.

## بَابٌ ٢٥٤: فَضْلُ مَنْ تَرَكَ الْفَوَاحِشَ

## باب ٢٥٤: ذ هغے سړي ذ فضيلت بيان چه هغه فواحش پريښودل.

٥١٧: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْ ظِلِّهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّهُ إِمَامٌ عَادِلٌ وَ شَابٌّ نَشَأَ فِيْ عِبَادَةِ اللّٰهِ وَ رَجُلٌ ذَكَرَ اللّٰهَ فِيْ خَلَاءٍ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ فِي الْمَسْجِدِ وَ رَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللّٰهِ وَ رَجُلٌ دَعَتْهُ امْرَأَةٌ ذَاتُ مَنْصَبٍ وَجَمَالٍ إِلٰى نَفْسِهَا قَالَ إِنِّيْ أَخَافُ اللّٰهَ وَ رَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا حَتّٰى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا صَنَعَتْ يَمِيْنُهُ.

٥١٧: محمد بن سلام، عبد الله، عبيد الله بن عمر، خبيب بن عبد الرحمٰن، حفص بن عاصم، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے نبي صلعم اوفرمائيل، ذ قيامت په ورځ به الله تعالیٰ اوه (٧) قسمه خلق ذ خپل سوري لاندے کړي، چه په هغه ورځ به ذ هغه د سورلئ نه علاوه بل سورے نه وي، (١) امام عادل (٢) او هغه چه خپله ځواني ئے ذ الله په لار کښ صرف کړے وي. (٣) او هغه سړے چه هغه الله تنهائي کښ ياد کړي او ذ سترګو نه ئے اوښکے جاري شي. (٤) او هغه سړے چه ذ هغه زړهٔ ذ جماعت سره لړيدلے وي. (٥) او هغه دوه (٢) سړي چه خپلو کښ خدائے د پاره محبت کوي. (٦) او هغه سړے چه هغه يو منصب واله خوبصورته ښځه ځان ته اوبلي، او هغه اووائي، چه زه د الله نه يريږم. (٧) او هغه سړے چه په پټه داسے صدقه ورکړي، چه کس لاس ئے ترے هم خبر نه شي، چه ښئ لاس څه ورکړل.

ف: الله پاک دے مونږه هم دے کسانو کښ کړئ. اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آمين.

٥١٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ وَحَدَّثَنِيْ

٥١٨: محمد بن ابي بکر، عمر بن علي (دويم سند) خليفه، عمر بن علي. ابو حازم، سهل بن سعد

خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيّ حَدَّثَنَا حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَكَّلَ لِيْ مَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ وَ مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ تَوَكَّلْتُ لَهُ بِالْجَنَّةِ.

ساعدي نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل: كوم سړے چه ما د پاره د دے څيز ضامن شي، چه د هغه دواړو پښو مينځ كښے (يعني شرمګاه) او هغه څيز چه د هغه دواړو ژامو مينځ كښ دے (يعني ژبه) لو زه د هغه د پاره د جنت ضامن يم.

ف: چا چه خپله ژبه او شرمګاه بے ځايه استعمال نه كړل، نو ځائے لے جنت دے.

**باب ۲۵۵: إِثْمِ الزُّنَاةِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ لَا يَزْنُوْنَ، وَلَا تَقْرَبُوْا الزِّنَا إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَّ سَآءَ سَبِيْلًا.**

**باب ۲۵۵: د زنا كارو د ګناه بيان. او د** الله تعالٰي قول، چه هغه خلق زنا نه كوي او زنا ته نزدے مه ورځئ، ځكه چه دا فحش او خرابه لار ده.

أَخْبَرَنَا دَاوُدُ بْنُ شَبِيْبٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ أَخْبَرَنَا أَنَسٌ قَالَ لَأُحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيْثًا لَا يُحَدِّثُكُمُوْهُ أَحَدٌ مِنْ بَعْدِيْ سَمِعْتُهُ مِنَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعْتُ مِنَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ وَ إِمَّا قَالَ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُّرْفَعَ الْعِلْمُ وَ يَظْهَرَ الْجَهْلُ وَ يُشْرَبَ الْخَمْرُ وَ يَظْهَرَ الزِّنَا وَ يَقِلَّ الرِّجَالُ وَ يَكْثُرَ النِّسَآءُ حَتّٰى يَكُوْنَ لِلْخَمْسِيْنَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ.

موږ ته داؤد بن شبيب په واسطه د همام، قتاده، د حضرت انس قول نقل كړے دے هغه اوويے زه تاسو ته داسے حديث بيانوم، چه مانه پس به ئے تاسو ته هيڅوک بيان نه كړي. مادا، حضور صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلے دي، حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيل، قيامت به نۀ قائميږي، يا، وے فرمائيل، د قيامت دَ نښو نه (يوه) دا ده، چه علم به اوچت كړے شي. او جهالت به خور شي او شراب به څكلے شي، او دَ زنا به كثرت وي سړي به كم شي او، ښځے به زياتے شي. تر دے چه پنځوس ښځو باندے به يو سړے نګران وي.

۶۵۱۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى أَخْبَرَنَا إِسْحٰقُ بْنُ يُوْسُفُ أَخْبَرَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ غَزْوَانَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزْنِي الْعَبْدُ حِيْنَ

۶۵۱۹: محمد بن مثني اسحٰق بن يوسف، فضيل بن غزوان، عكرمه، ابن عباس نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هيڅ بنده زنا نه كوي داسے حال كښ چه هغۀ مؤمن وي، او هيڅ غل (چور) غلا نه كوئ داسے حال كښ چه هغه مؤمن وي. او نه شراب څكي،

يَزْنِيْ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَسْرِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَشْرَبُ حِيْنَ يَشْرَبُ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَقْتُلُ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ قَالَ عِكْرَمَةُ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ كَيْفَ يُنْزَعُ الْاِيْمَانُ مِنْهُ قَالَ هٰكَذَا وَ شَبَّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ ثُمَّ اَخْرَجَهَا فَاِنْ تَابَ عَادَ اِلَيْهِ هٰكَذَا وَ شَبَّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ.

داسې حال کښې، چه هغه مؤمن وي او هيڅ قاتل قتل نه کوي داسې حال کښې، چه هغه مؤمن وي. عکرمه اووې، ما، حضرت ابن عباسؓ نه تپوس اوکه، چه څنګه دَ هغه نه ايمان راښکلې شي هغه اووې، داسې چه خپلې ګوتې ئې خپلو ګوتو کښې ورکړې، بيائې هغه راښکلې. اوکه توبه اوکاږي نو داشان هغې طرف ته واپس راځي، او خپلې ګوتې ئې ګوتو کښې واچولې.

۵۲۰ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزْنِيْ الزَّانِيْ حِيْنَ يَزْنِيْ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَسْرِقُ حِيْنَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَشْرَبُ حِيْنَ يَشْرَبُهَا وَ هُوَ مُؤْمِنٌ وَالتَّوْبَةُ مَعْرُوْضَةٌ بَعْدُ.

۵۲۰ : ادم، شعبه، اعمش، ذکوان، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زنا کونکې (زناکار) زنا نه کوي داسې حال کښې، چه هغه مؤمن وي، او هيڅ سړې غلا نه کوي، داسې حال کښې، چه هغه مؤمن وي، او شراب نه څکي، داسې حال کښې، چه هغه مؤمن وي. او توبه دې نه پس پرانستې ده.

۵۲۱ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ وَ سُلَيْمَانُ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مَيْسَرَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الذَّنْبِ اَعْظَمُ قَالَ اَنْ تَجْعَلَ لِلّٰهِ نِدًّا وَ هُوَ خَلَقَكَ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ اَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ مِنْ اَجْلِ اَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ اَنْ تَزَانِيَ حَلِيْلَةَ جَارِكَ قَالَ يَحْيٰى

۵۲۱ : عمر بن علي، يحيٰي، سفيان، منصور او سليمان، ابو وائل، ابو ميسره، عبد اللّٰهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې. ما عرض اوکه. يا رسول اللّٰه، کومه ګناه دَ ټولو نه لويه ده. حضورؐ او فرمائيل، دا چه اللّٰه سره څوک شريک جوړ کړي، حالانکه هغه ته پيدا کړې ئې. ما تپوس اوکه. بيا کومه يوه، حضورؐ اوفرمائيل، دا چه ته خپل بچې په دې سبب قتل کړې، چه تاسره به ډوډي خوري ماتپوس اوکه. بيا کومه يوه، حضورؐ اوفرمائيل داچه ته دَ خپل ګوانډي ښځې سره

وَحَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ وَاصِلٌ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مِثْلَهٗ قَالَ عَمْرٌو فَذَكَرْتُهٗ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ كَانَ حَدَّثَنَا عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْاَعْمَشِ وَ مَنْصُوْرٍ وَ وَاصِلٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ اَبِيْ مَيْسَرَةَ قَالَ دَعْهُ دَعْهُ.

زنا اوكړې. يحيي اووې ماته سفيان په واسطه د واصل، ابو وائل، د حضرت عبد الله قول نقل كړې، ما عرض اوكه، يا رسول الله. او دغه شان بيان ئې اوكه. عمرو اووې. مادا عبد الرحمن ته بيان اوكه. او هغه مونږ ته په واسطه د سفيان اعمش او منصور، او، واصل، ابو ميسره حديث بيان كړې وو، نو هغه اووې، دا پريږده، دا پريږده.

**باب ۲۵۶ : رَجْمِ الْمُحْصَنِ وَ قَالَ الْحَسَنُ مَنْ زَنٰى بِاُخْتِهٖ حَدُّهٗ حَدُّ الزَّانِيْ.**

**باب ۲۵۶ : د، واده زناكار، د، سنګسارولو بيان.** حسن اووې. چا چه خپلې خور سره زنا اوكړله، هغه ته به هم د، زنا، حد، لږي.

**۵۲۲ :** حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ عَلِيٍّ رضي اللّٰهُ عَنْهُ حِيْنَ رَجَمَ الْمَرْاَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَقَالَ قَدْ رَجَمْتُهَا بِسُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۵۲۲ :** اٰدم، شعبه، سلمه بن كُهيل، شعبي، حضرت عليؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې. كوم وخت چه د جمعې په ورځ حضرت عليؓ يوه ښځه سنګسار كړله، نو وئيلې مادا، د، رسول الله صلي الله عليه وسلم د سنت مطابق سنګسار كړې ده.

**۵۲۳ :** حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ سَاَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰى هَلْ رَجَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ قَبْلَ سُوْرَةِ النُّوْرِ اَمْ بَعْدُ، قَالَ لَا اَدْرِيْ.

**۵۲۳ :** اسحاق، خالد، شيباني نه روايت كوي. د هغه بيان دې. ما د، عبد الله بن ابي اوفي نه تپوس اوكه، آيا نبي صلي الله عليه وسلم سنګسار كړې دي، هغه اووې، او، ما تپوس اوكه، د سورۀ نور نه مخكښې يا ورستو. هغه اووې ماته نه ده معلومه.

**۵۲۴ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ

**۵۲۴ :** محمد بن مقاتل، عبد الله، يونس، ابن شهاب، ابو سلمه، بن عبد الرحمن، حضرت جابر بن عبد الله انصاري نه روايت كوي. د هغه بيان دې د قبيلۀ اسلم نه يو سړې د حضور صلي الله عليه

عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيّ اَنَّ رَجُلًا مِنْ اَسْلَمَ اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثَهُ اَنَّهُ قَدْ زَنٰى فَشَهِدَ عَلٰى نَفْسِهِ اَرْبَعَ شَهَادَاتٍ فَاَمَرَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَ وَكَانَ قَدْ اُحْصِنَ.

وسلّم خدمت کښې حاضر شو. هغه بيان اوکه، ما زنا کړې ده. او په خپل ځان ئې څلور شهادتونه اوکړل (يعني څلور ځله ئې د خپلې ګناه اعتراف اوکړلو) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه د، سنګسارولو حکم اوکه، نو هغه سنګسار کړې شو، او هغه واده شوې (شادي شده) وو.

## باب ٢٥٧: لَا يُرْجَمُ الْمَجْنُوْنُ وَالْمَجْنُوْنَةُ

وَقَالَ عَلِيٌّ لِعُمَرَ اَمَا عَلِمْتَ اَنَّ الْقَلَمَ رُفِعَ عَنِ الْمَجْنُوْنِ حَتّٰى يَفِيْقَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتّٰى يُدْرِكَ وَعَنِ النَّآئِمِ حَتّٰى يَسْتَيْقِظَ.

باب ٢٥٧: ليونے سړي او ليونۍ ښځه دې نه شي سنګسارولې. حضرت عليؓ، حضرت عمرؓ ته اووې آيا تاته نه معلومه چه ليوني نه څو پورې چه هغه هوش کښې رانشي، او بچۍ نه څو پورې چه بالغ نشي او اُوده نه څو پورې بيدار نشي قلم اوچت کړې شوې دې. (يعني څه ګرفت پرې نشي راتلې).

٥٢٥: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَسَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَتٰى رَجُلٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ زَنَيْتُ فَاَعْرَضَ عَنْهُ حَتّٰى رَدَّدَ عَلَيْهِ اَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَلَمَّا شَهِدَ عَلٰى نَفْسِهِ اَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبِكَ جُنُوْنٌ قَالَ لَا قَالَ فَهَلْ اَحْصَنْتَ، قَالَ نَعَمْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذْهَبُوْا بِهٖ فَارْجُمُوْهُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيْ

٥٢٥: يحيي بن بکير، ليث، عقيل، ابن شهاب ابو سلمه او سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي. هغه اووې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له يو سړې راغې دغه وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم جماعت کښې تشريف فرما وو. هغه حضورؐ ته آواز اوکه، اووئيلې، يا رسول اللّٰه، ما زنا کړې ده. حضور د هغه نه مخ واړولو، تر دې چه هغه څلور خله دغه کلمات اووې. کوم وخت چه هغه په ځان څلور شهادتونه ورکړل، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه راوغوښتلو (يعني ځان ته ئې رانزدې که) او ورته ئې اوفرمائيل، آيا ته ليونے شوې ئې. هغه اووې نه. حضورؐ ورته اوفرمائيل، آيا ته واده شوې ئې، هغه اووې، او. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دې بوځئې، سنګسار، ئې کړئې. د، ابن شهاب بيان دې. ماته هغه سړي بيان اوکه، هغه د جابر بن عبد اللّٰه نه

مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ فَكُنْتُ فِيْمَنْ رَجَمَهُ فَرَجَمْنَاهُ بِالْمُصَلّٰى، فَلَمَّا اَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ هَرَبَ فَاَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ فَرَجَمْنَاهُ.

واوریدل. هغه اووې. زه هم هغه سنګسار کونکو کښې ووم. او مقام مصلّي کښې مونږ هغه سنګسار کړلو. کوم وخت چه هغه په کاڼږو اولږید. نو اُوتښتیدلو. نو مونږ مقام حره کښې راونیولو. او سنګسار' مو کړلو.

## باب ۲۵۸ : لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ.

## باب ۲۵۸ : زنا کار د پاره کاڼړي دي.

۵۲۶ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتِ اخْتَصَمَ سَعْدٌ وَّابْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَاحْتَجِبِيْ مِنْهُ يَا سَوْدَةَ زَادَ لَنَا قُتَيْبَةُ عَنِ اللَّيْثِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ.

۵۲۶ : ابو الولید' لیث' ابن شهاب' عروه' بي بي عائشې نه روایت کوي. دَ سعد ابن زمعه مینځ کښې دَ' یو هلک متعلق اختلاف پیدا شو' نو نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اے عبد بن زمعه' هغه ستا دے. هلک دَ هغه چادے چه دَ هغه په بستره پیدا شي. او اے سودهؓ ته د' ده نه پرده کوه. او قتیبه په واسطه د' لیث دومره زیات بیان اوکه چه زنا کار د پاره کاڼړي دي.

۵۲۷ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ.

۵۲۷ : اٰدم' شعبه' محمد بن زیاد' حضرت ابو هریرهؓ نه روایت کوي دَ هغه بیان دے' حضورؐ صلي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. هلک د بسترے والا دے' او زنا کار د پاره کاڼړي دي.

## باب ۲۵۹ : الرَّجْمِ فِي الْبَلَاطِ

## باب ۲۵۹ : بلاط کښې دَ سنګسارولو بیان.

۵۲۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ عَنْ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَهُوْدِيٍّ وَ يَهُوْدِيَّةٍ قَدْ اَحْدَثَا جَمِيْعًا فَقَالَ لَهُمْ مَا تَجِدُوْنَ لَهُمْ مَا تَجِدُوْنَ

۵۲۸ : محمّد بن عثمانَ' خالد بن مخلد' سلیمان' عبد اللّٰه بن دینار ابن عمرؓ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دے حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته یو یهودي سړے او یوه یهودنړه ښځه راستے شوه هغوئ زنا کړے وه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هغے خلقو ته اوفرمائیل' ستاسو کتاب کښې څه حکم دے. هغوئ اووے. څمونږ علماؤ' مخ تورول او په خر آړولے سورل ښودلے دي.

فِيُ كِتَابِكُمُ قَالُوُا اِنَّ اَحُبَارَنَا اَحُدَثُوُا تَحُمِيُمَ الُوَجُهِ وَالتَّجُبِيَةَ قَالَ عَبُدُ اللّٰهِ بُنُ سَلَامٍ اُدُعُهُمُ يَا رَسُوُلَ اللّٰهِ بِالتَّوُرَاةِ فَأُتِيَ بِهَا فَوَضَعَ اَحَدُهُمُ يَدَهُ عَلٰى اٰيَةِ الرَّجُمِ وَ جَعَلَ يَقُرَأُ مَا قَبُلَهَا وَ مَا بَعُدَهَا فَقَالَ لَهُ ابُنُ سَلَامٍ ارُفَعُ يَدَكَ فَاِذَا اٰيَةُ الرَّجُمِ تَحُتَ يَدِهٖ فَاَمَرَ بِهِمَا رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَا قَالَ ابُنُ عُمَرَ فَرُجِمَا عِنُدَ الُبَلَاطِ فَرَاَيُتُ الُيَهُوُدِيَّ اَحُنَا عَلَيُهَا.

عبد الله بن سلام عرض اوكه' يا رسول الله دوئ ته د تورات راوړلو حكم وركړے' نو تورات راوړلے شو هغوئ كښې يو كس د' سنګسار په آيت خپل لاس كيښودلو. او د هغے مخكښې او ورستو ئے لوستل شروع كړل' عبد الله بن سلام اووے خپل لاس اوچت كه. نو هلته د هغه د لاس د لاندے د' سنګسار' آيت وو' حضور صلعم د هغے دواړو (زنا كارو) د سنګسارولو حكم اوكه او دواړه سنګسار كړے شو. ابن عمرؓ اووے. دواړه بلاط كښې سنګسار كړے شو ما هغه يهودي سړے اوليدلو' چه په ښځه ورخكته شوے وو.

## باب ٢٦٠ : اَلرَّجُمِ بِالُمُصَلّٰى.

## باب ٢٦٠ : عيدګاه كښې د سنګسارولو بيان.

٥٢٩ : حَدَّثَنَا مَحُمُوُدٌ حَدَّثَنَا عَبُدُ الرَّزَّاقِ اَخُبَرَنَا مَعُمَرٌ عَنِ الزُّهُرِيِّ عَنُ اَبِيُ سَلَمَةَ عَنُ جَابِرٍ اَنَّ رَجُلًا مِنُ اَسُلَمَ جَآءَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ فَاعُتَرَفَ بِالزِّنَا فَاَعُرَضَ عَنُهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى شَهِدَ عَلٰى نَفُسِهٖ اَرُبَعَ مَرَّاتٍ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ اَبِكَ جُنُوُنٌ قَالَ لَا قَالَ اَحُصَنُتَ قَالَ نَعَمُ فَاَمَرَ بِهٖ فَرُجِمَ' بِالُمُصَلّٰى فَلَمَّا اَذُ لَقَتُهُ الُحِجَارَةُ فَرَّ فَاُدُرِكَ فَرُجِمَ' حَتّٰى مَاتَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ' لَمُ يَقُلُ يُوُنُسُ وَابُنُ جُرَيُجٍ عَنِ الزُّهُرِيِّ

٥٢٩ : محمود' عبد الرزاق' معمر' زهري' ابو سلمة' حضرت جابرؓ نه روايت كوي' هغه اووے' د قبيله اسلم يو سړے د حضور صلعم خدمت كښې حاضر شو او د' زنا اقرار ئے اوكه' نبي صلعم د هغه نه خپل مخ مبارك واړولو' تر دے چه هغه په خپل ځان څلور ځله شهادتونه اوكړل' نبي صلعم هغه ته اوفرمائيل' آيا ته ليونے شوے ئے. هغه اووے' نه. حضورؐ ورته اوفرمائيل' آيا ته واده شوے ئے. هغه اووے' او. حضور صلعم د هغه د سنګسيارولو حكم وركړلو' نو هغه عيدګاه كښې سنګسار كړے شو. كوم وخت چه په كاڼړو اولړيدلو' نو اوتختيدلو' خو اونيولے شو. او رجم (سنګسار) كړے شو' تر دے چه مړ شولو. نبي صلعم د هغه نيكي سره ذكر اوكړلو. او په هغه ئے مونځ اوكړلو. يونس او ابن جرزيج د' زهري نه: فصلي عليه: (په هغه ئے مونځ اوكه)

فَصَلَّى عَلَيْهِ.

نه دي نقل کړې.

**باب ۱۲۶۱: مَنْ اَصَابَ ذَنْبًا دُوْنَ الْحَدِّ فَاَخْبَرَ الْاِمَامَ فَلَا عُقُوْبَةَ عَلَيْهِ بَعْدَ التَّوْبَةِ اِذَا جَآءَ مُسْتَفْتِيًا، قَالَ عَطَآءٌ لَمْ يُعَاقِبْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ وَلَمْ يُعَاقِبِ الَّذِیْ جَامَعَ فِيْ رَمَضَانَ وَلَمْ يُعَاقِبْ عُمَرُ صَاحِبَ الظَّبْيِ وَ فِيْهِ عَنْ اَبِیْ عُثْمَانَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۱۲۶۱:** که يو سړے د، داسې ګناه مرتکب شي، چه د هغې حد نه وي. او امام ذَ هغې نه خبر کړي، نو توبه کولو نه پس هغه باندې هيڅ حد نشته، هر کله چه هغه حکم دريافت کولو د پاره راشي. ذَ عطاء بيان دے. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه له سزا ورنه کړله. او ابن جريج اووے، حضورٌ هغې سړي له سزا ورنه کړله، چه هغه رمضان کښې خپلې ښځې سره جماع کړې وه. او حضرت عمرٌ په حالت د، احرام کښې د، اوسئ (هرڼې) ښکار کونکي له سزا ورنه کړله. او دے باب کښې د، ابو عثمان، ابن مسعودٌ، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه منقول دي.

**۶۵۳۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَجُلًا وَقَعَ بِامْرَاَتِهٖ فِيْ رَمَضَانَ فَاسْتَفْتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلْ تَجِدُ رَقَبَةً قَالَ لَا قَالَ هَلْ تَسْتَطِيْعُ صِيَامَ شَهْرَيْنِ قَالَ لَا قَالَ فَاَطْعِمْ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا وَ قَالَ اللَّيْثُ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْقَاسِمِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَتٰى رَجُلُ النَّبِيَّ**

**۶۵۳۰:** قتيبه، ليث، ابن شهاب، حميد بن عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريرهٌ نه روايت کوي ذَ هغه بيان دے. يو سړي رمضان کښې خپلې ښځې سره کوروالے اوکه. بيا هغه ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه مسئله اوپښتله، حضورٌ ورته اوفرمائيل، آيا تاسره غلام شته. هغه اووے نه، حضورٌ ورته اوفرمائيل، آيا ته دوه مياشتې روژې نيولې شې. هغه اووے نه. حضورٌ ورته اوفرمائيل ته شپيته مسکينانو باندې طعام اوخورو. او ليث په واسطه ذَ عمرو بن حارث، عبدالرحمٰن بن قاسم، محمد بن جعفر بن زبير بن عباد بن عبد اللّٰه بن زبيرٌ، بي بي عائشېٌ نه روايت کوي، يو سړے د نبي صلعم خدمت کښې جمات کښې ذَ حضور صلعم خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکه زه هلاک شوم. حضورٌ صلعم ترې تپوس اوکه، څه چل اوشو. هغه اووے، ما خپلې بي بي سره ذَ روژې مياشت (رمضان) کښې صحبت اوکه.

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ قَالَ احتَرَقْتُ قَالَ مِمَّ ذٰلِكَ قَالَ وَقَعْتُ بِامْرَاَتِيْ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ شَيْءٌ فَجَلَسَ وَ اَتَاهُ اِنْسَانٌ يَسُوْقُ حِمَارًا وَّ مَعَهُ طَعَامٌ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ مَا اَدْرِيْ مَا هُوَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَيْنَ الْمُحْتَرِقُ فَقَالَ هَا اَنَا ذَا قَالَ خُذْ هٰذَا فَتَصَدَّقَ بِهٖ قَالَ عَلٰى اَحْوَجَ مِنِّيْ مَا لِاَهْلِيْ طَعَامٌ قَالَ فَكُلُوْهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْحَدِيْثُ الْاَوَّلُ اَبْيَنُ قَوْلُهٗ اَطْعِمْ اَهْلَكَ.

حضورؐ ورته اوفرمائيل، صدقه ورکه، هغه اووے، ماسره هيڅ نشته. بيا هغه کيناست. حضورؐ ته يو سړے خر باندے غله اچولے، راغے. عبد الرحمٰن اووے تاته نۀ ده معلومه، چه کوم قسم غله وه، چه حضورؐ ته ئے راوړے وه. حضورؐ اوفرمائيل، هغه هلاکيدونکے کوم ځائے دے. هغه اووے. زه دلته يم. حضورؐ ورته اوفرمائيل داغله، واخله خيرات ئے کړه. هغه تپوس اوکه، آيا د ځان نه زيات محتاج ته ئے ورکړم. ځما کوروالو سره خوراک نشته. حضورؐ ورته اوفرمائيل، په هغوئ ئے اوخوروه. ابو عبد الله (بخاريؒ) اووے، ورمبنے حديث زيات واضحه دے. چه هغے کښ د: اَطْعِمْ اهلك: الفاظ دي.

## بَاب ۲۶۲: اِذَا اَقَرَّ بِالْحَدِّ وَلَمْ يُبَيِّنْ هَلْ لِلْاِمَامِ اَنْ يَّسْتُرَ عَلَيْهِ.

باب ۲۶۲: که يو سړے دَ حد اقرار اوکړي، او هغه ظاهر نه کړي، نو آيا امام ته اختيار دے چه دَ هغه پرده پوشي اوکړي.

۱۵۳۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْقُدُّوْسِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ الْكِلَابِيُّ حَدَّثَنَا هَمَّامُ ابْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَصَبْتُ حَدًّا فَاَقِمْهُ عَلَيَّ قَالَ وَلَمْ يَسْاَلْهُ عَنْهُ قَالَ وَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلّٰى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۵۳۱: عبد القدوس بن محمد، عمرو بن عاصم کلابي، همام بن يحيٰي، اسحاق بن عبد بن ابي طلحه حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي دَ هغه بيان دے، زه نبي صلي الله عليه وسلم سره وُوم، يو سړے راغے، عرض ئے اوکه، يا رسول الله، زه دَ حد واله د گناه مرتکب شوے يم، نو تاسوؐ په ما حد قائم کوئے. حضور دَ هغه نه د هغے گناه متعلق هيڅ تپوس اونه کړو. بيا د مونځ وقت راغے، نو هغے سړي حضور صلي الله عليه وسلم سره مونځ اوکه. کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ مانځه نه فارغ شو، نو هغه سړے بيا حضور صلي الله عليه وسلم ته راغے. او وئيلے، يا رسول الله، زه دَ حد واله گناه مرتکب شوے يم، نو تاسوؐ دَ

الصَّلٰوةَ قَامَ اِلَيْهِ الرَّجُلُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَصَبْتُ حَدًّا فَاَقِمْ فِيَّ كِتَابَ اللّٰهِ قَالَ اَلَيْسَ قَدْ صَلَّيْتَ مَعَنَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاِنَّ اللّٰهَ قَدْ غَفَرَلَكَ ذَنْبَكَ اَوْ قَالَ حَدَّكَ.

کتاب الله حد په ما قائم کړئ. حضورؐ ورته اوفرمائيل. تا مونږ سره مونځ نه دے کړے هغه اووے. او. (کړے مے دے) حضورؐ ورته اوفرمائيل چه الله، ستا ګناه يا، وے فرمائيل ستا حد اوبخلو.

**باب ۲۶۳ : هَلْ يَقُوْلُ الْاِمَامُ لِلْمُقِرِّ لَعَلَّكَ لَمَسْتَ اَوْ غَمَزْتَ،**

**باب ۲۶۳ :** آيا امام اقرار کونکي ته وئيلے شي، چه شايد تا مَس کړے وي، يا اشاره دے کړے وي.

**۵۳۲:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ يَعْلَى بْنَ حَكِيْمٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا اَتٰى مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ اَوْ غَمَزْتَ اَوْ نَظَرْتَ قَالَ لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَنِكْتَهَا لَا يَكْنِيْ قَالَ فَعِنْدَ ذٰلِكَ اَمَرَ بِرَجْمِهٖ.

**۵۳۲ :** عبد الله بن محمّد جعفي، وهب بن جرير، جرير، يعلي بن حکيم، عکرمه ابن عباسؓ نه روايت کوي، کوم وقت چه ماعزبن مالک دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او دَ زنا اقرار ئے، اوکه، نو حضورؐ هغه ته او فرمائيل چه شايد تابوسه (کوکئے) اخستے وي، يا اشاره دے کړے وي يا ليدلے دي وي، هغه اووے نه يا رسول الله، حضورؐ اوفرمائيل آيا هغے سره دِ کوروالے (صحبت) کړے دے. يعني بغير څه کنائے ئے صراحةً دريافت اوکه. دَ راوي بيان دے، دے نه پس حضورؐ دَ هغه دَ سنګسار کولو حکم ورکړلو.

**بَابُ ۲۶۴ : سُوَالِ الْاِمَامِ الْمُقِرَّ هَلْ اَحْصَنْتَ.**

**باب ۲۶۴ :** دَ اقرار کونکي نه دَ، امام دريافت کول چه آيا ته واده شوے ئے.

**۵۳۳:** حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَاَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ مِنَ النَّاسِ وَ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

**۵۳۳ :** سعيد بن عفير، ليث، عبد الرحمٰن بن خالد، ابن شهاب، ابن مسيب او ابو سلمه نه روايت کوي. دَ حضرت ابو هريره نه بيان دے، يو سړے نبي صلي الله عليه وسلّم له راغے. او دغه وخت حضورؐ په جمات کښې وو، هغه نعره کړے يا رسول الله ما زنا کړے ده. نبي صلي الله عليه وسلّم دَ هغه نه مخ واړولو، بيا هغه حضور ته بلے مخے ته راغے. اووئيلے، يا رسول

إِنِّيْ زَنَيْتُ يُرِيْدُ نَفْسَهُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَنَحّٰى لِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِيْ أَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّيْ زَنَيْتُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَجَآءَ لِشِقِّ وَجْهِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ أَعْرَضَ عَنْهُ فَلَمَّا شَهِدَ عَلٰى نَفْسِهٖ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَبِكَ جُنُوْنٌ قَالَ لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ أَحْصَنْتَ، قَالَ نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اذْهَبُوْا فَارْجُمُوْهُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ أَخْبَرَنِيْ مَنْ سَمِعَ جَابِرًا قَالَ فَكُنْتُ فِيْمَنْ رَجَمَهُ فَرَجَمْنَاهُ بِالْمُصَلّٰى فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ جَمَزَ حَتّٰى أَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ فَرَجَمْنَاهُ.

الله، ما زنا کړې ده. حضورؐ د هغه نه مخ واړولو نو هغه نبي صلعم ته د، دريم طرف نه راغے اووئيلے. يا رسول الله ما زنا کړې ده. حضورؐ ترے بيا مخ واړولو، نو بيا دَ څلورم طرف نه حضور ته مخے ته راغے. کوم وخت چه هغه په خپل ځان څلور ځله شهادت ور کړلو، نو نبي صلي الله عليه وسلم هغه راوغوښتلو (يعني رانزدے ئے که) او ورته ئے او فرمائيل، آيا ته ليونے شوے ئے هغه اووے نه، يا رسول الله، حضورؐ ورته اوفرمائيل آيا ته واده شوے (شادي شده) ئے. هغه اووے. جي. او يا رسول الله نو حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل. دے بوځئے سنګسار ئے کړئے. د، ابن شهاب بيان دے. ماته هغے سړي بيان او که، هغه د جابر نه واوريدل، مونږ هغه سړے عيد ګاه کښې سنګسار (رجم) کړلو. کوم وخت چه په کاڼو اولګيدلو، نو اوتښتيدلو. خو مونږه مقام حره کښې رانيولو او سنګسار، مو، کړلو.

## باب ۲۶۵ : اَلْاِعْتِرَافِ بِالزِّنَا.

## باب ۲۶۵ : د، زنا د، اقرار کولو بيان.

۵۳۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنْ فِيِّ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ وَزَيْدَ بْنَ خَالِدٍ قَالَا كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ رَجُلٌ أَنْشُدُكَ اللّٰهَ إِلَّا قَضَيْتُ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَامَ خَصْمُهُ وَ كَانَ أَفْقَهَ مِنْهُ فَقَالَ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَ أْذَنْ لِيْ قَالَ قُلْ

۵۳۴ : علي بن عبد الله، سفيان، زهري عبيد الله، حضرت ابو هريرهؓ او زيد بن خالدؓ روايت کوي. مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره وو يو سړے اودريد، وئيلے، زه تاسوؐ ته قسم درکولو سره وائم، چه خمونږ مينځ کښې دَ خدائے د کتاب موافق فيصله او کړئے، او ماته د عرض کولو اجازت راکړئے حضورؐ ورته اوفرمائيل، بيان کړه هغه اووے ځما خوئ دے سړي سره په مزدوري و، و، د ده ښځے سره (ځما خوئ) زنا اوکړه. يو سل چيلے او يو خادم ما فديه کښې ورکړل.

قَالَ اِنَّ ابْنِیْ کَانَ عَسِیْفًا عَلٰی هٰذَا فَزَنٰی بِامْرَاَتِهٖ فَافْتَدَیْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَ خَادِمٍ ثُمَّ سَاَلْتُ رِجَالًا مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ فَاَخْبَرُوْنِیْ اَنَّ عَلٰی ابْنِیْ جَلْدَ مِائَةٍ وَ تَغْرِیْبَ عَامٍ وَّ عَلٰی اِمْرَاَتِهِ الرَّجْمُ فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ لَاَقْضِیَنَّ بَیْنَکُمَا بِکِتَابِ اللّٰهِ جَلَّ ذِکْرُهٗ الْمِائَةُ شَاةٍ وَالْخَادِمُ رَدٌّ عَلَیْكَ عَلٰی ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِیْبُ عَامٍ وَاغْدُ یَا اُنَیْسُ عَلٰی اِمْرَاَةِ هٰذَا فَاِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا فَغَدَا عَلَیْهَا فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا قُلْتُ لِسُفْیَانَ لَمْ یَقُلْ فَاَخْبَرُوْنِیْ اَنَّ عَلٰی اِبْنِیْ الرَّجْمَ فَقَالَ اَشُكُّ فِیْهَا مِنَ الزُّهْرِیِّ فَرُبَّمَا قُلْتُهَا وَ رُبَّمَا سَکَتُّ.

بیا ما د، اهلِ علمو نه په په دې حقله تپوس اوکه نو هغوئ اووې، څما خوئې به سل کوړې وهلې شي او یو کال د پاره به بې وطنې (جلا وطن) کیږي او د ده ښځه به رجم (سنګسار) کیږي. نبي صلي الله علیه وسلّم او فرمائیل په هغه ذات مِ دِ قسم وي، چه دَ هغه په قبضه کښې څما ساه ده، زه به ستاسو مینځ کښې دَ کتاب اللّٰه مطابق فیصله اوکړم، سل چیلئې او خادم خو به تاته واپس کولې شي. او ستا خوئې به سل کوړې وهلې شي، او یو کال د پاره به بې وطنه کولې شي او آې اُنیسَ ته سحر ته د ده ښځې له ورشه، که هغه اقرار اوکړي، نو هغه سنګساره کړه. بخاري وائي. ما د سفیان ته اووې، زهري دا بیان نه دې کړې: فَاخبروني انّ علٰي ابن الرجم: (هغه اووې چه څما په څوئ رجم دې). سفیان اووئې ماته دې کښې دَ، زهري نه دَ اوریدو متعلق شک دې. کله زه دا، وائم او کله خاموش شم.

۵۳۵: حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنْ عُبَیْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ عُمَرُ لَقَدْ خَشِیْتُ اَنْ یَّطُوْلَ بِالنَّاسِ زَمَانٌ حَتّٰی یَقُوْلَ قَائِلٌ لَا نَجِدُ الرَّجْمَ فِیْ کِتَابِ اللّٰهِ فَیَضِلُّوْا بِتَرْكِ فَرِیْضَةٍ اَنْزَلَهَا اللّٰهُ اَلَا وَ اَنَّ الرَّجْمَ حَقٌّ عَلٰی مَنْ زَنٰی وَ قَدْ اَحْصَنَ اِذَا قَامَتِ الْبَیِّنَةُ اَوْ کَانَ الْحَمْلُ اَوِ الْاِعْتِرَافُ قَالَ سُفْیَانُ کَذَا

۵۳۵: علي بن عبد اللّٰه، سفیان، زهري، عبید اللّٰه، ابن عباسؓ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دې حضرت عمرؓ اووې، ما سره اندیښنه ده، یوه زمانه به په خلقو داسې راشي، یو ویونکې به وائي، مونږ کتاب اللّٰه کښې د رجم (سنګسارئ) حکم نه بیامومو، نو هغوي به یو فرض پریږدي ګمراه به شي، چه اللّٰه تعالٰي نازل کړې دې. خبردار رجم واجب دې په هغه چا چه زنا، ئې کړې وي، او واده شوې (شادي شده) وي، په شرط د دې چه په هغه ګواهي قائمه شي، یا حمل شي، یا اقرار، وي

حَفِظْتُ اَلَا وَقَدْ رَجَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجَمْنَا بَعْدَهٗ.

سفيان اووے، دا شان ماته ياد کړے دي واورئ رسول اللّٰه حکم د، رجم کړے دے او د حضور صلعم نه پس موږ رجم کړے دے.

## بَاب ۲۶۶: رَجْمِ الْحُبْلٰى مِنَ الزِّنَا اِذَا اَحْصَنَتْ.

## باب ۲۶۶: د، واده شوے ښځے زنا سره حامله کيدو باندے د، سنګسارولو بيان.

۶۳۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ اُقْرِئُ رِجَالًا مِّنَ الْمُهَاجِرِيْنَ مِنْهُمْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ فَبَيْنَمَا اَنَا فِيْ مَنْزِلِهٖ بِمِنًى وَ هُوَ عِنْدَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فِيْ اٰخِرِ حَجَّةٍ حَجَّهَا اِذْ رَجَعَ اِلَيَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ لَوْ رَاَيْتَ رَجُلًا اَتٰى اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ الْيَوْمَ فَقَالَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ هَلْ لَكَ فِيْ فُلَانٍ يَقُوْلُ لَوْ قَدْ مَاتَ عُمَرُ لَقَدْ بَايَعْتُ فُلَانًا فَوَ اللّٰهِ مَا كَانَتْ بَيْعَةُ اَبِيْ بَكْرٍ اِلَّا فَلْتَةً فَتَمَّتْ فَغَضِبَ عُمَرُ ثُمَّ قَالَ اِنِّيْ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ لَقَائِمٌ الْعَشِيَّةَ فِي النَّاسِ فَمُحَذِّرُهُمْ هٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّغْصِبُوْهُمْ اُمُوْرَهُمْ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَا تَفْعَلْ فَاِنَّ الْمَوْسِمَ يَجْمَعُ رَعَاعَ النَّاسِ وَ غَوْغَائَهُمْ فَاِنَّهُمْ

۶۳۶۵: عبد العزيز بن عبد اللّٰه ابراهيم بن سعد صالح، ابن شهاب، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه بن عتبه بن مسعود، حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. ۮ هغه بيان دے. ما به، ۮ مهاجرينو څنو خلقو ته سبق ورکولو هغوئ کښې عبد الرحمٰن بن عوف هم و،و. يو ورځ زه منيٰ کښې ۮ هغه کور کښې ناست ووم او هغه حضرت عمرؓ بن خطاب سره و،و، هغے حج کښې چه حضرت عمرؓ به آخري وار کړے وو. عبد الرحمٰن ماته واپس راغے اووئيلے، کاش، چه تا هغه سړے ليدلے وے چه نن امير المؤمنين له راغے. اووئيلے. اے امير المؤمنين، تاسو ته ۮ فلاني متعلق څۀ خبر شته چه وائي، که عمرؓ مړشي، نو زه به ۮ فلاني نه بيعت اوکړم. په خدائے مِ دے قسم وي د، ابوبکرؓ بيعت اتفاقيه وو، چه پوره شو، نو حضرت عمرؓ له غصه ورغله. بيائے اووے زه به انشاء اللّٰه ۮ مابنام وخت کښې خلقو کښې اودريږم، او هغوئ به اويروم، چه ۮ مسلمانانو اُمور غصب کول غواړي. ۮ عبدالرحمٰن بيان دے. ما اووے، اے امير المؤمنين، داسے مه کوئے، په دے چه حج موسم کښې جاهلان رزيلان او پست قسم خلق جمع کيږي. کوم وخت چه تاسو اودريږے، نو د دے قسم خلقو اکثريت به تاسو سره وي. او ماسره يره ده چه تاسو اودريږئے کومه خبره کوئے، هغه به واﺉوخوئ

هُمُ الَّذِيْنَ يَغْلِبُوْنَ عَلٰى قُرْبِكَ حِيْنَ تَقُوْمُ فِي النَّاسِ وَ اَنَا اَخْشٰى اَنْ تَقُوْمَ فَتَقُوْلَ مَقَالَةً يُطَيِّرُهَا وَ اَنْ لَا يَضَعُوْهَا عَلٰى مَوَاضِعِهَا فَامْهَلْ حَتّٰى تَقْدَمَ الْمَدِيْنَةَ فَاِنَّهَا دَارُ الْهِجْرَةِ وَالسُّنَّةِ فَتَخْلُصَ بِاَهْلِ الْفِقْهِ وَاَشْرَافِ النَّاسِ فَتَقُوْلُ مَا قُلْتَ مُتَمَكِّنًا فَيَعِيْ اَهْلُ الْعِلْمِ مَقَالَتَكَ وَ يَضَعُوْنَهَا عَلٰى مَوَاضِعِهَا فَقَالَ عُمَرُ اَمَا وَاللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَقُوْمَنَّ بِذٰلِكَ اَوَّلَ مَقَامٍ اَقُوْمُهُ بِالْمَدِيْنَةِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ فِيْ عَقِبِ ذِي الْحَجَّةِ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ عَجَّلْنَا الرَّوَاحَ حِيْنَ زَاغَتِ الشَّمْسُ حَتّٰى اَجِدَ سَعِيْدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ جَالِسًا اِلٰى رُكْنِ الْمِنْبَرِ فَجَلَسْتُ حَوْلَهُ تَمَسُّ رُكْبَتِيْ رُكْبَتَهُ فَلَمْ اَنْشَبْ اَنْ خَرَجَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَلَمَّا رَاَيْتُهُ مُقْبِلًا قُلْتُ لِسَعِيْدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ لَيَقُوْلَنَّ الْعَشِيَّةَ مَقَالَةً لَمْ يَقُلْهَا مُنْذُ اسْتُخْلِفَ فَاَنْكَرَ عَلَيَّ وَقَالَ مَا عَسَيْتَ اَنْ يَقُوْلَ مَا لَمْ يَقُلْ قَبْلَهُ فَجَلَسَ عُمَرُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَلَمَّا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُوْنَ قَامَ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنِّيْ قَائِلٌ لَكُمْ مَقَالَةً قَدْ قُدِّرَ لِيْ اَنْ اَقُوْلَهَا

او هر طرف ته به ئې اورسوي، او دَ هغې حفاظت به نه کوي او هغه به دَ هغې په مناسب ځائې نه کوي. نو تاسو انتظار اوکړئې تر دې تاسو مدينې ته اورسئې ځکه چه هغه دارالهجرت والسنة دې، صرف د پوهې او سربرآورده خلقو مخکښې تاسو چه څهٔ وئيل غواړې، هغه اووئې، اهل علم به ستاسو خبرې محفوظ اوساتي، او هغه به په خپل مناسب مقام استعمال کړي. حضرت عمرؓ اووې، په خدائې م دې قسم وي، که خدائې ته منظوره وي، نو مدينه کښې به دَ ټولو نه مخکښې زهٔ دا بيانوم. ابن عباسؓ وائي مونږ خلق د ذالحجه آخر کښې مدينې ته اورسيدو. چه دَ جمعې ورځ راغله، نو نمر زوال کيدو سره مونږ جمات طرف ته په تادي روان شو، تر دې چه ما سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل دَ منبر ستنې سره ناست بيامند، زهٔ هم هغه سره کيناستم څما ګُنډې دَ هغه ګُنډې سره لږيدلې وه سمدستي حضرت عمر بن خطاب راووتلو. کوم وخت چه ما هغه په راتلو اوليدلو، نو ما سعيد بن زيد بن عمر بن نفيل ته اووې، نن به حضرت عمرؓ يوه داسې خبره کوي، چه هغه هيچرې نه وه کړې دَ کوم وخت نه چه خليفه شوې دې. سعيد څما د دې خبرې نه انکار اوکه. اووئيلې، څما اميد نه دې، چه داسې خبره به اوکړي، چه د دې نه مخکښې ئې نه وي کړې. حضرت عمرؓ په منبر کيناست کوم وخت چه خلق خاموش شو، هغه اودريدلو، او د الله حمد ئې بيان که، چه دَ هغې هغه مستحق دې. بيائې اووې، امابعد: زهٔ تاسو ته داسې خبره کوم، چه دَ هغې کول څما په مقدر کښې وو، زهٔ په دې نه پوهيږم، چه شايد دا څما د

لَا اَدْرِیْ لَعَلَّهَا بَیْنَ یَدَیْ اَجَلِیْ فَمَنْ عَقَلَهَا وَ وَعَاهَا فَلْیُحَدِّثْ بِهَا حَیْثُ انْتَهَتْ بِهٖ رَاحِلَتُهٗ وَمَنْ خَشِیَ اَنْ لَّا یَعْقِلَهَا فَلَا اُحِلُّ لِاَحَدٍ اَنْ یَّكْذِبَ عَلَیَّ، اِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ وَ اَنْزَلَ عَلَیْهِ الْكِتَابَ فَكَانَ مِمَّا اَنْزَلَ اللّٰهُ اٰیَةَ الرَّجْمِ فَقَرَأْنَاهَا وَ عَقَلْنَاهَا وَ وَعَیْنَاهَا رَجَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجَمْنَا بَعْدَهٗ فَاَخْشٰی اِنْ طَالَ بِالنَّاسِ زَمَانٌ اَنْ یَّقُوْلَ قَائِلٌ وَاللّٰهِ مَا نَجِدُ اٰیَةَ الرَّجْمِ فِیْ كِتَابِ اللّٰهِ فَیَضِلُّوْا بِتَرْكِ فَرِیْضَةٍ اَنْزَلَهَا اللّٰهُ وَالرَّجْمُ فِیْ كِتَابِ اللّٰهِ حَقٌّ عَلٰی مَنْ زَنٰی اِذَآ اُحْصِنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ اِذَا قَامَتِ الْبَیِّنَةُ اَوْ كَانَ الْحَبَلُ اَوِ الْاِعْتِرَافُ ثُمَّ اِنَّا كُنَّا نَقْرَأُ فِیْمَا نَقْرَأُ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ اَنْ لَّا تَرْغَبُوْا عَنْ اٰبَائِكُمْ فَاِنَّهٗ كُفْرٌ بِكُمْ اَنْ تَرْغَبُوْا عَنْ اٰبَائِكُمْ اَوْ اِنَّ كُفْرًا بِكُمْ اَنْ تَرْغَبُوْا عَنْ اٰبَآئِكُمْ اَلَا ثُمَّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُطْرُوْنِیْ كَمَا اُطْرِیَ عِیْسَی ابْنُ مَرْیَمَ وَقُوْلُوْا عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُوْلُهٗ ثُمَّ اِنَّهٗ بَلَغَنِیْ اَنَّ قَائِلًا مِنْكُمْ یَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَوْ مَاتَ عُمَرُ بَایَعْتُ فُلَانًا فَلَا

مرګ نه مخکښ وي. څوک چه په دے پو ه شو او ياد ئے کړو، نو هغه چه کوم ځائے ته هم اورسي، نوروته دے بيان کړي او کوم سړي ته چه خطره وي، چه هغه به په دے پو ه نشي، نو زه هيچا د پاره حلال نه کړم، چه هغه ځما متعلق دروغ اووائي، بيشکه اللّٰه تعالٰي محمد صلعم حق سره راليږلے دے، او په هغه ئے خپل کتاب نازل کړے دے. اللّٰه چه کوم قرآن نازل که، هغے کښ دَ رجم آيت هم وو. مونږ هغه اولوست، او پوه شو، پړے او محفوظ مو اوساتلو، حضور صلعم سنګسار او کړلو او مونږ هم حضور صلعم نه پس سنګسار اوکړلو. ماسره انديښنه ده، چه په خلقو به اوږدے مودے تيريدو نه پس يوه داسے زمانه راشي، چه يو ويونکے به وائي، په خدائے م دے قسم وي، مونږ د، رجم آيت کتاب اللّٰه کښ نه بيامومو، هغه به دا فرض پريږي ګمراه به شي، چه اللّٰه نازل کړے دے او رجم کتاب اللّٰه کښ زنا کونکے سړي او ښځے باندے چه واده شوے (شادي شده) وي، واجب دے، په شرط د دے چه ګواه قائم شي، يا حمل ځائے اونيسي يا اقرار اوکړي. بيا مونږ چه کتاب اللّٰه کښے لوستل، هغے کښ دا هم وو، چه تاسو دَ خپلو پلرونو نه نفرت مه کوئے ځکه چه ستاسو دَ خپلو پلرونو نه نفرت کول کفر دے. يا، دا، ئے او فرمائيل، بيشکه دا ستاسو د پاره کفر دے، چه تاسو دَ خپلو پلارانو نه نفرت کوئے بيا واورئے، نبي صلعم او فرمائيل، ځما تعريف کښ مبالغه مه کوئے، ځنګه چه دَ عيسٰي بن مريم تعريف کښ مبالغے اوشوے، او تاسو صرف د، اللّٰه بنده او رسول وائے. بيائے اوورئے، ماته خبر رارسيدلے دے، چه تاسو کښ څوک

يَغْتَرَنَّ امْرُؤٌ اَنْ يَّقُوْلَ اِنَّمَا كَانَتْ بَيْعَةُ اَبِيْ بَكْرٍ فَلْتَةً وَتَمَّتْ اَلَا وَ اِنَّهَا قَدْ كَانَتْ كَذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ وَقٰى شَرَّهَا وَلَيْسَ مِنْكُمْ مَنْ تُقْطَعُ الْاَعْنَاقُ اِلَيْهِ مِثْلَ اَبِيْ بَكْرٍ مَّنْ بَايَعَ رَجُلًا عَنْ غَيْرِ مَشْوَرَةٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَلَا يُبَايَعُ هُوَ وَلَا الَّذِيْ بَايَعَهُ تَغِرَّةً اَنْ يُّقْتَلَا وَ اِنَّهُ قَدْ كَانَ مِنْ خَيْرِنَا حِيْنَ تَوَفَّى اللّٰهُ نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا اَنَّ الْاَنْصَارَ خَالَفُوْنَا وَاجْتَمَعُوْا بِاَسْرِهِمْ فِيْ سَقِيْفَةِ بَنِيْ سَاعِدَةَ وَ خَالَفَ عَنَّا عَلِيٌّ وَالزُّبَيْرُ وَ مَنْ مَعَهُمَا وَاجْتَمَعَ الْمُهَاجِرُوْنَ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍؓ فَقُلْتُ لِاَبِيْ بَكْرٍ يَا اَبَا بَكْرٍ انْطَلِقْ بِنَا اِلٰى اِخْوَانِنَا هٰؤُلَاءِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَانْطَلَقْنَا نُرِيْدُهُمْ فَلَمَّا دَنَوْنَا مِنْهُمْ لَقِيَنَا مِنْهُمْ رَجُلَانِ صَالِحَانِ فَذَكَرَ امَا تَمَالٰى عَلَيْهِ الْقَوْمُ، فَقَالَ اَيْنَ تُرِيْدُوْنَ يَا مَعْشَرَ الْمُهَاجِرِيْنَ فَقُلْنَا نُرِيْدُ اِخْوَانَنَا هٰؤُلَاءِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَا لَا عَلَيْكُمْ اَنْ لَا تَقْرَبُوْهُمْ اقْضُوْا اَمْرَكُمْ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَنَاْتِيَنَّهُمْ فَانْطَلَقْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا هُمْ فِيْ سَقِيْفَةِ بَنِيْ سَاعِدَةَ فَاِذَا رَجُلٌ مُزَمَّلٌ بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِمْ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالُوْا هٰذَا سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ فَقُلْتُ مَالَهٗ قَالُوْا يُوْعَكُ فَلَمَّا جَلَسْنَا قَلِيْلًا تَشَهَّدَ

وائي، چه قسم په خدائے، كه عمرؓ مړشي، نو زه به دَ فلاني نه بيعت اوكړم، تاسو ته دے ځوک دے وئيلو سره دهوكه درنه كړي، چه د، ابوبكرؓ بيعت اتفاقيه وو، او بيا هغه پوره شو، واورئے، چه هغه داسے وو، ليكن اللّٰه هغه دَ شر نه محفوظ اوساتلو. او تاسو كښې هيڅوک نشته، چه هغه د، ابوبكرؓ په شان فضيلت لري، كوم سړي چه دَ مسلمانانو د مشورے نه بغير چانه بيعت واخست، نو نه دے دَ هغه او نه دَ بيعت كونكي پيروي اوكړے شي، د دے خوف نه چه هغوئ به قتل شي، كوم وخت چه اللّٰه تعالٰي خپل نبي صلعم وفات كړلو، نو هغه وخت هغه (يعني ابوبكرؓ) مونږ ټولو كښې بهتر وو. خو انصارو خمونږ مخالفت اوكه. او ټول خلق سقيفه بني ساعده كښې جمع شو. نو ما ابوبكرؓ ته اووے ائے ابوبكرؓ، مونږ دے انصارو ورونړو له ورځو په دے اراده چه روان شو، او مونږ هغوئ ته قريب اورسيدو. نو هغوئ كښې دوه نيک بخت سړئ مونږ سره يو ځائے شو، هغے دواړو هغه بيان اوكه، چه هغے ته هغه خلق مائل وو. بيا هغوئ تپوس اوكه. اَے دَ مهاجرينو جماعته كوم خواه قصد دے. مونږ اووے، مونږ دے خپلو انصارو ورونړو له ورتلل غواړو، هغوئ اووے، نه، تاسوله مناسب نه دي، چه هغوئ ته قريب ورشئے، تاسو، د خپل امر فيصله اوكړئے. ما اووے، په خدائے م دے قسم وي، مونږ به هغوئ له ورځو، نو مونږ روان شو، تر دے چه سقيفه بني ساعده كښې مونږ هغوئ ته اورسيدو. دَ هغوئ مينځ كښې مو يو سړے اوليدو، چه كمبل كښې پروت دے. ما اووے، دا ځوک دے. هغوئ اووے، سعد بن عباده دے.

خَطِيْبُهُمْ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَنَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ وَكَتِيْبَةُ الْاِسْلَامِ وَاَنْتُمْ مَعْشَرَ الْمُهَاجِرِيْنَ رَهْطٌ وَقَدْ دَفَّتْ دَآفَّةٌ مِنْ قَوْمِكُمْ فَاِذَا هُمْ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْتَزِلُوْنَا مِنْ اَصْلِنَا وَ اَنْ يَحْضُنُوْنَ مِنَ الْاَمْرِ فَلَمَّا سَكَتَ اَرَدْتُّ اَنْ اَتَكَلَّمَ وَكُنْتُ زَوَّرْتُ مَقَالَةً اَعْجَبَتْنِيْ اُرِيْدُ اَنْ اُقَدِّمَهَا بَيْنَ يَدَيْ اَبِيْ بَكْرٍ وَكُنْتُ اُدَارِيْ مِنْهُ بَعْضَ الْحَدِّ فَلَمَّا اَرَدْتُّ اَنْ اَتَكَلَّمَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ عَلٰى رِسْلِكَ فَكَرِهْتُ اَنْ اُغْضِبَهٗ فَتَكَلَّمَ اَبُوْ بَكْرٍ فَكَانَ هُوَ اَحْلَمَ مِنِّيْ وَ اَوْقَرَ مَا تَرَكَ مِنْ كَلِمَةٍ اَعْجَبَتْنِيْ فِيْ تَزْوِيْرِيْ اِلَّا قَالَ فِيْ بَدِيْهَتِهٖ مِثْلَهَا اَوْ اَفْضَلَ مِنْهَا حَتّٰى سَكَتَ فَقَالَ مَا ذَكَرْتُمْ فِيْكُمْ مِنْ خَيْرٍ فَاَنْتُمْ لَهٗ اَهْلٌ وَّ لَنْ يُّعْرَفَ هٰذَا الْاَمْرُ اِلَّا لِهٰذَا الْحَيِّ مِنْ قُرَيْشٍ هُمْ اَوْسَطُ الْعَرَبِ نَسَبًا وَّ دَارًا وَ قَدْ رَضِيْتُ لَكُمْ اَحَدَ هٰذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ فَبَايِعُوْا اَيَّهُمَا شِئْتُمْ فَاَخَذَ بِيَدِيْ اَبِيْ عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ وَ هُوَ جَالِسٌ بَيْنَنَا فَلَمْ اَكْرَهْ مِمَّا قَالَ غَيْرَهَا كَانَ وَاللّٰهِ اَنْ اُقَدَّمَ فَتُضْرَبَ عُنُقِيْ لَا يُقَرِّبُنِيْ ذٰلِكَ مِنْ اِثْمٍ اَحَبَّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ اَتَامَّرَ عَلٰى قَوْمٍ فِيْهِمْ

ما تپوس او کهٔ په ده څه شوے دي. خلقو اووے د ده نه ده. مونږ لږ ساعت ناست وو، چه دَ هغوئ خطيب کلمه شهادت اووے، او دَ اللّٰه حمد و ثنائے بيان کړه چه دَ هغے هغه لائق دے. بيا ئے اووے، امابعد: مونږ دَ الله انصار او دَ اُسلام لښکر يو او تاسو، اَئے مهاجرينو، هغه ډلے ئے، چه ستاسو د قوم لږ شان سړي دَ فقر حالت کښې دے ارادے سره اووتل چه مونږ څمونږ دَ جړ نه جدا کړي او څمونږ حکومت څمونږ نه واخلي. کوم وخت چه هغه خاموش شو. نو ماوئيل غوښتل، ما د يوے خبرے سوچ کړے وو، چه هغه ما ابوبکرؓ ته بيانول غوښتل، او ما د هغه يو حده پورے لحاظ کولو. کوم وخت چه ما وئيل اوغوښتل. نو ابوبکرؓ اووے، صبر او کهٔ. مَا دَ هغه ناراضه کول نه غوښتل، ابوبکرؓ خبرے شروع کړے، هغه څما نه زيات بردبار او باوقار وو، قسم په خدائے، کومه خبره چه څما په پوهه کښې ښه معلوميده، هغه شان يا، دَ هغے نه ښه پيرايه کښې هغه فِي البديهه (سمدستي) بيان کړه، تر دے چه هغه چپ شولو هغه اووئے تاسو خلقو چه کومے خوبئ بيان کړے، تاسو، دَ هغے اهل ئے. ليکن دا امر (خلافت) صرف قريشو د پاره مخصوص دے. دا خلق عربو کښې دَ نسب او کور دَ لحاظ نه اوسط دي. زهٔ ستاسو د پاره دے دوو سړو کښې په يو راضي يم. دے دواړو کښې دَ، يو نه بيعت اوکړئے، نو هغه څما او د ابو عبيده بن جراح لاس اونيولو. او هغه څمونږ مينځ کښې ناست وو (عمرؓ وائي) ماته د دے نه علاوه دَ هغه هيڅ خبره ناګواره نه شوه، قسم په خدائے، دَ هغے جماعت په سرداري چه هغے کښې ابوبکرؓ وي، خپل ګردن الوځولو

أَبُوْ بَكْرٍ اَللّٰهُمَّ اِلَّا اَنْ تُسَوِّلَ اِلَيَّ نَفْسِيْ عِنْدَ الْمَوْتِ شَيْئًا لَا اَجِدُهُ الْاٰنَ فَقَالَ قَائِلٌ مِنَ الْاَنْصَارِ اَنَا جُذَيْلُهَا الْمُحَكَّكُ وَ عُذَيْقُهَا الْمُرَجَّبُ مِنَّا اَمِيْرٌ وَّ مِنْكُمْ اَمِيْرٌ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ فَكَثُرَ اللَّغَطُ وَارْتَفَعَتِ الْاَصْوَاتُ حَتّٰى فَرِقْتُ مِنَ الْاِخْتِلَافِ فَقُلْتُ اُبْسُطْ يَدَكَ يَا اَبَا بَكْرٍ فَبَسَطَ يَدَهٗ فَبَايَعْتُهٗ وَ بَايَعَهُ الْمُهَاجِرُوْنَ ثُمَّ بَايَعَهُ الْاَنْصَارُ وَ نَزَوْنَا عَلٰى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ قَتَلْتُمْ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فَقُلْتُ قَتَلَ اللّٰهُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ قَالَ عُمَرُ وَ اِنَّا وَاللّٰهِ مَا وَجَدْنَا فِيْمَا حَضَرْنَا مِنْ اَمْرٍ اَقْوٰى مِنْ مُبَايَعَةِ اَبِيْ بَكْرٍ خَشِيْنَا اِنْ فَارَقْنَا الْقَوْمَ وَلَمْ تَكُنْ بَيْعَةٌ اَنْ يُبَايِعُوْا رَجُلًا مِنْهُمْ بَعْدَنَا فَاِمَّا بَايَعْنَاهُمْ عَلٰى مَالَا نَرْضٰى وَ اِمَّا نُخَالِفُهُمْ فَيَكُوْنَ فَسَادٌ فَمَنْ بَايَعَ رَجُلًا عَلٰى غَيْرِ مَشْوَرَةٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَلَا يُتَابَعُ هُوَ وَلَا الَّذِيْ بَايَعَهٗ تَغِرَّةً اَنْ يُقْتَلَا.

ته م ترجيح ور كوله، يا اللّٰه، خو، دا چه خما نفس دَ مرګ په وخت ماته دا څيز ښه ښكاره كړي. چه هغه زه اوس نه بيامومم. انصارو كښې يو ويونكي اووې، چه مونږ د دې جړ او د دې لوئې ستنې يو. اې قريشو، يو امير دې مونږ نه وي، او يو دې تاسو نه وي دې كښې شور زيات شو، او اوازونه اوچت شو، تر دې چه ماسره د، اختلاف خطره پيدا شوه ما اووې اې ابوبكرؓ خپل لاس رامخكښې كړه. هغه لاس رامخكښې كه. نو ما دَ هغه نه بيعت اوكه، او مهاجرينو ترې هم بيعت اوكه. بيا ترې انصارو بيعت اوكه او مونږ په سعد بن عباده غالب راغلو. چا ويونكي اووې، چه تاسو سعد بن عباده قتل كړلو ما اووې، اللّٰه سعد بن عباده قتل كړلو. عمرؓ اووې كومه معامله چه مونږ ته پيښه وه، هغې كښې د، ابوبكرؓ د بيعت نه زياته اهمه هيڅ معامله نه وه. مونږ سره انديښنه شوهٔ كه مونږ د قوم نه جدا شو، او د، ابوبكرؓ بيعت او نه شو، نودا خلق به خمونږ نه ورستو دَ چا په لاس بيعت اوكړي داسې صورت كښې به يا مونږ د، يو داسې سړي په لاس بيعت كولې، چه خمونږ دَ مرضئ خلاف به وو، يا به مونږ دَ هغه مخالفت كولو، او فساد به كيدلو، چا چه مسلمانانو دَ مشورې نه بغير بيعت چانه واخست. دَ هغه پيروي دې نه شي كولې او نه د هغې چا، چه هغه بيعت كړې وي، د دې خوف نه، چه هغوئ به قتل كړې شي.

باب ۲۶۷ : اَلْبِكْرَانِ يُجْلَدَانِ وَ يُنْفَيَانِ. الزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ وَّ لَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اِنْ

باب ۲۶۷ : ناواده سړې او ښځه به په درّو وهلې شي. او بې وطنه (جلاوطن) كولې به شي. زنا كاره ښځه او زنا كار سړې هر يو سل سل كورې اووهئې، او دَ اللّٰه دين كښې دې تاسو له په هغوئ رحم نه

كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَلزَّانِيْ لَا يَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً وَّ الزَّانِيَةُ لَا يَنْكِحُهَا اِلَّا زَانٍ اَوْ مُشْرِكٌ وَّ حُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ. قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ رَاْفَةٌ فِيْ اِقَامَةِ الْحُدُوْدِ.

راځي، كه تاسو الله او ﺩ قيامت په ورځ ايمان لرئ. او پكار دي، چه د، مومنانو يو جماعت دے دواړو له ﺩ سزا وركولو په موقعه حاضر، وي او زناكار، دے سوا، د زناكارے او مشركے نه بلے ښځے سره نكاح نه كوي. او زناكارے ښځے سره دے سوا، د، زناكار يا مشرك نه بل سړے نكاح نه كوي او دا په مسلمانانو حرام كړے شوے ده ابن عينيه اووے، رافة نه مراد دادے، چه حدود قائمولو كښ د تاسوله رحم نه راځي.

**۵۳۷:** حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ اَخْبَرَنَا بْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْمُرُ فِيْمَنْ زَنٰى وَلَمْ يُحْصَنْ جَلْدَ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبَ عَامٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَاَخْبَرَنَا عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ غَرَّبَ، ثُمَّ لَمْ تَزَلْ تِلْكَ السُّنَّةَ.

**۵۳۷:** مالك بن اسماعيل، عبد العزيز، ابن شهاب، عبيد الله بن عبد الله بن عتبه، زيد بن خالد جهني نه روايت كوي، ﺩ هغه بيان دے. ما د نبي صلعم نه واوريدل، چه ناواده شوے زنا كونكي ته ئے ﺩ سل كوړو وهلو او يو كال د پاره د، بے وطنه (جلاوطن) كولو حكم وركولو. ابن شهاب اووے. ماته عروه بن زبير بيان اوكه، چه عمر بن خطاب، جلاوطن كولو. او بيا دا طريقه جاري پاتے وه.

**۵۳۸:** حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى فِيْمَنْ زَنٰى وَلَمْ يُحْصَنْ بِنَفْيِ عَامٍ بِاِقَامَةِ الْحَدِّ عَلَيْهِ.

**۵۳۸:** يحيى بن بُكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب حضرت ابي هُريره نه روايت كوي، ﺩ هغه بيان دے، رسول الله صلعم ﺩ هغے ناواده شوے (غير شادي شده) سړي متعلق چه هغه زنا اوكړه، حد قائمولو كښ د، يو كال جلاوطن كولو حكم اوكړلو.

**باب ۲۶۸:** نَفْيُ اَهْلِ

**باب ۲۶۸:** د، ګنهګارانو او هيجړاګانو د،

الْمَعَاصِي وَالْمُخَنَّثِيْنَ.

**۶۳۹ ۵ :** حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَآءِ وَ قَالَ اَخْرِجُوْهُمْ مِنْ بُيُوْتِكُمْ وَاَخْرَجَ فُلَانًا وَّ اَخْرَجَ فُلَانًا.

**بَاب ۹ ۲ ۶ ۲ :** مَنْ اَمَرَ خَيْرَ الْاِمَامِ بِاِقَامَةِ الْحَدِّ غَآئِبًا عَنْهُ.

**۰ ۵۴ :** حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْاَعْرَابِ جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ جَالِسٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَامَ خَصْمُهُ فَقَالَ صَدَقَ اقْضِ لَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بِكِتَابِ اللّٰهِ اِنَّ ابْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا عَلٰى هٰذَا فَزَنٰى بِامْرَاَتِهٖ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ عَلٰى ابْنِيَ الرَّجْمَ فَافْتَدَيْتُ بِمِائَةٍ مِّنَ الْغَنَمِ وَ وَلِيْدَةٍ ثُمَّ سَاَلْتُ اَهْلَ الْعِلْمِ فَزَعَمُوْا اَنَّ عَلَى ابْنِيْ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيْبُ عَامٍ فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ اَمَّا

ښهر نه د' اُوښكلو بيان.

**۶۳۹ ۵ :** مسلم بن ابراهيم' هشام' يحيٰي' عكرمه' ابن عباسؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے. نبي صلعم نارينوو كس مخنثانو (يعني زنانوو سره مشابهت كونكو) باندے او زنانوو كښې د' نارينوو شكل اختيارونكو باندے لعنت كړے دے. او فرمائيلے دي' چه دوي دَ خپلو كورونو نه اوكاږئے' او فلانے فلانے او كاږئے.

**باب ۹ ۲ ۶ ۲ :** دَ هغے سړي بيان' چه دَ هغه غير موجودګئ كښې امام دَ حد جاري كولو حكم وركړي.

**۰ ۵۴ :** عاصم بن علي' ابن ابي ذئب' زهري' عبيد اللّٰه' ابو هريرهؓ او زيد بن خالدؓ نه روايت كوي' يو اعرابي دبن صلعم خدمت كښې حاضر شو. دَغه وخت حضور صلعم ناست. هغه اووے' يا رسول اللّٰه' زمونږ تر مينځه د' اللّٰه دَ كتاب مطابق فيصله اوكړے بيا مخالف فريق اودريد' وئيلے' ده ټيک خبره اوكړه' يا رسول اللّٰه' تاسوّ د كتاب اَللّٰه مطابق فيصله اوكړئے ځما ځوئے ده سره مزدور (نوكر) وو' د' ده ښځے سره ځما ځوئے زنا اوكړله' خلقو اووے ځما په ځوئے رجم دے (يعني سنګسارولے به شي). ما سل چيلے او يو وينزه فديه ګښې وركړه. بيا ما د اهلِ علمو نه تپوس اوكه' هغوئ اووے' ځما ځوئے به سل دُرّے وهلے شي او يو كال د پاره به جلاوطن كولے شي. حضورؐ اوفرمائيل' په هغهِ ذات م دے قسَم وي د چا قبضه كښې چه ځما ساه ده' زه به د كتاب اللّٰه مطابق ستاسو فيصله اوكړم' چيلئے او وينزه

الْغَنَمُ وَالْوَلِيْدَةُ فَرَدٌّ عَلَيْكَ وَ عَلٰى ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَ تَغْرِيْبُ عَامٍ وَّاَمَّا اَنْتَ يَا اُنَيْسُ فَاغْدُ عَلٰى اِمْرَاَةِ هٰذَا فَارْجُمْهَا فَغَدَا اُنَيْسٌ فَرَجَمَهَا.

خوبه، تاته واپس کولې شي. او ستا څوئ د پاره سل دُرّې او د، یو کال جلاوطني ده او ته، اے، اُنیس، صباته د، ده ښځې له ورشه، او هغه رجم (سنګسار) کړه. نو انیس سحر کښې ورغې او سنګسار ئې کړله.

## باب ۲۷۰ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ مَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ فَمِمَّا مَلَكَتْ اِيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنَاتٍ غَيْرَ مُسَافِحَاتٍ وَّ لَا مُتَّخِذَاتِ اَخْدَانٍ فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ وَ اَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ.

باب ۲۷۰ : د، اللّٰه تعالٰي قول، چه تاسو کښې څوک د دې قدرت نه لري، چه ازادوه مسلمانو ښځو سره دې واده او کړئ نو هغه له پکار دي چه خپلو مؤمنو وينزو سره نکاح او کړي. او اللّٰه تعالٰي ستاسو په ايمان پوهيدونکې دې تاسو کښې بعضې د بعضونه دي، نو هغوئ سره د هغوئ دَ مالکانو اجازت سره نکاح کوئ، او دَ هغوئ مَهر د، دستور مطابق ور کړئ، هغه دِ پاک دامنې وي، زنا کونکې دِ نه وي. او نه دِ په پټه دوستي ساتونکي وي. بيا چه هغوئ واده او کړي، او، د، زنا مرتکبې شي، نو په هغوئ دَ ازادو ښځو نيمه سزا ده، دا هغې چا د پاره ده چه په تاسو کښې د، زنانه ويريږي. او که تاسو صبر او کړئ نو تاسو د پاره بهتره ده. او اللّٰه تعالٰي بخښونکې مهربانه دې.

## باب ۲۷۱ : اِذَا زَنَتِ الْاَمَةُ.

باب ۲۷۱ : د، وينزې دَ، زنا کولو بيان.

۶۵۴۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْاَمَةِ اِذَا زَنَتْ وَلَمْ تُحْصَنْ قَالَ اِذَا زَنَتْ فَاجْلِدُوْهَا ثُمَّ اِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوْهَا ثُمَّ اِنْ زَنَتْ

۶۵۴۱ : عبد اللّٰه بن يوسف مالک، ابن شهاب، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه، ابو هريرهؓ او زيد بن خالد نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلعم دَ، وينزې دَ حکم تپوس اوشو، چه زنا او کړي، او، واده (شادي شده) نه وي. حضورؐ اوفرمائيل، هر کله چه هغه زنا او کړي په درّو، ئې اووهې. بيا که زنا او کړي، نو په دُرّو، ئې اووهې. بيا که زنا او کړئ، نو په دُرّو، ئې اووهې. بيائې خرڅه کړئې اګر که دَ، ويښتو د، يوې رسئ په عوض ولې نه وي. دَ،

فَاجْلِدُوهَا ثُمَّ بِيعُوهَا بِضَفِيرٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ لَا أَدْرِي بَعْدَ الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ.

ابن شهاب بیان دے، ماته یاد نه دي، چه حضورﷺ دا دریم یا څلورم ځل نه پس اوفرمائیل.

**بَابٌ ۲۷۲: لَا يُثَرَّبُ عَلَى الْأَمَةِ إِذَا زَنَتْ لَا تُنْفَى.**

**باب ۲۷۲:** که وینزه زنا اوکړي، نو هغه دے ملامته کولے نه شي، او نه دے بے وطنه (جلاوطن) کولے شي.

۲۴۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زَنَتِ الْأَمَةُ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَجْلِدْهَا وَلَا يُثَرِّبْ، ثُمَّ إِنْ زَنَتْ فَلْيَجْلِدْهَا وَلَا يُثَرِّبْ، ثُمَّ إِنْ زَنَتِ الثَّالِثَةَ فَلْيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعَرٍ تَابَعَهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۴۴۲: عبد الله بن یوسف، لیث، سعید مقبري، دَ خپل پلار نه. هغه دَ حضرت ابو هریرهؓ نه روایت کوي، هغه نه ئے واوریدل، حضور صلي الله علیه وسلّم او فرمائیل، چه وینزه زنا اوکړي او دَ هغے زنا ظاهره شي، نو هغه دے په دُرّو اووهي، او او ملامته کوي دے نه. بیا که په دویم ځل زنا اوکړي نو هغه دِ په دُرو اُوهي او ملامته کوي دِ نه. بیا که په دریم ځل ئے زنا اوکړي، نو هغه خرڅول پکار دي، اګرکه دَ ویښتو دَ یوے رسئ په عوض وي. اسماعیل بن امیه واسطه د سعید، حضرت ابو هریرهؓ، نبي صلي الله علیه وسلّم نه د دے متابعت کښ روایت کړے دے.

**بَابُ ۲۷۳: أَحْكَامِ أَهْلِ الذِّمَّةِ وَ إِحْصَانِهِمْ إِذَا زَنَوْا وَ رُفِعُوا إِلَى الْإِمَامِ.**

**باب ۲۷۳:** دَ ذمیانو احکام او د واده نه پس د هغوئ دَ زنا کولو او امام ته دَ راوستلو بیان.

۲۴۴۳: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ سَأَلْتُ عَبْدَ اللهِ ابْنَ أَبِي أَوْفَى عَنِ الرَّجْمِ فَقَالَ: رَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ أَقَبْلَ النُّورِ أَمْ بَعْدَهُ؟ قَالَ لَا أَدْرِي. تَابَعَهُ عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ وَ خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ وَالْمُحَارِبِيُّ وَ عُبَيْدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنِ

۲۴۴۳: اسماعیل بن عبد الله، مالک، نافع، عبد الله بن عمرؓ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دے. ما دَ عبد الله بن ابي اوفي نه دَ رجم متعلق تپوس اوکه، هغه اووے، نبي صلي الله علیه وسلّم، سنګسار کړے دے، بیا ما تپوس اوکه، دَ سورهٔ نور دَ نازلیدو نه مخکښ یا ورستو. هغه اووے ماته نه ده معلومه (په دے نه پوهیږم) علي بن مسهر او خالد بن عبد الله او محاربي او عبده بن حمید دَ شیباني نه د دے

الشَّيْبَانِيِّ. وَ قَالَ بَعْضُهُمُ الْمَائِدَةُ وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ.

متابعت کښې روايت اوکه. او بعضو د سورهٔ مائده نوم واخست. ليکن ورمبنے صحيح دے.

۵۴۴: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَالَ: إِنَّ الْيَهُوْدَ جَآءُوْ إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوْا لَهُ أَنَّ رَجُلًا مِّنْهُمْ وَ امْرَأَةً زَنَيَا، فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَجِدُوْنَ فِي التَّوْرَاةِ فِي شَأْنِ الرَّجْمِ؟ فَقَالُوْا نَفْضَحُهُمْ وَ يُجْلَدُوْنَ، قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ كَذَبْتُمْ إِنَّ فِيْهَا الرَّجْمَ، فَأَتَوْا بِالتَّوْرَاةِ فَنَشَرُوْهَا فَوَضَعَ أَحَدُهُمْ يَدَهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ فَقَرَأَ مَا قَبْلَهَا وَ مَا بَعْدَهَا فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ سَلَامٍ ارْفَعْ يَدَكَ، فَرَفَعَ يَدَهُ فَإِذَا فِيْهَا آيَةُ الرَّجْمِ قَالُوْا صَدَقَ يَا مُحَمَّدُ فِيْهَا آيَةُ الرَّجْمِ فَأَمَرَ بِهِمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَا فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ يَحْنِيْ عَلَى الْمَرْأَةِ يَقِيْهَا الْحِجَارَةَ.

۵۴۴: اسماعيل بن عبد اللّٰه، مالک، نافع، عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، چه يهود، د رسول اللّٰه صلعم خدمت کښې حاضر شو او بيان ئے اوکه چه هغوئ کښې يو سړي او ښځے زنا کړے ده. حضور صلعم ورته اوفرمائيل، تاسو تورات کښې د، رجم متعلق څه حکم بياموئے، هغوئ اووے، مونږ هغوئ ذليل کوو، او په دُرّو، ئے وهو. عبد اللّٰه بن سلام اووے، تاسو دروغ وائے، هغے کښې خو، دَ سنگسار حکم دے نو هغے خلقو تورات راوړلو، هغه ئے پرانستلو. هغوئ کښې يو سړي خپل لاس د، رجم په آية کيښودلو. او د هغے مخکښې او ورستو لوستل ئے شروع کړل عبد اللّٰه بن سلام هغه ته اووے، خپل لاس اوچت کړه، هغه لاس اوچت کړلو، نو هم هلته د، رجم آيت وو. هغے خلقو اووے، اے محمد (صلعم) ده ټيک اووے، تورات کښې د، رجم آيت دے، نو دَ هغوئ دَ سنگسارولو حکم ورکړے شو. ما هغه سړے اوليدلو، چه په هغه ښځه به ورختته کيدلو، چه هغه د، کاڼړو نه بچ کړي.

## بَابٌ ۲۷۴: إِذَا رَمٰى امْرَأَتَهُ أَوِ امْرَأَةَ غَيْرِهِ بِالزِّنَا عِنْدَ الْحَاكِمِ وَالنَّاسِ هَلْ عَلَى الْحَاكِمِ أَنْ يَّبْعَثَ إِلَيْهَا فَيَسْأَلَهَا عَمَّا رُمِيَتْ بِهِ.

## باب ۲۷۴: هر کله چه يو سړے په خپلے يا، د بل چا په ښځے باندے د حاکم يا خلقو په نزد، د، زنا تهمت اولږوي، نو آيا حاکم هغے ښځے ته خوک سړے ليږلے شي، چه دَ هغے نه د تهمت متعلق دريافت اوکړي.

۵۴۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ اَنَّهُمَا اَخْبَرَاهُ اَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَحَدُهُمَا اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَ قَالَ الْاٰخَرُ وَ هُوَ اَفْقَهُهُمَا اَجَلْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَاْذَنْ لِيْ اَنْ اَتَكَلَّمَ قَالَ تَكَلَّمْ قَالَ: اِنَّ ابْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا عَلٰى هٰذَا فَزَنٰى بِامْرَاَتِهٖ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ عَلَى ابْنِيْ الرَّجْمَ فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَ بِجَارِيَةٍ لِّيْ ثُمَّ اِنِّيْ سَاَلْتُ اَهْلَ الْعِلْمِ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ مَا عَلَى ابْنِيْ جَلْدُ مِائَةٍ وَ تَغْرِيْبُ عَامٍ، وَّ اِنَّمَا الرَّجْمُ عَلٰى امْرَاَتِهٖ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ اَمَّا غَنَمُكَ وَ جَارِيَتُكَ فَرَدٌّ عَلَيْكَ، وَ جَلَدَ ابْنَهٗ مِائَةً وَّ غَرَّبَهٗ عَامًا وَ اَمَرَ اُنَيْسًا الْاَسْلَمِيَّ اَنْ يَّاْتِيَ امْرَاَةَ الْاٰخَرِ فَاِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا.

۵۴۵: عبد اللّٰه بن يوسف، مالک، ابن شهاب، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه بن عتبه بن مسعود ابو هريرهؓ او زيد بن خالدؓ نه روايت کوي، دوه سړي د رسول اللّٰه صلعم خدمت کښې په جګړه راغلل. يو اووے، ځمونږ مينځ کښې ذَ کتاب اللّٰه متعلق فيصله اوکړے، او دويم چه پوه (سمجهدار) وو، وئيلے، يا رسول اللّٰه، ځمونږ مينځ کښې ذَ کتاب الله مطابق فيصله اوکړئے او ماته اجازت راکړئے، چه زه عرض اوکړم، حضورؐ ورته او فرمائيل بيان اوکړه. هغه اووے ځما ځوئ ده سره مزدوري کوله (مالک اووے عسيف نه مراد مزدور دے) ځما ځوئ د ده ښځے سره زنا اوکړه. خلقو زه خبر کړم، چه ځما په ځوئ رجم دے، ما سل چيلئے او يوه وينزه ذَ فديے په طور ورکړله. بيا مَا د، اهلِ علمو نه تپوس اوکه، نو هغوئ ماته اووے، چه ځما ځوئ به سل دُرّے وهلے شي او يو کال د پاره به جلاوطن کولے شي. او ذَ هغے سړي ښځه به سنګسارولے شي. رسول اللّٰه صلعم او فرمائيل قسم دے په هغه ذات چه ذَ هغه په قبضه کښې ځما ساه ده، زه به ستاسو مينځ کښې ذَ کتاب اللّٰه مطابق فيصله کوم. او ستا چيلئے او وينزه تاته واپس کولے شي. ذَ هغه ځوئ ئے سل دُرّے اووهلو. او يو کال د پاره ئے بے وطنه کړلو. او انيس اسلمي ته ئے حکم ورکړلو. چه ذَ هغے دويم سړي ښځے له ورشي، که هغه اقرار اوکړي، نو سنګسار، ئے کړه. هغے اقرار اوکه، نو سنګسار کړے شوه.

## باب ۲۷۵: مَنْ اَدَّبَ اَهْلَهٗ اَوْ

## باب ۲۷۵: ذَ سلطان نه علاوه څوک سړے چه

غَيْرَهُ دُوْنَ السُّلْطَانِ وَ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَلَّى فَاَرَادَ اَحَدٌ اَنْ يَّمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلْيَدْفَعْهُ فَاِنْ اَبٰى فَلْيُقَاتِلْهُ وَ فَعَلَهُ اَبُوْ سَعِيْدٍ.

خپل کور والو یا نورو ته ادب اوښائي ابو سعید ذ نبي صلعم نه نقل اوکه. هر کله چه څوک مونځ کوئ او د هغه دَ مخے نه څوک تیریدل غواړي، نو هغه دې دفع کړي، که نه مني، نو هغه سره دې جنګ اوکړي، او ابو سعید دغسے کړي. هم دي.

**۶۴۲ ۵**: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَت: جَآءَ اَبُوْبَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاضِعٌ رَأْسَهُ عَلٰى فَخِذِيْ فَقَالَ حَبَسْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسَ وَ لَيْسُوْا عَلٰى مَآءٍ فَعَاتَبَنِيْ وَ جَعَلَ يَطْعُنُ بِيَدِهٖ فِيْ خَاصِرَتِيْ وَ لَا يَمْنَعُنِيْ مِنَ التَّحَرُّكِ اِلَّا مَكَانُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اٰيَةَ التَّيَمُّمِ.

**۶۴۲ ۵**: اسماعیل، مالک، عبد الرحمٰن بن قاسم، بي بي عائشے نه روایت کوي د هغے بیان دے. حضرت ابوبکرؓ راغے هغه وخت رسول الله صلي الله علیه وسلّم خپل سر مبارک څما په پتون ایښے وو. هغه اووے. تا رسول الله صلي الله علیه وسلّم او خلق داسے حال کښ ایسار کړے دي، چه هغوئ اُوبو سره نه دي. ما نه ناراضه شو، او خپل لاس سره ئے زه په تشي وهلم. او خوزیدو کښ ماته هیڅ څیز حائل نه وو، سوا، د دے نه چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم څما په ورونړ (پتون) سر مبارک ایښے وو. نو الله تعالیٰ دَ تیمم آیت نازل کړلو.

**۶۴۷ ۵**: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْقَاسِمِ حَدَّثَهُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَقْبَلَ اَبُوْبَكْرٍ فَلَكَزَنِيْ لَكْزَةً شَدِيْدَةً، وَ قَالَ حَبَسْتِ النَّاسَ فِيْ قِلَادَةٍ. فَبِيَ الْمَوْتُ لِمَكَانِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَ قَدْ اَوْجَعَنِيْ نَحْوَهُ.

**۶۴۷ ۵**: یحیي بن سلیمان، ابن وهب، عمرو، عبد الرحمٰن بن قاسم، بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، دَ هغے بیان دے. حضرت ابوبکرؓ راغے او زه ئے په زوره په موکو وَهلم. اوونیلے، تا حلق د، هار په خاطر ایسار کړل. د، رسول الله صلعم په وجه څما مرګ وؤ، او زه هغے موکو (ګونے) په تکلیف کښ اخته کړم. بیا ددے مثل حدیث ئے بیان که.

**بَابُ ۲۷۶**: مَنْ رَّاٰى مَعَ

**باب ۲۷۶**: دَ هغه سړي بیان چه خپلے ښځے

اِمْرَاتِهٖ رَجُلًا فَقَتَلَهٗ.

سره څوک سړے اووینې' او هغه قتل کړي.

۵۴۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عُوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ وَرَّادٍ كَاتِبِ الْمُغِيْرَةِ عَنِ الْمُغِيْرَةِ قَالَ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ لَوْ رَاَيْتُ رَجُلًا مَعَ اِمْرَاَتِيْ لَضَرَبْتُهٗ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفَحٍ، فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَتَعْجَبُوْنَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ لَاَنَا اَغْيَرُ مِنْهُ وَاللّٰهُ اَغْيَرُ مِنِّيْ.

۵۴۸: مُوسىٰ' ابو عوانه' عبد الملک' وراد (د مغيره کاتب) مغيره نه روايت کوي ذ هغه بيان دے. سعد بن عباده اووے که زه خپلے ښځے سره څوک اووينم' نو هغه به نيغے تورے سره قتل کړم حضور صلعم ته چه دا خبر اورسيد نو وے فرمائيل' آيا تاسو د سعد غيرت سره تعجب کونے' زه د هغه نه زيات غيرتي يم' او اللّٰه تعالىٰ ځما نه زيات غيرتي دے.

بَابٌ ۲۷۷: مَا جَآءَ فِي التَّعْرِيْضِ.

باب ۲۷۷: د' تعريض متعلق چه منقول دي.

۵۴۹: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ' عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَهٗ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اِمْرَاَتِيْ وَلَدَتْ غُلَامًا اَسْوَدَ' فَقَالَ هَلْ لَّكَ مِنْ اِبِلٍ؟ قَالَ نَعَمْ' قَالَ مَا اَلْوَانُهَا؟ قَالَ حُمْرٌ قَالَ هَلْ فِيْهَا مِنْ اَوْرَقَ؟ قَالَ: نَعَمْ' قَالَ: فَاَنّٰى كَانَ ذٰلِكَ؟ قَالَ: اُرَاهُ عِرْقٌ نَزَعَهٗ' قَالَ فَلَعَلَّ ابْنَكَ هٰذَا نَزَعَهٗ عِرْقٌ.

۵۴۹: اسماعيل' مالک' ابن شهاب' سعيد بن مسيب' ابو هريرهؓ نه روايت کوي ذ هغه بيان دے' يو اعرابي' رسول اللّٰه صلعم له راغے او عرض ئے اوکه' يا رسول اللّٰه' ځما ښځے تور بچے (سیاہ بچہ) راوړے دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل' آيا تاسره څه اوښان شته. هغه اووے' او. حضور ورته اوفرمائيل' ذ کوم رنګ. هغه اووے' سره (سرخ) دي. حضور صلعم ورته اوفرمائيل' آيا هغے کښ څه خړبوجن (بھورا) هم شته. هغه اووے. او. حضور ورته او فرمائيل' دا رنګ ذ کوم ځائے نه راغے. هغه اووے. زه پوهيږم' چه د ده اصل به داسے رنګ راوښکلے وي. حضورؐ ورته اوفرمائيل' ستا دا بچے هم شايد چه اصل داسے راوښکلے وي.

بَابٌ ۲۷۸: كَمِ التَّعْزِيْرُ وَالْاَدَبُ.

باب ۲۷۸: ذ تعزير او ذ ادب د مقدار بيان.

۵۵۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ

۵۵۰: عبد اللّٰه بن يوسف' ليث' يزيد

يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلْدَاتٍ اِلَّا فِيْ حَدٍّ مِنْ حُدُوْدِ اللّٰهِ.

بن ابي حبيب، بكير بن عبد اللّٰه، سليمان بن يسار، عبد الرحمٰن بن جابر بن عبد اللّٰه، ابو بردهؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، چه دَ حدود د اللّٰه نه سوا (دَ هيڅ گناه په سزا كښې) دَ لس دُرّو نه زيات وهل نه دي پكار.

۱۵۵۱: حَدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ جَابِرٍ عَمَّنْ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا عُقُوْبَةَ فَوْقَ عَشْرِ ضَرَبَاتٍ اِلَّا فِيْ حَدٍّ مِّنْ حُدُوْدِ اللّٰهِ.

۱۵۵۱: عمرو بن علي، فضيل بن سليمان، مسلم بن ابي مريم، عبد الرحمٰن بن جابر، دَ هغے سړي نه روايت كوي، چه هغه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ارشاد واوريد نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل. دَ حدود اللّٰه نه سوا، د لسو (۱۰) دُرو نه زياته سزا نشته.

۱۵۵۲: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو اَنَّ بُكَيْرًا حَدَّثَهُ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا جَالِسٌ عِنْدَ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ اِذْ جَآءَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ جَابِرٍ فَحَدَّثَ سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْنَا سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ فَقَالَ: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ جَابِرٍ اَنَّ اَبَاهُ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا بُرْدَةَ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَجْلِدُوْا فَوْقَ عَشْرَةِ

۱۵۵۲: يحيي بن سليمان، ابن وهب، عمرو، دا بكير قول نقل كوي. يو ځل زه سليمان بن يسار سره ناست ووم دے كښې هغه ته عبد الرحمٰن بن جابر راغے. او هغه دَ سليمان بن يسار نه حديث بيان كه. بيا سليمان بن يسار مونږ طرف ته متوجه شو، او وئيلے، ماته عبد الرحمٰن بن جابر بيان اوكه، او هغه، دَ ابو بردة انصاري نه او هغه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل. دَ اللّٰه تعالي دَ حدودو نه سوا دَ لسو (۱۰) دُرّو نه زيات څوك

اَسْوَاطٍ اِلَّا فِيْ حَدٍّ مِّنْ حُدُوْدِ اللّٰهِ.

مه وهې.

۵۵۳: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوِصَالِ، فَقَالَ لَهٗ رِجَالٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَاِنَّكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تُوَاصِلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّكُمْ مِثْلِيْ؟ اِنِّيْ اَبِيْتُ يُطْعِمُنِيْ رَبِّيْ وَ يَسْقِيْنَ، فَلَمَّا اَبَوْا اَنْ يَّنْتَهُوْا عَنِ الْوِصَالِ وَاصَلَ بِهِمْ يَوْمًا ثُمَّ يَوْمًا، ثُمَّ رَاَوُا الْهِلَالَ فَقَالَ لَوْ تَاَخَّرَ لَزِدْتُّكُمْ كَالْمُنَكِّلِ بِهِمْ حِيْنَ اَبَوْا تَابَعَهٗ شُعَيْبٌ وَّ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ وَّ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۵۳: يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، ابو سلمة ته ؓ ابو هريره قول نقل كوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم دَ، صوم وصال يعني پرله پسې څو ورځو پورې روژو نيولو نه منع فرمائيلې ده، نو مسلمانانو كښې څو سړو عرض اوكه، يا رسول الله، تاسو خو مسلسل روژې نيسئې، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تاسو كښې څوک څما په شان دې، زه خو شپه تيروم داسې حال كښې چه څما رب په ما څكوي او خوروي كوم وخت چه خلق دَ، صوم وصال نه منع نه شو، نو حضورؐ هغوي سره روژه اونيوله بيا دوئمه ورځ ئې هم يو ځائې كړه. بيا خلقو مياشت اوليده، نو حضورؐ اوفرمائيل. كه مياشت ورستوليدې شوې وې. نو مابه په تاسو نورې هم زياتې كړې وې. او دا حضورؐ تنبيهًا اوفرمائيل، كوم وخت چه هغوئ نه منله. شعيب او يحيٰي بن سعيد او يونس دَ، زهري نه د دې متابعت كښې روايت اوكه. او عبد الرحمٰن بن خالد په واسطه دَ، ابن شهاب، سعيد، ابو هريرهؓ نبي صلعم نقل اوكه.

۵۵۴: حَدَّثَنِيْ عَيَّاشُ ابْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَضْرِبُوْنَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اشْتَرَوْا طَعَامًا جِزَافًا اَنْ يَّبِيْعُوْهُ فِيْ مَكَانِهِمْ حَتّٰى يُؤْوُوْهُ اِلٰى رِحَالِهِمْ.

۵۵۴: عيّاش بن وليد، عبد الاعلٰي، معمر، زهري، سالم، حضرت عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي دَ هغه بيان دې. خلقو به دَ، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې وهل خوړل، چه غله به ئې اندازې سره (بغير وزن نه) اخستله، دَ پاره دَ دې چه هغه غلې (غلوں کو) دَ خريدارئ په ځائې خرڅې نه كړي، څو پورې چه هغه خپلې ټيكاونړې ته رانشي.

٥٥٥: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنَا عُرْوَةُ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا انْتَقَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهٖ فِيْ شَيْءٍ يُؤْتٰى اِلَيْهِ حَتّٰى تُنْتَهَكَ مِنْ حُرُمَاتِ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمُ لِلّٰهِ.

٥٥٥: عبدان' عبد اللّٰه' يونس' زهري' عروه' بي بي عائشې نه روايت كوي. ذ هغې بيان دې: رسول صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ خپل ذات په خاطر هيڅ معامله كښې چه حضورؐ سره به وه' بدله نه اخستله' ثو پورې چه د خدائې ذ حدودو به پرده ذري (خلاف ورزي) كيدله (او هر كله چه به داسې وه' نو) اللّٰه د پاره به ئې بدله اخستله (انتقام ليتا).

باب ٢٧٩: مَنْ اَظْهَرَ الْفَاحِشَةَ وَاللَّطْخَ وَالتُّهْمَةَ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ.

باب ٢٧٩: ذ هغې سړي بيان' چه هغه د بې حيائي كار' او' آلودګي او تهمت بغير ذ ګواه نه بيان كه.

٥٥٦: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ' قَالَ شَهِدْتُ الْمُتَلَاعِنَيْنِ وَ اَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ' فَرَّقَ بَيْنَهُمَا فَقَالَ زَوْجُهَا كَذَبْتُ عَلَيْهَا اِنْ اَمْسَكْتُهَا قَالَ فَحَفِظْتُ ذَاكَ مِنَ الزُّهْرِيِّ اِنْ جَآءَتْ بِهٖ كَذَا وَ كَذَا فَهُوَ وَ اِنْ جَآءَتْ بِهٖ كَذَا وَ كَذَا كَاَنَّهٗ وَحَرَةٌ فَهُوَ' وَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يَقُوْلُ جَآءَتْ بِهٖ لِلَّذِيْ يُكْرَهُ.

٥٥٦: علي' سفيان' زهري' سهل بن سعد نه روايت كوي' دوه لعان كونكي رالغلل زه هغه وخت ذ پنځلسو كالو ووم. حضورؐ د هغې دواړو مينځ كښې جدائي راوسته. ذ هغې خاوند اووې كه زه دا ځان سره ساتم' نو ما به په دې دروغ وئيلي وي. ذ سفيان بيان دې' ما' د' زهري نه دا هم ياد كړې دي' كه ښځې داسې داسې بچې راوړلو' نو هغه سړې ريښتنې دې' او كه داسې داسې يعني د چرمخکې (چپكلي) په شان پيدا شولو' نو هغه دروغجن دې. او ما د' زهري نه واوريدل' ذ هغې داسې بچې پيدا شو' چه بد ګڼړلې شو.

٥٥٧: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُوا الزِّنَادِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ ذَكَرَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْمُتَلَاعِنَيْنَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ شَدَّادٍ هِيَ الَّتِيْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ رَاجِمًا اِمْرَاَةً عَنْ غَيْرِ بَيِّنَةٍ؟ قَالَ لَا

٥٥٧: علي بن عبد اللّٰه' سفيان' ابو الزناد' قاسم بن محمد نه روايت كوي. ابن عباسؓ په دوو (٢) لعان كونكو ذكر اوكه' نو عبد اللّٰه بن شداد اووې' هغه' هغه ښځه وه' چه ذ هغې متعلق رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد فرمائيلې وو' كه ما يوه ښځه بغير ګواه سنګسارولې (نو دا به مې سنګسار كړې وه). ابن عباسؓ اووې' نه. هغې ښځې به په ښكاره

تِلْكَ امْرَأَةٌ اَعْلَنَتْ.

**۵۵۸ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنِ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْقَاسِمِ عَنِ الْقَاسِمِ ابْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ذُكِرَ التَّلَاعُنُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَاصِمُ ابْنُ عَدِيٍّ فِيْ ذٰلِكَ قَوْلًا ثُمَّ انْصَرَفَ وَ اَتَاهُ رَجُلٌ مِّنْ قَوْمِهٖ يَشْكُوْا اَنَّهُ وَجَدَ مَعَ اَهْلِهٖ فَقَالَ عَاصِمٌ مَا ابْتُلِيْتُ بِهٰذَا اِلَّا لِقَوْلِيْ فَذَهَبَ بِهٖ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهُ بِالَّذِيْ وَجَدَ عَلَيْهِ امْرَاَتَهُ وَ كَانَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ مُصْفَرًّا قَلِيْلَ اللَّحْمِ سَبِطَ الشَّعْرِ وَ كَانَ الَّذِيْ ادَّعٰى عَلَيْهِ اَنَّهُ وَجَدَهُ عِنْدَ اَهْلِهٖ اٰدَمَ خَدْلًا كَثِيْرَ اللَّحْمِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ، فَوَضَعَتْ شَبِيْهًا بِالرَّجُلِ الَّذِيْ ذَكَرَ زَوْجُهَا اَنَّهُ وَجَدَهُ عِنْدَهَا، فَلَاعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا فَقَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍؓ فِي الْمَجْلِسِ هِيَ الَّتِيْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ رَجَمْتُ اَحَدًا بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ رَجَمْتُ هٰذِهٖ؟ فَقَالَ لَا تِلْكَ امْرَاَةٌ كَانَتْ تُظْهِرُ فِي

بدكاري كوله.

**۵۵۸ :** عبد اللّٰه بن يوسف، ليث، يحيٰي بن سعيد، عبد الرحمٰن بن قاسم، قاسم بن محمد، حضرت ابن عباسؓ روايت كوي. دَ هغه بيان دے. دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مخكښ دَ، لعان كونكو ذكر اوشو، نو قاسم بن عدي دَ هغے متعلق څه خبره اوكړه. بيا واپس لاړلو. او هغه سره دَ قوم يو سړے راغے. او شكايت ئے اوكه. چه هغه خپلے ښځے سره يو سړے ليدلے دے. عاصم اووے، زه دے كښ صرف دَ خپلے يوے خبرے په وجه آخته كړے شوم، نو هغهٔ دغه سړے حضورؐ ته بوتلو. او دَ هغے سړي متعلق ئے بيان اوكه. چه هغه ئے خپلے ښځے سره ليدلے وو. هغه سړے خپله خو، زيړ رنګ واله كم غوښے او نيغو ويښتو واله وو او هغه سړے چه دَ هغه متعلق ئے دعويٰ كړے وه چه هغه ئے خپلے ښځے سره ليدلے دے، غنم، رنګے، ډكو پنډو واله او ډك غوښے وو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، ائے اللّٰه، دا ظاهر كړے (يعني حقيقت ظاهر كړے) نو هغے ښځے دَ هغهٔ هم شكل بچے راوړلو، چه دَ هغه متعلق دَ هغے خاوند بيان كړے وو، چه هغه ئے خپلے ښځے سره ليدلے دے، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے دواړو مينځ كښ لعان اوكه يو سړے په مجلس كښ ناست وو. ابن عبّاسؓ ته ئے اووے، آيا دا هغه ښځه وه، چه دَ هغے متعلق نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے وو كه ما څوك بغير دَ ګواه نه سنګسار كولے، نو هغه به مے سنګسار كړے وه. نو هغه اووے نه، بلكه دا هغه ښځه وهٔ چه اسلام كښ ئے

اَلْإِسْلَامِ السُّوْٓءَ.

باب ۲۸۰: رَمْيِ الْمُحْصَنَاتِ، وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوْا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ. فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمَانِيْنَ جَلْدَةً وَّ لَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۙ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ وَ اَصْلَحُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۙ اِنَّ الَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنَاتِ الْغٰفِلٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ لُعِنُوْا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ.

۵۵۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْتَنِبُوْا السَّبْعَ الْمُوْبِقَاتِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ مَاهُنَّ؟ قَالَ الشِّرْكُ بِاللّٰهِ، وَالسِّحْرُ وَ قَتْلُ النَّفْسِ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ، وَ اَكْلُ الرِّبَا، وَ اَكْلُ مَالِ الْيَتِيْمِ وَالتَّوَلِّيْ يَوْمَ الزَّحْفِ، وَ قَذْفُ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ الْغَافِلَاتِ.

باب ۲۸۱: قَذْفِ الْعَبِيْدِ.

۵۶۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ فُضَيْلِ بْنِ غَزْوَانَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نُعْمٍ عَنْ اَبِيْ

اعلانيه بدكاري كوله.

باب ۲۸۰: واده شوي ښځه زنا سره د مهتم (تهمتي) كولو بيان. او كوم خلق چه واده شوي ښځې باندې تهمت لګوي. بيا هغوئ څلور ګواهان نه راولي نو هغوئ اتيا كوړې اووهئ او د هغوي ګواهي هيڅ كله مه قبلوئې. او داسې خلق فاسق دي. خو چاچه دې نه پس توبه كړه. او اصلاح ئې اوكړه، نو اللّٰه تعالي بښونكې مهربانه دې. بيشكه كوم خلق چه پاكدامن غافل، مؤمنو ښځو باندې د زنا تهمت لګوي. دنيا او اخرت كښې به په هغوئ لعنت وي او هغوئ د پاره لوئې عذاب دې.

۵۵۹: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، سليمان، ثور بن زيد، ابو الليث، حضرت ابو هريرهؓ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل اوه (۷) مهلك څيزونو نه بچ شئ. خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، هغه څه څيزونه دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل (۱) اللّٰه پاك سره شرك كول (۲) او جادو (۳) او كوم نفس چه اللّٰه تعالٰي حرام كړې، هغه په ناحقه قتلول (۴) او سود خوړل. (۵) او د يتيم مال خوړل (۶) او د جنګ يعني غزا په ورځ تښتيدل (۷) او غافلو، مومنو، پاكدامنو ښځو باندې د، زنا تهمت لګول.

باب ۲۸۱: د غلامانو د تهمت (تور) لګولو بيان.

۵۶۰: مسدد، يحيي بن سعيد، فضيل بن غزوان، ابن ابي نعيم، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې. ما د، ابو القاسم صلّي اللّٰه

هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: مَنْ قَذَفَ مَمْلُوْكَهُ وَهُوَ بَرِئٌ مِمَّا قَالَ جُلِدَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ كَمَا قَالَ.

عليه وسلم نه اوريدلي دي. چا چه خپل غلام باندي تهمت اوترلو، او هغه ذ هغې تهمت نه بري وو، نو د قيامت په ورځ به هغه ته كوړي لږولي شي. خو دا چه هغه غلام داسې وي، ځنګه چه ذ هغه مالک وئيلي وي.

## باب ۲۸۲ : هَلْ يَأْمُرُ الْاِمَامُ رَجُلًا فَيَضْرِبُ الْحَدَّ غَائِبًا عَنْهُ، وَ قَدْ فَعَلَهُ عُمَرُ.

باب ۲۸۲ : آيا امام چا سړي ته حكم وركولې شي، چه ذ هغه غير موجود ګئ كښې په چا حد اولږوي او حضرت عمرؓ داسې كړې دي.

۱۵۶۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ قَالَا جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَنْشُدُكَ اللّٰهَ اِلَّا قَضَيْتَ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَامَ خَصْمُهُ وَ كَانَ اَفْقَهَ مِنْهُ فَقَالَ صَدَقَ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَاْذَنْ لِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْ فَقَالَ اِنَّ ابْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا فِيْ اَهْلِ هٰذَا فَزَنٰى بِامْرَاَتِهِ فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَلَةٍ وَّ خَادِمٍ وَّ اِنِّيْ سَاَلْتُ رِجَالًا مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ عَلٰى ابْنِيْ جَلْدَ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبَ عَامٍ، وَ اَنَّ عَلٰى امْرَاَةِ هٰذَا الرَّجْمَ فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ

۱۵۶۱: محمد بن يوسف، ابن عيينه، زهري، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه، بن عتبه حضرت ابو هريره او زيد بن خالد جهني نه روايت كوي د دې دواړو بيان دې يو سړې ذ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. اووئيلې، زه تاسوٌ ته د، اللّٰه قسم دركوم، چه ځمونږ مينځ كښې د كتاب اللّٰه مطابق فيصله اوكړئې. ذ هغه مخالف فريق چه ذ هغه نه زيات پوهې واله وو، اودريد اووئيلې، دې ټيک وائي، تاسوٌ ځمونږ مينځ كښې د كتاب اللّٰه مطابق فيصله اوكړئې، او ابې د اللّٰه رسوله ماته ذ عرض كولو اجازت اوكړئې. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، وايه (څه بيان دې) هغه اووې. ځما ځوئ د ده كور كښې مزدوري كوله، د ده ښځې سره ځما ځوئ زنا اوكړه. ما سل (۱۰۰) چيلئې او يو خادم فديه كښې وركړل. بيا ما د، اهلِ علمو نه تپوس اوكه، هغوي اووې ځما ځوئ د پاره سل (۱۰۰) دُرّې او يو كال د پاره جلاوطني ده. او د ده ښځه به سنګساروله شي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل په هغه ذات م دې قسم وي، ذ چا قبضه كښې چه ځما ساه ده. زه

الْمِائَةُ وَالْخَادِمُ رَدٌّ عَلَيْكَ وَ عَلَى ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَ تَغْرِيبُ عَامٍ وَ يَا أُنَيْسُ اُغْدُ عَلَى امْرَأَةِ هٰذَا فَسَلْهَا فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا، فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا.

دَ كتاب الله مطابق ستاسو فيصله كوم. ستا چيلئ او خادم به تاته واپس كيږي. او ستا ځوئ د پاره سل (۱۰۰) دُرّے او يو كال جلاوطني ده. اے، انيسَ، صباته د ده ښځے له ورشه، كه هغه اقرار اوكړي، نو هغه رجم كړه. هغے ښځے اقرار اوكه، نو هغه سنګسار كړے شوه.

# كِتَابُ الدِّيَاتِ

# دَ خون بها بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

باب ۲۸۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ مَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ.

شروع كوم په نامه دَ خدائے چه بخښونكے او مهربان دے

باب ۲۸۳: دَ الله تعالٰي قول چا چه څوک مومن قصداً قتل كه، نو دَ هغۀ بدله جهنم ده.

۵۶۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيْلَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ رَجُلٌ، يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الذَّنْبِ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ؟ قَالَ اَنْ تَدْعُوَ لِلّٰهِ نِدًّا وَّ هُوَ خَلَقَكَ قَالَ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ ثُمَّ اَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ اَنْ يَّطْعَمَ مَعَكَ قَالَ ثُمَّ اَيٌّ؟ قَالَ ثُمَّ اَنْ تُزَانِيَ بِحَلِيْلَةِ جَارِكَ، فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ تَصْدِيْقَهَا وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَ لَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ لَا يَزْنُوْنَ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ الْاٰيَةَ.

۵۶۲: قتيبه بن سعيد، جَرير، اعمش ابو وائل، عمر بن شرحبيل نه روايت كوي دَ عبد الله بيان دے. يو سړي عرض اوكه يا رسول الله، كومه ګناه دَ الله په نزد ډيره لويه ده. حضورؐ ورته اوفرمائيل، چه ته الله سره شرک اوكړے حالانكه هغه ته پيدا كړے ئے. هغه تپوس اوكه. بيا كومه، حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، چه ته خپل اولاد قتل كړے، د دے ويرے نه چه تاسره به اوخوري. هغه تپوس اوكه، بيا كومه، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، بيا ستا دَ خپل ګوانډي ښځے سره زنا كول، نو الله تعالٰي د دے په تصديق كښ دا، آيت نازل كړلو: چه كوم خلق الله تعالٰي سره بل معبود نه بلي، او هغه نفس نه قتلوي، چه هغه الله حرام كړے دے، خو حق سره (يعني په حقه) او زنا نه كوي، آخر آيت پورے.

۵۶۳: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا

۵۶۳: علي، اسحاق، بن سعيد بن عمرو

اِسْحٰقُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ عَمْرِوْ بْنِ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَنْ يَّزَالَ الْمُؤْمِنُ فُسْحَةٍ مِّنْ دِيْنِهٖ مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا.

بن سعيد بن عاص، سعيد بن عمرو بن عاص، حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. ذَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، چه مؤمن هميشه كشادګئ سره اوسي، خو پورے چه هغه په ناحقه خون اونه كړي.

۵۶۴: حَدَّثَنِىْ اَحْمَدُ بْنُ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ سَمِعْتُ اَبِىْ يُحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اِنَّ مِنْ وَّرْطَاتِ الْاُمُوْرِ الَّتِىْ لَا مَخْرَجَ لِمَنْ اَوْقَعَ نَفْسَهٗ فِيْهَا سَفْكَ الدَّمِ الْحَرَامِ بِغَيْرِ حِلِّهٖ.

۵۶۴: احمد بن يعقوب، اسحاق ذَ خپل پلار نه، هغه ذَ حضرت عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے، چه څوک په ناحقه قتلول ذَ هغې مهلكو اُمورو نه دي، چه هغې كښې د غُرخيدلي راوتل ډير ګران وي.

۵۶۵: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُوْسٰى عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِىْ وَآئِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَّلُ مَا يُقْضٰى بَيْنَ النَّاسِ فِى الدِّمَآءِ.

۵۶۵: عبيد اللّٰه بن موسٰي، اعمش، ابو وائل، حضرت عبد اللّٰه نه روايت كوي ذَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، د ټولو نه مخكښې به ذَ هغې خلقو مقدمے فيصله كولے شي، چه ذَ قتل متعلق وي.

۵۶۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَدِيٍّ حَدَّثَهٗ اَنَّ الْمِقْدَادَ بْنَ عَمْرٍو وَالْكِنْدِيَّ حَلِيْفَ بَنِىْ زُهْرَةَ حَدَّثَهٗ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا مَّعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ لَّقِيْتُ كَافِرًا فَاقْتَتَلْنَا فَضَرَبَ يَدِىْ بِالسَّيْفِ فَقَطَعَهَا ثُمَّ لَا ذَ بِشَجَرَةٍ وَ قَالَ

۵۶۶: عبدان، عبد اللّٰه، يونس، زهري، عطاء بن يزيد، عبيد اللّٰه بن عدي، مقداد بن عمرو كندي (د، بني زه حليف) نه، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره جنګ بدر كښې شريک وو، روايت كوي. ذَ هغه بيان دے ما عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، كه زه يو كافر سره يو ځائے شم او هغه ماسره جنګ اوكړي او تورے سره ځما لاس پريكړي. بيا د، اونے خوا كښې پناه واخلي، اووائي، چه زه ذَ اللّٰه اطاعت ګزاريم (يعني اسلام م راورلو) نو ايا ذَ

اَسْلَمْتُ لِلّٰهِ اَقْتُلُهُ بَعْدَ اَنْ قَالَهَا؟ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْتُلْهُ، قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاِنَّهُ طَرَحَ اِحْدٰى يَدَیَّ ثُمَّ قَالَ ذٰلِكَ بَعْدَ مَا قَطَعَهَا اَقْتُلُهُ؟ قَالَ لَا تَقْتُلْهُ فَاِنْ قَتَلْتَهُ فَاِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ اَنْ تَقْتُلَهُ وَ اَنْتَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ اَنْ يَّقُوْلَ كَلِمَتَهُ الَّتِیْ قَالَ وَ قَالَ حَبِيْبُ بْنُ اَبِیْ عَمْرَةَ عَنْ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمِقْدَادِ اِذَا كَانَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ يُخْفِیْ اِيْمَانَهُ مَعَ قَوْمٍ كُفَّارٍ فَاَظْهَرَ اِيْمَانَهُ فَقَتَلْتَهُ فَكَذٰلِكَ كُنْتَ اَنْتَ تُخْفِیْ اِيْمَانَكَ بِمَكَّةَ مِنْ قَبْلُ.

هغه داسے وئیلو نه پس هغه قتل کړم. رسول الله صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل' هغه مه قتلوه هغه عرض اوکه' یا رسول الله صلي الله علیه وسلّم هغه ځما یو لاس پرے کړلو. بیا دا کلمه هغه ځما د لاس پرے کولو نه پس وئیلے ده' آیا بیا هم زه هغه قتل نه کړم. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. او. هغه مه قتلوه. که تا هغه قتل که' نو هغه به ستا په ځائے دَ قتلولو نه مخکښ حالت کښ شي' او ته به دَ هغه دَ کلمه وئیلو نه مخکښ واله حالت کښ شے. حبیب بن عمره دَ سعید نه' هغه دَ ابن عباسؓ نه روایت کړے دے. حضور صلي الله علیه وسلّ مقداد ته اوفرمائیل' هر کله چه یو مومن سړي خپل ایمان دَ کافرو نه پټ ساتلے وي. او هغه خپل ایمان ظاهر کړلو بیا تا هغه قتل که' نو دغه شان تاهم مکه کښ مخکښ خپل ایمان پټ ساتلو.

باب ۲۸۴ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ مَنْ اَحْيَاهَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَنْ حَرَّمَ قَتْلَهَا اِلَّا بِالْحَقِّ حَيِیَ النَّاسُ مِنْهُ جَمِيْعًا.

باب ۲۸۴ : دَ الله تعالٰي قول وَ مَن احیاها تفسیر. ابن عباس اووے' دَ چا چه سوا' دَ حق نه قتلول حرام دي' هغه ئے بچ کړلو' نو هغے سره گویا ټول خلق ژوندي پاتے شو.

۵۶۷ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ اِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ الْاَوَّلِ كِفْلٌ مِّنْهَا.

۵۶۷ : قبیصه' سفیان' اعمش' عبد الله بن مره' مسروق' حضرت عبد الله نه روایت کوي دَ هغه بیان دے. حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. چه کوم نفس قتلیږي' دَ هغے د گناه یوه حصه د' آدم علیه السّلام په وړمبني ځوئ یعني په قابیل وي.

ف : عام طور سره سړے دے کښ فرق نه شي کولے' یا داسے به اووایو' چه قابیل او هابیل د' آدم علیه السلام دواړو ځامنو کښ قاتل کوم یو وو' چه دَ کوم نوم سر کښ ق راځي' هغه قاتل دے. یعني قابیل قاتل

دے. يعني دے فرق معلومولو د پاره نوم كښ دَ ق حرف ياد ساتل پكار دي دلته ق سره په آسانۍ دَ قاتل پيژندګلو كيدے شي.

**۵۶۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ وَاقِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنِيْ عَنْ اَبِيْهِ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ.**

۵۶۸: ابو الوليد، شعبه، واقد بن عبد اللّٰه دَ خپل پلار نه، هغه دَ حضرت عبد اللّٰه بن عمر رض روايت كوي. دَ هغه بيان دے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو څما نه پس كافر كيږئ مه، چه دَ يو بل څټونه اووهئ.

**۵۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُدْرِكٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا زُرْعَةَ بْنِ عُمْرِوْ بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوِدَاعِ. اِسْتَنْصِتِ النَّاسَ لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ. رَوَاهُ اَبُوْ بَكْرَةَ وَابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

۵۶۹: محمد بن بشار، غندر، شعبه، علي بن مدرك، ابو زرعه بن عمرو بن جرير حضرت جرير رض نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ حجة الوداع په موقع ارشاد اوفرمائيلو، خلق خاموش كړه بيائے اوفرمائيل، تاسو مانه پس كافر كيږئے مه، چه د يو بل كردن اووهے ابوبكر او ابن عباس رضي اللّٰه دا، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے.

**۵۷۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ فِرَاسٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْكَبَائِرُ الْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ اَوْ قَالَ الْيَمِيْنُ الْغَمُوْسُ شَكَّ شُعْبَةُ. وَ قَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ الْكَبَائِرَ**

۵۷۰: محمد بن بشار، محمد بن جعفر شعبه، فراس، شعبي، عبد اللّٰه بن عمر نه روايت كوي. د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، چه كبائر (لوئے) ګناه دا دي، اللّٰه سره څوك شريك جوړول، او دَ مور پلار نافرماني، يا وے فرمائيل، چه يمين غموس دے كښ شعبه ته شك شوے دے. او معاذ اووے موږ ته شعبه بيان اوكه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، كبائر

اَلْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَالْيَمِيْنُ الْغَمُوْسُ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ اَوْ قَالَ وَ قَتْلُ النَّفْسِ.

گناه دا دي، الله سره ځوک شريک جوړول. او يمين غموس او د مور پلار نافرماني، يا، وې فرمائيل او نفس قتلول.

ف: يمين غموس: په دروغه قسم

۱۵۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ ابْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِىْ بَكْرٍ سَمِعَ اَنَسًا رَّضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْكَبَآئِرُ وَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ ابْنِ اَبِىْ بَكْرٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَكْبَرُ الْكَبَآئِرِ الْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ قَتْلُ النَّفْسِ وَ عُقُوْقُ الْوَالِدَيْنِ وَ قَوْلُ الزُّوْرِ اَوْ قَالَ وَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ.

۱۵۷: اسحاق بن منصور، عبد الصمد، شعبه، عبيد الله بن ابي بكر، حضرت انس نه روايت كوي، حضور صلّي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو چه لوئې گناهونه دا دي (دويم سند) عمرو، شعبه، ابي بكر، حضرت انس بن مالك نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، چه كبيره گناهونو كښې د ټولو نه لوئې گناهونه دا دي. الله تعالٰي سره ځوک شريکول، او نفس قتلول او مور پلار نافرماني، او دروغ وئيل، يا، وې فرمائيل په دروغه گواهي كول.

۲۵۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ ظُبْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يُحَدِّثُ قَالَ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْحُرَقَةِ مِنْ جُهَيْنَةَ قَالَ فَصَبَّحْنَا الْقَوْمَ فَهَزَمْنَاهُمْ قَالَ وَ لَحِقْتُ اَنَا وَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ رَجُلًا مِّنْهُمْ قَالَ فَلَمَّا غَشِيْنَاهُ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ فَكَفَّ عَنْهُ الْاَنْصَارِىُّ فَطَعَنْتُهُ بِرُمْحِىْ حَتّٰى قَتَلْتُهُ، قَالَ فَلَمَّا قَدِمْنَا

۲۵۷: عمرو بن زراره، هشيم، حصين، ابو ظبيان، اسامه بن زيد بن حارثهؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دې. مونږ خلق رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د جهينه يو قبيلې طرف ته جنگ د پاره اوليږلو. مونږ خلقو سحر كيدو سره په هغوئ حمله اوكړه او هغوئ ته مو شكست وركړلو. د هغه بيان دې، زه او يو انصاري د هغې قبيلې يو سړي سره مقابل شو. كوم وخت چه مونږ په هغه حمله اوكړه نو هغه اووې. لا اله الا الله. د، اسامهؓ بيان دې. انصاري خو، د هغه نه منع شو. ليكن ما هغه خپلې نيزې سره اووهلو، تر دې چه ما هغه قتل كړلو. كوم وخت چه مونږ واپس شو، او نبي صلّي الله عليه

بَـلَـغَ ذٰلِكَ الـنَّبِـيَّ صَـلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَقَالَ لِيْ يا اُسَامَةَ اَقتَلْتَهُ بَـعْـدَ مَا قَالَ لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ؟ قَالَ قُلْتُ يَـا رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ اِنَّمَا كَانَ مُتَعَوِّذًا قَالَ اَقتَـلْتَـهُ بَـعْـدَ اَنْ قَالَ لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰه؟ قَـالَ فَـمَـا زَالَ يُـكَـرِرُّهَـا عَـلَـيَّ حَتّٰى تَـمَـنَّيْـتُ اَنِّـيْ لَمْ اَكُنْ اَسْلَمْتُ قَبْلَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ.

وسلّم ته دا خبر اورسيد، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائيل. اے اُسامه، آيا تا هغه دَ لا اله الا اللّٰه وئيلو نه پس قتل كه. ما اووے، يا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علَيه وسلّم، هغه صرف دَ خپل ځان بچ كولو د پاره داسے وئيلے وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا تا هغه د، لا اله الا اللّٰه: وئيلو نه پس قتل كه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دغه شان بار بار فرمائيل، تر دے چه ما آرزو كوله، چه كاش دَ نن نه مخكښ مسلمان نه وے.

۵۷۳ : حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُـوْسُفَ حَـدَّثَـنَـا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ عَـنْ اَبِـيْ الْـخَيْـرِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ عَنْ عُـبَـادَةَ بْـنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اِنِّـيْ مِـنَ الـنُّـقَبَآءِ الَّذِيْنَ بَايَعُوا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَـايَـعْنَاهُ عَلَىٰٓ اَنْ لَّا نُشْرِكَ بِاللّٰهِ شَيْـئًا وَّ لَا نَسْـــرِقَ وَ لَا نَـزْنِـــيَ وَ لَا نَـقْتُـلَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ وَ لَا نَنْتَهِبَ وَ لَا نَـعْـصِـيَ بِـالْجَنَّةِ اِنْ فَعَلْنَا ذٰلِكَ فَاِنْ غَشِيْـنَا مِنْ ذٰلِكَ شَيْـئًا كَانَ قَضَآءُ ذٰلِكَ اِلَى اللّٰهِ.

۵۷۳ : عبد اللّٰـه بن يوسف، ليث، يزيد، ابو الخير، صابحي، حضرت عبادّه بن صامتؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، زه دَ هغے نقباء نه ووم، چه هغوئ د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه بيعت كړے وو. مونږ خلقو په دے خبره بيعت اوكه، چه هيڅوک به اللّٰه سره شريک نه جوړوو، اونه به غلا كوو، او نه به زنا كوو، او نه به يو نفس قتلوو، چه هغه اللّٰه تعالي حرام كړے دے او نه به لوټ مار كوو او نه به نافرماني كوو. كه مونږ داسے اوكړل نو مونږ د پاره جنت دے. اوكه دے كښ د، يو مرتكب شو، نو د دے فيصله د، اللّٰه تعالي په لاس كښ ده.

ف: نقباء: دَ نقيب جمع ده. دَ اولياء اللّٰه يو جماعت چه دَ هغوئ درجه د، ابدالو دَ پاسه وي. نګهبان. محافظان.

۵۷۴ : حَـدَّثَـنَـا مُـوْسَـى بْـنُ اِسْـمَـاعِـيْـلَ حَـدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ عَـنْ عَبْدِ الـلّٰـهِ رَضِـيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ الـنَّبِيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۵۷۴ : موسي بن اسماعيل جويريه نافع، حضرت عبد اللّٰه نه روايت كوي دَ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چاچه په مونږ وسله اوچته كړه، هغه خمونږ نه،

مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ فَلَيْسَ مِنَّا رَوَاهُ اَبُوْ مُوسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۷۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا اَيُّوبُ وَ يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ عَنِ الْاَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ ذَهَبْتُ لِاَنْصُرَ هٰذَا الرَّجُلَ، فَلَقِيَنِيْ اَبُوْ بَكْرَةَ فَقَالَ اَيْنَ تُرِيْدُ؟ قَالَتُ اَنْصُرُ هٰذَا الرَّجُلَ، فَقَالَ ارْجِعْ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفِهِمَا فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُوْلُ فِي النَّارِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُوْلِ؟ قَالَ اِنَّهُ كَانَ حَرِيْصًا عَلٰى قَتْلِ صَاحِبِهِ.

باب ۲۸۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ط اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَ اَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ط ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ رَحْمَةٌ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ.

باب ۲۸۶: سُؤَالِ الْقَاتِلِ

نه دے. دا حضرت ابو موسیٰ د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کړے دے.

۵۷۵: عبد الرحمٰن بن مبارک، حماد بن زيد، ايوب او يونس، حسن، احنف بن قيس نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے. زه د هغے سړي مدد له ورغلم، نو ما سره ابوبکرؓ يو ځائے شو او تپوس ئے اوکه، د کوم ځائے اراده ده ماورته اووے، د دغے سړي د مدد کولو ته. هغه اووے، واپس شه. ځکه چه ما ذَ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چه قاتل او مقتول به دواړه دوزخ کښې وي. ما اووے يا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم، قاتل خو خير (ده له دوزخ کښې کيدل پکار دي) ليکن مقتول ولے؟ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ځکه چه هغه هم ذَ خپل ملګري په قتل حريص وو.

باب ۲۸۵: د، اللّٰه تعالٰي قول، اے ايمان والو، د مقتولانو متعلق په تاسو قصاص فرض شوے دے. ذَ ازاد په بدله کښې ازاد. ذَ غلام په بدله کښې غلام، ذَ ښځے بدله کښې ښځه. چا د پاره چه ذَ هغه د، وررور ذَ طرف نه څۀ معاف کړے شي، نو د، دستور موافق اتباع کول دي. او په ښه شان ذَ هغه طرف ته رسَوَل دي. دا ستاسو د، رب ذَ طرف نه تخفيف او رحمت دے. کوم سړے چه دے نه پس ذَ حد نه واوړي، نو ذَ هغه د پاره دردناک عذاب دے.

باب ۲۸۶: ذَ قاتل نه تپوس کول، تر دے چه

حَتّٰى يُقِرَّ وَالْاِقْرَارِ فِي الْحُدُوْدِ.

هغه اقرار اوکړي او حدودو کښې دَ اقرار کولو بيان.

٦٧٥٦: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ يَهُوْدِيًّا رَضَّ رَأْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ فَقِيْلَ لَهَا مَنْ فَعَلَ بِكِ هٰذَا؟ اَفُلَانٌ اَوْ فُلَانٌ حَتّٰى سُمِّيَ الْيَهُوْدِيُّ فَأُتِيَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَزَلْ بِهِ حَتّٰى اَقَرَّ بِهِ فَرُضَّ رَأْسُهُ بِالْحِجَارَةِ.

٦٧٥٦: حجاج بن منهال، همام، قتاده، انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي دَ هغه بيان دے. يو يهودي دَ يو جينۍ سر د، دوو کانړو مينځ چيخنړے که، دَ جينۍ نه تپوس اوشو، چه تاسره دا سلوک چا اوکه. آيا فلاني يا فلاني کړے دے، تر دے چه دَ يو يهودي نوم واخستے شو، نو هغه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته راوستے شو. تپوس باندے هغه اقرار اوکړو، نو دَ هغه سر کانړي سره چيخنړے کړے شو.

باب ٢٨٧: اِذَا قَتَلَ بِحَجَرٍ اَوْ بَعْضًا.

باب ٢٨٧: هر کله چه يو سړے، څوک کانړي يا ډنډے سره قتل کړي.

٦٧٧٧: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اِدْرِيْسَ عَنْ هَشَامِ ابْنِ زَيْدِ ابْنِ اَنَسٍ عَنْ جَدِّهِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ خَرَجَتْ جَارِيَةٌ عَلَيْهَا اَوْضَاحٌ بِالْمَدِيْنَةِ قَالَ فَرَمَاهَا يَهُوْدِيٌّ بِحَجَرٍ قَالَ فَجِيْءَ بِهَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِهَا رَمَقٌ فَقَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُلَانٌ قَتَلَكِ؟ فَرَفَعَتْ رَأْسَهَا فَاَعَادَ عَلَيْهَا قَالَ فُلَانٌ قَتَلَكِ. فَرَفَعَتْ رَأْسَهَا فَقَالَ لَهَا فِي الثَّالِثَةِ فُلَانٌ قَتَلَكِ فَخَفَضَتْ رَأْسَهَا فَدَعَا بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَتَلَهُ بَيْنَ

٦٧٧٧: محمد، عبد اللّٰه بن ادريس، شعبه هشام بن زيد بن انس، دَ خپل نيکه (دادا) انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. يوے جينۍ کالي اچولے وو مدينه کښې بهرته راووتله. يو يهودي هغه په کانړي اوويشتله. هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې راوستے شوه. اوس لا ساه په کښې باقي وه. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے (ماشومے) جينۍ نه تپوس اوکه، آيا ته فلاني قتل کړے ئے. هغے خپل سر (انکار کښې) او خوزولو بيا دوباره ترے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوکه، آيا فلاني ته قتل کړے ئے. نو هغے خپل سره اشاره اوکړه، چه نه. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته په دريم ځل اوفرمائيل، چه ته فلاني وژلے ئے، هغے خپل سرخکته کړلو، نو هغه يهودي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم راوغوښتلو، او د، دوو کانړو مينځ کښې

الْحَجَرَيْنِ.

ئې ايښودو سره قتل کړلو.

## باب ۲۸۸ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى

اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْاَنْفَ بِالْاَنْفِ وَالْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِ وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰالِمُوْنَ.

## باب ۲۸۸ : دَ اللّٰه تعالٰي قول. دَ نفس په بدله

کښې نفس، او د سترګې په بدله کښې سترګه ده او د پوزې په بدله کښې پوزه، او دَ غوږ په بدله کښې غوږ او د غاښ په بدله کښې غاښ، او د زخمونو هم بدلې دي. چا چه صدقه اوکړه، نو هغه کفاره ده. او چا چه دَ هغې مطابق فيصله اونه کړه چه اللّٰه تعالٰي نازل کړې دې نو داسې خلق ظالمان دي.

۵۷۸ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِیْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ اَنْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَّا بِاِحْدٰى ثَلَاثٍ النَّفْسُ بِالنَّفْسِ وَالثَّيِّبُ الزَّانِیْ، وَالْمَارِقُ مِنَ الدِّيْنِ التَّارِكُ الْجَمَاعَةَ.

۵۷۸ : عمر بن حفص، حفص، اعمش عبد اللّٰه بن مره، مسروق، حضرت عبد اللّٰه رضي اللّٰه نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې رسول صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم مسلمان چه د دې خبرې ګواهي ورکوي، چه اللّٰه نه سوا بل معبود نشته، او دا چه زه دَ اللّٰه رسول يم، دَ هغه خون حلال نه دې، خو دې درې صورتونو کښې يو صورت کښې جائز دي (۱) د نفس په بدله کښې نفس (۲) واده شوې زناکار (۳) دَ دين نه وتونکې جماعت پريښودونکې (مرتد).

## باب ۲۸۹ : مَنْ اَقَادَ بِالْحَجَرِ.

## باب ۲۸۹ : کانړي سره، دَ وژلو، دَ قصاص بيان.

۵۷۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ يَهُوْدِيًّا قَتَلَ جَارِيَةً عَلٰى اَوْ ضَاحٍ لَهَا فَقَتَلَهَا بِحَجَرٍ فَجِیْءَ بِهَا اِلَى النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِهَا رَمَقٌ فَقَالَ اَقَتَلَكِ فُلَانٌ وَّ اَشَارَتْ بِرَاْسِهَا اَنْ لَا ثُمَّ قَالَ الثَّانِيَةَ فَاَشَارَتْ

۵۷۹ : محمد بن بشار، محمد بن جعفر شعبه، هشام بن زيد، حضرت انسؓ نه روايت کوي يو يهودي يوه (ماشومه) جينئ دَ کالو په وجه چه هغې اچولې وو، په کانړي قتل کړله. هغه جينئ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته راوستې شوه. دغه وخت هغې کښې څه ساه باقي وه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا ته فلاني قتل کړې ئې. هغې خپل سر، سره اشاره اوکړه، چه نه. بيا په دويم ځل ترې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم تپوس اوکه،

بِـرَأْسِهَـا اَنْ لَّا، ثُـمَّ سَـأَلَهَـا الثَّـالِثَةَ فَأَشَـارَتْ بِـرَأْسِهَـا اَنْ نَّـعَـمْ، فَقَتَلَـهُ النَّبِيُّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ بِحَجَرَيْنِ.

نو هغې خپل سر، سره اشاره او کړه چه نه، بيا په دريم ځل ترې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم تپوس او كه، نو هغې خپل سر، سره اشاره او کړه، چه. او. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه (قاتل) دوو كانړو سره قتل كړلو.

## بـــاب ٢٩٠: مَـــنْ قُتِـــلَ لَــــــهُ قَتِيْــــلٌ فَهُـــوَ بِـــخَيْـــرِ النَّظَرَيْنِ.

باب ٢٩٠: دَ چا چه څوک قتل کړې شو، نو هغه ته دوه امرو (يعني قصاص او ديت) کښې د، يو اختيار دے.

٥٨٠: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَّحْيٰـى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِـيْ هُـرَيْـرَةَ اَنَّ خُـزَاعَةَ قَتَلُوْا رَجُلًا وَّ قَـــالَ عَبْـــدُ الـلّٰـــهِ بْـــنُ رَجَـــآءٍ حَـدَّثَـنَـا حَرْبٌ عَنْ يَّحْيٰـى حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ سَلَمَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَنَّـهُ عَـامَ فَتْـحِ مَكَّةَ قَتَلَـتْ خُـزَاعَةُ اَبُـوْ رَجُلًا مِّـنْ بَـنِـيْ لَيْـثٍ بِـقَتِيْـلٍ لَهُمْ فِـي الْجَـاهِـلِيَّةِ فَقَـامَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَـقَـالَ اِنَّ اللّٰـهَ حَبَـسَ عَـنْ مَـكَّةَ الْـفِيْـلَ وَ سَـلَّـطَ عَـلَيْهِـمْ رَسُوْلَـهُ وَالْـمُـؤْمِـنِيْـنَ اَلَا وَ اِنَّهَـا لَـمْ تَـحِـلَّ لِاَحَـدٍ قَبْـلِـيْ وَ لَا تُـحِلُّ لِاَحَدٍ بَعْدِيْ اَلَا وَ اِنَّـمَـا اُحِـلَّـتْ لِيْ سَاعَةً مِنْ نَّهَارٍ اَلَا وَ اِنَّـــا سَـــاعَتِـــيْ هٰـذِهٖ حَـرَامٌ لَّا يُـخْتَـلٰـى شَـوْكُهَا وَ لَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا وَلَا يَـلْـتَـقِـطُ سَـاقِـطَتَهَـا اِلَّا مُنْشِدٌ، وَ مَـنْ قُتِلَ لَهٗ قَتِيْلٌ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ

٥٨٠: ابـو نعيم، شيبان، يحيٰي، ابو سلمه حضرت ابـو هـريـرهؓ نـه روايـت كوي، د، خزاعه (قبيلې) خلقو يو سړې قتـل كـړلـو (دويم سند) عبد اللّٰه بن رجاء، حرب، يـحيٰي، ابو سلمه. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. دَ مـكې دَ فتـح پـه كـال خـزاعـه دَ بـني ليث يو سړې دَ جاهـليـت دَ خون په بدله كښې قتل كه. رسول اللّٰه صلّي اللّٰـه عـليه وسلّم اودريدلو. او وې فرمائيل. اللّٰه تعالٰي دَ مـكې نـه هـاتيان منع كړل، او دَ هغه ځائې په باشندګانو، ئې خپل رسول او مومنان مسلّط كړل. خبردار دلته قتل كـول نه څمونږ نه مخكښې چا د پاره حلال وو، او نه مانه پس چا د پاره حلال دي. واورې، چه د، ورځې صرف يو حـصه كښې ما د پاره حلال شو. واورئې، چه دا وخت دا، د مخكښې په شان حرام دے. د دے هيڅ آزغې دې نشي اوښكلې. او نه د دے اونه دے پريكولې شي. او نه د دے ځـائې پريوتې څيز دے اوچتولې شې. خو هغه چه اعلان كـونـكي وي. او د چاچه څـوک سړے قتل كړے شو. نو هـغـه تـه دوه امـرو كـښې د، يـو اختيار دے، يا دے هغه ته ديـت (خـون بهـا) وركـړے شـي، يا قصاص دے واخلي. اهل يمن كښې يو سړے چه دَ هغه نوم ابو شاه وو، اودريد،

اَمَّا يُوْدٰى وَ اِمَّا يُقَادُ فَقَامَ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْيَمَنِ يُقَالُ لَهُ اَبُوْ شَاهٍ فَقَالَ اُكْتُبْ لِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُكْتُبُوْا لِاَبِيْ شَاهٍ ثُمَّ قَامَ رَجُلٌ مِّنْ قُرَيْشٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا الْاِذْخِرَ فَاِنَّمَا نَجْعَلُهُ فِيْ بُيُوْتِنَا وَ قُبُوْرِنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، اِلَّا الْاِذْخِرَ وَ تَابَعَهُ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ شَيْبَانَ فِي الْفِيْلِ قَالَ بَعْضُهُمْ عَنْ اَبِيْ نُعَيْمٍ الْقَتْلَ. وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ اَمَّا اَنْ يُّقَادَ اَهْلُ الْقَتِيْلِ.

او عرض ئے اوکه. یا رسول اللّٰه دا څما د پاره اولیکئ. نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، ابو شاه د پاره دا اولیکئے. بیا قریشو کښې یو سړے اودرید او عرض ئے اوکه یا رسول اللّٰه، خو، د، اذخر دواښو اجازت راکړئے ځکه چه دا مونږ خپلو کورونو او قبرونو کښې استعمالوو، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل (ښه ده) سوا، د، اذخر نه (یعني دار بیلے شئے) او عبید اللّٰه د، شیبان نه "الفیل" لفظ کښې د دے حدیث متابعت کړے دے. او بعضے د، ابو نعیم نه د "القتل" لفظ نقل کړے دے. او عبید اللّٰه "اما ان یقاد" نه پس "اهل القتیل" لفظ بیان که (یعني دَ مقتول وارث دے قصاص واخلي).

ف: قصاص: د خون عوض اخستل. د قتل بدله اخستل. عوض. بدله.

۱۵۸۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو وَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ، كَانَتْ فِيْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ قِصَاصٌ وَ لَمْ تَكُنْ فِيْهِمُ الدِّيَةُ فَقَالَ اللّٰهُ لِهٰذِهِ الْاُمَّةِ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى اِلٰى هٰذِهِ الْاٰيَةِ فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَالْعَفْوُ اَنْ يَّقْبَلَ الدِّيَةَ فِي الْعَمَدِ قَالَ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ اَنْ يَّطْلُبَ بِمَعْرُوْفٍ وَّ يُؤَدِّيَ بِاِحْسَانٍ.

۱۵۸۱: قتیبه بن سعید، سفیان، عمرو، مجاهد، حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دے، بني اسرائیلو کښې قصاص وو او دَ، دیت (خون بها) دستور نه وو. اللّٰه تعالٰي د دے اُمت د پاره فرمائیلے دي. کتب علیکم القصاص في القتلٰي الخ. یعني تاسو باندے قتل کښې قصاص فرض شوے دے. دَ حضرت ابن عباسؓ بیان دے، "عفوه" دا ده، چه قتل عمد کښې هم خون بها قبوله کړے شي. او دا، ئے هم اوفرمائیل، "اتباع بالمعروف" نه مراد دا دے، چه د، دستور مطابق طلب کړي. او ډیرے ښې طریقے سره ئے اداکړي.

ف: قتل عمد: په قصد یا ارادے سره قتل.

## بَابُ ۱۲۹۱: مَنْ طَلَبَ دَمَ

## باب ۱۲۹۱: د هغے سړي بیان چه دَ چا ناحق

امْرِيءٍ بغير حَقٍّ.

**۵۸۲**: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ ابْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبْغَضُ النَّاسِ اِلَى اللّٰهِ ثَلَاثَةٌ مُلْحِدٌ فِي الْحَرَمِ وَمُبْتَغٍ فِي الْاِسْلَامِ سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَ مُطَّلِبُ دَمِ امْرِيءٍ بِغَيْرِ حَقٍّ لِيُهَرِيْقَ دَمَهُ.

**باب ۲۹۲: اَلْعَفْوَ فِي الْخَطَاءِ بَعْدَ الْمَوْتِ.**

**۵۸۳**: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ هُزِمَ الْمُشْرِكُوْنَ يَوْمَ اُحُدٍ وَّ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَرْوَانَ يَحْيَى ابْنُ اَبِيْ زَكَرِيَّاءَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ صَرَخَ اِبْلِيْسُ يَوْمَ اُحُدٍ فِي النَّاسِ يَا عِبَادَ اللّٰهِ اُخْرَاكُمْ فَرَجَعَتْ اُوْلَاهُمْ عَلٰى اُخْرَاهُمْ حَتّٰى قَتَلُوا الْيَمَانَ فَقَالَ حُذَيْفَةُ اَبِيْ اَبِيْ فَقَتَلُوْهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ غَفَرَ اللّٰهُ لَكُمْ قَالَ وَ قَدْ كَانَ اِنْهَزَمَ مِنْهُمْ قَوْمٌ حَتّٰى لَحِقُوْا بِالطَّائِفِ.

**باب ۲۹۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ**

خون كول غواړي.

**۵۸۲**: ابو اليمان، شعيب، عبد الله بن ابي حسين، نافع بن جبير، حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو. خلقو كښ ذ ټولو نه زيات مبغوض (يعني خراب. غضب وهلے) د الله تعالي په نزد درے سړي دي (۱) حرم كښ ظلم كونكے (۲) اسلام كښ د جاهليت طريقه تلاش كونكے (۳) او د چاپه ناحقه خون طلب كول، چه ذ هغه وينه توئے كړي.

**باب ۲۹۲: خطأ قتل كښ د مرګ نه پس د معاف كولو بيان.**

**۵۸۳**: فروه، علي بن مسهر، هشام، ذ خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشےؓ نه روايت كوي جنګ احد كښ مشركانو ته شكست اوشو (دويم سند) محمد بن حرب، ابو مروان يحيٰي بن ابي زكريا، هشام، عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي ذ هغے بيان دے، د احد په ورځ ابليس خلقو ته آواز وركه، ائے ذ خدائے بندیانو. خپل ورستو خلقو ته اوګورئے، نو ذ مخكښ خلق ورستو خلقو ته متوجه شو، تر دے چه خلقو يمان قتل كړلو. حذيفه اووے. ځما پلار دے، ځما پلار دے (يعني فام كوئے، غلطئ كښ ئے قتل نه كړے، ليكن هغوئ قتل كړلو. حذيفه اووے، اللّٰه دے تاسو معاف كړي. دوي كښ څه خلق داسے اوتښتيدل، چه طائف كښ ئے پنساه واخسته.

**باب ۲۹۳: ذ اللّٰه تعالي قول، يو مؤمن**

مَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَأً وَّ مَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّ دِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰى اَهْلِهٖٓ اِلَّا اَنْ يَّصَّدَّقُوْا فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّ اِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰى اَهْلِهٖ وَ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللّٰهِ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا.

له جائز نه دي، چه بل مؤمن قتل کړي، خو غلط سره. او چا چه یو مؤمن غلطۍ سره قتل کړ نو د، یو مؤمن غلام آزادول دي، خو دا چه هغ خلق ئې معاف کړي. نو که هغه د هغې قوم نه وي، چه ستاسو دشمن وي، او هغه مسلمان وي، نو د یو مؤمن غلام آزادول دي. او چا چه دا میسّر (حاصل) نه وي، نو دوه میاشتې پرله پسې (مسلسل) روژې نیول دي توبه ده د اللّٰه تعالٰي نه، او اللّٰه پوهیدونکے حکمت واله دے.

باب ۲۹۴ : اِذَا اَقَرَّ بِالْقَتْلِ مَرَّةً قُتِلَ بِهٖ.

باب ۲۹۴ : هر کله چه یو سړے یو وار د قتل اقرار اوکړي، نو هغه به قتلولے شي.

۵۸۴ : حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ يَهُوْدِيًّا رَضَّ رَاْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ فَقِيْلَ لَهَا مَنْ فَعَلَ بِكِ هٰذَا؟ اَفُلَانٌ؟ اَفُلَانٌ؟ حَتّٰى سُمِّيَ الْيَهُوْدِيُّ فَاَوْمَاَتْ بِرَاْسِهَا فَجِيْءَ بِالْيَهُوْدِيِّ فَاعْتَرَفَ فَاَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضَّ رَاْسُهٗ بِالْحِجَارَةِ وَ قَدْ قَالَ هَمَّامٌ بِحَجَرَيْنِ.

۵۸۴ : اسحٰق، حبّان، همّام، قتاده، حضرت انس بن مالک رض نه روایت کوي، د هغه بیان دے. یو یهودي د یوې جینۍ سر د دوو کاڼو مینځ کښې اوچقولو. هغې نه تپوس اوشو، چا تاسره دا سلوک کړے دے، فلاني فلاني سړي کړے دے. تر دې چه د یو یهودي نوم واخستے شو، نو هغې خپل سر، سره، اشاره اوکړه یهودي حاضر کړے شو، هغه اقرار اوکړلو، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم حکم اوکړلو د هغه سر کاڼرو سره اوچقولے شو. او همام بیان اوکه، چه د دوو کاڼرو سره اوچقولے شو.

باب ۲۹۵ : قَتْلِ الرَّجُلِ بِالْمَرْاَةِ.

باب ۲۹۵ : د ښځې په عوض (بدله) د سړي د قتلولو بیان.

۵۸۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ

۵۸۵ : مسدد، یزید بن زریع، سعید قتاده، حضرت انس بن مالک نه روایت کوي،

قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتَلَ يَهُوْدِيًّا بِجَارِيَةٍ قَتَلَهَا عَلَى اَوْ ضَاحٍ لَهَا.

حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم، يو يهودي، د، يوې جينۍ په بدله کښې قتل کړے وو، چه هغه، هغه جينۍ د کالو (زيور) په وجه قتل کړے وه.

باب ۲۹٦: اَلْقِصَاصِ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ فِي الْجَرَاحَاتِ، وَ قَالَ اَهْلُ الْعِلْمِ يُقْتَلُ الرَّجُلُ بِالْمَرْاَةِ، وَ يُذْكَرُ عَنْ عُمَرَ تُقَادُ الْمَرْاَةُ مِنَ الرَّجُلِ فِي كُلِّ عَمَدٍ يَبْلُغُ نَفْسَهُ فَمَا دُوْنَهَا مِنَ الْجَرَاحِ، وَ بِهٖ قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ وَ اِبْرَاهِيْمُ وَ اَبُو الزِّنَادِ عَنْ اَصْحَابِهٖ وَ جَرَحَتْ اُخْتُ الرُّبَيِّعِ اِنْسَانًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقِصَاصُ.

باب ۲۹٦: د سړي او ښځې مينځ کښې، زخمونو کښې، دَ قصاص اخستو بيان، او اهلِ علم اووې سړے دے د ښځے په بدله کښې قتل کړے شي او حضرت عمرؓ نه منقول دي، چه دَ ښځې قصاص دے دَ سړي نه هر قتل عمد کښې، يا، د هغې نه کم زخمي کيدو په حالت کښې واخستے شي. عمر بن عبد العزيز او ابراهيم، او ابو الزناد دَ خپل اصحاب نه دغسې نقل کړے دې او داربيع خور يو سړے زخمي که، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه قصاص واخله.

۵۸٦: حَدَّثَنَا عَمْرُ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اَبِي عَائِشَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَدَدْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهٖ فَقَالَ لَا تَلُدُّوْنِيْ؟ فَقُلْنَا كَرَاهِيَةَ الْمَرِيْضِ لِلدَّوَآءِ، فَلَمَّا اَفَاقَ قَالَ لَا يَبْقٰى اَحَدٌ مِنْكُمْ اِلَّا لُدَّ غَيْرَ الْعَبَّاسِ فَاِنَّهُ لَمْ يَشْهَدْكُمْ.

۵۸٦: عمر بن علي، يحيٰي، سفيان، موسٰي بن ابي عائشه، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دَ هغې بيان دے. مونږ دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خوله (منه) مبارکه کښې د بيمارئ په حالت کښې دوائي واچوله. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ماته دارو، مه راکوئې خو مونږ خيال اوکه، چه مريض دارو نۀ خوښوي (حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم منع اوفرمائيله) کوم وخت چه هوش کښې راغے، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو کښې دے هيڅوک بغير دوائي څکولو نه بغير دَ عباسؓ نه باقي پاتے نه شي، ځکه چه هغه تاسو سره شريک نه وو.

باب ۲۹۷: مَنْ اَخَذَ حَقَّهٗ اَوْ

باب ۲۹۷: دَ هغے سړي بيان چه خپل حق

اِقْتَصَّ دُوْنَ السُّلْطَانِ.

واخلي' يا' د بادشاه اطلاع نه بغير قصاص واخلي.

۵۸۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ الْاَعْرَجَ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ اِنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ وَ بِاِسْنَادِهٖ لَوِ اطَّلَعَ فِيْ بَيْتِكَ اَحَدٌ وَّ لَمْ تَأْذَنْ لَهٗ خَذَفْتَهٗ بِحَصَاةٍ فَفَقَأْتَ عَيْنَهٗ مَا كَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ.

۵۸۷ : ابو اليمان' شعيب' ابو الزناد' اعرج' حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے ما د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل. مونږ دَ ظهور د' اعتبار نه اخريو. ليكن جنت كښې د' داخليدو د' اعتبار نه به اول يو. او دے اسناد سره روايت دے. كه يو سړے ستا كور كښې تا اوكړي (جهانكے) او اجازت وانخلي. او ته كانړي سره هغه اُولے او د هغه ستركه اوچوي' نو په تا څه گناه نشته.

۵۸۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ حُمَيْدٍ اَنَّ رَجُلًا اَطَّلَعَ فِيْ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَدَّدَ اِلَيْهِ مِشْقَصًا' فَقُلْتُ مَنْ حَدَّثَكَ؟ قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ.

۵۸۸ : مسدد' يحيٰي' حميد نه روايت كوي' يو سړي دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم كور كښې تا اوكړلو (جهانكا) نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه طرف ته دَ تير څوكه ويشتلو د پاره اوچته كړه. ما تپوس اوكه' تاته چا دا بيان اوكه هغه اووے. انس بن مالک رضي اللّٰه عنه.

باب ۲۹۸ : اِذَا مَاتَ فِي الزِّحَامِ اَوْ قُتِلَ.

باب ۲۹۸ : كله چه څوک په گڼړه كښے مړ شي يا قتل كړے شي.

۵۸۹ : حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ هِشَامٌ اَخْبَرَنَا عَنْ اَبِيْهِ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا كَانَ يَوْمَ اُحُدٍ هَزَمَ الْمُشْرِكُوْنَ فَصَاحَ اِبْلِيْسُ اَيْ عِبَادَ اللّٰهِ اُخْرٰكُمْ فَرَجَعَتْ اُوْلَاهُمْ فَاجْتَلَدَتْ هِيَ وَ اُخْرَاهُمْ فَنَظَرَ حُذَيْفَةُ فَاِذَا هُوَ بِاَبِيْهِ الْيَمَانَ فَقَالَ اَيْ عِبَادَ اللّٰهِ اَبِيْ اَبِيْ.

۵۸۹ : اسحٰق بن منصور ابو اسامه هشام' دَ خپل پلار نه' هغه دَ بي بي عائشے نه روايت كوي' كوم وخت چه جنگ اُحد كښې مشركانو ته شكست اوشو' نو ابليس نعرے كړے. اے د' اللّٰه بنديانو' خپل ورستو اوگورئے. نو' د مخكښې خلق راتاؤ شو او ورستو خلقو سره ئے جنگ شروع كه' ناساپه د حُذيفه په خپل پلار نظر شو' وئيلے اے دَ خدائے بنديانو دا خو خما پلار دے' خما پلار دے. دَ بي بي عائشے

قَالَتْ فَوَاللّٰهِ مَا احْتَجَزُوْا حَتّٰى قَتَلُوْهُ قَالَ حُذَيْفَةُ غَفَرَ اللّٰهُ لَكُمْ. قَالَ عُرْوَةُ فَمَا زَالَتْ فِيْ حُذَيْفَةَ مِنْهُ بَقِيَّةٌ حَتّٰى لَحِقَ بِاللّٰهِ.

بيان دے، قسم په خدائے، هغے خلقو اونه منله، تر دے چه هغه ئے قتل كه. حذيفةؓ اووے، اللّٰه دے تاسو اوبښي، عروه وائي، دَ حذيفةؓ زړه كښې د مركه پورے دَ خپل پلار دَ مرګ افسوس وو.

## بـاب ۲۹۹: اِذَا قَتَلَ نَفْسَهُ خَطَأً فَلَادِيَةَ لَهُ.

## باب ۲۹۹: هر كله چه يو سړے خان غلطئ سره قتل كړي. نو د دے ديت نشته.

۵۹۰: حَدَّثَنَا الْمَكِيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ. خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى خَيْبَرَ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ اَسْمِعْنَا يَا عَامِرُ مِنْ هُنَيْهَاتِكَ فَحَدَابِهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ السَّائِقُ؟ قَالُوْا عَامِرٌ فَقَالَ رَحِمَهُ اللّٰهُ، فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَّا اَمْتَعْتَنَا بِهٖ؟ فَاُصِيْبَ صَبِيْحَةَ لَيْلَتِهٖ فَقَالَ الْقَوْمُ حَبِطَ عَمَلُهُ قَتَلَ نَفْسَهُ، فَلَمَّا رَجَعْتُ وَ هُمْ يَتَحَدَّثُوْنَ اَنَّ عَامِرًا حَبِطَ عَمَلُهُ فَجِئْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ زَعَمُوْٓا اَنَّ عَامِرًا حَبِطَ عَمَلُهُ، فَقَالَ كَذَبَ مَنْ قَالَهَا اِنَّ لَهُ لَاَجْرَيْنِ اِثْنَيْنِ اِنَّهُ لَجَاهِدٌ مُجَاهِدٌ وَ اَيُّ قَتْلٍ يَزِيْدُهُ عَلَيْهِ.

۵۹۰: مكي بن ابراهيم، يزيد بن ابي عبيد، سلمه نه روايت كوئ هغه اووے مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره خيبر ته لاړلو. جماعت نه يو سړي اووے اَے عامر، مونږ ته خپل څۀ شعرونه واوروه هغه شعر وئيل شروع كړل. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، څوک (اوښان) شړونكے دے خلقو جواب وركه. عامر. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه دے په ده رحم اوكړي خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، تاسو مونږ ته د ده نه دَ فائدے اخستو موقع ولے رانه كړله بيا د هغے شپے سحر كښې عامر شهيد شولو. خلقو اووے، د ده اعمال ضائع شو. هغه خپله ځان قتل كه. كوم وخت چه زه واپس شوم هغے خلقو دغه خبرے كولے. چه د، عامر، اعمال ضائع شو. زه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم، او عرض م اوكه يا نبي اللّٰه خما مور پلار دے په تاسوٌ قربان وي. خلق وائي، دَ عامر عمل برباد شولو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. څوک چه داسے وائي، هغه دروغجن دے هغه د پاره دوچند اجر دے. هغه كوشش كونكے جهاد كونكے وو. او د دے نه زيات كوم قتل د، اجر باعث كيدے شي.

## بـاب ۳۰۰: اِذَا عَضَّ رَجُلًا

## باب ۳۰۰: هر كله چه يو سړے څوک غاښ

فَوَقَعَتْ ثَنَايَاهُ.

سره اوچيچي، او دَ هغه غاښ او غرځيږي.

**۵۹۱:** حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ زُرَارَةَ بْنُ اَوْفٰى عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ اَنَّ رَجُلًا عَضَّ يَدَ رَجُلٍ فَنَزَعَ يَدَهُ مِنْ فَمِهِ فَوَقَعَتْ ثَنِيَّتَاهُ فَاَخْتَصَمُوْٓا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَعَضُّ اَحَدُكُمْ اَخَاهُ كَمَا يَعَضُّ الْفَحْلُ لَا دِيَةَ لَكَ.

**۵۹۱:** اٰدم، شعبه، قتاده، زراره بن اوفٰي، عمران بن حصين نه روايت کوي، يو سړي د چا لاس غاښ سره اوچيچلو، هغه خپل لاس دَ هغه د، خولې (منه) نه راښکلو، نو د مخکښ دوه غاښونه ئې او غرځيدل، هغه خپله مقدمه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له يوړله حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو کښ يو سړے خپل رور داسے چيچي. ښکه چه اوښ چيچي. تاته به خون بها نشي درکيدے.

**۵۹۲:** حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنْ صَفْوَانَ ابْنِ يَعْلٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ خَرَجْتُ فِيْ غَزْوَةٍ فَعَضَّ رَجُلٌ فَانْتَزَعَ ثَنِيَّتَهُ فَاَبْطَلَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۵۹۲:** ابو عاصم، ابن جريج، عطاء، صفوان بن يعلٰي، دَ خپل پلار نه روايت کوي زه يو غزا کښ اووتم، نو يو سړي په غاښونو چيچل اوکړل. د هغه مخکني دوه غاښونه اوغرځيدل نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه باطل اوګرځول.

## باب ۱۰۳: اَلسِّنُّ بِالسِّنِّ.

## باب ۱۰۳: د، غاښ بدله کښ غاښ دے.

**۵۹۳:** حَدَّثَنَا الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ ابْنَةَ النَّضْرِ لَطَمَتْ جَارِيَةً فَكَسَرَتْ ثَنِيَّتَهَا فَاَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَرَ بِالْقِصَاصِ.

**۵۹۳:** انصاري، حميد، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ نضر لور يوه جينئ په څپيړه اووهله. نو دَ هغې مخکني دوه غاښونه او غرځيدل. هغه خلق د، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د قصاص حکم ورکړلو.

## باب ۱۰۳: دِيَةِ الْاَصَابِعِ.

## باب ۱۰۳: د، ګوتو د، ديت بيان.

**۵۹۴:** حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هٰذِهٖ وَ هٰذِهٖ وَ هٰذِهٖ سَوَآءٌ

**۵۹۴:** آدم، شعبه، قتاده، عکرمه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، چه دا، او، دا، برابر ي، يعني قچه ګوته

يَعْنِي الْخِنْصَرَ وَالْاِبْهَامَ.

۵۹۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

باب ۳۰۳: اِذَآ اَصَابَ قَوْمٌ مِّنْ رَّجُلٍ هَلْ يُعَاقَبُ اَوْ يُقْتَصُّ مِنْهُمْ كُلِّهِمْ وَ قَالَ مُطَرِّفٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ فِيْ رَجُلَيْنِ شَهِدَا عَلٰى رَجُلٍ اَنَّهُ سَرَقَ فَقَطَعَهُ عَلِيٌّ ثُمَّ جَآءَ بِاٰخَرَ وَ قَالَا اَخْطَأْنَا فَاَبْطَلَ شَهَادَتَهُمَا وَ اُخِذَ بِدِيَةِ الْاَوَّلِ، وَ قَالَ لَوْ عَلِمْتُ اَنَّكُمَا لَعَمَدْتُّمَا لَقَطَعْتُكُمَا وَ قَالَ لِيْ ابْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ غُلَامًا قُتِلَ غِيْلَةً فَقَالَ عُمَرُ لَوِ اشْتَرَكَ فِيْهَا اَهْلُ صَنْعَآءَ لَقَتَلْتُهُمْ وَ قَالَ مُغِيْرَةُ بْنُ حَكِيْمٍ عَنْ اَبِيْهِ اِنَّ اَرْبَعَةً قَتَلُوْا صَبِيًّا فَقَالَ عُمَرُ مِثْلَهُ وَ اَقَادَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ اِبْنُ الزُّبَيْرِ وَ عَلِيٌّ وَّ سُوَيْدُ ابْنُ مُقَرِّنٍ مِّنْ لَطْمَةٍ وَ اَقَادَ عُمَرُ مِنْ ضَرْبَةٍ بِالدِّرَّةِ وَ اَقَادَ عَلِيٌّ مِّنْ ثَلَاثَةِ اَسْوَاطٍ وَّاقْتَصَّ شُرَيْحٌ مِّنْ سَوْطٍ

او قتبه.

۵۹۵: محمد بن بشار، ابن ابي عدي، شعبه، قتاده، عكرمه، حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت كوي دَ هغه بيان دے، ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د دے په مثل آوريدلے دي.

باب ۳۰۳: هر كله چه څو كسان يو سړے قتل كړي، نو آيا دَ هغے ټولو نه به بدله يا قصاص اخستے شي. او مطرف د شعبي نه نقل اوكه، دوه سړو دَ يو سړي متعلق ګواهي وركړله چه ده غلا كړے ده، نو حضرت عليؓ دَ هغه لاس پريكړلو، بيا هغوئ يو بل سړے راوست، او وئيلے، مونږ نه غلطي اوشوه (غل دا دے) حضرت عليؓ دَ هغے دواړو شهادت باطل كه. او دَ هغوئ نه ئے ورمبني ته ديت وركولو او وئيلے، كه ماته معلومه وے، چه تاسو قصداً داسے كړے دي، نو ما به ستاسو لاس پريكړے وو. او ماته ابن بشار په واسطه د، يحيٰي، عبيد اللّٰه، نافع ابن عمرؓ نقل اوكه، يو هلك پټ طور سره قتل كړے شو. نو حضرت عمرؓ اوفرمائيل، كه دے كښ ټول اهل صنعا شريك وے، نو مابه هغوئ ټول قتل كړے وو. او مغيره بن حكيم دَ خپل پلار نه نقل اوكه، څلورو سړو يو ماشوم قتل كه، نو حضرت عمرؓ دغه شان اوفرمائيل. او، ابوبكرؓ او، ابن زبير رضي الله عنه، او، علي رضي الله عنه او، سويد بن مقرن د څپيړے قصاص وركړے دے. او حضرت عمرؓ د كوړو قصاص وركړے. حضرت علي رضي الله عنه د، درے كوړو قصاص وركړے دے او، شريح دَ كوړو او شو كولو

وَ عَمُوشٍ.

قصاص ور کړے دے (دلایاہے).

۶۹۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى ابْنُ اَبِىْ عَآئِشَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَتْ عَآئِشَةُ لَدَدْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ مَرَضِهٖ وَ جَعَلَ يُشِيْرُ اِلَيْنَا لَا تَلُدُّوْنِىْ، قَالَ فَقُلْنَا كَرَاهِيَةُ الْمَرِيْضِ بِالدَّوَاءِ فَلَمَّا اَفَاقَ قَالَ اَلَمْ اَنْهَكُمْ اَنْ تَلُدُّوْنِىْ قَالَ قُلْنَا كَرَاهِيَةٌ لِلدَّوَآءِ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبْقٰى مِنْكُمْ اَحَدٌ اِلَّا لُدَّ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَّا الْعَبَّاسَ فَاِنَّهٗ لَمْ يَشْهَدْكُمْ.

۶۹۵ : مسدد، يحيٰي، موسٰي ابن ابي عائشه، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه نه روايت كوي. د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها بيان دے مونږ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د بيمارئ حالت كښ دوائي ور كړله. او حضورؐ اشارے سره. فرمائيل، چه ماله دارو مه راكوئے دَ بي بي عائشے رضي اللّٰهُ بيان دے مونږ خيال اوكه، چه مريض دارو نه خوښوي، په دے وجه حضور صلعم منع فرمائي. كوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هوش كښ راغے نو وے فرمائيل آيا ماتاسو منع كړے نه وئے، چه ماته دارو مه راكوئے. مونږ اووے، مريض خو دارو بد ګنړي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو كښ دے هيڅوک باقي نشي خو داچه په هغه دے دوائي اوڅكولے شي، سِوا، د حضرت عباس رضي اللّٰه عنه، چه هغه تاسو سره هغه وخت شريک نه وو.

بَابٌ ۳۰۴ : الْقَسَامَةِ وَ قَالَ الْاَشْعَثُ بْنُ قَيْسٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاهِدَاكَ اَوْ يَمِيْنُهٗ وَ قَالَ ابْنُ اَبِىْ مُلَيْكَةَ لَمْ يُقِدْبِهَا مُعَاوِيَةُ وَ كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اِلٰى عَدِيِّ بْنِ اَرْطَاةَ وَ كَانَ اَمَّرَهٗ عَلَى الْبَصَرَةِ فِىْ قَتِيْلٍ وُجِدَ عِنْدَ بَيْتٍ مِّنْ بُيُوْتِ السَّمَّانِيْنَ اِنْ وَّجَدَ اَصْحَابُهٗ بَيِّنَةً وَّ اِلَّا فَلَا تَظْلِمِ النَّاسَ فَاِنَّ هٰذَا لَا يُقْضٰى فِيْهِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

باب ۳۰۴ : دَ، قسامه بيان ۱ او اشعث بن قيس اووے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ستا دوه ګواهان پكار دي. يا ده نه به قسم اخلم. او ابن مليكه اووے، د دے قصاص حضرت معاويه رضي اللّٰه عنه وانه خستلو او عمرؒ بن عبد العزيز، عدي بن ارطاة ته چه هغه ئے دَ بصرے حاكم مقرر كړے وو، د، مقتول متعلق چه د، غوړي خرخونكووالو كورونو سره بيامندے شوے وو، اوليكل كه د، ده وارث ګواه بيامومي، نو خير كني په چا ظلم مه كوه، ځكه چه د دے فيصله به د قيامته پورے اونه كړے شي.

۱. قسامه د قسم نه ماخوذ ده. په اصطلاح كښے د مقتول هغه اولياؤ ته وائي كوم چه د مقتول په

سلسله کښې څوک ذمه وار ګرځولو سره قسم اوخوري. د قسامه په صورت کښې د مدعي په قسم باندې اعتماد کول وي ليکن د جمهورو رائې داده چه مدعي له به ګواهي راوړل وي، قسم صرف د مدّعا عليه په ذمه دې.

۶۵۹۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُبَيْدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ زَعَمَ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ سَهْلُ بْنُ اَبِيْ حَثْمَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّ نَفَرًا مِّنْ قَوْمِهِ انْطَلَقُوْا اِلٰى خَيْبَرَ فَتَفَرَّقُوْا فِيْهَا وَ وَجَدُوْا اَحَدَهُمْ قَتِيْلًا وَّ قَالُوْا لِلَّذِيْ وُجِدَ فِيْهِمْ قَتَلْتُمْ صَاحِبَنَا، قَالُوْا مَا قَتَلْنَا وَ لَا عَلِمْنَا قَاتِلًا فَانْطَلَقُوْا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ انْطَلَقْنَا اِلٰى خَيْبَرَ فَوَجَدْنَا اَحَدَنَا قَتِيْلًا فَقَالَ الْكُبْرَ الْكُبْرَ فَقَالَ لَهُمْ تَأْتُوْنَ بِالْبَيِّنَةِ عَلٰى مَنْ قَتَلَهُ قَالُوْا مَا لَنَا بَيِّنَةٌ قَالَ فَيَحْلِفُوْنَ قَالُوْا لَا نَرْضٰى بِاَيْمَانِ الْيَهُوْدِ فَكَرِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّبْطِلَ دَمَهُ فَوَدَاهُ مِائَةً مِنْ اِبِلِ الصَّدَقَةِ.

۶۵۹۷: ابو نعيم، سعيد بن عبيد بشير بن يسار نه روايت کوي. او انصارو کښې يو سړي چه د هغه نوم سهل بن ابي حثمه وو، بيان اوکه. د هغه د قوم څه خلق خيبر ته لاړل. هلته رسيدو سره هغوئ د، يو بل نه جدا شو. او هغوئ کښې يو مقتول بيامندې شو. د هغې ځائې خلقو ته هغوئ اووې، تاسو خمونږ ملګرې قتل کړلو. هغوي اووې، مونږ نه خو قاتلان يو، او نه قاتل پيژنو، هغې خلقو د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې عرض اوکه. يا رسول اللّٰه! مونږ خيبر ته لاړو، مونږ خپلو کښې يو مقتول بيامندو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لوئې لوئې، يعني مشر سړې دې خبرې اوکړي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ ته اوفرمائيل، آيا تاسو به ګواهي پيش کړئې، چه دې چا قتل کړې دې هغوئ اووې، مونږ سره ګواه نشته. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل نو هغه خلق به قسم خورئ. هغوئ اووې، مونږ خو، د يهودو په قسمونو راضي نه يُو نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د هغه خون باطل کول خوښ نه کړل. او د بيت المال نه ئې ديت ورکړلو.

۶۵۹۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ بِشْرٍ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ الْاَسَدِيُّ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ اَبِيْ عُثْمَانَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ رَجَاءٍ مِّنْ اٰلِ اَبِيْ قِلَابَةَ اَنَّ عُمَرَ

۶۵۹۸: قتيبه بن سعيد، ابو بشر اسماعيل بن ابراهيم اسدي، حجاج بن ابو عثمان، ابو رجاء (چه آل ابي قلابه نه وو) ابو قلابه نه روايت کوي. يو ورځ په تخت عمر بن عبد العزيز کيناست، او خلقو ته ئې يو عام اجازت (اِذن عام) ورکړلو چه دننه راځي، کوم وخت چه

بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اَبْرَزَ سَرِيْرَهٗ يَوْمًا لِلنَّاسِ ثُمَّ اَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوْا فَقَالَ مَا تَقُوْلُوْنَ فِي الْقَسَامَةِ؟ قَالَ نَقُوْلُ الْقَسَامَةُ الْقَوَدُ بِهَا حَقٌّ وَ قَدْ اَقَادَتْ بِهَا الْخُلَفَآءُ. قَالَ لِيْ. مَا تَقُوْلُ يَا اَبَا قِلَابَةَ وَ نَصَبَنِيْ لِلنَّاسِ فَقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عِنْدَكَ رُءُوْسُ الْاَجْنَادِ وَ اَشْرَافُ الْعَرَبِ اَرَاَيْتَ لَوْ اَنَّ خَمْسِيْنَ مِنْهُمْ شَهِدُوْا عَلٰى رَجُلٍ مُّحْصَنٍ بِدَمِشْقَ اَنَّهٗ قَدْ زَنٰى لَمْ يَرَوْهُ اَكُنْتَ تَرْجُمُهٗ قَالَ لَا، قُلْتُ اَرَاَيْتَ لَوْ اَنَّ خَمْسِيْنَ مِنْهُمْ شَهِدُوْا عَلٰى رَجُلٍ بِحِمْصَ اَنَّهٗ سَرَقَ اَكُنْتَ تَقْطَعُهٗ وَ لَمْ يَرَوْهُ؟ قَالَ لَا، قُلْتُ فَوَاللّٰهِ مَا قَتَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَدًا قَطُّ اِلَّا فِيْ اِحْدٰى ثَلَاثِ خِصَالٍ، رَجُلٌ قَتَلَ بِجَرِيْرَةِ نَفْسِهٖ فَقُتِلَ اَوْ رَجُلٌ زَنٰى بَعْدَ اِحْصَانٍ اَوْ رَجُلٌ حَارَبَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَارْتَدَّ عَنِ الْاِسْلَامِ فَقَالَ الْقَوْمُ اَوَ لَيْسَ قَدْ حَدَّثَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

خلق راغلل، نو وئيلے. تاسو د قسامه متعلق څۀ وائے. خلقو اووے، دَ قسامه متعلق څمونږ دا خيال دے، په دے ذريعه قصاص اخستل حق وي. او خلفاؤ هم په دے ذريعه قصاص اخستلے دے. بيائے ماته اووے، اے ابو قلابه ته څه وائے. او زه ئے دَ خلقو مخکښ اودرولم. ما اووئے اے امير المؤمنين، تاسو سره دَ عربو شرفاء او سرداران موجود دي، اوبنائے، که هغوي کښ پنځوس (۵۰) سړي د دمشق دَ يو واده شوي (شادی شده) سړي متعلق گواهي ورکړي، چه هغه زنا کړے ده، ليکن ليدلے ئے نۀ دے، نو آيا سنگسار وئے به ئے؟ هغه اووے، نه. ما اووے. که هغوئ کښ پنځوس سړي دَ حمص د يو سړي متعلق گواهي اوکړي. چه هغه غلا کړے ده، نو آيا تاسو به دَ هغه لاس پريکوئے؟ هر کله چه هغه چانه وي ليدلے. هغه اووے، نه. ما اووے، په خدائے چه، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ماسوا، د درے حالتونو نه بل هيڅ حالت کښ څوک قتل کړے نه دے. يو هغه چه قصاص کښ قتل شوے وي. يا هغه چه هغه واده شوے (شادی شده) وي او زنا، ئے کړے وي. يا هغه چه هغه اللّٰه او رسول سره ئے جنگ اوکه، او دَ اسلام نه مرتد شو. څه خلقو اووے، آيا انس بن مالک رضي اللّٰه عنه دا بيان اونه که چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غلا کښ لاس پرے کړے دے، او سترگے ئے چولے دي، بيائے هغوي نمر (دهوپ) کښ اوغرځول. ما اووے، زۀ تاسو ته د، انس رضي اللّٰه عنه، حديث بيانوم. ماته انس رضي اللّٰه عنه، بيان اوکه. چه دَ قبيلۀ عکل څه خلق دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او دَ، اسلام بيعت ئے اوکه هغه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ فِي السَّرَقِ وَ سَمَرَ الْاَعْيُنَ ثُمَّ نَبَذَهُمْ فِي الشَّمْسِ فَقُلْتُ اَنَا اُحَدِّثُكُمْ حَدِيْثَ اَنَسٍ حَدَّثَنِيْ اَنَسٌ اِنَّ نَفَرًا مِّنْ عُكْلٍ ثَمَانِيَةً قَدِمُوْا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعُوْهُ عَلَى الْاِسْلَامِ فَاسْتَوْخَمُوْه الْاَرْضَ فَسَقِمَتْ اَجْسَامُهُمْ فَشَكَوْا ذٰلِكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، اَفَلَا تَخْرُجُوْنَ مَعَ رَاعِيْنَا فِيْ اِبِلِهٖ فَتُصِيْبُوْنَ مِنْ اَلْبَانِهَا وَ اَبْوَالِهَا قَالُوْا بَلٰى فَخَرَجُوْا فَشَرِبُوْا مِنْ اَلْبَانِهَا وَ اَبْوَالِهَا فَصَحُّوْا فَقَتَلُوْا رَاعِيَ، رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَطْرَدُوا النَّعَمَ، فَبَلَغَ، ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَرْسَلَ فِيْ اٰثَارِهِمْ فَاُدْرِكُوْا فَجِيْءَ بِهِمْ فَاَمَرَبِهِمْ فَقُطِعَتْ اَيْدِيْهِمْ وَ اَرْجُلُهُمْ وَ سَمَرَ اَعْيُنَهُمْ ثُمَّ نَبَذَهُمْ فِي الشَّمْسِ حَتّٰى مَاتُوْا قُلْتُ وَ اَيُّ شَيْءٍ اَشَدُّ مِمَّا صَنَعَ هٰؤُلَآءِ اِرْتَدُّوْا عَنِ الْاِسْلَامِ، وَ قَتَلُوْا وَ سَرَقُوْا فَقَالَ عَنْبَسَةُ

زمکه په هغوئ راسته رانغله' هغوئ مريضان شو. نو هغوئ حضور صلّي الله عليه وسلّم ته شکايت اوکه. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل تاسو خلق څمونږ ګوارچي له اوښانو له ولې نه ځئ' چه د هغې پئې او' متيازې څکئ. هغې خلقو اووې. ضرور هغوئ لاړل' د' اوښانو پئې او متيازې ئې څکلې' چه تندرست شول نو د حضور صلّي الله عليه وسلّم ګوارچي ئې قتل که. او څناور' ئې اوتښتول' دا خبر چه حضور صلّي الله عليه وسلّم ته اورسيدلو' نو هغوئ پسې ئې سړي اوليږل' او ګرفتار' ئې راوستل. حضور صلّي الله عليه وسلّم حکم اوکه' نو د هغوئ لاس' پښې پريکړې شو' او د هغوئ سترګې اوښکلې شوې. بيا نمر (دهوپ) کښې او غرځولې شو تر دې چه هغوئ مړه شولو. ما اووې' د دې نه زيات سخت څۀ څيز کيدې شي' چه هغوئ کړې وو' چه دين اِسلام نه واوړيدل' قتل ئې اوکه. او غلائې اوکړله' عنبسه اووې په خدائې چه' ما دَ نن په شان هيڅ کله نۀ وو اوريدلې. د' ابو قلابه بيان دې. ما اووې' اې عنبسه' ته څما حديث رد کوې. عنبسه اووې. نه. بلکه تا حديث دا شان بيان کړې دې' څنګه چه هغه حقيقت کښې دې. په خدائې چه' څو پورې دا بوډا سړې (ابو قلابه) دې (شاميانو) کښې ژوندې دې. دا خلق به نيکئ (بھلائی) سره وي. ما اووې. دې کښې دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو سنت دي. او هغه دا چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د' انصارو څۀ خلق راغلل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ئې خبرې اوکړې بيا هغوئ کښې يو سړې بهر راووتلو' او هغه قتل کړې شو. دې نه

ابْنُ سَعِيدٍ، وَاللّٰهِ اَنْ سَمِعْتُ كَالْيَوْمِ قَطُّ، فَقُلْتُ! اَتَرُدُّ عَلَيَّ حَدِيثِي يَا عَنْبَسَةُ؟ قَالَ لَا وَلٰكِنْ جِئْتَ بِالْحَدِيثِ عَلٰى وَجْهِهٖ، وَاللّٰهِ لَا يَزَالُ هٰذَا الْجُنْدُ بِخَيْرٍ مَّا عَاشَ هٰذَا الشَّيْخُ بَيْنَ اَظْهُرِهِمْ قُلْتُ وَ قَدْ كَانَ فِيْ هٰذَا سُنَّةٌ مِّنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهِ نَفَرٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَتَحَدَّثُوْا عِنْدَهٗ فَخَرَجَ رَجُلٌ مِنْهُمْ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ فَقُتِلَ فَخَرَجُوْا بَعْدَهٗ فَاِذَاهُمْ بِصَاحِبِهِمْ يَتَشَحَّطُ فِي الدَّمِ، فَرَجَعُوْٓا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَاحِبُنَا كَانَ تُحَدَّثُ مَعَنَا فَخَرَجَ بَيْنَ اَيْدِيْنَا فَاِذَا نَحْنُ بِهٖ يَتَشَحَّطُ فِي الدَّمِ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بِمَنْ تَظُنُّوْنَ اَوْ تَرَوْنَ قَتَلَهٗ؟ قَالُوْا نَرٰى اَنَّ الْيَهُوْدَ قَتَلَتْهُ، فَاَرْسَلَ اِلَى الْيَهُوْدِ فَدَعَاهُمْ فَقَالَ! اَنْتُمْ قَتَلْتُمْ هٰذَا؟ قَالُوْا لَا" قَالَ اَتَرْضَوْنَ نَفَلَ خَمْسِيْنَ مِنَ الْيَهُوْدِ مَا قَتَلُوْهُ، فَقَالُوْا مَا يُبَالُوْنَ اَنْ يَّقْتُلُوْنَا اَجْمَعِيْنَ ثُمَّ يَنْتَقِلُوْنَ قَالَ اَفَتَسْتَحِقُّوْنَ الدِّيَةَ بِاَيْمَانِ خَمْسِيْنَ مِنْكُمْ قَالُوْا مَا كُنَّا

پس دا خلق بهر راووتل، نو وے ليدل، چه دَ هغوئ ملګرے وينو (خون) کښې لوغړېږي، هغه خلق واپس شو. دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئے او که، يا رسول الله، څمونږ ملګرے چه مونږ سره خبرے کولے، هغه دے ځائے نه پاسيدو، بهرته اووتلو. اوس مونږ هغه اوليدلو، چه په وينو کښې لوغړېږي دے آوريدو سره حضور صلّي الله عليه وسلّم بهر تشريف راوړلو. اووے فرمائيل، دَ چا متعلق تاسو ګمان کوئے. يا، وے فرمائيل، دَ چا متلق ستاسو خيال دے، چه دے ئے قتل کړے دے. هغوئ اووے، څمونږ خيال دے، چه يهودو دے قتل کړے دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم يهود راوغوښتل. او وے فرمائيل، آيا تاسو دا سړے قتل کړے دے. هغوئ اووے، نه. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا تاسو په دے راضي ئے، چه يهودو نه پنځوس سړي د دے قسم اوخوري، چه هغې خلقو دے نه دے قتل کړے. هغوئ اووے، که يهود مونږ ټول قتل کړي، نو بيا به هم قسم خوري، هغوئ ته به باک نه وي (يعني څه باک نه کوي) حضورؐ اوفرمائيل بيا تاسو خلق پنځوس قسمونو خوړلو سره د، ديت مستحق شئے. هغے خلقو اووے، مونږ خو، قسمونه خورو. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم دَ خپل طرف نه دَ هغه خون بها ادا کړله. ابو قلابه وائي. ما اووے د، هذيل (قبيلے) خلقو، يو سړے د، جاهليت زمانه کښې دَ ځان نه جدا کړے وو. هغه مقام بطحاء کښې دَ چا. يمني په کور کښې کوز شولو. يمن والو کښې چاته خبر اوشو، نو په هغه ئے تورے سره حمله اوکړهٔ قتل ئے که. د، هذيل خلق

لِنَحْلِفَ فَوَدَاهُ مِنْ عِنْدِهِ، قُلْتُ وَ قَدْ كَانَتْ هُذَيْلٌ خَلَعُوْا خَلِيْعًا لَهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَطَرَقَ أَهْلَ بَيْتٍ مِّنَ الْيَمَنِ بِالْبَطْحَاءِ فَانْتَبَهَ لَهُ رَجُلٌ مِّنْهُمْ فَحَذَفَهُ بِالسَّيْفِ فَقَتَلَهُ، فَجَآءَتْ هُذَيْلٌ فَأَخَذُوا الْيَمَانِيَ فَرَفَعُوْهُ إِلَى عُمَرَ بِالْمَوْسِمِ وَ قَالُوْا قَتَلَ صَاحِبَنَا فَقَالَ: إِنَّهُمْ قَدْ خَلَعُوْهُ، فَقَالَ يُقْسِمُ خَمْسُوْنَ مِنْ هُذَيْلٍ مَا خَلَعُوْهُ، قَالَ فَأَقْسَمَ مِنْهُمْ تِسْعَةٌ وَ أَرْبَعُوْنَ رَجُلًا وَّ قَدِمَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ مِنَ الشَّامِ فَسَأَلُوْهُ أَنْ يُّقْسِمَ فَافْتَدٰى يَمِيْنَهُ مِنْهُمْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فَأَدْخَلُوْا مَكَانَهُ رَجُلًا آخَرَ فَدَفَعَهُ إِلٰى أَخِي الْمَقْتُوْلِ فَقُرِنَتْ يَدُهُ بِيَدِهِ قَالُوْا فَانْطَلَقَا وَالْخَمْسُوْنَ الَّذِيْنَ أَقْسَمُوْا حَتّٰى إِذَا كَانُوْا بِنَخْلَةَ أَخَذَتْهُمُ السَّمَآءُ فَدَخَلُوْا فِي غَارٍ فِي الْجَبَلِ فَانْهَجَمَ الْغَارُ عَلَى الْخَمْسِيْنَ الَّذِيْنَ أَقْسَمُوْا فَمَاتُوْا جَمِيْعًا وَّ أَفْلَتَ الْقَرِيْنَانِ وَ اتَّبَعَهُمَا حَجَرٌ فَكَسَرَ رِجْلَ أَخِي الْمَقْتُوْلِ فَعَاشَ حَوْلًا ثُمَّ مَاتَ، قُلْتُ وَ قَدْ كَانَ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ أَقَادَ رَجُلًا بِالْقَسَامَةِ ثُمَّ نَدِمَ بَعْدَ مَا صَنَعَ فَأَمَرَ بِالْخَمْسِيْنَ الَّذِيْنَ أَقْسَمُوْا فَمُحُوْا مِنَ الدِّيْوَانِ وَ سَيَّرَهُمْ إِلَى الشَّامِ.

راغلل او هغه يمني ئې اونيولو، او حضرت عمر رضي الله عنه ته ئې د حج زمانه کښې بوتلو. هغې خلقو اووې، ده خمونږ ملګرے قتل کړے دے. هغې يمني اووې. هذيليانو دے پريښے وو. حضرت عمر رضي الله عنه اووې، هذيليانو کښې دے پنځوس کسان قسم اوخوري، چه هغوئ دے نه وو پريښے. يو کم پنځوس سړو هغوئ کښې قسم اوخوړ، چه هغوئ، هغه نه وو پريښے. هغې خلقو کښې يو سړے دَ ملک شام نه راغے، هغه ته هغې خلقو دَ قسم د پاره اووې، هغه يو زر دينار ورکولو سره قسم خوړلو نه معافي اوغوښتله، نو هغې خلقو يو بل سړے دَ هغه په ځائے شامل که. او دَ مقتول ورور له ئې بوتلو. دَ هغه لاس سره ئې دَ هغه لاس يو ځائے کړلو. دَ خلقو بيان دے، چه هغه دواړه او هغه پنځوس سړي هم لاړل، چه هغوئ قسم خوړلے وو، تر دے چه کوم وخت مقام نخله ته اورسيدل، نو هغه خلق باران راګير کړل. هغه خلق دَ غر يو غار کښې داخل شو. غار په هغې پنځوسو سړو راوغرځيدلو، کومو چه قسم خوړلے وو، نو هغوئ مړه شولو، او هغه دواړه لاس يو ځائے کونکي بچ پاتے شو. او هغه دواړه په يو کاڼړي اولګيدل، چه هغې سره دَ مقتول د، ورور پښه ماته شوه. دے نه پس هغه يو کال ژوندے وو، بيا مړ شولو. د، ابو قلابه بيان دے. زه وائم، عبد الملک بن مروان يو سړي له د، قسامه په بنا قصاص ورکولو (دلايا) بيا په خپل دے حرکت پښيمانه شو، دَ پنځوس قسم خوړونکو متعلق ئې حکم اوکه، نو دَ هغې خلقو نوم دَ دفتر (رجسټر) نه کټ کړے شو. او هغوئ شام طرف ته بنار بدر کړے شو.

بـــاب ۳۰۵: مَـنُ اَطَّـلَـعَ فِـيُ بَيْتِ قَـوُمٍ فَـفَقَؤُا عَيُنَـهُ فَلَادِيَةَ لَهُ.

باب ۳۰۵: كـوم سـړے چه د يو قوم كور كښې تا اوكړي (جهانكے) او هـغه خلق دَ هغه ستر گے اوچوي، نو د دے ديت نشته.

۵۹۹: حَـدَّثَـنَــا اَبُـو الْيَـمَـانِ حَـدَّثَـنَا حَمَّادُ بُنُ زَيُدٍ عَنُ عُبَيُدِ اللّٰهِ بُـنِ اَبِـيُ بَـكُـرِ بُـنِ اَنَـسٍ عَنُ اَنَـسٍ رَضِـيَ الـلّٰـهُ عَـنُهُ اَنَّ رَجُلًا اِطَّلَعَ فِيُ بَـعُـضِ حُـجَـرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَـلَّـمَ فَـقَـامَ اِلَيُــهِ بِـمِشُـقَصٍ اَوُ بِمَشَاقِصَ وَّ جَعَلَ يَخُتِلُهُ لِيَطُعَنَهُ.

۵۹۹: ابو اليمان، حماد بن زيد، عبيد اللّٰه بن ابي بـكـر بـن انـس، حـضـرت انـس رضي اللّٰه عنه نه روايت كـوي. دَ هـغـه بيـان دے يـو سـړي د نبي صلّي اللّٰه عليه وسـلّـم بـعـضـے حـجرو (كوټكو) كښې تا اوكړه (چوند كـښې ئـے اوكـتـل) نـو حـضـور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه طـرف تـه دَ تيـر څـوكـه واخسته، اودريدلو، او داسے ئے ظاهرول، گويا د هغے سړي ستر گه كښې ئے ورټوټبي.

۶۰۰: حَـدَّثَنَا قُتَيُبَةُ بُنُ سَعِيُدٍ حَـدَّثَنَا لَيُثٌ عَنِ ابُنِ شِهَابٍ اَنَّ سَهُلَ بُـنَ سَـعُـدٍ السَّـاعِدِيَّ اَخُبَرَهُ اَنَّ رَجُلًا اِطَّـلَـعَ فِيُ جُحُرٍ فِيُ بَابِ رَسُوُلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَ رَسُوُلِ الـلّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ مِدُرًى يَـحُكُّ بِـهٖ رَاُسَـهُ فَلَمَّا رَاٰهُ رَسُوُلُ اللّٰهِ عَـلَيُــهِ وَسَـلَّـمَ قَـالَ لَـوُ اَعُلَمُ اَنَّكَ تَـنُـتَـظِرُنِيُ لَطَعَنُتُ بِهٖ فِيُ عَيُنَيُكَ قَالَ رَسُوُلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ، اِنَّمَا جُعِلَ الْاِذُنُ مِنُ قِبَلِ الْبَصَرِ.

۶۰۰: قتيبـه بن سعيد، ليث، ابن شهاب نه روايت كـوي. سهـل بـن سـعـد سـاعـدي بيـان اوكـه، يو سړي د، رسـول الـلّٰـه صـلّـي الـلّٰـه عـليـه وسلّم دروازه كښې چـونـد كـښې اوكـتـل. او رسـول الـلّٰـه صلّي اللّٰه عليـه وسـلّـم سـره دَ سر، گرولو، آله وه، چه هغے سره ئے خپل سـر، گرولو، كوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هـغـه سـړے اوليـدلـو، نـو ارشـاد ئـے اوفرمائيلو، كه ماته مـعلومه وئے چه ته به ماته گورے نو مابه دا ستا په ستر گه كـښې تـومبلـے وو. دے نـه پـس حـضـور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. د، اجازت اخستلو حكم خو، دَ كتلو په سبب وركولے شي.

۶۰۱: حَـدَّثَـنَــا عَلِيُّ بُنُ عَبُدِ الـلّٰـهِ حَدَّثَنَا سُفُيَانُ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَـنِ الْاَعُـرَجِ عَنُ اَبِيُ هُرَيُرَةَ قَالَ قَالَ اَبُـو الُقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيُهِ وَسَلَّمَ لَـوُ اَنَّ اِمُــرَاً اِطَّـلَـعَ عَلَيُكَ بِغَيُـرِ اِذُنٍ

۶۰۱: عـلـي بـن عـبـد الـلّٰـه، سفيـان، ابو الزناد، اعـرج، ابـو هـريـره رضـي الـلّٰـه عـنـه، نـه روايت كوي. دَ هـغـه بيـان دے. ابـو الـقـاسـم صـلّي اللّٰه عليـه وسلّم او فـرمـائيـل كـه يـو سـړے تا بے اجازته، تا، كولو (چوند كـښې كـتـلـو) سـره اووينـي او تـه هغه پـه كنكر اُولے،

فَحَذَفْتَهُ بِحَصَاةٍ فَفَقَأْتَ عَيْنَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ جُنَاحٌ.

او، د هغه سترګه اوچوې نو په تا هيڅ ګناه نشته.

## باب ۳۰۶: اَلْعَاقِلَةِ.

## باب ۳۰۶: دَ، عاقله بيان.

۶۰۲: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا جُحَيْفَةَ قَالَ سَأَلْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ مَا لَيْسَ فِي الْقُرْاٰنِ؟ وَ قَالَ مَرَّةً مَا لَيْسَ عِنْدَ النَّاسِ فَقَالَ وَالَّذِيْ فَلَقَ الْحَبَّ وَ بَرَاَ النَّسَمَةَ مَا عِنْدَنَا اِلَّا مَا فِي الْقُرْاٰنِ اِلَّا فَهْمًا يُعْطٰى رَجُلٌ فِي كِتَابِهٖ وَ مَا فِي الصَّحِيْفَةِ قُلْتُ وَ مَا فِي الصَّحِيْفَةِ؟ قَالَ الْعَقْلُ وَ فِكَاكُ الْاَسِيْرِ وَ اَنْ لَّا يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ.

۶۰۲: صدقه بن فضل، ابن عينيه، مطرف، شعبي، ابو جحيفه رضي الله عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. ما دَ حضرت علي رضي الله عنه نه تپوس اوكه، تاسو سره څه داسے څيز شته، كوم چه قرآن كښې نشته، او بعضے ځل ئے داسے اوويے، چه خلقو سره نه وي، حضرت علي رضي اللّٰه عنه اوويے، قسم دے په هغه ذات، چه هغه دانه زرغُنه كړه، او نسمه ئے پيدا كړه (نسمه: سړے. نفس. روح. ساه) مونږ سره هغه څيز دے، كوم چه قرآن كښې دے. سِوا د كتاب دَ فهم نه چه يو سړي ته وركولے شي، او دَ هغے څيز نه چه صحيفه كښې دي. ما تپوس اوكه، صحيفه كښې څۀ دي، هغه اوويے، د، ديت (خون بها) او قيدي دَ، ازادولو متعلق احكام دي، او دا چه مسلمان دے دَ كافر په عوض كښې نشي قتلولے.

## باب ۳۰۷: جَنِيْنُ الْمَرْاَةِ.

## باب ۳۰۷: دَ ښځے دَ جنين بيان.

ف: جنين: هغه بچے چه اوس له، دَ مور په خيټه كښې وي.

۶۰۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ وَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ اِمْرَاَتَيْنِ مِنْ هُذَيْلٍ رَمَتْ اِحْدَاهُمَا الْاُخْرٰى فَطَرَحَتْ جَنِيْنَهَا

۶۰۳: عبد اللّٰه بن يوسف. مالک (دويم سند) اسماعيل، مالک، ابن شهاب، ابو سلمه بن عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. دَ هذيل (قبيلے) دوو ښځو يوه بله په كانړي اوويشتله، هغے سره دَ هغے د خيټے بچے او غورځيدلو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغے كښې دَ،

فَقَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهَا بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ.

يو غلام يا وينزے تاوان كښې د، وركولو فيصله اوكړله.

٦٠٤: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ اسْتَشَارَ هُمْ فِيْ إِمْلَاصِ الْمَرْأَةِ، فَقَالَ الْمُغِيْرَةُ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْغُرَّةِ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ فَشَهِدَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ أَنَّهُ شَهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى بِهٖ.

٦٠٤: موسي بن اسماعيل، وهيب، هشام دَ خپل پلار نه، هغه دَ مغيره بن شعبه نه، هغه دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت كوي هغه دَ خلقو نه دَ ښځې دَ حمل غرځولو د، ديت (خون بها) باره كښې مشوره واخسته، نو مغيره اووے. حضور صلّي الله عليه وسلّم دَ يو غلام يا وينزے ديت كښې د، وركولو فيصله كړے ده محمد بن مسلمه گواهي اوكړه، چه هغه هم هغه وخت حاضر وو. كوم وخت چه نبي صلعم دَ هغې فيصله وركړے وه.

٦٠٥: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُوْسٰى عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ عُمَرَ نَشَدَ النَّاسَ، مَنْ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى فِي السَّقْطِ وَ قَالَ الْمُغِيْرَةُ أَنَا سَمِعْتُهُ قَضٰى فِيْهِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ قَالَ ائْتِ مَنْ يَشْهَدُ مَعَكَ عَلٰى هٰذَا فَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ أَنَا أَشْهَدُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِ هٰذَا.

٦٠٥: عبيد الله بن موسي، هشام، دَ خپل پلار نه روايت كوي. حضرت عمر رضي الله عنه دَ خلقو نه مشوره واخسته، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم نه د حمل غرځولو متعلق فيصله كول چا آوريدلے دي. مغيره رضي الله عنه اووے، ما اوريدلے وه، حضور صلّي الله عليه وسلّم د، يو غلام يا، وينزے تاوان كښې د، وركولو حكم اوكړلو. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل خوك سړے راوله چه تاسره په دے گواهي اوكړي. محمد بن مسلمه اووے، زه د دے په مثل دَ نبي صلّي الله عليه وسلّم نه گواهي وركوم.

٦٠٦: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّهُ سَمِعَ الْمُغِيْرَةَ بْنَ شُعْبَةَ يُحَدِّثُ عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ اسْتَشَارَهُمْ فِيْ

٦٠٦: محمد بن عبد الله، محمد بن سابق، زائده، هشام بن عروه، عروه، مغيره بن شعبه، حضرت عمر رضي الله عنه متلق روايت كوي دَ حمل غرځولو د، ديت (خون بها) متعلق د هغه نه مشوره واخسته. او د دے مخكښې حديث په مثل

إِمْلَاصِ الْمَرْأَةِ مِثْلَهُ.

باب ٨ ٠ ٣: جَنِيْنِ الْمَرْأَةِ وَ اَنَّ الْعَقْلَ عَلَى الْوَالِدِ وَ عَصَبَةِ الْوَالِدِ لَا عَلَى الْوَلَدِ.

٧ ٠ ٦ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى فِي جَنِيْنِ امْرَاَةٍ مِّنْ بَنِيْ لِحْيَانَ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ اَوْ اَمَةٍ. ثُمَّ اِنَّ الْمَرْاَةَ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا بِالْغُرَّةِ تُوَفِّيَتْ فَقَضٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ مِيْرَاثَهَا لِبَنِيْهَا وَ زَوْجِهَا وَ اَنَّ الْعَقْلَ عَلٰى عَصَبَتِهَا.

٨ ٠ ٦ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اقْتَتَلَتْ امْرَاَتَانِ مِنْ هُذَيْلٍ فَرَمَتْ اِحْدَاهُمَا الْاُخْرٰى بِحَجَرٍ قَتَلَتْهَا وَ مَا فِيْ بَطْنِهَا، فَاخْتَصَمُوْا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَضٰى اَنَّ دِيَةَ جَنِيْنِهَا غُرَّةٌ عَبْدٌ اَوْ وَلِيْدَةٌ وَ قَضٰى دِيَةَ الْمَرْاَةِ عَلٰى عَاقِلَتِهَا.

باب ٩ ٠ ٣: مَنِ اسْتَعَانَ عَبْدًا

حديث ئې روايت كه.

باب ٨ ٠ ٣: د ښځې د جنين بيان او دا چه ديت په پلار او د پلار په عصبه دې، په ځوئ نه دې.

٧ ٠ ٦ : عبد اللّٰه يوسف، ليث، ابن شهاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د بني لحيان د يوې حمل غرځولو كښځ د يو غلام يا وينزې د وركولو حكم اوكړلو. بيا هغه ښځه چه ذ هغې په حق كښ د ديت فيصله شوې وه، مړه شوه، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم حكم اوكه، د هغې ميراث به ذ هغې ذ خامنو. او خاوند وي، او د هغې ديت ذ هغې په عصبه دې.

٨ ٠ ٦ : احمد بن صالح، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، ابن مسيب او، ابو سلمه بن عبد الرحمٰن نه روايت كوي، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه، بيان اوكه، د هذيل (قبيلې) ذوو ښځو جگړه اوكړه، يوې بله په كانړي اوويشتله، د هغې د صدمې نه هغه مړه شوه. او ذ هغې ذ خيټې بچې هم مړ شولو. خلقو دا مقدمه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم له يوړله، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فيصله اوكړه، چه د دې جنين (يعني د خيټې د بچي) ديت يو غلام يا وينزه ده. او د ښځې د، ديت ئې د هغې وارثانو ته حكم وركړلو.

باب ٩ ٠ ٣: ذ هغې سړي بيان چه غلام يا بچې

اَوْ صَبِيًّا، وَ يُذْكَرُ اَنَّ اُمَّ سُلَيْمٍ بَعَثَتْ اِلٰى مُعَلِّمِ الْكِتَابِ، اِبْعَثْ اِلَيَّ غِلْمَانًا يَنْفُشُوْنَ صُوْفًا وَّ لَا تَبْعَثْ اِلَيَّ حُرًّا.

عاريتًا طلب كړي. او راوړے دي، چه اُم سليم دَ كتاب معلم ته ليكلے اوليږل، چه ماته څو هلكان راواستوه، چه وړئے (اُون) صاف كړي، او څوك آزاد ماته مه راليږه.

۶۰۹ : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ اَخَذَ اَبُوْ طَلْحَةَ بِيَدِيْ فَانْطَلَقَ بِيْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ: اِنَّ اَنَسًا غُلَامٌ كَيِّسٌ فَلْيَخْدُمْكَ، قَالَ فَخَدَمْتُهُ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، فَوَاللّٰهِ مَا قَالَ لِيْ لِشَيْءٍ صَنَعْتُهُ لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا هٰكَذَا، وَ لَا لِشَيْءٍ لَمْ اَصْنَعْهُ لِمَ لَمْ تَصْنَعْ هٰذَا هٰكَذَا.

۶۰۹ : عمر بن زراره، اسماعيل بن ابراهيم، عبد العزيز، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه مدينے ته تشريف راوړلو نو ابو طلحه ځما لاس اونيولو، او زه ئے د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت له بوتلم. او وئيلے، يا رسول اللّٰه، انسؓ يو هښيار هلك دے، دے به ستاسو خدمت كوي. دَ، انس رضي اللّٰه عنه، بيان دے. ما سفر او حضر كښې دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت اوكه، خو په خدائے م دے قسم وي كله چه ما څۀ كار كړے دے، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دي فرمائيلے چه ولے تا دا كار داسے كړے دے. او كله چه ما څه كار نه دے كړے، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دي فرمائيلے، چه تا دا كار داسے ولے نه دے كړے.

بَاب ۳۱۰ : اَلْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَّالْبِئْرُ جُبَارٌ.

باب ۳۱۰ : كان او كوهي كښې غرځيدو سره د، مړ كيدونكي خون معاف دے.

۶۱۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَجْمَآءُ جُرْحُهَا جُبَارٌ، وَالْبِئْرُ جُبَارٌ، وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَ

۶۱۰ : عبد الرحمٰن بن يوسف، ليث، ابن شهاب، سعيد بن مسيب او ابو سلمه بن عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، د، چوپايه، و زخمي كول بلا قصاص دي (يعني قصاص ئے نشته) او كوهي كښې كښې د، غرځيدونكي او، كان كنولو كښې

فِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ. دَ مړ كيدونكي خون معاف دے.

ف: كان: درنګ. هغه ځائے چه په كنستو ترے نه د' لاندے نه مختلف قسم معدنيات لكه اوسپنه' سره' سپين' تانبه او داسے نور ډير څيزونه راو كاږي. منبع سرچينه.

باب ١١٣١: اَلْعَجْمَآءِ جُبَارٌ وَ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ كَانُوْا لَا يُضَمِّنُوْنَ مِنَ النَّفْحَةِ وَ يُضَمِّنُوْنَ مِنْ رَدِّ الْعِنَانِ. وَ قَالَ حَمَّادٌ لَّا تُضْمَنُ النَّفْحَةُ اِلَّا اَنْ يَّنْخَسَ اِنْسَانُ الدَّآبَّةَ وَ قَالَ شُرَيْحٌ لَا تُضْمَنُ مَا عَاقَبَتْ اَنْ يَّضْرِبَهَا فَتَضْرِبَ بِرِجْلِهَا. وَ قَالَ الْحَكَمُ وَ حَمَّادٌ اِذَا سَاقَ الْمَكَارِيُّ حِمَارًا عَلَيْهِ امْرَاَةٌ فَتَخِرُّ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ اِذَا سَاقَ دَآبَّةً فَاَتْعَبَهَا فَهُوَ ضَامِنٌ لِمَا اَصَابَتْ وَاِنْ كَانَ خَلْفَهَا مُتَرَسِّلًا لَمْ يَضْمَنْ.

باب ١١٣١: د' چوپايه ؤ خون كول معاف دي. او ابن سيرين اووے' صحاباؤ به دَ ځناور دَ' لتے وهلو تاوان نه وركولو' او د' واږو كرخولو تاوان به ئے وركولو او حماد اووے دَ ځناور د' لتے وهلو تاوان دے نشي وركولے. خو داسے صورت كښ چه يو سړے هغه اوتښنوي. او شريح اووے' سور' به هغه وخته پورے هرجانه نه وركوي' چه هغه' هغه تښنوي' او هغه' هغه له لته وركړي. او حكم او حماد اووے هر كله چه كيرايه اخستونكے يو ځناور شړي (ہانکے) او په هغے يوه ښځه ناسته وي' او هغه اوغرځيږي' نو په هغه هيڅ نشته. او شعبي اووے كه ځناور ئے اوشړلو (ہنکایا) او هغه ئے ستړے كه' نو هغه دَ هغے صدمے ذمه وار دے' چه اورسي. او كه هغه پسے پريخودلے شوے راځي' نو هغه ذمه وار نه دے.

٦١١٢: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَجْمَآءُ عَقْلُهَا جُبَارٌ وَّالْبِئْرُ جُبَارٌ وَّالْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَ فِي الرِّكَازِ الْخُمُسَ.

٦١١٢: مسلم' شعبه' محمد بن زياد' حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' كه چوپايه ئے قتل كړي' نو' خون ئے معاف دے. او كوهي كنولو كښ يا كان كنستلو كښ كه اوغرځيږي' مړ شي' نو خون ئے معاف دے. او' ركاز كښ پنځمه حصه ده.

ف: ركاز: هغه مال چه اللّٰه تعالي زمكه كښ پيدا كړي. زمكه كښ ښخه خزانه.

باب ١٢١٣: اِثْمِ مَنْ قَتَلَ ذِمِّيًّا بِغَيْرِ جُرْمٍ.

باب ١٢١٣: دَ هغے سړي ګناه' چه يو ذمي بغير ګناه نه قتل كړي.

۶۴۱۲: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ حَدَّثَنَا مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرٍ وَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا مُعَاهَدًا لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَ اِنَّ رِيْحَهَا يُوْجَدُ مِنْ مَّسِيْرَةِ اَرْبَعِيْنَ عَامًا.

۶۴۱۲: قيس بن حفص، عبد الواحد، حسن، مجاهد، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. چا چه يو داسے سړے قتل كه، چه هغه سره معاهده وي، نو هغه به دَ جنت خوشبوئ نه بيامومي، حالانكه دَ هغے خوشبوئ دَ څلويخت (۴۰) كاله دَ مسافت نه محسوسيږي.

باب ۳۱۳: لَا يُقْتَلُ الْمُسْلِمُ بِالْكَافِرِ.

باب ۳۱۳: مسلمان دے دَ كافر په عوض كښ نه شي قتلولے.

۶۴۱۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ اَنَّ عَامِرًا حَدَّثَهُمْ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ لِعَلِيٍّ وَّ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ يُحَدِّثُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا جُحَيْفَةَ سَاَلْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ مِّمَّا لَيْسَ فِي الْقُرْاٰنِ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ مَرَّةً مَّا لَيْسَ عِنْدَ النَّاسِ فَقَالَ، وَالَّذِيْ فَلَقَ الْحَبَّةَ وَ بَرَاَ النَّسَمَةَ مَا عِنْدَنَآ اِلَّا مَا فِي الْقُرْاٰنِ اِلَّا فَهْمًا يُّعْطٰى رَجُلٌ فِيْ كِتَابِهٖ وَ مَا فِي الصَّحِيْفَةِ؟ قُلْتُ وَ مَا فِي الصَّحِيْفَةِ؟ قَالَ الْعَقْلُ وَ فِكَاكُ الْاَسِيْرِ وَ اَنْ لَّا يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ.

۶۴۱۳: احمد بن يونس، زهير، مطرف، عامر، ابو جحيفه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. ما حضرت علي رضي اللّٰه عنه ته اووے (دويم سند) صدقه بن فضل، ابن عيينه مطرف شعبي، ابو جحيفه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. ما دَ حضرت علي رضي اللّٰه عنه نه تپوس اوكه، آيا تاسو سره داسے څه څيز شته. چه قرآن كښ نشته. او ابن عيينه كله دا بيان اوكه، تاسو سره داسے څه څيز شته، چه هغه نورو خلقو سره نشته، نو هغه اووے، په هغه ذات مِ دے قسم وي. چه هغه دانه زرغنه كړه، او جاندار، ئے پيدا كه، مونږ سره هغه دي، چه قرآن كښ دي، سوا، د كتاب دَ فهم نه چه يو سړي ته عطا كولے شي، او هغه څيز چه صحيفه كښ وي. ما اووے. صحيفه كښ څه دي. نو هغه اووے، چه د ديت او غلام آزادولو احكام دي، او دا چه مسلمان دے د كافر په عوض (بدله) كښ نه شي قتلولے.

باب ۳۱۴: اِذَا لَطَمَ الْمُسْلِمُ

باب ۳۱۴: هر كله چه يو مسلمان، يو يهودي د

يَهُوْدِيًّا عِنْدَ الْغَضَبِ، رَوَاهُ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

غصے حالت کښې په څپېړه اووهي. حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه دا، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کړے دے.

۶۱۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو ابْنِ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُخَيِّرُوْا بَيْنَ الْاَنْبِيَآءِ.

۶۱۴: ابو نعيم سفيان، عمرو بن يحيٰي، يحيٰي، حضرت ابو سعيد رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلی دي، چه دَ انبياؤ په مينځ کښې يو له په بل بانده فضيلت مه ورکوئ.

۶۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى الْمَازِنِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْيَهُوْدِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ لُطِمَ وَجْهُهٗ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّ رَجُلًا مِّنْ اَصْحَابِكَ مِنَ الْاَنْصَارِ لَطَمَ فِيْ وَجْهِيْ، قَالَ ادْعُوْهُ فَدَعَوْهُ قَالَ، لِمَ لَطَمْتَ وَجْهَهٗ؟ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ مَرَرْتُ بِالْيَهُوْدِ فَسَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ، وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْبَشَرِ، قَالَ قُلْتُ اَعَلٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاَخَذَتْنِيْ غَضَبَةٌ فَلَطَمْتُهٗ قَالَ لَا تُخَيِّرُوْنِيْ مِنْ بَيْنِ الْاَنْبِيَآءِ فَاِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُوْنَ يَوْمَ

۶۱۵: محمد بن يوسف، سفيان، عمرو بن يحيي مازني، يحيٰي، ابو سعيد خدري نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. يهودو کښې يو سړے دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. چه په مخ چا په څپېړه وهلے وو. هغه عرض اوکه، اے محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم ستاسو د، انصارو صحابه ؤ نه يو سړي ما له په مخ څپېړه راکړه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، هغه راوغواړه، نو هغه ئے راوستلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. تا دے ولے په مخ په څپېړه اووهلو هغه عرض اوکه، يا رسول اللّٰه. زه په يهودو تيريدم، ما د، ده نه واوريدل، قسم دے په هغه ذات، چه هغه موسٰي عليه السلام له په تمامو انسانانو فضيلت ورکړے دے. ما، اووے، آيا په محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم بانده هم، ده اووے. او. ماته غصه راغله، نو ما په مخ په څپېړه اووهلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل انبياؤ کښې ماله په چا فضيلت مه راکوئ. خکه چه دَ قيامت په ورځ به ټول خلق بيهوشه شي. او دَ ټولو نه مخکښې به زه په هوش کښې راشم، نو وينم به، چه

الْقِيَامَةِ فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ فَإِذَا أَنَا بِمُوسَى آخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ فَلَا أَدْرِي أَفَاقَ قَبْلِي أَمْ جُزِيَ بِصَعْقَةِ الطُّورِ.

حضرت موسیٰ علیه السّلام دَ عرش يوه پايه نيولے ولاړ دے. ماته نه ده معلومه، چه آيا هغه به ماأ نه مخکښې هوښ کښې راغلے وي، يا کوهِ طور بالدے د هغه بيهوشه کيدل د دے بدله گرځيدلے ده.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع کوم په نامه د خدائے چه بخښونکے او مهربانه دے

# كِتَابُ

# كِتَابُ

اِسْتِتَابَةِ الْمُرْتَدِّيْنَ وَالْمُعَانِدِيْنَ وَقِتَالِهِمْ وَ اِثْمِ مَنْ اَشْرَكَ بِاللّٰهِ وَ عُقُوْبَتِهٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ.

اِستتابةِ المرتدّين الخ (مرتدانو او دشمنانو باندے د توبه کولو بيان، او هغوي سره جنگ کول، او د هغے سرړي گناه، چه هغه اللّٰه سره شرک اوکه او دنيا او آخرت کښې دَ هغے د سزا بيان).

## باب ۶۳۱۵: قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى، اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ. لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَ لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ.

## باب ۶۳۱۵: دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه شرک ډير لوئے ظلم دے. او که تا شرک اوکه، نو ستا عمل به ضائع شي، او ته به د تاوانيانو نه شے.

۶۲۱۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ لَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ شَقَّ ذٰلِكَ عَلٰى اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالُوْا اَيُّنَا لَمْ يَلْبِسْ اِيْمَانَهُ بِظُلْمٍ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، اَنَّهُ لَيْسَ بِذَاكَ اَلَا تَسْمَعُوْنَ اِلٰى قَوْلِ لُقْمَانَ اِنَّ الشِّرْكَ

۶۲۱۶: قتيبه بن سعيد، جرير، اعمش، ابراهيم، علقمه، حضرت عبد اللّٰه نه روايت کوي کوم وخت چه دا، آيت نازل شو، هغه خلق چه ايمان ئے راوړلو. او خپل ايمان ئے ظلم سره يو ځائے نه که الخ نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په صحابه ؤ ډيره سخته تيره شوه، هغوئ وئيلے. مونږ کښې داسے څوک دے چه هغه ايمان ظلم سره نه وي يو ځائے کړے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل د دے مطلب دا، نه دے. آيا تاسو د حضرت لقمان قول نه دے اوريدلے (چه هغه خپل خوئ ته وئيلے وو) چه شرک ډير لوئے

لَظُلْمٌ عَظِيمٌ.

۶۱۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا الْجَرِيرِيُّ وَ حَدَّثَنِي قَيْسُ ابْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا سَعِيدُ الْجَرِيرِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْبَرُ الْكَبَائِرِ الْإِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَ عُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ، وَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ وَ شَهَادَةُ الزُّوْرِ ثَلَاثًا أَوْ قَوْلُ الزُّوْرِ. فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتّٰى قُلْنَا لَيْتَهُ سَكَتَ.

۶۱۸: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا شَيْبَانُ عَنْ فِرَاسٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ، جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا الْكَبَائِرُ؟ قَالَ الْإِشْرَاكُ بِاللّٰهِ. قَالَ ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ ثُمَّ عُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ قَالَ ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ الْيَمِينُ الْغَمُوسُ قُلْتُ وَ مَا الْيَمِينُ الْغَمُوسُ؟ قَالَ الَّذِي يَقْتَطِعُ مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ هُوَ فِيهَا كَاذِبٌ.

ظلم دے. (نو دلته د ظلم نه مراد شرک دے. عارف)

۶۱۷: مسدد، بشر بن مفضل، جريري (دويم سند) قيس بن حفص، اسماعيل بن ابراهيم سعيد جريري، عبد الرحمٰن بن ابي بكره دَ خپل پلار نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. كبيره گناهونو كښې دَ ټولو نه لويه گناه داده، چه اللّٰه تعالىٰ سره څوک شريک جوړ کړے شي، او دَ مور پلار نافرماني كول، او د، دروغے گواهي كول، د، دروغے گواهي كول، درے خله حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا، ارشاد اوفرمائيلو. يا، وے فرمائيل، چه دروغ وئيل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا، بار بار وئيلو، تر دے چه مونږ اووے، كاش چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خاموش شي.

۶۱۸: محمد بن ابراهيم، عبيد اللّٰه، شيبان، فراس، شعبي، عبد اللّٰه بن عمرو رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې يو اعرابي حاضر شو، او تپوس ئے اوكه، يا رسول اللّٰه. كبائر (لوئے گناهونه) كوم كوم دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، اللّٰه سره څوک شريک جوړول. تپوس ئے اوكه. بيا كوم حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل د، مور پلار نافرماني كول. تپوس ئے اوكه بيا كوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. يمين غموس. ما تپوس اوكه يمين غموس څه ته وائي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل كوم سړے چه د، يو مسلمان مال هضم كړي، او هغه په هغه قسم كښې دروغجن وي.

ف: يمين غموس: په دروغه قسم خوړل.

۶۱۹ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ وَالْاَعْمَشِ عَنْ اَبِىْ وَآئِلٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنُؤَاخَذُ بِمَا عَمِلْنَا فِى الْجَاهِلِيَّةِ؟ قَالَ: مَنْ اَحْسَنَ فِى الْاِسْلَامِ لَمْ يُؤَاخَذْ بِمَا عَمِلَ فِى الْجَاهِلِيَّةِ وَ مَنْ اَسَآءَ فِى الْاِسْلَامِ اُخِذَ بِالْاَوَّلِ وَالْاٰخِرِ.

۶۱۹ : خلاد بن يحيٰي، سفيان، منصور او اعمش، ابو وائل، ابن مسعودؓ نه روايت كوي. يو سړي عرض اوكړو، يا رسول الله صلّي الله عليه وسلّم آيا خمونږ مواخذه (نيوكه) به خمونږ په هغې اعمالو هم كيږي، چه مونږ د جاهليت په زمانه كښې كړې دي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه د، اسلام حالت كښې نيكي اوكړه، نو هغه نه به مواخذه نه كيږي، چه د هغې هغه د جاهليت زمانه كښې كړې وي، او چا چه حالت د اسلام كښې بدي اوكړه نو د هغه په مخكنو او روستو اعمالو به مواخذه وي.

## بَابٌ ۱۲۶۳: حُكْمِ الْمُرْتَدِّ وَالْمُرْتَدَّةِ

بَابٌ ۱۲۶۳: حُكْمِ الْمُرْتَدِّ وَالْمُرْتَدَّةِ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَالزُّهْرِىُّ وَ اِبْرَاهِيْمُ. تُقْتَلُ الْمُرْتَدَّةُ وَاسْتِتَابَتِهِمْ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: كَيْفَ يَهْدِى اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَ شَهِدُوْا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّ جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ اَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ط خٰلِدِيْنَ فِيْهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَ لَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ط اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ وَ اَصْلَحُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ط اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

باب ۱۲۶۳: د مرتد سړي او مرتدې ښځې حكم، او په هغوي د توبه اوښكلو بيان. ابن عمر زهري او ابراهيم اووې، چه مرتده ښځه به قتلولې شي. او الله تعالٰي اوفرمائيل، الله تعالٰي به هغې قوم ته څرنګ هدايت اوكړي، چه د، ايمان راوړلو نه پس ئې كفر اوكه. او هغوي ګواهي اوكړه، چه رسول حق دے. او هغوي ته دليلونه راغلې وو. او الله تعالٰي ظالم قومونو ته هدايت نه كوي دا خلق دي، د، دوئ بدله دا ده، چه په دوئ به د، الله او فريښتو او ټولو خلقو لعنت وي. دے كښې به هميشه وي، د، دوي عذاب كښې به كمي نه كيږي، او نه به مهلت وركيږي خو هغه خلق چه هغوئ دے نه پس توبه كړله او نيک كارونه ئې اوكړل، نو بيشكه الله بخښونكې او مهرباني دے. بيشكه چا چه د، ايمان نه پس كفر اوكه. بيا كفر كښې يئې زياتې راواخسن، نو د، هغوئ توبه به هيڅ كله قبوله نشي. او داسې خلق ګمراه

بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الضَّآلُّوْنَ. وَ قَالَ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ كَافِرِيْنَ: وَ قَالَ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَ لَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا. وَ قَالَ: مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَأْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَ يُحِبُّوْنَهٗ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِيْنَ، وَ لٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِيْنَ. اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَ سَمْعِهِمْ وَ اَبْصَارِهِمْ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ لَا جَرَمَ يَقُوْلُ حَقًّا. اَنَّهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُوْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ وَ لَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا وَ مَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَ هُوَ كَافِرٌ فَاُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ وَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ

(لارخطا) دي. او اللّٰه تعالي اوفرمائيل. كه تاسو اهل كتابو كښې د يوې ډلې اطاعت كوئې، نو هغوئ به تاسو د مؤمن كيدو نه پس بيا تاسو كافر جوړ كړي، اووې فرمائيل. بيشكه كومو خلقو چه ايمان راوړلو. بيا كافر شول. بيائې ايمان راوړلو، بيا كافر شول. بيا كفر كښې زيات شو، نو اللّٰه تعالٰي د هغوئ ښښونكې نه دې. او نه به هغوئ ته نيغه لار اوښائي اووې فرمائيل. تاسو كښې چه څوک دَ خپل دين نه واوړيدلو، نو عنقريب اللّٰه تعالٰي به داسې قوم راولي. چه اللّٰه تعالٰي به هغوئ سره محبت كوي او هغوئ به اللّٰه سره محبت كوي (اللّٰه پاک دې دا محبت څمونږ هم نصيب كړي. اللّٰهُمَّ آمين). په ايمانداراو به مهربان او په كافرو به سخت وي ليكن چا چه كفر سره سينه پرانسته، نو په هغوئ د، اللّٰه تعالٰي دَ طرفه غضب دې. او هغوئ د پاره لوئې عذاب دې. څكه چه هغوي دنياوي ژوند ته په آخرت ترجيح وركړله او دا چه اللّٰه تعالٰي كافر قوم ته هدايت نه كوي دا خلق دي، چه د، دوي زړونو، غوږونو او ستركو باندې مهر لږولې شوې دې. او خلق غافل دي. هيڅ شک نشته چه اخرت كښې هم دا خلق تاوانيان دي، آخر آيت يعني بيشكه ستارب دې نه پس هم ښښونكې او مهربانه دې پورې. هغه خلق به هميشه تاسو سره جنګ كوي، تر دې چه هغوي تاسو، دَ خپل دين نه واړوي، كه دَ هغوي په وس كښې وي. او تاسو كښې چه كوم سړې دَ خپل دين نه واوړيدلو، او مړ شولو، داسې حال كښې چه كافر وي، نو دا خلق دې، چه اعمال ئې دنيا او آخرت كښې ضائع شو. او داسې خلق هميشه جهنم كښې

هُمْ فِيهَا خٰلِدُوْنَ ط

۶۲۲۰: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوبَ عَنْ عِكْرَمَةَ قَالَ اُتِيَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِزِنَادِقَةٍ فَاَحْرَقَهُمْ فَبَلَغَ ذٰلِكَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ: لَوْ كُنْتُ اَنَا لَمْ اُحْرِقْهُمْ لِنَهْيِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَ لَقَتَلْتُهُمْ لِقَوْلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ بَدَّلَ دِيْنَهُ فَاقْتُلُوْهُ.

۶۲۲۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ قُرَّةَ بْنِ خَالِدٍ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ اَقْبَلْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعِيَ رَجُلَانِ مِنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ اَحَدُهُمَا عَنْ يَمِيْنِيْ وَالْاٰخَرُ عَنْ يَسَارِيْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ فَكِلَاهُمَا سَأَلَ، فَقَالَ: يَا اَبَا مُوْسٰى اَوْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ قَيْسٍ، قَالَ قُلْتُ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا اَطْلَعَانِيْ مَا فِيْ اَنْفُسِهِمَا وَ مَا شَعَرْتُ اَنَّهُمَا يَطْلُبَانِ الْعَمَلَ فَكَاَنِّيْ اَنْظُرُ

اوسيدونكي دي.

۶۲۲۰: ابو نعمان محمدبن فضل حماد بن زيد، ايوب، عكرمهؓ نه روايت كوي حضرت علي رضي الله عنه ته زنادقه (زنديقان) راوستے شو، نو هغوئ، حضرت علي رضي الله عنه اوسوزول. حضرت ابن عباس رضي الله عنه چه دے نه خبر شو، نو وئيلے، كه زه وے، نو مابه نه وو سوزولي، څكه چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د دے نه منع فرمائيلے وه بلكه ما به هغه خلق قتل كړي وو. څكه چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي چا چه خپل دين بدل كه، هغه قتل كړي.

۶۲۲۱: مسدد، يحيٰي، قره بن خالد، حميد بن هلال، ابو برده، حضرت ابو موسٰي نه روايت كوي. زه دَ نبي صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شوم، ماسره دَ اشعريانو دوه سړي وو. يو څما ښي طرف او بل گس طرف ته وو. او حضور صلّي الله عليه وسلّم مسواک كولو. هغے دواړو خواست اوكه (چه چرته عامل ئے مقرر كړي) حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل اے ابو موسٰي، يا، وے فرمائيل، عبد الله بن قيس ابو موسٰي وائي، ما اووے، په هغه ذات مِ دِ قسم وي چه هغه تاسو حق سره راليږلے ئے. هغوي ماته دَ خپل زړه خبره نه ده ښودلے. او نه ماته پته وه چه دوي دواړه به كومے عهدے د پاره خواست كوي. او ما گويا دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم مسواک ته كتل، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم خپلو شونډو سره دباؤ كړے وو. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. مونږ درخواست

إِلَى سِوَاكِهِ تَحْتَ شَفَتَيْهِ قَلَصَتْ فَقَالَ: لَنْ أَوْلَا نَسْتَعْمِلُ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ وَلٰكِنِ اذْهَبْ أَنْتَ يَا أَبَا مُوسَى أَوْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ قَيْسٍ إِلَى الْيَمَنِ، ثُمَّ اتَّبَعَهُ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ فَلَمَّا قَدِمَ عَلَيْهِ أَلْقَى لَهُ وِسَادَةً قَالَ انْزِلْ وَ إِذَا رَجُلٌ عِنْدَهُ مُوثَقٌ قَالَ مَا هٰذَا قَالَ كَانَ يَهُودِيًّا فَأَسْلَمَ ثُمَّ تَهَوَّدَ، قَالَ اجْلِسْ قَالَ لَا أَجْلِسُ حَتّٰى يُقْتَلَ قَضَاءُ اللّٰهِ وَ رَسُولِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَأَمَرَ بِهِ فَقُتِلَ ثُمَّ تَذَاكَرْنَا قِيَامَ اللَّيْلِ فَقَالَ أَحَدُهُمَا: أَمَّا أَنَا فَأَقُومُ وَ أَنَامُ وَ أَرْجُو فِي نَوْمَتِي مَا أَرْجُو فِي قَوْمَتِي.

كونكي هيڅ كله عامل نه جوړوو. ليكن اے ابو موسيٰ، يا وے فرمائيل، اے عبد الله بن قيس، ته يمن ته لاړشه. بيا هغه پسے ئے معاذ بن جبل اوليږلو. معاذ بن جبل چه يمن ته اورسيد، نو ابو موسيٰ هغه د پاره بچونړه اوغوړوله. اووئيلے. راكوز شه هغه وخت يو سړے ئے هغه سره اوليدلو. چه تړلے شوے وو. تپوس ئے اوكه، دا څه دي. وئيلے. دا يهودي وو، اسلام ئے راوړولو، بيا يهودي شولو ابو موسيٰ اووے، كينه. هغه ورته اووے، زه هغه وخته پورے نه كينم، څو پورے چه دے قتل نه كړے شي. الله او ذَ هغه د، رسول دا حكم دے. درے ځله ئے داسے اووے، نو د هغه په حكم هغه قتل كړے شو، بيا مونږ ذَ شب بيدارئ ذكر اوكه، نو هغوئ كښ يو كس اووے، زه خو، د شپے عبادت هم كوم، او اوده كيږم هم. او خوب كښ ذَ هغے څيز اُميد لرم چه ذَ هغے بيدارئ كښ لرم.

## بَابُ ٣١٧: قَتْلِ مَنْ أَبٰى قَبُولَ الْفَرَائِضِ وَ مَا نُسِبُوا إِلَى الرِّدَّةِ.

## باب ٣١٧: ذَ هغے سړي ذَ قتل بيان، چه ذَ فرائضو ذَ قبلولو نه انكار اوكړي، او د هغه نسبت ارتداد طرف ته اوكړ شي.

۶۲۲: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتُخْلِفَ أَبُوبَكْرٍ وَ كَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ قَالَ عُمَرُ: يَا أَبَابَكْرٍ كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَ قَدْ قَالَ

۶۲۲: يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عبيد الله بن عبد الله بن عتبه، حصرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے، كوم وخت چه نبي صلّي الله عليه وسلّم وفات شو. او حضرت ابوبكر رضي الله عنه خليفه شو ذَ عربو بعض خلق كافر شو، حضرت عمر رضي الله عنه اووے، اے ابوبكر رضي الله عنه، تاسو به څنگه خلقو سره جهاد كوئے، هر كله چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي. ماته حكم راكړے شوے دے، چه زه خلقو سره جهاد اوكړم تر دے

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ فَمَنْ قَالَ لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ عَصَمَ مِنِّيْ مَالَهٗ وَ نَفْسَهٗ اِلَّا بِحَقِّهٖ وَ حِسَابُهٗ عَلَى اللّٰهِ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ وَاللّٰهِ لَاُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ فَاِنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ الْمَالِ وَاللّٰهِ لَوْ مَنَعُوْنِيْ عَنَاقًا كَانُوْا يُؤَدُّوْنَهَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلٰى مَنْعِهَا قَالَ عُمَرُ فَوَاللّٰهِ مَاهُوَ اِلَّا اَنْ رَاَيْتُ اَنْ قَدْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَ اَبِيْ بَكْرٍ لِلْقِتَالِ فَعَرَفْتُ اَنَّهُ الْحَقُّ.

چه: لا اله الا الله: اووائي. چا چه: لا اِله الا الله: اوو[ئيل] هغه مانه خپل سر و مال بچ کړو. خو د هغه حق سره، او د هغه حساب په الله دے. ابوبکر رضي الله عنه اوو[فرمائيل] په خدائے چه، زه به هغه چا سره جهاد کوم، چه هغه مونځ او روژه کښې فرق اوکړي، ځکه چه زکوٰة دَ مال حق دے په خدائے چه، که دا خلق دَ چيلئے يو بچے هم، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم ته به ئے ورکولو، ماته رانه کړي، نو زه به دوي سره په دے نه ورکولو جهاد کوم، د حضرت عمر رضي الله عنه بيان دے، په خدائے م دے قسم وي، ما اوليدل، ابوبکر رضي الله عنه چه ورته وائي دا صرف په دے وجه، چه الله، د ابوبکر رضي الله عنه سينه د جهاد د پاره پرانستے وه، نو زه پوه شوم چه هغه په حقه دے.

**باب ٣١٨: اِذَا عَرَّضَ الذِّمِّيُّ وَغَيْرُهٗ بِسَبِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَمْ يُصَرِّحْ نَحْوَ قَوْلِهِ السَّامُ عَلَيْكَ.**

**باب ٣١٨:** هر کله چه ذمي يا، د هغه نه علاوه خوک سړے نبي صلّي اللّه عليه وسلّم ته کنايةً بدرد اووائي، او صراحةً او نه وائي لکه السام عليک وئيل.

**٦٢٣:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدِ بْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ: مَرَّ يَهُوْدِيٌّ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ السَّامُ عَلَيْكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَتَدْرُوْنَ مَا يَقُوْلُ؟ قَالَ

**٦٢٣:** محمد بن مقابل، ابو الحسن، عبد الله، شعبه، هشام بن زيد بن انس بن مالکؓ نه نقل کوي، دَ هغه بيان دے، يو يهودي د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خوا کښې تير شو، او وئيلے، السّام عليک (په تا دے مرګ وي، يا ته مړ شے) حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل و عليک (په تا، دے وي) رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل آيا تاسو ته معلومه ده، څه چه هغه وائي. هغه السّام عليک (يعني په تا، دے مرګ وي) وئيلے دي. خلقو عرض اوکه، اے د، الله

سَامُ عَلَيْكَ قَالُوا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا نَقْتُلُهُ؟ قَالَ: لَا، اِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ اَهْلُ الْكِتٰبِ فَقُوْلُوْا وَ عَلَيْكُمْ.

رسوله آیا مونږ دے قتل نه کړو. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته ارشاد اوفرمائيلو، نه (بيائے اوفرمائيل) هر کله چه تاسو ته اهل کتاب سلام اوکړي. نو تاسو ورته: وعليكم: وائے.

٦٢٤ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتِ اسْتَاْذَنَ رَهْطٌ مِّنَ الْيَهُوْدِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا اَلسَّامُ عَلَيْكَ فَقُلْتُ بَلْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ فَقَالَ: يَا عَائِشَةُ اِنَّ اللّٰهَ رَفِيْقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْاَمْرِ كُلِّهٖ قُلْتُ اَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوْا؟ قَالَ قُلْتُ وَ عَلَيْكُمْ.

٦٢٤ : ابو نعيم، ابن عيينه، زهري، عروه، بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت کوي. د هغے بيان دے. د يهودو يو جماعت حضور صلّي الله عليه وسلّم نه دننه د، راتللو اجازت طلب که (هغوي دننه راغلل) نو وے وئيل: السام عليک (ته هلاک شے) د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها بيان دے، ماورته اووے، په تاسو دے هلاکت او لعنت، وي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اے عائشے. اللّٰه رفيق دے. هر امر کښ رفق (نرمي) خوښوي. ما ورته اووے، تاسو واونه ريدل، څه چه دوي اووے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ماهم ورته: وعليکم: وئيلے وو.

٦٢٥ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ وَ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْيَهُوْدَ اِذَا سَلَّمُوْا عَلٰى اَحَدِكُمْ اِنَّمَا يَقُوْلُوْنَ سَامٌ عَلَيْكَ فَقُلْ عَلَيْكَ.

٦٢٥ : مسدد، يحيٰي بن سعيد، سفيان او مالک بن انس، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ذ هغه نه واوريدل، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو يهود چه کله تاسو کښ چاته سلام کوي. نو هغوي سام عليک (په تادے مرګ راشي) وائي، نو تاسو ورته جواب کښ وعليک وائے.

باب ٣١٩:

باب ٣١٩: (دا باب څه عنوان نه لري).

٦٢٦ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ

٦٢٦ : عمر بن حفص، حفص، اعمش، شقيق، د، حضرت عبد اللّٰه قول نقل کوي،

حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ قَالَ، قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْكِيْ نَبِيًّا مِّنَ الْاَنْبِيَآءِ ضَرَبَهُ قَوْمُهُ فَاَدْمَوْهُ فَهُوَ يَمْسَحُ الدَّمَ عَنْ وَّجْهِهٖ وَ يَقُوْلُ رَبِّ اغْفِرْ لِقَوْمِيْ فَاِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ.

ګویا چه زه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم وينم، چه د يو نبي واقعه بيانوي، چه هغه قوم هغه اووهلو. او په وينو ئې رنګ بهنګ که. هغه د خپل مخ نه وينه پاکوله. او وئيل ئې اې خما پروردګاره خما قوم اوبښې دوی ناپوهه دي.

باب ۳۲۰: قَتْلُ الْخَوَارِجِ وَالْمُلْحِدِيْنَ بَعْدَ اِقَامَةِ الْحُجَّةِ عَلَيْهِمْ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ اِذْ هَدَاهُمْ حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَرَاهُمْ شِرَارَ خَلْقِ اللّٰهِ وَ قَالَ اِنَّهُمْ اِنْطَلَقُوْا اِلٰى اٰيَاتٍ نَزَلَتْ فِي الْكُفَّارِ فَجَعَلُوْهَا عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ.

باب ۳۲۰: د خوارج او ملحدين د قتل کولو بيان، هر کله چه د هغوي خلاف حجت قائم کړې شي. او د اللّٰه تعالٰي قول چه اللّٰه تعالٰي داسې نه دې، چه هغه يو قوم، هدايت ورکولو نه پس ګمراه کړي، تر دې چه هغه، هغې خلقو د پاره بيان کړي، چه دَ کومو څيزونو نه بچ کيدل دي. او ابن عمر رضي اللّٰه عنه به هغه خلق د اللّٰه بدترين مخلوق ګنړلو، او وئيلې، دا خلق هغه ايتونه چه دَ کفارو حق کښې نازل شوې دي، هغه دَ مسلمانانو په حق کښې استعمالوي.

٦٧٢٧: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا خَيْثَمَةُ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِذَا حَدَّثْتُكُمْ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيْثًا، فَوَاللّٰهِ لَاَنْ اَخِرَّ مِنَ السَّمَآءِ اَحَبَّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ اَكْذِبَ عَلَيْهِ، وَ اِذَا حَدَّثْتُكُمْ فِيْمَا بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ فَاِنَّ الْحَرْبَ خُدْعَةٌ وَ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: سَيَخْرُجُ قَوْمٌ

٦٧٢٧: عمر بن حفص بن غياث، حفص بن غياث، اعمش، خيثمه، سويد بن غفله، حضرت علي رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي هغه اووې، کله چه زه تاسوته د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم څه حديث بيانوم، نو په خدائې چه، د اسمان نه راغرځيدل ماته د دې نه زيات محبوب دي، چه زه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم طرف ته يوه غلطه خبره منسوب کړم. او هر کله چه زه تاسو ته دَ هغې څيز متعلق خبرې کوم، چه څمونږ او ستاسو تر مينځه دې. نو خيال ساتئ چه جنګ خو، فريب دې، ما د حضور صلعم نه واوريدل، آخري زمانه کښې به يو قوم پيدا کيږي. چه نو عمر او کم عقل به

فِي اٰخِرِ الزَّمَانِ حُدَّاثُ الْاَسْنَانِ سُفَهَآءُ الْاَحْلَامِ، يَقُوْلُوْنَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ لَا يُجَاوِزُ اِيْمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ فَاَيْنَمَا لَقِيْتُمُوْهُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ فَاِنَّ فِي قَتْلِهِمْ اَجْرًا لِّمَنْ قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

وي. خبرې خو، به د ښو خلقو په شان کوي. ليکن د هغوئ ايمان به د هغوئ د حلق نه لاندې نه تيريږي. (حلوق يا حناجر لفظ ئې او فرمائيلو) هغه خلق به د، دين نه داسې اوځي، څنګه چه غشې د، ښکار نه اوځي، تاسو چه کوم ځائې داسې خلق بيامومئې، قتلوئې ئې، ځکه چه د قيامت په ورځ به هغه ته اجر ورکيږي، چا چه دوئ قتل کړل.

٦٢٨ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ اَنَّهُمَا اَتَيَا اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ فَسَاَلَاهُ عَنِ الْحَرُوْرِيَّةِ اَسَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ لَا اَدْرِيْ مَا الْحَرُوْرِيَّةُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَخْرُجُ فِيْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ وَ لَمْ يَقُلْ مِنْهَا قَوْمٌ تَحْقِرُوْنَ صَلَاتَكُمْ مَعَ صَلَاتِهِمْ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْاٰنَ لَا يُجَاوِزُ حُلُوْقَهُمْ اَوْ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ مُرُوْقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ فَيَنْظُرُ الرَّامِيْ اِلٰى سَهْمِهٖ اِلٰى نَصْلِهٖ اِلٰى رِصَافِهٖ فَيَتَمَارٰى فِي الْفُوْقَةِ هَلْ عَلِقَ بِهَا مِنَ الدَّمِ شَيْءٌ.

٦٢٨ : محمد بن مثنى، عبد الوهاب، يحيى بن سعيد، محمد بن ابراهيم، ابو سلمه او عطاء بن يسار نه روايت کوي، هغوئ دواړه حضرت ابو سعيد خدري له راغلل، د هغه نه ئې د حروريه متعلق تپوس اوکه، تاسو د نبي صلّى اللّٰه عليه وسلّم نه د دې متعلق څه اوريدلې دي. هغه اووې، زه نه پوهيږم، چه حروريه څه دي. خو ما د نبي صلّى اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلې دي، دې امت کښې به څه خلق پيدا شي، دا، ئې اونه فرمائيل چه دې امت نه به پيدا کيږي. تاسو به خپل مونځونه د هغوي د مونځونو مقابله کښې حقير اوګنړئې. هغه خلق به قرآن لولي، خو داسې چه د حلقونو نه به يا، وې فرمائيل، حناجر نه به لاندې نه تيريږي. هغه خلق به د، دين نه داسې اوځي، څنګه چه غشې د، ښکار نه اوځي. او ښکاري خپل تير، او د هغې سنبه (څوکه) او، د هغې وزرو ته ګوري. او شک کوي چه هغه د، وينو شوې دې، که نه.

٦٢٩ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ

٦٢٩ : يحيى بن سليمان، ابن وهب، عمر،

سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِيُ ابْنُ وَهَبٍ قَالَ حَدَّثَنِيُ عُمَرُ اَنَّ اَبَاهُ حَدَّثَهُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ وَ ذَكَرَ الْحَرُوْرِيَّهَ فَقَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الْاِسْلَامِ مُرُوْقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ.

ذ خپل پلار متعلق بيانوي، هغه ذ عبد اللّٰه بن عمر نه روايت اوکه. او ذ حروريه ذکر ئې اوکه، نو وئيلې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد فرمائيلې دې، هغه خلق به ذ اسلام نه داسې اوځي، څنګه چه غشې ذ ښکار نه اوځي.

**باب ۱۳۲۱: مَنْ تَرَكَ قِتَالَ الْخَوَارِجِ لِلتَّوَلُّفِ وَ اَنْ لَّا يَنْفِرَ النَّاسُ عَنْهُ.**

**باب ۱۳۲۱:** ذ هغې سړي بيان، چه، د زړونو مائل کولو د پاره په دې خيال، چه خلق به د هغه نه نفرت کول را واخلي. خوارج سره جنګ کول پريږدي.

• ۶۳۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنِ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيُ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيُ سَعِيْدٍ قَالَ: بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ جَآءَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ ذِي الْخُوَيْصِرَةَ التَّمِيْمِيُّ فَقَالَ اِعْدِلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ، فَقَالَ وَيْلَكَ مَنْ يَّعْدِلُ اِذَا لَمْ اَعْدِلُ؟ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ دَعْنِيُ اَضْرِبُ عُنُقَهُ قَالَ دَعْهُ فَاِنَّ لَهُ اَصْحَابًا يَّحْقِرُ اَحَدُكُمْ صَلَاتَهُ مَعَ صَلَاتِهٖ وَ صِيَامِهٖ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ يُنْظَرُ فِيُ قُذَذِهٖ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ، ثُمَّ يُنْظَرُ فِيُ نَصْلِهٖ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ فِيُ رِصَافِهٖ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ

• ۶۳۰: عبد اللّٰه بن محمد، هشام، معمر، زهري، ابو سلمه، ابو سعيد نه روايت کوي، ذ هغه بيان دې. يو ځل نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم تقسيمولو، عبد اللّٰه بن ذي الخويصره تميمي راغې او وئيلې، يا رسول اللّٰه، عدل نه کار واخلئې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ستا دې خرابي وي، (خوارشې) چه زه عدل نه کوم، نو بل څوک به عدل کوي. حضرت عمر بن خطاب عرض اوکه، ماته اجازت راکړئې، چه د ده ګردن والوځوم حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. دې پريږده. د ده به داسې ملګري وي، چه تاسو کښ به يو سړې د هغوي ذ مونځونو مقابله کښ خپل مونځ او خپله روژه ذ هغوئ د، روژې مقابله کښ حقير اوګنړئ. هغه خلق به د، دين نه داسې اوځي څنګه چه تير د، ښکار نه اوځي، که ذ هغې وزرو کښ اوکتلې شي، نو هيڅ به معلوم نشي. بيا چه د هغې تيره څوکه اوکتلې شي، نو هيڅ به نه معلوميږي هر کله چه ذ هغې لرګي ته اوکتلې شي، نو هيڅ به نه معلوميږي، حالانکه هغه د، وينې او

شَيْءٌ، ثُمَّ يَنْظُرُ فِيْ نَصْلِهِ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ قَدْ سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ اٰيَتُهُمْ رَجُلٌ اِحْدٰى يَدَيْهِ اَوْ قَالَ ثَدْيَيْهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْاَةِ اَوْ قَالَ مِثْلُ الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ يَخْرُجُوْنَ عَلٰى حِيْنِ فُرْقَةٍ مِنَ النَّاسِ. قَالَ اَبُوْسَعِيْدٍ اَشْهَدُ سَمِعْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَ اَشْهَدُ اَنَّ عَلِيًّا قَتَلَهُمْ وَ اَنَا مَعَهُ جِيْءَ بِالرَّجُلِ عَلَى النَّعْتِ الَّذِيْ نَعَتَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ فَنَزَلَتْ فِيْهِ وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ فِي الصَّدَقَاتِ.

سوتو (گوبر) نه تیر شوے وي. ذَ هغې نښه به دا' وي' چه هغوي کښې به یو داسې سړے پیدا شي. چه ذَ هغه یو لاس یایوتے (چهاتي) به ذَ ښځې ذَتي په شان وي. یا وې فرمائیل. چه ذَ غوښې د' ټکړې په شان به وي. او خوزیږي به. ذَ خلقو ذَ تفرقې په وخت به راوځي. ذَ' ابو سعید بیان دے' زه ګواهي کوم. ما ذَ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلې دي' حضرت علي رضي اللّٰهِ علیه هغه خلق قتل کړل او زه هغه سره ووم' هغه وخت یو سړے د هغې صورت راوستے شو' چه نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم ئے بیان فرمائیلے وو. د' ابو سعید بیان دے. چه آیت: و منهم من یلمزک في الصّدقات: ذَ هغې سړي (ذو الخویصره تمیمي) باره کښې نازل شوے دے.

۶۳۱ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا يُسَيْرُ بْنُ عَمْرٍو قَالَ قُلْتُ لِسَهْلِ ابْنِ حُنَيْفٍ هَلْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِي الْخَوَارِجِ شَيْئًا؟ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ وَ اَهْوٰى بِيَدِهٖ قِبَلَ الْعِرَاقِ. يَخْرُجُ مِنْهُ قَوْمٌ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْاٰنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الْاِسْلَامِ مُرُوْقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ.

۶۳۱ : موسٰي بن اسماعیل' عبد الوَاحد' شیباني' یسیر بن عمرو' نه روایت کوي ذَ هغه بیان دے. ما د سهل بن حنیف نه تپوس او که' آیا تا ذَ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه ذَ' خوارجو متعلق څه آوریدلے دي. هغه اووے. ما ذَ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل' خپل لاس ئے عراق طرف ته ورمخکښې که' وے فرمائیل ذَ هغې خائے نه به یو قوم راوځي. هغه خلق به داسې قرآن لولي' چه ذَ هغوي حلقونو نه به لاندے نه کوزیږي' هغه خلق به د' دین نه داسې اوځي' څنګه چه تیر د' ښکار نه اوځي.

## بَابُ ۳۲۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ دَعْوَتُهُمَا وَاحِدَةٌ.

باب ۳۲۲: ذَ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد قیامت به هغه وخته پورے نه راځي. څو پورے چه دوو جماعتونو کښې جنګ اونشي او ذَ هغې دواړو دعویٰ به یوه وي.

۶۳۲ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا

۶۳۲ : علي' سفیان' ابو الزناد' اعرج' حضرت

سُفْيَانُ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ دَعْوَاهُمَا وَاحِدَةٌ.

ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي ذ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل' قيامت به هغه وخته پورے نه قائميږي' څو پورے چه دوو جماعتونو كښې جنګ اونشي' او د' دواړو دعوې به يوه وي (يعني دواړه كښې به هر يو دِ په حقه كيدو مدعي) وي.

باب ۳۲۳: مَا جَاءَ فِي الْمُتَأَوِّلِيْنَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ اللَّيْثُ: حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَبْدِ الْقَارِيَّ أَخْبَرَاهُ أَنَّهُمَا سَمِعَا عُمَرَ ابْنَ الْخَطَّابِؓ يَقُوْلُ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيْمٍ يَقْرَأُ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ فِيْ حَيٰوةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَمَعْتُ لِقِرَاءَتِهِ فَإِذَا هُوَ يَقْرَأُهَا عَلٰى حُرُوْفٍ كَثِيْرَةٍ لَمْ يُقْرِئْنِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذٰلِكَ فَكِدْتُ أُسَاوِرُهُ فِي الصَّلَاةِ فَانْتَظَرْتُهُ حَتّٰى سَلَّمَ فَلَمَّا سَلَّمَ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ أَوْ بِرِدَائِيْ فَقُلْتُ مَنْ أَقْرَأَكَ هٰذِهِ السُّوْرَةَ؟ قَالَ أَقْرَأَنِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ' قُلْتُ لَهٗ كَذَبْتَ فَوَاللّٰهِ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْرَأَنِيْ هٰذِهِ السُّوْرَةَ الَّتِيْ سَمِعْتُكَ تَقْرَؤُهَا.

باب ۳۲۳: ذ تاويل كونكو متعلق چه كوم روايتونه منقول دي. ابو عبد اللّٰه (بخاري) اووے' ليث په واسطه د' يونس' ابن شهاب' عروه بن زبير مسور بن محرمه او عبد اللّٰه بن عبد القاري نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے د حضرت عمر بن خطاب نه ئے واوريدل' ما د هشام بن حكيم نه د' رسول اللّٰه په ژوند كښې سوره فرقان لوستل واوريدل. ما د هغه نه ډير حرفونه داسے لوستل واوريدل' چه هغه رسول اللّٰه صلّي الله عليه وسلّم مونږ ته نه وو لوستے' نزدے وه چه مَا ذ مانځه په حالت كښې په هغه حمله كړے وے. ليكن ما انتظار اوكړلو' تر دے چه هغه سلام اوګرځولو. بيا ما خپل يا' د هغه څادر ذ هغه غاړه كښې واچولو. ما اووے' تاته دا سورت چا ښودلے دے. هغه اووے ما ته دا سورت رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ښودلے دے. ما هغه ته اووے' ته دروغ وائے' په خدائے مِ دے قسم وي' ماته رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا سورت ښودلے دے' چه تانه ما واوريدلو' نو ما هغه په راښكلو د' رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر كړلو. ما اووے'

فَانْطَلَقْتُ اَقُوْدُهُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ سَمِعْتُ هٰذَا يَقْرَأُ بِسُوْرَةِ الْفُرْقَانِ عَلٰى حُرُوْفٍ لَمْ تُقْرِءْنِيْهَا وَ اَنْتَ اَقْرَاْتَنِيْ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ، فَقَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسِلْهُ يَا عُمَرُ اِقْرَأْ يَا هِشَامُ، فَقَرَأَ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةَ الَّتِيْ سَمِعْتُهُ يَقْرَاُهَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ هٰكَذَا نُزِلَتْ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقْرَأْ يَا عُمَرُ، فَقَرَأْتُ فَقَالَ هٰكَذَا اُنْزِلَتْ، ثُمَّ قَالَ اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ اُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فَاقْرَاُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ.

يا رسول الله، ما د، ده نه سورة فرقان دے حروفونو سره لوستل آوريدلے دي، چه تاسوّ ماته دغسے نه وي ښودلے، حالانكه تاسوّ ماته سورة فرقان ښودلے دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، اے عمر رضي الله عنه، دے پريږده، او، اے هشام، ته اولوله نو هغه، هغه شان اولوستلو، څنګه چه ترے ما اوريدلے وو. حضور صلّي الله عليه وسلّم ارشاد فرمائيلو، دا سورت داسے نازل شوے دے. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے عمر رضي الله عنه اوس ته اولوله. ما اولوست، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل. دا شان نازل شوے دے. بيائے او فرمائيل، قرآن په اوو طريقو نازل شوے دے. په دے وجه په كومه طريقه چه آسان وي. هغسے ئے لولے.

٦٣٣ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ ح حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ لَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ شَقَّ ذَالِكَ عَلٰى اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالُوْا: اَيُّنَالَمْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ كَمَا تَظُنُّوْنَ اِنَّمَا هُوَ كَمَا قَالَ لُقْمَانُ لِاِبْنِهِ يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ

٦٣٣ : اسحاق بن ابراهيم، وكيع. ح. يحيي، وكيع، اعمش، ابراهيم، علقمه، عبد الله نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے كوم وخت چه دا آيت نازل شو، كوم خلقو چه ايمان راوړلو، او خپل ايمان ئے ظلم سره يو ځائے نه كه. نو دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم په اصحابوؓ دا ډير سخت تير شو. او هغے خلقو اووے، مونږ كښ داسے څوک دے، چه په خپل نفس ئے ظلم نه وي كړے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل دا خبره نه ده، څنګه چه ستاسو ګمان دے. هغه خو صرف دا ده. كومه چه لقمان خپل ځوي ته وئيلے وو، چه اے بچيه، الله سره شريک مه جوړوه بيشكه

بِاللّٰهِ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

ف: لوئے ظلم شرک دے.

شرک ډیر لوئے ظلم دے.

۶۳۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِىْ مَحْمُوْدُ ابْنُ الرَّبِيْعِ قَالَ سَمِعْتُ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ غَدَا عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَجُلٌ اَيْنَ مَالِكُ بْنُ الدُّخْشُنِ؟ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَّا ذٰلِكَ مُنَافِقٌ لَا يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلَا تَقُوْلُوْهُ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ. قَالَ بَلٰى قَالَ فَاِنَّهُ لَا يُوَافِيْ عَبْدٌ يَّوْمَ الْقِيَامَةِ بِهٖ اِلَّا حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ.

۶۳۴: عبدان، عبد اللّٰه، معمر، زهري محمود بن ربيع، عتبان بن مالک نه روايت کوي هغه وائي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سحر وخت کښې ماپلـه تشريف راوړلو، يو سړي اووے، مالک بن دخشن کوم ځائے دے. مونږ کښې يو سړي اووے هغه منافق دے، اللّٰه او د هغه رسول سره محبت نه ساتي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته او فرمائيل آيا ته نه وائے، چه هغه: لا الٰهَ الا اللّٰه: محض د اللّٰه د رضاجوئي د پاره وائي. هغه اووے. او. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو کوم سړے چه د زړه د اخلاصه دا کلمه اووائي، اللّٰه تعالي به د قيامت په ورځ په هغه اُور حرام کړي.

۶۳۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ فُلَانٍ قَالَ تَنَازَعَ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ حِبَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ فَقَالَ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ لِحِبَّانَ لَقَدْ عَلِمْتُ الَّذِيْ جَرَّاَ صَاحِبَكَ عَلَى الدِّمَاءِ يَعْنِيْ عَلِيًّا، قَالَ مَا هُوَ لَا اَبَا لَكَ؟ قَالَ شَيْءٌ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُهُ قَالَ مَا هُوَ؟ قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالزُّبَيْرَ وَ اَبَا

۶۳۵: موسي بن اسماعيل، ابو عوانه، حصين، فلان (سعد بن عبيده) نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. ابو عبد الرحمٰن او حبان بن عطيه کښې جګړه اشوه. نو ابو عبد الرحمٰن، حبان ته اووے، زه په هغه خبره پوهيږم، چه هغې ستا دوست يعني حضرت علي رضي اللّٰه عنه په خون ريزي زړور کړلو. حبان اووے هغه څه ده، ستا پلار دے نه وي. ابو عبد الرحمٰن ورته اووے، ما دَ هغه نه اوريدلے دي. حبان اووے، اووايه، هغه څه دي" ابو عبد الرحمٰن اووے، هغه بيان کولو، زه، زبير رضي اللّٰه عنه او ابو مرثد رضي اللّٰه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوليږلو. او مونږ ټول سواره وو. حضور صلّي اللّٰه عليه

مَـرْثَـدٍ وَّ كُـلُّـنَـا فَـارِسٌ قَـالَ انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ حَاجٍ قَـالَ اَبُـوْ سَـلَـمَةَ هٰكَـذَا قَـالَ اَبُـوْ عَـوَانَـةَ حَـاجٍ فَـاِنَّ فِيْهَا امْرَاَةً مَّـعَهَا صَحِيْفَةٌ مِّنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ اِلَى الْمُشْرِكِيْنَ فَاْتُوْنِيْ بِهَا فَانْطَلَقْنَا عَلٰى اَفْرَاسِنَا حَتّٰى اَدْرَكْنَاهَا حَيْثُ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسِيْرُ عَلٰى بَعِيْرٍ لَّهَا وَ كَانَ كَتَبَ اِلٰى اَهْلِ مَكَّةَ بِمَسِيْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ فَقُلْنَا اَيْنَ الْكِتَابُ الَّذِيْ مَعَكِ؟ قَالَتْ مَا مَعِيَ كِتَابٌ، فَاَنَخْنَا بِهَا بَعِيْرَهَا فَابْتَغَيْنَا فِيْ رَحْلِهَا فَمَا وَجَدْنَا شَيْئًا، فَقَالَ صَاحِبِيْ مَا نَرٰى مَعَهَا كِتَابًا، قَالَ فَقُلْتُ لَقَدْ عَلِمْنَا مَا كَذَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ حَلَفَ عَلِيٌّ وَالَّذِيْ يُحْلَفُ بِهٖ لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ اَوْ لَاُجَرِّدَنَّكِ، فَاَهْوَتْ اِلٰى حُجْزَتِهَا وَ هِيَ مُحْتَجِزَةٌ بِكِسَاءٍ فَاَخْرَجَتِ الصَّحِيْفَةَ فَاَتَوْا بِهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ خَانَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَالْمُؤْمِنِيْنَ دَعْنِيْ

وسلّم اوفرمائيل. تاسې خلق لاړ شئ، تر دې چه روضه حاج ته اورسئ. دَ ابو سلمه بيان دې. چه ابو عوانه دَ حاج لفظ وئيلې وو. هلته به يوه ښځه وي. هغې سره به د حاطب بن ابي بلتعه خط دَ مشركينو په نوم وي، هغه خط مَاته راوړئ. مونږ خلق په خپلو آسونو ورغلو، تر دې چه مونږ هغه هلته بيامنده، دَ كوم ځائې متعلق چه مونږ ته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې وو. هغه په خپل اُوښ سوره روانه وه. حاطب د اهلِ مكه په نوم دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د روانګئ متعلق ليكلي وو. مونږ هغې ښځې ته اووې، تاسره هغه خط چرته دې. هغې اووې. ماسره څه خط نشته. مونږ دَ هغې اوښ كينولو. او د هغې د كجاوې تالاشي مو واخسته، ليكن بيامو، نه موندلو. څما ملګري اووې. چه مونږ هغې سره څه خط نه وينو. دَ حضرت علي رضي اللّٰه عنه بيان دې. ما اووې، څما يقين دې، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دروغ نه دي وئيلې. بيا حضرت علي رضي اللّٰه عنه قسم اوخوړلو، په هغه ذات، چه په هغه قسم خوړلې شي، چه ته هغه خط راوكاږه، كني زه به دې بربنډه كړم. هغه ښځه ملا (كمر) طرف ته ښكته شوه. او ملا (كمر) سره ئې يو څادر تړلې وو. دَ هغې نه ئې خط راوښكلو، دې خلقو هغه خط حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته راوړلو. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه اووې يا رسول اللّٰه. ده اللّٰه، دَ هغه رسول او مؤمنانو سره خيانت كړې دې. ماته اجازت راكړئ، چه د ده ګردن والوخوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اې حاطبه، نه څه څيز په دې كار آماده كړې. حاطب عرض اوكه، يا رسول اللّٰه،

فَاَضْرِبَ عُنُقَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا حَاطِبُ مَا حَمَلَكَ عَلٰى مَا صَنَعْتَ؟ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَالِيْ اَنْ لَّآ اَكُوْنَ مُؤْمِنًا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَلٰكِنِّيْ اَرَدْتُ اَنْ يَّكُوْنَ لِيْ عِنْدَ الْقَوْمِ يَدٌ يُدْفَعُ بِهَا عَنْ اَهْلِيْ وَ مَالِيْ وَ لَيْسَ مِنْ اَصْحَابِكَ اَحَدٌ اِلَّا لَهٗ هُنَالِكَ مِنْ قَوْمِهٖ مَنْ يَّدْفَعُ اللّٰهُ بِهٖ عَنْ اَهْلِهٖ وَ مَالِهٖ قَالَ صَدَقَ لَا تَقُوْلُوْا لَهٗ اِلَّا خَيْرًا، قَالَ فَعَادَ عُمَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ خَانَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَالْمُؤْمِنِيْنَ دَعْنِيْ فَلَاَضْرِبَ عُنُقَهٗ. قَالَ: اَوَ لَيْسَ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ وَ مَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ اللّٰهُ اَطَّلَعَ عَلَيْهِمْ فَقَالَ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ اَوْجَبْتُ لَكُمُ الْجَنَّةَ فَاغْرَوْرَقَتْ عَيْنَاهُ فَقَالَ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ.

مالـه څه شوي دي، چه زه دې الـله او د هغه په رسول ايمان راوړونكې نه شم. ليكن ما اوغوښتل، چه په دغې قوم (مكه والو) څما څه احسان اوشي چه څما د، اهل او مال حفاظت كوي، او ستاسو اصحابو كښې هيڅوك داسې نشته چه ډ هغه څه نه څه خلق هلته (مكه) كښې نه وي، الـله ډ هغوي په ذريعه د هغوي د اهل و مال حفاظت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم او فرمائيل، ټيک ئې اووې، تاسو خلق ده ته سوا، ډ خير نه بل څه مه وائې. حضرت عمر رضي الـلـه عنه دوباره عرض اوكه. اووئيلې. ده، د الله، رسول او مؤمنانو خيانت كړې دې. تاسو ماته اجازت راكړئې، چه د، ده ګردن اووهم. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا دې بدري نه دې. او آيا تاته معلومه نه ده، چه الله د، دوي د، زړونو ډ حال نه آګاه دې. او فرمائيلې ئې دي، چه څه غواړئې، كوئې، ستاسو د پاره جنت واجب شولو. د حضرت عمر رضي الله عنه ستر ګې د، أوښكو نه ډكې شوې. اووئيلې الله او د هغه رسول ښه پوهيږي.

# كِتَابِ الْاِكْرَاهِ

# (اكراه: يعني ډ جبر كولو بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

باب ۳۲۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مَنْ اُكْرِهَ وَ قَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّ بِالْاِيْمَانِ وَلٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ط وَ قَالَ: اِلَّا اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقَاةً. وَ هِيَ تَقِيَّةٌ وَ قَالَ: اِنَّ

شروع كوم په نامه ډ خدائې چه بخښونكې او مهربانه دې

باب ۳۲۴: ډ، الـلـه تـالي قول، خو، هغه، چه په هغه جبر كړې شوې. او ډ هغه قلب ايمان سره مطمئن وي. ليكن هغه ډ هغه سينه كفر د پاره پرانستله، نو په هغوئ به د، الـلـه ډ طرف نه غضب نازليږئ او هغوئ د پاره لوئې عذاب دې. او، وې فرمائيل. الا ان تتقوا منهم تقاة: الخ د، تقاة معني: تقيه: دي (يعني د، كافرو ډ خوف

الَّذِيْنَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَالُوْا فِيْمَا كُنْتُمْ قَالُوْا كُنَّا مُسْتَضْعَفِيْنَ فِي الْاَرْضِ اِلٰى قَوْلِهٖ وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا فَعَذَرَ اللّٰهُ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ الَّذِيْنَ لَا يَمْتَنِعُوْنَ مِنْ تَرْكِ مَا اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ وَالْمُكْرَهُ لَا يَكُوْنُ اِلَّا مُسْتَضْعَفًا غَيْرَ مُمْتَنِعٍ مِّنْ فِعْلِ مَا اُمِرَ بِهٖ. وَ قَالَ الْحَسَنُ التَّقِيَّةُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْمَنْ يُكْرِهُهُ اللُّصُوْصُ فَيُطَلِّقُ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَ بِهٖ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَ ابْنُ الزُّبَيْرِ وَالشَّعْبِيُّ وَالْحَسَنُ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ.

نه ايمان پتهول) او الله تعالٰي او فرمائيل: إنّ الذين توفاهم المَلٰئِكةُ ظالمي انفسهم قالوا فيما كنتم قالوا كنّا مستضعفين في الارض (الي قوله) واجعل لنا من لَدنک نصيرا: نو الله تعالٰي ضعيفان معذوره اوګنړل' چه د' الله تعالٰي د' اوامرو' دَ ترک نه منع کيدے نه شي او په چا چه جبر شوے دے' هغه هم کمزورے دے' چه هغه ته څه حکم ورکړے شو' دَ هغے دَ کولو نه منع کيدے نه شو' او دَ حسن بيان دے' چه تقيه قيامته پورے جاري ده. او حضرت ابن عباس رضي الله عنه اووے. په کوم سړي چه غلو (چورون) زبردستي اوکړه. او هغه هغے له طلاق ورکړي' نو دا هيڅ څيز نه دے. او حضرت ابن عمر رضي الله عنه او ابن زبير رضي الله عنه او شعبي او حسن هم دغسے وئيلے دي. او حضور صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل' چه اعمال په نيت موقوف دي.

۶۳۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ اَبِيْ هِلَالٍ ابْنِ اُسَامَةَ اَنَّ اَبَا سَلَمَةَ ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَخْبَرَهٗ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُوْا فِي الصَّلٰوةِ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ اَبِيْ رَبِيْعَةَ وَ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ وَّالْوَلِيْدَ بْنَ الْوَلِيْدِ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْاَتَكَ عَلٰى مُضَرَ وَابْعَثْ عَلَيْهِمْ سِنِيْنَ كَسِنِيْ يُوْسُفَ.

۶۳۶: يحيي بن بکير' ليث' خالد بن يزيد' سعيد بن ابي هلال بن اسامه' ابو سلمة بن عبد الرحمٰن' حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي' دَ هغه بيان دے' حضور صلّي الله عليه وسلّم به دعا کښې وئيلے' اے الله' عياش بن ابي ربيعه او سلمه بن هشام او وليد بن وليد له (دَ کفارو دَ ظلم نه) نجات ورکړے. اے الله' کمزوري مسلمانانو له نجات ورکړے. اے الله' خپل ګرفت په (قبيلۀ) مضر سخت کړے. او هغوي دَ حضرت يوسف عليه السّلام په شان قحط کښې اخته کړے.

**بـاب ۳۲۵: مَنِ اخْتَارَ الضَّرْبَ وَالْقَتْلَ وَالْهَوَانَ عَلَى الْكُفْرِ.**

**باب ۳۲۵:** دَ هغه سړي بيان، چه كفر باندې وهلو قتليدلو، او ذلّت له ترجيح ورکړي.

۶۳۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ حُوْشَبِ الطَّآئِفِيُّ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِیْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَلٰثٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْاِيْمَانِ: اَنْ يَّكُوْنَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَحَبُّ اِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَ اَنْ يُّحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهٗ اِلَّا لِلّٰهِ وَ اَنْ يَّكْرَهَ اَنْ يَّعُوْدَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ اَنْ يُّقْذَفَ فِي النَّارِ.

۶۳۷: محمد بن عبد اللّٰه بن خوشب طائفي، عبد الوهاب، ايوب، ابو قلابه، حضرت انس نه روايت كوي، دَ هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، درې خبرې چه کوم سړي كښ بيامندې شي، هغه به دَ ايمان لذت بيامومي. (۱) دا چه اللّٰه او رسول هغه ته دَ ټولو څيزونو نه زيات محبوب وي (۲) او داكه چا سره محبت كوي، نو صرف دَ خدائې د پاره كوي (۳) او دا چه كفر طرف ته ګرځيدل داسې ناخوښه کړي، څنګه چه اور كښ غورځيدل ناخوښوي.

**ف:** اللّٰه پاک دې څمونږ دا درې واړه صفات نصيب کړي. اَللّٰهُمَّ آمين.

۶۳۸: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا عَبَّادٌ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ سَمِعْتُ قَيْسًا سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ زَيْدٍ يَّقُوْلُ لَقَدْ رَاَيْتُنِیْ وَ اِنَّ عُمَرَ مُوْثِقِیَّ عَلَى الْاِسْلَامِ، وَ لَوْ اِنْقَضَّ اَحَدٌ مِّمَّا فَعَلْتُمْ بِعُثْمَانَ كَانَ مَحْقُوْقًا اَنْ يَّنْقَضَّ.

۶۳۸: سعيد بن سليمان، عباد، اسماعيل، قيس، سعيد بن زيد نه روايت كوي، د هغه نه ئې واوريدل، ماليدل، چه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه به زه د، اسلام په وجه تړلم. او اوس حال دا دې كه د، اُحد غر، د هغې په وجه اوچوي، چه تاسو حضرت عثمان سره کړي دي نو هغه په ځائې دي. (يعني د حضرت عثمانؓ شهيد كول ډير عظيم ظلم دې. عارف)

۶۳۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ عَنْ خَبَّابِ ابْنِ الْاَرَتِّ قَالَ شَكَوْنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً لَّهٗ فِیْ ظِلِّ

۶۳۹: مسدد، يحيٰي، اسماعيل، قيس، حباب بن ارت نه روايت كوي. دَ هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د يو څادر تكيه جوړه کړې وه. او دَ كعبې په سوري كښ ناست و. مونږ شكايت اوكه، چه مونږ د پاره ولې مدد نه طلب كوئې. مونږ د پاره دعا

الْكَعْبَةِ فَقُلْنَا اَلَا تَسْتَنْصِرُ لَنَا؟ اَلَا تَدْعُوْ لَنَا؟ فَقَالَ قَدْ كَانَ مَنْ قَبْلَكُمْ يُؤْخَذُ الرَّجُلُ فَيُحْفَرُلَهُ فِي الْاَرْضِ فَيُجْعَلُ فِيْهَا فَيُجَآءُ بِالْمِنْشَارِ فَيُوْضَعُ عَلٰى رَأْسِهٖ فَيُجْعَلُ نِصْفَيْنِ وَ يُمْشَطُ بِاَمْشَاطِ الْحَدِيْدِ مَا دُوْنَ لَحْمِهٖ وَ عَظْمِهٖ فَمَا يَصُدُّهٗ ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهٖ وَاللّٰهِ لَيُتِمَّنَّ هٰذَا الْاَمْرُ حَتّٰى يَسِيْرَ الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَآءَ اِلٰى حَضَرَ مَوْتَ لَا يَخَافُ اِلَّا اللّٰهَ وَالذِّئْبَ عَلٰى غَنَمِهٖ وَ لٰكِنَّكُمْ تَسْتَعْجِلُوْنَ.

ولې نه كوئې حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. تاسو نه مخكښې چه كوم خلق وو، هغوئ به اونيولې شو، زمكه به او كنستلې شوه او هغې كښې به كينولې شو. او آره به پرې د پاسه راښكلې شوه دوه ټكړې به شو. او د اوسپنې گومنزو سره به د هغوئ غوښه او هډو كې خيرلې شو. ليكن دې سلوک هغوي د خپل دين نه منع كولې نه شو، قسم په خدائې، دا دين به تكميل ته رسي تر دې چه يو سور به صنعاء نه حضر موت پورې ځي او د الله نه سِوا به ورته د هيچا نه ويره وي. او چيلو ته به د شرمخانو نه سوا، د بل څيز خطره نه وي. ليكن تاسو د تادئ نه كار اخلئې.

## باب ۳۲۶: فِيْ بَيْعِ الْمُكْرَهِ وَ نَحْوِهٖ فِي الْحَقِّ وَ غَيْرِهٖ.

باب ۳۲۶: د مجبور وغيره د خپل حقوق خرڅولو بيان.

● ۶۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ اِذَا خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنْطَلِقُوْا اِلٰى يَهُوْدَ فَخَرَجْنَا مَعَهٗ حَتّٰى جِئْنَا بَيْتَ الْمِدْرَاسِ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَادَاهُمْ يَا مَعْشَرَ يَهُوْدَ اَسْلِمُوْا تَسْلَمُوْا: فَقَالُوْا قَدْ بَلَّغْتَ يَا اَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ

● ۶۴۰: عبد العزيز بن عبد الله، ليث، سعيد مقبري، خپل پلار نه، هغه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي د هغه بيان دې، مونږ خلق يو جماعت كښې ناست وو، مونږ پله رسول الله صلّي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو، او وې فرمائيل. يهودو طرف ته راځئې، مونږ حضور صلّي الله عليه وسلّم سره روان شو، تر دې چه مونږ خلق بيت المدراس ته اورسيدو. نبي صلّي الله عله وسلّم اودريدلو، او هغوئ ته ئې آواز اوكه، اې د يهودو ډلې، تاسو اسلام راوړئې. محفوظ به شئې. هغوئ اووې، اې ابو القاسم (صلعم) تاسو حكم راورسولو، حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. خما مقصد هم دا وو. بيا په دويم ځل حضور صلّي الله عليه وسلّم دغه كلمات او فرمائيل، هغې خلقو

ذٰلِكَ اُرِيْدُ، ثُمَّ قَالَهَا الثَّانِيَةَ فَقَالُوْا قَدْ بَلَّغْتَ يَا اَبَا الْقَاسِمِ، ثُمَّ قَالَ الثَّالِثَةَ فَقَالَ اعْلَمُوْا اَنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ اِنِّيْ اُرِيْدُ اَنْ اُجْلِيَكُمْ فَمَنْ وَجَدَ مِنْكُمْ بِمَالِهٖ شَيْئًا فَلْيَبِعْهُ وَ اِلَّا فَاعْلَمُوْا اِنَّمَا الْاَرْضُ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ.

اووړے (اے ابو القاسمؐ) تاسو، راورسولو. بيا په دريم ځل حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو پوهه شئ چه زمکه د، اللّٰه او رسول ده. زه غواړم چه تاسو جلاوطن کړم، تاسو کښې چه چاسره مال وي، هغه دې خرڅ کړي. کني ياد ساتئ، چه زمکه د، اللّٰه او رسول ده.

## بَابُ ۳۲۷: لَا يَجُوْزُ نِكَاحُ الْمُكْرَهِ وَ لَا تُكْرِهُوْا فَتَيَاتِكُمْ عَلَى الْبِغَآءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ مَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ.

## باب ۳۲۷: دَ مجبور نکاح جائزه نه ده.

او تاسو خپلے وينزے، که هغوي پاک دامنے اوسيدل غواړي، په دے وجه په زنا، مه مجبوروئے، چه د، دنياوي ژوند سامان برابر کړئے. او کوم سړے چه هغوئ مجبورے کړي، نو اللّٰه تعالٰي دَ هغوئ دَ مجبورولو نه پس بخښونکے مهربانه دے.

۶۴۱ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ قَزَعَةَ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ مُجَمِّعِ ابْنَيْ يَزِيْدَ ابْنِ جَارِيَةَ الْاَنْصَارِيِّ عَنْ خَنْسَآءَ بِنْتِ خِذَامٍ الْاَنْصَارِيَّةِ اَنَّ اَبَاهَا زَوَّجَهَا وَ هِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذٰلِكَ فَاَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ نِكَاحَهَا.

۶۴۱ : يحيٰي بن قزعه، مالک، عبد الرحمٰن بن قاسم، قاسم، عبد الرحمٰن او مجمع بن زيد بن جاريه انصاري، خنساء بنت خزام انصاريه نه روايت کوي، دَ خنساء پلار دَ هغے نکاح اوکړله حالانکه هغه ثيبه وه. دَ هغے دا، واده ناخوښه وو، نو هغه نبي عليه السلام له دے باره کښے راغله نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د هغے نکاح منسوخ کړله.

۶۴۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ اَبِيْ عَمْرٍو وَ هُوَ ذَكْوَانُ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يُسْتَاْمَرُ النِّسَآءُ فِيْ اَبْضَاعِهِنَّ؟ قَالَ نَعَمْ، قُلْتُ

۶۴۲ : محمد بن يوسف، سفيان ابن جريج، ابن ابي مليکه، ابو عمر ذکوان، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. دَ هغے بيان دے. ما عرض اوکه، يا رسول، آيا د ښځو نه د هغوئ د، واده متعلق اجازت اخستل پکار دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل، او. ما اووے، چه باکره (پيغلے) نه اجازت اخلي نو هغه شرم محسوسوي.

فَاِنَّ الْبِكْرَ تُسْتَاْمَرُ فَتَسْتَحِيُ فَتَسْكُتُ قَالَ: سُكَاتُهَا اِذْنُهَا.

او خاموش وي حضورؐ او فرمائيل: د هغې خاموشي اجازت دې.

**باب ۳۲۸: اِذَآ اُكْرِهَ حَتّٰى وَهَبَ عَبْدًا اَوْ بَاعَهُ لَمْ يَجُزْ، وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ فَاِنْ نَذَرَ الْمُشْتَرِيُ فِيْهِ نَذْرًا فَهُوَ جَآئِزٌ بِزَعْمِهٖ وَ كَذٰلِكَ اِنْ دَبَّرَهٗ.**

**باب ۳۲۸:** هر كله چه يو سړې مجبور كړې شي، ترد دې چه هغه چاله غلام وركړي، يا خرڅ كړي نو جائز نه دي. او بعضې اووې، كه خريدار هغې كښې نذر مني، نو د هغوئ خيال كښې جائز دي. دغه شان كه هغه مدبر كړي (نو جائز دي).

ف: مُدَبّر: هغه غلام يا وينزه چه دَ هغې آقا د هغې آزادي په خپل مرګ موقوف كړې وي.

۶۴۳: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ دَبَّرَ مَمْلُوْكًا وَّ لَمْ يَكُنْ لَّهٗ مَالٌ غَيْرُهٗ فَبَلَغَ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ يَّشْتَرِيْهِ مِنِّيْ؟ فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ بْنُ النَّحَّامِ بِثَمَانِ مِائَةِ دِرْهَمٍ. قَالَ فَسَمِعْتُ جَابِرًا يَقُوْلُ عَبْدًا قِبْطِيًّا مَاتَ عَامَ اَوَّلٍ.

۶۴۳: ابو نعمان، حماد بن زيد، عمرو بن دينار، حضرت جابر نه روايت كوي. دَ هغه بيان دې. انصارو كښې يو سړي خپل غلام مُدَبّر كه. او هغه سره د هغه نه سوا بل هيڅ مال نه وو. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته چه د دې پته اولګيده، نو وې فرمائيل دې مانه څوك په بيع آخلي. نعيم بن نحام هغه په اته سوه (۸۰۰) درهم واخستلو. دَ عمرو بيان دې. ما دَ حضرت جابر رضي اللّٰه عنه نه واوريدل، هغه قبطي غلام وو، به وړمبني كال مړ شو.

**باب ۳۲۹: مِنَ الْاِكْرَاهِ كَرْهٌ وَّ كُرْهٌ وَّاحِدٌ.**

**باب ۳۲۹:** اِكراه نه كُرْهٌ او كَرْهٌ يو معنٰي كښې راځي.

۶۴۴: حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا اَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ سُلَيْمَانُ بْنُ فَيْرُوْزَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ الشَّيْبَانِيُّ وَ حَدَّثَنِيْ عَطَآءٌ اَبُو الْحَسَنِ السَّوَآئِيُّ وَ لَا اَظُنُّهٗ اِلَّا ذَكَرَهٗ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ

۶۴۴: حسين بن منصور، اسباط بن محمد، شيباني، سليمان بن فيروز، عكرمه، حضرت ابن عباس، شيباني اووې ماته عطاء ابو الحسن سوائي بيان اوكه، خما ګمان دې، چه هغه صرف حضرت ابن عباس رضي اللّٰه نه روايت كړې دې، چه هغه د، ايت يا ايّها الذين امنوا لا يحلّ

رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا. يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا يَحِلُّ لَكُمۡ اَنۡ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرۡهًا الۡاٰيَةِ قَالَ كَانُوۡا اِذَا مَاتَ الرَّجُلُ كَانَ اَوۡلِيَآؤُهٗ اَحَقُّ بِامۡرَاَتِهٖ اِنۡ شَآءَ بَعۡضُهُمۡ تَزَوَّجَهَا وَ اِنۡ شَآءُوۡا زَوَّجُوۡهَا وَ اِنۡ شَآءُوۡا لَمۡ يُزَوِّجُوۡهَا فَهُمۡ اَحَقُّ بِهَا مِنۡ اَهۡلِهَا فَنَزَلَتۡ هٰذِهِ الۡاٰيَةُ بِذٰلِكَ.

لـكـم ان تـرثـو النّسـاء كرهـا تـفسير بيـان كـه، ورمبنـے دا، دستور وو، چـه څـوک سړے بـه مړ شو، نـو دَ هغـه ولـي بـه دَ هغـه د ښـځـے زيـات مستحق وو، کـه غوښتـل به ئے، نو واده به ئے کړه، او که غوښتل بـه ئے نـو نـه بـه ئے واده کـولـه. دَ خاوند ولي به دَ هغے زيـات مستـحـق وو، نـو دا، ايـت د دے متعـلق نـازل شولو.

بـاب ۳۳۰: اِذَا اسۡتُكۡرِهَتِ الۡمَرۡاَةُ عَلَى الزِّنَا فَلَاحَدَّ عَلَيۡهَا فِيۡ قَوۡلِهٖ تَعَالٰى وَ مَنۡ يُّكۡرِهۡهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنۡۢ بَعۡدِ اِكۡرَاهِهِنَّ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ. وَ قَالَ اللَّيۡثُ حَدَّثَنِيۡ نَافِعٌ اِنَّ صَفِيَّةَ ابۡنَةَ اَبِيۡ عُبَيۡدٍ اَخۡبَرَتۡهُ اَنَّ عَبۡدًا مِّنۡ رَّقِيۡقِ الۡاِمَارَةِ وَقَعَ عَلٰى وَلِيۡدَةٍ مِنَ الۡخُمُسِ فَاسۡتَكۡرَهَهَا حَتّٰى اقۡتَضَّهَا فَجَلَدَهٗ عُمَرُ الۡحَدَّ وَ نَفَاهُ وَ لَمۡ يَجۡلِدِ الۡوَلِيۡدَةَ مِنۡ اَجۡلِ اَنَّهُ اسۡتَكۡرَهَهَا قَالَ الزُّهۡرِيّ فِي الۡاَمَةِ الۡبِكۡرِ يَفۡتَرِعُهَا الۡحُرُّ يُقِيۡمُ ذٰلِكَ الۡحُكۡمُ مِنَ الۡاَمَةِ الۡعَذۡرَآءِ بِقَدۡرِ قِيۡمَتِهَا وَ يُجۡلَدُ وَ لَيۡسَ فِي الۡاَمَةِ الثَّيِّبِ فِيۡ قَضَآءِ الۡاَئِمَّةِ غُرۡمٌ وَ لٰكِنۡ عَلَيۡهِ الۡحَدُّ.

باب ۳۳۰: کـه يـوه ښـځه په زنا مجبوره کړے شـوه، نـو په هغے حد نشته. ځکه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل چـا چـه هـغـوئ مـجبورے کړے، نو اللّٰه تعالٰي دَ هغوئ دَ جبر کولو نه پس بخښونکے مهربانه دے. او ليث اووے، مـاتـه نافع بيان اوکه. صفيئے بنت ابي عبيد بيان اوکه، د، امـارت غـلامانو کښ يو غلام دَ خمس يوے وينزے سره صـحبت اوکړلو. په هغے ئے زبردستي اوکړه، تر دے چه دَ هـغـے بـکارت (پيغلتوب) زائل شولو، نو حضرت عمر رضـي الـلّٰـه عنه په هغه حد اولږولو. او جلا وطن ئے که. او هـغـه ويـنـزه ئـے پـه دُرّو اونـه وهله، په دے سبب چه په هغے زبردستي شوے وه. او د، زهري بيان دے. که پيغلے وينزے سره ازاد سړے جماع اوکړي، نو حاکم به دَ هغے پيـغلے وينزے دَ قيمت د کمي د، اعتبار نه قيمت وصول کـړي. او هـغـه بـه پـه دُرّو وهي. او د، ثيبه (واده شوے) ويـنـزے پـه صورت کښ د، امامانو حکم تاوان نشته بلکه په هغه حد دے.

۶۴۵: حَدَّثَنَا اَبُو الۡيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيۡبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الۡاَعۡرَجِ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَ قَالَ قَالَ

۶۴۵: ابو اليمان، شعيب الزناد، اعرج، ابو هريرهؓ نـه روايت کـوي، رسـول الـلّٰـه صـلّي اللّٰـه عليـه وسلّم او فـرمـائيـل. ابـراهيـم عـليـه السلام بي بي سارهؓ سره

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَاجَرَ اِبْرَاهِيْمُ بِسَارَةَ دَخَلَ بِهَا قَرْيَةً فِيْهَا مَلِكٌ مِّنَ الْمُلُوْكِ او جَبَّارٌ مِّنَ الْجَبَابِرَةِ فَاَرْسَلَ اِلَيْهِ اَنْ اَرْسِلْ اِلَيَّ بِهَا فَاَرْسَلَ بِهَا فَقَامَ اِلَيْهَا فَقَامَتْ تَوَضَّأُ وَ تُصَلِّيْ فَقَالَتْ: اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتُ اٰمَنْتُ بِكَ وَ بِرَسُوْلِكَ فَلَا تُسَلِّطْ عَلَيَّ الْكَافِرَ فَغُطَّ حَتّٰى رَكَضَ بِرِجْلِهِ.

هجرت اوکه. او يوې آبادي کښې داخل شو، هلته د بادشاهانو نه يو بادشاه يا، د جابرانونه يو جابر وو. هغه اووې، سارهٔ ماته راوليږه. نو هغه ئې ورته اوليږله. هغه بادشاه سارهٔ له راغې. دا، اودريده. اودس ئې اوکه، مونځ ئې اوکه، او دعائې اوکړله، يا اللّٰه، که زه په تا او ستا په رسول ايمان لرم، نو په ما کافر مسلّط مه کړې، هغه (کافر) خرړا شروع کړه، تر دې چه پوندې ئې زمکې سره مږل شروع کړل. (يعني تکليف کښې او غرخيدلو).

**بَاب ۱۳۳۱: يَمِيْنِ الرَّجُلِ لِصَاحِبِهِ اِنَّهُ اَخُوْهُ اِذَا خَافَ عَلَيْهِ الْقَتْلَ اَوْ نَحْوِهِ وَ كَذٰلِكَ كُلُّ مُكْرَهٍ يَّخَافُ فَاِنَّهُ يَذُبُّ عَنْهُ الْمَظَالِمَ وَ يُقَاتِلُ دُوْنَهُ وَ لَا يَخْذُلُهُ، فَاِنْ قَاتَلَ دُوْنَ الْمَظْلُوْمِ فَلَا قَوَدَ عَلَيْهِ وَ لَا قِصَاصَ، وَ اِنْ قِيْلَ لَهُ لَتَشْرَبَنَّ الْخَمْرَ اَوْ لَتَاْكُلَنَّ الْمَيْتَةَ اَوْ لَتَبِيْعَنَّ عَبْدَكَ اَوْ تُقِرُّ بِدَيْنٍ، اَوْ تَهَبُ هِبَةً وَ تَحُلُّ عُقْدَةً اَوْ لَتَقْتُلَنَّ اَبَاكَ اَوْ اَخَاكَ فِي الْاِسْلَامِ وَسِعَهُ ذٰلِكَ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُسْلِمُ اَخُوْ الْمُسْلِمِ. وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ: لَوْ قِيْلَ لَهُ لَتَشْرَبَنَّ الْخَمْرَ اَوْ لَتَاْكُلَنَّ الْمَيْتَةَ اَوْ لَنَقْتُلَنَّ اِبْنَكَ اَوْ اَبَاكَ اَوْ ذَا**

**باب ۱۳۳۱: دَ يو کس، دَ خپل ملګري متعلق هر** کله چه دَ هغه دَ قتلولو، يا دغه شان دَ بل څه څيز خطره وي، دَ قسم خوړلو بيان، چه هغه څما ورور دې، او دغه شان هر هغه سړې چه پړې زبردستي اوشي، او خائف وي، ځکه چه هغه مظالم دَ هغه نه دفع کوي. او دَ هغه د طرف نه جنګ کوي. او هغه بې اسرې نه پريږدي، که دَ مظلوم حمايت کښې اوجنګيږي، نو په هغه قصاص يا خون بها نشته. که هغه ته او ونيلې شي، چه ته به شراب څکې. يا مرداره به خورې، يا ته به خپل غلام خرڅوې، يا ته به د، قرض اقرار کوې، يا ته به هبه کوې، يا د څه د بل څه عقد قائمولو د پاره ورته اوونيلې شي، کني ستا پلار يا اسلامي ورور به مونږ قتل کړو نو هغه ته د دې اجازت دې، ځکه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې دي. چه مسلمان دَ مسلمان ورور دې. او بعضې خلقو اووې، که هغه ته اوونيلې شي، چه ته به شراب څکې، يا مرداره به خورې، کني ستا پلار يا څوې يا څوک قريبي رشته دار به مونږ قتل کړو. دا هغه د پاره

رَحِمٍ مُحَرَّمٍ لَمْ يَسَعْهُ لِاَنَّ هٰذَا لَيْسَ بِمُضْطَرٍّ ثُمَّ نَاقَضَ فَقَالَ اِنْ قِيْلَ لَهُ لَنَقْتُلَنَّ اَبَاكَ اَوْ اِبْنَكَ اَوْ لَتَبِيْعَنَّ هٰذَا الْعَبْدَ اَوْ تَقِرُّ بِدَيْنٍ اَوْ تَهَبُ يَلْزَمُهُ فِي الْقِيَاسِ، وَ لٰكِنَّا نَسْتَحْسِنُ وَ نَقُوْلُ الْبَيْعُ وَالْهِبَةُ وَ كُلُّ عُقْدَةٍ فِيْ ذٰلِكَ بَاطِلٌ، فَرَّقُوْا بَيْنَ كُلِّ ذِيْ رَحِمٍ مُحَرَّمٍ وَغَيْرِهٖ بِغَيْرِ كِتَابٍ وَ لَا سُنَّةٍ. وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ لِاِمْرَاتِهٖ هٰذِهٖ اُخْتِيْ وَ ذٰلِكَ فِي اللّٰهِ وَ قَالَ النَّخْعِيُّ اِذَا كَانَ الْمُسْتَحْلِفُ ظَالِمًا فَنِيَّةُ الْحَالِفِ وَ اِنْ كَانَ مَظْلُوْمًا فَنِيَّةُ الْمُسْتَحْلِفِ.

جائز نه دي، ځکه چه هغه مجبور نه دے. بيا د دے قول خلاف دَ هغوي دا قول دے. که هغه ته اووئيلے شي چه ستا پلار يا خوئے به قتل کړو، کني ته دا غلام خرڅ کړه يا د، قرض اقرار اوکړه يا، هبه اوکړه، نو د قياس مطابق دا هغه له لازم دي. ليکن مونږ بهتر ګنړو او وايو، چه بيع او، هبه او ټول عقود دے صورت کښ باطل دي. هغوئ دَ قريبي رشته دارو او د هغوي نه دَ علاوه خلقو مينځ کښ بغير دَ کتاب او سنت نه تفريق کړے دے، حالانکه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، حضرت ابراهيم عليه السّلام دَ خپلے بي بي متعلق وئيلے وو، دا ځما خور ده، او دا هغه د، اللّٰه د، رشتے دَ لحاظ نه فرمائيلے وو. او نخعي اووے، هر کله چه قسم اخستونکے ظالم وي، نو دَ قسم خوړونکي دَ نيت او که مظلوم وي، نو دَ قسم اخستونکي دَ نيت به اعتبار وي.

۶۴۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَالِمًا اَخْبَرَهُ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اَلْمُسْلِمُ اَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَ لَا يُسْلِمُهُ وَ مَنْ كَانَ فِيْ حَاجَةِ اَخِيْهِ كَانَ اللّٰهُ فِيْ حَاجَتِهٖ.

۶۴۶: يحيي بن بکير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سالم، عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل مسلمان دَ مسلمان ورور دے، نه دے په هغه ظلم کوي، او نه دے هغه ظالم ته حواله کوي او کوم سړے چه دَ خپل ورور حاجت روائي وي کښ نو اللّٰه تعالٰي دَ هغه حاجت پوره کولو کښ (مشغول) وي.

۶۴۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ

۶۴۷: محمد بن عبد الرحيم، سعيد بن سليمان، هشيم، عبيد اللّٰه بن ابي بکر بن انس حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه

اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اُنْصُرْ اَخَاكَ ظَالِمًا اَوْ مَظْلُوْمًا فَقَالَ رَجُلٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْصُرُهُ اِذَا كَانَ مَظْلُوْمًا اَفَرَاَيْتَ اِذَا كَانَ ظَالِمًا كَيْفَ اَنْصُرُهُ: قَالَ تَحْجُزُهُ اَوْ تَمْنَعُهُ مِنَ الظُّلْمِ فَاِنَّ ذٰلِكَ نَصْرُهُ.

وسلّم اوفرمائيل. د خپل ظالم يا مظلوم وړور مدد كوه. يو سړي عرض اوكړو، اے د، اللّٰه رسوله، خوګ چه مظلوم وي زه د هغه مدد كوم، ليكن هر كله چه يو سړے ظالم وي نو اوفرمائے، زه دَ هغه څنګه مدد اوكړم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ته هغه ظلم نه منع كه دغه دَ هغه مدد دے.

# كِتَابُ الْحِيَلِ

# دَ، حيلو بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

**باب ۳۳۲: فِيْ تَرْكِ الْحِيَلِ وَ اَنَّ لِكُلِّ امْرِئٍ مَّا نَوٰى فِي الْاَيْمَانِ وَ غَيْرِهَا.**

**باب ۳۳۲:** دَ حيلو د، پريښودو بيان، او دا چه هر سړي د پاره هغه دي، چه هغه ئے قسمونو وغيره كښې نيت كوي.

۶۴۸: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَّحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَخْطُبُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: يَـٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ وَ اِنَّمَا لِاَمْرِئٍ مَّا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهُ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ مَنْ هَاجَرَ اِلَى الدُّنْيَا يُصِيْبُهَا اَوْ امْرَاَةٍ يَّتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ.

۶۴۸: ابو النعمان، حماد بن يزيد، يحيٰي بن سعيد، محمد بن ابراهيم، علقمه بن وقاص نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. ما دَ عمرؓ بن خطاب نه خطبه كښې واوريدل (وائي) مَا د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، اَے خلقو، اعمال په نيتونو موقوف دي، او هر سړي ته به هغه رسي چه د هغے نيت اوكړي. دَ كوم سړي هجرت چه اللّٰه او دَ هغه د، رسولؐ طرف ته وي، نو دَ هغه هجرت به اللّٰه او دَ هغه رسول طرف ته وي. او چا چه دنيا د پاره هجرت كړے وي، چه هغه حاصله كړي، يا يوے ښځے طرف ته وي، چه هغے سره واده اوكړي، نو دَ هغه هجرت به هغے څيز د پاره وي. څه د پاره چه ئے هجرت كړے وي.

**باب ۳۳۳: فِي الصَّلٰوةِ.**

**باب ۳۳۳:** مانځه كښې د، حيلے كولو بيان.

۶۴۹ : حَدَّثَنِیْ اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ صَلٰوةَ اَحَدِكُمْ اِذَآ اَحْدَثَ حَتّٰى يَتَوَضَّأَ.

۶۴۹ : اسحاق، عبد الرزاق، معمر، همام حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، اللّٰه تعالىٰ تاسو كښ دَ يو كس مونځ نه قبلوي، تر دے چه اودس اوكړي.

باب ۳۳۴: فِی الزَّكٰوةِ وَ اَنْ لَّا يُفَرَّقَ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ وَّ لَا يُجْمَعَ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ.

باب ۳۳۴: زكٰوة كښ دَ، حيلے بيان، او دا چه دَ صدقے دَ خوف نه دے يو ځائے څيزونه متفرق كوي نه، او متفرق څيزونه دے يو ځائے كوي نه.

۶۵۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِیُّ حَدَّثَنَا اَبِیْ حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَنَسٍؓ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهٗ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ كَتَبَ لَهٗ فَرِيْضَةَ الصَّدَقَةِ الَّتِیْ فَرَضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ وَّ لَا يُفَرَّقَ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ.

۶۵۰ : محمد بن عبد اللّٰه انصاري، عبد الله انصاري، ثمامه عبد اللّٰه بن انس، حضرت انسؓ نه روايت كوي. هغه اووے حضرت ابوبكرؓ هغه ته دَ مفروضه زكٰوة متعلق اوليكل. كوم چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم مقرر كړے وو (منجمله دَ هغے نه داهم وو، چه) د صدقے دَ خوف نه دے متفرق څيزونه يو ځائے كولے نه شي، او نه دے يو ځائے څيزونه متفرق كولے شي.[1]

[1]. په بعضو رواياتو كښے د "غَنَم" او "اِبِل" اضافه هم شته. يعني د چيلئ يا اوښ نه زكوٰة اخستلو وخت كښے به د هغے سابقه پوزيشن باقي لرلے كيږي. په اصل كښے كوم حساب سره چه صدقے اخستے كيږي دَ هغے تر مخه بعضے اوقات كه چرے څناور د مختلفو خلقو مِلک وي او بيل بيل اوسيږي نو په بعضو صورتونو كښے زكوٰة په هغوئ باندے زيات كيدے شي او د هغے يوځائے كولو سره د زكوٰة په مقدار كښے كمے كيدے شي. ددے برخلاف بعضے اوقات په يوځائے والي كښے زكوٰة كښے اضافه اوشي او متفرق كولو كښے كمے كيدے شي. په حديث كښے ددے نه بنديز شوے دے چه څه داسے حيله دِ اختيار نه كړے شي كومے سره چه په زكات كښے كموالے او دَ واجبي نه بچت مقصود وي. دا صرف څناور سره مخصوص نه ده، په نورو مالونو كښے هم دا صورت كيدے شي.

۶۵۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ اَبِیْ سُهَيْلٍ

۶۵۱ : قتيبه، اِسماعيل بن جعفر، ابو سهيل، دَ هغه پلار، طلحه بن عبيد اللّٰه نه روايت كوي. يو اعرابي د،

عَنْ اَبِیْهِ عَنْ طَلْحَةَ ابْنِ عُبَیْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَعْرَابِیًّا جَآءَ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثَائِرَ الرَّأْسِ فَقَالَ: یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَخْبِرْنِیْ مَاذَا فَرَضَ اللّٰهُ عَلَیَّ مِنَ الصَّلٰوةِ فَقَالَ الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ اِلَّا اَنْ تَطَوَّعَ شَیْئًا فَقَالَ اَخْبِرْنِیْ بِمَا فَرَضَ عَلَیَّ مِنَ الصِّیَامِ. فَقَالَ شَهْرُ رَمَضَانَ اِلَّا اَنْ تَطَوَّعَ شَیْئًا. قَالَ اَخْبِرْنِیْ بِمَا فَرَضَ اللّٰهُ عَلَیَّ مِنَ الزَّکٰوةِ قَالَ فَاَخْبَرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ شَرَآئِعَ الْاِسْلَامِ. قَالَ وَالَّذِیْ اَکْرَمَكَ لَا اَتَطَوَّعُ شَیْئًا وَ لَا اَنْقُصُ مِمَّا فَرَضَ اللّٰهُ عَلَیَّ شَیْئًا، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَفْلَحَ اِنْ صَدَقَ اَوْ دَخَلَ الْجَنَّةَ اِنْ صَدَقَ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ فِیْ عِشْرِیْنَ وَ مِائَةِ بَعِیْرٍ حِقَّتَانِ فَاِنْ اَهْلَکَهَا مُتَعَمِّدًا اَوْ وَهَبَهَا اَوْ احْتَالَ فِیْهَا فِرَارًا مِّنَ الزَّکٰوةِ فَلَا شَیْءَ عَلَیْهِ.

رسول الله صلّي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، عرض ئې اوکه، یا رسول الله ماته اوښائې، چه الله تعالٰي په ما څومره مونځونه فرض کړې دي حضور صلّي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل پنځه وخته مونځونه، خو دا چه ته دَ هغې نه علاوه نفل خوښې سره اوکړې. بیائې اووې، ماته د، روژو متعلق اوښائې، چه په ما فرض دي، حضور صلّي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل دَ رمضان روژې، خو دا چه ته د دې نه علاوه (نفلي روژې) خپلې خوښې سره اونیسې. هغه اووې ماته دَ زکٰوة متعلق اوښائې، چه الله تعالٰي په ما فرض کړې دې رسول الله صلّي الله علیه وسلّم هغه ته د، اسلام خبرې اوښودلې، نو هغه اووې، په هغه ذات م دې قسم وي، چه تاسوَ ته ئې عزت درکړې دې زۀ به نه دې نه زیات اوکړم، او نه به دې کښې کمې اوکړم، کوم چه الله په ما فرض کړې دي. حضور صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دا سړې کامیاب شو، که ریښتنې وي. یا جنت کښې داخل شو که ریښتنې وي. او بعضې خلقو اووې، شپږ شلې (۱۲۰) اوښانو کښې به دوه حِقّې ورکوي، که هغه دا قصداً هلاک کړي یا چاله ئې ورکړي، یا زکٰوة نه بچ کیدو د پاره څه حیله اوکړي، نو په هغه هیڅ نشته.

۶۵۲ : حَدَّثَنِیْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ؟ یَکُوْنُ کَنْزُ اَحَدِکُمْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ شُجَاعًا

۶۵۲ : اسحاق، عبد الرزاق، معمر، همام، حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، تاسو کښې به دَ یو سړي خزانه دَ ږرګ مار (اژدها) په شان جوړشي. د هغې مالک به دَ هغې نه تښتي. او هغه اژدها به هغه پسې وي. او ورته به وائي، زۀ ستا هغه خزانه یم. حضور صلّي الله

اَقُرَعَ يَفِرُّ مِنْهُ صَاحِبُهُ فَيَطْلُبُهُ وَ يَقُوْلُ اَنَا كَنْزُكَ قَالَ وَاللّٰهِ لَنْ يَّزَالَ يَطْلُبُهُ حَتّٰى يَبْسُطَ يَدَهُ فَيُلْقِمُهَا فَاهُ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا مَا رَبُّ النَّعَمِ لَمْ يُعْطِ حَقَّهَا تُسَلَّطَ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَخْبِطُ وَجْهَهُ بِاَخْفَافِهَا وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ فِيْ رَجُلٍ لَّهُ اِبِلٌ فَخَافَ اَنْ تَجِبَ عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ فَبَاعَهَا بِاِبِلٍ مِثْلِهَا اَوْ بِغَنَمٍ اَوْ بِبَقَرٍ اَوْ بِدَرَاهِمَ فِرَارًا مِّنَ الصَّدَقَةِ بِيَوْمٍ اِحْتِيَالًا فَلَا بَأْسَ عَلَيْهِ وَ هُوَ يَقُوْلُ اِنْ زَكّٰى اِبِلَهُ قَبْلَ اَنْ يَّحُوْلَ الْحَوْلُ بِيَوْمٍ اَوْ بِسَنَةٍ جَازَتْ عَنْهُ.

عليه وسلّم اوفرمائيل قسم په خدائے' هغه به برابر هغه لټوي' تر دے چه هغه سړے به خپل لاس خور کړي' او هغه اژدها به هغه خپلے خوله کښ نوړے (لقمه) جوړه کړي. او دَ څناورو مالک چه هغه دَ هغوئ حق نه وي ورکړے' دَ قيامت په ورځ به په هغه مسلّط شي' چه دَ هغوئ مخونه به په خپلو سمونو وهي. او بعضے خلقو اووے' د هغه سړي متعلق چه هغه سره اوښان وي' او هغه سره ويره وي' چه په هغه به زکٰوة واجب شي' په دے وجه هغه دَ اوښانو يا چيلو يا غواګانو يا دَ درهمونو په عوض' زکٰوة نه بچ کيدو د پاره حيلو کولو سره يو ورځ مخکښ خرڅ کړي' نو په هغه هيڅ حرج نشته' حالانکه هغه د دے هم قائل دے' که د خپلو اوښانو زکٰوة يو کال تيريدو نه يو ورځ يا يو کال مخکښ يو سړے ورکړي' نو دا جائز دي.

۶۵۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ اِسْتَفْتٰى سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ الْاَنْصَارِيُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَذْرٍ كَانَ عَلٰى اُمِّهِ تُوُفِّيَتْ قَبْلَ اَنْ تَقْضِيَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اقْضِهِ عَنْهَا' قَالَ بَعْضُ النَّاسِ اِذَا بَلَغَتِ الْاِبِلُ عِشْرِيْنَ فَفِيْهَا اَرْبَعُ شِيَاهٍ' فَاِنْ وَّهَبَهَا قَبْلَ الْحَوْلِ اَوْ بَاعَهَا فِرَارًا وَّ اِحْتِيَالًا لِّاِسْقَاطِ الزَّكٰوةِ فَلَا شَيْءَ

۶۵۳ : قتيبه بن سعيد' ليث' ابن شهاب' عبيد الله بن عتبه' حضرت عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' سعد بن عباده انصاري د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دَ هغے نذر متعلق مسئله اوپوښتله چه دَ هغه د مور په ذمه واجب وو. او هغه دَ هغے د' ادا کولو نه مخکښ مړه شو' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' د هغے د طرف نه ئے ادا کړه. او بعضے خلقو اووے. که د اوښانو تعداد شل (۲۰) شي' نو دے صورت کښ څلور چيلئے دي' نو د' يو کال پوره کيدو نه مخکښ د' زکٰوة د ساقط کيدو د پاره حيله کولو سره ئے چاته هبه کړي' يا خرڅ ئے کړي' نو په هغه هيڅ نشته. دغه شان

عَلَيْهِ وَ كَذَالِكَ اِنْ اَتْلَفَهَا فَمَاتَ فَلَا شَيْءَ فِيْ مَالِهِ.

كه هغه ضائع كړي، او مړ شي نو د هغه مال كښې هيڅ نشته.

## باب ۳۳۵:

## باب ۳۳۵: (دا باب بې عنوانه دې).

۶۵۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الشِّغَارِ، قُلْتُ لِنَافِعٍ: مَا الشِّغَارُ؟ قَالَ يَنْكِحُ ابْنَةَ الرَّجُلِ وَ يُنْكِحُهُ ابْنَتَهُ بِغَيْرِ صَدَاقٍ وَ يَنْكِحُ اُخْتَ الرَّجُلِ وَ يَنْكِحُهُ اُخْتَهُ بِغَيْرِ صِدَاقٍ. وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ اِنْ اِحْتَالَ حَتّٰى تَزَوَّجَ عَلَى الشِّغَارِ فَهُوَ جَآئِزٌ وَالشَّرْطُ بَاطِلٌ وَّ قَالَ فِي الْمُتْعَةِ النِّكَاحُ فَاسِدٌ وَّالشَّرْطُ بَاطِلٌ وَ قَالَ بَعْضُهُمُ الْمُتْعَةُ وَالشِّغَارُ جَآئِزٌ وَالشَّرْطُ بَاطِلٌ.

۶۵۴: مسدد، يحيٰي بن سعيد، عبيد اللّٰه، نافع، حضرت عبد اللّٰه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ شغار نه منع فرمائيلې ده، ما ذ نافع نه تپوس اوكه. شغار څه ته وائي. هغه اووې. كه يو سړې د چا لور سره په دې شرط نكاح اوكړي. چه هغه به ذ خپلې لور نكاح هغه سره بغير مهرنه اوكړي او كه يو سړې ذ چا خور سره نكاح په دې شرط اوكړي، چه هغه به د خپلې خور نكاح هغه سره بغير مَهر نه اوكړي او بعضې خلقو وئيلې دي. كه يو سړې حيله كولو سره نكاح شغار اوكړي، نو دا جائز دي ليكن شرط باطل دې 'و' د' متعه متعلق وئيلې دي، چه نكاح فاسد ده، او شرط باطل دې. او دوي كښې بعضو اووې، چه متعه او شغار جائز دي، او شرط باطل دې.

۶۵۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنِ الْحَسَنِ وَ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنَيْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ اَبِيْهِمَا اَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قِيْلَ لَهُ اِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ لَا يَرٰى بِمُتْعَةِ النِّسَآءِ بَاْسًا فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْهَا يَوْمَ خَيْبَرَ وَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاِنْسِيَّةِ: وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ

۶۵۵: مسدد، يحيٰي، عبيد اللّٰه بن عمر، زهري، حسن او عبد اللّٰه بن محمد بن علي، حضرت علي رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه ته چا بيان اوكه، چه حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه ښځو سره متعه كولو كښې څه حرج نه گنړي. نو هغه اووې رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د دې نه او د، كورنو خرونو ذ غوښې خوړلو نه د، خيبر په ورځ منع فرمائيلې وه. او بعضې خلقو وئيلې دي. كه حيله جوړې اوكړي، تر دې چه متعه اوكړي نو

إِنِ احْتَالَ حَتَّى تَمَتَّعَ فَالنِّكَاحُ فَاسِدٌ وَ قَالَ الْبَعْضُ النِّكَاحُ جَائِزٌ وَالشَّرْطُ بَاطِلٌ.

نكاح فاسده ده. او دوي كښې بعضو ويلي دي، چه نكاح جائز ده، او شرط باطل دے.

**بـاب ۳۳۶: مَا يُكْرَهُ مِنَ الإِحْتِيَالِ فِي الْبُيُوعِ، وَ لَا يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُمْنَعَ بِهٖ فَضْلُ الْكَلَاءِ.**

**بـاب ۳۳۶: خريد و فروخت (اخستلو خرڅولو) كښې ذ' حيله جوړولي د' كراهت بيان او زائد اُوبو نه دے په دے نه منع كوي.**

۶۵۶ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، لَا يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُمْنَعَ بِهٖ فَضْلُ الْكَلَاءِ.

۶۵۶ : اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. ذهغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او فرمائيل: د ضرورت نه زياتو اوبو نه دے په دے وجه نه منع كوي، چه ذَ زياتو واښونه ئے منع كړي.

**بـاب ۳۳۷: مَا يُكْرَهُ مِنَ التَّنَاجُشِ.**

**بـاب ۳۳۷: ذ' تَنَاجش ذَ مكروه كيدو بيان.**

۶۵۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ النَّجْشِ.

۶۵۷ : قتيبه بن سعيد، مالک، نافع، حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذَ نجش نه منع فرمائيلے ده.

ف : تناجش (نجش) ذَ' خريداري د' ارادے بغير ذَ يو څيز قيمت په دے خيال زيات، ښودل، چه خريدار دهوكه كړي.

**بـاب ۳۳۸: مَا يُنْهٰى مِنَ الْخِدَاعِ فِي الْبُيُوْعِ. وَ قَالَ اَيُّوْبُ يُخَادِعُوْنَ اللّٰهَ كَمَا يُخَادِعُوْنَ اٰدَمِيًّا لَوْ اَتَوُا الْاَمْرَ عِيَانًا كَانَ اَهْوَنَ عَلَيَّ.**

**باب ۳۳۸: خريد و فروخت كښې د' دهوكے وركولو د ممانعت بيان.** او ايوب اووے، خلق اللّٰه دهوكه وركوي. څنگه چه سړي له دهوكه وركوي، كه هغوي كار ظاهرولو سره او كړي، نو په ما ډير آسان دے.

۶۵۸ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَجُلًا ذَكَرَ لِلنَّبِيِّ

۶۵۸ : اسماعيل، مالک، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت عبد اللّٰه بن عبد اللّٰه عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، يو سړي د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې عرض او كه خريد و فروخت كښې خلق

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ يُخْدَعُ فِي الْبُيُوْعِ فَقَالَ: اِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ.

مالـه دهوکه راکوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. چه کله ته خريد کوے' نو داسے وايه چه دے کښې به دهوکه نه وي.

باب ۹ ۳۳: مَا يُنْهٰى مِنَ الْاِحْتِيَالِ لِلْوَلِيِّ فِى الْيَتِيْمَةِ الْمَرْغُوْبَةِ وَ اَنْ لَا يُكَمِّلَ صَدَاقَهَا.

باب ۹ ۳۳: هغے يتيمے جينۍ کښې' چه مرغوبه وي' دَ حيله جوړي کولو کراهت' او د هغے مهر دَ پوره نه مقرررولو بيان.

۶۵۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ كَانَ عُرْوَةُ يُحَدِّثُ اَنَّهُ سَاَلَ عَائِشَةَ وَ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتَامٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَآءِ، قَالَتْ هِيَ الْيَتِيْمَةُ فِىْ حَجْرِ وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِي مَالِهَا وَ جَمَالِهَا فَيُرِيْدُ اَنْ يَّتَزَوَّجَهَا بِاَدْنٰى مِنْ سُنَّةِ نِسَآئِهَا فَنُهُوْا نِكَاحِهِنَّ اِلَّا اَنْ يُّقْسِطُوْا لَهُنَّ فِي اِكْمَالِ الصِّدَاقِ ثُمَّ اسْتَفْتَى النَّاسُ رَسُوْلَ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

۶۵۹ : ابو اليمان' شعيب' زهري' عروه نه روايت کوي. هغے دَ بي بي عائشےؓ نه د' آيت: وَ اِنْ خِفتم ان لا تقسطو فِي اليتامٰى: متعلق تپوس اوکه' نو هغے اووے' دا' دَهغے يتيمے جينۍ متعلق دے' چه د' ولي زير پرورش وي' ولي دَ هغے دَ مال او خوبصورتي په وجه هغے ته رغبت لري' او غواړي' چه هغے سره د' دستور نه کم مهر کښې نکاح اوکړي' نو هغے خلقو ته دوي سره د' نکاح کولو نه ممانعت اوشو' خو دا چه هغوي مهر پوره کولو کښې د' انصاف نه کار واخلي (نو اجازت دے ورته) بيا دے نه پس خلقو د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نه دَ مسئلے تپوس اوکه. نو اللّٰه تعالٰي آيت: و يستفتونک في النّساء: نازل کړلو. او پوره حديث ئے بيان که.

باب ۳۴۰: اِذَا غَصَبَ جَارِيَةً فَزَعَمَ اَنَّهَا مَاتَتْ فَقُضِيَ بِقِيْمَةِ الْمَيْتَةِ ثُمَّ وَجَدَ صَاحِبُهَا فَهِيَ لَهُ وَ يَرُدُّ الْقِيْمَةَ وَلَا تَكُوْنُ الْقِيْمَةُ ثَمَنًا. وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ الْجَارِيَةُ لِلْغَاصِبِ لِاَخْذِهِ الْقِيْمَةَ وَ فِيْ هٰذَا اِحْتِيَالٌ لِمَنْ

باب ۳۴۰: که يو سړے د چا وينزه غصب کړي' او' اووائي' چه هغه خو مړه شوله. او دَ هغے فوت شده وينزے د قيمت فيصله حاکم اوکړي' بيا د هغے مالک هغه بيامومي' نو هغه د هغه ده' او قيمت به واپس کړي او هغه به دَ هغے قيمت هالے نشي. او بعضے خلقو اووے' چه هغه وينزه د غصب کونکي ده' ځکه چه دَ هغے قيمت ئے اخستے دے. او دے کښې هغے سړي د

اشْتَهٰـى جَـارِيَةَ رَجُـلٍ لَا يَبِيْعُهَا فَغَصَبَهَا وَاعْتَلَّ بِأَنَّهَا مَاتَتْ حَتّٰى يَأْخُذَ رَبُّهَا قِيْمَتَهَا فَيَطِيْبُ لِلْغَاصِبِ جَارِيَةُ غَيْرِهٖ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْوَالُكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ وَ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَآءٌ يَّوْمَ الْقِيَامَةِ.

٦٧٦٠ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَآءٌ يَّوْمَ الْقِيَامَةِ يُعْرَفُ بِهٖ.

**باب ۱۳۴۱:**

٦٧٦١ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اُمِّ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ وَّ اِنَّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ وَ لَعَلَّ بَعْضَكُمْ اَنْ يَّكُوْنَ اَلْحَنَ بِحُجَّتِهٖ مِنْ بَعْضٍ وَّاَقْضِيُ لَهٗ عَلٰى نَحْوِ مَا اَسْمَعُ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهٗ مِنْ حَقِّ اَخِيْهِ شَيْئًا فَلَا يَأْخُذْ فَاِنَّمَا اَقْطَعُ لَهٗ قِطْعَةً مِّنَ النَّارِ.

**باب ۱۳۴۲: فِي النِّكَاحِ.**

٦٧٦٢ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ

پاره حيله جوئي ده، چه دَ چا وينزه ئے خوښه وي، او دَ هغې مالک هغه نه خرخوي او هغه، هغه غصب کړه. او بهانه ئے اوکړه، چه هغه مړه شوله، چه دَ هغې مالک دَ هغې قيمت واخلي، نو داسې صورت کښې غصب کونکي د پاره دَ بل وينزه جائزه ده. نبيؐ اوفرمائيل: ستاسو مال تاسو باندې حرام دې. او هر دهوکه ورکونکي د پاره به د قيامت په ورځ يوه جنډه وي.

٦٧٦٠ : ابو نعيم، سفيان، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، نبي صلعم اوفرمائيل، هر غداري کونکي د پاره به دَ قيامت په ورځ يوه جنډه وي، چه د هغې په ذريعه به هغه پيژندلې شي.

**باب ۱۳۴۱:** (دا باب بې عنوانه دې).

٦٧٦١ : محمد بن کثير، سفيان، هشام، عروه، زينب بنت ام سلمهؓ روايت کوي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زه خو هم انسان يم، تاسو ماله مقدمه راوړئې. ډيره ممکنه ده، چه تاسو کښې يو سړې دليل پيش کولو کښې دَ بل نه زيات فصيح البيان وي او زه دَ هغه حق کښې دَ هغه خبره اوريدو سره فيصله اوکړم. په دې وجه زه چه دَ چا موافق دَ هغه دَ، ورور، دَ حق نه دَ څه څيز فيصله اوکړم، نو هغه دې نه اخلي، ځکه چه ما هغه د پاره دَ، اور يوه ټکړه جدا کړې ده.

**باب ۱۳۴۲:** نکاح کښې، حيله کولو بيان.

٦٧٦٢ : مسلم بن ابراهيم، هشام، يحيٰي بن ابي

إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتَّى تُسْتَأْذَنَ وَلَا الثَّيِّبُ حَتَّى تُسْتَأْمَرَ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ إِذْنُهَا قَالَ إِذَا سَكَتَتْ وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ إِنْ لَمْ تُسْتَأْذَنِ الْبِكْرُ وَلَمْ تَزَوَّجْ فَاحْتَالَ رَجُلٌ فَأَقَامَ شَاهِدَيْ زُوْرٍ أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا بِرِضَاهَا فَأَثْبَتَ الْقَاضِيْ نِكَاحَهَا وَالزَّوْجُ يَعْلَمُ أَنَّ الشَّهَادَةَ بَاطِلَةٌ فَلَا بَأْسَ أَنْ يَّطَأَهَا وَهُوَ تَزْوِيْجٌ صَحِيْحٌ.

كثير، ابو سلمهؒ، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، حضورؐ او فرمائيل، دَ پيغلے جينۍ دے نكاح نشي كولے ځو پورے چه دَ هغے نه اجازت وانخستے شي او نه دِ دَ كُنډے نكاح كولے شي، ځو پورے چه د هغے نه حكم وانخستے شي. چا تپوس او كه، يا رسول اللّٰه، دَ هغے اجازت به څنګه وي. حضورؐ او فرمائيل كوم وخت چه هغه خاموشي شي. او بعضے خلقو اووے كه دَ پيغلے ښځے نه اجازت وانخستلو. او نه هغے واده او كه، او يو سړي حيلے سره دوه د، دروغے ګواهان پيش كړل، چه هغه د دے ښځے رضامندي سره واده كړے دے او قاضي دَ هغه نكاح ثابته اوساتله، حالانكه خاوند ته معلومه ده چه ګواهي په دروغه ده، نو هغے سره صحبت كولو كښې هيڅ حرج نشته. او دا نكاح صحيح ده.

٦٦٣ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ أَنَّ امْرَأَةً مِّنْ وَّلَدِ جَعْفَرٍ تَخَوَّفَتْ أَنْ يُّزَوِّجَهَا وَلِيُّهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ فَأَرْسَلَتْ إِلٰى شَيْخَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ مُجَمِّعٍ ابْنَيْ جَارِيَةٍ قَالَا فَلَا تَخْشَيْنَ فَإِنَّ خَنْسَاءَ بِنْتَ خِذَامٍ أَنْكَحَهَا أَبُوْهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ فَرَدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ قَالَ سُفْيَانُ وَأَمَّا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ خَنْسَاءَ.

٦٦٣ : علي بن عبد اللّٰه، سفيان، يحيٰى بن سعيد، قاسم نه روايت كوي، د حضرت جعفرؓ دَ خاندان يوے ښځے سره خوف شو، چه دَ هغے ولي به دَ هغے نكاح اوكړي او دَ هغے داسے كول خوښ نه وو، نو هغے انصارو كښې دوه (٢) بوډاګان يعني عبد الرحمٰن او مجمعے ته چه د جاريه ځامن وو، اطلاع اوليږله، نو هغے دواړو اووے، ته هيڅ اَنديښنه مه كوه د، خنساء بنت خذام نكاح دَ هغے پلار كړے وه، چه دَ هغے ناخوښه وه، نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه نكاح فسخ كړله. سفيان اووے. ما د عبد الرحمٰن نه واوريدل، هغه دَ خپل پلار نه نقل كولو چه د، خنساء، نكاح دَ هغے پلار كړے وه.

۶۶۴ : حَدَّثَنَا اَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُنْكَحُ الْاَيِّمُ حَتّٰى تُسْتَأْمَرَ وَ لَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتّٰى تُسْتَأْذَنَ قَالُوْا كَيْفَ اِذْنُهَا قَالَ اَنْ تَسْكُتَ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ اِنِ احْتَالَ اِنْسَانٌ بِشَاهِدَىْ زُوْرٍ عَلٰى تَزْوِيْجِ امْرَاَةٍ ثَيِّبٍ بِاَمْرِهَا فَاَثْبَتَ الْقَاضِىْ نِكَاحَهَا اِيَّاهُ وَالزَّوْجُ يَعْلَمُ اَنَّهُ لَمْ يَتَزَوَّجْهَا قَطُّ فَاِنَّهُ يَسَعُهُ هٰذَا النِّكَاحُ وَ لَا بَاْسَ بِالْمُقَامِ لَهُ مَعَهَا.

۶۶۴ : ابو نعيم، شيبان، يحيٰي، ابو سلمه، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي ذ هغه بيان دے، رسول الله صلعم او فرمائيل د، كنډې نكاح دے نشي كولے، ځو پورے چه ذ هغې حكم وانخستے شي، او ذ پېغلې نكاح دے نشي كولے، ځو پورے چه ذ هغې نه اجازت وانخستے شي. خلقو تپوس اوكه، ذ هغې اجازت به څنګه وي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، دا چه هغه خاموشه پاتې شي، او بعضې خلقو اووے كه يو سړے حيله اوكړي، او دوه د، دروغې ګواه پيش كړي، چه هغه د دے كنډې په حكم دے سره نكاح كړے ده. او قاضي ذ هغې نكاح برقرار اوساتي. او خاوند ته د دے علم هم وي، چه هغه، هغې سره هيڅ كله نكاح نه ده كړے، نو هغه د پاره دا نكاح جائزه ده. او هغې ښځې سره اوسيدو كښې هيڅ حرج نشته.

۶۶۵ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبِكْرُ تُسْتَاْذَنُ قُلْتُ اِنَّ الْبِكْرَ تَسْتَحْيِىْ قَالَ اِذْنُهَا صُمَاتُهَا وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ اِنْ هَوِىَ رَجُلٌ جَارِيَةً يَتِيْمَةً اَوْ بِكْرًا فَاَبَتْ فَاحْتَالَ فَجَآءَ بِشَاهِدَىْ زُوْرٍ عَلٰى اَنَّهُ تَزَوَّجَهَا فَاَدْرَكَتْ فَرَضِيَتِ الْيَتِيْمَةُ فَقَبِلَ الْقَاضِىْ شَهَادَةَ الزُّوْرِ وَالزَّوْجُ يَعْلَمُ بِبُطْلَانِ ذٰلِكَ حَلَّ لَهُ

۶۶۵ : ابو عاصم، ابن جريج، ابي مليكه، زكوان، بي بي عائشهؓ نه روايت كوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ذ پېغلې نه دے اجازت اخستلے شي، بي بي عائشهؓ وائي ما عرض اوكه، پېغله خو، اجازت وركولو كښې شرم محسوس كوي. حضورؐ اوفرمائيل، ذ هغې خاموشي اجازت دے او بعضې خلقو اووے كه يو سړے يو يتيمه او پېغله جينۍ غواړي، او هغه انكار اوكړي، نو هغه سړے دے حيله سره دوه د، دروغې ګواهان پيدا كړي چه هغه دے سره نكاح كړے ده، بيا هغې ته خبر اورسيد، او هغه راضي شوه. او قاضي د، دروغې ګواهي قبوله كړه. او خاوند ته علم هم دے، چه دا ګواهي په دروغه ده، بيا هم هغه، هغې سره صحبت

الْوَطْءُ.

**بَابُ ۳۴۳: مَا يُكْرَهُ مِنُ احْتِيَالِ الْمَرْأَةِ مَعَ الزَّوْجِ وَالضَّرَآئِرِ وَ مَا نَزَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيُ ذٰلِكَ.**

**۶۶۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْحَلْوَآءَ وَ يُحِبُّ الْعَسَلَ، وَ كَانَ اِذَا صَلَّى الْعَصْرَ اَجَازَ عَلٰى نِسَآئِهٖ فَيَدْنُوْ مِنْهُنَّ فَدَخَلَ عَلٰى حَفْصَةَ فَاحْتَبَسَ عِنْدَهَا اَكْثَرَ مِمَّا كَانَ يَحْتَبِسُ فَسَأَلْتُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ لِيْ اَهْدَتْ امْرَاَةٌ مِّنْ قَوْمِهَا عُكَّةَ عَسَلٍ فَسَقَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ شَرْبَةً، فَقُلْتُ اَمَا وَاللّٰهِ لَنَحْتَالَنَّ لَهٗ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِسَوْدَةَ قُلْتُ اِذَا دَخَلَ عَلَيْكِ فَاِنَّهٗ سَيَدْنُوْ مِنْكِ فَقُوْلِيْ لَهٗ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ فَاِنَّهٗ سَيَقُوْلُ لَا فَقُوْلِيْ لَهٗ مَا هٰذِهِ الرِّيْحُ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْتَدُّ عَلَيْهِ اَنْ يُوْجَدَ مِنْهُ الرِّيْحُ فَاِنَّهٗ سَيَقُوْلُ سَقَتْنِيْ حَفْصَةُ شَرْبَةَ عَسَلٍ فَقُوْلِيْ لَهٗ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ وَ سَاَقُوْلُ ذٰلِكَ، وَ قُوْلِيْهِ اَنْتِ يَا**

کول جائز دي.

**باب ۳۴۳:** د ښځې خاوند یا، ښو (سوکنوں) سره دَ حیله کولو دَ کراهت بیان، او د هغې څیز بیان، چه نبي صلعم باندې د دې متعلق نازل شوې دې.

**۶۶۲:** عبید الله بن اسماعیل ابو اسامه، هشام، دَ خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشې رض نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم به حلوا او شات (شهد) ډیر خوښول او دَ مازیګر مونځ چه به ئې اوکړلو، نو خپلو بیبیانو له به ورتلو. او هغوئ ته به قریب شو، یو ورځ بي بي حفصې رض له ئې تشریف یوړو. او دَ معمول نه زیات ایسار شولو. ما دَ حضور صلّي الله علیه وسلّم نه د دې متعلق تپوس اوکه. نو حضورؐ او فرمائیل دَ حفصې رض د قوم یوې ښځې یو کوپئې شات دَ، هدیئې په طور رالیږلې وو. او دَ هغې نه هغې په رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوڅکول. دَ، بي بي عائشې رض بیان دې. ما خپل زړه کښې اووې، په خدائې چه، زه به هغوئ دَ پاره حیله جوړه کړم. ما د دې ذکر بي بي سودة رض سره اوکه. او وئیلې م کوم وخت چه حضورؐ تاله راشي. او در، نزدې شي، نو ته ورته اووایه، یا رسول اللّٰه، آیا تاسو مغافیر (دَ، جاؤلې پشان یو بدبویه څیز) خوړلې دي. حضورؐ به فرمائي، نه، نو ته ورته اووایه دا، بوئ د، څه دې، او رسول صلعم باندې به دا، امر سخت لګیدلو، چه د حضورؐ نه دې بوئ راشي. حضورؐ به یقیناً فرمائي، چه ما باندې حفصې رض د، شاتو شربت څکلې دې، نو ته ورته اووایه چه شاید مچو، د، عرفط رَس څکلې وي زه به هم دغسې اووایم. او، اې

صَفِيَّةُ فَلَمَّا دَخَلَ عَلٰى سَوْدَةَ قَالَتْ تَقُوْلُ سَوْدَةُ وَالَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَقَدْ كِدْتُ اَنْ اُبَادِرَهُ بِالَّذِيْ قُلْتِ لِيْ وَ اِنَّهُ لَعَلَى الْبَابِ فَرَقًا مِّنْكِ فَلَمَّا دَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ قَالَ لَا قُلْتُ فَمَا هٰذِهِ الرِّيْحُ قَالَ سَقَتْنِيْ حَفْصَةُ شَرْبَةَ عَسَلٍ قُلْتُ جَرَسَتْ نَحْلُهُ الْعُرْفُطَ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيَّ قُلْتُ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ وَ دَخَلَ عَلٰى صَفِيَّةَ فَقَالَتْ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَلَمَّا دَخَلَ عَلٰى حَفْصَةَ قَالَتْ لَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا اَسْقِيْكَ مِنْهُ قَالَ لَا حَاجَةَ لِيْ بِهٖ قَالَتْ تَقُوْلُ سَوْدَةُ سُبْحَانَ اللّٰهِ لَقَدْ حَرَمْنَاهُ قَالَتْ قُلْتُ لَهَا اُسْكُتِيْ.

صفيېؓ ته هم دغسې اووايه. حضورؐ بي بي سودهؓ له تشريف يوړلو. د بي بي عائشېؓ بيان دې بي بي سودهؓ اووې. قسم دې په هغه ذات چه دَ هغه نه سوا بل معبود نشته، چه زه ستا دَ ويرې نه تادئ سره رسول صلعم ته دا خبره اوکړم، چه تا ماته وئيلې ده هغه وخت حضورؐ په دروازه وو. کوم وخت چه حضورؐ قريب شو، نو ما عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، آيا تاسو مغافير خوړلې دي. حضورؐ اوفرمائيل نه حفصېؓ په ما، شات ځکولې دي. ما اووې دَ شاتو مچو به دَ، عرفط رس ځکلې وي کوم وخت چه ما (عائشېؓ) ته ئې تشريف راوړلو، نو ما هم ورته دغسې اووې. او دغه شان صفيئېؓ هم اووئې بيا چه حفصېؓ ته ئې تشريف يوړلو. نو حفصېؓ اووې، يا رسول اللّٰه، آيا زه په تاسوؐ شات اونه ځکوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل، ماته د دې ضرورت نشته. بي بي سودېؓ اووې، سبحان اللّٰه، مونږ پرې دا، حرام کړل، ما اووې، چپ شه.

## بَابُ ۳۴۴: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْاِحْتِيَالِ فِي الْفِرَارِ مِنَ الطَّاعُوْنِ.

## باب ۳۴۴: طاعون نه تښتيدو د پاره د حيله جوئي د، کراهت بيان.

٦٦٧ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خَرَجَ اِلَى الشَّامِ فَلَمَّا جَآءَ بِسَرْغَ بَلَغَهُ اَنَّ الْوَبَآءَ وَقَعَ بِالشَّامِ فَاَخْبَرَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا سَمِعْتُمْ بِهٖ بِاَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوْا عَلَيْهِ

٦٦٧ : عبد اللّٰه بن مسلمه، مالک، ابن شهاب، عبد اللّٰه بن عامر بن ربيعه نه روايت کوي. حضرت عمر بن خطاب شام طرف ته روان شو، کوم وخت چه مقام سرغ ته اورسيد نو خبر شو، چه شام کښې وباء خوره شوې ده، نو عبد الرحمٰن بن عوف خبر که، چه رسول اللّٰه صلعم فرمائيلې دي هر کله چه تاسو د، يوې زمکې متعلق واورئې (چه هلته وباء خوره شوې ده) نو هلته مه ځئې او هر کله چه يوه زمکه کښې وباء خوره شي او تاسو هلته موجود، ئې،

وَ إِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَ أَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِّنْهُ فَرَجَعَ عُمَرُ مِنْ سَرَغَ، وَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ عُمَرَ إِنَّمَا انْصَرَفَ مِنْ حَدِيْثِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ.

نو ذ هغې ځائې نه د تيښتې په اراده مه اوځئ. نو حضرت عمرؓ د سرغ نه واپس شولو او ابن شهاب نه د سالم بن عبد اللّٰه په ذريعه منقول دي، چه حضرت عمرؓ صرف د عبد الرحمٰن د حديث په بنا واپس شولو.

٦٦٨: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ أَنَّهُ سَمِعَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ يُحَدِّثُ سَعْدًا أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ الْوَجَعَ فَقَالَ رِجْزٌ أَوْ عَذَابٌ عُذِّبَ بِهِ بَعْضُ الْأُمَمِ ثُمَّ بَقِيَ مِنْهُ بَقِيَّةٌ فَيَذْهَبُ الْمَرَّةَ وَ يَأْتِي الْأُخْرٰى فَمَنْ سَمِعَ بِأَرْضٍ فَلَا يَقْدِمَنَّ عَلَيْهِ وَ مَنْ كَانَ بِأَرْضٍ وَقَعَ بِهَا فَلَا يَخْرُجْ فِرَارًا مِّنْهُ.

٦٦٨: ابو اليمان، شعيب، زهري، عامر بن سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت کوي، هغه د، اسامه بن زيد نه د سعد نه بيان واوريدلو، رسول اللّٰه صلعم د طاعون ذکر اوکه. اووے فرمائيل، هغه مصيبت يا عذاب دے، چه هغې کښې بعضې قومونه آخته کړے شوے وو. بيا دے نه څه باقي پاتے شو، چه کله نه ځي، او کله راځي نو کوم سړے چه د يو ځائے متعلق واوري چه هلته وَبا خوره شوے ده، نو هلته دے نه ځي. او کوم سړے چه يو ځائے کښې وي او هلته وَبا خوره شي، نو ذ هغې ځائے نه دے نه تختي.

بَابٌ ۳۴۵: فِي الْهِبَةِ وَالشُّفْعَةِ. وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ إِنْ وَهَبَ هِبَةً أَلْفَ دِرْهَمٍ أَوْ أَكْثَرَ حَتّٰى مَكَثَ عِنْدَهُ سِنِيْنَ وَ احْتَالَ فِيْ ذٰلِكَ ثُمَّ رَجَعَ الْوَاهِبُ فِيْهَا فَلَا زَكَاةَ عَلٰى وَاحِدٍ مِّنْهُمَا فَخَالَفَ الرَّسُوْلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْهِبَةِ وَ أَسْقَطَ الزَّكَاةَ.

باب ۳۴۵: هبه او شفعه کښې ذ حيلې کولو بيان. او بعضې خلقو اووے که يو سړے يو زر درهم يا، د دے نه زيات چاته هبه کړي، او هغه، سره په کلونو (برسوں) پاتے شي. بيا هغه ذ حيلې نه کار واخلي. او هبه کونکے هغه واپس واخلي نو زکٰوة دے دواړو کښې په يو هم واجب نه دے. دغې خلقو هبه کښې د حضور صلعم مخالفت اوکه، او زکاة ئے ساقط کړلو.

٦٦٩: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَيُّوْبَ السَّخْتِيَانِيِّ عَنْ

٦٦٩: ابو نعيم، سفيان، ايوب سختياني، عکرمه، حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د

عَكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَائِدُ فِيْ هِبَتِهٖ كَالْكَلْبِ يَعُوْدُ فِيْ قَيْئِهٖ لَيْسَ لَنَا مَثَلُ السَّوْءِ.

هغه بيان دے، نبي صلعم ارشاد اوفرمائيلو، چه هبه كونكے او بيا هغه واپس اخستونكے دَ هغے سپي پشان دے، چه قے اوكړي، او بيائے اُوخوري مونږ د پاره بد مثال مناسب نه دے.

۶۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اِنَّمَا جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشُّفْعَةَ فِيْ كُلِّ مَا لَمْ يُقْسَمْ، فَاِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَ صُرِّفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ. اَلشُّفْعَةُ لِلْجَوَارِ ثُمَّ عَمَدَ اِلٰى مَا شَدَّدَهٗ فَاَبْطَلَهٗ وَ قَالَ اِنِ اشْتَرٰى دَارًا فَخَافَ اَنْ يَّأْخُذَ الْجَارُ بِالشُّفْعَةِ فَاشْتَرٰى سَهْمًا مِنْ مِّائَةِ سَهْمٍ ثُمَّ اشْتَرَى الْبَاقِيَ وَ كَانَ لِلْجَارِ الشُّفْعَةُ فِي السَّهْمِ الْاَوَّلِ وَ لَا شُفْعَةَ لَهٗ فِيْ بَاقِي الدَّارِ وَ لَهٗ اَنْ يَّحْتَالَ فِيْ ذٰلِكَ.

۶۷۰: عبد ابن محمد، هشام بن يوسف، معمر، زهري، ابو سلمه، حضرت جابر بن عبد اللّٰهؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، نبي صلعم هر هغه خيز كښې شفعه مقرر كړے چه لـه تقسيم شوے نه وي. كوم وخت چه حد بندي اوشي. او لارے اوګرځولے شي. نو هغے صورت كښې شفعه نشته. او بعضے خلقو ونيلے دي. چه شفعه دَ ګونډيانو د پاره ده. بيا خپل پيش كړے دليل ئے باطل كړلو. او ونيلے، كه يو سړے مكان واخلي، او هغه ته خطره وي، چه ګونډي به ئے دَ شفعے په بنا واخلي، نو هغه دَ هغے مكان سل (۱۰۰) حصو كښې يو حصّه واخسته، او دَ هغے نه پس ئے باقي واخسته. او ګونډي د پاره دَ شفعے حق به ورمبنے حصه كښې دے باقي كور كښې هغه ته د شفعے حق نشته، نو هغے خريدار ته د، داسے حيلے كولو اختيار دے.

۶۷۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ مَيْسَرَةَ سَمِعْتُ عَمْرَوَ ابْنَ الشَّرِيْدِ قَالَ جَاءَ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ فَوَضَعَ يَدَهٗ عَلٰى مَنْكِبِيْ فَانْطَلَقْتُ مَعَهٗ اِلٰى سَعْدٍ فَقَالَ اَبُوْ

۶۷۱: علي بن عبد اللّٰه، سفيان ابراهيم بن ميسره عمرو بن شريد نه روايت كوي. هغه اُووے، مسور بن مخرمه راغے، او خپل لاس ئے خما په اُوږه كيښودلو. زه هغه سره سعد طرف ته روان شوم. ابو رافع، مسور ته اووے تاسو سعد ته ولے نه وائے، چه هغه، هغه خائے، واخلي، چه خما كور كښې دے. هغه اووے زه

رَافِعٍ لِلْمِسْوَرِ اَلَا تَأْمُرُ هٰذَا اَنْ يَشْتَرِيَ مِنِّيْ بَيْتِيَ الَّذِيْ فِيْ دَارِيْ فَقَالَ لَا اَزِيْدُهُ عَلٰى اَرْبَعِ مِائَةٍ اِمَّا مُقَطَّعَةٍ وَ اِمَّا مُنَجَّمَةٍ قَالَ اُعْطِيْتُ خَمْسَ مِائَةٍ نَقْدًا فَمَنَعْتُهُ وَ لَوْ لَا اِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْجَارُ اَحَقُّ بِصَقَبِهٖ مَا بِعْتُكَهُ اَوْ قَالَ مَا اَعْطَيْتُكَهُ قُلْتُ لِسُفْيَانَ اِنَّ مَعْمَرًا لَمْ يَقُلْ هٰكَذَا قَالَ لٰكِنَّهُ قَالَ لِيْ هٰكَذَا وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ اِذَآ اَرَادَ اَنْ يَّبِيْعَ الشُّفْعَةَ فَلَهُ اَنْ يَّحْتَالَ حَتّٰى يُبْطِلَ الشُّفْعَةَ فَيَهَبُ الْبَآئِعُ لِلْمُشْتَرِيْ الدَّارَ وَ يَحُدُّهَا وَ يَدْفَعُهَا اِلَيْهِ وَ يُعَوِّضُهُ الْمُشْتَرِيْ اَلْفَ دِرْهَمٍ فَلَا يَكُوْنُ لِلشَّفِيْعِ فِيْهَا شُفْعَةٌ.

ذَ څلور سوو (۴۰۰) درهمونه زيات نشم وركولے. هغه به هم ټكړے ټكړے يعني قسطونو كښ وركوم. ابو رافع اووے، ماته پنځه سوه (۵۰۰) نغدے راكولے شوے، خو ما ورنه كړلو، او كه ما د نبي صلعم نه، نه وے اوريدلے، چه ګونډي د شفعے زيات حقدار دے، نو دا، به ما په تا، نه وو خرڅ كړے. يا وئيلے ئے، چه ما به تاله نه وے دركړے ما سفيان ته اووے، چه معمر داسے بيان نه دے كړے. نو هغه اووے. ليكن ماته دغسے وئيلے دي. او بعضے وئيلے دي، چه كله څوک يو مكان خرڅول غواړي، نو هغه ذَ شفعے حق باطل كولو د پاره دا حيله اختيارولے شي، چه بائع (خرڅونكے) مشتري (اخستونكي) ته مكان هبه كړي، او ذَ هغې حد راكاږي او هغه له ئے وركړي، او خريدار هغه ته يو زر درهم معاوضه وركړي، نو ذَ شفيع هغې كښ حق شفعه نه كيږي.

۶۷۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيْدِ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ اَنَّ سَعْدًا سَاوَمَهُ بَيْتًا بِاَرْبَعِ مِائَةِ مِثْقَالٍ فَقَالَ لَوْ لَا اَنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْجَارُ اَحَقُّ بِصَقَبِهٖ لَمَا اَعْطَيْتُكَ. وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ اِنْ اِشْتَرٰى نَصِيْبَ دَارٍ فَاَرَادَ اَنْ يُّبْطِلَ الشُّفْعَةَ وَهَبَ لِابْنِهِ الصَّغِيْرِ وَ لَا يَكُوْنُ عَلَيْهِ يَمِيْنٌ.

۶۷۲: محمد بن يوسف، سفيان، ابراهيم بن ميسره، عمرو بن اشريد، ابو رافع نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے. سعد ذَ هغه نه يو كور څلور سوه (۴۰۰) مثقال باندے واخست. اووئيلے. كه ما د، رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه، نه وے آوريدلے، چه ګوانډي ذَ شفعے زيات حقدار دے، نو ما به تاله نه وے دركړے. او بعضے خلقو وئيلے دي كه يو سړے ذَ چا د، كور يوه حصّه واخلي او شفعه باطل كول غواړي، نو خپل نابالغ ځوئے ته دے هبه كړي. او په هغه قسم هم نشته.

## باب ۲۳۴۶: اِحْتِيَالُ الْعَامِلِ لِيُهْدٰى لَهٗ.

۶۷۴۳ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ اِسْتَعْمَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا عَلٰى صَدَقَاتِ بَنِيْ سُلَيْمٍ يُدْعٰى بْنَ اللُّتْبِيَّةِ فَلَمَّا جَآءَ حَاسَبَهٗ قَالَ هٰذَا مَالُكُمْ وَ هٰذَا هَدِيَّةٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلَّا جَلَسْتَ فِيْ بَيْتِ اَبِيْكَ وَ اُمِّكَ حَتّٰى تَأْتِيَكَ هَدِيَّتُكَ اِنْ كُنْتَ صَادِقًا ثُمَّ خَطَبَنَا فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنِّيْ اَسْتَعْمِلُ الرَّجُلَ مِنْكُمْ عَلَى الْعَمَلِ مِمَّا وَلَّانِيَ اللّٰهُ فَيَأْتِيْ فَيَقُوْلُ هٰذَا مَالُكُمْ وَ هٰذَا هَدِيَّةٌ اُهْدِيَتْ لِيْ اَفَلَا جَلَسَ فِيْ بَيْتِ اَبِيْهِ وَ اُمِّهٖ حَتّٰى تَأْتِيَهٗ هَدِيَّتُهٗ وَاللّٰهِ لَا يَأْخُذُ اَحَدٌ مِّنْكُمْ شَيْئًا بِغَيْرِ حَقِّهٖ اِلَّا لَقِيَ اللّٰهَ يَحْمِلُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَلَاَعْرِفَنَّ اَحَدًا مِنْكُمْ لَقِيَ اللّٰهَ يَحْمِلُ بَعِيْرًا لَهٗ رُغَآءٌ اَوْ بَقَرَةً لَهَا خُوَارٌ اَوْ شَاةً تَيْعَرُ ثُمَّ رَفَعَ يَدَهٗ حَتّٰى رُؤِيَ بَيَاضُ اِبْطِهٖ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ بَصُرَ عَيْنِيْ وَ سَمِعَ

## باب ۲۳۴۶: ذ عامل حيله كول' چه هغه ته هديه اولېږلے شي.

۶۷۴۳ : عبيد بن اسماعيل ابو اسامه' هشام' د خپل پلار نه' هغه د' ابو حميد ساعدي نه روايت كوي. د هغه بيان دے' رسول اللّٰه صلعم يو سړے چه د هغه نوم ابن التبيه وو' ذ بني سليم د' صدقاتو عامل جوړ كړلو. كوم وخت چه هغه واپس راغے. هغه حساب وركړلو' نو ونيلے ئے' دا ستاسوَ دے او دا ماته هديه كښ راكړے شوے دے. رسول اللّٰه صلعم ورته اوفرمائيل. ذ خپلے مور يا پلار په كور كښ ولے نه كيناستے چه تاله هديه راتلے' كه ته رښتنے ئے. بيا حضورؐ خمونږ مخكښ خطبه اولوسته' د' اللّٰه ذ حمد و ثنا بيانونو نه پس ئے اوفرمائيل امابعد: زهٔ تاسو كښ يو سړے څه كار د پاره اوليږم. چه ذ هغے اللّٰه تعالٰي مونږ مالكان كړے يو. هغه چه واپس راشي' نو وائي. دا ستا (مال) دے. او دا هديه ده چه ماته راليږلے شوے ده. نو هغه ولے ذ خپل پلار يا مور په كور كښ نه كيناستلو. بيا به ئے ليدلے وے' چه هغه ته هديه راځي (يانه) په خدائے م دے قسم وي' تاسو كښ چه څوک يو څيز په ناحقه واخلي' نو ذ قيامت په ورځ به هغه اللّٰه سره داسے حال كښ يو ځائے كيږي' چه هغه څيز به په هغه سور' وي. زه به تاسو كښ هر هغه سړے اوپيژنم' چه د' بربړ كونكي اوښ' باں باں كونكے غوا' او ميں ميں كونكے چيلے به ئے په ځان سوره كړے وي. بيا حضورؐ خپل لاس اوچت (بلند) كړلو. تر دے چه ذ حضورؐ د' ترخ سپيدي په نظر راغله. حضورؐ اوفرمائيل' يا اللّٰه' آيا ما (د حق پيغام اورسولو. دے فرمانيلو سره

أُنْثَى.

۶۷۴ : حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ عَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجَارُ أَحَقُّ بِصَقَبِهِ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ إِنِ اشْتَرَى دَارًا بِعِشْرِيْنَ أَلْفَ دِرْهَمٍ فَلَا بَأْسَ أَنْ يَحْتَالَ حَتَّى يَشْتَرِيَ الدَّارَ بِعِشْرِيْنَ أَلْفَ دِرْهَمٍ وَ يَنْقُدَهُ تِسْعَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ وَّ تِسْعَ مِائَةِ دِرْهَمٍ وَّ تِسْعَةٍ وَّ تِسْعِيْنَ وَ يَنْقُدَهُ دِيْنَارًا بِمَا بَقِيَ مِنَ الْعِشْرِيْنَ الْأَلْفَ فَإِنْ طَلَبَ الشَّفِيْعُ أَخَذَهَا بِعِشْرِيْنَ أَلْفَ دِرْهَمٍ وَّ إِلَّا فَلَا سَبِيْلَ لَهُ عَلَى الدَّارِ فَإِنِ اسْتُحِقَّتِ الدَّارُ رَجَعَ الْمُشْتَرِيْ عَلَى الْبَائِعِ بِمَا وَقَعَ إِلَيْهِ وَهُوَ تِسْعَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ وَّ تِسْعُ مِائَةٍ وَ تِسْعَةٌ وَّ تِسْعُوْنَ دِرْهَمًا وَّ دِيْنَارٌ لِأَنَّ الْبَيْعَ حِيْنَ اسْتُحِقَّ انْتَقَضَ الصَّرْفُ فِي الدِّيْنَارِ فَإِنْ وَّجَدَ بِهٰذِهِ الدَّارِ عَيْبًا وَلَمْ تُسْتَحَقَّ فَإِنَّهُ يَرُدُّهَا عَلَيْهِ بِعِشْرِيْنَ أَلْفَ دِرْهَمٍ قَالَ فَأَجَازَ هٰذَا الْخِدَاعَ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا دَاءَ وَ لَا خِبْثَةَ وَ لَا غَائِلَةَ.

۶۷۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

خما سترګو اوليدل او خما غوږونو واوريدل.

۶۷۴ : ابو نعيم، سفيان، ابراهيم بن ميسر، عمر بن شريد حضرت ابو رافع نه روايت کوي. د هغه بيان دے، نبي صلعم اوفرمائيل، ګوانډي د شفعې زيات حقدار دے. او بعضے خلقو اووے، که يو سړے يو کور په شل (۲۰) زره درهم اخستل اوغواړي، نو داسے حيله کول کښ هيڅ حرج نشته، چه نهه زره نهه سوه درهم نغد ورکړي. او شل (۲۰) زره کښ د باقي په عوض يو دينار ورکړي که شفيع د دے مطالبه اوکړي نو شفيع به ئے په شل (۲۰) زره اخلي. کني د کور حاصليدو هيڅ صورت نشته. بيا که هغه مکان د، بائع نه سوا، ذ چا بل سړي حق اوختلو، نو خريدار د، بائع نه، چه هغه هغه له ورکړے وي، هغه دے ترے واپس واخلي (يعني نهه زره نهه سوه او يو درهم) ځکه چه ذ خرڅ شوي ځيز هر کله چه اصل مستحق راووتلو، نو د، دينار تجارت چه صرف يو زياتي وو، باطل شولو او که خريدار هغے مکان کښ څه عيب اوليدلو، او ذ هغے مکان څوک مستحق هم راونه وتلو، نو مشتري ذ شل (۲۰) زره درهم په بدله کښ به بائع ته مکان واپس ورکولے شي. امام بخاريؒ وئيلے دي، چه داسے دهوکه ورکول مسلمانانو کښ جائز ګرزولے شوے دي، حالانکه رسول صلعم فرمائيلے دي، چه ذ مسلمان خريد و فروخت کښ نه بيماري وي، او نه بيع ناجائز کونکے څه ځيز، وي. او نه چاته نقصان وي.

۶۷۵ : مسدد، يحيى، سفيان، ابراهيم بن

يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيْدِ أَنَّ أَبَا رَافِعٍ سَاوَمَ سَعْدَ ابْنَ مَالِكٍ بَيْتًا بِأَرْبَعِ مِائَةِ مِثْقَالٍ وَّ قَالَ لَوْ لَا إِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْجَارُ أَحَقُّ بِصَقَبِهِ مَا أَعْطَيْتُكَ.

ميسره، عمرو بن شريد نه روايت کوي. د هغه بيان دے، ابو رافع د سعد بن مالک په لاس يو کور څلور سوه (۴۰۰) مثقال باندے خرڅ که. او وئيلے، که ما د حضور صلعم دا ارشاد نه وے آوريدلے، چه ګوانډي دَ شفعے زيات حقدار دے، نو مابه دا مکان تاته نه وو در کړے.

ف: مثقال: دَ، څلور نيمے (۴ ½) ماشے وزن.

# كِتَابُ التَّعْبِيْرِ

# دَ خوبونو د تعبير بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

## باب ۳۴۷: اَلتَّعْبِيْرِ وَ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

## باب ۳۴۷: دَ خوبونو دَ تعبير بيان او دا چه حضور صلعم باندے دَ ټولو نه مخکښ د، وحي ابتدا، د، رويائے صالحه (ښوښو خوبونو) په ذريعه اوشوه.

۶۷۶: حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ قَالَ الزُّهْرِيُّ فَأَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرٰى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ فَكَانَ يَأْتِيْ حِرَاءَ فَيَتَحَنَّثُ فِيْهِ. وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ وَ يَتَزَوَّدُ لِذٰلِكَ

۶۷۶: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، (دويم سند) عبد اللّٰه بن محمد، عبد الرزاق، معمر، زهري، عروه، بي بي عائشے نه روايت کوي دَ هغے بيان دے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم باندے د، وحي ابتداء د، رويائے صالحه په ذريعه اوشوه، چه حضورؐ به دَ خوب په حالت کښ ليدل، نو هغه به دَ صبا دَ ظاهريدو په شان ظاهريدل حضورؐ به غار حرا ته تشريف اُوړلو. او تَحَنُّثُ به ئے کولو، يعني څو څو شپے به ئے هلته عبادت کولو، او هغے د پاره به ئے توښه خان سره اُوړله. بيا به بي بي خديجےؓ ته واپس راتلو، توښه به ئے واخسته، واپس به لاړلو، ناساپه يوه ورځ حضورؐ ته وحي راغلے دغه وخت حضورؐ غارِ حِرَا کښ وو، هلته جبرائيل عليه

ثُمَّ يَرْجِعُ إِلٰى خَدِيْجَةَ فَتُزَوِّدُهُ لِمِثْلِهَا
حَتّٰى فَجِئَهُ الْحَقُّ وَ هُوَ فِيْ غَارِ حِرَآءٍ
فَجَآءَهُ الْمَلَكُ فِيْهِ فَقَالَ اِقْرَاْ فَقَالَ لَهُ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ
مَا اَنَا بِقَارِئٍ فَاَخَذَنِيْ فَغَطَّنِيْ حَتّٰى
بَلَغَ مِنِّيَ الْجُهْدُ ثُمَّ اَرْسَلَنِيْ فَقَالَ
اِقْرَاْ فَقُلْتُ مَا اَنَا بِقَارِئٍ فَاَخَذَنِيْ
فَغَطَّنِيْ الثَّانِيَةَ حَتّٰى بَلَغَ مِنِّيَ الْجُهْدُ
ثُمَّ اَرْسَلَنِيْ فَقَالَ اِقْرَاْ فَقُلْتُ مَا اَنَا
بِقَارِئٍ فَغَطَّنِيْ الثَّالِثَةَ حَتّٰى بَلَغَ مِنِّي
الْجُهْدُ ثُمَّ اَرْسَلَنِيْ فَقَالَ' اِقْرَاْ بِاسْمِ
رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ. حَتّٰى بَلَغَ مَالَمْ
يَعْلَمْ فَرَجَعَ بِهَا تَرْجُفُ بَوَادِرُهُ حَتّٰى
دَخَلَ عَلٰى خَدِيْجَةَ فَقَالَ زَمِّلُوْنِيْ
زَمِّلُوْنِيْ فَزَمَّلُوْهُ حَتّٰى ذَهَبَ عَنْهُ
الرَّوْعُ فَقَالَ يَا خَدِيْجَةُ مَالِيْ وَ اَخْبَرَهَا
الْخَبَرَ' وَ قَالَ قَدْ خَشِيْتُ عَلٰى نَفْسِيْ'
فَقَالَتْ لَهُ كَلَّا اَبْشِرْ فَوَاللّٰهِ لَا يُخْزِيْكَ
اللّٰهُ اَبَدًا' اِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ وَ تَصْدُقُ
الْحَدِيْثَ وَ تَحْمِلُ الْكَلَّ وَ تَقْرِي
الضَّيْفَ وَ تُعِيْنُ عَلٰى نَوَآئِبِ الْحَقِّ
ثُمَّ انْطَلَقَتْ بِهٖ خَدِيْجَةُ حَتّٰى اَتَتْ بِهٖ
وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ ابْنِ اَسَدِ بْنِ عَبْدِ
الْعُزّٰى ابْنِ قُصَيٍّ' وَ هُوَ ابْنُ عَمِّ
خَدِيْجَةَ اَخُوْ اَبِيْهَا' وَ كَانَ امْرَاً تَنَصَّرَ
فِي الْجَاهِلِيَّةِ' وَ كَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ

السلام راغے' اوونيلے' اولوله (پړه) حضورؐ ورته
اوفرمائيل' چه زه ناخوانده يم (حضورؐ فرمائي) هغه زه
اونيولم او زور سره ئے دباؤ کړم' چه هغے سره ماته
تکليف اوشو. بيائے زه پريښودم. اوونيلے اولوله (پړه)
ماورته اووئے' زه خوانده نه يم هغه په دويم ځل زه
اونيولم او زور سره ئے دباؤ کړم. اوونيلے اولوله ماورته
اووے زه لوستونکے نه يم. بيائے زه په دريم ځل زور سره
دباؤ کړم' چه هغے سره ماته تکليف اوشو. بيائے
پريښودم' ونيلے' اِقرأ باسم ربک الذي خلق: الخ يعني ذَ
خپل رب نوم سره لوله' چه هغه پيدا کړه: مالم يعلم:
پورے اولست. حضورؐ بي بي خديجے ته واپس تشريف
راوړلو' نو د حضورؐ اوږے (شانے) رپيدلے. حضورؐ
اوفرمائيل' په ما کمبل واچوئے' په ما کمبل واچوے
خلقو پرے کمبل واچولو' تر دے چه د خوف اثر لاړلو'
نو وے فرمائيل. آے خديجےؓ په ما څه ځل شوے دے' او
ټوله واقعه ئے ورته بيان کړه' او وے فرمائيل چه ما سره
د' خان ويره ده. بي بي خديجےؓ ورته اووے' هيڅ کله نه.
تاسوؐ خوشحاله اوسئے په خدائے مِ دے قسم وي' الله به
هيڅ کله تاسوؐ رسوا نه کړي' تاسوؐ خو صله رحمي
کوئے' او حقه خبره کوئے. غريبانو سره نيک سلوک
کوئے د ميلمنو ميلمستيا کوئے. او ذَ حق لار کښ
راتلونکے مصيبتونو کښ مدد کوئے. بيا بي بي خديجےؓ
حضورؐ ورقه بن نوفل بن اسد بن عبد العزي بن قصي له
بوتلو' چه ذَ بي بي خديجےؓ د' تره ځوئے وو. او ذَ
جاهليت زمانه کښ نصراني شوے وو. او عربي ژبه کښ
ئے ليکل کول. انجيل به ئے عربي ژبه کښ ليکلو'

الْعَرَبِيَّ، فَيَكْتُبُ بِالْعَرَبِيَّةِ مِنَ الْاِنْجِيْلِ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَكْتُبَ، وَ كَانَ شَيْخًا كَبِيْرًا قَدْ عَمِيَ، فَقَالَتْ لَهٗ خَدِيْجَةُ اَيُ ابْنَ عَمِّ اِسْمَعْ مِنَ ابْنِ اَخِيْكَ فَقَالَ وَرَقَةُ ابْنَ اَخِيْ مَاذَا تَرٰى فَاَخْبَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَاٰى، فَقَالَ وَرَقَةُ هٰذَا النَّامُوْسُ الَّذِيْ اُنْزِلَ عَلٰى مُوْسٰى، يَا لَيْتَنِيْ فِيْهَا جَذَعًا اَكُوْنُ حَيًّا حِيْنَ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ مُخْرِجِيَّ هُمْ فَقَالَ وَرَقَةُ نَعَمْ، لَمْ يَاْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمَا جِئْتَ بِهٖ اِلَّا عُوْدِيَ وَ اِنْ يُّدْرِكْنِيْ يَوْمُكَ اَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ اَنْ تُوُفِّيَ وَ فَتَرَ الْوَحْيُ فَتْرَةً حَتّٰى حَزِنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا بَلَغَنَا حُزْنًا غَدَا مِنْهُ مِرَارًا كَيْ يَتَرَدّٰى مِنْ رُؤُسِ شَوَاهِقِ الْجِبَالِ، فَكُلَّمَا اَوْفٰى بِذِرْوَةِ جَبَلٍ لِكَيْ يُلْقِيَ مِنْهُ نَفْسَهٗ تَبَدّٰى لَهٗ جِبْرِئِيْلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ حَقًّا، فَيَسْكُنُ لِذٰلِكَ جَاشُهٗ وَ تَقِرُّ نَفْسُهٗ فَيَرْجِعُ، فَاِذَا طَالَتْ عَلَيْهِ فَتْرَةُ الْوَحْيِ غَدَا بِمِثْلِ ذٰلِكَ فَاِذَا اَوْفٰى بِذِرْوَةِ جَبَلٍ تَبَدّٰى لَهٗ مِثْلَ ذٰلِكَ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ فَالِقُ الْاِصْبَاحِ ضَوْءُ

څومره چه الله ته منظوره وه. او ډير بوډا سړے وو او نابينا شوے وو، هغه ته بي بي خديجےؓ اووے، اے د تره خويه. دَ خپل وراره واوره. ورقه تپوس اوکه. اے وراره تاسوؐ څه وينئے، نبي صلي الله عليه وسلّم چه څه ليدلے وو، هغه ئے ورته بيان کړلو. ورقه اووے. دا هغه (فريښته) ناموس دے، چه موسيٰ عليه السّلام باندے نازل شوے وه کاش چه زه هغه وخت ځوان وے، او ژوندے وے، هر کله چه ستا قوم به تا اوکاږي. حضور صلعم ورته اوفرمائيل، آيا دا خلق به مَا اوکاږي. ورقه ورته اُووے. او. کوم سړي چه هم دا څيز راوړلے دے، کوم چه تا راوړلے دے. نو هغه سره دښمني شوے ده، که ما ستاسو زمانه موندلے وے، نو ستاسو مدد به مِ کړے وو. بيا څو ورځے پس ورقه وفات شولو او وحي راتلل بند شو. تر دے چه نبي صلعم د هغے واقعاتو نه، چه مونږ ته معلوم شوے دي، دومره غمګين شولو، چه څو ځله ئے د، اوچت غر دَ څوکې نه ځان غُرځولو سره هلاکول او غوښتل. کله چه به حضور صلعم دَ غر څوکے ته اوختلو، چه خپل ځان راوغرځوي نو جبرائيل عليه السّلام به ورته ظاهر شولو او ورته به ئے وئيلے، اے محمدؐ تاسوؐ د، اللّٰه ريښتنے رسول ئے، نو دے سره به دَ حضورؐ جوش يخ شولو او طبيعت ته به ئے سکون (ارام) حاصل شولو. او واپس به ئے تشريف راوړلو. د، وحي د، راتلو سلسله چه ډير وخته پورے بنده شوه، نو بيا هغه شان اووتلو، د غر څوکے ته چه اورسيدو، نو جبرائيل عليه السلام ورته مخے ته راغے. او هغه شان ئے ورته اووے، حضرت ابن عباسؓ وائي چه: فالق الاصباح: نه مراد، ورځ کښې دَ نمر

الشَّمْسِ بِالنَّهَارِ وَضَوْءُ الْقَمَرِ بِاللَّيْلِ.

رڼا ده، او شپه کښې د سپوږمۍ رڼا ده.

**باب ۳۴۸: رُؤْيَا الصَّالِحِيْنَ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ مُحَلِّقِيْنَ رُءُوْسَكُمْ وَ مُقَصِّرِيْنَ لَا تَخَافُوْنَ فَعَلِمَ مَالَمْ تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا.**

**باب ۳۴۸: ذَ نیکانو خلقو ذَ خوب بیان، او د اللّٰه تعالٰی قول: بیشکه الله تعالٰی ذَ خپل رسول خوب ریښتنے اوښودلو، که خدائے نه منظوره وي، نو مسجد حرام کښې به خپل سر، خریلو او ویښته قینچي کولو سره داسے داخل شئ، چه تاسو ته به خوف نه وي، الله تعالٰی ته معلومه ده، کومه چه تاسو ته نه ده معلومه، هغه د دے نه مخکښې زر، د بوے بلے فتح پیرزو نه اوکړله.**

۶۷۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحٰقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرُّؤْيَا الْحَسَنَةُ مِنَ الرَّجُلِ الصَّالِحِ جُزْءٌ مِّنْ سِتَّةٍ وَّ اَرْبَعِيْنَ جُزْءً مِنَ النُّبُوَّةِ.

۶۷۷: عبد اللّٰه بن مسلمه، مالک، اسحٰق بن عبد اللّٰه بن ابي طلحه، حضرت انس بن مالک نه روایت کوي. ذَ هغه بیان دے، رسول اللّٰه صلعم ارشاد اوفرمائیلو، : صالح سړي ښه خوب د نبوت د شپږ څلویښت اجزاؤ نه یو جز دے.

**باب ۳۴۹: الرُّؤْيَا مِنَ اللّٰهِ.**

**باب ۳۴۹: خوبونه د اللّٰه ذَ جانب دي.**

۶۷۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى هُوَ ابْنُ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرُّؤْيَا مِنَ اللّٰهِ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ.

۶۷۸: احمد بن یونس، زهیر، یحیٰي بن سعید، ابو سلمه، حضرت ابو قتاده نه روایت کوي. ذَ هغه بیان دے، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو. ښه خوبونه ذَ خدائے ذَ طرف نه وي. او خراب خوبونه ذَ شیطان د طرف نه وي.

ف: اللّٰه پاک دے مونږ ذَ شیطان ذَ خوبونو نه په آمان کړي. اَللّٰهُمَّ آمین.

۶۷۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ اَبِيْ

۶۷۹: عبد اللّٰه بن یوسف، لیث، ابن هاد، عبد اللّٰه بن حباب، حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، هغه ذَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل، هر کله چه

سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا رَاٰى اَحَدُكُمْ رُؤْيَا يُحِبُّهَا فَاِنَّمَا هِيَ مِنَ اللّٰهِ فَلْيَحْمَدِ اللّٰهَ عَلَيْهَا وَلْيُحَدِّثْ بِهَا وَ اِذَا رَاٰى غَيْرَ ذٰلِكَ مِمَّا يَكْرَهُ فَاِنَّمَا هِيَ مِنَ الشَّيْطَانِ فَلْيَسْتَعِذْ مِنْ شَرِّهَا وَ لَا يَذْكُرْهَا لِاَحَدٍ فَاِنَّهَا لَا تَضُرُّهُ.

تاسو کښې څوک داسې خوب اووينې چه هغه خوښوي نو هغه د الله د طرف نه دے. هغه له د الله شکر ادا کول پکار دي او هغه دے بيان هم کړي او د دے نه علاوه که څه داسې څيز اووينې چه هغه نه خوښوي نو هغه د شيطان د طرف نه دے د هغه شرنه دے پناه اوغواړي او د هغې ذکر دے چاسره نه کوي نو هغه به ورته نقصان نه رسوي.

## بَاب ۳۵۰: اَلرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِّنْ سِتَّةٍ وَ اَرْبَعِيْنَ جُزْءً مِّنَ النُّبُوَّةِ.

## بـاب ۳۵۰: ښکلے خوب د نبوت د شپږ څلويښت (۴۶) اجزاؤ نه يو جزء دے.

۶۸۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَحْيَى اَبِيْ كَثِيْرٍ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ خَيْرًا لَقِيْتُهُ بِالْيَمَامَةِ عَنْ اَبِيْهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ مِنَ اللّٰهِ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ فَاِذَا حَلَمَ فَلْيَتَعَوَّذْ مِنْهُ وَلْيَبْصُقْ عَنْ شِمَالِهِ فَاِنَّهَا لَا تَضُرُّهُ. وَ عَنْ اَبِيْهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

۶۸۰: مسدد عبد الله بن يحيٰي بن کثير، ابو سلمه، حضرت ابو قتادهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ښکلے خوب د الله د جانبه وي. او خراب خوب د شيطان د طرف نه وي. چه خراب خوب اووينې نو هغې نه دے پناه اوغواړي. او خپل کس طرف ته دے اُوتوکي نو هغه ورته نقصان نه شي رسولے. او يحيٰي بن کثير د خپل پلار نه روايت اوکه، چه عبد الله بن قتاده د خپل پلار نه، هغه د نبي صلّي الله عليه وسلّم نه دغسې روايت اوکه.

۶۸۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ عَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِّنْ

۶۸۱: مُحَمَّد بن بشار، غندر، شعبه، قتاده، حضرت بن مالک، حضرت عباده بن صامتؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، حضورؐ اوفرمائيل. د مؤمن ښکلے خوب د نبوت د شپږ څلويښت (۴۶) حصو نه يوه حصّه

سِتَّةٍ وَّ اَرْبَعِيْنَ جُزْءً مِّنَ النُّبُوَّةِ.

ده.

۶۸۲ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِّنْ سِتَّةٍ وَّ اَرْبَعِيْنَ جُزْءًا مِّنَ النُّبُوَّةِ رَوَاهُ ثَابِتٌ وَّ حَمِيْدٌ وَّ اِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ شُعَيْبٌ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۸۲ : يحيى بن قزعه، ابراهيم بن سعد، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. د مؤمن ښكلے خوب د نبوت د شپږ څلويښت (۴۶) اجزاؤ نه يو جز دے. دا ثابت او حميد او اسحاق بن عبد اللّٰه او شعيب، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه او هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي.

۶۸۳ : حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ وَّ الدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِّنْ سِتَّةٍ وَّ اَرْبَعِيْنَ جُزْءً مِّنَ النُّبُوَّةِ.

۶۸۳ : ابراهيم بن حمزه، ابي حازم او دراوردي، يزيد، عبد اللّٰه بن خباب، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، هغه د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه ارشاد واوريدلو، چه ښكلے خوب د نبوّت د شپږ څلويښت (۴۶) حصو نه يوه حصّه ده.

باب ۳۵۱ : الْمُبَشِّرَاتِ.

باب ۳۵۱: د مبشراتو بيان.

۶۸۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَمْ يَبْقَ مِنَ النُّبُوَّةِ اِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ قَالُوْا وَ مَا الْمُبَشِّرَاتُ قَالَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ.

۶۸۴ : ابو اليمان، شعيب، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي هغه اووے، ما د نبي صلعم نه واوريدل چه د نبوت نه صرف مبشرات باقي پاتے شوے دي. خلقو تپوس اوكه، مبشرات څه څيزونه دي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ښكلي خوبونه.

باب ۳۵۲: رُؤْيَا يُوْسُفَ. وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِذْ قَالَ يُوْسُفُ لِاَبِيْهِ يٰاَبَتِ اِنِّيْ رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَاَيْتُهُمْ لِيْ سٰجِدِيْنَ قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُؤْيَاكَ عَلٰى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا اِنَّ الشَّيْطٰنَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ○ وَ كَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَ يُعَلِّمُكَ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ وَ يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَ عَلٰى اٰلِ يَعْقُوْبَ كَمَا اَتَمَّهَا عَلٰى اَبَوَيْكَ مِنْ قَبْلُ اِبْرَاهِيْمَ وَ اِسْحٰقَ اِنَّ رَبَّكَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ○ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى يَا اَبَتِ هٰذَا تَاْوِيْلُ رُؤْيَايَ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا وَ قَدْ اَحْسَنَ بِيْ اِذْ اَخْرَجَنِيْ مِنَ السِّجْنِ وَ جَآءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْ م بَعْدِ اَنْ نَّزَغَ الشَّيْطَانُ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ اِخْوَتِيْ اِنَّ رَبِّيْ لَطِيْفٌ لِّمَا يَشَآءُ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ○. رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِيْ مِنَ الْمُلْكِ وَ عَلَّمْتَنِيْ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَنْتَ وَلِيّٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّ اَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ○ فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْبَدِيْعُ وَ الْمُبْتَدِعُ وَ الْبَارِئُ وَالْخَالِقُ، وَاحِدٌ مِنَ الْبَدْءِ بَادِئَةٌ.

باب ۳۵۲: ذ يوسف عليه السلام د خوب بيان. او د، اللّه تعالي قول، چه كوم وخت يوسف عليه السلام خپل پلار ته اووے، اے خما پلاره، ما اوليدل چه يولس (۱۱) ستوري او نمر او سپوږمئ ماته سجده كوي، هغه ورته اووے، اے خما بچيه، خپلو ورونړو ته دے دا خوب مه وايه، كني هغوئ به تاته مكر جوړ كړي، بيشكه شيطان د، انسان خر گند دشمن دے. او دا شان به ستا رب تا منتخب كړي، او تاته به ذ خوبونو ذ تعبير علم دركړي، او په تا او ذ يعقوبٌ په خاندان به خپل انعام كامل كړي، څنگه چه د دے نه مخكښ ستا په نيكه، قرنيكه ابراهيمٌ او اسحاقٌ باندے ئے خپل انعام كامل كړے دے. واقعي ستا رب لوئے علم والا حكمت واله دے. او د، اللّٰه تعالٰي قول، چه حضرت يوسفٌ اووے اے خما بابا جانه، دا خما ذ خوب هغه تعبير دے، چه ما مخكښ ليدلے وو، چه هغه خما رب ريښتنے كړلو. او خدائے ماسره احسان اوكه يو خو، دا چه زه د قيد ته ازاد كړم، دويم دا چه تاسو قول ئے ذ ځنگل نه دلته راوستئے، پس ذ هغے نه چه شيطان خما او خما د، ورونړو مينځ كښ فساد اُوغرځولو، بلاشبه خما رب چه څه غواړي، ذ هغے ښه تدبير كوي، هغه لوئے علم او حكمت واله دے. اَے خما ربه، تا ماله ذ سلطنت حصَه راكړله. او ذ خوبونو ذ تعبير علم دے راكړلو. اے د، اسمان او زمكے پيدا كونكيه، ته خما دنيا او اخرت كښ كارساز ئے. ما مسلمانئے كښ وفات كړے، او نيكانو سره م يو ځائے كړے. فاطر، بديع، مبتدع، باري، او د، خالق يو معني دي. بدء: بادئة: راځي.

باب ۳۵۳: رُؤْيَا اِبْرَاهِيْمَ

باب ۳۵۳: ذ، حضرت براهيم عليه السَّلام ذ

عليه السَّلَامُ وَ قَوْلِهِ تَعَالٰى. فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّيْ أَرٰى فِي الْمَنَامِ أَنِّيْ أَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى. قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِيْ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيْنَ فَلَمَّا أَسْلَمَا وَتَلَّهُ لِلْجَبِيْنِ وَ نَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيْمُ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا إِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ. قَالَ مُجَاهِدٌ. أَسْلَمَا سَلَّمَا مَا أُمِرَا بِهِ. وَتَلَّهُ. وَضَعَ وَجْهَهُ بِالْأَرْضِ.

خوب بيان، او د اللّٰه تعالىٰ قول، كوم وخت چه ابراهيم عليه السلام سره اسماعيل عليه السّلام د، كرخيدو شو، نو حضرت ابراهيمؑ اووے، اے خما بچوړيه، ما خوب ليدلے دے چه زه تا، ذبح كوم. وايه، ستا څه خيال دے. هغه ورته اووے، اے خما بابا جانه، ۮ څه چه تاسو ته حكم دركړے شوے دے .هغه ترسرة كړئے. انشاء اللّٰه تاسو به ما د صابرانو نه بيامومئے، كوم وخت چه دواړه تيار شو. او پرمخے ئے واچولو نو مونږ ورته نعرے كړے، چه اے ابراهيم (عليه السّلام)، تا خپل خوب ريښتنے اوښودلو، مونږ نيكانو ته دغسے بدله وركوو. مجاهد اووے، چه: اسلما: نه مراد، چه دواړو تسليم كړه (اومنله) او: تله: نه مراد دا دے، چه د هغه مخ ئے په زمكه كيښودلو.

## بَابٌ ۳۵۴: التَّوَاطُؤُ عَلَى الرُّؤْيَا.

## باب ۳۵۴: د، ډيرو سړو د، يو قسم خوب ليدو بيان.

۲۸۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ أُنَاسًا أُرُوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ وَ أَنَّ أُنَاسًا أُرُوْا أَنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْتَمِسُوْهَا فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ.

۲۸۵: يحيى بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سالم بن عبد اللّٰه، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے. خنے .خلقو ته شب قدر اخري اوو شپو كښں اوښودلے شوه، او خنے خلقو ته آخري لس (۱۰) شپو كښں اوښودلے شوه نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل چه دا، آخري اوو شپو كښں تلاش كوئے.

## بَابٌ ۳۵۵: رُؤْيَا أَهْلِ السُّجُوْنِ وَالْفَسَادِ وَالشِّرْكِ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَ دَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ قَالَ أَحَدُهُمَا إِنِّيْ أَرَانِيْ أَعْصِرُ خَمْرًا

## باب ۳۵۵: ۮ قيديانو، هندوانو او مشركانو د خوب ليدو بيان، ځكه چه اللّٰه پاك اُوفرمائيل، چه حضرت يوسف عليه السَّلام سره دوه (۲) خوانان هم جيل خانه كښں داخل شول. يو كس اووے. مَا خوب

وَ قَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْ اَرٰىنِيْ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ. قَالَ لَا يَاْتِيْكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقٰنِهٖ اِلَّا نَبَّاْتُكُمَا بِتَاْوِيْلِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّاْتِيَكُمَا ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ اِنِّيْ تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ هُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ. وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآئِيْ اِبْرٰهِيْمَ وَ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ مَا كَانَ لَنَا اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ذٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَيْنَا وَ عَلَى النَّاسِ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ. يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ ءَ اَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُوْنَ وَ قَالَ الْفُضَيْلُ لِبَعْضِ الْاَتْبَاعِ. يَا عَبْدَ اللّٰهِ اَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُوْنَ خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ اِلَّا اَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوْهَا اَنْتُمْ وَ اٰبَآؤُكُمْ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْا اِيَّاهُ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ اَمَّا اَحَدُكُمَا فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا وَّ اَمَّا الْاٰخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَاْكُلُ الطَّيْرُ

ليدلے دے' چه زه شراب نچوړي كوم' او بل كس اووے' زه خپل ځان داسے وينم' چه په سر روټئے اُوړم (لے جاتا ہوں) او مارغان د هغے نه (په ټونګو) خوري. مونږ ته د دے (خوب) تعبير اوښايه. تاله مونږ ته نيک ښكاريږے يوسف عليه السّلام ورته اوفرمائيل' كوم طعام چه تاسو له راځي' چه هغه تاسو خورئے دَ هغے د' راتلو نه مخكښ به زه تاسوته د دے حقيقت اوښايم' او دا ښودل د هغے علم په بركت دي' چه ځما رب ماله راكړے دے ما د هغوي ملّت پريښودو' چه په اللّٰه ايمان نه راوړي. او هغوي د' اخرت هم منكر دي. او زه دَ خپل پلار نيكه د' ملت تابع يم. د' ابراهيمؑ' اسحاقؑ او يعقوبؑ مونږ سره نه ښائي' چه اللّٰه سره څه څيز شريک اوګرځوو. دا په مونږ او په خلقو د' اللّٰه يو فضل دے. ليكن اكثر خلق شكر نه اوباسي اے دَ قيدخانے ملګرو' ايا متفرق معبودان ښه دي يا يو معبود برحق' چه دَ ټولو نه زبردست دے هغه ښه دے. تاسو خلق خو' خدائے پريږدئے' صرف دَ يو څو بے حقيقته نومونو عبادت كوئے' چه هغه تاسو او ستاسو پلرونو نيكونو (خدايان) ګرځولے دي. خدائے تعالىٰ خو' دَ هغے څه دليل نه دے راليږلے. حكم دَ خدائے دے. هغه دا حكم كړے دے. چه بغير دَ هغه نه دَ بل هيچا عبادت مه كوئے دا سمه نيغه لاره ده. ليكن اكثر خلق نه پوهيږي. اے د جيل خانے ملګرو' تاسو كښ يو' خو' به خپل آقا باندے شراب څكوي او دويم به په سُولئ اوخيژولے شي. او دَ هغه سره به مارغان خوري' دَ څه څيز په باره كښ چه تاسو تپوس كولو' هغه داسے مقدر شوے دے او په كوم سړي چه دَ خلاصي (رہائی) ګمان

مِنْ رَّأْسِهٖ قُضِيَ الْاَمْرُ الَّذِيْ
فِيْهِ تَسْتَفْتِيٰنِ وَ قَالَ لِلَّذِيْ ظَنَّ
اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِيْ عِنْدَ
رَبِّكَ فَاَنْسٰهُ الشَّيْطٰنُ ذِكْرَ رَبِّهٖ
فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِيْنَ
وَ قَالَ الْمَلِكُ اِنِّيْ اَرٰى سَبْعَ
بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ
وَّ سَبْعَ سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّ اُخَرَ
يٰبِسٰتٍ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَاُ اَفْتُوْنِيْ فِيْ
رُءْيَايَ اِنْ كُنْتُمْ لِلرُّءْيَا
تَعْبُرُوْنَ. قَالُوْۤا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ
وَ مَا نَحْنُ بِتَاْوِيْلِ الْاَحْلَامِ بِعٰلِمِيْنَ
وَ قَالَ الَّذِيْ نَجَا مِنْهُمَا وَ ادَّكَرَ بَعْدَ
اُمَّةٍ اَنَا اُنَبِّئُكُمْ بِتَاْوِيْلِهٖ
فَاَرْسِلُوْنِ يُوْسُفُ اَيُّهَا الصِّدِّيْقُ
اَفْتِنَا فِيْ سَبْعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ
يَّاْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَّ سَبْعِ
سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّ اُخَرَ يٰبِسٰتٍ
لَّعَلِّيْۤ اَرْجِعُ اِلَى النَّاسِ
لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُوْنَ. قَالَ تَزْرَعُوْنَ
سَبْعَ سِنِيْنَ دَاَبًا فَمَا حَصَدْتُّمْ
فَذَرُوْهُ فِيْ سُنْۢبُلِهٖۤ اِلَّا قَلِيْلًا
مِّمَّا تَاْكُلُوْنَ. ثُمَّ يَاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِ
ذٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَّاْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ
لَهُنَّ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّا تُحْصِنُوْنَ. ثُمَّ
يَاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَامٌ فِيْهِ يُغَاثُ

وو. هغه ته يوسف عليه السّلام اوفرمائيل. چه خپل آقا ته
خما ذكرهم اوكړه. بيا خپل آقا ته تذكره كول ذ هغه نه
شيطان هير كړل. نو قيد خانه كښې نور هم يو څو كاله
هغه پاتې شو. او بادشاه اووې، زه وينم، چه اووه (۷)
سربې غواګانې دي چه هغه اوو خوارو غواګانو او
خوړې او اووه وږي شنه دي او د دې نه علاوه اووه (۷)
وږي نور دي، چه خشک دي. اې دربار والو كه تاسو
تعبير راكولې شې خما د دې خوب باره كښې ماله جواب
راكړې. هغوئ ورته اووې داهسې پريشان خيالات
دي. او مونږ خلق د خوبونو ذ تعبيرونو علم هم نه لرو
هغې دوو قيديانو كښې چه كوم خلاص (رہا) شوې وو.
هغه اووې. او څه موده پس هغه ته خيال راغې. زه د دې
تعبير خبر راوړم، تاسو ماته ذ تلو لږ اجازت راكړئې اې
يوسف عليه السّلام، اې صدق مجسم تاسو مونږ ته د
دې جواب راكړئې، چه اووه (۷) سربې غواګانې دي،
هغه اووه (۷) خوارو غواګانو او خوړلې. او اووه (۷)
شنه وږي دي او ذ هغې نه علاوه خشک هم دي چه زه
خلقو له ورشم. چه هغوي ته هم (د دې خوبونو تعبير)
معلوم شي. يوسف عليه السّلام اوفرمائيل، تاسو اووه
(۷) كاله متواتر غله كَرئې (غله بونا) بيا چه كوم فصل
اوريبئې، هغه په وَږو كښې پريږدې (يعني سپينه وې ئې
مه) خو هغه لږ شان چه ستاسو د خوراک د پاره وي. بيا
به ذ هغې نه اوه (۷) كاله نور به داسې سخت راشي، چه
دا ذخيره به اوخوري، چه تاسو به دې كلونو (برسوں) د
پاره جمع ايښې وي، خو لږ شان چه تاسو به ئې
پريږدئې. بيا به دې نه پس يو كال راشي، چه هغې كښې

النَّاسُ وَ فِيْهِ يَعْصِرُوْنَ. وَ قَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِيْ بِهٖ فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ قَالَ ارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ وَادَّكَرَ افْتَعَلَ مِنْ ذَكَرٍ اُمَّةٍ قَرْنٍ وَ يَقْرَأُ اَمَهٍ نِسْيَانٍ. وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَعْصِرُوْنَ الْاَعْنَابَ وَالدُّهْنَ تَحْصِنُوْنَ. تَحْرُسُوْنَ.

به خلقو د پاره بنه باران اوشي: آخر آيت پورے. او: وَ اَدَّکَرَ: باب افتعال نه دے. "ذکر" نه ماخوذ دے. او "اُمهٍ" نه مراد قرن دے. او بعضے "اَمهٍ" لوستے دے، په معنی د، نسيان (هيرے). او ابن عباسؓ وائي چه: يعصرون الاعناب والدُّهن: انګور نچوړول، او تيل اوبنکل. او تحصنون معنی دي: تاسو حفاظت کوئے.

۶۸۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَنَّ سَعِيْدَ ابْنَ الْمُسَيَّبِ وَ اَبَا عُبَيْدٍ اَخْبَرَاهُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوْسُفُ ثُمَّ اَتَانِيَ الدَّاعِيُ لَاَجَبْتُهٗ.

۶۸۶ : عبد اللّٰه، جويريه، مالک، زهري، سعيد بن مسيب او، ابو عبيد حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، که زه قيد خانه کښ دومره موده پاتے شوے وے، څومره موده چه يوسف عليه السّلام پاتے وو، او ماله د، بادشاه قاصد راغلے وے، نو ما به (بلاشرط) د هغه دعوت قبول کړے وو.

بَابٌ ۳۵۶: مَنْ رَّاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَنَامِ.

باب ۳۵۶: ذَ هغه سړي ذَ خوب بيان چه هغه نبي صلّعم خوب کښ اوليدلو.

۶۸۷ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ رَّاٰنِيْ فِي الْمَنَامِ فَسَيَرَانِيْ فِي الْيَقْظَةِ وَ لَا يَتَمَثَّلُ الشَّيْطَانُ بِيْ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ اِذَا رَاٰهُ فِيْ صُوْرَتِهٖ.

۶۸۷ : عبدان، عبد اللّٰه، يونس، زهري، ابو سلمه، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے، ما ذَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه زه په خوب کښ اوليدم، نو عنقريب ما به د، بيداري حالت کښ اووينى. او شيطان څما صورت کښ نشي راتلے ابو عبد اللّٰه (بخاريؒ) وائي. ابن سيرين (د خوبونو امام) اووے، چه هر کله حضورؐ، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په صورت کښ اووينى.

۶۸۸ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى ابْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُخْتَارٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ

۶۸۸ : معلّي بن اسد، عبد العزيز بن مختار، ثابت بناني، حضرت انسؓ نه روايت کوي، ذَ هغه بيان دے حضور صلعم اوفرمائيل،

عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَاٰنِيْ فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَاٰنِيْ فَاِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَخَيَّلُ بِيْ وَ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِّنْ سِتَّةٍ وَّ اَرْبَعِيْنَ جُزْءً مِّنَ النُّبُوَّةِ.

چا چې زه په خوب کښې اوليدم، نو هغه زه اوليدم ځکه چې شيطان ځما په صورت کښې نه شي راتلې او د مؤمن خوب د شپږ څلويښت (۴۶) حصو نه يوه حصه ده.

۶۷۸۹ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ مِنَ اللّٰهِ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ فَمَنْ رَّاٰى شَيْئًا يَكْرَهُهٗ فَلْيَنْفِثْ عَنْ شِمَالِهٖ ثَلَاثًا وَّلْيَتَعَوَّذْ مِنَ الشَّيْطَانِ فَاِنَّهَا لَا تَضُرُّهٗ وَ اِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَزَايَابِيْ.

۶۷۸۹ : يحيي بن بکير، ليث، عبيد الله بن ابي جعفر، ابو سلمه، حضرت ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه نه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ښکلے خوب د الله د طرف نه دے، او خراب خوب د شيطان د طرف نه دے. نو هر کله چه څوک خوب کښې ناخوښه څيز اويني، نو خپل کس طرف ته دې درے ځله لاړے تو کړي او شيطان نه دے پناه اوغواړي (اعوذ بالله من الشيطان الرجيم: دے اووائي) نو هغه ته به هيڅ نقصان نه رسي، او شيطان ځما هم شکل نشي جوړيدے.

۶۷۹۰ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ خَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنِي الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ اَبُوْ قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَّاٰنِيْ فَقَدْ رَاَى الْحَقَّ تَابَعَهٗ يُوْنُسُ وَابْنُ اَخِي الزُّهْرِيِّ.

۶۷۹۰ : خالد بن خلي، محمد بن حرب، زبيدي، زهري، ابو سلمه، حضرت ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چا چه زه (خوب کښې) اوليدم. نو هغه ټيک اوليدم. يونس او د، زهري برادر زاده (وراره) د دے متابعت کښې روايت کړے دے.

۶۷۹۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ سَمِعَ النَّبِيَّ

۶۷۹۱ : عبد الله بن يوسف، ليث، ابن هاد، عبد الله بن خباب، حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت کوي، هغه د حضور صلي الله عليه وسلم نه واوريدل

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ رَاٰنِيْ فَقَدْ رَاَى الْحَقَّ فَاِنَّ الشَّيْطٰنَ لَا يَتَكَوَّنُنِيْ.

چـا چـه زه (خـوب كـښې) اوليـدم نـو ټيک ئې اوليدم ځکه چه شيطـان زما صورت کښې نشي راتلې.

## بَاب ۳۵۷: رُؤْيَا الَّيْلِ رَوَاهُ سَمُرَةُ.

## باب ۳۵۷: دَ شپې دَ خوب ليدو بيان دا، سمره روايت اوكه.

۲۹۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ الْعَجْلِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الطُّفَاوِيُّ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُعْطِيْتُ مَفَاتِيْحَ الْكَلِمِ وَ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ، وَ بَيْنَمَا اَنَا نَائِمٌ الْبَارِحَةَ اِذْ اُعْطِيْتُ بِمَفَاتِيْحِ خَزَائِنِ الْاَرْضِ حَتّٰى وُضِعَتْ فِيْ يَدِيْ. قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَذَهَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنْتُمْ تَنْتَقِلُوْنَهَا.

۲۹۲: احمد بن مقدام عجلي محمد بن عبد الرحمٰن طفاوي، ايوب، محمد، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دې. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ماته مفاتيح الكلم راكړې شو د، رعب په ذريعه زما مدد اوكړې شو او يوه شپه چه زه اوده ووم نو ماته دَ زمكې دَ خزانې قُنجيانې راكړې شو، تر دې چه زما لاس كښې كيخودې دَ حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خو تشريف يوړلو، او تاسو هغه خزانې منتقل كوئې.

۲۹۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُسْلِمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُرَانِي اللَّيْلَةَ عِنْدَ الْكَعْبَةِ فَرَاَيْتُ رَجُلًا اٰدَمَ كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ مِّنْ اُدْمِ الرِّجَالِ لَهٗ لِمَّةٌ كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ مِنَ اللِّمَمِ قَدْ رَجَّلَهَا تَقْطُرُ مَاءً مُتَّكِئًا عَلٰى رَجُلَيْنِ اَوْ عَلٰى عَوَاتِقِ رَجُلَيْنِ

۲۹۳: عبد اللّٰه بن مسلمه، مالک، نافع، حضرت عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. مَا ته يوه شپه كعبې سره خوب كښې اوښودلې شو چه ما يو غنم رنګې ښكلې سړې اوليد ځنګه چه تاسو يو ښكلې او غنم رنګې سړې وينئې. دَ هغه لوئې لوئې خوبصورته ويخته وو، چه هغه ئې ګومنز كړي وو، ځنګه چه تهٔ يو ښائسته سنړو والا وينې او دَ هغې ويښتو نه دَ، اوبو څاڅكي څڅيدل او دَ دوو سړو په سهارا يا دَ، دوو، سړو د اوږو (كاندهوں) په سهارا، ئې دَ خانه كعبې طواف كولو. ما تپوس اوكه، دا

يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ فَسَأَلْتُ مَنْ هٰذَا فَقِيْلَ الْمَسِيْحُ بْنُ مَرْيَمَ ثُمَّ اِذَا اَنَا بِرَجُلٍ جَعْدٍ قَطَطٍ اَعْوَرِ الْعَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّهَا عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ فَسَأَلْتُ مَنْ هٰذَا فَقِيْلَ الْمَسِيْحُ الدَّجَّالُ.

ځوک دے نوراته اُوونيلے شو دا مسيح بن مريم دے بيا ما يو سړے اوليد چه دَ هغه ويښته ولول وو. او' ښئے ستر که ئے کانړئے وه او د' انګور په شان پړسيدلے وه. ما تپوس اوکه' دا ځوک دے نوراته اوونيلے شو' چه دا' مسيح دجال دے.

۶۹۴: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ كَانَ يُحَدِّثُ اَنَّ رَجُلًا اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنِّيْ اُرِيْتُ اللَّيْلَةَ فِي الْمَنَامِ وَ سَاقَ الْحَدِيْثَ وَ تَابَعَهُ سُلَيْمَانُ ابْنُ كَثِيْرٍ وَابْنُ اَخِي الزُّهْرِيِّ وَ سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَ قَالَ الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَوْ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ شُعَيْبٌ وَ اِسْحٰقُ بْنُ يَحْيٰى عَنِ الزُّهْرِيِّ كَانَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ مَعْمَرٌ لَا يُسْنِدُهُ حَتّٰى كَانَ بَعْدُ.

۶۹۴: يحيٰي' ليث' يونس ابن شهاب' عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. يو سړے دَ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو او عرض اوکه' ما دَ شپے يو خوب ليدلے دے. او حديث بيان که. او سفيان بن کثير او دَ' زهري برادر زاده او سفيان بن حسين په واسطه د' زهري' عبيد اللّٰه' حضرت ابن عباسؓ د حضرت صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت متابعت کښې روايت کړے دے او زبيدي په واسطه د' زهري' عبيد اللّٰه حضرت ابن عباسؓ يا حضرت ابو هريرهؓ دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کړے دے. او شعيب او اسحاق بن يحيٰي د' زهري نه نقل کړے دے. چه حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه به دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه حديث روايت کولو او معمر به اول د دے سند نه بيانولو' خو ورستو ئے بيانولو.

## بَاب ۳۵۸: الرُّؤْيَا بِالنَّهَارِ

وَ قَالَ ابْنُ عَوْنٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ رُؤْيَا النَّهَارِ مِثْلُ رُؤْيَا اللَّيْلِ.

**باب ۳۵۸:** دَ' ورځے د خوب ليدو بيان. او ابن عون د' ابن سيرين نه روايت کړے دے' چه د' ورځے خوب دَ شپے د خوب په شان دے.

٢٦٩٥: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ عَلَى اُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ وَ كَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ فَدَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمًا فَاَطْعَمَتْهُ وَ جَعَلَتْ تَفْلِيْ رَأْسَهُ فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَ هُوَ يَضْحَكُ قَالَتْ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ نَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةً فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَرْكَبُوْنَ ثَبَجَ هٰذَا الْبَحْرِ مُلُوْكًا عَلَى الْاَسِرَّةِ اَوْ مِثْلَ الْمُلُوْكِ عَلَى الْاَسِرَّةِ شَكَّ اِسْحٰقُ، قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَدَعَا لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ وَضَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَ هُوَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةً فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَمَا قَالَ فِي الْاُوْلٰى قَالَتْ فَقُلْتُ يَا

٢٦٩٥: عبد الله بن يوسف، مالک، اسحاق بن عبد الله بن ابي طلحه، حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي. ذ هغه نه ئے واوريدل، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم به ام حرام بنت ملحان پله چه ذ عباده بن صامت په نکاح کښ وه، تشريف اوړلو يو ورځ ئے ذ هغے پله تشريف يوړلو، نو هغے په حضور صلّي الله عليه وسلّم ډوډئ اوخوړوله او ذ حضور صلّي الله عليه وسلّم سر مبارک لټولو، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم له خوب راغئے. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم بيدار شولو، نو، خاندل ئے. د، ام حرام بيان دے، ما اووے، يا رسول الله په کومه خبره تاسو خاندئے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، خما د، اُمت څه خلق خما مخے ته پيش کړے شو، چه د، الله په لار کښ جهاد کوي، د سمندر مينځ کښ په جهازونو سواره د، بادشاهانو په شان په تختونو ناست وو، (اسحاق ته شک دے چه، ملوکا علي الاسرة يا مثل الملوک علي الاسرة: ئے اوفرمائيل) ام حرام اووے. ما عرض اوکه، يا رسول الله، الله نه دعا اوغواړئے، چه ما هم هغوئ کښ شامله کړي حضور صلّي الله عليه وسلّم هغے د پاره دعا اوغښتله بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم خپل سر مبارک کيښودلو. او اوده شولو. بيا بيدار شولو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم خاندل. ما (اُم حرام) تپوس اوکه، يا رسول الله، تاسو په څه خبره خاندئے حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل خما د، امت ځنے خلق خما مخکښ پيش کړے شو، چه ذ خدائے په لار کښ غزا کوي څنګه چه مخکښ خل ئے فرمائيلے وو. اُم حرام اووے، يا رسول

رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ. قَالَ اَنْتِ مِنَ الْاَوَّلِيْنَ فَرَكِبَتِ الْبَحْرَ فِيْ زَمَانِ مُعَاوِيَةَ بْنِ اَبِيْ سُفْيَانَ فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِيْنَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ.

اللّٰه ذعا اوكړئے چه الله ما هغوي كښ شامله كړي. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ته د ورمبو خلقو نه ئے ام حرام د معاويه بن ابي سفيان زمانه كښ جهاز كښ سوره شوه. نو د سمندر نه د وتلو په وخت د خپلے سورلي نه اوغرځيده او وفات شوله.

باب ۳۵۹: رُؤْيَا النِّسَآءِ.

باب ۳۵۹: د ښځو د خوب بيان.

۶۹۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ اُمَّ الْعَلَآءِ اِمْرَاَةً مِّنَ الْاَنْصَارِ، بَايَعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهُمْ اقْتَسَمُوْا الْمُهَاجِرِيْنَ قُرْعَةً قَالَتْ فَطَارَ لَنَا عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُوْنٍ وَّ اَنْزَلْنَاهُ فِيْ اَبْيَاتِنَا فَوَجَعَ وَجْعَهُ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ، فَلَمَّا تُوُفِّيَ غُسِلَ وَ كُفِّنَ فِيْ اَثْوَابِهٖ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْكَ اَبَا السَّآئِبِ فَشَهَادَتِيْ عَلَيْكَ لَقَدْ اَكْرَمَكَ اللّٰهُ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَا يُدْرِيْكَ اَنَّ اللّٰهَ اَكْرَمَهُ؟ فَقُلْتُ بِاَبِيْ اَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَنْ يُّكْرِمُهُ اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا هُوَ فَوَاللّٰهِ لَقَدْ جَآءَهُ الْيَقِيْنُ، وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَرْجُوْا لَهُ الْخَيْرَ، وَ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ وَ اَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ مَاذَا يُفْعَلُ بِيْ

۶۹۲: سعيد بن عفير، ليث، عقيل، ابن شهاب، خارجه بن زيد بن ثابت نه روايت كوي. أم علاء انصاريه، چه هغې د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه بيعت كړے وو. د هغې بيان دے. مهاجرين، قرعه اچولو سره انصارو تقسيم كړل، نو عثمان بن مظعون خمونږ حصه كښ راغے، او هغه مونږ خپل كور كښ كوز كړلو، بيا هغه ته هغه درد شو، چه هغے كښ هغه وفات شولو. كوم وخت چه هغه وفات شولو، نو هغه له غسل وركړے شو. او د هغه په كپړو كښ كفن كړے شو. نبي صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو، نو ما اووے. اے ابو السائب، په تا دے د خدائے رحمت وي، زه ګواهي كوم، چه الله تاله بزرګي دركړله. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، تاته څنګه معلومه شوه، چه الله تعالٰي ده له بزرګي وركړے وه ما عرض اوكه، يا رسول الله صلي الله عليه وسلم، خما مور پلار دے په تاسو قربان شي بيا چاته به الله تعالٰي بزرګي وركوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، چه هغه خو، وفات شو، په خدائے م دے قسم وي، زه د هغه د پاره د خير اميد لرم، او قسم په خدائے، زه د الله رسول يم. بيا هم ماته نه ده معلومه، چه ماسره به څه سلوک كيږي. د ام علاء بيان دے. ما قسم

فقالت: والله لا أزكي بعده أحدا أبدا.

۶۹۷: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهٰذَا وَ قَالَ مَا أَدْرِيْ مَا يَفْعَلُ بِهٖ، قَالَتْ وَ أَحْزَنَنِيْ فَنِمْتُ فَرَأَيْتُ لِعُثْمَانَ عَيْنًا تَجْرِيْ فَأَخْبَرْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ذٰلِكَ عَمَلُهُ.

باب ۳۶۰: اَلْحُلُمِ مِنَ الشَّيْطٰنِ فَإِذَا حَلَمَ فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهٖ وَلْيَسْتَعِذْ بِاللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

۶۹۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيَّ وَ كَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فُرْسَانِهٖ. قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الرُّؤْيَا مِنَ اللّٰهِ وَالْحُلُمُ مِنَ الشَّيْطٰنِ فَإِذَا حَلَمَ أَحَدُكُمُ الْحُلُمَ يَكْرَهُهُ فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهٖ وَلْيَستَعِذْ بِاللّٰهِ مِنْهُ فَلَنْ يَضُرَّهُ.

باب ۳۶۱: اللَّبَنِ.

۶۹۹: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِيْ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ ابْنَ

او حوږلو چه اوس به هيڅ کله د چا برې والے نه کوم.

۶۹۷: ابو اليمان، شعيب، زهري نه هغه حديث روايت کوي. چه حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: ماته نه ده معلومه چه هغه سره به څه سلوک کيږي د ام علاء بيان دے. زه خفه شوم، اوده شوم، نو اوم ليدل چه عثمانؓ د پاره يو چينه جاري ده. ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته واقعه بيان کړه، نو حضورؐ اوفرمائيل دا د هغه عمل دے.

باب ۳۶۰: خراب خوب د شيطان د طرف نه دے. هر کله چه څوک خراب خوب اووينى نو خپل گس طرف ته دے اُوتوکي. او د الله بزرگ و برتر پناه دے اوغواړي.

۶۹۸: يحيى بن بکير، ليث، عقيل، ابن شهاب، ابو سلمه، حضرت ابو قتاده انصاري (چه د نبي صلي الله عليه وسلم صحابي او شهسوار وو) روايت کوي، د هغه بيان دے. ما د، رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، ښکلے خوب د، الله د طرف نه دے، او خراب خوب د شيطان د طرف نه دے، تاسو کښې چه څوک داسے خوب اووينى، چه د هغه خوښ نه وي، نو هغه دے خپل گس طرف (لاړے) اُوتوکي، او د، الله پناه دے اوغواړي. نو هغه ته هيڅ کله نقصان نشي رسولے (اعوذ بالله مِنَ الشيطان الرجيم دے اووائي).

باب ۳۶۱: خوب کښې د پيو ليدو بيان.

۶۹۹: عبدان، عبد الله، يونس، زهري، حمزه بن عبد الله، حضرت ابن عمر نه روايت کوي. د هغه بيان دے، ما د نبي صلي الله عليه وسلم نه واوريدل،

عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَا اَنَا نَآئِمٌ اُتِيْتُ بِقَدَحٍ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ مِنْهُ حَتّٰى اِنِّيْ لَاَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ مِنْ اَظْفَارِيْ ثُمَّ اَعْطَيْتُ فَضْلِيْ يَعْنِيْ عُمَرَ قَالُوْا فَمَآ اَوَّلْتَهٗ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الْعِلْمُ.

**باب ۲٦۲: اِذَا جَرَى اللَّبَنُ فِيْ اَطْرَافِهٖ اَوْ اَظَافِيْرِهٖ.**

٧٠٠٠: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا نَآئِمٌ اُتِيْتُ بِقَدَحٍ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ مِنْهُ حَتّٰى اِنِّيْ لَاَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ مِنْ اَطْرَافِيْ فَاَعْطَيْتُ فَضْلِيْ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقَالَ مَنْ حَوْلَهٗ فَمَا اَوَّلْتَ ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ الْعِلْمُ.

**باب ۲٦۳: اَلْقَمِيْصِ فِي الْمَنَامِ.**

٧٠٠١: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اُمَامَةَ بْنُ

يو خل زه اُوده ووم. ماته ذ پيؤ يوه پيالے راوړے شوه ما ذ هغے نه اوڅكل، تر دے چه د' موږ! پ ائر خمه د نوكونو نه ظاهر شو، بيا ما بچ شوے پينے ع. له وركړل. خلقو تپوس اوكه يا رسول الله! دے څه تعبير اوكړلو. حضور صلّي اللّٰه سے ورته اوفرمائيل، علم.

**باب ۲٦۲: خوب كښې پيو څكلو سره ذ خپلو نوكونو او د' اطرافو ذ سيرابي د ليدو بيان.**

٧٠٠٠: علي بن عبد اللّٰه، يعقوب بن ابراهيم، ابراهيم، صالح، ابن شهاب، حمزه بن عبد اللّٰه بن عمر، حضرت عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي ذ هغه بيان دے. ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل يو خل زه اُوده ووم، چه د پيؤ يوه پيالے راوړلے شوه ما د هغے نه اوڅكل، تر دے چه خما د' نوكونو نه هم ذ' سيرابي (موړوالي) اثر ظاهر شولو بيا باقي پاتے شوے پينے ما عمرؓ بن خطاب له وركړل، كوم خلق چه خواؤ شا كښې ناست وو، هغوئ تپوس اوكه، يا رسول اللّٰه، تاسوؐ د دے څه تعبير اوښكلو. حضورؐ اوفرمائيل، علم.

**باب ۲٦۳: خوب كښې ذ قميص ليدو بيان.**

٧٠٠١: علي بن عبد اللّٰه يعقوب بن ابراهيم، ابراهيم، صالح، ابن شهاب، ابو امامه بن سهل، حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه

سَهْلٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ النَّاسَ يُعْرَضُوْنَ عَلَيَّ وَ عَلَيْهِمْ قُمُصٌ مِّنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ دُوْنَ ذٰلِكَ وَ مَرَّ عَلَيَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَ عَلَيْهِ قَمِيْصٌ يَجُرُّهُ قَالُوْا مَا اَوَّلْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الدِّيْنُ.

وسلّم اوفرمائيل' يو ځل زه اُوده ووم. ما اوليدل چه خلق ماته پيش كيږي' او هغوي قميصونه اغستي دي ذ بعضو قميص سينې پورې' او ذ بعضو د هغې نه لاندې وو' خما خواته عمرؓ تير شو. او د هغه قميص راكښلې شو (يعني ډير اوږد وو' خلقو تپوس اوكه' يا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم تاسو د دې څه تعبير اوښكلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دين.

## بَاب ٣٦٤: جَرِّ الْقَمِيْصِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ٣٦٤: خوب كښې د قميص راښكلو ذ ليدو بيان.

٢٠٧: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ اُمَامَةَ ابْنُ سَهْلٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ' بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ النَّاسَ عُرِضُوْا عَلَيَّ وَ عَلَيْهِمْ قُمُصٌ فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَ مِنْهَا مَا دُوْنَ ذٰلِكَ وَ عُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ ابْنُ الْخَطَّابِ وَ عَلَيْهِ قَمِيْصٌ يَجْتَرُّهُ قَالُوْا فَمَا اَوَّلْتَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ' قَالَ الدِّيْنَ.

٢٠٧: سعيد بن عفير' ليث' عقيل' ابن شهاب' ابو امامه بن سهل حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي ما د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل يو ځل زه اُوده ووم. ما اوليدل چه خلق خما مخې ته پيش كيږي او هغوئ قميصونه اغستې دي. ذ بعضو قميصونه سينو پورې او د بعضو ذ هغې نه لاندې پورې دي او خما مخې ته عمر بن خطابؓ پيش كړې شو. او هغه داسې قميص اغستې وو' چه راښكلو ئې. خلقو تپوس اوكه' يا رسول اللّٰه' تاسو د دې څه تعبير اوښكلو. حضورؐ ورته اوفرمائيل' دين.

## بَاب ٣٦٥: اَلْخُضْرِ فِي الْمَنَامِ وَالرَّوْضَةِ الْخُضْرَآءِ.

## باب ٣٦٥: خوب كښ ذ سبزي او شين باغ ذ ليدو بيان.

٢٠٣: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ عَنْ مُحَمَّدٍ

٢٠٣: عبد اللّٰه بن محمد جعفي حرمي بن عماره' قره بن خالد' محمد بن سيرين' ذ قيس بن عباده قول نقل كوي ذ هغه بيان دې

بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ، قَالَ قَيْسُ بْنُ عُبَادٍ كُنْتُ فِيْ حَلْقَةٍ فِيْهَا سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ وَابْنُ عُمَرَ فَمَرَّ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ فَقَالُوْا هٰذَا رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَقُلْتُ لَهُ اِنَّهُمْ قَالُوْا كَذَا وَ كَذَا قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ مَا كَانَ يَنْبَغِيْ لَهُمْ اَنْ يَقُوْلُوْا مَا لَيْسَ لَهُمْ بِهٖ عِلْمٌ، اِنَّمَا رَاَيْتُ كَاَنَّمَا عَمُوْدٌ وُضِعَ فِيْ رَوْضَةٍ خَضْرَآءَ فَنُصِبَ فِيْهَا وَ فِيْ رَأْسِهَا عُرْوَةٌ وَّ فِيْ اَسْفَلِهَا مِنْصَفٌ وَالْمِنْصَفُ الْوَصِيْفُ فَقِيْلَ ارْقَهْ فَرَقِيْتُهُ حَتّٰى اَخَذْتُ بِالْعُرْوَةِ فَقَصَصْتُهَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمُوْتُ عَبْدُ اللّٰهِ وَهُوَ اٰخِذٌ بِالْعُرْوَةِ.

سیرین نه روایت کوي چه قیس بن عباد وویل زه یو مجلس کښې ناست ووم، هغې کښې سعد بن مالک او ابن عمر هم وو. عبد الله بن سلام د هغې ځای نه تېر شو نو خلقو اووې چه دا د ښتنانو د جنت نه یو سړے دے. نو ما هغه ته اووې. چه خلق داسې داسې خبرې کوي. نو عبد الله بن سلام اووې. سبحان الله، هغوي له داسې خبره کول مناسب نه وه. چه د هغې ورته علم نشته، ما خوب کښې یو سرسبز باغ کښې یوه ستنه نصب کړے اولیده، د هغې په سر یوه کړئ (حلقه) لږېدلې وه. او د هغې لاندې یو منصف وو، منصف نه مراد خادم دے نو ماته اوونیلے شو، چه په دے اوخیژه. زه اوختلم. او هغه حلقه م اونیوله بیا دا خوب ما رسول صلعم ته بیان که، نو حضورؐ اوفرمائیل، د عبد الله مرګ به داسې حال کښې راځي، چه هغه به عروة الوثقٰي نیولے وي (یعني دین به ئې مضبوطې سره نیولے وي).

## باب ۳۶۶: كَشْفِ الْمَرْاَةِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ۳۶۶: خوب کښې د ښځې د مخ پرانستو بیان.

۴۰۷: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُرِيْتُكِ فِي الْمَنَامِ مَرَّتَيْنِ اِذَا رَجُلٌ يَحْمِلُكِ فِيْ سَرَقَةِ حَرِيْرٍ فَيَقُوْلُ هٰذِهٖ اِمْرَاَتُكَ فَاَكْشِفُهَا فَاِذَا هِيَ اَنْتِ اَقُوْلُ اِنْ يَّكُنْ

۴۰۷: عبید الله بن اسماعیل ابو اسامه، هشام د خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشې نه روایت کوي. د هغې بیان دے، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ماته خوب کښې دوه (۲) څله اوښودلے شوې چه یو سړي ریښمنې کپړه کښې ته اوچته کړې ئې او، وائي، چه دا ستا ښځه ده، نه دا پرانزه ماچه پرانستـه، نو هغه ته وې. ما اووې که دا خبره د، الله د طرف نه وي، نو ضرور به پوره

هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهِ.

**بَاب ۳۷٦۷: ثِيَابِ الْحَرِيْرِ فِي الْمَنَامِ.**

۷۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُرِيْتُكِ قَبْلَ اَنْ اَتَزَوَّجَكِ مَرَّتَيْنِ رَاَيْتُ الْمَلَكَ يَحْمِلُكِ فِيْ سَرَقَةٍ مِّنْ حَرِيْرٍ فَقُلْتُ لَهُ اَكْشِفْ فَكَشَفَ فَاِذَا هِيَ اَنْتِ فَقُلْتُ اَنْ يَّكُنْ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهِ ثُمَّ اُرِيْتُكِ فِيْ سَرَقَةٍ مِّنْ حَرِيْرٍ فَقُلْتُ اَكْشِفْ فَكَشَفَ فَاِذَا هِيَ اَنْتِ فَقُلْتُ اِنْ يَّكُ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهِ.

**بَاب ۳۷٦۸: الْمَفَاتِيْحَ فِي الْيَدِ.**

۷۰٦: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ وَ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ وَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اُتِيْتُ بِمَفَاتِيْحِ خَزَآئِنِ الْاَرْضِ فَوُضِعَتْ فِيْ يَدِيْ قَالَ مُحَمَّدٌ وَ بَلَغَنِيْ اَنَّ جَوَامِعَ الْكَلِمِ اِنَّ اللّٰهَ يَجْمَعُ الْاُمُوْرَ الْكَثِيْرَةَ الَّتِيْ كَانَتْ

کیږي.

**باب ۳۷٦۷: خوب کښې د ريښمنې کپړې د ليدو بيان.**

۷۰۵: محمد، ابو معاويه، هشام ذ خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشې رضی الله عنها نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل د، واده نه مخکښې ته ما دوه ځله خوب کښې اوليدې ما يوه فريښته اوليده، چه په ريښمينه کپړه کښې ئې اوچته کړې ئې. ما هغې ته اووې، دا پرانزه. هغې پرانسته، نو ته وې. ما اووې، که دا، د الله د طرف نه وي، نو دا، به ضرور پوره کړي بيا ته ماته اوښودلې شوې چه ته ريښمينه کپړه کښې فريښتې اوچته کړې وې. ما اووې. دا پرانزه. هغې پرانسته نو ته په نظر راغلې ما اووې که د الله ذ طرف نه وي، نو دا، به ضرور پوري کړي.

**باب ۳۷٦۸: لاس کښې د قنجيانو د، ليدو بيان.**

۷۰٦: سعيد بن عفير رحمه الله، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت کوي، ذ هغه بيان دې، ما د، رسول الله صلعم نه واوريدل، چه زه جوامع الکلم سره راليږلې شوې يم. او، د، رُعب په ذريعه خما مدد شوې دې. او يو ځل اُوده ووم، نو ماته د، زمکې د خزانې قنجيانې راکړې شوې. او خما لاس کښې کيښودې شوې. او ذ محمد بيان دې ماته خبر راسدلې دې، چه جوامع الکلم دادې چه الله تعالي به ډير امور راجمع کړي، چه د حضور صلي الله

يَكْتُبُ فِي الْكُتُبِ قَبْلَهُ فِي الْاَمْرِ الْوَاحِدِ وَالْاَمْرَيْنِ اَوْ نَحْوَ ذٰلِكَ.

عليه وسلم نه مخكښ به ذ يو يا، دوه كارونو متعلق كتابونو كښې ليكلے شو.

ف: جوامع الكلم: هغه كلام چه ذ هغے الفاظ لږ او مطلب ډير زيات وي. قرآن شريف.

جوامع: ټول، كل، داسے چه لفظونه ئے كم او مطلبونه ئے ډير وي.

باب ۳۶۹: التَّعْلِيْقِ بِالْعُرْوَةِ وَالْحَلْقَةِ.

باب ۳۶۹: قلابه او څه حلقه نيولو سره د، اويزاندلو د ليدو بيان.

۷۰۴: حَدَّثَنِيُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَزْهَرُ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ ح وَحَدَّثَنِيُ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا مُعَاذُ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا قَيْسُ ابْنُ عَبَّادٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ رَاَيْتُ كَاَنِّيُ فِيُ الرَّوْضَةِ وَسْطَ الرَّوْضَةِ عُمُوْدٌ فِيُ اَعْلَى الْعُمُوْدِ عُرْوَةٌ فَقِيْلَ لِيُ اِرْقَهُ قُلْتُ لَا اَسْتَطِيْعُ فَاَتَانِيُ وَصِيْفٌ فَرَفَعَ ثِيَابِي فَرَقِيْتُ فَاسْتَمْسَكْتُ بِالْعُرْوَةِ فَانْتَبَهْتُ وَ اَنَا مُسْتَمْسِكٌ بِهَا فَقَصَصْتُهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تِلْكَ الرَّوْضَةُ رَوْضَةُ الْاِسْلَامِ، وَ ذٰلِكَ الْعُمُوْدُ عُمُوْدُ الْاِسْلَامِ وَ تِلْكَ الْعُرْوَةُ عُرْوَةُ الْوُثْقٰى لَا تَزَالُ مُسْتَمْسِكًا بِالْاِسْلَامِ حَتّٰى تَمُوْتَ.

۷۰۴: عبد الله بن محمد، ازهر ابن عون، ح، خليفه، معاذ، ابن عون، محمد، قيس بن عباد، عبد بن سلامؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. ما خوب اوليدو، چه يو باغ كښې يم او ذ، باغ مينځ كښې يو ستن ده. او ستنے د پاسه يوه قلابه (حلقه) ده. ماته اووئيلے شو، په دے اوخيژه ما اووے زه نشم ختلے. ماله خادم راغے، هغه خما كپړه اوچته كړه. (زه اوختلم. او ما قلابه (حلقه) اونيوله. بيا زه راويښ شوم، نو هغه م نيولے وه، ما دا خوب حضور صلعم ته بيان كه. نو حضور صلعم اوفرمائيل، هغه باغ د اسلام باغ دے او هغه ستن ذ، اسلام ستن ده. او هغه قلابه (حلقه) عروة الوثقي ده. او تابه اسلام تر مركه پورے تينګ نيولے وي.

باب ۳۷۰: عُمُوْدِ الْفُسْطَاطِ تَحْتَ وِسَادَتِهٖ.

باب ۳۷۰: د خپلے تكيه لاندے ذ خيمے د، ستن ليدو بيان.

باب ۳۷۱: اَلْاِسْتَبْرَقِ وَ دُخُوْلِ الْجَنَّةِ فِي الْمَنَامِ.

باب ۳۷۱: خوب كښې استبرق او جنت كښې ذ، داخليدو ذ ليدو بيان.

ف: استبرق: غټه ريښمينه کپړه. ديبا.

۷۰۸: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ فِي يَدِي سَرَقَةً مِّنْ حَرِيْرٍ لَا أَهْوِي بِهَا إِلَى مَكَانٍ فِي الْجَنَّةِ إِلَّا طَارَتْ بِي إِلَيْهِ فَقَصَصْتُهَا عَلَى حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أَخَاكَ رَجُلٌ صَالِحٌ أَوْ قَالَ إِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ رَجُلٌ صَالِحٌ.

۷۰۸: معلي بن اسد، وهيب، ايوب، نافع، ابن عمر نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. ما خوب کښې اوليدل چه خما لاس کښې دَ ريښمينو يوه کپړه ده. او د جنت کوم مکان ته چه تلل غواړم، هغه ما ورالوځوي ما دا خوب حفصې﵂ ته بيان که، او حفصې﵂ نبي صلعم ته بيان که، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه ستا ورور صالح سړے دے. يا ورے فرمائيل، چه عبد اللّٰه صالح سړے دے.

باب ۳۷۲: اَلْقَيْدِ فِي الْمَنَامِ.

باب ۳۷۲: خوب کښې د قيد ليدو بيان.

۷۰۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ عَوْفًا حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيْرِيْنَ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ لَمْ تَكَدْ تَكْذِبُ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ وَ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِّنْ سِتَّةٍ وَّ أَرْبَعِيْنَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ. قَالَ مُحَمَّدٌ وَّ أَنَا أَقُوْلُ هٰذِهٖ قَالَ وَ كَانَ يَقُوْلُ الرُّؤْيَا ثَلَاثٌ حَدِيْثُ النَّفْسِ وَ تَخْوِيْفُ الشَّيْطَانِ، وَ بُشْرٰى مِنَ اللّٰهِ فَمَنْ رَّأٰى شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلَا يَقُصَّهُ عَلٰى أَحَدٍ وَّلْيَقُمْ فَلْيُصَلِّ قَالَ وَ كَانَ يَكْرَهُ الْغُلَّ فِي النَّوْمِ. وَ كَانَ يُعْجِبُهُمُ الْقَيْدُ. وَ

۷۰۹: عبد اللّٰه بن صباح، معتمر، عوف، محمد بن سيرين، ابو هريره﵁ نه نقل کوي رسول اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. کوم وخت چه قيامت قريب شي، نو دَ مؤمن خوب به دروغ نه وي. او دَ مؤمن خوب دَ نبوت د شپږ څلويښت (۴۶) حصو نه يوه حصه ده محمّد (بخاري) وائي. زه هم دا، وايم. ابن سيرين وئيلے دي، داسے وئيلے شي، چه خوب په درے قسمه دے (۱) يو خو، دَ نفس خيالات (۲) دوئيم د شيطان د طرف نه ويرول (۳) دريم د اللّٰه تعالىٰ دَ طرف نه خوشخبري. کوم سړے چه څه مکروه خوب اووينې، نو هغه دے چا ته نه بيانوي، او پادے سي، مونځ دے اوکړي او خوب کښې طوق ليدل ئے مکروه کنړل. او بيړے ئے خو[illegible]ږلے. او وئيلے

يُقَالُ الْقَيْدُ ثُبَاتٌ فِي الدِّيْنِ وَ رَوٰى قَتَادَةُ وَ يُوْنُسَ وَ هِشَامٌ وَ اَبُوْ هِلَالٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَدْرَجَهُ بَعْضُهُمْ كُلُّهُ فِي الْحَدِيْثِ عَوْفٍ اَبْيَنُ وَ قَالَ يُوْنُسُ لَا اَحْسِبُهُ اِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقَيْدِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ لَا تَكُوْنُ الْاَغْلَالُ اِلَّا فِي الْاَعْنَاقِ.

شي، چه بيړۍ نه مراد دين کښې ثابت قدمي ده. او قتاده او يونس او هشام او ابو هلال په واسطه د، ابن سيرين ابو هريرة، نبي صلعم نه دا، روايت کړې. او بعضو دا ټولې خبرې حديث کښې درج کړې دي. او د عوف حديث زيات واضحه دې او يونس اووې، چه زه د قيد متعلق روايت د حضور صلعم نه خيال کوم. ابو عبد الله (بخاريؒ) اووې، چه اغلال (طوق) گردنونو کښې وي.

## بَابٌ ۳۷۳: الْعَيْنِ الْجَارِيَةِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ۳۷۳: خوب کښې د بهيدونکې چينې د ليدو بيان.

۰ ۱ ۷: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ خَارِجَةَ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ اُمِّ الْعُلَاءِ وَ هِيَ امْرَاَةٌ مِّنْ نِسَائِهِمْ بَايَعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ طَارَ لَنَا عُثْمَانُ بْنُ مَظْعُوْنٍ فِي السُّكْنٰى حِيْنَ اقْتَرَعَتِ الْاَنْصَارُ عَلٰى سُكْنَى الْمُهَاجِرِيْنَ فَاشْتَكٰى فَمَرَّضْنَاهُ حَتّٰى تُوُفِّيَ ثُمَّ جَعَلْنَاهُ فِيْ اَثْوَابِهٖ فَدَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْكَ اَبَا السَّائِبِ فَشَهَادَتِيْ عَلَيْكَ لَقَدْ اَكْرَمَكَ اللّٰهُ قَالَ وَ مَا يُدْرِيْكِ؟ قُلْتُ لَا اَدْرِيْ وَاللّٰهِ قَالَ اَمَّا

۰ ۱ ۷: عبدان، عبد الله، معمر، زهري، خارجه بن زيد بن ثابت، ام العلاء چه دَ هغوئ نه يوه ښځه وه، او رسول الله صَلعم نه ئې بيعت کړې وو، روايت کوي د هغې بيان دې. کوم وخت چه انصارو، د مهاجرينو د، استوګنې د پاره قرعه اندازي اوکړله نو عثمان بن مظعون خمونږ په حصّه کښې راغې. هغه ناروغه شو. مونږ دَ هغه دَ ناروغتيا (دارودرملو) خدمت او کړلو، تر دې چه هغه وفات شولو، بيا مونږ هغه، دَ هغه په کپړو کښې کفن کړه. رسول الله صلعم مونږ پله تشريف راوړلو، نو ما اووې، اے ابو السائب، په تادې د خدائے رحمت وي، زه په تاګواه يم، چه الله تاله بزرګي در کړې ده. حضورؐ اوفرمائيل، تاته څنګه معلومه شو. ما اووې، په خدائے م دې قسم وي، زه نه پوهيږم، حضورؐ اوفرمائيل ده له خو مرګ راغې. زه ده د پاره د الله د، الله نه دَ خير اُميد لرم، قسم په خدائے، زه نه پوهيږم، چه

هُوَ فَقَدْ جَآءَهُ الْيَقِيْنُ اِنِّيْ لَاَرْجُوْا لَهُ الْخَيْرَ مِنَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ وَ اَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا يُفْعَلُ بِيْ وَ لَا بِكُمْ قَالَتْ اُمُّ الْعُلَاءِ فَوَاللّٰهِ لَا اُزَكِّيْ اَحَدًا بَعْدَهُ قَالَتْ وَ رَاَيْتُ لِعُثْمَانَ فِي النَّوْمِ عَيْنًا تَجْرِيْ، فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ ذَاكَ عَمَلُهُ يَجْرِيْ لَهُ.

ماسره او تاسره به څۀ كيږي، حالانكه زه د الله رسول يم. اُمّ علاء اووے، په خدائے مې دے قسم وي. دے نه پس به زه ذ هيچا تعريف اونه كړم. د ام علاء بيان دے. ما خوب كښې عثمانؓ د پاره يوه بهيدونكے چينه اوليده. زه د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضره شوم، او حضور صلّي الله عليه وسلّم ته مې دا بيان اوكه، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دا، ذ هغه عمل دے، هغه د پاره به جاري وي.

**ف**: الله پاک دے دا كتاب خمونږ ذ طرف نه هم صدقه جاريه لري. اَللّٰهم آمين.

## بَابُ ۳۷۴: نَزْعُ الْمَآءِ مِنَ الْبِئْرِ حَتّٰى يَرْوِىَ النَّاسُ. رَوَاهُ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۳۷۴: خوب كښې ذ كوهي نه د اُوبو راښكلو (اوښكلو) بيان، تر دے چه ټول خلق سيراب شي. حضرت ابوهريرةؓ دا، د حضورؐ نه روايت كړے دے.

۷۱۱: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ ابْنِ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا صَخْرُ ابْنُ جُوَيْرِيَّةَ حَدَّثَنَا نَافِعٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حَدَّثَهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا عَلٰى بِئْرٍ اَنْزِعُ مِنْهَا اِذْ جَآءَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ فَاَخَذَ اَبُوْبَكْرٍ الدَّلْوَ فَنَزَعَ ذَنُوْبًا اَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَ فِيْ نَزْعِهٖ ضُعْفٌ فَغَفَرَ اللّٰهُ لَهُ ثُمَّ اَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ مِنْ يَّدِ اَبِيْ بَكْرٍ فَاسْتَحَالَتْ فِيْ يَدِهٖ غَرْبًا فَلَمْ اَرَعَبْقَرِيًّا مِنَ النَّاسِ يَفْرِىْ فَرِيَّهٗ حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ.

۷۱۱: يعقوب بن ابراهيم بن كثير، شعيب بن حرب، صخر بن جويريه، نافع، حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، رسول الله صلعم اوفرمائيل، مَا خوب اوليد چه زَه په يو، كوهي يم، او ذ هغے نه اوبه راوكاږم په دے كښې حضرت ابوبكر او عمرؓ راغلل ابوبكرؓ بورقه واخسته او يو يا دوه بورقے ئے راوښكلے. ذ هغه په راوښكلو كښې كمزوري وه الله تعالي دے هغه معاف كړي. بيا ډول (بورقه يا بالټئ) ابن خطابؓ د ابوبكر، د لاس نه واخستلو. ذ عمر لاس كښې هغه ډول، چرس جوړ شولو. ما هيڅ پهلوان ذ عمرؓ په شان اوبه راوښكونكے نه دے ليدلے. او دومره اوبه ئے راوښكلے، چه خلقو د اوښانو د اوبه كولو د پاره حوضونه ډک كړل.

## باب ۳۷۵: نَزْعِ الذَّنُوْبِ وَالذَّنُوْبَيْنِ مِنَ الْبِئْرِ بِضُعْفٍ.

۷۱۲: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُوْسٰى عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ رُؤْيَا النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ أَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ قَالَ رَأَيْتُ النَّاسَ اجْتَمَعُوْا فَقَامَ أَبُوْبَكْرٍ فَنَزَعَ ذَنُوْبًا أَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَفِيْ نَزْعِهٖ ضُعْفٌ وَاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ ثُمَّ قَامَ ابْنُ الْخَطَّابِ فَاسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَمَا رَأَيْتُ مِنَ النَّاسِ يَفْرِيْ فَرِيَّهٗ حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ.

## باب ۳۷۵: خوب كښې د كوهي نه يو يا دوه ډول (بورقې) كمزورئ سره دَ راوښكلو د ليدو بيان.

۷۱۲: احمد بن يونس، زهير، موسىٰ، سالم د خپل پلار نه دَ رسول اللّٰه خوب دوباره دَ حضرت ابوبكرؓ او عمرؓ باره كښې روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيل. ما اوليدل چه خلق جمع دي. ابوبكرؓ اودريد، اويو يا دوه (۲) بورقې اوبه ئې راوښكلې او دَ هغه په راوښكلو كښې كمزوري وه، اللّٰه تعالىٰ دې ورته مغفرت اوكړي. بيا ابن خطابؓ اودريدلو، دَ هغه ډول په چرس كښې بدل شو. ما خلقو كښې هيڅوك نه دې ليدلې چه دَ هغه په شان اوبه راوكاږي، تر دې چه دَ اوښانو دَ اوبه كيدو حوض خلقو ډک كړلو.

ف: چرس، دَ خرمنې لوئې ډول چه دَ ارټ په كوهي پرې فصل اوبه كوي او په غويانو ئې راوكاږي.

۷۱۳: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِيْ سَعِيْدٌ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهٗ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِيْ عَلٰى قَلِيْبٍ وَعَلَيْهَا دَلْوٌ فَنَزَعْتُ مِنْهَا مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ أَبِيْ قُحَافَةَ فَنَزَعَ مِنْهَا ذَنُوْبًا أَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَفِيْ نَزْعِهٖ ضُعْفٌ وَاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ ثُمَّ اسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَأَخَذَهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِنَ النَّاسِ

۷۱۳: سعيد بن عفير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. يو ځل زه اوده ووم، چه ما خپل ځان يو كوهي سره اوليدو، چه پرې ډول ((بوقه) يا بوكه. دَ خرمن يا دَ اوسپنې نه جوړ لوښې چه دَ كوهي نه اوبه پرې راوباسي يا، ډكوي، يا بل څه قسم وړوكې يا لوئې لوښې چه اوبه پرې راخلي) ايښې شوې وو. ما دَ هغې سره اوبه راوښكلې، څومره چه اللّٰه ته منظوره وه. بيا ابن قحافه (يعني ابوبكرؓ) هغه ډول واخستلو اويو يا دوه (۲) ډول ئې راوښكل. دَ هغه راښكلو كښې كمزوري وه اللّٰه دې اوبښي. بيا هغه ډول، چرس جوړ شولو. او هغه عمر بن خطابؓ واخستلو. ما هيڅ طاقتور سړې دَ عمر بن خطابؓ په شان اوبه

يَنْزِعُ نَزَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ.

راوښکونکې نه دې ليدلې، تر دې چه خلقو د، اُوښانو، اوبه کولو د پاره حوض ډک کړلو.

باب ۳۷۶: اَلْاِسْتِرَاحَةِ فِي الْمَنَامِ.

باب ۳۷۶: خوب کښې د، آرام کولو بيان.

۷۱۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ اَنِّيْ عَلٰى حَوْضٍ اَسْقِيْ النَّاسَ فَاَتَانِيْ اَبُوْبَكْرٍ فَاَخَذَ الدَّلْوَمَنْ يَّدِيْ لِيُرِيْحَنِيْ فَنَزَعَ ذَنُوْبَيْنِ وَ فِيْ نَزْعِهٖ ضُعْفٌ وَاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ فَاَتَى ابْنُ الْخَطَّابِ فَاَخَذَ مِنْهُ فَلَمْ يَزَلْ يَنْزِعُ حَتّٰى تَوَلَّى النَّاسُ وَالْحَوْضُ يَتَفَجَّرُ.

۷۱۴: اسحٰق بن ابراهيم، عبد الرزاق، معمر، همام، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغه بيان دې رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل، زه اوده ووم، مَا خوب کښې اوليدل، چه زه په يو حوض يم او په خلقو اوبه څکوم. ماته ابوبکرؓ راغې. او ډول نې خما د، لاسه واخست، چه ماله آرام راکړي. بيا دوه بوقې نې راوښکلې. دَ هغه راوښکلو کښې کمزوري وه، اللّٰه دې اوبښي بيا ابن خطابؓ راغې. او دَ هغه نه نې بوقه (بوکه) واخسته. او برابر، نې راښکله، تر دې چه خلق واپس شو، نو دَ حوض نه اوبه بهيدلې.

باب ۳۷۷: اَلْقَصْرِ فِي الْمَنَامِ.

باب ۳۷۷: خوب کښې دَ محل ليدو بيان.

۷۱۵: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَا نَحْنُ جُلُوْسٌ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُنِيْ فِي الْجَنَّةِ فَاِذَا امْرَاَةٌ تَتَوَضَّأُ اِلٰى جَانِبِ قَصْرٍ قُلْتُ لِمَنْ هٰذَا الْقَصْرِ قَالُوْا لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَذَكَرْتُ

۷۱۵: سعيد بن عفير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دې. مونږ رسول اللّٰه صلعم سره ناست وو، نو حضورؐ او فرمائيل زه اوده ووم، نو ما خپل ځان جنت کښې اوليدلو او، اوم ليدل، چه يوه ښځه يو محل سره (خوا کښې) اودس کوي. ما تپوس اوکه، دا، د چا محل دې. خلقو راته اووې د عمر بن خطابؓ محل دې. ماته د عمرؓ غيرت راياد شو، نو زه راواپس

غَيْرَتَهُ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا، قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَبَكٰى عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ثُمَّ قَالَ أَعَلَيْكَ بِأَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَغَارُ.

شوم. د حضرت ابو هريرهٔ بيان دے چه حضرت عمرؓ په ژړا شو. بيائے عرض اوکه: يا رسول الله خما مور پلار دے په تاسو قربان وي: آيا زه به تاسو سره هم غيرت کوم.

۶۱۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ ابْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَإِذَا اَنَا بِقَصْرٍ مِنْ ذَهَبٍ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا فَقَالُوْا لِرَجُلٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَمَا مَنَعَنِيْ اَنْ اَدْخُلَهُ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ اِلَّا مَا اَعْلَمُ مِنْ غَيْرَتِكَ قَالَ وَ عَلَيْكَ اَغَارُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ.

۶۱۷: عمرو بن علي، معتمر بن سليمان، عبيد اللّٰه بن عمر، محمد بن منكدر، حضرت جابر بن عبد اللّٰه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل: زه جنت ته داخل شوم، نو زه د سرو زرو يو محل سره ولاړ ووم. ما تپوس اوکه. دا د چا محل دے: خلقو راته اووے. د قريشو د يو سړي دے. اے ابن خطابؓ زه هغے کښې د داخليدو نه څه څيز منع نه کړم، خو دا چه ماته ستا غيرت معلوم وو. حضرت عمرؓ عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، آيا زه به تاسو سره غيرت کوم.

## بَاب ۳۷۸: اَلْوُضُوْءِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ۳۷۸: خوب کښې د اودس کولو بيان.

۶۱۷: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوْسٌ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِيْ فِي الْجَنَّةِ فَإِذَا امْرَأَةٌ تَتَوَضَّأُ اِلٰى جَانِبِ قَصْرٍ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا الْقَصْرُ فَقَالُوْا لِعُمَرَ [illegible]رْتُ غَيْرَتَهُ

۶۱۷: يحيى بن بکير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهٔ نه روايت کوي. يو ځل موږ رسول اللّٰه صلعم سره ناست وو، نو حضورؐ اوفرمائيل يو ځل زه اُوده شوم، نو ما ځپل ځان جنت کښې اوليدو. او، اوم ليدل، چه يوے ښځے يو محل سره (خوا کښې) اودس کولو. ما تپوس اوکه. دا د چا محل دے. خلقو اووے، د عمرؓ دے. ماته د عـ[illegible] غيرت راياد شو نو زه راواپس شوم، حضرت

فَـوَلَّيْـتُ مُـدْبِـرًا فَبَـكَـى عُـمَرُ وَ قَـالَ عَلَيْكَ بِأَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَغَارُ.

عمرؓ پـه ژړا شـو. او ونيلـې، يـا رسول اللّٰه، ځما مور پـلار دې پـه تـاسـوَ قـربـان وي. آيـا زه بـه تـاسو سره هم غيرت كوم.

## بـاب ۳۷۹: اَلطَّـوَاف بِالْكَعْبَةِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ۳۷۹: خـوب كښې دَ كعبې دَ طواف كولو بيان.

۷۱۸: حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ الْيَمَـانِ اَخْبَـرَنَـا شُـعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَـالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عَبْدَ الـلّٰـهِ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْـنَمَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُنِيْ اَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ فَـاِذَا رَجُـلٌ اٰدَمُ سَبْطُ الشَّـعَرِ بَيْـنَ رَجُـلَيْنِ يَنْطُفُ رَاْسُهُ مَآءً فَقُلْتُ مَنْ هٰـذَا قَـالُـوْا ابْنُ مَرْيَمَ فَذَهَبْتُ اَلْتَفِتُ فَـاِذَا رَجُـلٌ اَحْـمَرُ جَسِيْمٌ جَعْدُ الرَّاْسِ اَعْـوَرُ الْـعَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّ عَيْنَهٗ عِنَبَةٌ طَـافِيَةٌ قُـلْـتُ مَـنْ هٰـذَا قَـالُوْا هٰذَا الـدَّجَّـالُ اَقْـرَبُ الـنَّاسِ بِهٖ شَبَهًا ابْنُ قَـطَـنٍ وَّ ابْـنُ قَـطَـنٍ رَّجُـلٌ مِّنْ بَنِـيْ الْمُصْطَلِقِ مِنْ خُزَاعَةَ.

۷۱۸: ابـو اليـمـان، شـعيـب، زهـري، سـالم بن عبـد الـلّٰـه بـن عـمـر، عبـد الـلّٰـه بـن عـمـرؓ نـه روايـت كـوي. رسـول الـلّٰـه صـلـعم او فرمائيل زه اُوده ووم، نو مـا خپـل خـان اولـيـدلو، چه د خانه كعبې طواف كوم. په يـو غـنم رنګې سړي مِ نظر پريوتلو. چه دَ هغه ويښته نيغ وو، او د دوو سـړو ميـنـځ كـښې وو. دَ هـغـه د سـر نه اوبه څـځيـدلې. مـا تپوس اوكه، دا څوک دې خلقو اووې. ابـن مـريـم (عيسـي عـليـه السلام) دې بيا چه زه واپـس كيدم، نو په يو سُور (سرخ) سـړي مِ نظر اُوغرځيدلو، چه وزنـي جسـم ئې وو، دَ هغه دَ سر ويښته كولګوتې وو، په ښئې ستركه كانړې (كانا) وو. يـا د هغه ستركه د، اوچ آنـګـور پـشـان وه. مـا تپوس اوكه، دا څوک دې. خلقو اووې دا، دجّـال دې. او دا، دجّـال خـلـقو كښې ابن قطن سره زيات مشابه وو (ابن قطن دَ خزاعه د بني مصطلق يو سړې وو).

## بـاب ۳۸۰: اِذَا اَعْـطٰى فَضْلَهٗ غَيْرَهٗ فِي النَّوْمِ.

## باب ۳۸۰: خـوب كـښې دَ خپلو څكلونه دَ بچ شوې څيز نورو ته د، وركولو بيان.

۷۱۹: حَدَّثَنَا يَحْيٰى اِبْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّيْـثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَـابٍ اَخْبَـرَنِيْ حَمْزَةُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْـنَ عُـمَـرَ قَـالَ سَـمِـعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ

۷۱۹: يـحيـي بـن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، حـمـزه بـن عبـد اللّٰه بن عمر، عبد اللّٰه بن عمرؓ نه روايت كـوي. مـا د، رسول اللّٰه صلعم نه واوريدل، زه اوده ووم، نـو مـاتـه د، اوبـو يـوه پيـالـې راوړلې شوه. ما د هغې نه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اُتِيْتُ بِقَدَحِ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ مِنْهُ حَتّٰى اِنِّيْ لَاَرَى الرِّيَّ يَجْرِيْ ثُمَّ اَعْطَيْتُ فَضْلَهُ عُمَرَ قَالُوْا فَمَا اَوَّلْتَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الْعِلْمُ.

او څکل، تر دې چه ما اولیدل، چه ذَ سیرابي (یعني دَ موړوالي) اثر څما دَ رګونو نه ظاهریږي بیا ما باقیمانده (پښې) عمرؓ ته ورکړل. خلقو تپوس اوکه، یا رسول اللّٰه، تاسوٌ د دې څه تعبیر اوښکلو، حضورٌ ورته اوفرمائیل، چه علم.

## بَابٌ ۱ ۳۸: اَلْاَمْنِ وَ ذَهَابِ الرَّوْعِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ۱ ۳۸: خوب کښې دَ خوف لرې کیدو او دَ آمن لیدو بیان.

۷۲۰: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا صَخْرُ بْنُ جُوَيْرِيَةَ حَدَّثَنَا نَافِعٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ اِنَّ رِجَالًا مِّنْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوْا يَرَوْنَ الرُّؤْيَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُصُّوْنَهَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُ فِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا شَآءَ اللّٰهُ وَ اَنَا غُلَامٌ حَدِيْثُ السِّنِّ وَ بَيْتِي الْمَسْجِدُ قَبْلَ اَنْ اَنْكِحَ فَقُلْتُ فِيْ نَفْسِيْ لَوْ كَانَ فِيْكَ خَيْرٌ لَرَاَيْتَ مِثْلَ مَا يَرٰى هٰؤُلَاۤءِ فَلَمَّا اضْطَجَعْتُ لَيْلَةً قُلْتُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ فِيَّ خَيْرًا فَاَرِنِيْ رُؤْيَا فَبَيْنَمَا اَنَا كَذٰلِكَ اِذْ جَآءَنِيْ مَلَكَانِ فِيْ يَدِ كُلِّ وَّاحِدٍ مِنْهُمَا مِقْمَعَةٌ مِّنْ حَدِيْدٍ يُقْبِلَانِ بِيْ اِلٰى جَهَنَّمَ وَ اَنَا بَيْنَهُمَا اَدْعُوا اللّٰهَ

۷۲۰: عبید اللّٰه بن سعید، عفان بن مسلم، صخر بن جویریه، نافع، حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دې چه صحاباؓ چه به دَ رسول اللّٰه صلعم زمانه کښې خوب اولیدلو، نو حضورٌ ته به ئې بیانولو. حضورٌ به دَ هغې تعبیر فرمائیلو، څه چه به اللّٰه تعالیٰ ته منظور وو. هغه وخت زه کم عمره خلمې ووم، او دَ نکاح نه مخکښې به زه جمات کښې اولیدم مابه خپل ځان سره وئیلې. که تا کښې څه خوبي وې، نو تا به هم داسې خوب لیدې. څنګه چه دا خلق خوب وینې. دَ شپې چه زه سملاستم، نو ما اووې یا اللّٰه، که ته ما کښې څه نیکي وینې. نو ماته هم خوب اوښائې. زه دې حال کښې ووم، چه ماله دوه (۲) فریښتې راغلې. هغوي کښې هر یو سره دَ اوسپنې څټکې (ہتھوڑا) وو، او هغوي زه جهنّم طرف ته بوتلم ما دَ هغې دواړو مینځ کښې دَ اللّٰه تعالیٰ نه دعاء غوښتله چه یا اللّٰه، زه دَ جهنّم نه ستا پناه غواړم. بیا ماته اوښودلې شو. چه ماسره یوه فریښته یوځائې شوه. دَ

اَللّٰهُمَّ اَعُوْذُبِكَ مِنْ جَهَنَّمَ قَالَ ثُمَّ اَرَانِيْ لَقِيَنِيْ مَلَكٌ فِيْ يَدِهٖ مِقْمَعَةٌ مِّنْ حَدِيْدٍ فَقَالَ لَنْ تُرَاعَ نِعْمَ الرَّجُلُ اَنْتَ لَوْ تُكْثِرُ الصَّلٰوةَ فَانْطَلَقُوْا بِيْ حَتّٰى وَقَفُوْا بِيْ عَلٰى شَفِيْرِ جَهَنَّمَ فَاِذَا هِيَ مَطْوِيَّةٌ كَطَيِّ الْبِئْرِ لَهٗ قُرُوْنٌ كَقَرْنِ الْبِئْرِ بَيْنَ كُلِّ قَرْنَيْنِ مَلَكٌ بِيَدِهٖ مِقْمَعَةٌ مِّنْ حَدِيْدٍ وَّ اَرٰى فِيْهَا رِجَالًا مُعَلَّقِيْنَ بِالسَّلَاسِلِ رُؤُسُهُمْ اَسْفَلَهُمْ عَرَفْتُ فِيْهَا رِجَالًا مِّنْ قُرَيْشٍ فَانْصَرَفُوْا بِيْ عَنْ ذَاتِ الْيَمِيْنِ فَقَصَصْتُهَا عَلٰى حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ رَجُلٌ صَالِحٌ، فَقَالَ نَافِعٌ لَمْ يَزَلْ بَعْدَ ذٰلِكَ يُكْثِرُ الصَّلٰوةَ.

هغه په لاس كښې د اوسپنې يو ګټک وو. هغه اوويل، ته خوف مه كوه. ته ښه سړے يې، كه ته كثرت سره مونځ كوے. هغه خلقو زه بوتلم، تر دے چه دَ جهنّم په غاړه يې اُودرولم هغه دَ كوهي په شكل وو. او دَ كوهي په شان دَ هغې هم دوه (۲) ښكرونه وو، او دَ هغې د هر دواړه ښكرونو مينځ كښې يوه فريښته دَ اوسپنې ګټے اخستے ولاړه وه. او ما دوزخ كښې دننه ډير خلق زنځيرونو سره آړولي اويزاند اوليدل. ما هغې كښې دَ قريشو څو سړي اوپيژندل بيا هغې فريښتو زه دَ ښي طرف نه واخستم او واپس شو. بيا ما دا خوب بي بي حفصے رضي اللّٰه عنها ته بيان كه او حفصے رضي اللّٰه عنها دا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه ته بيان كه. نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. عبد اللّٰه يو، صالح سړے دے. او، دَ نافع بيان دے چه هغه به دے نه پس برابر كثرت سره مونځ كولو.

## بَاب ۳۸۲: اَلْاَخْذِ عَلَى الْيَمِيْنِ فِي النَّوْمِ.

## باب ۳۸۲: خوب كښې په ښي طرف دَ بوتللو بيان.

۶۷۲۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنْتُ غُلَامًا شَابًّا عَزَبًا فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كُنْتُ اَبِيْتُ فِي الْمَسْجِدِ وَ كَانَ مَنْ رَاٰى مَنَامًا قَصَّهٗ عَلَى النَّبِيِّ

۶۷۲۱: عبد اللّٰه بن محمد، هشام بن يوسف، معمر، زهري، سالم، حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه، نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، زه د نبي صلعم زمانه كښې ناواده ځلمے ووم او زه به جماعت كښې اوسيدم. او كوم سړي چه به خوب ليده، نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته به يې بيانولو. ما به خپل زړه كښې وے، يا اللّٰه، كه ما د پاره

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ لِيْ عِنْدَكَ خَيْرٌ فَاَرِنِيْ مَنَامًا يُعَبِّرُهُ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنِمْتُ فَرَاَيْتُ مَلَكَيْنِ اَتَيَانِيْ فَانْطَلَقَا بِيْ فَلَقِيَهُمَا مَلَكٌ اٰخَرُ فَقَالَ لِيْ لَنْ تُرَاعَ اِنَّكَ رَجُلٌ صَالِحٌ فَانْطَلَقَا بِيْ اِلَى النَّارِ فَاِذَا هِيَ مَطْوِيَّةٌ كَطَيِّ الْبِئْرِ وَ اِذَا فِيْهَا نَاسٌ قَدْ عَرَفْتُ بَعْضَهُمْ فَاَخَذَا بِيْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ فَلَمَّا اَصْبَحْتُ ذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِحَفْصَةَ فَزَعَمَتْ حَفْصَةُ اَنَّهَا قَصَّتْهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ رَجُلٌ صَالِحٌ لَوْ كَانَ يُكْثِرُ الصَّلٰوةَ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بَعْدَ ذٰلِكَ يُكْثِرُ الصَّلٰوةَ مِنَ اللَّيْلِ.

تاسره څه نيکي وي، نو ماته اوښائې، چه ذ هغې تعبير رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائي، زه اوده شوم. نو ما دوه (۲) فريښتې اوليدې. چه ماله راغلې او زه ئې بوتلم. بيا هغوئ سره يوه فريښته بله يو ځائې شوه. هغې ماته اووې، چه ته خوف مه کوه، ځکه چه ته يو صالح سړے ئې. هغوئ دواړه زه جهنم طرف ته بوتلم، چه د کوهي په شان جوړ شوے وو. په هغې کښ م په څنو خلقو نظر پريوتلو. چه هغوي کښ بعضې ما اوپيژندل. بيا هغې فريښتو زه ښي طرف ته بوتلم. چه صبا شو. نو ما دا خوب بي بي حفصې رضي الله عنها ته بيان که. حفصې رضي الله عنها نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان که. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، عبد اللّٰه يو صالح سړے دے کاش چه ذ شپے ئې کثرت سره مونځونه کولے. ذ، زهري بيان دے. عبد اللّٰه به دے نه پس د شپے کثرت سره مونځونه کول.

## بـاب ۳۸۳: اَلْقَدَحِ فِي النَّوْمِ.

## بـاب ۳۸۳: خوب کښ ذ پيالې ليدو بيان.

۴۲۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اُتِيْتُ بِقَدَحٍ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ مِنْهُ ثُمَّ اَعْطَيْتُ فَضْلِيْ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالُوْا فَمَا اَوَّلْتَهُ يَا رَسُوْلَ

۴۲۷: قتيبه بن سعيد، ليث، عقيل، ابن شهاب، حمزه بن عبد اللّٰه، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي ذ هغه بيان دے، ما د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، چه زه اوده ووم، ماته د، پيو يوه پيالې راوړے شوه. ما ذ هغې نه اوڅکل، او باقيمانده م عمر بن خطاب له ورکړل. خلقو تپوس اوکه، يا رسول اللّٰه، تاسو د دے څه تعبير اوفرمائيلو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم

اللّٰهِ قَالَ الْعِلْمَ.

ورته اوفرمائيل' علم.

بَـابٌ ۳۸۴: اِذَا طَـارَ الشَّيْءُ فِي الْمَنَامِ.

باب ۳۸۴: هر كله چه يو څيز خوب كښې الوتونكے اووينې.

۷۴۲۳: حَـدَّثَـنِـيْ سَعِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ ابْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ عُبَيْدَةَ بْنِ نَشِيْطٍ قَالَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ سَاَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنْ رُؤْيَا رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِيْ ذَكَرَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ذُكِرَ لِيْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ اَنَّهُ وُضِعَ فِيْ يَدَيَّ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَقَطَعْتُهُمَا وَ كَرِهْتُهُمَا فَاَذِنَ لِيْ فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا. فَاَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ يَخْرُجَانِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ اَحَدُهُمَا الْعَنَسِيُّ الَّذِيْ قَتَلَهُ فَيْرُوْزُ بِالْيَمَنِ وَالْاٰخَرُ مُسَيْلَمَةُ.

۷۴۲۳: سعيد بن محمد' يعقوب بن ابراهيم' ابراهيم' صالح' ابن عبيده بن نشيط' عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه نه روايت كوي ذ هغه بيان دے' ما ذ عبد اللّٰه بن عباسؓ نه د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغے خوب متعلق تپوس اوكه' چه بيان ئے كه نو ابن عبّاسؓ اووے' ماته بيان اوشو' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. يو خل زه اُوده ووم نو ما خوب كښې اوليدل' چه څما دواړو لاسونو كښې د' سرو' زرو كنګن كيښودے شو' نو ما دے دواړو معامله ګرانه تيره شوه او ما' ناخوښه كړه. ماته اجازت راكړے شو' نو ما هغے دواړوله پوكے وركړلو. نو هغه دواړه (كنګن) والوتل. ما ذ هغے دواړو تعبير دا' اوښكلو' چه دوه (۲) دروغجن نبيان به پيدا شي. عبيد اللّٰه اووے. هغے دواړو كښې يو عنسي وو' چه هغه فيروز په يمن كښې قتل كړلو. او دويم مسيلمه وو.

بَـابٌ ۳۸۵: اِذَا رَاَى بَقَرًا تُنْحَرُ.

باب ۳۸۵: هر كله چه يو سړے غوا (ګاۓ) خوب كښې ذبح كول اووينې.

۷۴۲۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ جَدِّهٖ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اُرَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۷۴۲۴: محمد بن علاء ابو اسامه' بريد' ابو برده' حضرت ابو موسٰي نه روايت كوي. وائي. څما خيال كښې ابو موسٰي نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ما خوب اوليدلو' چه زه د مكے نه هغے زمكے طرف ته هجرت

رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ أَنِّيْ أُهَاجِرُ مِنْ مَكَّةَ إِلَى أَرْضٍ بِهَا نَخْلٌ فَذَهَبَ وَهْلِيْ إِلَى أَنَّهَا الْيَمَامَةُ أَوْ هَجَرُ فَإِذَا هِيَ الْمَدِيْنَةُ يَثْرِبُ وَ رَأَيْتُ فِيْهَا بَقَرًا وَاللّٰهُ خَيْرٌ فَإِذَاهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ يَوْمَ أُحُدٍ وَ إِذَا الْخَيْرُ مَا جَآءَ اللّٰهُ مِنَ الْخَيْرِ وَ ثَوَابِ الصِّدْقِ الَّذِيْ آتَانَا اللّٰهُ بِهٖ بَعْدَ يَوْمِ بَدْرٍ.

كوم، كوم خائے چه ذ فجورے اونے دي. خما خيال هغے طرف تـه لاړلو، چه دا يمامه يا هجر دے. ليكن هغه ذ مدينے زمكه .ه، چه ذ هغے (زوړ) نوم يثرب دے او ما هلته غوا (گاۓ) ذبح شوے اوليده الله سره خير، دے دا هغه مسلمانان وو، چه جنگ اُحد كښ شهيد شو. او خير هغه دے، چه الله مال غنيمت عطاء كړلو، او د، صدق بدله، چه الله ذ جنگ بدر نه پس عنايت كړله (يعني د مكے فتح وغيره).

## بَاب ۳۸۶: النَّفْخِ فِي الْمَنَامِ.

## باب ۳۸۶: خوب كښ ذ، پُوكي وهلو بيان.

۷۲۵: حَدَّثَنِيْ إِسْحٰقُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ قَالَ هٰذَا مَا حَدَّثَنَا بِهٖ أَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحْنُ الْآخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ إِذْ أُوْتِيْتُ خَزَائِنَ الْأَرْضِ فَوُضِعَ فِيْ يَدَيَّ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَكَبُرَا عَلَيَّ وَ أَهَمَّانِيْ فَأُوْحِيَ إِلَيَّ أَنْ أَنْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا فَأَوَّلْتُهُمَا الْكَذَّابَيْنِ اللَّذَيْنِ أَنَا بَيْنَهُمَا صَاحِبَ صَنْعَاءَ وَ صَاحِبَ الْيَمَامَةِ.

۷۲۵: اسحٰق بن ابراهيم، حنظلي، عبد الرزاق، معمر، همام بن منبه، حضرت ابو هريرهؓ حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل مونږ دنيا كښ د ټولو نه ورستو راتللونكي يو. او ړومبني هم يُو او رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل چه زه يو ځل اوده ووم، نو ماته د، زمكے خزانے راكړے شوے. خما لاس كښ د، سرو، دوه (۲) كنگن كيښودے شو، چه په ما بد اولږيدل، او زړه ئے ډير پريشانئ كښ واچولم. ماته د وحي په ذريعه اووئيلے شو، چه په دے دواړو پوك اووهه (يعني پو كے ور كړه) ما پُوكے ور كه، نو دواړه والوتل، ما د دے دا تعبير اوكه، چه دوه (۲) په دروغه نبيان به پيدا شي، او زه ذ هغے دواړو مينځ كښ يم، يو به صنعاء كښ وي او بل به يمامه كښ وي.

## بَاب ۳۸۷: إِذَا رَأَى أَنَّهُ أَخْرَجَ الشَّيْءَ مِنْ كُوْرَةٍ فَأَسْكَنَهُ مَوْضِعًا

## باب ۳۸۷: هر كله چه يو سړے اووينې، چه هغه يو څيز د، كړكۍ نه راوښكلو، او هغه ئے بل ځائے

الحَرِّ.

۷۴۲۶: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَبْدُ الْحَمِيْدِ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاَيْتُ كَاَنَّ امْرَاَةً سَوْدَآءَ ثَائِرَةَ الرَّأْسِ خَرَجَتْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى قَامَتْ بِمَهْيَعَةَ وَ هِيَ الْجُحْفَةُ فَاَوَّلْتُ اَنَّ وَبَآءَ الْمَدِيْنَةِ نُقِلَ اِلَيْهَا.

كښې اولګولو.

۷۴۲۶: إسماعيل بن عبد الله، عبد الحميد، سليمان بن بلال، موسٰي بن عقبه، سالم بن عبد الله د خپل پلار نه روايت کوي دَ هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، ما يوه توره ښځه خوب کښې اوليده، چه دَ هغې ويښته ښَر وو. هغه دَ مدينې نه اووتله، تر دے چه مهيعه کښې ايساره شوه، چه هغې ته جحفه وئيلے شي. ما د دے تعبير دا، اوکه، چه دَ مدينې وباء هغې طرف ته منتقل کړے شوه.

باب ۳۸۸: اَلْمَرْاَةِ السَّوْدَآءِ.

باب ۳۸۸: خوب کښې دَ تورے ښځې دَ ليدو بيان.

۷۴۲۷: حَدَّثَنَا اَبُوْبَكْرٍ الْمَقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فِيْ رُؤْيَا النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَدِيْنَةِ رَاَيْتُ امْرَاَةً سَوْدَآءَ ثَائِرَةَ الرَّأْسِ خَرَجَتْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى نَزَلَتْ بِمَهْيَعَةَ فَتَاَوَّلْتُهَا اَنَّ وَبَآءَ الْمَدِيْنَةِ نُقِلَ اِلٰى مَهْيَعَةَ وَهِيَ الْجُحْفَةُ.

۷۴۲۷: ابوبكر مقدمي، فضيل بن سليمان، موسٰي، سالم بن عبد الله، حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه دَ نبي صلّي الله عليه وسلّم مدينه کښې دَ خوب ليدو متعلق روايت کوي (حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمايل) ما يوه توره ښځه اوليده، چه دَ هغې ويښته ښَر وو، هغه دَ مدينې نه اووتله، تر دے چه مهيعه کښې ايساره شوه. نو ما د، هغې دا تعبير اوکه، چه د مدينې وباء مهيعه يعني جحفه طرف ته منتقل شوه.

باب ۳۸۹: اَلْمَرْاَةِ الثَّائِرَةِ الرَّأْسِ.

باب ۳۸۹: خوب کښې پريشانه ويښتو واله ښځه دَ ليدو بيان.

۷۴۲۸: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنِيْ اَبُوْبَكْرِ بْنُ اَبِيْ

۷۴۲۸: ابراهيم بن منذر، ابو بكر بن اويس، سليمان، موسي بن عقبه سالم خپل پلار

أُوَيْسٍ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ مُوْسٰى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاَيْتُ اِمْرَاَةً سَوْدَآءَ ثَائِرَةَ الرَّأْسِ خَرَجَتْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى قَامَتْ بِمَهْيَعَةَ فَاَوَّلْتُ اَنَّ وَبَآءَ الْمَدِيْنَةِ نُقِلَ اِلٰى مَهْيَعَةَ وَ هِيَ الْجُحْفَةُ.

نــه روايــت كـوي، د هـغــه بيــان دے، حـضـور صلّـي اللّـه عليـه وسلّـم اوفـرمـائيـل، ما يوه توره ښـځــه اوليـده، چــه د هـغـې ويښتـه ببر وو، هغـه د مـديـنـې نــه اووتـلـه، تر دې چه مهيعه كښې اتـاله شـوه مـا د هـغـې تـعبيـر دا، اوښـكـلـو چـه د مـديـنـې وبـا، مهيعـه يعنـي جـحـفـه طـرف تـه منتقل كړې شوه.

## باب ۳۹۰: اِذَا هَزَّ سَيْفًا فِي الْمَنَامِ.

## باب ۳۹۰: خـوب كـښې د، تـورې خوزولو د ليدو بيان.

۷۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَآءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهٖ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اُرَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاَيْتُ فِيْ رُؤْيَا اِنِّيْ هَزَزْتُ سَيْفًا فَانْقَطَعَ صَدْرُهٗ فَاِذَا هُوَ مَا اُصِيْبَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ اُحُدٍ ثُمَّ هَزَزْتُهٗ اُخْرٰى فَعَادَ اَحْسَنَ مَا كَانَ فَاِذَا هُوَ مَا جَآءَ اللّٰهُ بِهٖ مِنَ الْفَتْحِ وَ اِجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِيْنَ.

۷۲۹: محمد بن علاء ابو اسامه بريد بن عبد اللّٰه بـن ابـي بـرده، ابـو بـرده، ابـو مـوسٰي رضي اللّٰـه عنـه نـه روايــت كـوي، د هغــه بيــان دے، حـضـور صلّـي اللّٰـه عليـه وسلّـم اوفـرمـائيـل مـا خوب كښې اوليدل، چه ما تـوره اوخـوزولـه نو هغـه مينـځ كـښې ماتـه شوه. دا هـغــه مـصيبــت وو، چــه مسـلـمـانـانو تـه د، اُحد پـه ورځ رسيـدلـې وو. بيـا مـا هـغـه په دوئم ځل اوخوزوله، نو هـغـه د مـخـكـښې نـه زيـاته ښه شوله. دا هغه څيز وو چــه اللّٰــه تـعـالٰي د فتـح او د مـؤمنانو د، اجتماع شكل كښې ظاهر كړلو.

## بَابُ ۳۹۱: مَنْ كَذَبَ فِيْ حُلُمِهٖ.

## باب ۳۹۱: د هغې سړي بيان، چه دروغ خوب بيان كړي.

۷۳۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَحَلَّمَ

۷۳۰: عـلـي بـن عبد اللّٰه، سفيان، ايوب، عكرمه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّـم نـه روايـت كـوي. حـضـور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چاچه دروغ، خوب بيان كه، نو اللّٰه تعالٰي به د قيامت پـه ورځ هغه ته د، وربشې د، دوو (۲) دانو مينځ

بِحُلُمٍ لَمْ يَرَهُ كُلِّفَ أَنْ يَعْقِدَ بَيْنَ شَعِيرَتَيْنِ وَلَنْ يَفْعَلَ وَمَنِ اسْتَمَعَ إِلَى حَدِيثِ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ أَوْ يَفِرُّونَ مِنْهُ صُبَّ فِي أُذُنِهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ صَوَّرَ صُورَةً عُذِّبَ وَكُلِّفَ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا وَلَيْسَ بِنَافِخٍ. قَالَ سُفْيَانُ وَصَلَهُ لَنَا أَيُّوبُ وَقَالَ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَوْلَهُ مَنْ كَذَبَ فِي رُؤْيَاهُ وَقَالَ شُعْبَةُ عَنْ أَبِي هَاشِمٍ الرُّمَّانِيِّ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ قَوْلَهُ مَنْ صَوَّرَ وَمَنْ تَحَلَّمَ وَمَنِ اسْتَمَعَ.

کښې دَ غوټې لګولو تکلیف ورکړې او هغه به غوټه نشي ورکولې. او چا چه دَ، یو قوم خبره غوږ کیښودو سره واوریدله (یعني غوږ کیښودو سره د بل چا خبره اوریدل نه دي پکار) او هغه خلق هغه، نه خوښوي، یا تښتي ترې، نو دَ قیامت په ورځ به دَ هغه غوږونو کښې ویلې کړې سکه اچولې شي او چا چه دَ، یو څیز تصویر جوړ که، نو هغه له به عذاب ورکولې شي. او هغه له به دا تکلیف ورکولې شي چه هغې (تصویر) کښې روح واچوي، او روح به پکښې نشي اچولې سفیان اووې، مونږ ته ایوب موصولاً روایت که. او قتیبه په واسطه دَ، ابو عوانه، قتاد، عکرمه، ابو هریره رضي الله عنه نه. من کذب في الرویاه: لفظ بیان کړلو. او شعبه په واسطه دَ، ابو هاشم رماني، عکرمه، ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، چه چا تصویر جوړ کړلو، او چا چه په دروغه خوب بیان کړلو. او چا چه دَ نورو خبرې واوریدې (یعني غوږ کیښودو سره دَ بل چا خبرې اوریدل نه دي پکار).

۷۳۱: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَنِ اسْتَمَعَ وَمَنْ تَحَلَّمَ وَمَنْ صَوَّرَ نَحْوَهُ تَابَعَهُ هِشَامٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَوْلَهُ.

۷۳۱: اسحاق، خالد، خالد، عکرمه حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دغسې روایت کوي، هغې کښې بیان دې، چا چه غوږ کیښودو سره دَ نورو خبرې واوریدې. او چا چه د، دروغو خوبونه جوړ (بیان) کړل، او چا چه تصویر جوړ کړلو.

۷۳۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ

۷۳۲: علي بن مسلم، عبد الصمد، عبد الرحمٰن بن عبد الله بن دینار (د، ابن عمرؓ آزاد کرده) دَ خپل پلار نه، هغه د، ابن عمرؓ نه روایت کوي. دَ هغه بیان دې. رسول الله صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، بدترینه افترا

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَفْرَى الْفِرٰى اَنْ يُّرِيَ عَيْنَيْهِ مَالَمْ تَرَ.

پردازي (ذَ خپلې خوبه جوړول' يعني دروغ) داوي' چه انسان خپلو سترګو ته هغه څيز اوښائي' چه هغه نه وي ليدلې.

## بَابُ ۳۹۲: اِذَا رَاٰى مَا يَكْرَهُ فَلَا يُخْبِرُ بِهَا وَ لَا يَذْكُرُهَا.

## باب ۳۹۲: هر كله چه يو سړے خوب كښې داسې څيز اووينې' چه هغه نه خوښوي نو ذ هغې دے غبرګه كوي' او نه دے د هغه بيانوي.

۷۳۳: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ ابْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ يَقُوْلُ لَقَدْ كُنْتُ اَرَى الرُّؤْيَا فَتُمْرِضُنِيْ حَتّٰى سَمِعْتُ اَبَا قَتَادَةَ يَقُوْلُ وَ اَنَا كُنْتُ لَاَرَى الرُّؤْيَا تُمْرِضُنِيْ حَتّٰى سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الرُّؤْيَا الْحَسَنَةُ مِنَ اللّٰهِ فَاِذَا رَاٰى اَحَدُكُمْ مَّا يُحِبُّ فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ اِلَّا مَنْ يُّحِبُّ وَ اِذَا رَاٰى مَا يَكْرَهُ فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّهَا وَ مِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَلْيَتْفُلْ ثَلَاثًا وَّ لَا يُحَدِّثْ بِهَا اَحَدًا فَاِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ.

۷۳۳: سعيد بن ربيع' شعبه' عبد ربه بن سعيد' ابو سلمه رضي الله عنه نه روايت كوي. ذَ هغه بيان دے چه ما به خوب اوليد' نو ناروغه به شوم تر دے چه ما د' ابو قتاده نه واوريدل' چه ما خوب اوليد' نو' ناروغه شوم' تر دے چه ما ذَ نبي صلّي الله عليه وسلّم نه واوريدل' چه ښه (يعني ښكلے) خوب د' الله ذَ طرف نه دے' هر كله چه تاسو كښې يو سړے داسې خبره اووينې' چه ذَ هغه خوښه وي' نو داسې سړے ته دے بيان كړي' چه ده سره محبت ساتي. او كله چه يو سړے داسې خوب اووينې' چه د هغه خوښ نه وي' نو ذَ هغې د شر نه او د شيطان د شر نه دے د' الله پناه اوغواړي. او درے ځله دے (ګس طرف ته) اوتوكي. او هغه خوب دے چاته نه بيانوي' نو دا' به ورته نقصان نه رسوي.

۷۳۴: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَازِمٍ وَّالدَّارَوَرْدِيُّ عَنْ يَّزِيْدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا رَاٰى اَحَدُكُمُ الرُّؤْيَا يُحِبُّهَا فَاِنَّهَا مِنَ اللّٰهِ فَلْيَحْمَدِ اللّٰهَ

۷۳۴: ابراهيم بن حمزه' ابن حازم او' دراوردي' يزيد' عبد اللّٰه بن حباب' حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. هغه ذَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل. هر كله چه تاسو كښې يو سړے داسې خوب اووينې' چه ذَ هغه خوښ وي' نو هغه د' اللّٰه ذَ طرف نه دے' او په هغې دے د' الله شكر ادا كړي. او هغه دے بيان كړي. او هر كله چه ذَ هغې

عَلَيْهَا وَلْيُحَدِّثْ بِهَا وَ إِذَا رَأَى غَيْرَ ذٰلِكَ مِمَّا يَكْرَهُ فَإِنَّمَا هِيَ مِنَ الشَّيْطَانِ فَلْيَسْتَعِذْ مِنْ شَرِّهَا وَ لَا يَذْكُرْهَا لِأَحَدٍ فَإِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ.

نه علاوه څه څيز اووينې چه هغه نه خوښوي، نو هغه دَ شيطان د طرف نه دے. دَ هغې دَ شر نه دے پناه اوغواړي، او د هغې ذکر دے چاته نه کوي، نو نقصان به ورته نه رسي.

بَاب ۳۹۳: مَنْ لَمْ يَرَ الرُّؤْيَا لِأَوَّلِ عَابِرٍ إِذَا لَمْ يُصِبْ.

باب ۳۹۳: دَ هغې سړي دليل، چه دا خيال کوي، که ورمبنے تعبير کونکے غلط تعبير اوکړي، نو هغه تعبير معتبر نه دے.

۷۳۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَجُلًا أَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ فِي الْمَنَامِ ظُلَّةً تَنْطُفُ السَّمْنَ وَالْعَسَلَ فَأَرَى النَّاسَ يَتَكَفَّفُونَ مِنْهَا فَالْمُسْتَكْثِرُ وَالْمُسْتَقِلُّ وَ إِذَا سَبَبٌ وَاصِلٌ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى السَّمَاءِ فَأَرَاكَ أَخَذْتَ بِهِ فَعَلَوْتَ ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَعَلَا بِهِ ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَعَلَا بِهِ ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَانْقَطَعَ ثُمَّ وُصِلَ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ بِأَبِي أَنْتَ وَاللّٰهِ لَتَدَعَنِّي فَأَعْبُرَهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۷۳۵: يحيٰي بن بکير، ليث، يونس ابن شهاب، عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه بن عتبه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، يو سړے د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او عرض ئے اوکه. ما خوب کښ يو چهترئے اوليده، چه ذ هغې نه غوړي او شات راڅاڅي. او خلق د هغې نه اخلي. څوک زيات اخلي او څوک کم. او يوه رسئ ما د، اسمان نه زمکے پورے اويزانده اوليده، ما اوليدل چه تاسوَ هغه اونيوله، او پورته اوختلئ. بيا تاسوَ نه پس يو بل سړي هغه (رسئ) اونيوله او هغه هم په هغې اوختلو. بيا د هغه نه پس يو بل سړي هغه (رسئ) اونيوله، او هغه هم پرے اوختلو، بيا هغه يو سړي اونيوله، نو هغه رسئ اوشليده. او بيا ورسته شوه. حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه عرض اوکه، يا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم، ماته اجازت راکړئ، چه زه د دے تعبير بيان کړم. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل (ډيره ښه ده) د دے تعبير بيان کړه. نو هغه (ابوبکر صديقؓ) اووے، چهترئ خو اسلام دے، او غوړي او شات چه د هغې نه راڅاڅي، هغه د قرآن خوږوالے (حلاوت) دے، چه ذ هغې نه راڅاڅي او

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُعْبُرْ، قَالَ اَمَّا الظُّلَّةُ فَالْاِسْلَامُ، وَ اَمَّا الَّذِيْ يَنْطُفُ مِنَ الْعَسَلِ، وَالسَّمْنِ فَالْقُرْاٰنُ حَلَاوَتُهُ تَنْطُفُ فَالْمُسْتَكْثِرُ مِنَ الْقُرْاٰنِ وَالْمُسْتَقِلُّ وَ اَمَّا السَّبَبُ الْوَاصِلُ مِنَ السَّمَآءِ اِلَى الْاَرْضِ فَالْحَقُّ الَّذِيْ اَنْتَ عَلَيْهِ تَأْخُذُ بِهِ فَيُعْلِيْكَ اللّٰهُ ثُمَّ يَأْخُذُ بِهِ رَجُلٌ اٰخَرُ مِنْ بَعْدِكَ فَيَعْلُوْا بِهِ، ثُمَّ يَأْخُذُ رَجُلٌ اٰخَرُ فَيَعْلُوْا بِهِ، ثُمَّ يَأْخُذُهُ فَيَنْقَطِعُ بِهٖ ثُمَّ يُوَصَّلُ لَهُ فَيَعْلُوْبِهٖ فَاَخْبِرْنِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بِاَبِيْ اَنْتَ اَصَبْتُ اَمْ اَخْطَاْتُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصَبْتَ بَعْضًا وَّ اَخْطَاْتَ بَعْضًا قَالَ فَوَاللّٰهِ لَتُحَدِّثَنِيْ بِالَّذِيْ اَخْطَاْتُ قَالَ لَا تُقْسِمْ.

د هغې نمخلوق زيات و كم آخلي. او هغه رسۍ چه د آسمان نه زمكې پورې 'رَا' اوبرانده ده' هغه حق دے' چه په هغې تاسو (قائم) يئ. تاسو به هغه اونيسئ' چه هغې سره به الله تاسو پورته اوخيزوي. بيا ستاسو نه پس به هغه يو دويم سړے اونيسي' او پورته به خيژي بيا ۮ هغه نه پس به ئې يو بل سړے اونيسي او پورته به خيژي بيا به هغه يو سړے اونيسي او هغه رسۍ به اوشليږي. بيا به هغه وروستے (جوړه كړې) شي' او هغه به ۮ هغې په ذريعه اوخيژي. يا رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ځما مور پلار دې په تاسو قربان وي' اوبنائې' آيا ما صحيح ونيلې (يعني تيک تعبير م اوبنكلې دے) يا غلط نبيّ صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. څه دې صحيح ونيلې دي' او څه غلط هغه (ابوبكر صديقؓ) اووې' ستاسو دې په خدائې قسم وي' چه ما په كښ څه غلطي كړې ده هغه بيان كړئ. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' قسم مه راكوه.

**باب ۳۹۴: تَعْبِيْرُ الرُّؤْيَا بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ.**

**باب ۳۹۴: ۮ سحر ۮ مانځه نه پس ۮ خوب د تعبير كولو بيان.**

۷۳۶: حَدَّثَنِيْ مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ اَبُوْ هِشَامٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بن اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا سَمُرَةُ بْنُ جُنْدَبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا يُكْثِرُ اَنْ يَّقُوْلَ لِاَصْحَابِهٖ، هَلْ رَاٰى اَحَدٌ

۷۳۶: مؤمل بن مقام ابو مقام اسمٰعيل بن ابراهيم' عوف' ابو رجاء' سمره بن جندب نه روايت كوي. ۮ هغه بيان دے' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم به اكثر فرمائيل' تاسو كښ چا خوب ليدلې دے. نو چا چه به خوب ليدلې وو' هغه به ئې حضورؐ ته بيانولو' څنګه چه به الله تعالي ته منظوره وه. يو سحر حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل د شپې ماله دوه (۲) فرښتې راغلې. زه ئې پاسولم او' ماته ئې اووې' څه چه څو' زه

مِنْكُمْ مِنْ رُؤْيَا قَالَ فَيَقُصُّ عَلَيْهِ مَنْ شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَقُصَّ، وَ إِنَّهُ قَالَ ذَاتَ غَدَاةٍ إِنَّهُ أَتَانِيَ اللَّيْلَةَ آتِيَانِ وَ إِنَّهُمَا ابْتَعَثَانِيَ، وَ إِنَّهُمَا قَالَا لِيَ انْطَلِقْ وَ إِنِّيَ انْطَلَقْتُ مَعَهُمَا، وَ إِنَّا أَتَيْنَا عَلٰى رَجُلٍ مُضْطَجِعٍ وَّ إِذَا آخَرُ قَائِمٌ عَلَيْهِ بِصَخْرَةٍ وَ إِذَا هُوَ يَهْوِيْ بِالصَّخْرَةِ لِرَأْسِهِ فَيَثْلَغُ رَأْسَهُ فَيَتَهَدْهَدُ الْحَجَرُ هٰهُنَا فَيَتْبَعُ الْحَجَرَ فَيَأْخُذُهُ فَلَا يَرْجِعُ إِلَيْهِ حَتّٰى يَصِحَّ رَأْسُهُ كَمَا كَانَ ثُمَّ يَعُوْدُ عَلَيْهِ فَيَفْعَلُ بِهٖ مِثْلَ مَا فَعَلَ الْمَرَّةَ الْأُوْلٰى قَالَ قُلْتُ لَهُمَا، سُبْحَانَ اللّٰهِ مَا هٰذَانِ؟ قَالَ قَالَا لِيُ انْطَلِقْ، قَالَ فَانْطَلَقْنَا فَأَتَيْنَا عَلٰى رَجُلٍ مُسْتَلْقٍ لِقَفَاهُ وَ إِذَا آخَرُ قَائِمٌ عَلَيْهِ بِكَلُّوْبٍ مِنْ حَدِيْدٍ وَّ إِذَا هُوَ يَأْتِيْ أَحَدَ شِقَّيْ وَجْهِهٖ فَيُشَرْشِرُ شِدْقَهُ إِلٰى قَفَاهُ وَ مِنْخَرَهُ إِلٰى قَفَاهُ وَ عَيْنَهُ إِلٰى قَفَاهُ قَالَ وَ رُبَّمَا قَالَ أَبُوْ رَجَاءٍ فَيَشُقُّ قَالَ ثُمَّ يَتَحَوَّلُ إِلَى الْجَانِبِ الْآخَرِ فَيَفْعَلُ بِهٖ مِثْلَ مَا فَعَلَ بِالْجَانِبِ الْأَوَّلِ فَمَا يَفْرُغُ مِنْ ذٰلِكَ

هغې دواړو سره لاړم. مونږ يو سړي ته اورسيلو چه ملاست وو، او دويم هغه سره کاڼړې اخستې ولاړ وو. هغه به د هغه په سر کاڼړې ويشتلو، چه هغې سره به دَ هغه سر ماتيدلو او کاڼړې به لرې لُور غړليدلو. هغه به کاڼړي پسې ورغې. هغه به ئې راواخستو، او واپس به لا نه وو راغلې، چه دَ هغه سر، به ټيک شوې وو، څنګه چه به مخکښ وو، بيا به هغه ته واپس راغې، او داسې به ئې کول، څنګه چه مخکښ ئې کړې وو. ما دَ هغې دواړو نه تپوس اوکه، سبحان اللّٰه، دا څوک دي. هغې دواړو اووې مخ په وړاندې ځه، مونږ روان شو، نو يو سړي ته اورسيدو، چه سم ملاست وو. او يو بل سړې د اُوسپنې يوه کُنډه يا، اَمبور اخستې هغه سره ولاړ وو. او هغې کُنډې (يا امبور) سره ئې د هغه يوه ژامه د، څټ پورې او يوه سپږه (نتھنا) دَ څټ پورې څيرله. دَ عوف بيان دې. ابو رجاء به اکثر دغسې وئيلې، چه هغه به دَ يو طرف نه بل طرف ته څيرلو. او دَ يو طرف د، څيرلو نه به لا فارغ شوې نه وو، چه هغه طرف به دَ مخکښ په شان ښه (روغ) شولو. بيا به ئې دغسې کول. څنګه چه ئې مخکښ کول. ما اووې، سبحان اللّٰه، دا، دواړه څوک دي، هغې دواړو اووې، مخ په وړاندې ځه. مونږ روان شو، نو يو تنور له اورسيدو حضور صلّى اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل څما خيال دې، چه ما هلته د، شور اواز واوريدلو مونږ هغې کښ اوکتل، نو هغې کښ څه سړي او ښځې بربنډ په نظر راغلل چه دَ هغوي د لاندې نه به هغوي ته د، اُور شغله راتله چه هغوئ ته به شغله راغله، نو هغوي به په زوره چغې وهلې. مَا تپوس اوکړو، دا څوک

الْحَجَرِ حَتَّى يَصِحَّ ذٰلِكَ الْحَجَرُ كَمَا كَانَ ثُمَّ يَعُوْدُ عَلَيْهِ فَيَفْعَلُ مِثْلَ مَا فَعَلَ الْمَرَّةَ الْأُوْلٰى، قَالَ قُلْتُ سُبْحَانَ اللّٰهِ مَا هٰذَانِ؟ قَالَ قَالَا لِيْ انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا فَأَتَيْنَا عَلٰى مِثْلِ التَّنُّوْرِ قَالَ فَأَحْسِبُ أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ فَإِذَا فِيْهِ لَغَطٌ وَّ أَصْوَاتٌ، قَالَ فَاطَّلَعْنَا فِيْهِ فَإِذَا فِيْهِ رِجَالٌ وَّ نِسَاءٌ عُرَاةٌ وَ إِذَا هُمْ يَأْتِيْهِمْ لَهَبٌ مِّنْ أَسْفَلَ مِنْهُمْ فَإِذَا أَتَاهُمْ ذٰلِكَ اللَّهَبُ ضَوْضَوْا، قَالَ قُلْتُ لَهُمَا مَا هٰؤُلَاءِ قَالَ قَالَا لِيْ انْطَلِقْ انْطَلِقْ قَالَ فَانْطَلَقْنَا فَأَتَيْنَا عَلٰى نَهْرٍ حَسِبْتُ أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ أَحْمَرَ مِثْلَ الدَّمِ وَ إِذَا فِي النَّهْرِ رَجُلٌ سَابِحٌ وَ إِذَا عَلٰى شَطِّ النَّهْرِ رَجُلٌ قَدْ جَمَعَ عِنْدَهٗ حِجَارَةً كَثِيْرَةً وَّ إِذَا ذٰلِكَ السَّابِحُ يَسْبَحُ مَا يَسْبَحُ ثُمَّ يَأْتِيْ ذٰلِكَ الَّذِيْ قَدْ جَمَعَ عِنْدَهُ الْحِجَارَةَ فَيَفْغَرُ لَهٗ فَاهُ فَيُلْقِمُهٗ حَجَرًا فَيَنْطَلِقُ يَسْبَحُ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَيْهِ كُلَّمَا رَجَعَ إِلَيْهِ فَغَرَ لَهٗ فَاهُ فَأَلْقَمَهٗ حَجَرًا، قَالَ قُلْتُ لَهُمَا مَا هٰذَانِ؟ قَالَ قَالَا لِيْ انْطَلِقْ انْطَلِقْ. قَالَ فَانْطَلَقْنَا فَأَتَيْنَا عَلٰى رَجُلٍ كَرِيْهِ الْمَرْآةِ كَأَكْرَهِ مَا أَنْتَ رَاءٍ رَجُلًا مَّرْآةً وَ إِذَا عِنْدَهٗ نَارٌ يَحُشُّهَا وَ يَسْعٰى حَوْلَهَا قَالَ قُلْتُ لَهُمَا

دي. نو هغې دواړو راته اووې په مخکښ خه مونږ په مخکښ روان شو' نو يو نهر ته اورسېدو ما ځان او كه' چه د هغې رنګ د وينو (خون) په شان سُر (سرخ) وو او نهر كښې مو يو سړے اوليد' چه پورېوتلو (جوتير رہاتھا) او دَ نهر په غاړه يو (بل) سړے ولاړ وو' چه هغه سره ډېر كانړي جمع وو. كوم وخت چه هغه پورېوتونكے به پوريوتو سره هغه ته راغے' نو د هغه به مخكښ به ئے خپله خوله وازه كړه (پرانسته) نو هغه به ورله خوله كښې يو كانړے واچولو بيا به هغه پوريوتلو. او هغه له به واپس راغے. او كله چه به هغه واپس راغے' نو خوله به ئے پرانسته' او هغه به ورله خوله كښې كانړے واچولو. ما دَ هغوي نه تپوس او كه' دا' دواړه څوک دي نو هغوئ دواړو راته اووے' په مخه خه په مخه خه. مونږ په مخه روان شو نو يو سړي ته اورسيدو' چه ډېر كريهُ المنظر (بد شكل' بدصورت) وو څنګه چه تاسو يو ډېر بدصورت سړے اووينئے. او هغه سره اُور وو' هغه ئے بلولو (جلا رہا تھا) او دَ هغې څلور طرف ته ئے منډې وهلې. ما تپوس اوكه' دا څوک دے. نو هغې دواړو راته اووے' مخكښ خه' مخكښ خه. مونږ په مخكښ روان شو نو يو باغ ته اورسيدو' چه هلته دَ فصل ربيع (د' سپرلي دَ فصل) هر قسم ګلونه لږېدلے وو' او دَ هغې مينځ كښې يو سړے وو. چه دَ هغه قد دومره اوږد (طويل) وو' چه د سر' د اوږدوالي (لمبائی) په سبب ما هغه او نه ليدے شو. او د هغه څلورواړه طرفه ته ډېر هلكان په نظر راغلل' چه دومره مو هيڅ كله ليدلي نه وو ما هغوئ نه تپوس اوكه' دا څوک دي. هغې دواړو راته

مَا هٰذَا قَالَ قَالَا لِيْ اِنْطَلِقْ اِنْطَلِقْ
فَانْطَلَقْنَا فَاَتَيْنَا عَلٰى رَوْضَةٍ مُعْتَمَّةٍ
فِيْهَا مِنْ كُلِّ لَوْنِ الرَّبِيْعِ وَ اِذَا بَيْنَ ظَهْرَيِ
الرَّوْضَةِ رَجُلٌ طَوِيْلٌ لَا اَكَادُ اَرٰى
رَأْسَهٗ طُوْلًا فِي السَّمَآءِ وَ اِذَا حَوْلَ
الرَّجُلِ مِنْ اَكْثَرِ وِلْدَانٍ رَاَيْتُهُمْ قَطُّ
قَالَ قُلْتُ لَهُمَا مَا هٰذَا مَا هٰؤُلَآءِ؟ قَالَ
قَالَا لِيْ اِنْطَلِقْ اِنْطَلِقْ قَالَ فَانْطَلَقْنَا
فَانْتَهَيْنَا اِلٰى رَوْضَةٍ عَظِيْمَةٍ لَمْ اَرَ
رَوْضَةً قَطُّ اَعْظَمَ مِنْهَا وَلَا اَحْسَنَ قَالَ
قَالَا لِيْ اِرْقَ فِيْهَا قَالَ فَارْتَقَيْنَا
فَانْتَهَيْنَا اِلٰى مَدِيْنَةٍ مَبْنِيَّةٍ بِلَبِنِ
ذَهَبٍ وَلَبِنِ فِضَّةٍ فَاَتَيْنَا بَابَ الْمَدِيْنَةِ
فَاسْتَفْتَحْنَا فَفُتِحَ لَنَا فَدَخَلْنَاهَا
فَتَلَقَّانَا فِيْهَا رِجَالٌ شَطْرٌ مِنْ خَلْقِهِمْ
كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ وَ شَطْرٌ كَاَقْبَحِ مَا
اَنْتَ رَاءٍ قَالَ قَالَا لَهُمْ اِذْهَبُوْا فَقَعُوْا
فِيْ ذٰلِكَ النَّهْرِ قَالَ وَ اِذَا نَهْرٌ مُعْتَرِضٌ
يَجْرِيْ كَاَنَّ مَآءَهُ الْمَحْضُ فِي
الْبَيَاضِ فَذَهَبُوْا فَوَقَعُوْا فِيْهِ ثُمَّ
رَجَعُوْا اِلَيْنَا قَدْ ذَهَبَ ذٰلِكَ السُّوْٓءُ
عَنْهُمْ فَصَارُوْا فِيْ اَحْسَنِ صُوْرَةٍ قَالَ
قَالَا لِيْ هٰذِهٖ جَنَّةُ عَدْنٍ وَ هٰذَاكَ مَنْزِلُكَ
قَالَ فَسَمَا بَصَرِيْ صُعُدًا فَاِذَا قَصْرٌ
مِثْلُ الرَّبَابَةِ الْبَيْضَآءِ قَالَ قَالَا لِيْ
هٰذَاكَ مَنْزِلُكَ قَالَ قُلْتُ لَهُمَا بَارَكَ

ووے، مخ به وړاندے ځه، مخ به وړاندے ځه. موږ به
مخه روان شو نو يو لوئے باغ ته راورسيدو چه دومره
لوئے او خوبصورته باغ مو هيڅ کله نه وو ليدلے. هغے
دواړو ماته اووے، دے ته اوخيژه. موږ وراوختلو. نو يو
ښار به نظر راغے، چه هغے کښې يوه خښته د سرو او بله
د سپينو (زرو) لګيدلے وه. موږ د هغے ښار دروازے ته
اورسيدو او پرانستلو د پاره مو اووے نو موږ د پاره
دروازه پرانستے شوه. موږ دننه ورغلو، نو هلته راته څه
خلق په نظر راغلل، چه د هغوی نيم بدن خو ډير
خوبصورته وو، څنګه چه تاسو ډير خوبصورته سړے
وينئے، او نيم بدن ئے ډير بدصورته وو. څنګه چه تاسو
يو بدصورته سړے وينئے. دے دواړو هغے خلقو ته
اووے، چه ورشئے، او دے نهر کښې اوغورځيږئے. يو نهر
په عرض کښې بهيدلو. د هغے اوبه خالص سپينے وے. نو
هغه خلق ورغلل. او هغے کښې اُغورځيدل (يعني ځان ئے
په کښې اوغورځولو) بيا هغه خلق موږ له راغلل، نو د
هغوی بدصورتي ختمه شوے وه. او هغوي ډير
خوبصورتي شوے وو. هغے دواړو ماته اووے، چه دا
جنت عدن دے، او دا ستاسو مقام دے. ما خپل نظر
پورته که، نو بالکل د سپينے وريځے په شان يو محل م
اوليدلو. هغے دواړو اووے، او دا ستاسو محل دے ما
هغے دواړو ته اووے، اللّٰه دے تاسو دواړو د برکت
خاوندان کړي، ما پريږدئے، چه زه دے محل ته داخل
شم، هغے دواړو راته اووے، چه اوس نه، خو تاسو به
ضرور دے محل کښې داخليږئے. حضور صلّي اللّٰه عليه
وسلّم اوفرمائيل، ما هغے دواړو ته اووے، چه ټوله شپه ما

اللّٰهُ فِيْكُمَا ذَرَانِيْ فَاَدْخُلَهُ قَالَا اَمَّا
الْاٰنَ فَلَا وَ اَنْتَ دَاخِلُهُ قَالَ قُلْتُ لَهُمَا
فَاِنِّيْ قَدْ رَاَيْتُ مُنْذُ اللَّيْلَةِ عَجَبًا فَمَا
هٰذَا الَّذِيْ قَالَ قَالَالِيْ اَمَّا اِنَّا سَنُخْبِرُكَ
اَمَّا الرَّجُلُ الْاَوَّلُ الَّذِيْ اَتَيْتَ عَلَيْهِ
يُثْلَغُ رَاْسُهُ بِالْحَجَرِ فَاِنَّهُ الرَّجُلُ يَاْخُذُ
الْقُرْاٰنَ فَيَرْفُضُهُ وَ يَنَامُ عَنِ الصَّلٰوةِ
الْمَكْتُوْبَةِ وَ اَمَّا الرَّجُلُ الَّذِيْ اَتَيْتَ
عَلَيْهِ يُشَرْشَرُ شِدْقُهُ اِلٰى قَفَاهُ وَ
مُنْخِرُهُ اِلٰى قَفَاهُ وَ عَيْنَهُ اِلٰى قَفَاهُ فَاِنَّهُ
الرَّجُلُ يَغْدُوْ مِنْ بَيْتِهِ فَيَكْذِبُ
الْكَذْبَةَ تَبْلُغُ الْاٰفَاقَ وَ اَمَّا الرِّجَالُ
وَالنِّسَآءُ الْعُرَاةُ الَّذِيْنَ فِيْ مِثْلِ بِنَآءِ
التَّنُّوْرِ فَاِنَّهُمُ الزُّنَاةُ وَالزَّوَانِيْ. وَ اَمَّا
الرَّجُلُ الَّذِيْ اَتَيْتَ عَلَيْهِ يَسْبَحُ فِي
النَّهْرِ وَ يُلْقَمُ الْحَجَرُ فَاِنَّهُ اٰكِلُ الرِّبَا وَ
اَمَّا الرَّجُلُ الْكَرِيْهُ الْمَرْاٰةِ الَّذِيْ عِنْدَ
النَّارِ يَحُشُّهَا وَ يَسْعٰى حَوْلَهَا فَاِنَّهُ مَالِكٌ
خَازِنُ جَهَنَّمَ. وَ اَمَّا الرَّجُلُ الطَّوِيْلُ
الَّذِيْ فِي الرَّوْضَةِ فَاِنَّهُ اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ
السَّلَامُ وَ اَمَّا الْوِلْدَانُ الَّذِيْنَ حَوْلَهُ
فَكُلُّ مَوْلُوْدٍ مَّاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ. قَالَ
فَقَالَ بَعْضُ الْمُسْلِمِيْنَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
وَ اَوْلَادُ الْمُشْرِكِيْنَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَوْلَادُ
الْمُشْرِكِيْنَ. وَ اَمَّا الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَانُوْا

عجیبه عجیبه څیزونه اولیدل (آخر) دا څه څیزونه وو،
چه ما اولیدل. هغې دواړو راته اووې. اوس نې درته
مونږ بیانوو، هغه وړمبنې سړے چه تاسو ورله ورغلئے، او
د هغه سر، کانړي سره ماتولے شو، هغه سړے دے، چه
قرآن نې یادولو نه پس پریږدي او د، فرض مونځ نې بے
پروائي کوله. او هغه سړے چه ذ هغه سپږمه (نتھنا) د،
څته پورے څیرلے شوه، او ذ هغه ژامه د څته پورے
څیرلے شوه، او د هغه ستر ګه د څته پورے څیرلے شوه،
هغه سړے وو، چه سحر سحر به د کورنه اووتلو، او
داسے افواه ګانے به ئې خورولے، چه ټوله دنیا کښې به
خورے شوے. او هغه بربنډ سړي او ښځې چه تنور کښې
دے لیدلي وو، نو هغه زناکار سړي او زناکارے ښځې
وې. او هغه سړے چه په نهر پوریوتلو، او تاسوَ پرے
تیریدلئے، او هغه به د، کانړي نوړئے (لقمه) جوړوله. هغه
سود خور وو. او هغه بدصورته سړے چه تاسوَ ته اُور
سره په نظر راغې، او، چه اُور به ئې بل که، د هغې څلور
واړه طرفه ته به ئې منډے وهلے، هغه مالک د، دوزخ
داروغه (ملائکه) وه. او هغه اوږد قدمے (دراز قد) سړے
چه باغ کښې تاسوّ ته په نظر راغې، هغه ابراهیم علیه
السلام وو. او هغه بچي چه د هغه په څلورواړه طرفه
تاسوَ اولیدل، دا هغه بچي وو، چه فطرت (اسلام) باندې
مړه شوے وو. د، راوي بیان دے. بعضے مسلمانانو
عرض او که، اے د، اللّٰه رسوله، او ذ مشرکانو بچي (یعني
هغوئ کوم ځائے دي) نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم
ورته ارشاد اوفرمائیلو، او ذ مشرکانو بچي (یعني هغوئ
هم هلته کښې وو) او هغه خلق چه ذ هغوئ نیم بدن ډیر

شَطْرٌ مِنْهُمْ حَسَنًا وَشَطْرٌ مِنْهُمْ قَبِيحًا فَإِنَّهُمْ قَوْمٌ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا تَجَاوَزَ اللَّهُ عَنْهُمْ.

خوبصورته وو، او نيمه حصه ئې ډيره بدصورته وه، هغه خلق وو، چه هغوی ګډوډ كاروونه كړي وو. (يعني نيک اعمال ئې كړي وو، او بد، اعمال ئې هم كړي) الله تعالى د هغوی خطا ګانې معاف كړلې.

الحمد لِلّٰه والشكر لِلّٰه اتيشتمه پاره ختمه شوه


تاج
تاج البخاری
پښتو شرح صحیح البخاری
پاره
۲۹
شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند
پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی
نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم
اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری
تاج کتب خانه رجسټرډ
قصه خوانی پشاور
فون: 214454
C-20

# تاج البخاري پاره ۲۹ دمضامینو فهرست


| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| | کتاب الفتن | |
| ۳۹۵. | د ظالمانو ذَ فتنے نه اویریږئ | ۴۳۸۰ |
| ۳۹۶. | عنقریب به تاسو اووینئ | ۴۳۸۱ |
| ۳۹۷. | د اُمت هلاکت د کم عمره هلکانو په لاس کښې دے | ۴۳۸۴ |
| ۳۹۸. | شر رانزدے شو | ۴۳۸۵ |
| ۳۹۹. | د فتنو ظاهریدل | ۴۳۸۶ |
| ۴۰۰. | هره راتلونکے زمانه د تیرے شوے زمانے نه خرابه ده | ۴۳۸۸ |
| ۴۰۱. | فَلَيْسَ مِنّا | ۴۳۸۹ |
| ۴۰۲. | خما نه پس به تاسو د یو بل ختونه وهئے | ۴۳۹۰ |
| ۴۰۳. | د فتنو نه ډکه زمانه | ۴۳۹۲ |
| ۴۰۴. | دوه مسلمانان یو بل ته مقابله کښې راتلل | ۴۳۹۳ |
| ۴۰۵. | معامله خرنګ فیصله کړے شي | ۴۳۹۵ |
| ۴۰۶. | فتنه او ظلم | ۴۳۹۶ |
| ۴۰۷. | خلق به ذَ خزلو پشان پاتے شي | ۴۳۹۶ |
| ۴۰۸. | د فتنے په وخت خنګل کښې | ۴۳۹۸ |
| ۴۰۹. | د فتنو نه پناه غوښتل | ۴۳۹۸ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۴۱۰. | فتنه به ذَ مشرق نه ظاهریږي | ۴۴۰۰ |
| ۴۱۱. | فتنه ذَ دریاب پشان | ۴۴۰۱ |
| ۴۱۲. | باب ۴۱۲ | ۴۴۰۵ |
| ۴۱۳. | باب ۴۱۳ | ۴۴۰۶ |
| ۴۱۴. | کله چه الله عذاب نازل کوي | ۴۴۰۷ |
| ۴۱۵. | د حسن بن علي رضي الله عنهما په باره کښې ارشاد | ۴۴۰۸ |
| ۴۱۶. | د خپلے خبرے خلاف وئیل | ۴۴۰۹ |
| ۴۱۷. | قیامت به تر هغے نه قائمیږي الخ | ۴۴۱۱ |
| ۴۱۸. | د زمانے تغیرات | ۴۴۱۲ |
| ۴۱۹. | اور راوتل | ۴۴۱۲ |
| ۴۲۰. | باب ۴۲۰ | ۴۴۱۳ |
| ۴۲۱. | دجّال | ۴۴۱۵ |
| ۴۲۲. | دجال به مدینے ته نه داخلیږي | ۴۴۱۸ |
| ۴۲۳. | یاجوج او ماجوج | ۴۴۱۹ |
| | کتاب الاحکام | |
| ۴۲۴. | د اطاعت حکم | ۴۴۲۰ |
| ۴۲۵. | امیران به قریشو کښې | ۴۴۲۱ |
| ۴۲۶. | حکمت سره فیصله | ۴۴۲۲ |
| ۴۲۷. | د امام حکم اوریدل | ۴۴۲۳ |
| ۴۲۸. | الله د چا مدد کوي | ۴۴۲۵ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۴۲۹. | خوک چه حکومت غواړي | ۴۴۲۵ |
| ۴۳۰. | د حکومت طلب کولو حرص | ۴۴۲۶ |
| ۴۳۱. | خوک چه ذَ رعیت خیر خواهي نه غواړي | ۴۴۲۶ |
| ۴۳۲. | چا چه خلق په مشقت کښې واچول | ۴۴۲۷ |
| ۴۳۳. | فتوي ورکول | ۴۴۲۸ |
| ۴۳۴. | د حضورؐ خوک دربان نه وو | ۴۴۲۹ |
| ۴۳۵. | ماتحت حاکم | ۴۴۳۰ |
| ۴۳۶. | د غصے حالت کښې فیصله | ۴۴۳۱ |
| ۴۳۷. | د قاضي په خپل علم سره فیصله کول | ۴۴۳۲ |
| ۴۳۸. | په مُهر شوي خط باندے ګواهي | ۴۴۳۳ |
| ۴۳۹. | ذَ فیصلے قابل کیدل | ۴۴۳۵ |
| ۴۴۰. | د حاکمانو او عاملانو تنخواه | ۴۴۳۶ |
| ۴۴۱. | په جومات کښې فیصله کول | ۴۴۳۷ |
| ۴۴۲. | فیصله په جومات کښې او حد بهر قائمول | ۴۴۳۸ |

عَآئِذًا بِاللّٰهِ مِنْ سُوْءِ الْفِتَنِ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ وَ مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا وَ قَالَ عَآئِذًا بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّ الْفِتَنِ.

به کهرو کښې بېټ کړے زړل ئے' او حضرت عمر رضي الله عنه: عَآئِذًا بِاللّٰهِ مِنْ سُوْءِ الْفِتَنِ: اووے' یا: اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ سُوْءِ الْفِتَنِ: ئے اووے. او امام بخاري وائي' ماله خليفه په واسطه د' يزيد بن زريع' سعيد او معتمر ذ خپل پلار نه' هغه د قتاده نه روايت او که. او: عَآئِذًا بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّ الْفِتَنِ: الفاظ ئے بيان کړل.

## باب ۴۱۰: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْفِتْنَةُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ.

باب ۴۱۰: ذ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم' ارشاد چه فتنه به د مشرق طرف نه ظاهريږي.

۷۷۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَامَ اِلٰى جَنْبِ الْمِنْبَرِ فَقَالَ: اَلْفِتْنَةُ هٰهُنَا اَلْفِتْنَةُ هٰهُنَا مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ اَوْ قَالَ قَرْنُ الشَّمْسِ.

۷۷۵: عبد اللّٰه بن محمد' هشام بن يوسف' معمر' زهري' سالم' ذ خپل پلار نه' هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ منبر خوا کښې اودريدلو. اووے فرمائيل' فتنه دے طرف ته ده' د کوم ځائے نه چه ذ شيطان ښکر راخيژي' يا وے فرمائيل' چه د نمبر ښکر راخيژي (يعني طلوع کيږي).

۷۷۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ مُسْتَقْبِلُ الْمَشْرِقِ يَقُوْلُ: اَلَا اِنَّ الْفِتْنَةَ هٰهُنَا مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ.

۷۷۶: قتيبه بن سعيد' ليث' نافع' حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. هغه ذ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' او هغه وخت د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم رُخ مشرق طرف ته وو' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' واورئے. فتنه دے طرف ته ده' کوم ځائے نه چه ذ شيطان ښکر راخيژي.

۷۷۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَزْهَرُ ابْنُ سَعْدٍ عَنِ

۷۷۷: علي بن عبد اللّٰه' ازهر بن سعد' ابن عون' نافع' ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي. ذ هغه

ابْنِ عَوْنٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ شَامِنَا، اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ يَمَنِنَا قَالُوْا اَوَفِيْ نَجْدِنَا قَالَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ شَامِنَا اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ يَمَنِنَا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ فِيْ نَجْدِنَا، فَاَظُنُّهُ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ هُنَاكَ الزَّلَازِلُ وَالْفِتَنُ وَ بِهَا يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ.

بیان دے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائیل یا اللّٰه خمونږ شام کښې برکت واچوي یا اللّٰه، خمونږ یمن کښې برکت واچوے. خلقو اووے، او خمونږ نجد کښې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائیل، یا اللّٰه خمونږ شام کښې برکت واچوے، یا اللّٰه خمونږ یمن کښې برکت واچوے. خلقو اووے، یا رسول اللّٰه، او خمونږ نجد کښې. خما خیال دے، چه شاید حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دریَم خل کښې اوفرمائیل هلته به زلزلے وي، او فتنے وي، او دَ هغے ځائے نه به دَ شیطان ښکر طلوع کیږي.

۶۷۷۸: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَلَفٌ عَنْ بَيَانٍ عَنْ وَبَرَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ فَرَجَوْنَا اَنْ يُحَدِّثَنَا حَدِيْثًا حَسَنًا قَالَ فَبَادَرَنَا اِلَيْهِ رَجُلٌ فَقَالَ يَا اَبَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ: حَدِّثْنَا عَنِ الْقِتَالِ فِي الْفِتْنَةِ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ: وَ قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَقَالَ تَدْرِيْ مَا الْفِتْنَةُ ثَكِلَتْكَ اُمُّكَ اِنَّمَا كَانَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَاتِلُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ كَانَ الدُّخُوْلُ فِيْ دِيْنِهِمْ فِتْنَةٌ وَ لَيْسَ كَقِتَالِكُمْ عَلَى الْمُلْكِ.

۶۷۷۸: اسحاق واسطي، خلف، بیان، وبره بن عبد الرحمٰن، سعید بن جبیر نه روایت کوي. دَ هغه بیان دے. مونږ خلقو ته عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه راغے نو مونږ امید کښې شو، چه هغه به مونږ ته یو ښه حدیث بیان کړي. دَ هغه بیان دے. مونږ نه یو سړے مخکښې شو، اووئیلے. اے ابو عبد الرّحمٰن. مونږ ته فتنه کښې دَ جنګ متعلق بیان اوکه. او اللّٰه تعالیٰ فرمائي. هغوي سره جنګ کوئے، تر دے چه فتنه پاتے نه شي. ابن عمر رضي اللّٰه عنه اووے، مور دربانده بُوره شه، ته پوهیږے، چه فتنه څه ده. محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم خو صرف مشرکینو سره جنګ کولو. او دُ کافرو دین کښې داخلیدل فتنه ده. دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم جنګ د ملک په خاطر نه وو، څنګه چه تاسو کوئے.

بَابُ ۱۱۴۱: اَلْفِتْنَةِ الَّتِيْ تَمُوْجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ

باب ۱۱۴۱: دَ هغے فتنے بیان، چه دُ دریاب په شان موجزن وي. او ابن عیینه دُ خلف بن حوشب

عَنْ خَلَفِ ابْنِ حَوْشَبٍ كَانُوْا يَسْتَحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَمَثَّلُوْا بِهٰذِهِ الْاَبْيَاتِ عِنْدَ الْفِتَنِ قَالَ امْرَؤُ الْقَيْسِ ـ

اَلْحَرْبُ اَوَّلُ مَا تَكُوْنُ فَتِيَّةً
تَسْعٰى بِزِيْنَتِهَا لِكُلِّ جَهُوْلٍ
حَتّٰى اِذَا اشْتَعَلَتْ وَ شَبَّ ضِرَامُهَا
وَلَّتْ عَجُوْزًا غَيْرَ ذَاتِ حَلِيْلٍ
شَمْطَآءَ يُنْكَرُ لَوْنُهَا وَ تَغَيَّرَتْ
مَكْرُوْهَةً لِلشَّمِّ وَالتَّقْبِيْلِ

۷۷۹: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيْقٌ سَمِعْتُ حُذَيْفَةَ يَقُوْلُ بَيْنَا نَحْنُ جُلُوْسٌ عِنْدَ عُمَرَ اِذْ قَالَ اَيُّكُمْ يَحْفَظُ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْفِتْنَةِ: قَالَ فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِيْ اَهْلِهٖ وَ مَالِهٖ وَ وَلَدِهٖ وَ جَارِهٖ تُكَفِّرُهَا الصَّلٰوةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْاَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ. قَالَ لَيْسَ عَنْ هٰذَا اَسْاَلُكَ وَ لٰكِنِ الَّتِيْ تَمُوْجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ قَالَ لَيْسَ عَلَيْكَ مِنْهَا بَاْسٌ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ بَيْنَكَ وَ بَيْنَهَا بَابًا مُغْلَقًا قَالَ عُمَرُ اَيُكْسَرُ الْبَابُ اَمْ يُفْتَحُ؟ قَالَ

نه نقل اوکه چه خلقو د فتنو په وخت د' اشعار د مثال په طور لوستل بهتر ګڼړل. امرؤ القيس وئيلي دي.

(۱) جنګ خو اول يو ګڅه جينۍ معلومېږي'
او د هر جاهل مخکښې خپل سنګار سره منډې وهي
(۲) تر دې چه کوم وخت ګرم شي او د هغې شعلې پورته شي
نو هغه د' بې خاونده بوډۍ په شان شا' اګرځوي
(۳) چه ويښته ئې تور سپين شي' نو د هغې رنګ بدمعلومېږي
او متغيّر کيدو سره بوبولو او بوسه اخستو د پاره مکروه شي

۷۷۹: عمر بن حفص بن غياث' حفص بن غياث' اعمش' شقيق' حذيفه نه نقل کوي. د هغه نه ئې واوريدل مونږ حضرت عمر رضي الله عنه سره ناست وو' هغه اووې' تاسو کښې چاته د نبي صلّي الله عليه وسلّم ارشاد د فتنې متعلق ياد دې. حذيفه اووې' د خپل کوروالو' او' اولاد او ګوانډي متعلق چه سړې فتنه کښې پريوځي' نو هغه د پاره مونځ او صدقه او د ښو خبرو حکم او د خرابو خبرو نه منع کيدل کناره جوړېږي حضرت عمر رضي الله عنه اووې. زه تانه د دې متعلق تپوس نه کوم' بلکه د هغې فتنې متعلق تپوس کوم' چه د' درياب د موجونو په شان په موجزنه وي. حذيفه اووې' اے امير المؤمنين' تاسو له د هغې نه ويريدل نه دي پکار. ځکه چه ستاسو او د هغې مينځ کښې يوه بنده دروازه ده. حضرت عمر رضي الله عنه اووې' هغه دروازه به ماته کړې شي' يا پرانيستې شي. وئيلې' ماته به کړې شي' حضرت عمر رضي الله عنه اووې. بيا به هيچرې نه بنديږي. ما اووې. او. مونږ د حذيفه تپوس اوکه' آيا

بَـلْ يُـكْسَرُ قَالَ عُمَرُ اِذًا لَا يُغْلَقُ اَبَدًا. قُـلْـتُ اَجَلْ. قُلْنَا لِحُذَيْفَةَ اَكَانَ عُمَرُ يَعْلَمُ الْبَابَ قَالَ نَعَمْ كَمَا اَعْلَمُ اَنَّ دُوْنَ غَدٍ لَيْلَةً وَ ذٰلِكَ اَنِّـيْ حَـدَّثْتُهُ حَدِيْثًا لَيْسَ بِـالْاَغَالِيْطِ، فَهِبْنَا اَنْ نَسْاَلَهُ مَنِ الْبَابُ فَاَمَرْنَا مَسْرُوْقًا فَسَاَلَهُ فَقَالَ مَنِ الْبَابُ؟ قَالَ عُمَرُ.

عـمـر رضـي الله عنه ته دا، دروازه معلومه وه. وئيلے او. خـنـکـه چه ماته معلومه ده، چه صبا ورځے نه پس به شپه راځي. خکه چه ما داسے حديث بيان کـه، چه غلط نه وو. شقيق اووے. مونږ ته دَ، دروازے متعلق تپوس کولو کښې ويـره مـعـلـومـه شـوه، ما مسروق ته اووے، نو هغه تپوس اوکـه، چـه دروازے (نـه مـراد) څـوک دے. هغه اووے، حضرت عمرؓ.

۷۸۰: حَـدَّثَـنَـا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَـرْيَـمَ اَخْبَـرَنَـا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَـنْ شَـرِيْكِ بْـنِ عَبْدِ اللّٰـهِ عَنْ سَـعِيْـدِ بْـنِ الْمُسَيِّـبِ عَـنْ اَبِـيْ مُـوْسَـى الْاَشْـعَـرِيِّ قَـالَ خَـرَجَ النَّبِيُّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ اِلَـى حَـائِـطٍ مِّـنْ حَـوَائِـطِ الْمَدِيْنَةِ لِحَاجَتِـهٖ وَ خَـرَجْـتُ فِيْ اِثْرِهٖ فَلَمَّا دَخَـلَ الْحَـائِـطَ جَـلَسْتُ عَلَى بَابِـهٖ وَ قُـلْـتُ لَاَكُـوْنَـنَّ الْيَـوْمَ بَـوَّابَ النَّبِيِّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَمْ يَـاْمُرْنِيْ فَـذَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ وَ قَضٰى حَاجَتَهُ وَ جَـلَـسَ عَـلٰـى قُفِّ الْبِئْرِ فَكَشَفَ عَـنْ سَـاقَيْـهِ وَدَلَّاهُـمَـا فِـي الْبِئْرِ فَـجَـآءَ اَبُـوْ بَـكْـرٍ يَسْتَـاْذِنُ عَـلَيْـهِ لِيَـدْخُـلَ فَـقُـلْـتُ كَمَـآ اَنْـتَ حَتّٰـى اَسْتَـاْذِنَ لَكَ فَوَقَفَ فَجِئْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا

۷۸۰: سـعـيـد بـن ابـي مـريـم، مـحـمـد بن جعفر، شـريـک بن عبد الله، سعيد بن مسيب، ابو موسٰي اشعري نـه روايـت کـوي. دَ هـغـه بيـان دے. نبـي صلّي الله عليه وسـلّـم دَ مـديـنـے يـو بـاغ طرف تـه رفع حـاجت د پـاره اووتلو. او زه هم حضور صلّي الله عليه وسلّم پسے پسے تـلـم. کـوم وخـت چـه حضور صلّي الله عليه وسلّم باغ کښې داخل شو، نو زه دَ هغے (باغ) په دروازه کيناستم ما زړه کـښې اووے، زه بـه نن دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم دربـان يـم. حالانکه حضور صلّي الله عليه وسلّم حکم نه وو کړے. حضور صلّي الله عليه وسلّم تشريف يوړلو، او حـاجت، نه فارغ شولو. او د کوهي په غاړه کيناستلو. او خپـلـے دواړه پـنـډۍ ئـے پـرانستـے، کـوهـي کـښې ئـے آويزانـدے کړے، حضرت ابوبکر رضي الله عنه راغے، د، راتـلـو اجـازت ئـے اوغوښتلو. ما ورته اووے، دلته ايسار شـئـے، چـه زه درلـه دَ حـضـور صـلّـي الله عليه وسلّم نه اجـازت واخلم، زه نبي صلّي الله عليه وسلّم له راغلم. او عـرض م اوکـه اَے دَ، الله نبيّ، حضرت ابوبکر رضي الله عـنـه، دننه دَ، راتلو اجازت غواړي. حضور صلّي الله عليه وسـلّـم اوفـرمـائـيـل، راځـي دے، او هـغـه تـه د جنت

نَبِيُّ اللّٰهِ اَبُوْ بَكْرٍ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْكَ قَالَ ائْذَنْ لَـهُ وَ بَشِّـرْهُ بِـالْجَـنَّةِ فَدَخَلَ فَجَلَسَ عَنْ يَمِيْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّـمَ فَكَشَفَ عَنْ سَاقَيْـهِ وَدَلَّاهُـمَا فِـي الْبِئْرِ فَجَآءَ عُمَرُ فَقُلْتُ كَمَـا أَنْتَ حَتّٰى اَسْتَـأْذِنَ لَكَ فَقَـالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّـرْهُ بِـالْجَـنَّةِ فَجَآءَ عَنْ يَسَارِ النَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَـكَشَفَ عَنْ سَاقَيْهِ فَدَلَّاهُمَا فِي الْبِئْرِ فَـامْتَلَاءَ الْـقُفُّ فَـلَـمْ يَـكُـنْ فِيْـهِ مَجْلِسٌ. ثُمَّ جَآءَ عُثْمَانُ فَقُلْتُ كَمَا أَنْتَ حَتّٰـى اَسْتَـأْذِنَ لَكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ مَعَهَا بَلَآءٌ تُصِيْبُهُ فَدَخَلَ فَلَـمْ يَـجِـدْ مَـعَهُـمْ مَجْلِسًا فَتَحَوَّلَ حَتّٰـى جَآءَ مُقَابِلَهُمْ عَلٰى شَفَةِ الْبِئْرِ فَـكَشَفَ عَـنْ سَـاقَيْـهِ ثُـمَّ دَلَّاهُمَا فِي الْبِـئْـرِ فَـجَعَلْتُ اَتَمَنّٰى اَخًالِيْ وَاَدْعُوا اللّٰـهَ اَنْ يَّـأْتِـيْ. قَـالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ فَتَـاَوَّلْتُ ذٰلِكَ قُبُوْرَهُمْ اِجْتَمَعَتْ هٰهُنَا وَانْفَرَدَ عُثْمَانُ.

خوشخبري ورکړه. هغه دننه راغې، او د نبي صلّي الله عليه وسلّم ښي طرف ته دواړه پنډئ پرانستې کوهي کښې اويزانډې کړې. بيا حضرت عمر رضي الله عنه راغې. ما ورته اووې، دلته ايسار شئې چه زه درله د حضورؐ نه اجازت واخلم. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دننه دې راځي، او د جنت خوشخبري ورکړه. هغه دَ نبي صلّي الله عليه وسلّم کس طرف ته راغې، خپلې پنډئ پرانستې، کوهي کښې ئې آويزانډې کړې. د کوهي هغه ډېره ډکه شوه او د ناستې ځائې پاتې نه شو. بيا حضرت عثمان راغې ماورته اووې، دلته ايسار شئې، چه تاسو د پاره اجازت واخلم، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دننه دې راځي. دَ جنت خوشخبري ورکړه، او هغې سره به يو مصيبت وي، چه هغه ته به رسي، هغه دننه راغې. او هغې خلقو سره ئې د ناستې ځائې بيانه مُند، نو دَ هغې نه تاؤ شو، حضور صلّي الله عليه وسلّم ته مخامخ د کوهي په غاړه کيناستلو. او خپلې پنډئ ئې پرانستې او کوهي کښې آويزانډې کړې د، ابو موسيٰ بيان دې. ما آرزو اوکړله، چه ځما رور هم دې وخت کښې راغلې وې، چه هغه ته هم د جنت خوشخبري ورکړې شوې وې. ابن مسيب وائي، ما د دې دا تاويل اوکه چه دَ هغوئ قبرونه به يو ځائې دي. او دَ حضرت عثمانؓ دَ هغې ټولو نه جدا دې.

۱۸۷: حَـدَّثَـنِيْ بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ اَخْبَـرَنَـا مُـحَـمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُـلَيْـمَـانَ سَمِعْتُ اَبَا وَآئِلٍ قَالَ قِيْـلَ لِاُسَـامَةَ اَلَا تُـكَلِّمُ هٰذَا؟ قَالَ قَدْ

۱۸۷: بشر بن خالد، محمد بن جعفر، شعبه، سليمان، ابو وائل نه روايت کوي دَ هغه بيان دې، اسامةؓ ته اووئيلې شو، ته ولې د، دې متعلق څه نه وائې. هغه اووې، زه وائم ليکن دومره نه چه ستا د پاره دَ فتنې

كَلِمَةً مَا دُوْنَ اَنْ اَفْتَحَ بَابًا اَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ يَفْتَحُهُ وَ مَا اَنَا بِالَّذِيْ اَقُوْلُ لِرَجُلٍ بَعْدَ اَنْ يَكُوْنَ اَمِيْرًا عَلٰى رَجُلَيْنِ اَنْتَ خَيْرٌ بَعْدَ مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: يُجَآءُ بِرَجُلٍ فَيُطْرَحُ فِي النَّارِ فَيَطْحَنُ فِيْهَا كَطَحْنِ الْحِمَارِ بِرَحَاهُ فَيُطِيْفُ بِهٖ اَهْلُ النَّارِ فَيَقُوْلُوْنَ اَيْ فُلَانُ اَلَسْتَ كُنْتَ تَاْمُرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهٰى عَنِ الْمُنْكَرِ فَيَقُوْلُ اِنِّيْ كُنْتُ اٰمُرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَ لَا اَفْعَلُهٗ وَ اَنْهٰى عَنِ الْمُنْكَرِ وَ اَفْعَلُهٗ.

دروازه پرانيزم. او زه ذ تـولـو نـه مخکښې د دے پرانستونکے شم. زه داسے سړے نه يم، چه هغه سړي ته چه په دوو سړو امير وي، دا' او وائم، چه ته ښه يې، حالانکه ما د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چه يو سړے به راوستے شي، او دوزخ کښې به اُوغورځولے شي، او داسے به ګرځي، څنګه چه خر به ژرنده ګرځي د' دوزخ ټول خلق به ذ هغه نه راچاپيره شي. او تپوس به ترے کوي، اَے فلاني سړيه، آيا تا به د ښو خبرو حکم نه ورکړلو، او ذ خرابو نه به دے نه منع کول هغه به وائي، ما به د ښو خبرو حکم ورکولو. ليکن خپله به م نه کولے. او ذ خرابو کارونو نه به م خلق منع کول، خو، خپله به م کول.

**باب ۴۱۲:**

☆☆☆☆☆

**باب ۴۱۲:** د دے باب څه عنوان نه دے قائم کړے شوے.

۷۸۲: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ لَقَدْ نَفَعَنِيَ اللّٰهُ بِكَلِمَةٍ اَيَّامَ الْجَمَلِ لَمَّا بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ فَارِسًا مَلَّكُوْا اِبْنَةَ كِسْرٰى قَالَ لَنْ يُّفْلِحَ قَوْمٌ وَّلَّوْا اَمْرَهُمْ اِمْرَاَةً.

۷۸۲: عثمان بن هيثم، عوف، حسن، ابوبکرهؓ نه روايت کوي. هغوي اووے، ماته ذ جنګ جمل زمانه کښې د دے کلمے په ذريعه اللّٰه نفع راو رسوله، هغه دا چه کوم وخت نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خبر شو، چه د فارس خلقو د کسرئ لُور بادشاه جوړه کړے ده، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه قوم به هيڅ کله فلاح (فلاحي) بيانه مومي. چه حکومت يوے ښځے ته حواله کړي.

۷۸۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْبَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ حُصَيْنٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَرْيَمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زِيَادٍ

۷۸۳: عبد اللّٰه بن محمد، يحيي بن آدم، ابوبکر بن عياش، ابو حصين، ابو مريم عبد اللّٰه بن زياد اسدي نه روايت کوي، د هغه بيان دے، کوم وخت چه طلحهؓ او زبيرؓ او بي بي عائشهؓ

الاسدي قال لما سار طلحة و الزبير و عائشة الى البصرة بعث علي عمار بن ياسر و حسن بن علي فقدما علينا الكوفة فصعدا المنبر فكان الحسن بن علي فوق المنبر في اعلاه و قام عمار اسفل من الحسن فاجتمعنا اليه فسمعت عمارا يقول ان عائشة قد سارت الى البصرة و والله انها لزوجة نبيكم صلى الله عليه وسلم في الدنيا و الاخرة ولكن الله تبارك و تعالى ابتلاكم ليعلم اياه تطيعون ام هي.

بصرې طرف ته روان شو نو حضرت عليؓ عمار بن ياسرؓ او حضرت حسن بن عليؓ كوفې ته ولېږلو دا دواړه موږ سره يو ځاى كوفې ته راغلل منبر ته او ختل حضرت حسنؓ د پاسه او حضرت عمار بن ياسرؓ د هغه نه په لاندې سر كې (منبر په ځاى) وو موږ ټول د هغوى نه ګير چاپېره راجمع شو ما د عمار بن ياسرؓ نه واورېدل چې بي بي عائشهؓ بصرې طرف ته روانه شوې ده او په خداى قسم دې قسم وي هغه دنيا او آخرت كښې ستاسو د نبي صلى الله عليه وسلم ښځه ده. ليكن الله تبارك و تعالى تاسو ازمائيلي: چې تاسو د حضرت عليؓ اطاعت كوئ يا د بي بي عائشهؓ.

باب ۱۳ ۴:

باب ۱۳ ۴: (دا باب بې سُرخئ دې).

۷۸۴: حدثنا ابو نعيم حدثنا ابن ابي غنية عن الحكم عن ابي وائل قام عمار على منبر الكوفة فذكر عائشة و ذكر مسيرها و قال انها زوجة نبيكم صلى الله عليه وسلم في الدنيا و الاخرة ولكنها مما ابتليتم.

۷۸۴: ابو نعيم، ابن ابي غنيه، حكم، ابو وائلؒ نه روايت كوي، حضرت عمار د كوفې په منبر اودرېدلو. او د بي بي عائشې او د هغې د روانګي ذكر ئې اوكړه. او وئيلې، هغه دنيا او اخرت كښې ستاسو د نبي صلعم ښځه ده. ليكن د هغې په وجه تاسو آزمائښت كښې اچولې شوې ئې.

۷۸۵: حدثنا بدل بن المحبر حدثنا شعبة اخبرني عمرو و سمعت ابا وائل يقول دخل ابو موسى و ابو مسعود على عمار حيث بعثه علي الى اهل الكوفة يستنفرهم فقالا

۷۸۵: بدل بن محبر، شعبه، عمرو، ابو وائل نه روايت كوي. ابو موسىٰ او ابو مسعود، حضرت عمارؓ له هغه وخت ورغلل، هر كله چې حضرت عليؓ هغوى كوفيانو ته لوځ جمع كولو د پاره لېږلو وو. هغې دواړو عمارؓ ته اووې د كوم وخت نه چې ته مسلمان شوې يې د هغې وخت نه موږ نه دې كار كښې د ناډې كولو نه

مَا رَأَيْتُكَ أَتَيْتَ أَمْرًا أَكْرَهَ عِنْدَنَا مِنْ إِسْرَاعِكَ فِيْ هٰذَا الْأَمْرِ مُنْذُ أَسْلَمْتَ فَقَالَ عَمَّارٌ: مَا رَأَيْتُ مِنْكُمَا مُنْذُ أَسْلَمْتُمَا أَمْرًا أَكْرَهَ عِنْدِيْ مِنْ إِبْطَائِكُمَا عَنْ هٰذَا الْأَمْرِ وَ كَسَاهُمَا حُلَّةً ثُمَّ رَاحُوْا إِلَى الْمَسْجِدِ.

زيات خراب هيڅ كار كولو كښې نه يې ليدلے. حضرت عمارؓ اووے. د كوم وخت نه چه تاسو دواړه مسلمانان شوے يئ، ذ هغے وخت نه ما ستاسو دے كار كښې د تاخير كولو نه زيات خراب هيڅ كار نه دے ليدلے. او هغے دواړو ته يې يوه يوه جوړه واغندوله. بيا جُمات طرف ته روان شو.

۷۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقِ بْنِ سَلَمَةَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِيْ مَسْعُوْدٍ وَّ أَبِيْ مُوْسٰى وَ عَمَّارٍ فَقَالَ أَبُوْ مَسْعُوْدٍ مَا مِنْ أَصْحَابِكَ أَحَدٌ إِلَّا لَوْشِئْتُ لَقُلْتُ فِيْهِ غَيْرَكَ وَ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ شَيْئًا مُنْذُ صَحِبْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْيَبَ عِنْدِيْ مِنِ اسْتِسْرَاعِكَ فِيْ هٰذَا الْأَمْرِ قَالَ عَمَّارٌ يَا أَبَا مَسْعُوْدٍ وَ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ وَ لَا مِنْ صَاحِبِكَ هٰذَا شَيْئًا مُنْذُ صَحِبْتُمَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْيَبَ عِنْدِيْ مِنْ إِبْطَائِكُمَا فِيْ هٰذَا الْأَمْرِ فَقَالُوْا أَبُوْ مَسْعُوْدٍ وَّ كَانَ مُوْسِرًا يَّا غُلَامُ هَاتِ حُلَّتَيْنِ وَ أَعْطٰى إِحْدَاهُمَا أَبَا مُوْسٰى وَالْأُخْرٰى عَمَّارًا وَّ قَالَ رُوْحَا فِيْهِ إِلَى الْجُمُعَةِ.

۷۸۶: عبدان، ابو حمزه رضي اللّٰه عنه، اعمش، شقيق بن سلمه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، زه، ابو مسعود، ابو موسىٰ او حضرت عمارؓ سره ناست ووم نو ابو مسعود، حضرت عمارؓ ته اووے ستانه علاوه چه خومره ستا ملګري دي هغوي كښې هر يو ته زه وئيلے شم، چه د كوم وخت نه ستاسو د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلم صحبت اختيار كړے دے دے امر كښې ذ تاخير نه زيات هيڅ خبره ذ عيب نه ده ليدلے. حضرت ابو مسعود چه خوشحال وو، هغه اووے. اے غلامه دوه (۲) جوړے راوړه. يوه خو، يې حضرت ابو موسىٰ ته وركړله، او دويمه يې حضرت عمار ته وركړله. اووئيلے، چه تاسو دواړه جُمعے پله څئ.

## بَابٌ ۲۱۴: إِذَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ عَذَابًا.

## باب ۲۱۴: هر كله چه اللّٰه تعالىٰ په يو قوم عذاب نازلوي.

۷۸۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۷۸۷: عبد اللّٰه بن عثمان رضي اللّٰه

عُثْمَانَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ عَذَابًا اَصَابَ الْعَذَابُ مَنْ كَانَ فِيْهِمْ ثُمَّ بُعِثُوْا عَلٰى اَعْمَالِهِمْ.

عنه، عبد اللّٰه، یونس، زهري، حمزه بن عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. دَ هغه بیان دے رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل. هر کله چه اللّٰه تعالیٰ په یو قوم عذاب نازلوي، نو ټومره خلق چه هغے قوم کښې وي، هغوئ ټول هغے عذاب کښې آخته کیږي. بیا به دَ خپل خپل اعمالو مطابق پاسولے شي.

**باب ۴۱۵: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَسَنِ ابْنِ عَلِيٍّ اِنَّ ابْنِيْ هٰذَا لَسَيِّدٌ وَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّصْلِحَ بِهٖ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ.**

**باب ۴۱۵: دَ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم** دَ حضرت حسن بن عليؓ متعلق فرمائیل، دَا ځما ځوئے دے او امید دے، چه اللّٰه تعالیٰ به د ده په ذریعه دَ مسلمانانو د، دوو (۲) جماعتونو مینځ کښې مصالحت راولي.

۷۸۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ اَبُوْ مُوْسٰى وَ لَقِيْتُهٗ بِالْكُوْفَةِ جَآءَ اِلَى ابْنِ شُبْرُمَةَ فَقَالَ اَدْخِلْنِيْ عَلٰى عِيْسٰى فَاَعِظَهٗ فَكَانَ ابْنَ شُبْرُمَةَ خَافَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَفْعَلْ، قَالَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ قَالَ لَمَّا سَارَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اِلٰى مُعٰوِيَةَ بِالْكَتَآئِبِ قَالَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ لِمُعَاوِيَةَ اَرٰى كَتِيْبَةً لَّا تُوَلِّيْ حَتّٰى تُدْبِرَ اُخْرٰهَا قَالَ مُعَاوِيَةُ مَنْ لِّذَرَارِيِّ الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالَ اَنَا فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَامِرٍ وَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ سَمُرَةَ

۷۸۸: علي بن عبد اللّٰه، سفیان، اسرائیل، ابو موسیٰ نه روایت کوي. زه هغه سره کوفه کښې یو ځائے شوے ووم. هغه ابن شبرمه له راغے. اوونیلے، ما عیسیٰ له بوځه، چه زه هغه ته نصیحت او کړم. خو، ابن شبرمه ته خوف شو، په دے وجه هغه داسے اونه کړم. اسرائیل اووے. مونږ ته حسن بیان او که. کوم وخت چه حسن بن عليؓ د معاویهؓ مقابلے د پاره لښکر بوتلو، نو عمرو بن عاصؓ معاویهؓ ته اووے. زه حسن سره داسے لښکر وینم، چه واپس به نشي. څو پورے چه دَ مقابل لښکر اونه تښتوي. معاویهؓ اووے. دَ مسلمانانو د، اولاد نګراني به څوک کوي. عمرو بن عاص اووے، زه. عبد اللّٰه بن عامر او عبد الرحمٰن بن سمره اووے. مونږ به هغه سره

نَـاقَةَ فَيَقُوْلُ لَهُ الصُّلْحَ قَالَ الْحَسَنُ وَ لَقَدْ سَمِعْتُ اَبَا بَكْرَةَ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ جَآءَ الْحَسَنُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِبْنِيْ هٰذَا سَيِّدٌ وَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّصْلِحَ بِهٖ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ.

يو خانے شو. او صلح د پاره به ورسره خبرے اترے او کړو. حضرت حسن بصري اورے. ما د ابوبکره نه واوريدل يو ځل نبيؐ صلعم خطبه ورکوله. نو حضرت حسنؓ راغے. نبيؐ اوفرمائيل' ځما دا ځوئے سردار دے. او اميد دے' چه الله تعالٰي به د ده په ذريعه د مسلمانانو د' دوو (٢) ډلو مينځ کښ صلح اوکړي.

٧٨٩: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ عَمْرٌو اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيٍّ اَنَّ حَرْمَلَةَ مَوْلٰى اُسَامَةَ اَخْبَرَهُ قَالَ عَمْرٌو وَّ قَالَ اَنَّهُ سَيَسْاَلُكَ الْاٰنَ فَيَقُوْلُ مَا خَلَّفَ صَاحِبَكَ فَقُلْ لَهُ يَقُوْلُ لَكَ لَوْ كُنْتُ فِيْ شِدْقِ الْاَسَدِ لَاَحْبَبْتُ اَنْ اَكُوْنَ مَعَكَ فِيْهِ وَ لٰكِنْ هٰذَا اَمْرٌ لَمْ اَرَهُ فَلَمْ يُعْطِنِيْ شَيْئًا فَذَهَبْتُ اِلٰى حَسَنٍ وَّ حُسَيْنٍ وَّابْنِ جَعْفَرٍ فَاَوْقَرُوْا لِيْ رَاحِلَتِيْ قَالَ رَاَيْتُ حَرْمَلَةَ قَالَ قَالَ اَرْسَلَنِيْ اُسَامَةُ اِلٰى عَلِيٍّ رَاحِلَتِيْ.

٧٨٩: علي بن عبد الله' سفيان' عمرو' محمد بن علي' حرمله (د' اسامه مولي) نه روايت کوي. ذَ حرمله بيان دے. زه اسامه حضرت عليؓ له اوليږم. او. وئيلے. چه هغه به تا نه هغه وخت تپوس کوي' چه څه څيز ستا ملګرے ماسره ذَ پاتے کيدونه ورستو کړ' نو هغهٔ ته ځما ذَ طرفه اووايه' که تاسو د' امزري په خوله کښ ئے' نو ځما بيا هم دا خوښه ده' چه زه دے کښ تاسو سره يم. ليکن دا معامله داسے ده' ما اونه ليدل' حضرت عليؓ ماله هيڅ رانه کړل' زه حضرت حسنؓ' حضرت حسينؓ او ابن جعفرؓ له ورغلم' نو هغوي ځما سورلي ډکه کړله (يعني ډير زيات مال ئے راکړلو).

باب ٤١٦: اِذَا قَالَ عِنْدَ قَوْمٍ شَيْئًا ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ بِخِلَافِهٖ.

باب ٤١٦: ذَ هغے سړي بيان' چه يو جماعت کښ څه اووائي. بيا د هغے ځائے نه اوځي. ذَ هغے خلاف څه اووائي.

٧٩٠: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ لَمَّا خَلَعَ اَهْلُ

٧٩٠: سليمان بن حرب' حماد بن زيد' ايوب' نافع نه روايت کوي. کوم وخت چه اهل مدينه ذَ يزيد بن معاويه بيعت فسخ که. نو ابن عمرؓ خپل

الْمَدِيْنَةَ يَزِيْدَ بْنَ مُعَاوِيَةَ جَمَعَ ابْنُ عُمَرَ حَشَمَهُ وَ وَلَدَهُ فَقَالَ اِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلَ يُنْصَبُ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَآءٌ يَّوْمَ الْقِيَامَةِ وَ اِنَّا قَدْ بَايَعْنَا هٰذَا الرَّجُلَ عَلٰى بَيْعِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ اِنِّيْ لَآ اَعْلَمُ غَدْرًا اَعْظَمَ مِنْ اَنْ يُّبَايَعَ رَجُلٌ عَلٰى بَيْعِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ثُمَّ يَنْصِبُ لَهُ الْقِتَالُ، وَ اِنِّيْ لَآ اَعْلَمُ اَحَدًا مِّنْكُمْ خَلَعَهُ وَ لَا بَايَعَ فِيْ هٰذَا الْاَمْرِ اِلَّا كَانَتِ الْفَيْصَلَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ.

ملګري او بچي راغونډ کړل او، ونيلے. ما ذَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے دي، هر عهد شکني کونکي د پاره به د قيامت په ورځ يوه جنډه نصب وي. او مونږ ذَ هغه سري بيعت، اللّٰه او د هغه، د رسول موافق کړے دے. زه نه پوهيږم چه د دے نه زياته هم څه بے وفائي کيدے شي، چه ذَ يو سړي بيعت د خدائے او د هغه د، رسول موافق اوکړے شي، بيا هغه سره جنګ اوکړے شي. زه نه پوهيږم، چه تاسو کښې کوم سړے هغه د خلافت ذَ تخت نه معزول کړي، او ذَ هغه ذَ، اطاعت نه مخ اړوي، نو څمونږ او ذَ هغه مينځ کښې به ذَ جدائي پرده حائله شي.

۱۹۷: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَنْ عَوْفٍ عَنْ اَبِي الْمِنْهَالَ قَالَ لَمَّا كَانَ اِبْنُ زِيَادٍ وَّ مَرْوَانُ بِالشَّامِ وَ وَثَبَ ابْنُ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ وَ وَثَبَ الْقُرَّاءُ بِالْبَصْرَةِ فَانْطَلَقْتُ مَعَ اَبِيْ اِلٰى اَبِيْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيِّ حَتّٰى دَخَلْنَا عَلَيْهِ فِيْ دَارِهٖ وَهُوَ جَالِسٌ فِيْ ظِلِّ عُلِّيَّةٍ لَّهٗ مِنْ قَصَبٍ فَجَلَسْنَا اِلَيْهِ فَاَنْشَاَ اَبِيْ يَسْتَطْعِمُهُ الْحَدِيْثَ فَقَالَ يَا اَبَا بَرْزَةَ اَلَا تَرٰى مَا وَقَعَ فِيْهِ النَّاسُ فَاَوَّلُ شَيْءٍ سَمِعْتُهٗ تَكَلَّمَ بِهٖ اِنِّيْ اِحْتَسَبْتُ عِنْدَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَصْبَحْتُ سَاخِطًا عَلٰى اَحْيَاءِ قُرَيْشٍ اِنَّكُمْ يَا مَعْشَرَ الْعَرَبِ كُنْتُمْ عَلَى الْحَالِ الَّذِيْ عَلِمْتُمْ مِنَ

۱۹۷: احمد بن يونس، ابو شهاب، عوف، ابو منهال نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے، ابن زياد کوفه کښې، او، مروان شام کښې او ابن زبير مکه کښې او، قراء بصره کښې په خپلو خپلو حکومتونو قابض وو. زه خپل پلار سره ابو برزه اسلمي له ورغلم. مونږ خلق ذَ هغه کورته اورسيدو. هغه د خپل بانس (بانړس) ذَ سيوري په سوري کښې ناست وو. مونږ هم هغه سره کيناستلو. څما پلار هغه سره خبرے شروع کړے. نو هغه اووے. اے ابو برزه، ايا ته نه وينے، چه خلق په څه څيز کيوتلے دي. ورمبنے خبره چه مو، ذَ هغه نه واوريده، هغه دا چه، د، اللّٰه نه د ثواب اميد لرم، په خبره، چه صبا ته په قريشو غصب ناک پاسم. اے د عربو ډلے، تاسو چه د، ذلت، کمي او ګمراهئ کوم حالت کښې وئے،

الذِّلَّةِ وَالْقِلَّةِ وَالضَّلَالَةِ وَ اِنَّ اللّٰهَ اَنْقَذَكُمْ بِالْاِسْلَامِ وَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَلَغَ بِكُمْ مَا تَرَوْنَ وَ هٰذِهِ الدُّنْيَا الَّتِيْ اَفْسَدَتْ بَيْنَكُمْ اِنَّ ذَاكَ الَّذِيْ بِالشَّامِ وَاللّٰهِ اَنْ يُّقَاتِلَ اِلَّا عَلَى الدُّنْيَا وَ اِنَّ هٰؤُلَآءِ الَّذِيْنَ بَيْنَ اَظْهُرِكُمْ وَاللّٰهُ اَنْ يُّقَاتِلُوْنَ اِلَّا عَلَى الدُّنْيَا وَ اِنَّ ذَاكَ الَّذِيْ بِمَكَّةَ وَاللّٰهِ اِنْ يُّقَاتِلَ اِلَّا عَلَى الدُّنْيَا.

هغه تاسو ته معلوم دے اللّه تعالٰي تاسو ته د اسلام او محمد صلّي اللّه عليه وسلّم په ذريعه نجات در کړلو، تر دے چه ستاسو هغه خبرے نصيب شوے چه نن ئے تاسو وينئ. او دے دُنيا ستاسو مينځ کښې فساد اچولے دے، او هغه سړے چه شام کښې دے، قسم په خدائے، دنيا (د پاره جنګيږي. او هغه سړے چه مکه کښې دے قسم په خدائے، دنيا د پاره جنګيږي يعني دا ټول، د دنيا خواهش مند او د دے غوښتونکي دي.

۷۰۹۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ ابْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَّاصِلٍ الْاَحْدَبِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ ابْنِ الْيَمَانِ قَالَ اِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ الْيَوْمَ شَرٌّ مِنْهُمْ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوْا يَوْمَئِذٍ يُسِرُّوْنَ وَالْيَوْمَ يَجْهَرُوْنَ.

۷۰۹۲: آدم بن ابي اياس، شعبه، واصل احدب، ابو وائل، حذيفه بن يمان نه روايت کوي، د هغه بيان دے. د نن پرون منافقان د هغے نه زيات خراب دي کوم چه د نبي صلّي اللّه عليه وسلّم په زمانه کښې وو. هغے خلقو به هغه زمانه کښې (خپل بد، اعمال) پټ ساتل. او دا (ننني) خلق ئے په ډاګه (علي الاعلان) کوي.

۷۰۹۳: حَدَّثَنَا خَلَّادٌ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ حَبِيْبِ بْنِ اَبِيْ ثَابِتٍ عَنْ اَبِي الشَّعْثَاءِ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ اِنَّمَا كَانَ النِّفَاقُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّمَا هُوَ الْكُفْرُ بَعْدَ الْاِيْمَانِ.

۷۰۹۳: خلاد، مسعر، حبيب بن ابي ثابت، ابو الشعثاء، حضرت حذيفهؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. نفاق خو، د حضور صلّي الله عليه وسلّم په زمانه کښې وو او چه نن صبا دے، نو سِوا، د دے نه، نه دے چه دا، د ايمان راوړلو نه پس کفر کول دي.

## باب ۷۱۴: لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يُغْبَطَ اَهْلُ الْقُبُوْرِ.

## باب ۷۱۴: قيامت په اوبه کړے شي څو پورے چه قبر والو باندے رشک اونه کړے شي.

۷۰۹۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ

۷۰۹۴: اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج

حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ فَيَقُوْلُ يَا لَيْتَنِيْ مَكَانَهٗ.

حضرت ابو هريرهؓ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، قيامت به نه قائميږي، تر دے چه يو سړے به ذ يو قبر خوا كښې تيريږي. او وائي به، كاش چه زه د ده په خائے وے.

## بـاب ۴۱۸: تَغْيِيْرِ الزَّمَانِ حَتّٰى يَعْبُدُوا الْاَوْثَانَ.

باب ۴۱۸: ذ زمانے ذ بدليدو بيان، تر دے چه خلق د، بتانو پرستش راواخلي.

۷۹۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَضْطَرِبَ اَلْيَاتُ نِسَآءِ دَوْسٍ عَلٰى ذِي الْخَلَصَةِ وَ ذُوْ الْخَلَصَةِ طَاغِيَةُ دَوْسٍ الَّتِيْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ.

۷۹۵: ابو اليمان، شعيب، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. قيامت به نه قائميږي، تر دے چه ذ قبيلهٔ دوس ذ ښځو كوناتي (ذ كثرت په سبب) په ذوالخلصه رپيږي. او ذوالخلصه ذ قبيلهٔ دوس يو بُت وو، چه ذ جاهليت زمانه كښې به ئے د هغے عبادت كولو.[۱]

۱. مطلب دادے چه ذ قيامت قائميدلو نه مخكښې به دغه خلق هم د اسلام نه واوړي او د بوتانو عبادت به شروع كړي. ذوس د عربو مشهوره قبيله ده. ابو هريره رضي الله عنه ددغه قبيلے يو فرد وو.

۷۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِّنْ قَحْطَانَ يَسُوْقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ.

۷۹۶: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، سليمان، ثور، ابو الغيث، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، قيامت به هغه وخته پورے نه راځي، څو پورے چه يو سړے به د قحطان قبيلے نه راوځي. او خلق به خپلے ډنډے سره شړي.

## بـاب ۴۱۹: خُرُوْجِ النَّارِ، وَ

باب ۴۱۹: د، اور د، راتلو بيان او حضرت

قَالَ اَنَسٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَّلُ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ نَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ اِلَى الْمَغْرِبِ.

انس رضي الله عنه اووے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. د قيامت دَ ټولو نه وړمبنے علامت اور دے، چه خلق به د مشرق نه مغرب طرف ته بوځي.

۷۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَخْرُجَ نَارٌ مِّنْ اَرْضِ الْحِجَازِ تُضِيْءُ اَعْنَاقَ الْاِبِلِ بِبُصْرٰى.

۷۹۷: ابو اليمان، شعيب، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، قيامت به نه راځي. تر دے چه د حجاز، د، زمکے دَ به يو اور راوځي، چه هغے سره به د، بصريٰ د، اُوښانو گردنونه روښانه شي.

۷۹۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ سَعِيْدٍ الْكِنْدِيُّ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَدِّهٖ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْشِكُ الْفُرَاتُ اَنْ يَّحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِّنْ ذَهَبٍ فَمَنْ حَضَرَهُ فَلَا يَاْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا قَالَ عُقْبَةُ وَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ اِلَّا اَنَّهٗ قَالَ يَحْسِرُ عَنْ جَبَلٍ مِّنْ ذَهَبٍ.

۷۹۸: عبد اللّٰه بن سعيد کندي، عقبه بن خالد، عبيد اللّٰه، خبيب بن عبد الرحمٰن، دَ خپل نيکه (دادا) حفص بن عاصم، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، عنقريب دريائے فرات به د، سرو زرو خزانه راوکاږي، نو کوم سړي ته چه په لاس ورشي، هغه به ترے هيڅ وانخلي دَ عقبه بيان دے. مونږ ته عبد اللّٰه په واسطه د، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريرهؓ، حضور صلّي الله عليه وسلّم نه دغسے روايت اوکه. خو، دا چه هغه اووے د سرو زرو غر به راوکاږي.

باب ۴۲۰:

باب ۴۲۰: (دا باب څه عنوان نه لري).

۷۹۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ مَعْبَدٌ سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنَ وَهْبٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ

۷۹۹: مسدد، يحيٰي، شعبه، معبد، حارثه بن وهب نه روايت کوي دَ هغه بيان دے. ما د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، خيرات

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ تَصَدَّقُوْا فَسَيَأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَمْشِي الرَّجُلُ بِصَدَقَتِهِ فَلَا يَجِدُ مَنْ يَقْبَلُهَا. قَالَ مُسَدَّدٌ حَارِثَةُ اَخُوْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ لِاُمِّهِ.

او كړې ځكه چه عنقريب يو داسې زمانه به راشي چه صدقې والا به صدقه گرځوي، خو، ذ هغې قبلونكې به څوک بيانه موميي مسدد اوويے، حارثه د مور د طرف نه د عبيد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه ورور وو.

۸۰۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ عَظِيْمَتَانِ يَكُوْنُ بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيْمَةٌ دَعْوَتُهُمَا وَاحِدَةٌ وَّ حَتّٰى يُبْعَثَ دَجَّالُوْنَ كَذَّابُوْنَ قَرِيْبٌ مِنْ ثَلَاثِيْنَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ اَنَّهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ حَتّٰى يُقْبَضَ الْعِلْمُ وَ تَكْثُرَ الزَّلَازِلُ وَ يَتَقَارَبَ الزَّمَانُ وَ تَظْهَرَ الْفِتَنُ وَ يَكْثُرَ الْهَرَجُ وَ هُوَ الْقَتْلُ وَ حَتّٰى يَكْثُرَ فِيْكُمُ الْمَالُ فَيَفِيْضَ حَتّٰى يُهِمَّ رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَقْبَلُ صَدَقَتَهُ وَ حَتّٰى يَعْرِضَهُ فَيَقُوْلَ الَّذِيْ يَعْرِضُهُ عَلَيْهِ لَا اَرَبَ لِيْ بِهٖ، وَ حَتّٰى يَتَطَاوَلَ النَّاسُ فِي الْبُنْيَانِ وَ حَتّٰى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ فَيَقُوْلُ يَالَيْتَنِيْ مَكَانَهُ وَ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَاِذَا طَلَعَتْ وَ رَاٰهَا النَّاسُ يَعْنِيْ اٰمَنُوْا اَجْمَعُوْنَ فَذٰلِكَ حِيْنَ لَا

۸۰۰: ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، قيامت به نه قائميږي، تر دے چه دوه (۲) لوئے ډلے به خپلو كښ اوجنگيږي. او ذ هغوئ مينځ كښ به سخته خون ريزي وي. ذ هغوي دعوئ به يوه وي. او هغه وخته پورے به تقريبًا ديرش دجالان پيدا شي هغوئ كښ به هر يو دا دعوئ كوي، چه هغه د، اللّٰه رسول دے. او علم به اوچت كړے شي. د، زلزلو به كثرت وي. او زمانه به يو بل ته قريبه وي. او هرج يعني ذ قتل به زياتے وي او هغه وخت به تاسو كښ د مال دومره كثرت شي، چه بهيږي به، او د مال مالک به قصد كوي، چه د هغه صدقه څوک قبوله كړي. اوهغه به هغه پيش كړي. او چاته چه پيش كړي. هغه به وائي، ماته د دے ضرورت نشته. او هغه وخت به خلق لويو لويو عمارتونو بانديے فخر كوي. او هغه وخت به يو سړے ذ چا قبر سره تيريږي نو وائي به، كاش چه زه د، ده په ځائے وے او نمر به د مغرب نه راوخيژي. چه نمر د مغرب نه طلوع شي، او خلق هغه اووينې نو

يَـنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْـلُ اَوْ كَسَبَتْ فِـىْ اِيْـمَانِهَا خَيْرًا وَ لَتَـقُـوْمَـنَّ السَّـاعَةُ وَ قَدْ نَشَرَ الرَّجُلَانِ ثَـوْبَهُـمَـا بَيْـنَهُـمَـا فَلَا يَتَبَـايَعَانِـهِ وَ لَا يَطْـوِيَـانِـهِ وَ لَتَقُوْمَنَّ السَّـاعَةُ وَ قَدِ انْـصَرَفَ الرَّجُـلُ بِـلَبَـنِ لِقُحَتِـهِ فَلَا يَطْـعَمُهُ وَ لَتَقُوْمَنَّ السَّاعَةُ وَ هُوَ يَلِيْطُ حَـوْضَــهُ فَلَا يَسْـقِـىْ فِيْـهِ وَ لَتَقُوْمَنَّ السَّـاعَةُ وَ قَـدْ رَفَعَ اُكْلَتَهٗ اِلٰى فِيْهِ فَلَا يَطْعَمُهَا.

تـول بـه ايـمـان راوړي، خو، د هغه وخت ايمان ورته څه نفع نشي رسولے، څو پورے چه د مخکښې نه ايمان نه وي راوړے. يا خپل ايمان کښې ئے نيکي اونه کړه. او قيامت بـه داسـے قـائـمـيږي، چه يو سړے به د، اوښے لشلے پئے راوړي. ليـکـن هغه به اونه څکلے شي او قيامت به داسے حـال کـښې قـائم شي. چه يو سړے به خپلو څاروو د پاره حـوض درسـت کـوي. خو هغے کښې به خوروول څکول اونـه کـړے شي. او قيامت به داسے حال کښې قائميږي. چـه يو سړے به خپلے خولے ته نوړئے اوچتوي خو هغه به اونه خوړلے شي.

## بَاب ۴۲۱: ذِكْرِ الدَّجَّالِ.

## باب ۴۲۱: دَ، دجّال بيان.

۸۰۱: حَـدَّثَـنَـا مَسَـدَّدٌ حَدَّثَنَا يَـحْيٰى حَـدَّثَـنَـا اِسْـمَاعِيْلُ حَدَّثَنِىْ قَيْـسٌ قَـالَ قَـالَ لِـىَ الْـمُغِيْـرَةُ بْنُ شُـعْبَةَ مَا سَاَلَ اَحَدٌ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدَّجَّالِ مَا سَاَلْتُهٗ، وَ اِنَّـهٗ قَـالَ لِـىْ مَـا يَـضُـرُّكَ مِـنْهُ؟ قُلْتُ لِاَنَّهُـمْ يَـقُـوْلُوْنَ اَنَّ مَعَهٗ جَبَلَ خُبْزٍ وَّ نَهَـرَ مَآءٍ قَالَ هُوَ اَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ ذٰلِكَ.

۸۰۱: مسـدد، يـحيٰي، اسماعيل، قيس، مغيره بن شـعبـه نه روايت کوي، د دجّال متعلق چه څومره ما د نبي صلّي اللّٰـه عـليه وسلّم نه تپوسونه کړے دي، دومره بل چـانـه دي کـړي. حـضـور صـلّـي اللّٰـه عـليه وسلّم ماته اوفـرمـائيل. تاته به د هغه نه څه نقصان اورسي، ما عرض او که، دا چه خلق وائي، چه هغه سره به د، روټئے غر او د، اوبـو نهـر، وي. حضورؐ اوفرمائيل او هغه په اللّٰه د، دے نه (يـعـنـي د دے خـبـرے نـه، چه هغه دَ مؤمن د گمراه کولو ذريعه جوړه کړي) زيات آسان دے.

۸۰۲: حَـدَّثَـنَـا سَعْـدُ بْـنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ اِسْحٰـقَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِىْ طَلْحَةَ عَـنْ اَنَـسِ ابْـنِ مَـالِكٍ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ، يَجِىْءُ الـدَّجَّـالُ حَتّٰـى يَـنْـزِلَ فِـىْ نَـاحِيَةِ

۸۰۲: سـعـد بـن حـفـص، شيبـان، يـحيٰي، اسـحـاق بـن عبـد اللّٰـه بـن ابي طـلـحـه، حضرت انـس بـن مـالـک رضـي اللّٰـه عـنـه نـه روايت کوي دَ هـغـه بيان دے. حـضـور صـلّـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم ارشـاد اوفـرمـائيـل. دجال بـه راځي، تـر دے چـه دَ مـديـنـے پـه يـو گـټ کـښې بـه کـوز شـي بيـا بـه پـه

الْمَدِيْنَةَ ثُمَّ تَرْجُفُ الْمَدِيْنَةُ ثَلَاثَ رَجَفَاتٍ فَيَخْرُجُ اِلَيْهِ كُلُّ كَافِرٍ وَّ مُنَافِقٍ.

مدينـه درې ځلـه زلزلـه راشي. او ټـول كـافـر او منـافـق بـه هغـې دجّـال سـره راجـمـع شي.

۸۰۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْمَدِيْنَةَ رُعْبُ الْمَسِيْحِ لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ اَبْوَابٍ عَلٰى كُلِّ بَابٍ مَّلَكَانَ قَالَ وَ قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ صَالِحِ ابْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَدِمْتُ الْبَصْرَةَ فَقَالَ لِيْ اَبُوْ بَكْرَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

۸۰۳: علي بن عبد اللّٰه محمد بن بشر، مسعر، سعد بن ابراهيم، حضرت ابو بكره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي ذ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. مدينه كښې به د مسيح دجّال خوف داخل نشي. په هغه ورځ به ذ مدينې اووه (۷) دروازې وي. او په هره دروازه به دوه (۲)، دوه (۲) فريښتې وي. ابن اسحاق په واسطه د، صالح بن ابراهيم د، ابراهيم قول روايت كړے دے، زه بصرې ته راغلم. نو ماته ابوبكرهؓ اووے، ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دا حديث اوريدلے دے.

۸۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ اِنِّيْ لَاُنْذِرُكُمُوْهُ وَ مَا مِنْ نَبِيٍّ اِلَّا وَ قَدْ اَنْذَرَهُ قَوْمَهُ وَ لٰكِنِّيْ سَاَقُوْلُ لَكُمْ فِيْهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ اِنَّهُ اَعْوَرُ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِاَعْوَرَ.

۸۰۴: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، ابراهيم، صالح، ابن شهاب، سالم بن عبد اللّٰه، حضرت بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي ذ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ خلقو مينځ كښې اودريدلو او د، اللّٰه تعالىٰ تعريف ئے بيان كه، چه ذ هغې هغه مستحق دے، بيا د، دجّال ذكر، ئے اوكه، وے فرمائيل، زه تاسو ذ هغه نه ويروم. او هيڅ نبي داسې نه دے راغلے، چه هغه خپل قوم د، دجّال نه، نه وي ويرولے. ليكن زه به تاسو ته عنقريب داسې خبره اوښايم، چه هيڅ نبي خپل قوم ته نه ده كړې او هغه دا چه دجّال به كانړے (كانا) وي. او اللّٰه تعالىٰ كانا نه دے.

٨٠٥: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ فَاِذَا رَجُلٌ اٰدَمُ سَبْطُ الشَّعْرِ يَنْطُفُ اَوْ يُهَرَاقُ رَاْسُهُ مَاءً قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوْا ابْنُ مَرْيَمَ ثُمَّ ذَهَبْتُ اَلْتَفِتُ فَاِذَا رَجُلٌ جَسِيْمٌ اَحْمَرُ جَعْدُ الرَّاْسِ اَعْوَرُ الْعَيْنِ كَاَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ قَالُوْا هٰذَا الدَّجَّالُ اَقْرَبُ النَّاسِ بِهٖ شَبَهًا ابْنُ قَطَنٍ رَّجُلٌ مِّنْ خُزَاعَةَ.

٨٠٥: يحيى بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، سالم بن عبد الله، حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: يو خل زه اُوده شوے (نو خواب كښې مِ اوليدل چه) زه د خانه كعبے طواف كوم، په يو سړي مِ نظر اوغورځيد، چه غنم رنګے وو. او د هغه ويښته نيغ وو، او د سر نه ئے اوبه څڅيدلے. ما تپوس اوكه، دا څوک دے جواب راكړے شو، دا ابن مريم (عيسي عليه السلام) دے. بيا ما اخوا ديخوا نظر اُوزغلولو. نو يو غټ سړے مِ اوليدلو، چه ويښته ئے ولول وو. او په يوه ستر كه كانړے وو ګويا، دَ ستر كه د انګور پشان پړسيدلے وه. خلقو اووے، دا دجّال دے. دے په خلقو كښې د بني خزاعه د، يو سړي ابن قطن مشابه وو.

٨٠٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَعِيْذُ فِيْ صَلَاتِهٖ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ.

٨٠٦: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، ابراهيم بن سعد، صالح، ابن شهاب، عروه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها اووے مَا دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے دي، چه مونځ كښې ئے د دجال د فتنے نه پناه غوښتله.

٨٠٧: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيٍّ عَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الدَّجَّالِ اِنَّ مَعَهُ مَاءً وَّ نَارًا فَنَارُهُ مَاءٌ بَارِدٌ وَّ مَاؤُهُ نَارٌ قَالَ اَبُوْ مَسْعُوْدٍ اَنَا سَمِعْتُهُ

٨٠٧: عبدان، د عبدان پلار، شعبه، عبد المالک، ربعي، حضرت حذيفه رَضي اللّٰه عنه، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، دَجّال متعلق ارشاد اوفرمائيلو، هغه سره به اُور او اُوبه وي. او (حقيقت كښې) هغه اُور به يخے اوبه وي، او دَ هغه اُوبه اُور دے. ابو مسعود

مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اوري. ما دا' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي.

۸۰۸: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بُعِثَ نَبِيٌّ اِلَّا اَنْذَرَ اُمَّتَهُ الْاَعْوَرَ الْكَذَّابَ اَلَا اِنَّهُ اَعْوَرُ وَ اِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِاَعْوَرَ وَ اِنَّ بَيْنَ عَيْنَيْهِ مَكْتُوْبٌ كَافِرٌ فِيْهِ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۰۸: سليمان بن حرب' شعبه' قتاده' حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هيڅ نبي داسے نه دے راغلے' چه هغه خپل امت د' کاڼړا او دروغجن (دجّال) نه ويرولے نه وي. ښه واورئے' چه دجّال به کاڼړے (کانا) وي. او ستاسو پروردګار کانا نه دے. او ذَ هغه د' دواړو سترګو مينځ کښ به کافر ليکلے وي. دے باب کښ ابو هريرهؓ او ابن عباسؓ د نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت کوي.

## بَاب ۴۲۲: لَا يَدْخُلُ الدَّجَّالُ الْمَدِيْنَةَ.

## باب ۴۲۲: دجال به مدينه کښ نه شي داخليدے.

۸۰۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا حَدِيْثًا طَوِيْلًا عَنِ الدَّجَّالِ فَكَانَ فِيْمَا يُحَدِّثُنَا بِهِ اَنَّهُ قَالَ يَأْتِيْ وَ هُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْهِ اَنْ يَّدْخُلَ نِقَابَ الْمَدِيْنَةِ فَيَنْزِلُ بعض السِّبَاخِ الَّتِيْ تَلِيْ الْمَدِيْنَةَ فَيَخْرُجُ اِلَيْهِ يَوْمَئِذٍ رَجُلٌ وَ هُوَ خَيْرُ النَّاسِ اَوْمِنْ خِيَارِ النَّاسِ فَيَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنَّكَ الدَّجَّالُ الَّذِيْ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۸۰۹: ابو اليمان' شعيب' زهري' عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه بن عتبه بن مسعود' ابو سعيد نه روايت کوي' د هغه بيان دے. مونږ ته رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د' دجّال متعلق يو' اوږود (طويل) حديث بيان کړلو' حضورؐ چه څه اوفرمائيل' منجمله ذَ هغے نه دا وو چه دجّال به داسے حال کښ راځي' چه په هغه به حرام وي' چه ذَ مدينے لارو کښ داخل شي نو هغه به په يوه ښوره زمکه راکوزيږي' چه مدينے سره متصل وي په هغه ورځ به هغه له يو سړے ورځي' او هغه به ټولو خلقو کښ ښه وي هغه به وائي' زه ګواهي کوم' چه ته دجال ئے' چه د هغه متعلق حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي' دجال به خپلو ملګرو ته مخاطب شي' ورته به وائي اووايئے

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَهُ فَيَقُوْلُ اَرَأَيْتُمْ اِنْ قَتَلْتُ هٰذَا ثُمَّ اَحْيَيْتُهُ هَلْ تَشُكُّوْنَ فِي الْاَمْرِ، فَيَقُوْلُوْنَ لَا فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يُحْيِيهِ فَيَقُوْلُ وَاللّٰهِ مَا كُنْتُ فِيكَ اَشَدَّ بَصِيْرَةً مِنِّي الْيَوْمَ فَيُرِيْدُ الدَّجَّالُ اَنْ يَقْتُلَهُ فَلَا يُسَلَّطُ عَلَيْهِ.

کــه زه دے قتل کـرم. او بيـائـے را ژوندے کړم نو آيا دے معامـلـه (يعني خما خدائي) کښ به شک کوئ. هغه خلق به وائي، نه. نو هغه به قتل کړي. بيا به ئے ژونـدے کـړي. هغه سړے به وائے، په خدائے مې دے قسم وي، نن د مخکښ پـه نسبت ستا متعلق زه ډير زيات بصيرت لـرم. دجّال به بيا هغه قتلول غواړي خو وس به ئے پرے نه رسي.

۸۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نُعَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُجْمِرِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اَنْقَابِ الْمَدِيْنَةِ مَلَآئِكَةٌ لَا يَدْخُلُهَا الطَّاعُوْنَ وَ لَا الدَّجَّالُ.

۸۱۰: عبد اللّٰـه بـن مسـلـمـه، مـالـک، نعيم بن عبد اللّٰـه مـجـمـر، حـضـرت ابو هريره رضي اللّٰه عنـه نـه روايـت کـوي. د هـغـه بيـان دے، رسـول اللّٰـه صـلّي اللّٰـه عليـه وسـلّم اوفـرمـائيل، د مدينے پـه لارو فـرښتـے دي. هـلتـه طـاعون او دجال داخليدے نه شي.

۸۱۱: حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى اِبْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَدِيْنَةُ يَأْتِيْهَا الدَّجَّالُ فَيَجِدُ الْمَلَآئِكَةَ يَحْرُسُوْنَهَا فَلَا يَقْرَبُهَا الدَّجَّالُ وَ لَا الطَّاعُوْنُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ.

۸۱۱: يـحيٰي بـن مـوسٰي، يزيد بن هارون، شعبه، قتاده، حـضـرت انـس بـن مـالـک رضي اللّٰه عنه حضور صـلّـي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل مدينے ته به دجّال راتلل غواړي، نو ورتـه بـه مـعلومه شي چه فرښتے دَ هغے نګراني کوي، نو دجـال بـه هـغـے ته قريب نه شي. او که خدائے ته منظوره وي، نو طاعون (به دلته هم داخل نه شي).

باب ۴۲۳: يَاْجُوْجَ وَ مَاْجُوْجَ.

باب ۴۲۳: د، ياجُوج مَاجوج بيان.

۸۱۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ

۸۱۲: ابـو اليـمـان، شـعيـب، زهـري، ح، اسماعيل، برادر اسماعيل، سليمان، محمد بن محمد بن ابي عتيق، ابـن شـهـاب، عـروه بـن زبيـر، زينب بنت ابي سلـمـه، ام حبيبـه رضـي اللّٰه عنه بنت ابي سفيان، زينب رضـي اللّٰـه عنه بنت جحش نه روايت کوي. رسول اللّٰه

اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُ عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ بِنْتِ اَبِيْ سُفْيَانَ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمًا فَزِعًا يَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَيْلٌ لِّلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ مِثْلُ هٰذِهٖ وَحَلَّقَ بِاِصْبَعَيْهِ الْاِبْهَامِ وَالَّتِيْ تَلِيْهَا، قَالَتْ زَيْنَبُ ابْنَةُ جَحْشٍ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَنَهْلِكُ وَ فِيْنَا الصَّالِحُوْنَ؟ قَالَ نَعَمْ اِذَا كَثُرَ الْخُبْثُ.

صلّي اللّه عليه وسلّم يو ورځ هغې ځلـه ويرې سره تشريف راوړلو اووې فرمائيل، د اللّه تعالىٰ نه سوا هيڅوک معبود نشته، عربو د پاره خرابي ده، ذ هغې شر نه، چه عنقريب راتلونکې دې. نن د، ياجوج ماجوج ديوال کښې دومره پرانستې شو، او خپلو ګوتو کښې ئې د، ګتې ګوتې او هغې سره ګوتې نه حلقه جوړه کړله، او اشارې سره ئې اوښودله ذ، زينب بنت جحش بيان دې. ما عرض اوکه اې د اللّه رسوله، آيا مونږ به هلاک شو حالانکه مونږ کښې به صالحان خلق وي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. هاؤ. کوم وخت چه خباثت زيات شي.

۸۱۳: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاؤُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُفْتَحُ الرَّدْمُ رَدْمُ يَاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ مِثْلُ هٰذِهٖ وَ عَقَدَ وُهَيْبٌ تِسْعِيْنَ.

۸۱۳: موسيٰ بن اسماعيل، وهيب، ابن طاؤس، طاؤس، حضرت ابو هريره رضي اللّه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دې. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل د، ياجوج ماجوج ديوال کښې دومره پرانستې شوې دې او وهيب ذ، نوې (۹۰) حلقه جوړه کړه، ذ هغې مقدار ئې ظاهر که.

# كِتَابُ الْاَحْكَامِ

# ذ، احکامو بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع کوم په نامه ذ خدائې چه بخښونکې او مهربان دې

بَاب ۴۲۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالىٰ اَطِيْعُوْا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ.

باب ۴۲۴: ذ، اللّه تعالىٰ قول، چه د، اللّه او رسول او ذ خپلو حاکمانو اطاعت کوئې.

۸۱۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ

۸۱۴: عبدان، عبد اللّه، يونس، زهري، ابو سلمه بن عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريره رضي اللّه عنه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دې. رسول

اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَطَاعَنِيْ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ وَ مَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ عَصَا اللّٰهَ وَ مَنْ اَطَاعَ اَمِيْرِيْ فَقَدْ اَطَاعَنِيْ وَ مَنْ عَصَا اَمِيْرِيْ فَقَدْ عَصَانِيْ.

اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چاچه اطاعت اوکه خما، هغه د اللّٰه اطاعت اوکه. او چاچه خمانافرماني اوکړه، هغه دَ اللّٰه نافرماني اوکړه او چاچه خما د، امير اطاعت اوکه هغه خما اطاعت اوکه، او چاچه خما د، امير نافرماني اوکړه، هغه خما نافرماني اوکړه.

۶۸۱۵: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ كُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ، فَالْاِمَامُ الَّذِيْ عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَّ هُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلٰى اَهْلِ بَيْتِهٖ وَ هُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ وَالْمَرْاَةُ رَاعِيَةٌ عَلٰى اَهْلِ بَيْتِ زَوْجِهَا وَ وَلَدِهٖ وَ هِيَ مَسْئُوْلَةٌ عَنْهُمْ وَ عَبْدُ الرَّجُلِ رَاعٍ عَلٰى مَالِ سَيِّدِهٖ وَ هُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْهُ اَلَا فَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ.

۶۸۱۵: اسماعيل، مالک، عبد اللّٰه بن دينار، عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. واورئے تاسو کښې هر سړے ګوارچي (چړواها) دے. او تاسو کښې به د، هر سړي نه دَ خپل رعيت متعلق تپوس کيږي. هغه امام چه په خلقو نګران دے، هغه نه به دَ رعيت متعلق تپوس کيږي او هغه سړے چه دَ خپل کور نګران دے،هغه نه به دَ هغه د، رعيت متعلق پښتنه کيږي، ښځه دَ خپل خاوند دَ کور او دَ هغه دَ بچو نګرانه ده. هغې نه به دَ هغې د، رعيت په حقله تپوس کيږي. دَ يو سړي غلام (يا، نوکر) دَ خپل آقا (مالک) دَ، مال نګران دے، هغه نه به د هغې بابت کښې پښتنه کيږي. واورئے، تاسو کښې هر سړے څرونکے (چړواها) دے. او تاسو کښې هر سړي نه به دَ هغه د، رعيت متعلق تپوس کيږي.

ف: دلته دَ ګوارچي، څرونکے، چرواها، نه مراد نګران دے. (څنګه چه ګوارچي دَ خپلو څاروو نګراني کوي، دَغسې هر مشر دَ خپلو خلقو نګران دے).

بَابٌ ۴۲۵: اَلْاُمَرَآءِ مِنْ قُرَيْشٍ.

باب ۴۲۵: امراء بـه دَ قريشو نه وي.

۶۸۱۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ كَانَ

۶۸۱۶: ابو اليمان، شعيب زهري نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے محمد بن جبير بن مطعم وئيلے

مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ يُحَدِّثُ اَنَّهُ بَلَغَ مُعَاوِيَةَ وَ هُوَ عِنْدَهُ فِيْ وَفْدٍ مِنْ قُرَيْشٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو يُحَدِّثُ اَنَّهُ سَيَكُوْنُ مَلِكٌ مِنْ قَحْطَانَ فَغَضِبَ فَقَامَ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ: اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّهُ بَلَغَنِيْ اَنَّ رِجَالاً مِنْكُمْ يُحَدِّثُوْنَ اَحَادِيْثَ لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ وَ لَا تُؤْثَرُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُولٰٓئِكَ جُهَّالُكُمْ فَاِيَّاكُمْ وَالْاَمَانِيَّ الَّتِيْ تُضِلُّ اَهْلَهَا فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ هٰذَا الْاَمْرَ فِيْ قُرَيْشٍ لَا يُعَادِيْهِمْ اَحَدٌ اِلَّا كَبَّهُ اللّٰهُ عَلٰى وَجْهِهٖ مَآ اَقَامُوا الدِّيْنَ تَابَعَهُ نُعَيْمٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ.

حضرت معاويه رضي الله عنه ته كوم وخت چه هغه د قريشو وفد سره وو، خبر اورسيد چه عبد الله بن عمر رضي اللّٰه عنه حديث بيانوي، چه عنقريب بنو قحطان كښې به يو بادشاه وي. امير معاويه رضي الله عنه له غصه ورغله. هغه اودريد، او د الله حمد و ثنا ئې بيان كړه، چه د هغې هغه مستحق دے. بيانې اوړے. اما بعد ماته خبر رارسيدلے دے، چه تاسو كښې ځنې خلق داسې خبرې كوي، چه نه كتاب الله كښې شته او نه رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه منقول دي، هغه ستاسو جاهل خلقدي تاسو د دے دروغ خبرو نه بچ اوسئې، چه خلقو د پاره ګمراه كُن دي. ما د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوريدلې دي، چه دا امر (يعني حكومت) به قريشو كښې وي څو پورې چه هغوئ دين قائم ساتي. او كوم سړے چه هغوئ سره سركشي كوي، نو الله تعالٰي به هغه پړمخې راوغرځوئ نعيم په واسطه د ابن مبارك، معمر، زهري، محمد بن جبير د دے متابعت كښې روايت كړے دے.

۶۸۱۷: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ قَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَا يَزَالُ هٰذَا الْاَمْرُ فِيْ قُرَيْشٍ مَا بَقِيَ مِنْهُمُ اثْنَانِ.

۶۸۱۷: احمد بن يونس، عاصم بن محمد، محمد، ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اُوفرمائيل، دا امر (يعني حكومت) به قريشو كښې وي، څو پورې چه هغوئ كښې دوه (۲) سړي هم باقي وي.

## بَاب ۴۲۶: اَجْرِ مَنْ قَضٰى بِالْحِكْمَةِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ

## باب ۴۲۶: د هغې سړي ثواب چه حكمت سره فيصله اوكړي، ځكه چه د الله تعالٰي فرمان دے. چاچه د دے امر متعلق فيصله اونه كړه، چه الله نازل

هُمُ الْفٰسِقُوْنَ.

۸۱۸: حَدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَا حَسَدَ اِلَّا فِيْ اِثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلٰى هَلَكَتِهٖ فِي الْحَقِّ وَ اٰخَرُ اٰتَاهُ اللّٰهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَ يُعَلِّمُهَا.

کړے دے، نو داسے خلق فاسقان دي.

۸۱۸: شهاب بن عباد، ابراهيم بن حميد، اسماعيل، قيس، عبد الله رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، حسد دوو خبرو کښ دے. يو هغه سړے چه الله مال ورکړے وي او د حق لار کښ د خرچ کولو ئے هغه له قدرت ورکړے وي، او دويم هغه سړے چه هغه ته الله حکمت عطاء که، هغه د هغې په ذريعه فيصله کوي. او د هغې تعليم ورکوي.

باب ۴۲۷: اَلسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ لِلْاِمَامِ مَالَمْ تَكُنْ مَعْصِيَةً.

باب ۴۲۷: د امام د حکم اوريدو او اطاعت کولو بيان، څو پورے چه د ګناه کار نه وي.

۸۱۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْمَعُوْا وَ اَطِيْعُوْا وَ اِنِ اسْتُعْمِلَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ حَبْشِيٌّ كَاَنَّ رَاْسَهٗ زَبِيْبَةٌ.

۸۱۹: مسدد، يحيٰي، شعبه، ابو التياح، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، واورے، او اطاعت کوے، اګر که په تاسو يو حبشي غلام حاکم جوړ کړے شي، چه د هغه سر د کشمش (انګور) په شان (وړوکے) وي.

۸۲۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنِ الْجَعْدِ عَنْ اَبِيْ رَجَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ يَرْوِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَّاٰى مِنْ اَمِيْرِهٖ شَيْئًا فَكَرِهَهٗ فَلْيَصْبِرْ فَاِنَّهٗ لَيْسَ اَحَدٌ يُّفَارِقُ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَيَمُوْتُ اِلَّا مَاتَ مِيْتَةً جَاهِلِيَّةً.

۸۲۰: سليمان بن حرب، حماد، جعد، ابو رجاء، حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه د، امير نه څه داسے کار اوليد، چه هغه ئے خوښ نه وي، نو هغه له پکار دي، چه صبر اوکړي، ځکه چه کوم سړے د جماعت نه يو ليشت قدرے جدا شو او مړشو، نو هغه د جاهليت په مرګ مړشو.

١٨٢١: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، اَلسَّمْعُ وَالطَّاعَةُ عَلَى الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ فِيْمَا اَحَبَّ وَ كَرِهَ مَالَمْ يُؤْمَرْ بِمَعْصِيَةٍ فَاِذَآ اُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَ لَا طَاعَةَ.

١٨٢١: مسدد، يحيٰي بن سعيد، عبد اللّٰه، عبيد اللّٰه، نافع، حضرت عبد اللّٰه رَضي اللّٰه عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل په مسلمان سړي د، امير اطاعت، هغې كارونو كښې چه خوښ ئې وي، يا خوښ ئې نه وي، واجب دې تر هغې پورې چه ذ گناه حكم ورنه كړي. چه د گناه ذ خبرې حكم ور كړي، نو نه اوريدل دي، او نه اطاعت كول دي.

١٨٢٢: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ ابْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ وَ اَمَرَهُمْ اَنْ يُطِيْعُوْهُ فَغَضِبَ عَلَيْهِمْ وَ قَالَ اَلَيْسَ قَدْ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُطِيْعُوْنِيْ قَالُوْا بَلٰى قَالَ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ لَمَّا جَمَعْتُمْ حَطَبًا وَّ اَوْقَدْتُمْ نَارًا ثُمَّ دَخَلْتُمْ فِيْهَا، فَجَمَعُوْا حَطَبًا فَاَوْقَدُوْا فَلَمَّا اَهَمُّوْا بِالدُّخُوْلِ فَقَامَ يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ، قَالَ بَعْضُهُمْ اِنَّمَا تَبِعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِرَارًا مِّنَ النَّارِ اَفَنَدْخُلُهَا فَبَيْنَمَاهُمْ كَذٰلِكَ اِذْ خَمَدَتِ النَّارُ وَ سَكَنَ غَضَبُهُ، فَذُكِرَ

١٨٢٢: عمر بن حفص بن غياث، اعمش، سعد بن عبيده، ابو عبد الرّحمٰن، حضرت علي رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دې، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو وړوكې لښكر اوليږلو. او انصارو كښې يو سړې ئې ذ هغوئ سردار جوړ كه. او هغې خلقو ته ئې حكم وركه. چه ذ هغه اطاعت كوي. هغه سردار په څه خبره هغوئ ته غصه شو. او وئيلې آيا نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم تاسو ته حكم نه دې كړې چه څما اطاعت كوئې. خلقو اووې. او (هم دغسې ده) نو هغه اووې، زه تاسو ته حكم دركوم، چه لرگي راجمع كړئې. او اور بل كړئې. بيا هغې كښې داخل شئې. هغوئ لرگي راجمع كړل، اُور، ئې ورته كړلو. څه وخت چه هغې كښې د، ورننوتو اراده ئې اوكړله، نو يو بل ته ئې كتل شروع كړل، چا اووې. مونږ د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اتباع (پيروي) اُور نه بچ كيدو د پاره كړې ده، نو آيا بيا مونږ دې اور كښې داخل شو. هغوئ دا خبرې لا كولې، چه اور مړ شو، او ذ هغه غصه هم يخه شوه. بيا نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته دا، واقعه بيان كړې شوه، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم

لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ دَخَلُوْهَا مَا خَرَجُوْا مِنْهَا اَبَدًا اِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوْفِ.

اوفرمائيل' كه دا خلق دے (اور) كښې داخل شوے' نو هيڅ كله به ترے نه وو راوتلے' ځكه چه اطاعت صرف بنو خبرو كښې دے.

بـاب ۴۲۸: مَنْ لَمْ يَسْأَلِ الْإِمَارَةَ اَعَانَهُ اللّٰهُ.

باب ۴۲۸: چا چه حكومت طلب نه كړ' نو الله تعالىٰ دَ هغه مدد كوي.

۸۲۳: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ فَإِنَّكَ اِنْ أُعْطِيْتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ اِلَيْهَا وَ اِنْ أُعْطِيْتَهَا عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا وَ اِذَا حَلَفْتَ عَلٰى يَمِيْنٍ فَرَاَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا فَكَفِّرْ يَمِيْنَكَ وَأْتِ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ.

۸۲۳: حجاج بن منهال' جرير بن حازم' حسن' عبد الرحمٰن بن سمره رضي الله عنه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اے عبد الرحمٰن' دَ حكومت طلب مكوه' ځكه كه تاته په غوښتلو حاصل شي' نو ته به هغے ته حواله كړے شي. او كه بغير غوښتلو درته حاصل شي' نو ستا به (خدائي) مدد كولے شي. او كله چه ته په څه خبره قسم اوخورے' او نيكي (خير) د هغے خلاف (كار) كښې بيامومے. نو هغه كوه چه بهتر وي. او د قسم كفاره ادا كوه.

باب ۴۲۹: مَنْ سَأَلَ الْاِمَارَةَ وُكِّلَ اِلَيْهَا.

باب ۴۲۹: كوم سړے چه حكومت غواړي نو هغه به هغے ته حواله كړے شي.

۸۲۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنِ سَمُرَةَ لَا تَسْأَلِ الْإِمَارَةَ فَإِنْ أُعْطِيْتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ اِلَيْهَا وَ اِنْ أُعْطِيْتَهَا عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا وَ اِذَا حَلَفْتَ عَلٰى يَمِيْنٍ فَرَاَيْتَ

۸۲۴: ابو معمر' عبد الوارث' يونس' حسن' عبد الرحمٰن بن سَمَرَه رَضي اللّه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے ماته رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل اے عبد الرحمٰن بن سمره رضي الله عنه امارت (يعني حكومت) مه غواړه' ځكه كه په غوښتلو حكومت بيامومے' نو ته به هغے ته حواله كړے شے. او كه بغير غوښتلو تاته حاصل شي' نو په هغے كښې به ستا مدد كيږي. او كله چه ته په څه خبره قسم او خورے' او بنيكره د هغے خلاف

فَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا فَأْتِ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ وَكَفِّرْ عَنْ يَمِيْنِكَ.

(كار) كښې بيا مومې، نو هغه كوه چه بهتر وي. او د خپل قسم كفاره وركړه.

## بَابٌ ۴۳۰: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْحِرْصِ عَلَى الْإِمَارَةِ.

## باب ۴۳۰: د امارت (حكومت) د حرص د مكروه كيدو بيان.

۸۲۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّكُمْ سَتَحْرِصُوْنَ عَلَى الْإِمَارَةِ وَسَتَكُوْنُ نَدَامَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَنِعْمَ الْمُرْضِعَةُ وَبِئْسَتِ الْفَاطِمَةُ وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حُمْرَانَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيْدِ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ عَمَرَ بْنِ الْحَكَمِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَوْلَهُ.

۸۲۵: احمد بن يونس بن ابي ذئب، سعيد مقبري، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو، عنقريب تاسو به د امارت (اميري يا حكومت) حريص شئ. او د قيامت په ورځ به تاسو ته ندامت وي. نو ښې وركونكې ښه ده، او ښې نه خلاصوونكې خرابه ده. او محمد بن بشار په واسطه د عبد الله بن حمران، عبد الحميد، سعيد مقبري، عمر بن حكم، ابو هريره رضي الله عنه نه د هغه قول (موقوفاً) نقل كړے دے.

۸۲۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا وَرَجُلَانِ مِنْ قَوْمِيْ فَقَالَ اَحَدُ الرَّجُلَيْنِ اَمِّرْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَقَالَ الْاٰخَرُ مِثْلَهُ، فَقَالَ اِنَّا لَا نُوَلِّيْ هٰذَا مَنْ سَاَلَهُ وَلَا مَنْ حَرَصَ عَلَيْهِ.

۸۲۶: محمد بن علاء، ابو اسامه، بريد، ابو برده، حضرت ابو موسٰي رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، زه د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښې حاضر شوم، او ما سره خما د قوم دوه (۲) سړي وو، هغوي كښې يو كس عرض اوكه، يا رسول الله ما امير جوړ كړئ. او دوېم كس هم دغسې اووے حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، مونږ د دے مالک هغه سړے نه جوړ وو، چه د دے د پاره درخواست اوكړي، يا شوک چه د دے حريص وي.

## بَابٌ ۴۳۱: مَنِ اسْتُرْعِيَ رَعِيَّةً فَلَمْ يَنْصَحْ.

## باب ۴۳۱: د هغې سړي بيان، چه د رعيت حاكم جوړ كړے شو او د هغوي خير خواهي ئې اونه كړله.

۸۲۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ الْاَشْهَبِ عَنِ الْحَسَنِ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ زِيَادٍ عَادَ مَعْقِلَ بْنَ يَسَارٍ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ فَقَالَ لَهُ مَعْقِلٌ اِنِّيْ مُحَدِّثُكَ حَدِيْثًا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا مِنْ عَبْدٍ اسْتَرْعَاهُ اللّٰهُ رَعِيَّةً فَلَمْ يَحُطْهَا بِنَصِيْحَةٍ اِلَّا لَمْ يَجِدْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ.

۸۲۷: ابو نعیم، ابو الاشهب حسن نه روایت کوي. عبد اللّٰه بن زیاد، د معقل بن یسار، د مرګ مرض کښې پښتنې له ورغې نو هغه ته معقل اووې، زه تا ته داسې حدیث بیانوم، چه ما د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلې دې. ما د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل، کوم بنده چه اللّٰه د، یو رعیت حاکم جوړ کړلو، او د خیر خواهي په ذریعه ئې د هغوئ حفاظت اونه کړه، نو د جنت خوشبوئ به ورته نه رسي.

۸۲۸: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ قَالَ زَائِدَةُ ذَكَرَهُ عَنْ هِشَامٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اَتَيْنَا مَعْقِلَ بْنَ يَسَارٍ نَعُوْدُهُ فَدَخَلَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَقَالَ لَهُ مَعْقِلٌ اُحَدِّثُكَ حَدِيْثًا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا مِنْ وَالٍ يَلِيْ رَعِيَّةً مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَيَمُوْتُ وَ هُوَ غَاشٌّ لَّهُمْ اِلَّا حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ.

۸۲۸: اسحٰق بن منصور، حسین جعفي، زائده، هشام، حسن نه روایت کوي، د هغه بیان دې، مونږ معقل بن یسار له د هغې پښتنې د پاره ورغلو، بیا عبید اللّٰه هغه له راغې نو هغه ته معقل اووې، زه تا ته داسې حدیث بیانوم، چه ما د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلې دې. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، کوم سړې چه د مسلمان رعیت حاکم شي، او هغه داسې حال کښې مړشي، چه هغوئ سره خیانت کونکې وي، نو اللّٰه تعالٰي به په هغه جنت حرام کړي.

باب ۴۳۲: مَنْ شَاقَّ شَقَّ اللّٰهُ عَلَيْهِ.

باب ۴۳۲: چا چه خلقو لره په مشقت کښې واچول، اللّٰه تعالٰي به هغه په مشقت کښې واچوي.

۸۲۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ طَرِيْفٍ اَبِيْ تَمِيْمَةَ قَالَ شَهِدْتُّ صَفْوَانَ وَ جُنْدَبًا

۸۲۹: اسحٰق واسطي، خالد جریري، طریف ابو تمیمه نه روایت کوي. د هغه بیان دې. زه صفوان، جندب او د هغه ملګرو سره موجود ووم. هغه خلقو ته نصیحت کولو. چا تپوس اوکه، آیا تا د، رسول اللّٰه صلّي

وَ اَصْحَابَهُ وَ هُوَ يُوْصِيْهِمْ فَقَالُوْا هَلْ سَمِعْتَ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللّٰهُ بِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ وَ مَنْ يُشَاقِقْ يُشْقِقِ اللّٰهُ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالُوْا اَوْصِنَا فَقَالَ اِنَّ اَوَّلَ مَا يُنْتِنُ مِنَ الْاِنْسَانِ بَطْنُهُ فَمَنِ اسْتَطَاعَ اَنْ لَّا يَأْكُلَ اِلَّا طَيِّبًا فَلْيَفْعَلْ وَ مَنِ اسْتَطَاعَ اَنْ لَّا يُحَالَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْجَنَّةِ بِمِلْءِ كَفِّهٖ مِنْ دَمٍ اَهْرَاقَهُ فَلْيَفْعَلْ قُلْتُ لِاَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مَنْ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُنْدُبٌ قَالَ نَعَمْ جُنْدَبٌ.

اللّٰه عليه وسلّم نه څه اوريدلي دي هغه اووې: ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلي دي چا چه د شهرت خوا ښن اوکه نو ذ قيامت په ورځ به اللّٰه تعالي د هغه نيت ظاهر کړي. اووې فرمائيل. چا چه څوک مشقت کښ اوغرځولو نو اللّٰه تعالي به د قيامت په ورځ هغه مشقت کښ اوغرځوي هغې خلقو اووې مونږ ته څه نور نصيحت اوکه نو هغه ورته اووې. ذ ټولو نه مخکښ د انسان خيټه سخا شي که څوک پاکيزه څيز خوړلے شي نو داسے دِ اوکړي. او کوم سړے چه دا غواړي چه د هغه او د جنت مينځ کښ يو چونګ قدرے وينه (خون) چه هغه په ناحقه بهيدلے وي حائل نه وي نو پکار دي چه داسے اوکړي. ما ابو عبد اللّٰه ته اووې. څوک وائي چه ما د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلي دي. آيا جندب وئيلے دي. وَئيلے او. جندب وئيلے دي.

باب ۴۳۳: اَلْقَضَاءِ وَالْفُتْيَا فِي الطَّرِيْقِ وَ قَضٰى يَحْيَى بْنُ يَعْمَرَ فِي الطَّرِيْقِ، وَ قَضٰى الشَّعْبِيُّ عَلٰى بَابِ دَارِهٖ.

باب ۴۳۳: لار کښ فتوے ورکولو او فيصلے کولو بيان. او يحيٰي بن يعمر لار کښ فيصلـه اوکړه او شعبي ذ خپل کور په دروازه فيصله کړے ده.

۰۸۳۰: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمِ ابْنِ اَبِي الْجَعْدِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَارِجَانِ مِنَ الْمَسْجِدِ فَلَقِيَنَا رَجُلٌ عِنْدَ سُدَّةِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا

۰۸۳۰: عثمان بن ابي شيبه، جرير، منصور، سالم بن ابي جعد، انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے، يو خل زه او رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دواړه ذ جماعت د، دروازے نه بهروتلو. ذ جماعت په دروازه مونږ سره يو سړے يو ځائے شو. هغه تپوس اوکه يا رسول اللّٰه، قيامت به کله وي، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل،

رَسُوْلُ اللّٰهِ مَعَى السَّاعَةُ؟ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَعْدَدْتَ لَهَا؟ فَكَاَنَّ الرَّجُلَ اسْتَكَانَ ثُمَّ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا اَعْدَدْتُ لَهَا كَبِيْرَ صِيَامٍ وَّ لَا صَلَاةٍ وَ لَا صَدَقَةٍ وَّلٰكِنِّيْ اُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ قَالَ اَنْتَ مَعَ مَنْ اَحْبَبْتَ.

تا هغې د پاره څه تيارې كړې ده. هغه لږ خاموش شان شولو. بيا هغه اووې، يا رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ما خو هغې د پاره د، زياتو روژو، مونځونو، او صدقو بندوبست نه دې كړې. ليكن زه الله تعالٰي او د هغه رسول سره محبت ساتم. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ته به هغې چاسره يې چاسره چه محبت ساتې.

**باب ۴۳۴: مَا ذُكِرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ لَهُ بَوَّابٌ.**

**باب ۴۳۴:** د دې امر بيان، چه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم څوک دربان (څوكيدار) نه وو.

**۸۳۱:** حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتُ الْبُنَانِيُّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ يَقُوْلُ لِامْرَاَةٍ مِنْ اَهْلِهِ تَعْرِفِيْنَ فُلَانَةَ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهَا وَ هِيَ تَبْكِيْ عِنْدَ قَبْرٍ فَقَالَ اتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِيْ فَقَالَتْ اِلَيْكَ عَنِّيْ فَاِنَّكَ خِلْوٌ مِّنْ مُّصِيْبَتِيْ قَالَ فَجَاوَزَهَا وَ مَضٰى فَمَرَّ بِهَا رَجُلٌ فَقَالَ مَا قَالَ لَكِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ مَا عَرَفْتُهُ قَالَ اِنَّهُ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَجَآءَتْ اِلٰى بَابِهِ فَلَمْ تَجِدْ عَلَيْهِ بَوَّابًا فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا عَرَفْتُكَ، فَقَالَ

**۸۳۱:** اسحاق، عبد الصّمد، شعبه، ثابت بناني، انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، هغه دَ خپل كور يوې ښځې سره خبرې كولې، ايا ته فلانئې ښځه پيژنې هغې اووې. او. نو هغه ورته اووې. نبي صلّي الله عليه وسلّم دَ هغې ښځې خوا كښې تير شو، هغه وخت هغې يو قبر ته ژړل. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل د خدائې نه ويريږه او صبر كوه. هغې اووې ته ما نه لرې شه ته خما دَ مصيبت نه ناواقفه ئې. حضور صلّي الله عليه وسلّم ترې نه وړاندې تير شو. يو سړې دَ هغې ښځې خوا كښې تير شو. هغه ترې نه تپوس اوكه چه تاته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم څه اوفرمائيل. هغې ښځې ورته اووې. ما اونه پيژندل، چه هغه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم وو. نو هغه ښځه دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم دروازې له ورغله. هلته ئې څوک دربان بيانه مند، نو دننه ورغله. وليلې، يا رسول اللّٰه، په خدائې م دې قسم وي، ما تاسو نه وئې پيژندلې.

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الصَّبْرَ عِنْدَ اَوَّلِ صَدْمَةٍ.

نبي صلعم ورته اوفرمائيل. صبر د' صدمے په شروع كښ پكار دے.

باب ۴۳۵: اَلْحَاكِمُ يَحْكُمُ بِالْقَتْلِ عَلٰى مَنْ وَّجَبَ عَلَيْهِ دُوْنَ الْاِمَامِ الَّذِيْ فَوْقَهُ.

باب ۴۳۵: د ماتحت حاكم دَ خپل حاكم اعلٰي مخكښ د' يو واجب القتل سړي د قتل د حكم كولو بيان.

۸۳۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدِ الذُّهْلِيُّ حَدَّثَنَا الْاَنْصَارِيُّ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ كَانَ يَكُوْنُ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْزِلَةِ صَاحِبِ الشُّرَطِ مِنَ الْاَمِيْرِ.

۸۳۲: محمد بن خالد ذهلي انصاري محمد' د' انصاري پلار' ثمامه حضرت انس بن مالك رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي' هغه اووے' قيس بن سعد' دَ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم مخكښ د' امير دَ صاحب شرط په شان وو.

۸۳۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ قُرَّةَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَهُ وَ اَتْبَعَهُ بِمُعَاذٍ.

۸۳۳: مسدد' يحيٰي' قرة حميد بن هلال' ابو برده' حضرت ابو موسٰي نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه يمن طرف ته اوليږلو. بيا د هغه نه پس ئے حضرت معاذ وراوليږلو.

۸۳۴: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا مَحْبُوْبُ بْنُ الْحَسَنِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ حُمَيْدِ ابْنِ هِلَالٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اَنَّ رَجُلًا اَسْلَمَ ثُمَّ تَهَوَّدَ فَاَتَاهُ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَّ هُوَ عِنْدَ اَبِيْ مُوْسٰى فَقَالَ مَا لِهٰذَا؟ قَالَ اَسْلَمَ ثُمَّ تَهَوَّدَ قَالَ لَا اَجْلِسُ حَتّٰى اَقْتُلَهُ قَضَآءَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۳۴: عبد اللّٰه بن صباح' محبوب بن حسن' خالد' حميد بن هلال' ابو برده' حضرت ابو موسٰي نه روايت كوي. يو سړے مسلمان شو' بيا يهودي شو. معاذ بن جبل داسے حال كښ ور اورسيدلو' چه هغه سړے ابو موسٰي سره وو. معاذ رضي اللّٰه عنه تپوس اوكه' دے سړي څه جرم كړے دے. هغه ورته اووے. دے مسلمانئے نه پس يهودي شوے دے. هغه ورته اووے' زه هغه وخته پورے نه كينم' څو پورے چه دے قتل نه كړم' ځكه چه د اللّٰه او رسول صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا حكم دے.

بـاب ۴۳۶: هَلْ يَقْضِي الْحَاكِمُ أَوْ يُفْتِي وَ هُوَ غَضْبَانُ.

۸۳۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ ابْنُ عُمَيْرٍ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ كَتَبَ اَبُوْ بَكْرَةَ اِلٰى اِبْنِهٖ وَ كَانَ بِسَجِسْتَانَ بِاَنْ لَّا تَقْضِيَ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَ اَنْتَ غَضْبَانُ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَقْضِيَنَّ حَكَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَ هُوَ غَضْبَانُ.

۸۳۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَا تَاَخَّرُ عَنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ مِنْ اَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَا فِيْهَا قَالَ فَمَا رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطُّ اَشَدَّ غَضَبًا فِيْ مَوْعِظَةٍ مِنْهُ يَوْمَئِذٍ. ثُمَّ قَالَ يَآاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ فَاَيُّكُمْ مَا صَلّٰى بِالنَّاسِ فَلْيُوْجِزْ فَاِنَّ فِيْهِمُ الْكَبِيْرَ وَالضَّعِيْفَ وَ ذَا الْحَاجَةِ.

۸۳۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ

باب ۴۳۶: آیا حاکم د غصے په حالت کښې فیصله کولے شي' یا فتوئ ورکولے شي.

۸۳۵: ادم' شعبه' عبد الملک بن عمیر' عبد الرّحمٰن بن ابي بکره نه روایت کوي. ذهغه بیان دے' حضرت ابو بکره رضي اللّٰه عنه خپل خوئے ته چه سجستان کښې وو' اولیکل' د' دوؤ سړو په مینځ کښې فیصله مه کوه' کله چه ته ذ غصے په حالت کښې یے. ما د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلے دي' هیڅ ثالث دے' د' دوو (۲) سړو مینځ کښې د غصے په حالت کښې فیصله نه کوي.

۸۳۶: محمد بن مقاتل' عبد اللّٰه' اسماعیل بن ابي خالد' قیس بن ابي حازم' ابو مسعود انصاري رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے. یو سړے' د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اوکه' یا رسول اللّٰه' په اللّٰه م دے قسم وي' زه د فلاني سړي په وجه ذ ماسختن ذ مونځ نه ایسار شم' چه مونږ ته اوږود مونځ راکوي. د راوي بیان دے. ما نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم وعظ کښې ذ هغې ورځے نه زیات غصه کښې هیڅ کله نه دے لیدلے. بیائے اوفرمائیل اے خلقو. تاسو کښې ځنې ذ مونځ نه (خلق) تښتونکي دي' تاسو کښې چه کوم سړے خلقو له مونځ ورکوي' مختصر دے ورکوي. ځکه چه هغوي کښې لوئے' بوډاګان او کمزوري او ضرورت واله خلق وي (د ټول خیال ساتل پکار دي).

۸۳۷: محمد بن ابي یعقوب کرماني' حسّان بن

يَعْقُوبَ الْكِرْمَانِيُّ حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يُونُسُ قَالَ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّهٗ طَلَّقَ اِمْرَاَتَهٗ وَ هِيَ حَائِضٌ فَذَكَرَ عُمَرُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَغَيَّظَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لِيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتّٰى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيْضَ فَتَطْهُرَ فَاِنْ بَدَالَهٗ اَنْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا.

ابراهيم، يونس، محمد، سالم، عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، هغه خپلے ښځے له د حيض په حالت کښ طلاق ورکه، حضرت عمر رضي اللّٰه عنه دا خبره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان کړه، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته په دے خبره غصه ورغله. بيائے او فرمائيل. هغه له پکار دي، چه هغے ته رجوع اوکړي. او هغه خان سره ايساره کړي. تر دے چه هغه پاکه شي. بيا ورته حيض راشي، او پاکه شي. بيا کـه طلاق ورکول غواړي، نو ور دے کړي.

**باب ۴۳۷: مَنْ رَّاٰى لِلْقَاضِيْ اَنْ يَحْكُمَ بِعِلْمِهٖ فِيْ اَمْرِ النَّاسِ اِذَا لَمْ يَخَفِ الظُّنُوْنَ وَالتُّهْمَةَ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِهِنْدٍ خُذِيْ مَا يَكْفِيْكِ وَ وَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ وَ ذٰلِكَ اِذَا كَانَ اَمْرٌ مَشْهُوْدٌ.**

**باب ۴۳۷:** ذ هغے سړي بيان، چه هغه خيال اوکه، چه قاضي ته ذ خلقو معامله کښ د خپل علم نه ذ فيصلے کولو اختيار دے، هر کله چه هغه د، کمان او تهمت خوف نه وي، څنګه چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم هند ته اوفرمائيل ته دومره (مال) آخله، څومره چه تاله او ستا بچي لـه کافي وي او دا هغه صورت کښ دے، هر کله چه هغه امر مشهور وي.

۸۳۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَتْ هِنْدُ بِنْتُ عُتْبَةَ بْنَ رَبِيْعَةَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا كَانَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَهْلُ خِبَاءٍ اَحَبَّ اِلَيَّ اَنْ يَذِلُّوْا مِنْ اَهْلِ خِبَائِكَ وَ مَا اَصْبَحَ الْيَوْمَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَهْلُ خِبَاءٍ اَحَبَّ اِلَيَّ اَنْ

۸۳۸: اَبُو اليمان، شعيب، زهري، عروه، بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها نه روايت کوي. ذ هغے بيان دے. هند بنت عتبه بن ربيعه راغله، او عرض ئے اوکه، يا رسول اللّٰه، په خدائے م دے قسم وي ذ زمکے په مخ هيڅ داسے خيمے واله نه وو، چه د هغه متعلق خما خوښه وه، چه ستاسو ذ خيمے والو نه دے زيات ذليل وي او نن دا حال دے، چه ذ زمکے په مخ هيڅ خيمے واله داسے نشته چه ذ هغه متعلق خما خوښه وي، چه ستاسو د خيمے والو نـه دے زيات معزز وي. بيائے عرض اوکه (خما خاوند)

يَعِزُّوْا مِنْ اَهْلِ خِبَائِكَ ثُمَّ قَالَتْ اِنَّ اَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ مِسِّيْكٌ فَهَلْ عَلَيَّ مِنْ حَرَجٍ اَنْ اُطْعِمَ مِنَ الَّذِيْ لَهُ عِيَالَنَا قَالَ لَهَا لَا حَرَجَ عَلَيْكِ اَنْ تُطْعِمِيْهِمْ مِنْ مَّعْرُوْفٍ.

**باب ۴۳۸:** اَلشَّهَادَةِ عَلَى الْخَطِّ الْمَخْتُوْمِ وَ مَا يَجُوْزُ مِنْ ذٰلِكَ وَ مَا يَضِيْقُ عَلَيْهِمْ وَ كِتَابِ الْحَاكِمِ اِلٰى عَامِلِهٖ وَالْقَاضِيْ اِلَى الْقَاضِيْ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ كِتَابُ الْحَاكِمِ جَائِزٌ اِلَّا فِي الْحُدُوْدِ ثُمَّ قَالَ اِنْ كَانَ الْقَتْلُ خَطَأً فَهُوَ جَائِزٌ لِاَنَّ هٰذَا مَالٌ بِزَعْمِهٖ وَ اِنَّمَا صَارَ مَالًا بَعْدَ اَنْ ثَبَتَ الْقَتْلُ فَالْخَطَأُ وَالْعَمْدُ وَاحِدٌ وَ قَدْ كَتَبَ عُمَرُ اِلٰى عَامِلِهٖ فِي الْحُدُوْدِ. وَ كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ فِيْ سِنٍّ كُسِرَتْ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ كِتَابُ الْقَاضِيْ اِلَى الْقَاضِيْ جَائِزٌ اِذَا عَرَفَ الْكِتَابَ وَالْخَاتَمَ وَ كَانَ الشَّعْبِيُّ يُجِيْزُ الْكِتَابَ الْمَخْتُوْمَ بِمَا فِيْهِ مِنَ الْقَاضِيْ وَ يُرْوٰى عَنِ ابْنِ عُمَرَ نَحْوُهٗ وَ قَالَ مُعَاوِيَةُ بْنُ عَبْدِ الْكَرِيْمِ الثَّقَفِيُّ شَهِدْتُ عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ يَعْلٰى قَاضِيَ الْبَصْرَةِ وَ اِيَاسَ بْنَ مُعَاوِيَةَ وَالْحَسَنَ وَ ثُمَامَةَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ وَّ بَلَالَ بْنَ اَبِيْ بُرْدَةَ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بُرَيْدَةَ

ابو سفيان يو بخيل سړے دے. نو آيا ما' د پاره دے خبره کښې څه هرج شته' چه خپلو بچو بانديے ذَ هغه ذَ مال نه او خـراوم. حـضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' هيـڅ حـرج نشتـه' کـه تـه پـه هـغوئ د' دستور متعلق خوروے' (يعني زياتے به نه کوے).

**بـاب ۴۳۸:** مهـر کـرے شـوے خـط بـانديے ګـواهـي او د هـغـے ذَ جـائـز کيدو بيان. او ذَ حاکم خپل عامل ته او ذَ قاضي بل قاضي ته ذَ خط ليکلو بيان (حدود او قصاص کښې ذَ قاضي خط بل قاضي د پاره ذَ هيڅ کار نـه دے. نـورو خـطـونـو لـيـکلو د پاره دوه شاهدان به هم ليـږي' چـه هـغوئ دواړه ګواهي ورکړي' چه دا' ذَ فلاني خـط دے) او بـعـضـے خـلـقـو وئيلے دي. د حاکم ليکل صـرف حـدودو کښې جائز دي. بيا وائي' که په خطاء قتل وي' نـو جائز دے' ځکه چه دا' ذَ هغه په خيال کښې ذَ مال مـعامله ده. حالانکه هر کله چه قتل ثابت شي' نو دا هم ذَ مـال معامله شي' په دے وجه خطاء او عمد (قصدًا دواړه يو شان دي. او حضرت عمر رضي اللّٰه عنه خپل عامل ته ذَ حـدودو متعلق ليکلے اوليږل. او حضرت عمر بن عبد الـعـزيـز رضـي الـلّٰـه عـنـه د' غـابـښ مـاتيدو متعلق ليکلے اوليـږل' او ابراهيم اووے' د' قاضي' قاضي ته ليکل جائز دي' هـر کـلـه چه هغه خط او مهر پيژني او شعبي به مُهر کړے خطجاري کولو' څه چه به هغے کښې ليکلے وو. او حـضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه هم داسے منقول دي. او د' مـعـاويـه بـن عـبـد الـکـريـم ثقفي بيان دے' زه عبد الـمـلـک بـن يعلٰي ذَ بصرے قاضي' او حسن او ثمامه بن عبـد الـلّٰـه بن انس' هلال بن ابي برده او عبد اللّٰه بن برده

الْاَسْلَمِيُّ وَ عَامِرَ بْنَ عَبِيْدَةَ وَ عَبَّادَ بْنَ مَنْصُوْرٍ يُجِيْزُوْنَ كُتُبَ الْقُضَاةِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِّنَ الشُّهُوْدِ فَاِنْ قَالَ الَّذِيْ جِيْئَ عَلَيْهِ بِالْكِتَابِ اِنَّهُ زُوْرٌ قِيْلَ لَهُ اذْهَبْ فَالْتَمِسِ الْمَخْرَجَ مِنْ ذٰلِكَ وَ اَوَّلُ مَنْ سَاَلَ عَلٰى كِتَابِ الْقَاضِيْ الْبَيِّنَةَ ابْنُ اَبِيْ لَيْلٰى وَ سَوَّارُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ. وَ قَالَ لَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحْرِزٍ جِئْتُ بِكِتَابٍ مِنْ مُّوْسٰى بن اَنَسٍ قَاضِي الْبَصْرَةِ وَ اَقَمْتُ عِنْدَهُ الْبَيِّنَةَ اَنَّ لِيْ عِنْدَ فُلَانٍ كَذَا وَ كَذَا وَ هُوَ بِالْكُوْفَةِ وَ جِئْتُ بِهِ الْقَاسِمَ ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فَاَجَازَهُ وَ كَرِهَ الْحَسَنُ وَ اَبُوْ قِلَابَةَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلٰى وَصِيَّةٍ حَتّٰى يَعْلَمَ مَا فِيْهَا لِاَنَّهُ لَا يَدْرِيْ لَعَلَّ فِيْهَا جَوْرًا. وَ قَدْ كَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اَهْلِ خَيْبَرَ اِمَّا اَنْ تَدُوْا صَاحِبَكُمْ وَ اِمَّا اَنْ تُؤْذِنُوْا بِحَرْبٍ. وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْ شَهَادَةٍ عَلَى الْمَرْاَةِ مِنْ وَّرَآءِ السِّتْرِ اِنْ عَرَفْتَهَا فَاشْهَدْ وَ اِلَّا فَلَا تَشْهَدْ.

اسلمي، او عامر بن عبيده او عباد بن منصور سره موجود پاتې شوې يم. دې خلقو به د ګواهي د موجودګي نه بغير د، قاضيانو ليکلې شوې تحرير جاري کولو. نو هغه سړې چه هغه ته خط راوړې شوې دې، اووائي، چه دا، دروغ (يعني جعلي) دې، نو هغه ته دې اوونيلې شي، چه ته لاړ شه، او د دې د، راوتلو لار تلاش کړه او دَ تيولو نه مخکښې چه چا دَ قاضي په تحرير ګواه طلب که. هغه ابن ابي ليلٰي او سوار بن عبد الله وو، او مونږ ته ابو نعيم بيان اوکه، چه مونږ ته عبيد الله بن محرز اووې مَا د بصرې دَ قاضي مُوسٰي بن انس دَ طرف نه يو تحرير راوړلو. او ما هغه سره ګواه قائم کړلو، چه څما فلاني سره دومره دومره مال دې. هغه وخت هغه سړې کوفه کښې وو. ما قاسم بن عبد الرحمٰن ته هغه تحرير راوړلو، نو هغه، هغه جاري کړلو او حسن او ابو قلابه مکروه او ګنړلو، چه د يو، وصيت ګواه جوړ شي څو پورې چه دا معلومه نه شي، چه هغې کښې څه ليکلې دي ځکه چه هغه ته، نه ده معلومه، چه شايد هغې کښې بدي وي. او نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ اهل خيبر په نوم اوليکل، چه يا خو تاسو دَ خپل ملګري ديت (خون بها) ورکړئ يا جنګ د پاره تيار شئ، او زهري د، پردې نه شاته ښځې بانديې دَ ګواهي ورکولو متعلق وائي، که تاسو دَ هغې آواز پيژنئ، نو ګواه شئ، ګني ګواهي مه کوئ.

۹ ۸۳۹: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا اَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۹ ۸۳۹: محمد بن بشار، غندر، شعبه، قتاده، انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، څه وخت چه نبي السّلام قيصر روم ته خط ليکل اوغوښتل، نو خلقو اووې، هغه صرف هغه

وَسَلَّمَ اَنْ يَّكْتُبَ اِلَى الرُّوْمِ قَالُوْا اِنَّهُمْ لَا يَقْرَءُوْنَ كِتَابًا اِلَّا مَخْتُوْمًا فَاتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِّنْ فِضَّةٍ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى وَبِيْصِهٖ وَنَقْشُهٗ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ.

خط گوري، چه مهر پرې لگيدلې وي. نو حضور صلي الله عليه وسلم د سپينو زرو يوه گوته جوړه کړله. گويا زه د هغې چمک وينم او په هغې محمد رسول الله، نقش کړې شوې وو. (دغې گوتې به د مهر کار ورکولو. او هغه گوته په دې طرز وه محمد رسول الله).

**باب ٤٣٩:** مَتٰى يَسْتَوْجِبُ الرَّجُلُ الْقَضَآءَ وَقَالَ الْحَسَنُ اَخَذَ اللّٰهُ عَلَى الْحُكَّامِ اَنْ لَّا يَتَّبِعُوا الْهَوٰى وَلَا يَخْشَوُا النَّاسَ وَلَا يَشْتَرُوْا بِاٰيَاتِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا: ثُمَّ قَرَاَ يَا دَاوُدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِى الْاَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ وَقَرَاَ اِنَّا اَنْزَلْنَا التَّوْرٰةَ فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَالرَّبَّانِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوْا مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ وَكَانُوْا عَلَيْهِ شُهَدَآءَ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِىْ ثَمَنًا قَلِيْلًا وَّمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ

**باب ٤٣٩:** سړې کله د فيصلې کولو لائق کيږي. او حسن بصري اووې. الله د حاکمانو نه عهد (لوظ) واخست، چه هغوئ به د خواهشاتو پيروي نه کوي. او نه به د خلقو نه ويريږي او نه به د يو آيت په عوض لږ قيمت اخلي (او ټوله دنيا او مافيها د، يو آيت په عوض کښې کم قيمة ده) بيا دا آيت اولوست: اې داؤده مونږ ته زمکه کښې خليفه جوړ کړې، نو ته د خلقو مينځ کښې ټيک ټيک فيصله کوه. او، د، خواهشاتو پيروي مه کوه، دا خواهشات به دې د، الله د، لارې نه گمراه کړي. بيشکه کوم خلق چه د، الله د، لارې نه گمراه وي، هغوي د پاره سخت عذاب دې. ځکه چه هغوي د حساب ورځ هيره کړله. او دا، ايت ئې اولوست مونږ تورات نازل که، دې رنړا او هدايت دې چه د هغې په ذريعه د، الله فرمانبردارو نبيانو او رباني او احبارو د يهوديانو فيصلې کوي، په دې سبب چه هغوي ته کتاب الله ياد کړې شوې وو. او هغه خلق په دې گواه وو، نو د خلقو نه مه ويريږه، او، مانه ويريږه. او ځما د، آيتونه په عوض لږ قيمت مه اخله او چا چه د دې مطابق فيصله اونه کړله، چه الله تعالي نازل کړې دې، نو داسې خلق کافر دي. او دا، ايت ئې اولوست: داؤدؑ او سليمانؑ چه د

اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكَافِرُوْنَ ط وَ قَرَاَ وَدَاوُدَ وَ سُلَيْمٰنَ اِذْ يَحْكُمٰنِ فِي الْحَرْثِ اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ غَنَمُ الْقَوْمِ وَ كُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ وَ كُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّ عِلْمًا فَحَمِدَ سُلَيْمَانَ وَ لَمْ يَلُمْ دَاوُدَ وَلَوْ لَا مَا ذَكَرَ اللّٰهُ مِنْ اَمْرِ هٰذَيْنِ لَرَاَيْتُ اَنَّ الْقُضَاةَ هَلَكُوْا فَاِنَّهُ اَثْنٰى عَلٰى هٰذَا بِعِلْمِهٖ وَ عَذَرَ هٰذَا بِاجْتِهَادِهٖ. وَ قَالَ مُزَاحِمُ بْنُ زُفَرَ قَالَ لَنَا عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ. خَمْسٌ اِذَا اَخْطَاءَ الْقَاضِيْ مِنْهُنَّ خَصْلَةً كَانَتْ فِيْهِ وَصْمَةٌ اَنْ يَّكُوْنَ فَهِمًا حَلِيْمًا عَفِيْفًا صَلِيْبًا عَالِمًا سَؤُوْلًا عَنِ الْعِلْمِ.

فـصـل متعلق فيصله كوله، چه هغې كښې د قوم چيلئې خـريـدلې وې. او مونږ ذَ هغه د فيصلې گواه وو. نو مونږ سليمانؑ په دې پو هـ كـړلو او هر يو ته مونږ حكم او علم عطاء كړلو. اللّٰه تعالىٰ د سليمان عليه السّلام تعريف اوكـه او داؤدٔ نـې ملامتـه نـه كه. او كه اللّٰه تعالىٰ د دې دواړو معامله نه وې بيان كړې نو ما به ليدلې وو، چه قاضيان به هلاک شوې وو. ځكه چه اللّٰه تعالىٰ د علم په سبب د سليمان عليه السّلام تعريف اوكه. او داؤد عليه السّلام ئې د هغه دَ اجتهاد په سبب معذوره اوګنړلو. او، د مزاحم بـن زفـر بيان دې. مونږ ته عمر بن عبد العزيز اووې. پـنـځه خبرې داسې دي، كه هغې كښې يو خبره ده كـښې نـه وي، نـو ده كـښې عيـب دې، هغه دا چه دَ پوهې (۱) خاوند وي، (۲) بُردبار وي، (۳) پاكدامن وي، (۴) كـلـک وي، (۵) عالم وي، د علم متعلق دريافت كونكې وي.

بَابُ ۴۴۰: رِزْقِ الْحُكَّامِ وَالْعَامِلِيْنَ عَلَيْهَا. وَ كَانَ شُرَيْحٌ الْقَاضِيْ يَأْخُذُ عَلَى الْقَضَاءِ اَجْرًا. وَ قَالَتْ عَائِشَةُ يَاْكُلُ الْوَصِيُّ بِقَدْرِ عُمَالَتِهٖ وَ اَكَلَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ عُمَرُ.

باب ۴۴۰: ذَ احكام او عاملانو، د تنخواه بيان. او قـاضـي شـريـح بـه دَ قـضـاء اُجرت اخستلو او بي بي عـائشـې رضي اللّٰه عنه اووې، چه وصي دِ ذَ خپل محنت مطابق (د، يتيم د، مال نه) خوري او حضرت ابوبكرؓ او عمرؓ خوړلې دې.

۸۴۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِي السَّائِبُ بْنُ يَزِيْدَ ابْنِ اُخْتِ نَمِرٍ اَنَّ حُوَيْطِبَ بْنَ عَبْدِ الْعُزّٰى اَخْبَرَهٗ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ السَّعْدِيِّ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ قَدِمَ عَلٰى عُمَرَ فِيْ خِلَافَتِهٖ فَقَالَ لَهٗ عُمَرُ

۸۴۰: ابـو اليمان، شعيب، زهري، سائب بن يزيد بـن اُخت نمر خويطب بن عبد العزي، عبد اللّٰه بن سعدي نـه روايـت كـوي، ذَ هـغـه بيـان دې، هغه د حضرت عمر رضـي اللّٰـه عـنـه ذَ خـلافـت زمانه كښې هغه له راغې، نو حضرت عمر رضي اللّٰه عنه هغه ته اووې، آيا ماته دا بيان نـه دې شـوې چه ته د خلقو كار كوې. بيا چه تاته د دې

آلَمْ اُحَدَّثْ اِنَّكَ تَلِيْ مِنْ اَعْمَالِ النَّاسِ اَعْمَالاً فَاِذَا اُعْطِيْتَ الْعُمَالَةَ كَرِهْتَهَا فَقُلْتُ بَلٰى، فَقَالَ عُمَرُ مَا تُرِيْدُ اِلٰى ذٰلِكَ؟ قُلْتُ اِنَّ لِيْ اَفْرَاسًا وَّ اَعْبُدًا وَّ اَنَا بِخَيْرٍ وَّ اُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ عُمَالَتِيْ صَدَقَةً عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ. قَالَ عُمَرُ لَا تَفْعَلْ فَاِنِّيْ كُنْتُ اَرَدْتُ الَّذِيْ اَرَدْتَّ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْنِيْ الْعَطَاءَ فَاَقُوْلُ اَعْطِهِ اَفْقَرَ اِلَيْهِ مِنِّيْ حَتّٰى اَعْطَانِيْ مَرَّةً مَالاً فَقُلْتُ اَعْطِهِ اَفْقَرَ اِلَيْهِ مِنِّيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذْهُ فَتَمَوَّلْهُ وَ تَصَدَّقْ بِهٖ فَمَا جَآءَكَ مِنْ هٰذَا الْمَالِ وَ اَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ وَّ لَا سَآئِلٍ فَخُذْهُ وَّ اِلَّا فَلَا تُتْبِعْهُ نَفْسَكَ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْنِيْ الْعَطَاءَ فَاَقُوْلُ اَعْطِهِ اَفْقَرَ اِلَيْهِ مِنِّيْ حَتّٰى اَعْطَانِيْ مَرَّةً مَالاً فَقُلْتُ اَعْطِهِ مَنْ هُوَ اَفْقَرُ اِلَيْهِ مِنِّيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذْهُ فَتَمَوَّلْهُ وَ تَصَدَّقْ بِهٖ فَمَا جَآءَكَ مِنْ هٰذَا الْمَالِ وَ اَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ وَّ لَا سَآئِلٍ فَخُذْهُ وَ مَا لَا فَلَا تُتْبِعْهُ نَفْسَكَ.

اجرت درکیدے شي' نو ته دا' نه خوښوے ماووے. او حضرت عمر رضي الله عنه اووے. بیا دے نه ستا څه اراده ده. ما اووے ماسره آسونه او غلامان دي' او مال هم شته. زه غوارم' چه خپل اجرت په مسلمانانو صدقه کړم. حضرت عمر رضي الله عنه اووے' داسے مکوه' ځکه چه ماهم داسے اراده کړے وه' ځنګه چه تا کړے ده. رسول الله صلّي الله علیه وسلّم چه به ماله څه راکول نو ما به وئیل' چه دا هغه چاله ورکړئ' چه ځما نه زیات محتاج وي. تر دے چه یو ځل حضور صلّي الله علیه وسلّم ماته مال راکړلو. نو ما عرض اوکه. هغه چاله ئے ورکړئ' چه ځما نه زیات محتاج وي. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. دا' واخله' او د دے په ذریعه چه مالدار جوړشے' نو دا صدقه کړه. که مال په دے طریقه تاله راشي' چه ته ئے انتظار کبښ نه ئے' او نه ته هغے د پاره سوال کونکے ئے. نو هغه واخله. او خپل نفس هغے پسے مه لېږوه' په واسطه د' زهري' سالم بن عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه منقول دي. د عبد الله بن عمر رضي الله عنه بیان دے. مَا د حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه بیان ؤاوریدلو' نبي علیه السلام چه به ماله څه راکول' نو ما به وئیلے' دا هغے چاله ورکړئ چه مانه زیات ضرورت مند وي. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' دا واخله' مالدار جوړشه. بیائے صدقه کړه. که دا مال تاله داسے راشي' چه ته د دے انتظار کبښ نه ئے' او نه ئے غوښتونکے ئے' نو دا واخله' او کوم چه نه راځي' هغے پسے زړه مه لګوه.

باب ۴۴۱: مَنْ قَضٰى وَ لَا

باب ۴۴۱: ځمات کښ دَ فیصلے کولو

عَنْ فِي الْمَسْجِدِ وَ لَا عَنْ عُمَرُ عِنْدَ مِنْبَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَضٰى شُرَيْحٌ وَالشَّعْبِيُّ وَ يَحْيٰى ابْنُ يَعْمُرَ فِي الْمَسْجِدِ وَ قَضٰى مَرْوَانُ عَلٰى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ بِالْيَمِيْنِ عِنْدَ الْمِنْبَرِ. وَ كَانَ الْحَسَنُ وَ زُرَارَةُ بْنُ اَوْفٰى يَقْضِيَانِ فِي الرَّحْبَةِ خَارِجًا مِنَ الْمَسْجِدِ.

او لعان كولو بيان. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه منبر نبوي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره لعان اوكه او شريح او شعبي او يحيي بن يعمر جُمات كښې فيصله اوكړه. او مروان، زيد بن ثابت رضي اللّٰه عنه ته منبر سره ذَ قسم خوړلو حكم اوكه. او حسن او زراره بن اوفي به د جمات نه بهر ميدان كښې فيصله كوله.

۱ ۸۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ شَهِدْتُّ الْمُتَلَاعِنَيْنِ وَ اَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشَرَةَ فُرِّقَ بَيْنَهُمَا.

۱ ۸۴: علي بن عبد اللّٰه، سفيان، زهري، زهري، سهيل بن سعد نه روايت كوي ذَ هغه بيان دے. زه هغه وخت موجود ووم چه د، دوو (۲) لعان كونكو مينځ كښې جدائي اوكړے شوه. هغه وخت زه ذَ پنخلسو (۱۵) كالو ووم.

۲ ۸۴: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَهْلٍ اَخِيْ بَنِيْ سَاعِدَةَ اَنَّ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ جَاءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَّجَدَ مَعَ امْرَاَتِهِ رَجُلًا اَيَقْتُلُهُ فَتَلَاعَنَا فِي الْمَسْجِدِ وَ اَنَا شَاهِدٌ.

۲ ۸۴: يحيي، عبد الرزاق، ابن جريج، ابن شهاب، حضرت سهيل نه روايت كوي د هغه بيان دے. انصارو كښې يو سړے ذَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. او عرض ئے اوكه، اوښائے، كه يو سړے خپلے ښځے سره خوك سړے بيامومي، نو آيا هغه قتل كړي. بيا دواړو جماعت كښې لعان اوكه. او زه هغه وخت موجود ووم.

بَابٌ ۴۴۲: مَنْ حَكَمَ فِي الْمَسْجِدِ حَتّٰى اِذَا اَتٰى عَلٰى حَدٍّ اَمَرَ اَنْ يُّخْرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَيُقَامُ وَ قَالَ عُمَرُ اَخْرِجَاهُ مِنَ الْمَسْجِدِ وَ يُذْكَرُ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوَهُ.

باب ۴۴۲: چا چه جُمات كښې فيصله اوكړه تر دے چه كوم وخت د، حد، وخت راغلے، نو حكم ئے وركه، چه ذ جُمات نه بهر اوځي، نو حد دے قائم كړي. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه وئيلے دي، دے د جمات نه بهر اوكاږئے. او حضرت علي نه هم دغسے منقول دي.

۸۴۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنِيُ اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيُ سَلَمَةَ وَ سَعِيُدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ عَنْ اَبِيُ هُرَيْرَةَ قَالَ اَتَى رَجُلٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيُ زَنَيْتُ فَاَعْرَضَ عَنْهُ فَلَمَّا شَهِدَ عَلٰى نَفْسِهٖ اَرْبَعًا قَالَ اَبِكَ جُنُوْنٌ؟ قَالَ لَا، قَالَ اذْهَبُوْا بِهٖ فَارْجُمُوْهُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيُ مَنْ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنْتُ فِيْمَنْ رَجَمَهُ بِالْمُصَلّٰى رَوَاهُ يُوْنُسُ وَ مَعْمَرٌ وَّ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيُ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجْمِ.

۸۴۳: يحيي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، ابو سلمه او سعيد بن مسيب، ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. يو سړے د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. دغه وخت حضور صلّي اللّه عليه وسلّم جمات كښې وو. هغه په زوره اووے، يا رسول اللّه، ما زنا كړے ده، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم ترے مخ مبارك واړولو. كوم وخت چه هغه په خان خلور (۴) خله گواهي او كړله نو حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. ايا ته ليونے ئے. هغه اووے. نه. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دے بوځئ، او سنگسار ئے كړئ. د، ابن شهاب بيان دے، ماته هغے سړي بيان او كه، چه هغه د، جابر بن عبد الله رضي اللّه عنه نه واوريدل، زه هم هغے خلقو كښې ووم، چه هغوئ، هغه سړے په عيدگاه كښې سنگسار كړے وو، يونس او معمر او ابن جريج، زهري نه په واسطه د، ابو سلمه حضرت جابر رضي الله عنه، نبي صلّي الله عليه وسلّم نه د، سنگسار كولو متعلق روايت كوي.

## بَاب ۴۴۳: مَوْعِظَةِ الْاِمَامِ لِلْخُصُوْمِ.

## باب ۴۴۳: جگړه مارو ته د، امام، د نصيحت كولو بيان.

۸۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيُ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ وَّ اِنَّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ اِلَيَّ وَ لَعَلَّ بَعْضَكُمْ اَنْ يَّكُوْنَ اَلْحَنَ بِحُجَّتِهٖ مِنْ

۸۴۴: عبد اللّه بن مسلمه، مالك، هشام، خپل پلار نه، هغه د، زينب بنت ابي سلمه نه، هغه د، اُمّ سلمه رضي اللّه عنها نه روايت كوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. زه هم يو سړے يم. تاسو ماله مقدمے راوړئے. او ډيره ممكنه ده، چه تاسو كښې يو سړے دليل پيش كولو كښې د بل نه زيات خوله ور (زبان آور) وي. زه ترے خه واورم، او دَ هغے مطابق فيصله

بَعْضٍ فَاَقْضِي عَلٰى نَحْوِ مَا اَسْمَعُ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِحَقِّ اَخِيْهِ شَيْئًا فَلَا يَأْخُذْهُ فَاِنَّمَا اَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ.

او كړم، نو چا د پاره چه زه ذ هغه د، وړور د حق نه د څه څيز فيصله اوكړم، نو هغه دې هغه نه آخلي، ځكه چه زه هغه ته د، اُور يو ټكړه راپريكولو سره وركوم.

**باب ۴۴۴: اَلشَّهَادَةُ تَكُوْنَ عِنْدَ الْحَاكِمِ فِيْ وِلَايَتِهِ الْقَضَاءِ اَوْ قَبْلَ ذٰلِكَ لِلْخَصْمِ** وَ قَالَ شُرَيْحُ الْقَاضِيْ وَ سَاَلَهُ اِنْسَانُ الشَّهَادَةَ فَقَالَ ائْتِ الْاَمِيْرَ حَتّٰى اَشْهَدُ لَكَ وَ قَالَ عِكْرَمَةُ قَالَ عُمَرُ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ لَوْ رَاَيْتَ رَجُلًا عَلٰى حَدٍّ زِنًا اَوْ سَرِقَةٍ وَّ اَنْتَ اَمِيْرٌ فَقَالَ شَهَادَتُكَ شَهَادَةُ رَجُلٍ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ قَالَ صَدَقْتَ قَالَ عُمَرُ لَوْلَا اَنْ يَّقُوْلَ النَّاسُ زَادَ عُمَرُ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ لَكَتَبْتُ اٰيَةَ الرَّجْمِ بِيَدِيْ وَ اَقَرَّ مَاعِزٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالزِّنَا اَرْبَعًا فَاَمَرَ بِرَجْمِهِ وَ لَمْ يُذْكَرْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشْهَدَ مَنْ حَضَرَهُ وَقَالَ حَمَّادٌ اِذَا اَقَرَّ مَرَّةً عِنْدَ الْحَاكِمِ رُجِمَ. وَ قَالَ الْحَكَمُ اَرْبَعًا.

**باب ۴۴۴: جگړ مارو د پاره ذ قاضي گواهي ذ** حاكم په مخكښ پكار ده. خواه هغه د قاضي كيدو په زمانه كښ وي يا د هغې نه مخكښ وي. قاضي شريح ته يو سړي ذ خپلې گواهي وركولو د پاره اووې د كوم سړي مقدمه چه هغه سره وه. هغه، هغې سړي ته اووې، چه امير له ورشه زه به ستا گواهي وركړم. او عكرمه اووې حضرت عمر رضي اللّٰه عنه، عبد الرحمٰن بن عوف رضي اللّٰه عنه ته اووې، كه نه يو سړے زنا يا غلا باندې اووينې او ته امير ئې، نو آيا ته به محض خپلو ليدو سره په هغه حد قائموې عبد الرحمٰن اووې، ته امير ئې. ليكن ستا گواهي د، يو عام مسلمان په شان ده. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه ورته اووې، ته ټيك خبره كوې، بيا حضرت عمر رضي اللّٰه عنه اووې، كه خلق، دا، او نه وائي، چه عمر رضي اللّٰه عنه كتاب اللّٰه كښ زياتے اوكه، نو رجم كونكے آيت به م خپل لاس سره ليكلے وو. او ماعز، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مخكښ څلور ځله د، زنا اقرار اوكه. نو حضور صلّي اللّٰه عليه سلّم ذ هغه د، رجم كولو حكم جاري كړلو. او دا هيچا نه دي ونيلې، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم، حاضرين په هغه گواه كړل. حماد اووې. چه زاني يو ځل اقرار اوكړي، نو هغه دې رجم كړے شي. او حكم اووې، چه څلور (۴) ځله اقرار اوكړي. نو رجم دې كړے شي.

۸۴۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا

۸۴۵: قتيبه، ليث، يحيي، عمر بن كثر، ابو

اللَّيْثُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُمَرَ بْنِ
كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ مُحَمَّدٍ مَوْلٰى اَبِيْ
قَتَادَةَ اَنَّ اَبَا قَتَادَةَ قَالَ قَالَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ مَنْ لَهُ بَيِّنَةٌ
عَلٰى قَتِيْلٍ قَتَلَهُ فَلَهُ سَلَبُهُ،
فَقُمْتُ لِاَلْتَمِسَ بَيِّنَةً عَلٰى قَتِيْلٍ
فَلَمْ اَرَ اَحَدًا يَّشْهَدُ لِيْ فَجَلَسْتُ،
ثُمَّ بَدَالِيْ فَذَكَرْتُ اَمْرَهُ اِلٰى
رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْ
جُلَسَآئِهٖ سِلَاحُ هٰذَا الْقَتِيْلِ
الَّذِيْ يَذْكُرُ عِنْدِيْ قَالَ فَاَرْضِهٖ
مِنْهُ، فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ كَلَّا لَا يُعْطِهٖ
اُصَيْبِغَ مِنْ قُرَيْشٍ وَ يَدَعُ اَسَدًا
مِّنْ اُسْدِ اللّٰهِ يُقَاتِلُ عَنِ
اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ قَالَ فَاَمَرَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَاَدَّاهُ اِلَيَّ فَاشْتَرَيْتُ مِنْهُ خِرَافًا
فَكَانَ اَوَّلَ مَالٍ تَاَثَّلْتُهُ. قَالَ لِيْ
عَبْدُ اللّٰهِ عَنِ اللَّيْثِ فَقَالَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَاَدَّاهُ اِلَيَّ وَ قَالَ اَهْلُ الْحِجَازِ
الْحَاكِمِ لَا يَقْضِيْ بِعِلْمِهٖ شَهِدَ
بِذٰلِكَ فِيْ وِلَايَتِهٖ اَوْ قَبْلَهَا
وَ لَوْ اَقَرَّ خَصْمٌ عِنْدَهُ لِاٰخَرَ بِحَقٍّ

محمد د' (قتاده مولي) نه روايت كوي ابو قتاده بيان
اوكه. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د' حنين په ورځ
اوفرمائيل. كوم سړي چه څوک قتل كړے وي. او هغه
سره ګواه وي. نو د هغے مقتول مال به هغه ته وركيږي.
ابو قتاده اووے. زه اودريدم' چه خپل مقتول باندے
څوک ګواه پيش كړم. خو ما څوک بيانه منده' چه ما
د پاره ګواهي اوكړي نو زه كيناستم. بيا خيال راغے' نو
ما د هغه حال رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ته بيان
اوكه هغے ناستو خلقو كښې يو سړي اووے' د كوم
مقتول چه دے ذكر كوي. دَ هغه وَسله ماسره ده. تاسو
دے مانه راضي كړئے. حضرت ابوبكر رضي الله عنه
اووے. هيڅ كله داسے نه شي كيدے چه تاسو دَ قريشو
يو بدرنګ له وركړئے. او د' الله په امزرو كښې يو
امزرے پريږدے' چه الله او دَ هغه د' رسول الله صلّي الله
عليه وسلّم د طرف نه جنګ كوي. دَ' ابو قتاده بيان
دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم حكم اوكه' نو هغه'
هغه وسله ماته راكړله' ما په هغے يو باغ واخست هغه د
ټولو نه وړمبنے مال وو' چه ما حاصل كړلو' عبد الله'
ليث نه روايت كوي' حضور صلّي الله عليه وسلّم
اودريدلو' او هغه ئے ماته راكړلو. او د' اهل حجاز قول
دے' چه حاكم دے دَ خپل علم په بنا فيصله نه كوي
خواه هغه د قاضي جوړيدو نه پس يا' د هغے نه مخكښې دَ
هغه ګواه وي. او كه مخالف فريق د هغه په نزد' دَ چا د
حق اقرار' دَ قضا مجلس كښې اوكړي' نو بعضے
حجازيانو په نزد په دے به فيصله نه شي كولے' څو پورے
چه د' دوو (٢) ګواهانو موجودګي كښې اقرار اونه

فِيْ مَجْلِسِ الْقَضَآءِ فَإِنَّهُ لَا يَقْضِيْ عَلَيْهِ فِيْ قَوْلِ بَعْضِهِمْ حَتّٰى يَدْعُوْا بِشَاهِدَيْنِ فَيُحْضِرَهُمَا اِقْرَارُهُ وَ قَالَ بَعْضُ اَهْلِ الْعِرَاقِ مَا سَمِعَ اَوْرَاٰهُ فِيْ مَجْلِسِ الْقَضَآءِ قَضٰى بِهٖ وَ مَا كَانَ فِيْ غَيْرِهٖ لَمْ يَقْضِ اِلَّا بِشَاهِدَيْنِ وَ قَالَ اٰخَرُوْنَ مِنْهُمْ بَلْ يَقْضِيْ بِهٖ لِاَنَّهُ مُؤْتَمَنٌ وَّ اِنَّمَا يُرَادُ مِنَ الشَّهَادَةِ مَعْرِفَةُ الْحَقِّ فَعِلْمُهُ اَكْثَرُ مِنَ الشَّهَادَةِ. وَ قَالَ بَعْضُهُمْ يَقْضِيْ بِعِلْمِهٖ فِي الْاَمْوَالِ وَ لَا يَقْضِيْ فِيْ غَيْرِهَا. وَ قَالَ الْقَاسِمُ لَا يَنْبَغِيْ لِلْحَاكِمِ اَنْ يُمْضِيَ قَضَآءً بِعِلْمِهٖ دُوْنَ عِلْمِ غَيْرِهٖ مَعَ اَنَّ عِلْمَهُ اَكْثَرُ مِنْ شَهَادَةِ غَيْرِهٖ، وَ لٰكِنَّ فِيْهِ تَعَرُّضًا لِتُهْمَةِ نَفْسِهٖ عِنْدَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ اِيْقَاعًا لَهُمْ فِي الظُّنُوْنِ وَ قَدْ كَرِهَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظَّنَّ فَقَالَ اِنَّمَا هٰذِهٖ صَفِيَّةُ.

۶۸۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَتْهُ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ فَلَمَّا رَجَعَتْ انْطَلَقَ مَعَهَا فَمَرَّ بِهٖ رَجُلَانِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَدَعَاهُمَا فَقَالَ اِنَّمَا هِيَ صَفِيَّةُ فَقَالَا

كړي. او د بعضے عراقيانو قول دے. مجلس قضا كښې چه څه واوري، يا اووينی، نو په هغے دے فيصله اوكړي، او دغے مجلس نه علاوه كه څه خبره اووينی، نو د دوو (۲) گواهانو بغير دے فيصله نه كوي. او دوي كښې د بعضو قول دے چه هغه به فيصله اوكړي ځكه چه هغه امانتدار دے. او د شهادت مقصد اصل حقيقت پيژندل دي، او د هغه د علم مرتبه د شهادت نه زياته ده. او د بعضے عراقيانو قول دے، چه مال كښې دے د خپل علم په بنا فيصله اوكړي د دے نه علاوه كښې نه. د قاسم قول دے، حاكم د پاره مناسب نه دي، چه د خپل علم نه بغير د څه گواه فيصله اوكړي، باوجود د دے چه د هغه علم د نورو د گواهئ نه زياته بلنده مرتبه لري. ليكن دے سره د مسلمانانو په زړه كښې د تهمت د خيال د پيدا كيدو انديښنه ده. او د دے په وجه د هغوئ گمان كښې د غرځيدو خطره ده. او نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم گمان (ظن) مكروه گنړلے دے. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو ځلے، چه بي بي صفيه رضي اللّٰه عنها ورسره وه، ؤے فرمائيل، دا صفيه (رضي اللّٰه عنها) ده.

۶۸۴۲: عبد العزيز بن عبد اللّٰه، ابراهيم، ابن شهاب، علي بن حسين نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته صفيه رضي اللّٰه عنها بنت حيي راغله څه وخت چه واپس كيده، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هم ورسره جيلب كښې روان شو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خواه كښې د، انصارو دوه (۲) سړي تير شو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دواړه راوبلل. او ورته ئے اوفرمائيل. دا صفيهٌ ده. هغے دواړو.

سُبْحَانَ اللهِ؟ قَالَ اِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِيْ مِنَ ابْنِ اٰدَمَ مَجْرَى الدَّمِ رَوَاهُ شُعَيْبٌ وَابْنُ مُسَافِرٍ وَابْنُ اَبِيْ عَتِيْقٍ وَ اِسْحٰقُ بْنُ يَحْيٰى عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَلِيٍّ يَعْنِيْ ابْنَ حُسَيْنٍ عَنْ صَفِيَّةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اووے سبحان الله (يعني آيا ستاسو متعلق مونږ بدګماني كولے شو) حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. شيطان د سړي په رګونو كښ د وينے په شان ژغل كوي. شعيب او ابن مسافر او ابن ابي عتيق او اسحاق بن يحيي په واسطه د زهري، علي بن حسين، بي بي صفيه رضي الله عنه، حضور صلّي الله عليه وسلّم نه نقل كوي.

**بَاب ۴۴۵:** اَمْرِ الْوَالِيْ اِذَا وَجَّهَ اَمِيْرَيْنِ اِلٰى مَوْضِعٍ اَنْ يَّتَطَاوَعَا وَ لَا يَتَعَاصَيَا.

**باب ۴۴۵:** حاكم چه دوه (۲) سړي يو ځائے ته اوليږي، نو هغے دواړو ته حكم وركول، چه دواړه دے د يو بل خبره مني، او جګړه دے نه كوي.

۸۴۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا الْعَقَدِيُّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبِيْ وَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ اِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ يَسِّرَا وَ لَا تُعَسِّرَا وَ بَشِّرَا وَ لَا تُنَفِّرَا وَ تَطَاوَعَا. فَقَالَ لَهُ اَبُوْ مُوْسٰى اِنَّهُ يُصْنَعُ بِاَرْضِنَا الْبِتْعُ فَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ. وَ قَالَ النَّضْرُ وَ اَبُوْ دَاؤُدَ وَ يَزِيْدُ ابْنُ هَارُوْنَ وَ وَكِيْعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۴۷: محمد بن بشار، عقدي، شعبه، سعيد بن ابي برده، ابو برده رضي الله عنه نه روايت كوي. ذهغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم، خما پلار او معاذ بن جبل رضي الله عنه يمن ته اوليږل. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تاسو دواړه نرمي كوئ، سختي مه كوئے. خلقو ته خوشخبري وركوئے نفرت مه خوروئے. او د يو بل خبر منئے. ابو موسي رضي الله عنه عرض اوكه. خما ملك كښ بتع (يو قسم شراب) جوړولے شي (د دے متعلق ستاسو څه حكم دے) حضور صلّي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. هر نشه راوستونكے څيز حرام دے. او نضر او، داؤد، او يزيد بن هارون او وكيع په واسطه د شعبه، سعيد، ابو برده، حضرت ابو موسي رضي الله عنه، نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي.

**بَاب ۴۴۶:** اِجَابَةِ الْحَاكِمِ الدَّعْوَةَ وَ قَدْ اَجَابَ عُثْمَانُ عَبْدًا

**باب ۴۴۶:** ذَ حاكم، دعوت قبلولو بيان. او حضرت عثمان ذَ مغيره بن شعبه ذَ يو غلام دعوت قبول

لِلْمُغِيْرَةِ ابْنِ شُعْبَةَ.

کړے دے.

۸۴۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُكُّوا الْعَانِيَ وَ اَجِيْبُوا الدَّاعِيَ.

۸۴۸: مسدد، يحيي بن سعيد، سفيان، منصور، ابو وائل، حضرت ابو موسي رضي الله عنه حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل مسلمان قيديان خلاص كړئے. او د دعوت كونكي دعوت قبول كړئے.

باب ۷۴۴: هَدَايَا الْعُمَّالِ.

باب ۷۴۴: ذ عمّالو د تحفے بيان.

۸۴۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَنَّهُ سَمِعَ عُرْوَةَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ قَالَ اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِنْ اَسَدٍ يُقَالُ لَهُ ابْنُ الْاُتْبِيَّةِ عَلٰى صَدَقَةٍ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ هٰذَا لَكُمْ وَ هٰذَا اُهْدِيَ لِيْ، فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَ سُفْيَانُ اَيْضًا فَصَعِدَ الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ الْعَامِلِ نَبْعَثُهُ فَيَأْتِيْ يَقُوْلُ هٰذَا لَكَ وَ هٰذَا لِيْ فَهَلَّا جَلَسَ فِيْ بَيْتِ اَبِيْهِ وَ اُمِّهٖ فَيَنْظُرُ اَيُهْدٰى لَهٗ اَمْ لَا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا يَأْتِيْ بِشَيْءٍ اِلَّا جَآءَ بِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَحْمِلُهٗ عَلٰى

۸۴۹: علي بن عبد الله سفيان، زهري، عروه، ابو حميد ساعدي رضي الله عنه نه روايت كوي، حضور صلّي الله عليه وسلّم د بني اسد يو سړے چه هغه ته ئے ابن اتبيه وے، د صدقے عامل كړلو. كوم وخت چه هغه واپس راغے، نو وئيلے. دا ستاسو (مال) دے او دا ماته تحفه كښ راكړے شوے دے. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم په منبر اودريدلو سفيان هم اووے، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم په منبر اودريدلو، د الله حمد و ثنا ئے بيان كړله. بيائے اوفرمائيل. د هغه عامل څه حال دے، چه مونږ هغه اوليږو، او واپس راشي، نو وائي دا ستا (مال) دے، او دا خما (مال) دے (چه ماته تحفه كښ حاصل شوے دے) نو هغه ولے ذ خپل پلار يا، مور كور كښ نه كيناستلو بيا مو كتلے وے، چه هغه ته څوك تحفه راليږي يا نه. قسم دے په هغه ذات، چه د هغه قبضه كښ خما ساه ده. كوم عامل چه څه هم خان سره اوساتي، نو د قيامت په ورځ به هغه څيز په هغه سور، وي. كه هغه اوښ وي نو هغه به، بربړ، كوي، كه غوا وي، نو بان بان، به كوي. كه چيلے وي نو، بيں بيں، به كوي.

رَقَبَتِهِ اِنْ كَانَ بَعِيْرًا لَهُ رُغَاءٌ اَوْ بَقَرَةٌ لَهَا خُوَارٌ اَوْ شَاةٌ تَيْعِرُ ثُمَّ رَفَعَ يَدَهُ حَتّٰى رَاَيْنَا عُفْرَتَيْ اِبْطَيْهِ اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ ثَلَاثًا قَالَ سُفْيَانُ قَصَّهُ عَلَيْنَا الزُّهْرِيُّ وَ زَادَ هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعَ اُذُنَايَ وَ اَبْصَرَتْهُ عَيْنِيْ وَسَلُوْا زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فَاِنَّهُ سَمِعَهُ مَعِيْ وَ لَمْ يَقُلِ الزُّهْرِيُّ سَمِعَ اُذُنِيْ. خُوَارٌ، صَوْتٌ، وَالْجُؤَارُ مِنْ تَجْاَرُوْنَ كَصَوْتِ الْبَقَرَةِ.

بيا حضور صلّي اللّه عليه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت کړل، تر دے چه ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، دواړو ترخونو مبارکو سپيدي اوليده. او وے فرمائيل، واورئے آيا، ما (د حق پيغام) اورسولو. درے (۳) ځله حضور صلّي اللّه عليه وسلّم دغسے اوفرمائيل سفيان اووے. مونږ ته زهري دا بيان اوكه، او هشام په واسطه د خپل پلار ابو حميد نه نقل كه. او ونيلے، خما غوږونو دا واوريدل، او سترګو، م اوليدل، او زيد بن ثابت نه تپوس اوكړئے، هغه هم ماسره واوريدل. او زهري دا لفظ نه دى وئيلے، چه خما غوږونو واوريدل. خُوار: نه مراد آواز، دے. او، جوار: تجارون نه ماخوذ دے، لكه د غوا، آواز.

## بَابٌ ۴۴۸: اِسْتِقْضَاءِ الْمَوَالِيْ وَ اِسْتِعْمَالِهِمْ.

## باب ۴۴۸: د غلامونو د قاضي جوړولو او د هغوئ د، عامل جوړولو بيان.

۶۸۵۰: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ جُرَيْجٍ اَنَّ نَافِعًا اَخْبَرَهُ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُ قَالَ كَانَ سَالِمٌ مَّوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَ يَؤُمُّ الْمُهَاجِرِيْنَ الْاَوَّلِيْنَ وَ اَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَسْجِدِ قُبَاءٍ فِيْهِمْ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ عُمَرُ وَ اَبُوْ سَلَمَةَ وَ زَيْدٌ وَّ عَامِرُ بْنُ رَبِيْعَةَ.

۶۸۵۰: عثمان بن صالح، عبد اللّٰه بن وهب، ابن جريج، نافع، حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. سالم (د، ابو حذيفه آزاد كړده غلام) به د، اولينُ مُهاجرينُ امامت قباء كښ كولو داسے حال كښ چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم صحابه رضي اللّٰه عنه به موجود وو. هغوي كښ حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه او حضرت عمر رضي اللّٰه عنه او حضرت ابو سلمه رضي اللّٰه عنه او حضرت زيد رضي اللّٰه عنه او حضرت عامر بن ربيعه هم وو.

## بَابٌ ۴۴۹: اَلْعُرَفَاءِ لِلنَّاسِ.

## باب ۴۴۹: د حاكم مخكښ د، واقف كارو د پيش كولو بيان.

۶۸۵۱: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ ابْنُ

۶۸۵۱: اسماعيل بن ابي اويس، اسماعيل

أَبِيْ أُوَيْسٍ حَدَّثَنِيْ إِسْمَاعِيْلُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَمِّهِ مُوْسٰى ابْنِ عُقْبَةَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حِيْنَ اَذِنَ لَهُمُ الْمُسْلِمُوْنَ فِيْ عِتْقِ سَبْيِ هَوَازِنَ اِنِّيْ لَآ اَدْرِيْ مَنْ اَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ فَارْجِعُوْا حَتّٰى يَرْفَعَ اِلَيْنَا عُرَفَآؤُكُمْ اَمْرَكُمْ، فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَآؤُهُمْ فَرَجَعُوْا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ اَنَّ النَّاسَ قَدْ طَيَّبُوْا وَ اَذِنُوْا.

بن ابراهيم، موسى بن عقبه، ابن شهاب، عروه بن زبير رضي الله عنه نه روايت كوي. د مروان بن حكم او مسور بن مخرمه دواړو بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مسلمانانو د، هوازن د قيديانو د، آزادولو اجازت وركه، نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، زه نه پوهيږم، چه تاسو كښې چا اجازت كړے دے. او چا اجازت نه دے كړے نو تاسو خلق لاړشئ تر دے چه ماته هغه خلق راشي، چه ستاسو د حالاتو نه واقف دي. نو ټول خلق واپس لاړل. او هغوئ سره د ذ هغوئ سردارانو خبرے اترے اوكړے. او د، رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كښې واپس راغلل. او حضور صلي الله عليه وسلم ته ئے عرض اوكه، چه خلق په دے راضي دي، او اجازت ئے كړے دے.

**باب ۴۵۰: مَا يُكْرَهُ مِنْ ثَنَآءِ السُّلْطَانِ وَ اِذَا خَرَجَ قَالَ غَيْرَ ذٰلِكَ.**

**باب ۴۵۰: د، بادشاه مخكښې ذ هغه تعريف كول او، پشي شاه، ذ هغه خلاف وئيل مكروه دي.**

۸۵۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اُنَاسٌ لِاِبْنِ عُمَرَ اِنَّا نَدْخُلُ عَلٰى سُلْطَانِنَا فَنَقُوْلُ لَهُمْ خِلَافَ مَا نَتَكَلَّمُ اِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِهِمْ قَالَ كُنَّا نَعُدُّهُمْ نِفَاقًا.

۸۵۲: ابو نعيم، عاصم بن محمد بن زيد بن عبد الله بن عمر د خپل پلار نه روايت كوي. ځنے خلقو ابن عمر رضي الله عنه ته اووے، چه مونږ خپل بادشاه له ورشو نو مونږ هغوئ سره داسے خبرے اترے كوو، چه ذ هغے خلاف وي، كوم وخت چه مونږ د هغوئ نه جدا شو (يعني په مخ ئے تعريف كوو، او په شاه، ورپسے بد وايو) نو هغه اووے. مونږ دا نفاق ګنړلو.

۸۵۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ عِرَاكٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ

۸۵۳: قتيبه، ليث، يزيد بن ابي حبيب، عراك، حضرت ابو هريره رضي الله نه روايت كوي. هغه د، رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل، خلقو كښې

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ شَرَّ النَّاسِ ذُوْ الْوَجْهَيْنِ الَّذِيْ يَأْتِيْ هٰؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَ هٰؤُلَاءِ بِوَجْهٍ.

بدترين سړے هغه دے، چه دوه مخيز وي، چه يو له ورشي، نو يو څه ورته وائي، او، چه بل له ورشي، نو بل څه ورته وائي.

باب ۴۵۱: اَلْقَضَاءِ عَلَى الْغَائِبِ.

باب ۴۵۱: په غائب سړي ډ حکم لږولو بيان.

۸۵۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ هِنْدَ قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيْحٌ فَاَحْتَاجُ اَنْ اٰخُذَ مِنْ مَالِهٖ، قَالَ خُذِيْ مَا يَكْفِيْكِ وَ وَلَدَكِ بِالْمَعْرُوْفِ.

۸۵۴: محمد بن كثير، هشام د خپل پلار نه، هغه ذ بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها نه روايت کوي، هند، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض او کړه، ابو سفيان يو بخيل سړے دے. او ماته ضرورت وي، چه زه د هغه د مال نه واخلم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ته ذ هغه د مال نه د قاعدے مطابق دومره آخله، چه تاله او ستا بچي له کافي وي.

باب ۴۵۲: مَنْ قُضِيَ لَهٗ بِحَقِّ اَخِيْهِ فَلَا يَأْخُذُهٗ فَاِنَّ قَضَاءَ الْحَاكِمِ لَا يُحِلُّ حَرَامًا وَّ لَا يُحَرِّمُ حَلَالًا.

باب ۴۵۲: د کوم سړي د پاره چه د هغه د، رور، ذ حق نه څه فيصله اوشي، نو هغه دے هغه نهٔ اخلي، ځکه چه ذ حاکم فيصله حرام حلالولے او حلال حرامولے نشي.

۸۵۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهَا عَنْ رَسُوْلَ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ سَمِعَ خُصُوْمَةً بِبَابِ حُجْرَتِهٖ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ فَقَالَ، اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ وَّ اِنَّهٗ يَأْتِيْنِيْ الْخَصْمُ فَلَعَلَّ

۸۵۵: عبد العزيز بن عبد اللّٰه ابراهيم بن سعد، صالح، ابن شهاب، عروه بن زبير رضي اللّٰه عنه، زينب بنت ابي سلمه اُمّ سلمه رضي اللّٰه عنها (تبر د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم) نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ خپلے حجرے (کوټے) په دروازه د څه جګړے آواز واوريدلو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغے طرف ته بهر تشريف راوړلو اووے فرمائيل، چه زه هم يو انسان يم. ماته مقدمه راځي ممکنه ده، چه تاسو کښې يو سړے د بل نه زيات بليغ وي، زه ګمان او کړم، چه هغهٔ رينتيے

بَعْضَكُمْ اَنْ يَّكُوْنَ اَبْلَغَ مِنْ بَعْضٍ فَاَحْسِبُ اَنَّهُ صَادِقٌ فَاَقْضِيْ لَهُ بِذٰلِكَ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِحَقِّ مُسْلِمٍ فَاِنَّمَا هِيَ قِطْعَةٌ مِّنَ النَّارِ فَلْيَاْخُذْهَا اَوْ لِيَتْرُكْهَا.

۶۵۸: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَآئِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اِلٰى اَخِيْهِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ اَنَّ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ مِنِّيْ فَاَقْبِضْهُ اِلَيْكَ فَلَمَّا كَانَ عَامَ الْفَتْحِ اَخَذَهُ سَعْدٌ فَقَالَ ابْنُ اَخِيْ قَدْ كَانَ عَهِدَ اِلَيَّ فِيْهِ فَقَامَ اِلَيْهِ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ اَخِيْ وَابْنُ وَلِيْدَةِ اَبِيْ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهِ فَتَسَاوَقَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ ابْنُ اَخِيْ كَانَ عَهِدَ اِلَيَّ فِيْهِ وَ قَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ اَخِيْ وَ ابْنُ وَلِيْدَةِ اَبِيْ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ ابْنُ زَمْعَةَ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ. ثُمَّ قَالَ لِسَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ اِحْتَجِبِيْ مِنْهُ

دے، او زه د هغه حق کښې فيصله اوکړم. د کوم سړي د پاره چه د، يو مسلمان حق کښې فيصله اوکړم، نو هغه د، اور يوه ټکړه ده، اوس هغه دے هغه واخلي، يا، پرے دے ږدي.

۶۵۸: اِسماعيل، مالک، ابن شهاب، عروه بن زبير رضي الله عنه، بي بي عائشے صدقه (تېر د نبي صلّي الله عليه وسلّم) نه روايت کوي. د هغے بيان دے. عتبه بن ابي وقاص خپل ورور سعد بن ابي وقاص ته وصيت کړے وو، چه د، زمعه د، وينزے هلک خما نه دے (يعني خما خوئے دے) نو ته به هغه قبضه اوکړه. کوم وخت چه د مکے د فتح کال راغے نو هغه هلک سعد واخستلو. او وئيلے، چه دا خما د، ورور خوئے دے. خما ورور، د، ده متعلق ماته وصيت کړے وو. عبد الله بن زمعه د هغه مقابله کښې اودريدلو. اووئيلے، دا خما ورور دے. او خما د پلار د، وينزے خوئے دے. ذ هغه په بستره پيدا شوے دے. دواړو مقدمه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم له يوړله. سعد عرض اوکه، يا رسول الله دا خما د، ورور خوئے دے. هغه د، ده باره کښې ماته وصيت کړے وو. او عبد الله بن زمعه اووے، چه دا خما ورور دے. او خما د پلار د، وينزے خوئے دے، چه د هغه په بستره پيدا شوے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اے عبدالله بن زمعه، دا (هلک) ستا، دے. بيا رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هلک د، بسترے واله د پاره دے، او زناکار د پاره کاڼړي دي. بيا بي بي سوده رضي الله عنها بن زمعه ته اوفرماوئيل ته د دے هلک نه پرده کوه، ځکه چه ده کښې د عتبه

لِمَا رَاٰی مِنْ شَبُهِهٖ بِعُتْبَةَ فَمَا رَاٰهَا حَتّٰی لَقِیَ اللّٰهَ تَعَالٰی.

مشابهت دے. نو بي بي سودے رضي اللّٰه عنها هغه هلک د مرګه پورے اونه لیدو.

## باب ۴۵۳: اَلْحُکْمِ فِی الْبِئْرِ وَ نَحْوِهَا.

باب ۴۵۳: د کوهي وغیره متعلق ذ فیصلے کولو بیان.

۷۸۵۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا سُفْیَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ وَّالْاَعْمَشِ عَنْ اَبِیْ وَآئِلٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ، لَا یَحْلِفُ عَلٰی یَمِیْنِ صَبْرٍ یَقْتَطِعُ مَالًا وَّهُوَ فِیْهَا فَاجِرٌ اِلَّا لَقِیَ اللّٰهَ وَ هُوَ عَلَیْهِ غَضْبَانُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ الْاٰیَةَ فَجَآءَ الْاَشْعَثُ وَ عَبْدُ اللّٰهِ یُحَدِّثُهُمْ فَقَالَ فِیَّ نَزَلَتْ وَ فِیْ رَجُلٍ خَاصَمْتُهُ فِیْ بِئْرٍ فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلَکَ بَیِّنَةٌ قُلْتُ لَا، قَالَ فَلْیَحْلِفْ قُلْتُ اِذًا یَّحْلِفُ فَنَزَلَتْ اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ الْاٰیَةَ.

۷۸۵۷: اسحاق بن نصر، عبد الرَّزّاق، سفیان، منصور، او، اعمش، ابو وائل، عبد اللّٰه بن مسعود رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، د هغه بیان دے، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، کوم سړے چه دے د پاره قسم اوخوري، چه ذ چا مال هضم کړي، نو هغه به اللّٰه تعالٰي سره داسے حال کښ یو ځائے کیږي چه اللّٰه تعالٰي به په هغه غضب ناک وي، نو اللّٰه تعالٰي دا، آیت نازل کړلو، اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ: الخ. نو، اشعث او عبد اللّٰه د هغوي نه بیان کولو سره راغلل چه دا، آیت خما متعلق نازل شوے دے. خما یو سړي سره د کوهي متعلق جګړه وه، نو نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، آیا تاسره څوک ګواه شته. ما، اووے. نه. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. بیا به هغه قسم خوري. ما عرض اوکه، چه هغه خو، به قسم اوخوري، نو هغه وخت دا، آیت نازل شولو: اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ: الخ.

## باب ۴۵۴: اَلْقَضَآءِ فِی کَثِیْرِ الْمَالِ وَ قَلِیْلِهٖ. وَ قَالَ ابْنُ عُیَیْنَةَ عَنِ ابْنِ شَبْرُمَةَ الْقَضَآءِ فِی قَلِیْلِ الْمَالِ وَ کَثِیْرِهٖ سَوَآءٌ.

باب ۴۵۴: لږ، او زیات مال کښ ذ فیصلے کولو بیان. او ابن عیینه د، ابن شبرمه نه نقل اوکه، چه لږ او زیات مال کښ فیصله کول برابر دي.

۸۵۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْیَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَیْبٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ اَخْبَرَنِیْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَیْرِ اَنَّ زَیْنَبَ بِنْتَ اَبِیْ

۸۵۸: ابو الیمان، شعیب، زهري، عروه بن زبیر رضي اللّٰه عنه زینب بنت ابي سلمه رضي اللّٰه عنه ذ خپلے مور اُم سلمه رضي اللّٰه عنه نه

سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ عَنْ أُمِّهَا أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَبَةَ خِصَامٍ عِنْدَبَابِهِ فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ فَقَالَ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ وَّ إِنَّهُ يَأْتِيْنِي الْخَصْمُ فَلَعَلَّ بَعْضًا أَنْ يَّكُوْنَ أَبْلَغَ مِنْ بَعْضٍ أَقْضِيْ لَهُ بِذٰلِكَ وَ أَحْسِبُ أَنَّهُ صَادِقٌ، فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِحَقِّ مُسْلِمٍ فَإِنَّمَا هِيَ قِطْعَةٌ مِّنَ النَّارِ فَلْيَأْخُذْهَا اوليَدَعْهَا.

روايت كوي. د هغې بيان دے. نبي صلّي اللّه عليه وسلّم خپلے دروازے سره د، جګړے آواز واوريدلو. بهرته ئې تشريف راوړلو. اوورے فرمائيل. زه خو محض يو انسان يم، او خلق ماته مقدمے راوړي. ډيره ممكنه ده، چه يو سړے د بل نه زيات بليغ وي، او زه دا خيال او كړم چه هغه ريښتنے دے، او د هغه په حق كښې فيصله اوكړم، نو هغه د، اُور ټكړه ده. اوس هغه ته اختيار دے، چه هغه اخلي يا پريږدي ئې.

**بَاب ۴۵۵:** بَيْعِ الْإِمَامِ عَلَى النَّاسِ أَمْوَالَهُمْ وَ ضِيَاعَهُمْ. وَ قَدْ بَاعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نُعَيْمِ بْنِ النَّحَّامِ.

**باب ۴۵۵:** دَ خلقو د مال و جائيداد د، امام په لاس د خرخولو بيان. او حضور صلّي اللّه عليه وسلّم د نعيم بن نحام د طرف نه بيع كړے ده.

**۸۵۹:** حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ ابْنُ كُهَيْلٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَجُلًا مِّنْ أَصْحَابِهِ أَعْتَقَ غُلَامًا عَنْ دُبُرٍ لَّمْ يَكُنْ لَّهُ مَالٌ غَيْرَهُ فَبَاعَهُ بِثَمَانِ مِائَةِ دِرْهَمٍ ثُمَّ أَرْسَلَ بِثَمَنِهِ إِلَيْهِ.

**۸۵۹:** ابن نمير، محمد بن بشر، اسماعيل، سلمه بن كهيل، عطاء، حضرت جابر رضي اللّه عنه نه روايت كوي دَ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم خبر شو، چه د هغوئ صحابي يو غلام هديه كړلو او هغه سره دَ هغه نه سِوا نور هيڅ مال نه وو، نو حضور صلّي اللّه عليه وسلّم په اته سوه (۸۰۰) درهمه خرڅ كړلو. بيا حضور صلّي اللّه عليه وسلّم دَهغے غلام قيمت هغه له اوليږلو.

**بَاب ۴۵۶:** مَنْ لَّمْ يَكْتَرِثْ بِطَعْنِ مَنْ لَّا يَعْلَمُ فِي الْأُمَرَآءِ حَدِيْثًا.

**باب ۴۵۶:** د هغے سړي بيان، چه هغه دا طعن شمار نه كړي، چه څوك سړے د، امراءُ متعلق څه داسے خبره اوكړي، چه هغه ته نه وي معلومه.

**۸۶۰:** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ ابْنُ

**۸۶۰:** موسى بن اسماعيل، عبد العزيز بن مسلم، عبد اللّه بن دينار رضي اللّه عنه نه

مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطُعِنَ فِيْ اِمَارَتِهٖ فَقَالَ اِنْ تَطْعَنُوْا فِيْ اِمَارَتِهٖ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعَنُوْنَ فِيْ اِمَارَةِ اَبِيْهِ مِنْ قَبْلِهٖ، وَ اَيْمُ اللّٰهِ اِنْ كَانَ لَخَلِيْقًا لِّلْاِمْرَةِ وَ اِنْ كَانَ لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ، وَ اِنَّ هٰذَا لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ بَعْدَهٗ.

روايت كوي. د هغه بيان دے. ما د' ابن عمر رضي الله عنه نه واوريدل رسول الله صلّي الله عليه وسلّم يو لښكر اوليږلو. او د هغے امير' ئے اسامه بن زيد رضي اللّه عنه مقرر كړلو. د هغه په امارت (اميري) طعن اوكړے شو. نو حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل' كه تاسو د' ده په امارت طعن كوئے' نو د' ده نه مخكښ تاسو د' ده د پلار په امارت هم طعن كړے وو' او' قسم په خدائے' هغه د' امارت لائق وو. او خلقو كښ ماته د ټولو نه زيات محبوب وو' هغه نه پس دے ماله د ټولو نه زيات محبوب دے.

ف: طعن: پيغور. تېک. طنز. ملامت.

باب ۴۵۷: اَلْاَلَدِّ الْخَصِمِ وَ هُوَ الدَّآئِمُ فِي الْخُصُوْمَةِ لُدًّا: عُوْجًا.

باب ۴۵۷: الد الخصم: يعني د هغه سړي بيان' چه هميشه جګړه كوي. لُد: عوجا (يعني د كږو خلقو) په معنٰي كښ دے.

۶۸۶۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ يُحَدِّثُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْغَضُ الرِّجَالِ اِلَى اللّٰهِ الْاَلَدُّ الْخَصِمُ.

۶۸۶۱: مسدد يحيٰي بن سعيد' ابن جريج' ابي ابي مليكه' بي بي عائشے رضي اللّه عنها نه روايت كوي' د هغے بيان دے نبي صلّي اللّه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو اللّه تعالٰي ته د ټولو نه زيات ناخوښه هغه سړے دے' چه ډير زيات جګړه مار' وي.

باب ۴۵۸: اِذَا قَضَى الْحَاكِمُ بِجَوْرٍ اَوْ خِلَافِ اَهْلِ الْعِلْمِ فَهُوَ رَدٌّ.

باب ۴۵۸: هر كله چه حاكم ظلم سره يا' د' اهل علم خلاف فيصله اوكړي' نو هغه مردود دے.

۶۸۶۲: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ بَعَثَ النَّبِيُّ

۶۸۶۲: محمود' عبد الرزاق' معمر' زهري' سالم' حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّه عليه وسلّم' خالد اوليږلو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدًا ح وَ حَدَّثَنِيْ نُعَيْمٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ اِلٰى بَنِيْ جَذِيْمَةَ فَلَمْ يُحْسِنُوْا اَنْ يَّقُوْلُوْا اَسْلَمْنَا فَقَالُوْا صَبَانَا صَبَانَا فَجَعَلَ خَالِدٌ يَقْتُلُ وَ يَاْسِرُ وَ دَفَعَ اِلٰى كُلِّ رَجُلٍ مِّنَّا اَسِيْرَهٗ فَاَمَرَ كُلَّ رَجُلٍ مِّنَّا اَنْ يَّقْتُلَ اَسِيْرَهٗ، فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَا اَقْتُلُ اَسِيْرِيْ وَ لَا يَقْتُلُ رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِيْ اَسِيْرَهٗ فَذَكَرْنَا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَبْرَأُ اِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ مَرَّتَيْنِ.

(دويم سند). ح. نعيم، عبد الله، معمر، زهري، سالم دَ خپل پلار نه روايت کوي دَ هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خالد بن وليد، بني جذيمه ته اوليږلو، نو هغے خلقو په شان او نه وئيلے شو، چه مونږ اسلام راوړلو، بلکه هغے خلقو اووے چه مونږ د دے دين نه واوړيدو، مونږ د دے دين نه واوړيدو. نو حضرت خالد قتلول او قيدول. او مونږ کښې هر سړي ته ئے قيديان راکړل او حکم ئے راکه، چه خپل قيدي قتل کړو، ما اووے، په خدائے مې دے قسم وي، زه به خپل قيدي قتل نه کړم، او نه به خمونږ ملګرو کښې څوک خپل قيدي قتلوي. مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د دے بيان اوکه، نو حضور صلّ اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، يا اللّٰه، زه ستا مخکښې د: دے نه بيزاري ظاهروم، څه چه خالد اوکړل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دوه (٢) ځله داسے اوفرمائيل.

**باب ٤٥٩:** اَلْاِمَامِ يَأْتِيْ قَوْمًا فَيُصْلِحُ بَيْنَهُمْ.

**باب ٤٥٩:** دَ امام يو قوم ته راتلل او دَ هغوئ مينځ کښې دَ صلح بيان.

**٨٦٣:** حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَازِمٍ الْمَدِيْنِيُّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ كَانَ قِتَالٌ بَيْنَ بَنِيْ عَمْرٍو فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ اَتَاهُمْ يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ فَلَمَّا حَضَرَتْ صَلٰوةُ الْعَصْرِ فَاَذَّنَ بِلَالٌ وَ اَقَامَ وَ

**٨٦٣:** ابو نعمان، حماد، حازم مديني، سهل بن ساعديؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے. د بني عمره مينځ کښې جنګ شروع شو، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه دے نه خبر شو نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ ماسپخين مونځ اوکه، بيائے هغے خلقو ته صلح د پاره تشريف راوړلو. چه د مازيګر د مونځ وخت شو، نو حضرت بلال رضي اللّٰه عنه آذان اوکه او حضورؐ ابوبکر رضي اللّٰه عنه ته حکم کړے وو، نو هغه مخکښې شو. بيا نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو، داسے حال

اَمَـرَ اَبَـابَـكْـرٍ فَتَقَـدَّمَ وَ جَـآءَ النَّبِيُّ صَـلَّى اللّـٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُـوْ بَـكْرٍ فِيْ صَلَاةٍ فَشَقَّ النَّـاسَ حَتّٰى قَـامَ خَـلْفَ اَبِـيْ بَـكْرٍ فَتَقَدَّمَ فِـي الصَّفِّ الَّـذِيْ يَـلِيْـهِ قَـالَ وَ صَـفَّحَ الْقَـوْمُ وَ كَـانَ اَبُـوْبَـكْرٍ اِذَا دَخَلَ فِـي الصَّلٰوةِ لَمْ يَلْتَفِتْ حَتّٰى يَـفْـرُغَ فَـلَـمَّا رَاٰى التَّصْفِيْحَ لَا يُمْسَكُ عَـلَيْـهِ الْتَفَتَ فَرَاٰى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَهُ فَاَوْمَاَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَمْضِهٖ وَ اَوْمَاَ بِيَـدِهٖ هٰكَذَا وَ لَبِثَ اَبُوْبَكْرٍ هُنَيَّةً يَحْمَـدُ اللّٰهَ عَلٰى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ مَشَى الْقَهْقَرٰى فَـلَـمَّـا رَاٰى النَّبِـيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ ذٰلِكَ تَـقَـدَّمَ فَـصَـلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ فَلَمَّا قَـضٰـى صَلَاتَهٗ قَالَ يَا اَبَا بَكْرٍ مَّا مَنَعَكَ اِذْ اَوْ مَـأْتُ اِلَيْكَ اَنْ لَّا تَـكُوْنَ مَضَيْتَ قَـالَ لَـمْ يَـكُـنْ لِاِبْـنِ اَبِيْ قُحَافَةَ اَنْ يَّـؤُمَّ النَّـبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَـالَ لِلْقَوْمِ اِذَا نَابَكُمْ اَمْرٌ فَلْيُسَبِّحِ الرِّجَالُ وَلْيُصَفِّحِ النِّسَآءُ.

كيښ چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه مونځ وركولو، په خـلقـو دا ګـرانـه شوه، تر دے چه حضور صلّي الله عليه وسلّم د حضرت ابوبكر رضي الله عنه ورستو اودريدلو، او هغې صف ته راغے، چه ابوبكر رضي الله عنه ته قريب وو. ۱ـ د راوي بيـان دے. خـلـقـو لاسـونه پړقول شروع كړل. او ابـوبـكـر رضي الله عنه چه به مونځ كښ وو، نو څـو پـورے چـه به مونځ كښ وو، هغه وخته پورے به بل څـه تـه نه متوجه كيدلو. هغه ته چه معلومه شوه، چه لاس پـړقـول نـه بنديږي، نو هغه خان پسے نبي صَلّي الله عليه وسـلّم اوليدلو، حضور صَلّي الله عليه وسلّم ورته اشارے سـره اوفـرمائيل، چه خپل مونځ جاري ساته او خپل لاس سـره ئـے ورتـه اشاره اوكړله. حضرت ابوبكر رضي الله عنه لږ ايسار شو، او د نبي صلّي الله عليه وسلّم په قول د الله شكر ادا كولو سره را ورستو شو. نبي صلّي الله عليه وسـلّـم چـه اوليـدل، نو مخكښ شو، او خلقو ته ئے مونځ وركـړلو. چه خپل مونځ ئے پوره كه، نو وے فرمائيل، اے ابـوبـكـر، چـه ما درته اشاره دركړله، نو څه څيز ته د دے خبـرے نـه مـنـع كـړے، چه خپل مونځ دے جاري ساتلے وي. هغه عرض اوكه. ابن ابي قحافه د پاره دا مناسب نه وو، چـه د نبـي عـلـيـه السّـلام امامت اوكړي. او خلقو ته حـضـور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هر كله چه تاسو تـه څـه امـر (مـونـځ كـښ) پيش شي، نو تـسبيح (سبحان الله) ونيل پكار دي. او لاس پړقول د ښځو د پاره وي.

۱ـ عامو خلقوته د داسے عمل اجازت نيشته. البته امير المؤمنين ددے نه مستثنٰي دے ولے چه هغهٔ امام اعظم دے. خصوصاً د پاك حضرتؐ معامله خو دَ ټولونه مستثنٰي ده ولے چه حضورؐ شارع هم دے.

## بَاب ۴۲۰: يَسْتَحَبُّ لِلْكَاتِبِ

## باب ۴۲۰: كـاتـب د پـاره مستحب دي، چه

اَنْ يَكُوْنَ اَمِيْنًا عَاقِلًا.

۸۶۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدُ اللّٰهِ اَبُوْ ثَابِتٍ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ بَعَثَ اِلَيَّ اَبُوْ بَكْرٍ لِمَقْتَلِ اَهْلِ الْيَمَامَةِ وَ عِنْدَهُ عُمَرُ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اِنَّ عُمَرَ اَتَانِيْ فَقَالَ اِنَّ الْقَتْلَ قَدْ اِسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ الْقُرْاٰنِ وَ اِنِّيْ اَخْشٰى اَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِقُرَّاءِ الْقُرْاٰنِ وَ فِي الْمَوَاطِنِ كُلِّهَا فَيَذْهَبُ قُرْاٰنٌ كَثِيْرٌ وَ اِنِّيْ اَرٰى اَنْ تَاْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْاٰنِ قُلْتُ كَيْفَ اَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ: هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِيْ فِيْ ذٰلِكَ حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِيْ لِلَّذِيْ شَرَحَ لَهُ صَدْرَ عُمَرَ وَ رَاَيْتُ فِيْ ذٰلِكَ الَّذِيْ رَاٰى عُمَرُ قَالَ زَيْدٌ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ اِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ لَاَنَتَّهِمُكَ: قَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَتَبَّعِ الْقُرْاٰنَ فَاجْمَعْهُ. قَالَ

امانت دار او عاقل وي.

۸۶۴: محمد بن عبيد الله، ابو ثابت، ابراهيم بن سعد، ابن شهاب، عبيد الله بن سباق، زيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، حضرت ابوبكر رضي الله عنه مقتل يمامه كښ ماته يو سړے راؤليږلو، زه ئے اوغوښتلم. هغه وخت حضرت عمر رضي الله عنه هم موجود وو، حضرت ابوبكر رضي الله عنه اووے. ماله عمر رضي الله عنه راغلے دے. اووائي، چه يوم يمامه كښ ډير قراء (قاريان) شهيدان شوے دي. او ما سره ويره ده، چه ټولو ځايونو كښ زيات تعداد كښ د، قراء قتليدو سره دَ قرآن زياته حصه ضائع نشي. په دے وجه زه مناسب گنړم، چه تاسو د قرآن راجمع كولو حكم اوكړے. ما اووے، زه داسے كار څنګه كولے شم، چه هغه حضور صلّي الله عليه وسلّم نه دے كړے. عمر رضي الله عنه اووے، قسم په خدائے، دا بهتره ده. او عمر رضي الله عنه ماته بار بار وئيلے، تر دے چه الله تعالٰي ځما سينه هغے كار د پاره پرانسته، چه هغے د پاره د، عمر رضي الله عنه سينه پرانستے شوے وه. او ځما هم د دے متعلق هغه خيال راغے، كوم چه د عمر رضي الله عنه خيال وو د، زيد رضي الله بيان دے، حضرت ابوبكر رضي الله عنه اووے، چه ته يو عقل مند ځلمے ئے. مونږ په تا هيڅ قسم شک شبه نه شو كولے او تا به رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د پاره وحي ليكلے، په دے وجه قرآن تلاش كړه او جمع ئے كړه. د، زيد بيان دے. په خدائے م دے قسم وي، كه ماته د، يو غر د يو ځائے نه بل ځائے ته د كولو تكليف راكړے شوے وے نو

زَيْدُ. فَوَاللّٰهِ لَوْ كَلَّفَنِيْ نَقْلَ جَبَلٍ مِّنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ بِاَثْقَلَ عَلَيَّ مِمَّا كَلَّفَنِيْ مِنْ جَمْعِ الْقُرْاٰنِ. قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلَانِ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ. فَلَمْ يَزَلْ يَحُثُّ مُرَاجَعَتِيْ حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِيْ لِلَّذِيْ شَرَحَ اللّٰهُ لَهُ صَدْرَ اَبِيْ بَكْرٍ وَّ عُمَرَ وَ رَاَيْتُ فِيْ ذٰلِكَ الَّذِيْ رَاَيَا فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْاٰنَ اَجْمَعَهُ مِنَ الْعُسُبِ وَالرِّقَاعِ وَاللِّخَافِ وَ صُدُوْرِ الرِّجَالِ فَوَجَدْتُ اٰخِرَ سُوْرَةِ التَّوْبَةِ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اِلٰى اٰخِرِهَا مَعَ خُزَيْمَةَ اَوْ اَبِيْ خُزَيْمَةَ فَاَلْحَقْتُهَا فِيْ سُوْرَتِهَا وَ كَانَتِ الصُّحُفُ عِنْدَ اَبِيْ بَكْرٍ حَيَاتَهُ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ، ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ حَيَاتَهُ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ، ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ اللِّخَافُ يَعْنِي الْخَزَفَ.

دا كار به د قرآن د جمع كولو د تكليف نه زيات وزني نه وو، كوم چه ماته راكړے شوے وو. ما اووے. تاسو دواړه څنګه هغه كار كوئے، كوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دے كړے. حضرت ابوبكر رضي الله عنه اووے، په خدائے مِ قسم، دا بهتره ده. بيا برابر، ئے زه دے كار ته جوت كولم، تر دے چه دے كار د پاره الله تعالي خما سينه پرانسته، چه د هغے د پاره دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه سينه پرانستے شوے ده. او ما هم دغسے مناسب اوګڼړل. نو زه دَ قران تلاش كښ شوم. او هغه مِ د قجورو د، پاڼړو، خرمنو او تيكرو او د خلقو د سينو نه جمع كول شروع كړل. ما د سوره توبه آخري آيت: لَقَدْ جَآءَكُمْ مِنْ اَنْفُسِكُمْ: الخ. حضرت خذيمه رضي الله عنه يا حضرت ابو حذيمهؓ سره بيامند. نو ما هغه دَ هغے اٰخِر كښ شامل كه. او دا صحيفے دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه ژوند كښ هغه سره وے، تر دے چه الله تعالي هغه وفات كړلو، نو بيا دَ حضرت عمر رضي الله عنه ژوند كښ هغه سره وے، تر دے چه هغه هم الله تعالي واخست (يعني وفات شو) نو بي بي حفصے بنت عمر رضي الله عنه سره وے. محمد بن عبيد الله اووے، د، لخاف مراد تيكري دي.

بَاب ۲۶۱: كِتَابِ الْحَاكِمِ اِلٰى عُمَّالِهٖ وَالْقَاضِيْ اِلٰى اُمَنَائِهٖ.

باب ۲۶۱: دَ حاكم خپلو عاملانو ته او قاضي خپلو آمينانانو ته د خط ليږلو بيان.

۸۶۵: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ لَيْلٰى وَ حَدَّثَنِيْ اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ لَيْلٰى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَعَبْدِ

۸۶۵: عبيد الله بن يوسف، مالك، ابي ليلي ح، اسماعيل، مالك، ابي ليلي بن عبد الرّحمٰن بن سهل، سهل بن ابي حثمه نه روايت كوي، هغه او د هغه د قوم مشرانو بيان اوكه، چه عبد الله سهل او محيصه دواړه دَ

الرَّحْمٰنِ بْنِ سَهْلٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ هُوَ وَ رِجَالٌ مِنْ كُبَرَاءِ قَوْمِهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ سَهْلٍ وَّ مُحَيِّصَةَ خَرَجَا اِلٰى خَيْبَرَ مِنْ جُهْدٍ اَصَابَهُمْ فَاُخْبِرَ مُحَيِّصَةُ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ قُتِلَ وَ طُرِحَ فِيْ فَقِيْرٍ اَوْ عَيْنٍ فَاَتٰى يَهُوْدَ فَقَالَ اَنْتُمْ وَاللّٰهِ قَتَلْتُمُوْهُ قَالُوْا مَا قَتَلْنَاهُ وَاللّٰهِ ثُمَّ اَقْبَلَ حَتّٰى قَدِمَ عَلٰى قَوْمِهِ فَذَكَرَ لَهُمْ وَ اَقْبَلَ وَ هُوَ وَ اَخُوْهُ حُوَيِّصَةُ وَ هُوَ اَكْبَرُ مِنْهُ وَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَهْلٍ فَذَهَبَ لِيَتَكَلَّمَ وَ هُوَ الَّذِيْ كَانَ بِخَيْبَرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمُحَيِّصَةَ كَبِّرْ كَبِّرْ يُرِيْدُ السِّنَّ فَتَكَلَّمَ حُوَيِّصَةُ ثُمَّ تَكَلَّمَ مُحَيِّصَةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِمَّا اَنْ يَّدُوْا صَاحِبَكُمْ وَ اِمَّا اَنْ يُّؤْذِنُوْا بِحَرْبٍ فَكَتَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ بِهٖ فَكُتِبَ مَا قَتَلْنَاهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحُوَيِّصَةَ وَ مُحَيِّصَةَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَتَحْلِفُوْنَ وَ تَسْتَحِقُّوْنَ دَمَ صَاحِبِكُمْ قَالُوْا لَا قَالَ اَفَتَحْلِفُ لَكُمْ يَهُوْدُ قَالُوْا لَيْسُوْا بِمُسْلِمِيْنَ فَوَدَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهٖ مِائَةَ نَاقَةٍ حَتّٰى اُدْخِلَتِ

تنګئ په وجه چه هغوئ ته پېښه شوې وه' خيبر ته لاړل' محيصه خبر شو' چه عبد الله قتل شوې او يوه کنده کښې غورځولے شوے دے' دے آوريدو سره هغه يهوديانو له راغے. ورته ئے اووے په خدائے م دے قسم وي' دے تاسو قتل کړے دے. يهوديانو اووے' په خدائے مو' دے قسم وي' مونږ نه دے قتل کړے' بيا خپل قوم ته' راغے. او هغوئ ته ئے اووے. هغے نه پس دے او' د' ده مشر ورور حُوَيصه او عبد الرحمٰن بن سهل خبرو اترو د پاره اووتل' دا عبد الرّحمٰن هغه وو' چه خيبر کښې وو' نبي عليه السّلام ته اووے' دَ خان نه مشر راوله. د خان نه مشر راوله. يعني کوم چه تاسو کښې معمر (د' زيات عمر وي' هغه دے خبرے اوکړي' نو حويصه خبرے اوکړے' چه حويصه خبرے اترے اوکړے' نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د يهودو متعلق اوفرمائيل يا خو' دے د خپل ملګري ديت (خون بها) ورکړي' يا' دے جنګ د پاره تيار شي. رسول اللّٰه صلّي الله عليه وسلّم يهوديانو ته دغسے اوليکل' هغوي جواب کښې اوليکل' مونږ دے' نه دے قتل کړے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم حويصه او محيصه او عبد الرحمٰن ته اوفرمائيل' آيا تاسو به قسم خوړلو سره دَ خپل ملګري دَ خون بها مستحق شئے. هغے خلقو جواب ورکه' نه' حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. بيا به يهود قسم خوري. هغے خلقو اووے دغه خلق خو مسلمانان نه دي. نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د خپل طرف نه هغوئ ته سل (۱۰۰) اُوښے خون بها کښې ورکړلے. تر دے چه دا' اوښے کور ته راوستلے شوے' نو سهل رضي الله عنه بيان اوکه' چه

الدَّارِ قَالَ سَهْلٌ فَرَكَضَعْنِيْ مِنْهَا ثَلَاثَةً.

بَـابٌ ۲۶۲: هَـلْ يَـجُـوْزُ لِلْحَاكِمِ اَنْ يَبْعَثَ رَجُلًا وَحْدَهُ لِلنَّظَرِ فِي الْأُمُوْرِ.

۸۶۶: حَـدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِـيْ ذِئْـبٍ حَـدَّثَـنَـا الـزُّهْـرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ الـلّٰـهِ ابْـنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ قَـالَا جَـآءَ اَعْـرَابِـيٌّ فَـقَـالَ يَـا رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ اقْـضِ بَيْـنَـنَـا بِـكِتَـابِ الـلّٰـهِ فَقَـامَ خَصْمُهُ قَالَ صَـدَقَ فَـاقْـضِ بَيْـنَـنَـا بِكِتَابِ اللّٰـهِ فَـقَـالَ الْاَعْـرَابِـيُّ: اِنَّ ابْنِـيْ كَانَ عَسِيْفًـا عَـلٰـى هٰـذَا فَـزَنٰـى بِاِمْرَاَتِـهٖ فَـقَـالُـوْا لِـيْ عَـلٰـى ابْـنِكَ الرَّجْـمُ فَـفَـدَيْـتُ ابْـنِيْ مِنْهُ بِمِائَةٍ مِّنَ الْغَنَمِ وَ وَلِـيْـدَةٍ ثُـمَّ سَـاَلْـتُ اَهْـلَ الْـعِـلْـمِ فَـقَـالُـوْا اِنَّـمَـا عَـلٰـى اِبْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ وَ تَـغْـرِيْـبُ عَـامٍ، فَـقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِـكِتَـابِ اللّٰهِ، اَمَّا الْوَلِيْدَةُ وَالْغَنَمُ فَرَدٌّ عَـلَيْكَ وَ عَـلٰـى ابْـنِكَ جَـلْـدُ مِـائَةٍ وَّ تَـغْـرِيْـبُ عَـامٍ وَ اَمَّـا اَنْتَ يَـا اُنَيْـسُ لِرَجُلٍ. فَاغْدُ عَلٰى اِمْرَاَةِ هٰذَا فَارْجُمْهَا فَغَدَا عَلَيْهَا اُنَيْسٌ فَرَجَمَهَا.

بَابٌ ۲۶۳: تَرْجَمَةِ الْحُكَّامِ وَ

هغې کښې يوې زه په لته وهلې ووم.

باب ۲۶۲: آيـا حـاكـم د پـاره جـائـز دي، چـه صـرف يـو سـړے، حـالـت دريـافـت كولو د پاره اوليږي.

۸۶۶: ادم، ابـن ابـي ذِئـب، زهـري، عبيد اللّٰه، بن عبـد الـلّٰه، ابو هريره رضي اللّٰه عنه او زيد بن خالد جهني رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د دے دواړو بيان دے. يو بـانـډيـسـے (اعـرابي) راغـے عرض ئے اوكه، يا رسول اللّٰه، خمونږ مينځ كښې دَ كتاب اللّٰه مطابق فيصله اوكړئے. بيا د هـغـه بل فريق اودريدلو، او عرض ئے اوكه، دے ټيک وائـي، خـمـونـږ مـيـنـځ كـښې دَ كـتـاب اللّٰه مطابق فيصله اوكـړئـے. اعـرابـي عـرض اوكـه، خـما خوئ ده سـره مـزدوري كـولـه. هغه ذ دے سړي ښځے سره زنا اوكړه. خـلـقـو مـاته اووے، چه ستا په خوئ رجم دے (سنگسار كيږي به). نو، ما سل (۱۰۰) چيلئے او يوه وينزه وركړه خپل خوئے م خلاص كړلو. بيا مَا د، اَهل علمو نه تپوس اوكه، نو هغوئ راته اووے. چه ستا خوئے به سل (۱۰۰) كـورے وهـلـے شـي، او يـو كـال د پـاره بـه بې وطنه (جـلاوطـن) كيږي. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زه سـتـاسـو مـيـنـځ كـښې دَ كـتـاب اللّٰه مطابق فيصله كوم، وينزه چيلئے خو تاله واپس دركولے شي او ستا خوئ به سـل (۱۰۰) كـورے وهـلـے شـي، او يو كـال د پاره به جـلاوطـن كـيږي. او تـه اَے اُنيـسـه! صبا تـه د دے سړي ښـځـے له ورشه، هغه سنگسار كړه، نو انيس صبا له هغے له ورغے، او هغه ئے سنگساره كړله.

باب ۲۶۳: د، حـكـام د، تـرجـمـان بيان او آيا

هَلْ يَجُوزُ تَرْجُمَانٌ وَّاحِدٌ وَ قَالَ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنُ ثَابِتٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَهُ اَنْ يَّتَعَلَّمَ كِتَابَ الْيَهُوْدِ حَتّٰى كَتَبْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُتُبَهُ وَ اَقْرَاْتُهُ كُتُبَهُمْ اِذَا كَتَبُوْا اِلَيْهِ وَ قَالَ عُمَرُ وَ عِنْدَهُ عَلِيٌّ وَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَ عُثْمَانُ مَاذَا تَقُوْلُ هٰذِهٖ؟ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ حَاطِبٍ فَقُلْتُ تُخْبِرُكَ بِصَاحِبِهِمَا الَّذِيْ صَنَعَ بِهِمَا. وَ قَالَ اَبُوْ جَمْرَةَ كُنْتُ اُتَرْجِمُ بَيْنَ ابْنِ عَبَّاسٍ وَّ بَيْنَ النَّاسِ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ لَا بُدَّ لِلْحَاكِمِ مِنْ مُتَرْجِمَيْنِ.

د' يو ترجمان موجودګي جائز ده. او خارجه بن زيد بن زيد بن ثابت' د طرف نه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خط ليکلو او دَ يهودو خط به مِ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته لوستلو. کله چه به هغوئ خط ليکلو' او حضرت عمر رضي اللّٰه عنه' کوم وخت چه هغه سره حضرت علي رضي اللّٰه عنه او عبد الرحمٰن رضي اللّٰه عنه او عثمان رضي اللّٰه عنه هم وو' اووے' چه دا ښځه څه وائي' دَ عبد الرحمٰن بن حاطب بيان دے. ما اووے' چه دا ښځه تاسو ته دَ خپل هغے ملګري متعلق خبر درکوي چه هغه دے سره زنا کړے ده. او' د' جمره بيان دے' چه ما به د' ابن عباس رضي اللّٰه عنه او د خلقو مينځ کښې ترجماني کوله. او بعضے خلقو اووے' چه حاکم د پاره د' دوو (۲) ترجمانو موجودګي ضروري ده.

۸۶۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ ابْنَ حَرْبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ هِرَقْلَ اَرْسَلَ اِلَيْهِ فِيْ رَكْبٍ مِّنْ قُرَيْشٍ ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهٖ قُلْ لَهُمْ اِنِّيْ سَائِلٌ هٰذَا فَاِنْ كَذَبَنِيْ فَكَذِّبُوْهُ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ' فَقَالَ لِتَرْجُمَانِهٖ قُلْ لَهٗ اِنْ كَانَ مَا تَقُوْلُ حَقًّا فَسَيَمْلِكُ مَوْضِعَ قَدَمَيَّ هَاتَيْنِ.

۸۶۷: ابو اليمان' شعيب' زهري' عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه' عبد اللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنه' ابو سفيان بن حرب نه روايت کوي' د هغه بيان دے. هرقل زه دَ قريش خلقو سره راوغوښتلم. بيائے خپل ترجمان ته اووے. دوي ته اووايه زه د دے سړي نه څه تپوسونه کوم' که دے دروغ وائي' نو تاسولے دروغجن کړئے بيا پوره حديث ئے بيان که' هرقل ترجمان ته اووے' ده ته اووايه' څه چه ته وائے' که دا' رېښتيا وي' نو هغه (يعني محمد صلّي اللّٰه عليه سلّم) به ځما د دے دواړو پښو لاندے زمکے مالک شي.

باب ۴۶۴: مُحَاسَبَةِ الْاِمَامِ عُمَّالَهٗ.

باب ۴۶۴: د' امام د خپل عمّالو د محاسبه کولو بيان.

٨٦٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَ ابْنَ اللُّتْبِيَّةَ عَلٰى صَدَقَاتِ بَنِيْ سُلَيْمٍ فَلَمَّا جَآءَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَاسَبَهُ قَالَ هٰذَا الَّذِيْ لَكُمْ وَ هٰذِهٖ هَدِيَّةٌ اُهْدِيَتْ لِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلَّا جَلَسْتَ فِيْ بَيْتِ اَبِيْكَ وَ بَيْتِ اُمِّكَ حَتّٰى تَاْتِيَكَ هَدِيَّتُكَ اِنْ كُنْتَ صَادِقًا ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَطَبَ النَّاسَ وَ حَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنِّيْ اَسْتَعْمِلُ رِجَالًا مِّنْكُمْ عَلٰى اُمُوْرٍ مِّمَّا وَلَّانِيَ اللّٰهُ فَيَاْتِيْ اَحَدُكُمْ فَيَقُوْلُ هٰذَا لَكُمْ وَ هٰذِهٖ هَدِيَّةٌ اُهْدِيَتْ لِيْ فَهَلَّا جَلَسَ فِيْ بَيْتِ اَبِيْهِ وَ بَيْتِ اُمِّهٖ حَتّٰى تَاْتِيَهُ هَدِيَّتُهٗ اِنْ كَانَ صَادِقًا فَوَاللّٰهِ لَا يَاْخُذُ اَحَدُكُمْ مِّنْهَا شَيْئًا قَالَ هِشَامٌ بِغَيْرِ حَقِّهٖ اِلَّا جَآءَ اللّٰهَ يَحْمِلُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اَلَا فَلَاَعْرِفَنَّ مَا جَآءَ اللّٰهَ رَجُلٌ بِبَعِيْرٍ لَهٗ رُغَآءٌ اَوْ

٨٦٨: محمد، عبده، هشام بن عروه، عروه، ابو حمید ساعدي نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم، ابن اللتبیه د بني سلیم ذ صَدَقاتو عامل مقرر کړلو. کوم وخت چه هغه د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم د هغه نه حساب واخست. نو هغه اووے، دا ستاسو دے، او دا خما دے، چه ماته هدیه کښ راکړے شوے دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. ته د خپل پلار یا مور په کور کښ ولے نه کیناستے (بیا به دے کتلي وے، چه تاله هدیه راخي (که نه) که ته ریښتنے ئے. بیا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اودریدلو. او ذ خلقو مخکښ خطبه ئے ورکړله. د، اللّٰه تعالٰي حمد و ثناء ئے بیان کړه. اووے فرمائیل. اما بعد (دے نه پس) زه تاسو کښ خلق په هغے کارونو مقرر کړم، چه د هغے اللّٰه تعالٰي زه مالک جوړ کړے یم. نو تاسو کښ یو سړے راشي، اووائي. دا ستا مال دے او، دا هدیه ده، چه ماته راکړے شوے ده. نو هغه سړے د خپل پلار یا، د مور کور کښ ولے نه کیني، چه، اووینی، چه هدیه هغه ته رالیږلے شي (که نه) که هغه ریښتنے وي. په خدائے م دے قسم وي. تاسو کښ چه کوم سړے یو څیز په ناحقه اخلي (د، ناحقه لفظ هشام استعمال که) نو قیامت کښ به اللّٰه پاک ته داسے حال کښ راخي، چه هغه څیز به په هغه سور، وي. واورئے. زه به یقیناً هغه څیز اوپیژنم. چه هغه سړے به هغے څیز سره اللّٰه له راشي. اُوښ به بربړي، غوا، به بان بان کوي یا چیلئے به بیں بیں کوي. بیا حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم خپل دواړه لاسونه مبارک

بِمَقْرَةٍ لَهَا خُوَارٌ اَوْ شَاةً تَيْعَرُ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى رَاَيْتُ بَيَاضَ اِبْطَيْهِ اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ.

او چيغې كړل. حتٰى چه ما د حضور صلّى الله عليه وسلّم د ترخونو مبارك سفيدي اوليده. واورئ. آيا ما (د حق پيغام) اورسولو.

**باب ۴۲۵: بِطَانَةِ الْاِمَامِ وَ اَهْلِ مَشُوْرَتِهِ الْبِطَانَةُ الدُّخَلَاءُ.**

**باب ۴۲۵: د امام د رازدارو او مشيرانو بيان.**

بطانة: نه مراد هغه خلق دي چه دخيل دي.

**۶۸۲۹:** حَدَّثَنَا اَصْبَغُ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَعَثَ اللّٰهُ مِنْ نَّبِيٍّ وَّ لَا اسْتَخْلَفَ مِنْ خَلِيْفَةٍ اِلَّا كَانَتْ لَهُ بِطَانَتَانِ بِطَانَةٌ تَاْمُرُهُ بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَحُضُّهُ عَلَيْهِ وَ بِطَانَةٌ تَاْمُرُهُ بِالشَّرِّ وَ تَحُضُّهُ عَلَيْهِ، فَالْمَعْصُوْمُ مَنْ عَصَمَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ قَالَ سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيٰى اَخْبَرَنِيْ اِبْنُ شِهَابٍ بِهٰذَا وَ عَنْ اِبْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ وَ مُوْسٰى عَنْ اِبْنِ شِهَابٍ مِثْلَهُ، وَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَوْلَهُ وَ قَالَ الْاَوْزَاعِيُّ وَ مُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَّامٍ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ ابْنُ اَبِيْ حُسَيْنٍ وَّ سَعِيْدُ بْنُ زِيَادَةٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَوْلَهُ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِيْ جَعْفَرٍ حَدَّثَنِيْ صَفْوَانُ عَنْ اَبِيْ

**۶۸۲۹:** اصبغ، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، ابو سلمه، ابو سعيد خدري رضي الله عنه، نبي صلّي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّه ځوک نبي نه دے ليږلے، او نه ئے ځوک خليفه جوړ كړے دے، خو، داچه دَ هغه به دوه (۲) مشيران وو. يو به د، ښے خبرے حكم وركولو، او هغے ته به ئے تيارولو. او دويم مشير (مشوره وركونكي) به د، بدے خبرے حكم وركولو، او د هغے طرف ته به ئے رغبت وركولو نو معصوم (د ګناه نه پاک) هغه دے چه هغه اللّه تعالٰي بچ كړي. او سليمان په واسطه د، يحيٰي، ابن شهاب دا حديث روايت كړے دے او ابن ابي عتيق او موسٰي نه په واسطه د، ابن شهاب دا شان منقول دي. او شعيب په واسطه د، زهري، ابو سلمه، حضرت ابو سعيد نه دَ هغه قول نقل كړے دے، او د، اوزاعي او معاويه بن سلام بيان دے، چه مونږ ته زهري په واسطه د، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي اللّه عنه، د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي. او د، ابن حسين او سعيد بن زياد بيان دے، هغه د، ابو سلمه نه هغه د، ابو سعيد نه دَ هغه قول نقل كه، او د عبد اللّه بن جعفر بيان دے

سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

هغه اوورې، مـا د حضـور صـلّي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلي دي.

**بـاب ۴۲۶: كَيْفَ يُبَايِعُ الْاِمَامُ النَّاسَ.**

**باب ۴۲۶: خلق دې امـام نـه څنگه بيعت كوي.**

۸۷۰: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَادَةُ ابْنُ الْوَلِيْدِ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ قَالَ بَايَعْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ فِي الْمَنْشَطِ وَالْمَكْرَهِ وَ اَنْ لَّا نُنَازِعَ الْاَمْرَ اَهْلَهٗ، وَ اَنْ نَّقُوْمَ اَوْ نَقُوْلَ بِالْحَقِّ حَيْثُمَا كُنَّا لَا نَخَافُ فِي اللّٰهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ.

۸۷۰: اسماعيل، مالک، يحيٰي بن سعيد، عباده بن وليد، وليد، حضرت عباده بن صامت رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي د هغه بيان دې، مونږ په دې خبره د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه بيعت كړې وو، چه مونږ به آورو. او هر حال كښې بـه خوښي او ناخوښي كښې اطاعت كوو. او دا چه حاكمانو سره به د حكومت (اخستو) د پاره نه جنګيږو او دا چه په حق به قائم اوسو. يا، دا، ئې اووې چه مونږ به حقه خبره كوو، هر ځائې چه يو. او د، اللّٰه معامله كښې به د چا ملامت كونكي دَ ملامتيا پرواه نه كوو.

۸۷۱: حَدَّثَنَا عَمْرُوْ بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ عَنْ اَنَسٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَدَاةٍ بَارِدَةٍ وَّالْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ يَحْفِرُوْنَ الْخَنْدَقَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّ الْخَيْرَ خَيْرُ الْاٰخِرَةِ فَاغْفِرْ لِلْاَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ فَاَجَابُوْا ۔

نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدًا
عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا اَبَدًا

۸۷۱: عمرو بن علي، خالد بن حارث، حميد، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دې، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د يخنئ په موسم كښې بهر اووتلو. هغه وخت مهاجرينو او انصارو خندق كنولو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. اې اللّٰه، ښيګړه خو، د، اخرت ده (يعني خير او نيكي خو، د، اخرت ده) نو انصار او مهاجرين اوبښې. هغې خلقو جواب وركه مونږ هغه خلق وو، چه د محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه مو په جهاد هميشه د پاره بيعت كړې دې، څو پورې چه مونږ ژوندي يو.

۸۷۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ

۸۷۲: عبد اللّٰه بن يوسف، مالک، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه

دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كُنَّا إِذَا بَايَعْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ يَقُولُ لَنَا فِيمَا اسْتَطَعْتَ.

نه روايت كوي د هغه بيان دے. كوم وخت چه به مونږ د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه په اورېدو او اَطاعت كولو بيعت كولو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به دا هم فرمائيل، چه څومره تاسو نه كېدے شي.

٨٧٣: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ دِينَارٍ قَالَ شَهِدْتُ ابْنَ عُمَرَ حَيْثُ اجْتَمَعَ النَّاسُ عَلٰى عَبْدِ الْمَلِكِ قَالَ كَتَبَ إِنِّي أُقِرُّ بِالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ لِعَبْدِ اللّٰهِ عَبْدِ الْمَلِكِ أَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ عَلٰى سُنَّةِ اللّٰهِ وَ سُنَّةِ رَسُولِهِ مَا اسْتَطَعْتُ وَ إِنَّ بَنِيَّ قَدْ أَقَرُّوا بِمِثْلِ ذٰلِكَ.

٨٧٣: مسدد، يحيٰي، سفيان، عبد اللّٰه بن دينار نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. زه هغه وخت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه سره موجود ووم، چه خلق عبد الملک سره راغونډ شوي وو. ابن عمر رضي اللّٰه عنه هغه ته ليكلي اوليږل. چه زه د، اللّٰه بنده امير المؤمنين عبد الملک د پاره، چه څومره كېدے شي، دَ اللّٰه او دَ هغه د، رسول د سنت مطابق د هغه د، خبرے د، اورېدو او اطاعت كولو اقرار كوم. او ځما هلكانو هم د دے اقرار كړے دے.

٨٧٤: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا سَيَّارٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ فَلَقَّنَنِي فِيمَا اسْتَطَعْتُ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

٨٧٤: يعقوب بن ابراهيم، هشيم، سيّار، شعبي. جرير بن عبد اللّٰه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د، آورېدو او په اطاعت كولو او د هر مسلمان په خير خواهي كولو بيعت اوكه. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته تلقين اوكه، چه دا هم اووايه، چه څومره ماته كېدے شي، (هر سړے په خپل وس بَر، دے).

٨٧٥: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ دِينَارٍ قَالَ لَمَّا بَايَعَ النَّاسُ عَبْدَ الْمَلِكِ كَتَبَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عُمَرَ إِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ عَبْدِ

٨٧٥: عمرو بن علي، يحيٰي، سفيان، عبد اللّٰه بن دينار نه روايت كوي. كوم وخت چه خلقو د عبد الملک بيعت اوكه. نو عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه ورته ليكلي اوليږل، د، اللّٰه بنده عبد الملک امير المؤمنين په نوم. زه د، اللّٰه د بنده

الْمَلِكِ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنِّيْ اُقِرُّ بِالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ لِعَبْدِ اللّٰهِ عَبْدِ الْمَلِكِ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى سُنَّةِ اللّٰهِ وَسُنَّةِ رَسُوْلِهٖ فِيْمَا اسْتَطَعْتُ وَاِنَّ بَنِيَّ قَدْ اَقَرُّوْا بِذٰلِكَ.

امير المؤمنين عبد الملک د حکم آوريدو او اطاعت کولو د، الله او هغه د، رسول د سنت مطابق اقرار کوم، څومره چه مانه کيدے شي، او خما خامنو هم د دے اقرار کړے دے.

۶۷۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيْدَ قَالَ قُلْتُ لِسَلَمَةَ عَلٰى اَيِّ شَيْءٍ بَايَعْتُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَالَ عَلَى الْمَوْتِ.

۶۷۸: عبد الله بن مسلمه، حاتم، يزيد نه روايت کوي. د هغه بيان دے. ما د حضرت سلمه رضي الله عنه نه تپوس اوکه، تا د حضور صلى الله عليه وسلم نه د حديبيه په ورځ دَ څه ځيز بيعت کړے وو، هغه اووے، په مرګ (يعني چه د مرګه پورے به د حق په لار کښ جنګيږي).

۶۷۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَآءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَنَّ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَخْبَرَهُ اَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّ الرَّهْطَ الَّذِيْنَ وَلَّاهُمْ عُمَرُ اجْتَمَعُوْا فَتَشَاوَرُوْا قَالَ لَهُمْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ لَسْتُ بِالَّذِيْ اُنَافِسُكُمْ عَلٰى هٰذَا الْاَمْرِ وَلٰكِنَّكُمْ اِنْ شِئْتُمْ اخْتَرْتُ لَكُمْ مِنْكُمْ فَجَعَلُوْا ذٰلِكَ اِلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ فَلَمَّا وَلَّوْا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ اَمْرَهُمْ فَقَالَ النَّاسُ عَلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَتّٰى مَا اَرٰى اَحَدًا مِنَ النَّاسِ يَتْبَعُ

۶۷۷: عبد الله بن محمد بن اسماء، جويريه، مالک، زهري، حميد بن عبد الرحمن، مسور بن مخرمه نه روايت کوي، هغه خلق چه حضرت عمر رضي الله عنه ورته د، خلافت اختيار ورکړے وو، را جمع شو، او مشوره ئے کوله. دے خلقو ته عبد الرحمن اووے، دے معامله کښ زه تاسو سره جګړه کونکي نه يم. ليکن که تاسو غواړئ، نو تاسو نه به يو کس ستاسو د پاره منتخب کړم، نو هغوئ دا معامله په عبد الرحمن پيښوده، څه وخت چه هغے خلقو عبد الرحمن ته د دے امر اختيار ورکړلو، نو ټول خلق عبد الرحمن پسے شو، تر دے چه هغے باقي خلقو کښ چاسره يو سړے هم په نظر نه راتلو. خلقو عبد الرحمن سره دغے شپو کښ مشوره کوله. حتّي چه کوم وخت هغه شپه راغله، نو د هغے په صبا مونږ د حضرت عثمان رضي الله عنه په لاس بيعت اوکه. دَ مسور بيان دے. لږه شپه تيريد ه بس عبد

أُولٰٓئِكَ الرَّهْطَ وَ لَا يَطَأُ عَقِبَهُ وَ مَالَ النَّاسُ عَلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ يُشَاوِرُ وْنَهُ تِلْكَ اللَّيَالِيْ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ اللَّيْلَةُ الَّتِيْ أَصْبَحْنَا مِنْهَا فَبَايَعْنَا عُثْمَانَ قَالَ الْمِسْوَرُ طَرَقَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بَعْدَ هَجْعٍ مِّنَ اللَّيْلِ فَضَرَبَ الْبَابَ حَتّٰى اسْتَيْقَظْتُ، فَقَالَ أَرَاكَ نَائِمًا فَوَاللّٰهِ مَا اكْتَحَلْتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ بِكَبِيْرِ نَوْمٍ انْطَلِقْ فَادْعُ الزُّبَيْرَ وَ سَعْدًا فَدَعَوْتُهُمَا لَهُ فَشَاوَرَهُمَا ثُمَّ دَعَانِيْ فَقَالَ ادْعُ لِيْ عَلِيًّا فَدَعَوْتُهُ فَنَاجَاهُ حَتّٰى ابْهَارَّ اللَّيْلُ، ثُمَّ قَامَ عَلِيٌّ مِّنْ عِنْدِهٖ وَ هُوَ عَلٰى طَمْعٍ وَ قَدْ كَانَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ يَخْشٰى مِنْ عَلِيٍّ شَيْئًا ثُمَّ قَالَ ادْعُ لِيْ عُثْمَانَ فَدَعَوْتُهُ فَنَاجَاهُ حَتّٰى فَرَّقَ بَيْنَهُمَا الْمُؤَذِّنُ بِالصُّبْحِ، فَلَمَّا صَلّٰى لِلنَّاسِ الصُّبْحَ وَاجْتَمَعَ أُولٰٓئِكَ الرَّهْطُ عِنْدَ الْمِنْبَرِ فَأَرْسَلَ إِلٰى مَنْ كَانَ حَاضِرًا مِّنَ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْأَنْصَارِ، وَ أَرْسَلَ إِلٰى أُمَرَآءِ الْأَجْنَادِ وَ كَانُوْا وَافَوْا تِلْكَ الْحَجَّةَ مَعَ عُمَرَ فَلَمَّا اجْتَمَعُوْا تَشَهَّدَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ يَا عَلِيُّ إِنِّيْ قَدْ نَظَرْتُ فِيْ أَمْرِ النَّاسِ فَلَمْ أَرَهُمْ يَعْدِلُوْنَ بِعُثْمَانَ فَلَا تَجْعَلَنَّ عَلٰى نَفْسِكَ سَبِيْلًا فَقَالَ أُبَايِعُكَ عَلٰى

الرحمٰن څما دروازه دومره زور سره اوټکوله، چه څما ستر ګے اوغړیدے. هغه اووے، زه تا اوده وینم، حالانکه په خدائے مِ دے قسم وي، دے شپو کښ څما ستر ګے قدرے هم نه دي ورغلے (یعني اُوده شوے نه یم) ته څه او زبیرؓ او سعدؓ ماله راوله. ما هغه دواړه راوستل. هغے دواړو سره ئے مشوره اوکړله بیا څه راُوغښتلم. اوئیلے. حضرت علي رضي الله عنه راوغواړه، نو ما هغه هم راوغښتلو. هغه سره ئے د شپے ډیر وخته پورے غوږ کښ خبرے کولے. بیا حضرت علي رضي الله عنه دَ هغه نه پاسیدلو، د هغه زړه کښ د خلافت خواهش وو. او عبد الرحمٰن ته دَ حضرت علي رضي الله عنه دَ خلافت نه د، امت د اختلاف اندیښنه وه. بیا عبد الرحمٰن اووے، حضرت عثمان رضي الله عنه راوغواړئے. نو هغه سره ئے غوږ کښ خبرے کولے، حتي چه د سحر اذان هغوئ دواړه جدا کړل. چه خلقو ته ئے د سحر مونځ ورکړلو. او دا خلق منبر سره راجمع شو، نو مهاجرینو او انصارو کښ چه کوم خلق موجود وو، هغوئ ئے راوغستل او د لښکر سرداران ئے راوغستل. دا ټول خلق هغے حج کښ حضرت عمرؓ سره شریک شوي وو. کوم وخت چه ټول خلق راجمع شو. نو حضرت عبد الرحمٰن خطبه اولوسته بیائے اووے. امابعد (دے نه پس) اَے عَلي رضي الله عنه، ما دَ خلقو په حالت نظر اوکه، نو، اوم لیدل، چه هغوئ دَ عثمان رضي الله عنه برابر هیڅوک نه ګڼړي، په دے وجه ته خپل زړه کښ څما دَ طرف نه څه خیال مه راوله، نو حضرت علي رضي الله عنه حضرت عثمان رضي الله عنه ته اووے، چه زه

سُنَّةِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَالْخَلِيْفَتَيْنِ مِنْ بَعْدِهٖ فَبَايَعَهٗ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَ بَايَعَهُ النَّاسُ الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ وَ اُمَرَآءُ الْاَجْنَادِ وَالْمُسْلِمُوْنَ.

اللّٰه او د هغه رسول او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه پس د' دواړو خلفاؤ په سنت ستا په لاس بيعت کوم. عبد الرحمٰن هم بيعت اوکه. او ټولو خلقو مهاجرينو' انصارو' د لښکر سردارانو' او مسلمانانو بيعت اوکه.

بَابُ ۴۶۷: مَنْ بَايَعَ مَرَّتَيْنِ.

باب ۴۶۷: دَ هغې سړي بيان چه دوه (۲) ځله بيعت اوکړي.

۸۷۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ بَايَعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَقَالَ لِيْ يَا سَلَمَةُ اَلَا تُبَايِعُ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ بَايَعْتُ فِي الْاَوَّلِ قَالَ وَ فِي الثَّانِيْ.

۸۷۸: ابو عاصم' يزيد بن ابي عبيد' سلمه نه روايت کوي. د هغه بيان دے' مونږ دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د' اونې لاندې بيعت اوکه' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائيل. اے سلمه (رضي اللّٰه عنها) ته بيعت نه کوے ما عرض اوکه' يا رسول اللّٰه' ما خو' د مخکښې نه بيعت کړے دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. بيا په دويم وار هم بيعت اوکه.

بَابُ ۴۶۸: بَيْعَةِ الْاَعْرَابِ.

باب ۴۶۸: د' اعرابو د بيعت بيان (اعراب: بانډيسيان).

۸۷۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ اَعْرَابِيًّا بَايَعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْاِسْلَامِ فَاَصَابَهٗ وَعْكٌ فَقَالَ اَقِلْنِيْ بَيْعَتِيْ فَاَبٰى ثُمَّ جَآءَهٗ فَقَالَ اَقِلْنِيْ بَيْعَتِيْ فَاَبٰى' فَخَرَجَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمَدِيْنَةُ كَالْكِيْرِ تَنْفِيْ خَبَثَهَا وَ يَنْصَعُ طِيْبُهَا.

۸۷۹: عبد اللّٰه بن مسلمه' مالک' محمد بن منکدر' حضرت جابر بن عبد اللّٰه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے' يو اعرابي (بانډيسي) د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه په اسلام بيعت اوکه. بيا هغه سختې تبې اونيولو' نو هغه اووے' ځما بيعت واپس کړئے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته انکار اوکړلو' بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له راغے' اوونيلے' ځما بيعت واپس کړئے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته انکار اوکړلو. بيا هغه بهرته اووتلو' نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' مدينه د' بهټۍ په شان ده' چه ګندګي لرے کوي' او پاکيزګي پاتے کوي.

باب ۴٦٩: بَيْعَةِ الصَّغِيرِ.

۸۸۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنِ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ هُوَ ابْنُ اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عَقِيْلٍ زَهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللهِ ابْنِ هِشَامٍ وَ كَانَ قَدْ اَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَهَبَتْ بِهٖ اُمُّهُ زَيْنَبُ اِبْنَةُ حُمَيْدٍ اِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بَايِعْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ صَغِيْرٌ، فَمَسَحَ رَاْسَهٗ وَ دَعَا لَهٗ، وَ كَانَ يُضَحِّيْ بِالشَّاةِ الْوَاحِدَةِ عَنْ جَمِيْعِ اَهْلِهٖ.

باب ۴٦٩: د، نابالغ د بيعت بيان.

۸۸۰: علي بن عبد اللّٰه بن يزيد، سعيد بن ابي ايوب، ابو عقيل، زهره بن معبد ذ خپل نيکه (دادا) عبد اللّٰه بن هشام نه روايت کوي. او هغه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زمانه موندلې وه. او ذ هغه مور زينب بنت حميد، هغه د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر که. او عرض ئې اوکه. اې د، اللّٰه رسول، ده نه بيعت واخلې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. دے لا اوس وړوکے دے. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغه په سر لاس مبارک رابنکلو. هغه ته ئې دُعا اوکړله. او ذ خپل ټول کور والو ذ طرف نه به ئې يوه چيلۍ قرباني کوله.

باب ۴۷۰: مَنْ بَايَعَ ثُمَّ اسْتَقَالَ الْبَيْعَةَ.

۸۸۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ ابْنِ عَبْدِ اللهِ اَنَّ اَعْرَابِيًّا بَايَعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْاِسْلَامِ فَاَصَابَ الْاَعْرَابِيَّ وَعْكٌ بِالْمَدِيْنَةِ فَاَتَى الْاَعْرَابِيُّ اِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ اَقِلْنِيْ بَيْعَتِيْ فَاَبٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ جَآءَهٗ

باب ۴۷۰: ذ بيعت کولو نه پس ذ هغې د، واپسۍ ذ خواهش بيان.

۸۸۱: عبد اللّٰه بن يوسف، مالک، محمد بن منکدر، حضرت جابر بن عبد اللّٰه نه روايت کوي. يو اعرابي (بانډيسي) د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه په اسلام بيعت اوکه. نو هغه سړے په مدينه کښې تبې اونيولو. هغه د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئې اوکه، يا رسولُ اللّٰه، خما بيعت ماته واپس کړئې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته انکار اوکړو. بيا ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. اوويلې. خما بيعت ماته واپس کړلې. حضور

فَقَالَ اَقِلْنِیْ بَیْعَتِیْ فَاَبٰی فَخَرَجَ الْاَعْرَابِیُّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ: اِنَّمَا الْمَدِیْنَةُ کَالْکِیْرِ تَنْفِیْ خَبَثَهَا وَ یَنْصَعُ طِیْبُهَا.

صلّي اللّٰه علیه وسلّم ورته انکار اوکړلو. بیا هغه بانډیسي بهرته اووتلو، نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. مدینه د بهټي پشان ده چه خباثت لرې کوي، او پاکیزګي پریږدي.

**باب ۱۷۴: مَنْ بَایَعَ رَجُلًا لَا یُبَایِعُهٗ اِلَّا لِلدُّنْیَا.**

**باب ۱۷۴: ذ هغې سړي د بیعت بیان چه هغه صرف دُنیا د پاره بیعت اوکه.**

۸۸۲: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِیْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَا یُکَلِّمُهُمُ اللّٰهُ یَوْمَ الْقِیَامَةِ وَ لَا یُزَکِّیْهِمْ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ: رَجُلٌ عَلٰی فَضْلِ مَاءٍ بِالطَّرِیْقِ یَمْنَعُ مِنْهُ ابْنَ السَّبِیْلِ وَ رَجُلٌ بَایَعَ اِمَامًا لَا یُبَایِعُهٗ اِلَّا لِدُنْیَاهُ اِنْ اَعْطَاهُ مَا یُرِیْدُ وَفٰی لَهٗ وَ اِلَّا لَمْ یَفِ لَهٗ وَ رَجُلٌ یُبَایِعُ رَجُلًا بِسِلْعَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ فَحَلَفَ بِاللّٰهِ لَقَدْ اُعْطِیَ بِهَا کَذَا وَ کَذَا فَصَدَّقَهٗ فَاَخَذَهَا وَ لَمْ یُعْطَ بِهَا.

۸۸۲: عبدان، ابو حمزه، اعمش، ابو صالح، حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. د هغه بیان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل درې (۳) سړي داسې دي، چه د قیامت په ورځ به ورسره اللّٰه تعالٰي خبرې اونه کړي او نه به هغوئ پاک کړي، او هغوئ د پاره دردناک عذاب دې. (۱) یو هغه سړې چه هغه سره لار کښې د ضرورت نه زیاتې اُوبه وي، او مسافرو له ئې ورنه کړي. (۲) دویم هغه سړې چه هغه د، امام نه صرف د، دنیا په خاطر بیعت اوکه. که امام هغه ته ذ هغه د مقصد مطابق ورکوي نو، هغه بیعت پوره کوي، کنې نه ئې پوره کوي. (۳) او دریم هغه سړې، چه د، مازیګر نه پس څه سامان په خدائې قسم خوړلو سره، خرڅ کړي، چه دومره دومره قیمت ئې ماله راکولو. خریدار هغه رښتیا ګڼړلو سره واخستلو، حالانکه هغه ته هغه هومره قیمت نه شو ورکولې.

**باب ۱۷۲: بَیْعَةِ النِّسَاءِ رَوَاهُ اِبْنُ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۱۷۲: ذ زنانهٔ د بیعت بیان، دا ابن عباسؓ ذ نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کړې دې.**

۸۸۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْیَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَیْبٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ وَ

۸۸۳: اُبو الیمان، شعیب، زهري (دویم سند) لیث، یونس، ابن شهاب، ابو ادریس خولاني، عباده بن

قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ اِدْرِيْسَ الْخَوْلَانِيُّ اَنَّهُ سَمِعَ عُبَادَةَ ابْنَ الصَّامِتِ يَقُوْلُ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ فِيْ مَجْلِسٍ تُبَايِعُوْنِيْ عَلٰى اَنْ لَّا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَّ لَا تَسْرِقُوا وَ لَا تَزْنُوا وَ لَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ وَ لَا تَأْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهُ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَ اَرْجُلِكُمْ وَ لَا تَعْصُوْا فِيْ مَعْرُوْفٍ فَمَنْ وَّفٰى مِنْكُمْ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ وَ مَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوْقِبَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ وَ مَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَسَتَرَهُ اللّٰهُ فَاَمْرُهٗ اِلَى اللّٰهِ اِنْ شَآءَ عَاقَبَهٗ وَ اِنْ شَآءَ عَفَا عَنْهُ فَبَايَعْنَاهُ عَلٰى ذٰلِكَ.

صَامت رَضي الله عنه روايت كوي. هغه نه ئے واوريدل. مونږ خلقو ته رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. او هغه وخت مونږ خلق يو مجلس کښ وو (حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل) مانه په دے خبره بيعت اوکړئ، چه الله سره به څوک شريک نه جوړوئ. غلا به نه کوئ، زنا، به نه کوئ، او نه به خپل اولاد قتلوئ، او نه به خپل مخکښ څه بهتان (تهمت) پورته کوئ، او نه به شرعي حکم کښ څما نافرماني کوئ. نو کوم سړے چه تاسو کښ دا (بيعت) پوره کړي، ذ هغه اجر د، الله په ذمه دے او کوم سړے چه دے کښ د، يو فعل مرتکب شي. او دنيا کښ هغه ته سزا ورکړے شوه، نو هغه ورله کفاره شوله. او څوک چه دے کښ ذ څه مرتکب شو، او الله هغه پټ کړلو (پرده ئے اوساتله) نو د هغه معامله الله ته حواله ده، که غواړي، سزا، به ورکړي، که غواړي، معاف به ئے کړي. په دے مونږ د حضور صلّي الله عليه وسلّم نه بيعت اوکه.

۸۸۴: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَايِعُ النِّسَآءَ بِالْكَلَامِ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ لَا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا، قَالَتْ وَ مَا مَسَّتْ يَدُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ امْرَاَةٍ اِلَّا امْرَاَةً يَمْلِكُهَا.

۸۸۴: محمود، عبدالرزاق، معمر، زهري، عروه، بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت کوي. د هغے بيان دے حضور صلّي الله عليه وسلّم به د زنانه ؤ نه د دے ايت د، تلاوت په ذريعه بيعت اخستلو، چه: لا يُشْرِكن بالله شيئًا. (يعني هيڅوک به الله سره شريک نه جوړي) د بي بي عائشے بيان دے، د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم لاس به، سوا، د، مملوکه (وينزے) نه د هيڅ ښځے لاس نه مَس کولو.

۸۸۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ

۸۸۵: مسدد، عبد الوارث، ايوب، حفصه، اُم

حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حَفْصَةَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ بَايَعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَ عَلَيَّ اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَ نَهَانَا عَنِ النِّيَاحَةِ فَقَبَضَتْ اِمْرَاَةٌ مِّنَّا يَدَهَا فَقَالَتْ: فُلَانَةُ اَسْعَدَتْنِيْ وَ اَنَا اُرِيْدُ اَنْ اَجْزِيَهَا فَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا فَذَهَبَتْ ثُمَّ رَجَعَتْ فَمَا وَفَتِ اِمْرَاَةٌ اِلَّا اُمُّ سُلَيْمٍ وَ اُمُّ الْعَلَاءِ وَابْنَةُ اَبِيْ سَبْرَةَ امْرَاَةُ مُعَاذٍ اَوْ اِبْنَةُ اَبِيْ سَبْرَةَ وَامْرَاَةُ مُعَاذٍ.

عطیهٔ نه روایت کوي د هغې بیان دے. مونږ د نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه بیعت اوکه. نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم دا' آیت اوسعلو: چه هیڅوک به اللّٰه سره شریک نه جوړوی" او مونږ' لې د' ساندو' ولیلو (نوحه کرنې) نه منع کړلو مونږ کښې یوې ښځې خپل لاس رانښکلو. او' ونیلے' چه فلانۍ ښځې ساندو کولو کښې خما مدد کړے وو. او زه غواړم' چه د هغې بدله ورکړم' نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم هیڅ اونه فرمائیل. نو هغه لاړه. بیا واپس راغله. اُم سلیم' اُم علاء او د' ابو سبره د' لور' د معاذ' ښځې نه سوا' هیچا دا (بیعت) پوره نه که (ابنة ابي سبره امراة معاذ: ئې اووے' یا ابنة ابي سبرة: او: امراة معاذ' ئې اووے.

بَابُ ۴۷۳: مَنْ نَّكَثَ بَيْعَةً وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى' اِنَّ الَّذِيْنَ يُبَايِعُوْنَكَ اِنَّمَا يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ فَمَنْ نَّكَثَ فَاِنَّمَا يَنْكُثُ عَلٰى نَفْسِهٖ وَ مَنْ اَوْفٰى بِمَا عٰهَدَ عَلَيْهُ اللّٰهَ فَسَيُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا.

باب ۴۷۳: دَ هغه سړي بیان' چه بیعت ماتت کړي' او د' اللّٰه تعالٰي قول: بیشکه کوم خلق چه تاته بیعت کوي د اللّٰه لاس دَ هغوئ د' لاس د پاسه دے. چاچه دا مات کړلو' نو خپل ځان باندے ماتوي. او چاچه دا څیز (یعني بیعت) پوره کړلو' چه دَ هغے ئې اللّٰه سره وعده کړے ده' نو عنقریب هغه ته به اللّٰه تعالٰي لوئې اجر ورکړي.

۶۸۸۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ سَمِعْتُ جَابِرًا فَقَالَ جَاءَ اَعْرَابِيٌّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَايِعْنِيْ عَلَى الْاِسْلَامِ فَبَايَعَهُ عَلَى الْاِسْلَامِ ثُمَّ جَاءَ الْغَدَ مَحْمُوْمًا

۶۸۸۲: ابو نعیم' سفیان' محمد بن منکدر نه روایت کوي. هغه اووے. ما دَ جابر رضي اللّٰه عنه نه واوریدل' یو' اعرابي دَ نبي علیه السّلام خدمت کښې حاضر شو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل' ماته په اسلام بیعت اوکړه. هغه په اسلام بیعت اوکه. په دوېمه ورځ هغه تبې نیولے راغے. او' ونیلے' خما بیعت واپس کړئے. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ترې انکار

فَقَالَ اَقِلْنِيْ فَاَبٰى فَلَمَّا وَلّٰى قَالَ الْمَدِيْنَةُ كَالْكِيْرِ تَنْفِي خَبَثَهَا وَيَنْصَعُ طِيْبُهَا.

## بَاب ۴۷۴: اَلْاِسْتِخْلَافِ.

۸۸۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَحْيٰى اَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنَ بِلَالٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ سَمِعْتُ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَارَاسَاهُ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكِ لَوْ كَانَ وَاَنَا حَيٌّ فَاَسْتَغْفِرُ لَكِ وَاَدْعُوْا لَكِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ وَاثُكْلِيَاهُ وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَظُنُّكَ تُحِبُّ مَوْتِيْ، وَلَوْ كَانَ ذَاكَ لَظَلِلْتَ اٰخِرَ يَوْمِكَ مُعَرِّسًا بِبَعْضِ اَزْوَاجِكَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلْ اَنَا وَ ارَاسَاهُ لَقَدْ هَمَمْتُ اَوْ اَرَدْتُّ اَنْ اُرْسِلَ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ وَّابْنَتِهِ فَاَعْهَدَ اَنْ يَّقُوْلَ الْقَائِلُوْنَ اَوْ يَتَمَنَّى الْمُتَمَنُّوْنَ ثُمَّ قُلْتُ يَاْبَى اللّٰهُ وَ يَدْفَعُ الْمُؤْمِنُوْنَ اَوْ يَدْفَعُ اللّٰهُ وَ يَاْبَى الْمُؤْمِنُوْنَ.

۸۸۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قِيْلَ لِعُمَرَ اَلَا تَسْتَخْلِفُ

اوكړلو. كوم وخت چه هغه لاړ، نو پيغمبر عليه السّلام اوفرمائيل. مدينه د بهټۍ په شان ده، چه ګندګي لرے كوي، او پاكيزګي پاتے كوي.

## باب ۴۷۴: د، خليفه مقررولو بيان.

۸۸۷: يحيٰي بن يحيٰي، سليمان، سليمان بن بلال، يحيٰي بن سعيد، قاسم بن محمد نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه د سر، د سخت درد په وجه اووے. هائے سر. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. كه ته مړه شے، او زه ژوندے يم، نو زه به تا د پاره ببنښه غواړم. او ستا د پاره به دُعا كوم. بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه عرض اوكه. خما مور دے ما وركه كړي. قسم په خدائے. خما خيال دے، چه تاسوٌ خما د مرګ خواهش لرئے. اَو كه داسے اوشو، نو تاسوٌ به ماښام ته ضرور خپلو بعضے بيبيانو سره عيش كښ مشغول شئے نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل، نه، بلكه زه هائے سر، وايم، ما قصد اوكه، يا اراده مِ اوكړه، چه ابوبكر رضي اللّٰه عنه او دَ هغه لور، غواړم، چه زه خليفه مقرر كړم، چه څوک ويونكے يا خواهش كونكے خواهش اونه كړي. بيا ما، اووے، چه اللّٰه به انكار اوكړي. او مؤمنان به دفع كړي. يا اللّٰه به دفع كړي، مومنان به انكار اوكړي.

۸۸۸: محمد بن يوسف، هشام بن عروه، عروه، عبد اللّٰه بن عمر نه روايت كوي. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه ته او، وئيلے شو، چه تاسو خپل قائم مقام ولے نه مقرر وئے، هغه اووے، كه زه خپل قائم مقام مقرر كړم، نو خما نه مخكښ ابوبكر، چه مانه بهتر، وو، خليفه جوړ

فَقَالَ اِنْ اَسْتَخْلِفْ فَقَدِ اسْتَخْلَفَ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنِّيْ اَبُوْبَكْرٍ وَ اِنْ اَتْرُكْ فَقَدْ تَرَكَ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَثْنَوْا عَلَيْهِ فَقَالَ رَاغِبٌ رَاهِبٌ وَّدِدْتُ اَنِّيْ نَجَوْتُ مِنْهَا كِفَافًا لَّالِيْ وَلَا عَلَيَّ لَا اَتَحَمَّلُهَا حَيًّا وَّ مَيِّتًا.

كړے دے. او كه زه پريږدم، نو خما نه بهتر، يعني رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خليفه نه دے جوړ كړے خلقو د هغه تعريف اوكه، نو حضرت عمر رضي الله عنه اووے. خلق دَ خلافت خواهش كونكي او د هغے نه ويريدونكي دي، زه خوښوم چه زه دے پوره طور سره خلاصے بياموم، نه ماته د دے نه څه فائده وي، او نه څه نقصان وي، زه خو، نه ژوند كښ او نه د مرګ نه پس د دے ذمه واري اخلم.[1]

[1]: كه چرے حضرت عمر رضي الله عنه د خپل طرفنه څوک خليفه كړے وے نو ددے مطلب به دا وو چه په ژوند كښے خو ددے ذمه وارني د هغوئ په سر هسے هم وے، د مرګ نه پس به هم د هغے نه بچ شوے نه وو. په دے وجه هغوئ اووے چه زه به د خپل طرفنه څوک خليفه نهٔ منتخب كوم او په دے سلسله كښے به د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د سنت پيروي كوم څكه چه هغوئ دَ خلافت مسئله د مسلمانانو په صوابديد باندے پريښے وه. صرف د خپل طرفنه ترجيح د پاره ئے څه اشارے كړے وے.

۸۸۹: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ سَمِعَ خُطْبَةَ عُمَرَ الْاٰخِرَةَ حِيْنَ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَ ذٰلِكَ الْغَدُ مِنْ يَّوْمٍ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَشَهَّدَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ صَامِتٌ لَّا يَتَكَلَّمُ قَالَ كُنْتُ اَرْجُوْا اَنْ يَّعِيْشَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى يَدْبُرَنَا يُرِيْدُ بِذٰلِكَ اَنْ يَّكُوْنَ اٰخِرَهُمْ فَاِنْ يَّكُ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَاتَ فَاِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَدْ جَعَلَ بَيْنَ اَظْهُرِكُمْ نُوْرًا تَهْتَدُوْنَ بِهٖ هَدَى اللّٰهُ مُحَمَّدًا صَلَّى

۸۸۹: ابراهيم بن موسٰي، هشام، معمر، زهري، حضرت انس بن مالکؓ نه روايت كوي. هغه دَ حضرت عمر رضي الله عنه دوئمه خطبه واوريده، كوم وخت چه هغه په منبر كيناست. او نبي صلّي الله عليه وسلّم د، وفات دويمه ورځ وه. هغه خطبه اولوسته او حضرت ابوبكر رضي الله عنه خاموش وو هيڅ ئے نه وئيلے. هغه اووے، ما اُميد كولو. چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم به ژوندے وي، تر دے چه خمونږ نه پس به وفات شي دے نه دَ هغه مقصد دا، وو چه حضور صلّي الله عليه وسلّم به دَ ټولو نه ورستو وفات كيږي. بيا كه محمد صلّي الله عليه وسلّم وفات شي، نو الله تعالٰي ستاسو مخكښ نور پيدا كړے دے، چه دَ هغے په ذريعه تاسو هدايت بيامومئے، چه هغے سره الله تعالٰي حضرت محمد صلّي الله عليه وسلّم ته هدايت اوكه، او بيشكه د، رسول

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَ اَنَّ اَبَابَكْرٍ صَاحِبُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَانِيَ اثْنَيْنِ فَاِنَّهُ اَوْلَى الْمُسْلِمِيْنَ بِاُمُوْرِكُمْ فَقُوْمُوْا فَبَايِعُوْهُ وَكَانَتْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ قَدْ بَايَعُوْهُ قَبْلَ ذٰلِكَ فِيْ سَقِيْفَةِ بَنِيْ سَاعِدَةَ وَ كَانَتْ بَيْعَةُ الْعَآمَّةِ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ سَمِعْتُ عُمَرَ يَقُوْلُ لِاَبِيْ بَكْرٍ يَّوْمَئِذٍ اَصْعَدِ الْمِنْبَرَ، فَلَمْ يَزَلْ بِهٖ حَتّٰى صَعِدَ الْمِنْبَرَ فَبَايَعَهُ النَّاسُ عَآمَّةً.

اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم صحابي حضرت ابوبکر رضي اللّٰه علیه چه غار کښې دویم ملګرے وو، هغه مسلمانانو کښې ستاسو د، امورو، د مالک کیدو زیات مستحق دے، په دے وجه پاسئې او د هغه نه بیعت اوکړئې. هغوي کښې یو جماعت د دے نه مخکښې سقیفه بن ساعده کښې بیعت کړے وو. او عام بیعت په منبر شوے دے. زهري ذَ حضرت انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نقل کړے دے، ما ذَ حضرت عمرؓ نه، په هغه ورځ حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه ته دے وئیلو سره واوریدل، چه منبر ته اوخیژه. او برابر وئیل ئې، تر دے چه هغه منبر ته اوختلو. او خلقو عام بیعت اوکه.

• ۸۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَاَةٌ فَكَلَّمَتْهُ فِيْ شَيْءٍ فَاَمَرَهَا اَنْ تَرْجِعَ اِلَيْهِ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ اِنْ جِئْتُ وَ لَمْ اَجِدْكَ كَاَنَّهَا تُرِيْدُ الْمَوْتَ قَالَ اِنْ لَّمْ تَجِدِيْنِيْ فَأْتِيْ اَبَابَكْرٍ.

• ۸۹۰: عبد العزیز بن عبد اللّٰه، ابراهیم بن سعد، محمد بن جبیر بن مطعم، جبیر بن مطعم نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے، یوه ښځه ذ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه او د څیز متعلق ئې خبرے اوکړے. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم هغې ته حکم ورکه، دوباره ماله راشه هغې اووے، یا رسول اللّٰه، که زه راشم، او تاسوّ بیا نه مومم، نو څه اوکړم. دے نه د هغې ښځے مراد، د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم وفات وو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، که ما بیانه مومې، نو ابوبکر (رضي اللّٰه عنه) له راشه.

۱۸۹۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِيْ قَيْسُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لِوَفْدِ بُزَاخَةَ: تَتْبَعُوْنَ اَذْنَابَ الْاِبِلِ حَتّٰى

۱۸۹۱: مسدد، یحیٰی، سفیان، قیس بن مسلم، طارق بن شهاب، حضرت ابو بکر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے. حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه د، بزاخه وفد ته اوفرمائیل. تاسو، د، اوښانو لکئې (دُم) نیولې لرئې، تر دے چه اللّٰه تعالي

يُرِىَ اللّٰهَ خَلِيْفَةَ نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُهَاجِرِيْنَ اَمْرًا يُعْذِرُوْنَكُمْ بِهٖ.

د خپل نبي صلّي اللّه عليه وسلّم خليفه او مهاجرينو ته داسې خبره اُوښائي، چه هغې سره هغه خلق تاسو معذوره اوګڼري.

**باب ۴۷۵:**

**باب ۴۷۵:** (دا باب بې سُرخني دې).

**۸۹۲:** حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَكُوْنُ اثْنَا عَشَرَ اَمِيْرًا فَقَالَ كَلِمَةً لَمْ اَسْمَعْهَا، فَقَالَ اَبِيْ اِنَّهُ قَالَ كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ.

**۸۹۲:** محمد بن مثنّي، غندر، شعبه، عبد الملک، حضرت جابر بن سمره رضي اللّه عنه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دې، ما حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نه اوريدلې دي، دولس اميران به وي. بيا هغې نه پس حضور صلّي اللّه عليه وسلّم څه اوفرمائيل، چه هغه ما، واو نه ريدل څما پلار بيان اوکه، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه ټول به قريش وي.

**باب ۴۷۶:** اِخْرَاجِ الْخُصُوْمِ وَ اَهْلِ الرِّيَبِ مِنَ الْبُيُوْتِ بَعْدَ الْمَعْرِفَةِ وَ قَدْ اَخْرَجَ عُمَرُ اُخْتَ اَبِيْ بَكْرٍ حِيْنَ نَاحَتْ.

**باب ۴۷۶:** د دشمنانو او شک کونکو د کورونو نه د، اوښکلو بيان، هر کله چه د هغې علم اوشي. او حضرت عمر رضي اللّه عنه دَ حضرت ابوبکر رضي اللّه عنه خور په ساندو کولو (نوحه کرنے پر) اوښکله.

**۸۹۳:** حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَقَدْ هَمَمْتُ اَنْ اٰمُرَ بِحَطَبٍ يُحْتَطَبُ ثُمَّ اٰمُرَ بِالصَّلَاةِ فَيُؤَذَّنَ لَهَا ثُمَّ اٰمُرَ رَجُلًا فَيَؤُمَّ النَّاسَ، ثُمَّ اُخَالِفَ اِلٰى رِجَالٍ فَاُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوْتَهُمْ، وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْ يَعْلَمُ اَحَدُكُمْ

**۸۹۳:** اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي اللّه عنه نه روايت کوي، رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل، په هغه ذات م دې قسم وي د چا قبضه کښې چه څما ساه ده. ما اراده اوکړه، چه د لرګو دَ جمع کولو حکم اوکړم. بيا د، اذان کولو حکم ورکړم. بيا يو سړي له حکم ورکړم، چه خلقو ته مونځ ورکړي. بيا هغې خلقو له ورشم، چه مانځه له نه وي راغلې، او هغوي دَ هغوئ کورونو کښې اوسوزوم. قسم دې په هغه ذات، چه د هغه قبضه کښې څما ساه ده، تاسو کښې که دَ چا دا، اميد وي، چه هلته به هغه ته يو غټ هډوکې يا دوه مرماة حسنه (يعني د چيلئ

اَنَّهُ يَجِدُ عَرْقًا سَمِيْنًا اَوْ مَرْمَاتَيْنِ حَسَنَتَيْنِ لَشَهِدَ الْعِشَآءَ.

د سم ميينځ کښې چه کومه غوښه وي) حاصله شي' نو ضرور به عشاء کښې شريک شي.

بَابُ ۴۷۷: هَلْ لِلْاِمَامِ اَنْ يَمْنَعَ الْمُجْرِمِيْنَ وَ اَهْلَ الْمَعْصِيَةِ مِنَ الْكَلَامِ مَعَهُ وَالزِّيَارَةِ وَ نَحْوِهِ.

باب ۴۷۷: آيا امام د پاره جائز دي' چه مجرمان او ګنهګاران خان ته د' راتلو نه او هغه سره د خبرو وغيره کولو نه منع کړي.

۸۹۴: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ. وَ كَانَ قَآئِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيْهِ حِيْنَ عَمِيَ. قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ ابْنَ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا تَخَلَّفَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ فَذَكَرَ حَدِيْثَهُ وَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِيْنَ عَنْ كَلَامِنَا فَلَبِثْنَا عَلٰى ذٰلِكَ خَمْسِيْنَ لَيْلَةً وَ اٰذَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَوْبَةِ اللّٰهِ عَلَيْنَا.

۸۹۴: يحيى بن بكير' ليث' عقيل' ابن شهاب' عبد الرحمٰن بن عبد اللّٰه بن كعب بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي د عبد اللّٰه بن کعب بن مالکؓ بيان دے. ما ذ کعب بن مالک رضي اللّٰه عنه نه واوريدل (کعب چه نابينا شو' نو ذ هغه هلکانو کښې به يو هلک هغه لاس نيولے بوتلو) کوم وخت چه هغه غزوهٔ تبوک ته نبي عليه السّلام سره ذ تلو نه پاتے شو. بيائے پوره حديث بيان کړه. او رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ټول مسلمانان مونږ سره ذ خبرو کولو نه منع کړے وو نو دے حالت کښې مونږ پنځوس شپے تيرے کړے. او رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اعلان اوکړلو' چه اللّٰه تعالٰي خمونږ توبه قبوله کړله.

# كِتَابُ التَّمَنِّيْ

# (د' ارزو کولو بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع کوم په نامه د خدائے چه بخښونکے او مهربان دے

بَابُ ۴۷۸: مَا جَآءَ فِي التَّمَنِّيْ وَ مَنْ تَمَنَّى الشَّهَادَةَ.

باب ۴۷۸: د' آرزو کولو متعلق چه کوم حديث منقول دے' او ذ هغے سړي بيان' چه هغه د شهادت آرزو اوکړله.

۸۹۵: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ

۸۹۵: سعيد بن عفير' ليث' عبد الرحمٰن بن

حدثني اللَّيْثُ حدثني عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْلَا اَنَّ رِجَالًا يَكْرَهُوْنَ اَنْ يَتَخَلَّفُوْا بَعْدِيْ وَ لَا اَجِدُ مَا اَحْمِلُهُمْ مَا تَخَلَّفْتُ لَوَدِدْتُ اَنِّيْ اُقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، ثُمَّ اُحْيٰى ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيٰى ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيٰى ثُمَّ اُقْتَلُ.

خالد، ابن شهاب، ابو سلمه او سعيد بن مسيب نه روايت كوي. د ابو هريره رضي الله عنه بيان دے، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل قسم دے په هغه ذات، چه د چا قبضه كښې خما ساه ده، كه خلقو دا مكروه نه ګنړلے، چه هغوئ به مانه ورستو پاتے شي او زه هغوي د پاره سورلي بيانه مومم، نو زه به هيڅ كله ورستو نه پاتے كيدے. زه آرزو كوم، چه زه د الله لار كښې قتل كړے شم. بيا ژوندے كړے شم. بيا قتل كړے شم. بيا ژوندے كړے شم. بيا قتل كړے شم. بيا ژوندے كړے شم، بيا قتل كړے شم.

۶۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ وَدِدْتُّ اَنِّيْ لَاُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيٰى ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيَا ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيَا فَكَانَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يَقُوْلُهُنَّ ثَلَاثًا اَشْهَدُ بِاللّٰهِ.

۶۹۶: عبد الله بن يوسف، مالک، ابو الزناد، اعرج، ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، قسم دے په هغه ذات، چه د هغه په قبضه كښې خما ساه ده. زه غواړم، چه د خدائے لار كښې جنګ اوكړم، او قتل شم، بيا ژوندے كړے شم، بيا قتل كړے، بيا ژوندے كړے شم، بيا قتل كړے، بيا ژوندے كړے شم. بيا قتل كړے شم بيا ژوندے كړے شم. ابو هُريره رضي الله عنه به دا كلمات درے خله بيانول. اووئيل به ئے، زه الله تعالي ګواه جوړوم.

## باب ۴۷۹: تَمَنِّى الْخَيْرِ وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ كَانَ لِيْ اُحُدٌ ذَهَبًا.

باب ۴۷۹: د ښو، خېرو د آرزو كولو بيان. او، د حضور صلي الله عليه وسلم فرمان، كه ماسره د اُحد برابر سره زر، وے.

۶۹۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مُعَمَّرٍ عَنْ هَمَّامٍ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ كَانَ

۶۹۷: اسحاق بن نصر، عبد الرّزاق، معمر، ابو هريره، حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، كه ماسره د احد برابر سره زر (سونا) وے. نو ما به خوښولے، چه درے

عِنْدِيْ اُحُدٌ ذَهَبًا لَاَ حْبَبْتُ اَنْ لَا يَأْتِيَ ثَلَاثٌ وَ عِنْدِيْ مِنْهُ دِيْنَارٌ لَيْسَ شَيْءٌ اَرْصُدُهُ فِيْ دَيْنٍ عَلَيَّ اَجِدُ مَنْ يَقْبَلُهُ.

(۳) شپې م هم داسې حال کښ تيرې نشي چه دې کښ يو دينار هم ماسره پاتې شوې، چه هغه ما د' قرض د' ادائيگۍ د پاره نه وي ايښې، داسې حال کښ چه زه داسې سړي بيامومم چه دا قبول کړي.

باب ۴۸۰: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ اَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ.

باب ۴۸۰: د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، که ماته ذ مخکښ نه د خپل کار متعلق معلومه وې، کوم چه ماته ورستو معلوم شو (نو ما به ذ قرباني خناور نه وو راوستلې).

۸۹۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ اَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا سُقْتُ الْهَدْيَ وَ لَحَلَلْتُ مَعَ النَّاسِ حِيْنَ حَلُّوْا.

۸۹۸: يحيي بن بکير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عروه نه روايت دې. ذ بي بي عائشې رضي اللّٰه عنه بيان دې رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل که ماته ذ مخکښ نه ذ خپل کار متعلق معلومه وې، چه ورستو راته معلوم شو، نو مابه ذ قربانئ خاروئې نه وو، راوستلې. او خلقو سره به د' احرام نه بهر شوې وې، کوم وخت چه هغوئ د' احرام نه بهر شول.

۸۹۹: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ عَنْ حَبِيْبٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَبَّيْنَا بِالْحَجِّ وَ قَدِمْنَا مَكَّةَ لِاَرْبَعٍ خَلَوْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ فَاَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نَطُوْفَ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَاءِ وَالْمَرْوَةِ وَ اَنْ نَّجْعَلَهَا عُمْرَةً وَّلْنَحِلَّ اِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهُ

۸۹۹: حسن بن عمر، يزيد، حبيب، عطاء، جابر بن عبد اللّٰه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دې. مونږ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره وو. مونږ ذ حج احرام اوتړلو. او مونږ خلق د ذي الحجه په څلورم تاريخ مکې شريفې ته اورسيدو، نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته حکم راکړلو، چه ذ خانه کعبې او صفا مروه طواف اوکړو او مونږ دا عمره جوړه کړو. او سوا' د هغې سړي نه چه هغه سره ذ قربانئ خاروې وي. مونږ ټول احرام پرانزو. د جابر بن عبد اللّٰه بيان دې. او د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم او د' طلحه رضي اللّٰه نه سوا بل چاسره د' قربانئ خاروې نه وو. او حضرت عَلي رضي اللّٰه عنه د'

هَدْيٌ، قَالَ وَ لَمْ يَكُنْ مَعَ اَحَدٍ مِنَّا هَدْيٌ غَيْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ طَلْحَةَ وَ جَاءَ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ مَعَهُ الْهَدْيُ فَقَالَ اَهْلَلْتُ بِمَا اَهَلَّ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا نَنْطَلِقُ اِلٰى مِنًى وَ ذَكَرُ اَحَدِنَا يَقْطُرُ؟ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ اَمْرِىْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا اَهْدَيْتُ وَ لَوْلَا اَنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ لَحَلَلْتُ. قَالَ وَ لَقِيَهُ سُرَاقَةُ وَ هُوَ يَرْمِيْ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَنَا هٰذِهٖ خَاصَّةً؟ قَالَ لَا بَلْ لِاَبَدٍ، قَالَ وَ كَانَتْ عَائِشَةُ قَدِمَتْ مَكَّةَ وَ هِيَ حَائِضٌ فَاَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تَنْسُكَ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا غَيْرَ اَنَّهَا لَا تَطُوْفُ وَ تُصَلِّيْ حَتّٰى تَطْهُرَ، فَلَمَّا نَزَلُوا الْبَطْحَاءَ قَالَتْ عَائِشَةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتَنْطَلِقُوْنَ بِحَجَّةٍ وَ عُمْرَةٍ وَّ اَنْطَلِقُ بِحَجَّةٍ؟ قَالَ ثُمَّ اَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ بَكْرٍ الصِّدِّيْقِ اَنْ يَّنْطَلِقَ مَعَهَا اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاعْتَمَرَتْ عُمْرَةً فِيْ ذِى الْحَجَّةِ بَعْدَ اَيَّامِ الْحَجِّ.

يمن نه راغلے وو. هغه سره ذَ قرباني څاروے وو. هغه اووے 'ما ذَ هغے څيز نيت کړے دے' د کوم چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نيت کړے دے. خلقو اووے. آيا مونږ منٰي طرف ته داسے حال کښې روان شو. چه مونږ خلقو نه (مني) څاڅي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' که ماته د مخکښې نه معلومه وے' چه راته ورستو معلوم شو' نو ما به ذَ قرباني څاروے نه راوستلو. او که ماسره ذَ قربانئ څاروے نه وے' نو ما به احرام پرانستے وے' د جابر بيان دے سراقه چه کوم وخت جمره عقبه په کاڼړو ويشتله' نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره يو ځائے شولو. او تپوس ئے اوکه' يا رسول اللّٰه' آيا دا حکم صرف مونږ د پاره دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' نه. بلکه هميشه د پاره دے. بي بي عائشه رضي اللّٰه عنها مکے ته اورسيده' نو د حيض حالت کښې وه' هغے ته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم حکم اوکه' چه ټول ارکان اداکړي' خو طواف دے نه کوي' او نه دے مونځ کوي' څو پورے چه پاکه نشي. کوم وخت چه خلق مقام بطحا کښې کوز شو. نو بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه عرض اوکه' آيا تاسوٌ به حج او عمره کولو نه پس واپس کيږئے. او زه به صرف حج کولو نه پس واپس کيږم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم عبد الرحمٰن بن ابي بکر رضي اللّٰه عنه ته حکم ورکه' چه هغه بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها سره مقام تنعيم ته لاړشي. نو بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها ذَ حج ورځو تيرولو نه پس ذي الحجه کښې عمره اوکړه.

## باب ٤٨١: قَوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ

## باب ٤٨١: د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْتَ كَذَا وَ كَذَا.

٩٠٠٠ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ بِلَالٍ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَامِرِ ابْنِ رَبِيْعَةَ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ اَرِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَقَالَ لَيْتَ رَجُلًا صَالِحًا مِّنْ اَصْحَابِيْ يَحْرُسُنِي اللَّيْلَةَ اِذْ سَمِعْنَا صَوْتَ السِّلَاحِ قَالَ مَنْ هٰذَا قِيْلَ سَعْدٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جِئْتُ اَحْرُسُكَ، فَنَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى سَمِعْنَا غَطِيْطَهُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ بِلَالٌ ـ

اَلَا لَيْتَ شِعْرِيْ هَلْ اَبِيْتَنَّ لَيْلَةً
بِوَادٍ وَّ حَوْلِيْ اِذْخِرٌ وَّ جَلِيْلُ

فَاَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**بَاب ٤٨٢: تَمَنِّي الْقُرْاٰنِ وَالْعِلْمِ.**

٩٠١ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحَاسُدَ اِلَّا فِيْ اِثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ

فرمائيل، چه کاش داسې او داسې وې.

٩٠٠ : خالد بن مخلد، سليمان بن بلال، يحيٰي بن سعيد، عبد اللّٰه بن عامر بن ربيعه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها اوفرمائيل. يوه شپه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته خوب رانغے، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه څوک نيک سړے څما ذ ملګرو، نه وے چه د شپے ئے څما حفاظت کړے وے، دے کښې مونږ ذ وسلے آواز واوريدلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم سړے ئے، وئيلے سعد، يم. ستاسو ذ حفاظت د پاره حاضر شوے يم. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اُوده شو، تر دے چه مونږ د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، خرړا آواز واوريدلو. ابو عبد اللّٰه (بخاريؒ) اووے. د بي بي عائشې رض اللّٰه عنها بيان دے، بلال اووے: کاش چه ما داسې څنګل کښې شپه تيره کړے وے، چه څما خواوشا کښې اذخر، او جليل، واښه وے. بيا ما نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د دے خبر ورکه.

**باب ٤٨٢: د، قرآن او علم ذ تمنّا کولو بيان.**

٩٠١ : عثمان بن ابي شيبه، جرير، اعمش، ابو صالح، ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. حسد د، دوو (٢) سرو نه سِوا بل چاسره جائز نه دے، يو هغه سړے، چه هغه ته اللّٰه ذ قران علم ورکه، او هغه د، ورځې شپې د هغې تلاوت کوي. او آو ريدونکے وائي، کاش چه ماته هم

الْـقُـرْاٰنَ فَهُـوَ يَتْـلُـوْهُ اٰنَـآءَ الـلَّـيْـلِ وَالـنَّهَـارِ يَـقُـوْلُ لَـوْ اُوْتِيْتُ مِثْـلَ مَـا اُوْتِـيَ هٰـذَا لَـفَـعَـلْـتُ كَـمَـا يَـفْـعَـلُ وَ رَجُـلٌ اٰتَـاهُ الـلّٰـهُ مَـالًا يُـنْـفِـقُـهُ فِيْ حَـقِّـهٖ فَيَـقُـوْلُ لَـوْ اُوْتِيْتُ مِثْـلَ مَـا اُوْتِـيَ لَـفَـعَلْتُ كَمَا يَـفْـعَـلُ حَـدَّثَـنَـا قُتَيْبَةُ حَـدَّثَنَا جَرِيْرٌ بِهٰذَا.

داسې علم حاصل وې. ښکه چه ده ته حاصل دې، نو ما به هم داسې کولې، ښکه چه دې کوي. دوېم هغه سړې چه هغه له الله تعالىٰ مال ورکړې وي، او هغه د، الله په لار کښې خرچ کوي نو، کتونکې وائي، کاش چه ماته هم داسې مال حاصل وې، ښکه چه ده ته ورکړې شوې دې. نو ما به هم داسې خرچ کولو، ښکه چه دې کوي. مونږ ته قتيبه په واسطه د، جرير دا حديث بيان کړې دې.

بَـابُ ۴۸۳: مَـا يَـكْـرَهُ مِـنَ التَّـمَـنِّـيْ. وَ لَا تَتَـمَـنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِـهٖ بَـعْـضَـكُـمْ عَـلٰـى بَعْضٍ لِلرِّجَالِ نَـصِيْـبٌ مِـمَّـا اكْتَسَبُـوْا وَ لِـلـنِّسَـآءِ نَـصِيْـبٌ مِـمَّا اكْتَسَبْنَ وَاسْـئَلُوْا اللّٰهَ مِـنْ فَـضْـلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا.

باب ۴۸۳: دَ هغې آرزو بيان، چه مکروه ده (د، الله تعالىٰ قول) او هغې څيز آرزو مه کوئې، چه د هغې په ذريعه الـلّٰـه تـعالىٰ تاسو کښې بعضو له په بعضو فضيلت ورکړې دې. سړو د پاره دَ هغې نه حصه ده، چه هغوئ گټلې ده، او ښځو د پاره د هغې نه حصه ده، چه هغوئ گټلې ده. او الـلّٰـه نـه دَ هغه فضل غواړئې. بيشکه الله تعالىٰ په هر څيز پوه دې.

۹۰۲: حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ الْاَحْـوَصِ عَـاصِمٍ عَنِ الـنَّضْرِ بْنِ اَنَسٍ قَالَ قَالَ اَنَسٌ رَّضِيَ الـلّٰـهُ عَـنْـهُ لَـوْلَآ اَنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَتَمَنَّوْا الْمَوْتَ لَتَمَنَّيْتُ.

۹۰۲: حسـن بـن رَبيـع، ابـو الاَحـوص، عـاصـم، نـضـر بـن انـس رضـي الـلّٰه عنه نه روايت دې. دَ هـغـه بيـان دې. انـس اووې، کـه مـا دَ حـضـور صـلّـي الـلّٰـه عـليـه وسـلّـم نـه دا، نـه وې اوريدلې، چـه دَ مـرگ آرزو مـه کـوئـې. نو مـا بـه آرزو کړې وه.

۹۰۳: حَـدَّثَـنَـا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَـبْـدَةُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسٍ قَـالَ اَتَيْـنَا خَبَّابَ ابْنَ الْاَرَتِّ نَعُوْدُهٗ وَ قَدْ اكْتَوٰى سَبْعًا فَقَالَ لَوْلَآ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانَا اَنْ

۹۰۳: محـمـد، عبده، ابـن ابي خـالد، قيـس نـه روايـت کـوي، دَ هـغه بيان دې. مونږ خَباب بن ارت له دَ هـغـه تپـوس لـه راغـلـو، هـغـه وخت هغه اوه (۷) داغونه لـږولـې وو. هـغـه اووې، کـه رسـول الله صلّي الله عليه وسـلّم مونږ د، مرگ د، ارزو کولو نه، نه منع کولې، نو ما

نَدْعُوَ بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِهِ.

۹۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدٍ اِسْمُهُ سَعْدُ بْنُ عُبَيْدٍ مَوْلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَزْهَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَتَمَنّٰى اَحَدُكُمُ الْمَوْتَ اِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ يَزْدَادُ وَ اِمَّا مُسِيْئًا فَلَعَلَّهُ يَسْتَعْتِبُ.

به د دے دعا کړے وے.

۹۰۴: عبد الله بن هشام بن يوسف، معمر، زهري، ابو عبيد، سعد بن عبيد (د عبد الرحمٰن بن ازهر ازاد کړده غلام) نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو کښې دے هيڅوک ذ مرګ تَمَنّا نه کوي ځکه چه يا خو به نيکوکار، وي، نو ډيره ممکنه ده، چه هغه نوره نيکي اوکړي. يا به بدکار، وي. نو ډيره ممکنه ده، چه هغه د دے بدکاري نه منع شي.

## بَاب ۴۸۴: قَوْلِ الرَّجُلِ لَوْلَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَيْنَا.

باب ۴۸۴: د، يو سړي دا، وئيل، که الله (هدَايت کونکے) نه وے، نو مونږ به هدايت نه وے بيامندلے.

۹۰۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ مَعَنَا التُّرَابَ يَوْمَ الْاَحْزَابِ وَ لَقَدْ رَاَيْتُهُ وَرَىَٔ التُّرَابَ بَيَاضَ بَطْنِهٖ يَقُوْلُ لَوْلَا اَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا نَحْنُ، وَ لَا تَصَدَّقْنَا وَ لَا صَلَّيْنَا فَاَنْزِلَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا، اِنَّ الْاُوْلٰى وَ رُبَمَا قَالَ الْمَلَا قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا اِذَا اَرَادُوْا فِتْنَةً اَبَيْنَا، اَبَيْنَا يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ.

۹۰۵: عبدان، د، عبدان پلار، شعبه، ابو اسحاق، حضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت کوي د هغه بيان دے. د جنګ احزاب په ورځ حضور صلّي الله عليه وسلّم مونږ خلقو سره خاوره اُچتوله. او ما اوليدل، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم د خيټے مبارکے سفيدي خاورے پټه کړے وه. حضور صلّي الله عليه وسلّم فرمائيل، (اے الله) که ته هدايت کونکے نه وے، نو مونږ به هدايت نه وو مُندلے. نه به مونږ صدقه ورکوله، نه به مو، مونځ کولو، نو مونږ باندے سکينه نازله کړے. بيشکه دغے خلقو په مونږ ظلم اوکه، هر کله چه هغوي د فتنے اراده اوکړله، نو مونږ انکار اوکړلو. مونږ انکار اوکړلو، او دا، ئے اوچت آواز سره فرمائيل.

ف: سکينه. تسلي. آرام. اَسانش. ذ، يوے فريښتے نوم.

## بَاب ۴۸۵: كَرَاهِيَةِ التَّمَنِّيْ

باب ۴۸۵: د، دشمنانو ذ مقابلے د، آرزو، و

لِقَآءَ الْعَدُوِّ وَ رَوَاهُ الْاَعْرَجُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

مكروه كيدو بيان. او دا" اعرج د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه، هغه د نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كه.

٦٠٩ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو وَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ ابْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَ كَانَ كَاتِبًا لَهُ قَالَ كَتَبَ اِلَيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ اَوْفٰى فَقَرَأْتُهُ فَاِذَا فِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَتَمَنَّوْا لِقَآءَ الْعَدُوِّ وَسَلُوْا اللّٰهَ الْعَافِيَةَ.

٦٠٩ : عبد الله بن محمد، معاويه بن عمرو، ابو اسحاق، موسي بن عقبه، سالم ابي النضر (د عمر بن عبيد الله آزاد كرده غلام او كاتب وو) نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. هغه ته حضرت عبد الله بن ابي اوفي ته خط ليكلے وو. ما هغه اولوستو نو هغے كښې ليكلي وو، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، د، دشمنانو ذ مقابلے آرزو مه كوئے. او الله نه عافيت غواړئے.

بَابٌ ٣٨٦ : مَا يَجُوْزُ مِنَ اللَّوْ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى: لَوْ اَنَّ لِيْ بِكُمْ قُوَّةً.

باب ٣٨٦ : ذ لفظ لَوْ، (اگر) د استعمال د جائز كيدو بيان. او د، الله تعالٰي قول، كاش، چه خما په تاسو قوت وے.

٦٠٧ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ ذَكَرَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْمُتَلَاعِنَيْنِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ شَدَّادٍ اَهِيَ الَّتِيْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ كُنْتُ رَاجِمًا امْرَاَةً مِّنْ غَيْرِ بَيِّنَةٍ؟ قَالَ لَا تِلْكَ امْرَاَةٌ اَعْلَنَتْ.

٦٠٧ : علي بن عبد الله، سفيان، ابو الزناد، قاسم بن محمد نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. ابن عباس رضي الله عنه د لعان والو ذكر اوكه، نو عبد الله بن شداد اووے، آيا دا هغه ښځه ده، چه د هغے متعلق رَسُول الله صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلے وو، كه ما يوه ښځه بغير گواه سنگسارولے (نو دا به م سنگساره كړے وه). هغه اووے، نه، هغه ښځے به اسلام كښې علانيه بدكاري كوله.

٦٠٨ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو وَ

٦٠٨ : علي، سفيان، عمرو، عَطَآء نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم يوه

حَدَّثَنَا عَطَاءٌ قَالَ اَعْتَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعِشَاءِ فَخَرَجَ عُمَرُ فَقَالَ الصَّلَاةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ رَقَدَ النِّسَآءُ وَالصِّبْيَانُ فَخَرَجَ وَ رَاْسُهُ يَقْطُرُ يَقُوْلُ: لَوْ لَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ اَوْ عَلَى النَّاسِ وَ قَالَ سُفْيَانُ اَيْضًا عَلٰى اُمَّتِي لَاَمَرْتُهُمْ بِالصَّلَاةِ هٰذِهِ السَّاعَةِ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَخَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ فَجَاءَ عُمَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ رَقَدَ النِّسَآءُ وَالْوِلْدَانُ فَخَرَجَ وَ هُوَ يَمْسَحُ الْمَآءَ عَنْ شِقِّهٖ يَقُوْلُ: اِنَّهُ لَلْوَقْتُ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ وَ قَالَ عَمْرُو حَدَّثَنَا عَطَآءٌ لَيْسَ فِيْهِ ابْنُ عَبَّاسٍ اَمَّا عَمْرُو فَقَالَ رَاْسُهُ يَقْطُرُ وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ يَمْسَحُ الْمَاءَ عَنْ شِقِّهٖ وَ قَالَ عَمْرُو لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِي لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ وَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ اَنَّهُ لَلْوَقْتِ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلَى اُمَّتِيْ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمَ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ عَمْرٍ وَ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

شپه د ماسختن مونځ تاخير سره اوكه، نو حضرت عمر رضي اللّٰه عنه راووتلو. او عرض ئې اوكه، يا رسول اللّٰه د، مونځ وخت شو. ښځې او بچي اُوده شو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم بهرته راووتلو داسې حال كښې، چه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ سر مبارک نه اوبه څڅيدلې. او فرمائيل ئې، كه ما په خپل امت يئ (وې فرمائيل) خلقو باندې گرانه، نه گنړلې (او سفيان د، اُمتي لفظنقل كه) نو ما به هغوئ ته دا وخت د مونځ كولو حكم وركړې وو. ابن جريج په واسطه د، عطاء، ابن عباس نقل اوكه چه نبي عليه السّلام دې مونځ كښې ناوخته كړو، نو حضرت عمر رضي اللّٰه عنه راغې، عرض ئې اوكه، يا رسول اللّٰه، ښځې اوبچي اُوده شو نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم داسې حال كښې بهرته تشريف راوړلو، چه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ كنپټو نه د، اوبو قطرې څڅيدلې، او فرمائيل ئې، ذ مونځ دا، وخت دې، كه ما د خپل اُمت د پاره گرانه، نه گنړې (نو دې وخت كښې به م ذ مونځ حكم وركړې وو) او عمرو اووې، مونږ ته عطاء بيان اوكه. دې كښې ابن عباس رضي اللّٰه عنه نشته. ليكن عمرو بيان كړي، چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، سر مبارک نه اوبه څڅيدلې او ابن جريج اووې، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ خپلو كنپټو نه اوبه اوچولې او عمرو اووې، كه ما په خپل امت گرانه، نه گنړلې. او ابن جريج اووې، چه دا وخت دې، كه ما ذ خپل اُمت د پاره گرانه، نه گنړلې او ابراهيم بن منذر په واسطه د، معن، محمد بن مسلم، عمرو، عطاء، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه، حضور

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي.

۹۰۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَوْ لَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ لَاَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ.

۹۰۹: يحيي بن بكير، ليث، جعفر بن ربيعه، عبد الرّحمٰن، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، كه ما خپل امت د پاره ګرانه، نه ګڼړلے، نو هغوئ ته به م ذ مسواک كولو حكم وركړے وو.

۹۱۰: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ وَاصَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰخِرَ الشَّهْرِ. وَ وَاصَلَ اُنَاسٌ مِّنَ النَّاسِ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: لَوْ مُدَّبِيَ الشَّهْرُ لَوَاصَلْتُ وِصَالًا يَّدَعُ الْمُتَعَمِّقُوْنَ تَعَمُّقَهُمْ اِنِّيْ لَسْتُ مِثْلَكُمْ اِنِّيْ اَظَلُّ يُطْعِمُنِيْ رَبِّيْ وَ يَسْقِيْنِيْ تَابَعَهُ سُلَيْمَانُ بْنُ مُغِيْرَةَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۱۰: عياش بن وليد، عبد الاعلٰي، حميد، ثابت، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم آخري مياشت كښ پرله پسے روژے اونيولے. او ځنے خلقو هم پرله پسے روژے اونيولے. حضور صلّي الله عليه وسلّم چه دے نه خبر شو، نو، وے فرمائيل، كه مياشت نوره اوږده وے، نو ما به دومره پرله پسے (متواتر) روژے نيولے وے، چه خلقو به خپله سختي پريښے وه زه ستاسو په شان نه يم، په ما خو خما رب خوروي اوڅكوي. سليمان بن مغيره ذ ثابت نه، هغه ذ حضرت انس رضي الله عنه نه، هغه د نبي صلّي الله عليه وسلّم د دے متابعت كښ روايت كړے دے.

۹۱۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ اَخْبَرَهٗ اَنَّ اَبَا

۹۱۱: ابو اليمان، شعيب، زهري (دويم سند) ليث، عبد الرحمٰن بن خالد ابن شهاب، سعيد بن مسيب نه روايت كوي ذ هغه بيان دے. حضرت ابو هريره رضي الله عنه اوفرمائيل. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ذ متواتر روژو نيولو نه منع فرمائيلے ده خلقو ورته عرض

هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوِصَالِ: قَالُوْا فَاِنَّكَ تُوَاصِلُ قَالَ اَيُّكُمْ مِثْلِيْ اِنِّيْ اَبِيْتُ يُطْعِمُنِيْ رَبِّيْ وَ يَسْقِيْنِ. فَلَمَّا اَبَوْ اَنْ يَنْتَهُوْا وَاصَلَ بِهِمْ يَوْمًا ثُمَّ يَوْمًا، ثُمَّ رَاَوُ الْهِلَالَ فَقَالَ: لَوْ تَاَخَّرَ لَزِدْتُكُمْ كَالْمُنَكِّلِ لَهُمْ.

اوكه، تاسو، خو متواتر روژے نيسئے. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، تاسو كښ خما په شان څوك دے، زه خو داسے حال كښ شپه تيروم، چه خما رب په ما خوروي او، څكوي. چه خلقو اونه منله، نو حضور صلي الله عليه وسلم يو ورځ، بيا بله ورځ يو ځائے كړے روژے اونيولے. بيا خلقو مياشت اوليده، نو حضور صلي الله عليه وسلم ذ تنبيه په طوز اوفرمائيل، كه سپوږمئ ورستو اوتلے وے، نو ما به نورے نيولے وے.

۹۱۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ حَدَّثَنَا اَشْعَثُ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَدْرِ اَمِنَ الْبَيْتِ هُوَ؟ قَالَ نَعَمْ، قُلْتُ فَمَا لَهُمْ لَمْ يُدْخِلُوْهُ فِي الْبَيْتِ قَالَ اِنَّ قَوْمَكِ قَصَّرَتْ بِهِمُ النَّفَقَةُ" قُلْتُ فَمَا شَاْنُ بَابِهٖ مُرْتَفِعًا؟ قَالَ: فَعَلَ ذَاكِ قَوْمُكِ لِيُدْخِلُوْا مَنْ شَآءُوْا وَيَمْنَعُوْا مَنْ شَآءُوْا لَوْ لَا اَنَّ قَوْمَكِ حَدِيْثٌ عَهْدُهُمْ بِالْجَاهِلِيَّةِ فَاَخَافُ اَنْ تُنْكِرَ قُلُوْبُهُمْ اَنْ اُدْخِلَ الْجَدْرَ فِي الْبَيْتِ وَ اَنْ اُلْصِقَ بَابَهٗ فِي الْاَرْضِ.

۹۱۲ : مسدد، ابو الاحوص، اشعث، اسود بن يزيد، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذ هغے بيان دے. ما د نبي صلي الله عليه وسلم نه ذ حطيم متعلق تپوس اوكه، چه آيا هغه هم خانه كعبه كښ داخل دے. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل او ما تپوس اوكه، بيا دا خانه كعبه كښ ولے داخل نه كړے شو. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ستا قوم سره خرچ كم شوے وو. ما تپوس اوكه. بيا د دے دروازه ولے اوچته ده. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. ستا قوم داسے خكه كړے دي، چه څوك غواړي، دننه ئے راپريږدي، او چه څوك غواړي، نو منع ئے كړي كه ستا ذ قوم زمانه جاهليت ته نزدے نه وے، او ما سره آنديښنه نه وے، چه ذ هغوئ زړونه به دا مكروه اوګنړي، نو ما به حطيم خانه كعبه كښ داخل كړے وو. او د دے دروازه به مِ زمكے سره يو ځائے كړے وے.

۹۱۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ

۹۱۳ : ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج، ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَأً مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَ سَلَكَتِ الْاَنْصَارُ وَادِيًا اَوْ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْاَنْصَارِ اَوْ شِعْبَ الْاَنْصَارِ.

ارشاد اوفرمائيلو' كه هجرت نه وے' نو زه به ذ انصارو نه يو سړے ووم. او كه ټول خلق يو وادي كښې تلے' او انصاريو وادي يا' غاښي كښې تلے' نو زه به د' انصارو وادي يا' غاښي كښې تلم.

۹۱۴: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَأً مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا اَوْ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْاَنْصَارِ وَ شِعْبَهَا: تَابَعَهُ اَبُو التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الشِّعْبِ.

۹۱۴: موسٰي' وهيب' عمرو بن يحيٰي' عباد تميم' عبد اللّٰه بن زيد' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي' حضور صَلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. كه هجرت نه وے نو زه' به د' انصارو نه يو سړے ووم' او كه خلق يو وادي يا غاښي كښې تلے' نو زه به د' انصارو وادي يا غاښي كښې تلم. لفظ شعب (گهاټي) كښې ابو التياح د حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه هغه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د دے متابعت كښې روايت كړے دے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع كوم په نامه ذ خدائے چه بخښونكے او مهربانه دے

## باب ۴۸۷: مَا جَآءَ فِيْ اِجَازَةِ خَبَرِ الْوَاحِدِ الصَّدُوْقِ فِي الْاَذَانِ وَالصَّلٰوةِ وَالصَّوْمِ وَالْفَرَآئِضِ وَالْاَحْكَامِ. قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ وَ لِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْٓا اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ. وَ يُسَمَّى الرَّجُلُ طَآئِفَةً لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: وَ اِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا: فَلَوِ اقْتَتَلَ رَجُلَانِ دَخَلَ فِيْ مَعْنَى الْاٰيَةِ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌ

باب ۴۸۷: اذان او مونځ او' روژه او فرائضو او احكامو كښې ذ' ريښتنے سړي ذ خبر واحد' ذ جائز كيدو بيان. د اللّٰه تعالٰي قول' بيا ذ هغوئ هرے فرقے كښې څه خلق ولے نه اوځي. چه د.ين كښې پو ه پيدا كړي' او چه خپل قوم اُويروي' هر كله چه هغوئ' هغے خلقو ته واپس راشي' شايد چه هغه خلق اويريږي او يو سړي ته هم طائفه ونيلے شي' ځكه چه د' اللّٰه تعالٰي قول دے' كه د مؤمنانو دوه (۲) جماعتونه جنګ كوي' نو كه دوه (۲) سړي جنګ كوي' نو هغوي به د دے آيت مفهوم كښې داخل وي' ځكه چه د' اللّٰه تعالٰي قول دے' كه تاسو له څوک فاسق خبر راوړي' نو د هغے تحقيق

بِنَبَأٍ فَتَبَيَّنُوا وَ كَيْفَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَرَآءَهُ وَاحِدًا بَعْدَ وَاحِدٍ فَإِنْ سَهَا أَحَدٌ مِنْهُمْ رُدَّ إِلَى السُّنَّةِ.

كونے، او د دے امر بيان، چه څنګه نبي صلّي الله عليه وسلّم خپل امراء يو بل پسے اوليږل، د پاره د دے كه هغوي كښې يو كس غلطي او كړے، نو هغه دے سنت طرف ته او ګرځولے شي.

٩١٥ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ قَالَ أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ شَبَبَةٌ مُتَقَارِبُوْنَ فَأَقَمْنَا عِنْدَهُ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفِيْقًا فَلَمَّا ظَنَّ أَنَّا قَدِ اشْتَهَيْنَا أَهْلَنَا أَوْ قَدِ اشْتَقْنَا سَأَلَنَا عَمَّنْ تَرَكْنَا بَعْدَنَا فَأَخْبَرْنَاهُ قَالَ ارْجِعُوْا إِلَى أَهْلِيْكُمْ فَأَقِيْمُوْا فِيْهِمْ وَعَلِّمُوْهُمْ وَمُرُوْهُمْ، وَذَكَرَ أَشْيَآءَ أَحْفَظُهَا أَوْ لَا أَحْفَظُهَا، وَصَلُّوْا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ.

٩١٥ : محمد بن مثنٰي، عبد الوهاب، ايوب، ابو قلابه، مالک نه روايت كوي، د هغه بيان دے. مونږ د نبي صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو. مونږ خلق ځلمي او هم عمر وو. مونږ حضور صلّي الله عليه وسلّم سره شل (۲۰) ورځے پاتے وو او رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ډير مهربانه وو. كوم وخت چه حضور صلّي الله عليه وسلّم ته خيال شو، چه مونږ د خپل كوروالو خواهش كوو. يا دا چه په مونږ ګرانه تيريږي. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم مونږ نه تپوس او كه، چه مونږ خپل ورستو كوم خلق پريښے دي. مونږ ورته اوښودل، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چه تاسو خلق خپل خپل كورونو نه لاړشئ. او هغوي ته علم ښايئ. او د ښو خبرو حكم وركوئ. او څو خبرے حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيلے، چه ماته يادے دي. يا، يادے نه دي (وے فرمائيل) تاسو مونځ كوئ څنګه چه تاسو زه په مونځ كولو ليدلے يم. كله چه د مانځه وخت راشي، نو تاسو كښې دے يو سړے اذان اوكړي. او تاسو كښې دے (يعني مشر) سړے امامت اوكړي.

٩١٦ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنِ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيْ عُثْمَانَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

٩١٦ : مسدد، يحيٰي، تيمي، ابو عثمان، ابن مسعود نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو كښې دے څوک د،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَمْنَعَنَّ أَحَدَكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ مِنْ سُحُوْرِهِ فَإِنَّهُ يُؤَذِّنُ أَوْ قَالَ يُنَادِيْ لِيُرْجِعَ قَائِمَكُمْ وَ يُنَبِّهَ نَائِمَكُمْ وَ لَيْسَ الْفَجْرُ أَنْ يَقُوْلَ هٰكَذَا وَ جَمَعَ يَحْيٰى كَفَّيْهِ حَتّٰى يَقُوْلَ هٰكَذَا وَ مَدَّ يَحْيٰى أُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَتَيْنِ.

بلال رضي اللّٰه عنه اذان د' پیشمني کولو نه منع نه کړي. ځکه چه هغه اذان کوي' یا وې فرمائیل' بلنه کوي' د پاره د دې چه تاسو کښې مونځ گزار' ذَ مونځ نه فارغ شي' او تاسو کښې اوده' راویخ شي او د سحر (فجر) وخت دا' نه دې' چه داسې وي. او یحیٰي خپل لاسونه راغنډ کړل. او وئیلې' تر دې چه داسې وي. او یحیٰي خپل دواړه ذَ کلمې گوتې نې خورې کړې.

۹۱۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ دِيْنَارٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ بِلَالًا يُنَادِيْ بِلَيْلٍ فَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يُنَادِيَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُوْمٍ.

۹۱۷: موسٰي بن اسماعیل' عبد العزیز بن مسلم' عبد اللّٰه بن دینار' حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي' حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو حضرت بلال رضي اللّٰه عنه شپه لا باقي وي چه آذان اوکړي' نو تاسو خورئې' ځکئې' تر دې چه ابن ام مکتوم اذان اوکړي.

۹۱۸: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ: صَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ خَمْسًا فَقِيْلَ أَزِيْدَ فِي الصَّلَاةِ قَالَ وَ مَا ذَاكَ؟ قَالُوْا صَلَّيْتَ خَمْسًا فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ.

۹۱۸: حفص بن عمر' شعبه' حکم' ابراهیم' علقمه' حضرت عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. ذَ هغه بیان دې. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم مونږ خلقو ته د ماسپخین مونځ پنځه رکعاته اوکړلو. خلقو عرض اوکه. آیا مونځ کښې زیاتې شوې دې. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' څه خبره ده خلقو ورته اووې' تاسو پنځه رکعاته مونځ اوکړلو. بیا حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ذَ سلام گرځولو نه پس دوه (۲) سجدې نورې اوکړلې.

۹۱۹: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ

۹۱۹: اسماعیل' مالک' ایّوب' محمد' حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. ذَ هغه

مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ اِثْنَتَيْنِ فَقَالَ لَهُ ذُو الْيَدَيْنِ اَقَصُرَتِ الصَّلٰوةُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَمْ نَسِيْتَ فَقَالَ اَصَدَقَ ذُو الْيَدَيْنِ فَقَالَ النَّاسُ نَعَمْ، فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ اُخْرَيَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ ثُمَّ سَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ اَوْ اَطْوَلَ، ثُمَّ رَفَعَ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُوْدِهٖ ثُمَّ رَفَعَ.

بيان دے رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دوه (۲) رکعاته مونځ کولو نه پس فارغ شولو. ذو اليدين عرض او که. يا رسول اللّٰه، آيا مونځ کښ کمے او کړے شو، يا تاسوَ نه هيره اوشوه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. آيا ذواليدين ريښتيا وئيلي دي. خلقو اووے او. نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو، او دوه (۲) رکعاته ئې نور او کړل. بيائے سلام اوګرځولو. بيائے تکبير اوکه. بيا د، وړمبو سجدو په شان يا، د هغې نه اوږده سجده ئې او کړله. بيائے خپل سر مبارک اوچت کړلو. او بيائے تکبير اوکه. او بيائے د مخکښې سجدو په شان سجده او کړله. بيا حضورؐ سر مبارک اوچت کړلو.

۹۲۰ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ بَيْنَا النَّاسُ بِقُبَآءٍ فِيْ صَلَاةِ الصُّبْحِ اِذْ جَآءَهُمْ اٰتٍ فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْاٰنٌ، وَ قَدْ اُمِرَ اَنْ يَّسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبَلُوْهَا وَ كَانَتْ وُجُوْهُهُمْ اِلَى الشَّامِ فَاسْتَدَارُوْا اِلَى الْكَعْبَةِ.

۹۲۰ : اسماعيل، مالک، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے. يو ځل خلقو قباء کښ د سحر مونځ کولو دے کښ يو راتلونکے راغے. او هغه اووے نن شپه په رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم وحي نازله شوے ده. او حکم ورکړے شوے دے، چه کعبې طرف ته مخ کړي. په دے وجه تاسو خلق کعبې طرف ته مخ کړئ مونځ اوکړئ هغه وخت ذ هغې خلقو رُخ شام طرف ته وو نو هغه خلق کعبې طرف ته اوګرځيدل.

۹۲۱ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۹۲۱ : يحيٰي، وکيع، اسرائيل، ابو اسحاق، حضرت براء نه روايت کوي ذ هغه بيان دے. کوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم مدينې منورے ته تشريف راوړلو، نو بيت المقدس طرف ته مخ کړے

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ صَلَّى نَحْوَ بَيْتِ الْمُقَدَّسِ سِتَّةَ عَشَرَ اَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا وَ كَانَ يُحِبُّ اَنْ يُوجَّهَ اِلَى الْكَعْبَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا. فَوُجِّهَ نَحْوَ الْكَعْبَةِ وَ صَلّٰى مَعَهُ رَجُلٌ الْعَصْرَ ثُمَّ خَرَجَ فَمَرَّ عَلٰى قَوْمٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ هُوَ يَشْهَدُ اَنَّهُ صَلّٰى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَّهُ قَدْ وُجِّهَ اِلَى الْكَعْبَةِ فَانْحَرَفُوْا وَ هُمْ رُكُوْعٌ فِيْ صَلَاةِ الْعَصْرِ.

شپاړلس (۱۶) يا اوولس (۱۷) مياشتے پورے ئے مونځ اوکه. او خوښول ئے' چه كعبے طرف ته ئے رُخ كړے وے' نو اللّٰه تعالٰي دا' آيت نازل كړلو: بيشكه مونږ آسمان طرف ته ستا بار بار مخ اوچتول وينو' نو مونږ تا' دے قبلے طرف ته گرځوو' چه هغے سره به ته خوشحاله شے' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم كعبے طرف ته رُخ كړلو او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره يو سړي دَ مازيگر مونځ اوكړلو. بيا هغه اووتلو' او د' انصارو په يو جماعت تير شولو. او وئيلے' هغه گواهي كوي' چه هغه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره مونځ كړے دے. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم كعبے طرف ته مخ كړے دے. بيا هغوئ اوگرځيدل هغه وخت هغوئ د' مازيگر مونځ كولو. او د ركوع حالت كښ ور،

۹۲۲: حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى ابْنُ قَزْعَةَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ اَسْقِيْ اَبَا طَلْحَةَ الْاَنْصَارِيَّ وَ اَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ وَ اُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ شَرَابًا مِّنْ فَضِيْخٍ وَ هُوَ تَمْرٌ' فَجَآءَهُمْ اٰتٍ فَقَالَ اِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ' فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ يَا اَنَسُ قُمْ اِلٰى هٰذِهِ الْجِرَارِ فَاكْسِرْهَا' قَالَ اَنَسٌ فَقُمْتُ اِلٰى مِهْرَاسٍ لَّنَا فَضَرَبْتُهَا بِاَسْفَلِهٖ حَتّٰى انْكَسَرَتْ.

۹۲۲: يحيي بن قزع' مالک' اسحاق بن عبد اللّٰه بن ابي طلحه' حضرت انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. ما په ابو طلحه انصاري' ابو عبيده بن جراح او' ابي بن كعب باندے فضيح يعني د قجورو شراب څكول. هغوي له يو راتلونكے راغے' او وئيلے' شراب حرام كړے شو. په دے ابو طلحه اووے. اے انس' پاسه. دغے چاټو (متكو) له ورشه. او هغه ماتے كړه. د حضرت انس رضي اللّٰه عنه بيان دے. زه اُودريدم او يو مهراس (چټو) چه ماسره وو. په هغے م هغه متكے اوويشتلے' تر دے چه هغه ماتے شوے.

۹۲۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ

۹۲۳: سليمان بن حرب' ابو اسحاق' صله'

حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنْ صِلَةَ عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَهْلِ نَجْرَانَ لَأَبْعَثَنَّ إِلَيْكُمْ رَجُلًا أَمِيْنًا حَقَّ أَمِيْنٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهَا أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ.

حضرت حذيفه رضي الله عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اهل نجران ته اوفرمائيل: زه به تاسو ته هغه سړے درليږم، چه آمين (امانت دار) وي. څنګه چه يو آمين له كيدل پكار دي. نو ذ حضور صلّي الله عليه وسلّم اصحاب د دے منتظر وو. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم ابو عبيده بن جراح اوليږلو.

۹۲۴ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِيْنٌ وَ أَمِيْنُ هٰذِهِ الْأُمَّةِ أَبُوْ عُبَيْدَةَ.

۹۲۴ : سليمان بن حرب، شعبه، خالد، ابو قلابه، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل د هر اُمت يو امين وي. او د دے امت امين ابو عبيدهؓ دے.

۹۲۵ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ وَ كَانَ رَجُلٌ مِّنَ الْأَنْصَارِ إِذَا غَابَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَهِدْتُهُ أَتَيْتُهُ بِمَا يَكُوْنُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ إِذَا غِبْتُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَهِدَ أَتَانِيْ بِمَا يَكُوْنُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۲۵ : سليمان بن حرب، حماد بن زيد، يحيي بن سعيد، عبيد بن حنين، حضرت ابن عباس رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. انصارو كښې يو سړے وو. كله چه به هغه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه غير حاضر وو. او زه به حضور صلّي الله عليه وسلّم سره موجود ووم، نو زه به هغه له راتلم، او حالات به م ورته بيانول، څه چه به م د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه آوريدل. او كله چه به زه موجود نه ووم، نو هغه به ماته حال ونيلے، څه چه به ئے د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه آوريدلے وو.

۹۲۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

۹۲۶ : مُحمّد بن بشار، غندر، شعبه، زبيد، سعد

بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ زُبَيْدٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ جَيْشًا وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ رَجُلًا فَاَوْقَدَ نَارًا وَّ قَالَ اُدْخُلُوْهَا فَاَرَادُوْا اَنْ يَّدْخُلُوْهَا وَ قَالَ اٰخَرُوْنَ اِنَّمَا فَرَرْنَا مِنْهَا فَذَكَرُوْا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِلَّذِيْنَ اَرَادُوْا اَنْ يَدْخُلُوْهَا لَوْ دَخَلُوْهَا لَمْ يَزَالُوْا فِيْهَا اِلٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ. وَ قَالَ لِلْاٰخَرِيْنَ لَا طَاعَةَ فِيْ مَعْصِيَةٍ اِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوْفِ.

بن عبیده، عبد الرحمن حضرت علي رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي د هغه بیان دے. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم یو لښکر اولیږلو. او په هغې ئے یو سړے امیر مقرر کړلو. هغه اُور اولګولو. او خلقو ته ئے حکم ورکه، چه هغې کښې داخل شي څنے خلقو هغې کښې داخلیدل غوښتل. او بعضې اووے، چه مونږ خو، اور نه بچ کیدو د پاره اسلام راوړے دے. خلقو دا حال نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم بیان که، نو کومو خلقو چه هغې اور کښې داخلیدل غوښتل، هغوئ ته حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل که تاسو خلق دے اُور کښې داخل شوے وے نو قیامته پورے به په کښې وئے. او هغې نورو خلقو ته ئے اوفرمائیل، چه ګناه کښې اطاعت نشته. اطاعت صرف نیکئ کښې دے.

۹۲۷ : حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ وَ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ اَخْبَرَاهُ اَنَّ رُجُلَيْنِ اِخْتَصَمَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۲۷ : زهیر بن حرب، یعقوب بن ابراهیم، ابراهیم، صالح، ابن شهاب، عبید اللّٰه بن عبد اللّٰه نه روایت کوي، دَ هغه بیان دے. د حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه او حضرت زید بن خالد رضي اللّٰه عنه دواړو بیان دے، چه دوه (۲) سړي جګړه کونکي د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو.

۹۲۸ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ قَامَ

۹۲۸ : ابو الیمان، شعیب، زهري، عبید اللّٰه بن عبداللّٰه، صالح، ابن عتبه بن مسعود، حضرت ابو هریرهؓ نه روایت کوي هغه بیان اوکه یو خل مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره وو اعرابو (بانډیسیانو) کښې یو سړي اودریدو او عرض ئے اوکه یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ما د پاره کتاب اللّٰه

رَجُلٌ مِّنَ الْاَعْرَابِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَقْضِ لِيْ بِكِتَابِ اللّٰهِ، فَقَامَ خَصْمُهُ فَقَالَ صَدَقَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اقْضِ لِيْ بِكِتَابِ اللّٰهِ فَقَامَ خَصْمُهُ فَقَالَ صَدَقَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِقْضِ لَهُ، بِكِتَابِ اللّٰهِ وَ اْذَنْ لِيْ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ فَقَالَ اَنَّ اِبْنِيْ كَانَ عَسِيْفًا عَلٰى هٰذَا وَالْعَسِيْفُ الْاَجِيْرُ فَزَنٰى بِاَمْرَأَتِهِ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ عَلٰى اِبْنِيْ الرَّجْمَ فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةٍ مِنَ الْغَنَمِ وَ وَلِيْدَةٍ ثُمَّ سَاَلْتُ اَهْلَ الْعِلْمِ فَاَخْبَرُوْنِيْ اَنَّ عَلٰى امْرَأَتِهِ الرَّجْمَ وَ اِنَّمَا عَلٰى اِبْنِيْ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ اَمَّا الْوَلِيْدَةُ وَالْغَنَمُ فَرُدُّوْهَا وَ اَمَّا ابْنُكَ فَعَلَيْهِ جَلْدُ مِائَةٍ وَّ تَغْرِيْبُ عَامٍ وَ اَمَّا اَنْتَ يَا اُنَيْسُ لِرَجُلٍ مِّنْ اَسْلَمَ. فَاغْدُ عَلٰى امْرَأَةِ هٰذَا فَاِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا فَغَدَا عَلَيْهَا اُنَيْسٌ فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا.

مطابق فيصله اوكړې بيا د هغه مخالف فريق سړې اودريدو او هغه عرض اوكه يا رسول الله صلي الله عليه وسلّ ده ټيک خبره اوکړه د کتاب الله مطابق خمونږ فيصله اوکړې او مونږ ته د عرض کولو اجازت راکړې. نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل وايه (بيان کوه) هغه اووې خما خوئې ده سره مزدور وو هغه دده ښځې سره زنا اوکړه خلقو ماته اووې چه خما خوئې به سنګسارولې شي نو ما سل چيلې او يوه وينزه ورکړه هغه م خلاص کړلو بيا ما د عالمانونه تپوس اوکه نو هغوي راته اووې دده په ښځه رجم وي (يعني سنګسارولې به شي) او خما خوئې به سل دُرې وهلې شي اويو کال د پاره جلاوطن (بې وطنه) کولې به شي حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل قسم دې په هغه ذات د چا په قبضه کښ چه خما ساه ده زه به ستاسو مينځ کښ د کتاب الله مطابق فيصله کوم. وينزه او چيلې خو ته واپس واخله ستا خوئې به سل درې وهلې شي او يو کال د پاره جلاوطن کيږي او ته اې انيس دده ښځې له ورشه که هغه اقرار اوکړې نو هغه سنګسار کړه نو صبا ته انيس هغې ښځې له ورغې هغې اقرار اوکه نو سنګسار کړې شوه.

## بَاب۴۸۸: بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزُّبَيْرَ طَلِيْعَةً وَّحْدَهٗ.

## باب۴۸۸: د نبي صلي الله عليه وسلم د حضرت زبير رضي الله عنه ايکي يوازې د دشمن خبر د اوړلو د پاره د ليږلو بيان.

۹۲۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ

۹۲۹: علي بن عبدالله، سفيان، ابن منکدر حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي د جنګ خندق

الْـمُـنْـكَـدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّـٰـهِ قَالَ نَـدَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ النَّاسَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ثُمَّ نَدَبَهُمْ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ثُمَّ نَدَبَ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ فَقَالَ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيٌّ وَ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ قَالَ سُفْيَانُ حَفِظْتُهُ مِنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ وَ قَالَ لَهُ أَيُّوبُ يَا أَبَا بَكْرٍ حَدِّثْهُمْ عَنْ جَـابِـرٍ فَـإِنَّ الْـقَـوْمَ يُـعْـجِـبُـهُـمْ أَنْ تُـحَـدِّثَـهُـمْ عَـنْ جَـابِـرٍ فَقَالَ فِيْ ذٰلِكَ الْـمَـجْـلِـسِ سَمِعْتُ جَابِرًا فَتَابَعَ بَيْنَ أَحَـادِيْثَ سَمِعْتُ جَابِرًا' قُلْتُ لِسُفْيَانَ فَـإِنَّ الثَّـوْرِيَّ يَقُوْلُ يَوْمَ قُرَيْظَةَ فَقَالَ كَـذَا حَـفِـظْـتُـهُ كَـمَا أَنَّكَ جَالِسٌ يَوْمَ الْخَنْدَقِ. قَالَ سُفْيَانُ هُوَ يَوْمٌ وَاحِدٌ وَ تَبَسَّمَ سُفْيَانُ.

**بـاب ۴۸۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا تَـدْخُـلُـوْا بُيُـوْتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ. فَإِذَا أَذِنَ لَهُ وَاحِدٌ جَازَ.**

۷۰۳۰: حَـدَّثَـنَـا سُلَيْـمَـانُ بْنُ حَـرْبٍ حَـدَّثَـنَـا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ أَبِـيْ عُثْـمَـانَ عَنْ أَبِـيْ مُوْسٰـى أَنَّ الـنَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ حَـآئِـطًـا وَّ أَمَرَنِيْ بِحِفْظِ الْبَابِ فَجَآءَ رَجُـلٌ يَسْتَـأْذِنُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِـالْـجَـنَّةِ فَـإِذَا أَبُـوْبَـكْرٍ ثُمَّ جَآءَ عُمَرُ

په ورځ نبي صلي الله عليه وسلم خلقوته آواز اوكه نو حضـرت زبيـر رضي الله عنه جواب وركړلو بيا خلقوته آواز اوكه نو حضرت زبير رضي الله عنه جواب وركړلو بيا خلقـو تـه آواز اوكه نو حضرت زبير رضي الله عنه جـواب وركړلو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د هـر نبي يو حواري وي خما حواري (ملګرے) زبير رضي اللّـه عنه دے. د سفيان بيان دے ما دا د ابن منكدر نه ياد كړي دي او ايوب هغه ته اووے چه اے ابوبكر ته خلقوته د جـابـر حـديـث بيان كه خكه چه خلقو ته ښه معلوميږي چـه كـه د جابر نه حديث نقل كړي نو هغه مجلس كښې ئـے دا اووے مـا دا جابر رضي الله عنه نه اوريدلے دي. د عـلـي بـن عـبـدالله بيان دے ما سفيان ته اووے چه سفيان (ثـوري) د جـنـګ قريظه په ورځ بيان كولو نو هغه اووے مـا د يـوم خندق لفظ داسے ياد كړے دے څنګه چه تاسو نـاست ئـے سفيان مسكے شو اووے وئيل چه دا دواړه يوه ورځ ده.

**باب ۴۸۹: د الله تعالي قول' چه د نبي كورونو كښې مه داخليږئے' خو' كه اجازت دركړے شي' كله چه يو اجازت وركړي' نو داخليدل جائز دي.**

۷۰۳۰: سـلـيـمـان بـن حـرب' حماد' ايوب' ابو عثمان' ابو مـوسٰي نه روايت كوي. نبي عليه السلام يو باغ كښې داخل شو او مـاتـه ئـے د دروازے د نـګرانـي حكم راكه يو سړي راغـے او هغه د داخـلـيـدو اجازت اوغـوښتـلـو نـو حـضـور صلي الله عليه وسلم اوفـرمـائـيـل دنـنـه دے راځـي او د جـنـت خوشخبري وركړه هغه ابـوبـكـر رضـي الله عنه وؤ' بيا حضرت عمر رضي الله راغـے' نبي عـلـيـه السلام اووے اجازت وركړه او خوشخبري وركړه د جنت.

فَقَالَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ ثُمَّ جَآءَ عُثْمَانُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ.

بيا عثمان رضي الله عنه راغے بيا نبي عليه السلام اوفرمائيل چه رادننه دے شي او د جنت خوشخبري ورکړي.

**باب ۴۹۰۰: بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزُّبَيْرَ طَلِيْعَةً وَحْدَهٗ.**

**باب ۴۹۰۰: د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم، د حضرت زبير رضي الله عنه ايکي يوازے، د، دشمن خبر راوړلو د پاره د، ليږلو بيان.**

۱ ۹۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ حَآئِطًا وَّ اَمَرَنِيْ بِحِفْظِ الْبَابِ فَجَآءَ رَجُلٌ يَّسْتَأْذِنُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهٗ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ، فَاِذَا اَبُوْبَكْرٍ ثُمَّ جَآءَ عُمَرُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهٗ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ، ثُمَّ جَآءَ عُثْمَانُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهٗ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ.

۱ ۹۳ : علي بن عبد اللّٰه، سفيان، ابن منكدر، حضرت جابر بن عبد اللّٰهؓ داخل شو. او ماته ئے د، دروازے، د نگراني حكم راكه، يو سړے راغے، او هغه د، داخليدو اجازت اوغوښتلو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دننه دے راځي، او د جنت خوشخبري ورکړه. هغه حضرت ابوبكر رضي الله عنه وو. بيا حضرت عمر رضي اللّٰه عنه راغے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، راځي دے، او، د جنت خوشخبري ورکړه بيا حضرت عثمان رضي الله عنه راغے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دننه دے راځي او د جنت خوشخبري ورکړه.

۲ ۹۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ يَّحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ جِئْتُ فَاِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَشْرُبَةٍ لَهٗ وَ غُلَامٌ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْوَدُ عَلٰى رَأْسِ الدَّرْجَةِ فَقُلْتُ قُلْ هٰذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ فَاَذِنَ لِيْ.

۲ ۹۳ : عبد العزيز بن عبد اللّٰه، سليمان بن بلال، يحيٰي، عبيد بن حنين، حضرت ابن عباسؓ، حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے، كوم وخت چه زه راغلم، نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپلے بالاخانه كښ وو. او د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو تور غلام په سيرهي وو. ما هغه ته اووے، دا عمر (رضي الله عنه) دے (يعني زه عمر (رضي اللّٰه) يم، ما د پاره اجازت طلب كه) نو حضور صلّي الله عليه وسلّم ماته دننه د، ورتلو اجازت راكه.

بـاب ۱ ۴۹ ۱: مَـا كَـانَ يَبْعَثُ النَّبِيُّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْاُمَـرَاۤءِ وَالرُّسُلِ وَاحِدًا بَعْدَ وَاحِدٍ وَ قَـالَ اِبْـنُ عَبَّـاسٍ بَـعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ دَحْيَةَ الْكَلْبِيُّ بِـكِتَـابِهٖ اِلٰى عَظِيْمِ بُصْرٰى اَنْ يَّدْفَعَهٗ اِلٰى قَيْصَرَ.

بـاب ۱ ۴۹ ۱: د دې امـر بيـان چـه نبي صلّي اللّٰـه عـليـه وسلّـم بـه اُمـراء او قـاصدان.يو بل پسې ليـږل او حـضــرت ابـن عبـاس رضــي اللّٰــه عنــه وئيـلـي دي. حـضـور صـلّـي اللّٰــه عليـه وسلّـم حـضـرت دحيــه كـلبـي لـه خـط وركـه، او عـظيـم بصـري طـرف تـه ئې اوليـږلـو، چـه هـغـه قيصـر تـه اوليږي.

۹۳۳ : حَـدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنِي اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَـابٍ اَنَّـهٗ قَـالَ اَخْـبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْـنِ عُتْبَةَ اَنَّ عَبْـدَ اللّٰـهِ بْنَ عَبَّـاسٍ اَخْبَـرَهٗ اَنَّ رَسُـوْلَ اللّٰــهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهٖ اِلٰى كِسْرٰى فَـاَمَـرَهٗ اَنْ يَّدْفَعَهٗ اِلٰى عَظِيْمِ الْبَحْرَيْنِ يَـدْفَـعُهٗ عَظِيْمُ الْبَحْرَيْنِ اِلٰى كِسْرٰى. فَـلَـمَّـا قَرَاَهٗ كِسْرٰى مَزَّقَهٗ فَحِسْبَتُ اَنَّ ابْـنَ الْـمُسَيَّـبِ قَـالَ فَـدَعَـا عَلَيْهِمْ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّمَزَّقُوْا كُلَّ مُمَزَّقٍ.

۹۳۳ : يـحيـٰي بـن بكير، ليث، يونـس، ابن شهاب، عبيـد اللّٰــه بـن عتبــه، حـضـرت عبـد اللّٰـه بـن عبـاس رضـي اللّٰــه عنــه نـه روايت كوي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰــه عليـه وسلّم خپل خط كسرئ تـه اوليږلو، نو، نـامـه بـر (قـاصـد) تـه ئې حكم اوكـه، چـه دا عظيم بحـريـن (د بـحـريـن حـاكـم) تـه اورسوي، او عظيم بحـريـن دې كسـري تــه اورسوي. كسـرئ چـه هغه خط اولـوسـت نـو هـغـه ئې ټكړې ټكړې ټكړې كه. د، زهــري بيـــان دې. زه خيـــال كـوم، ابـن مسيـب اوې رسـول اللّٰـه صـلّي اللّٰـه عليـه وسلّم هغې خلقو تــه بـدُعــا اوكـړه، چــه اللّٰــه تـعـالٰي دې هغوي هم ټكړې ټكړې كړي.

۹۳۴ : حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ حَدَّثَنَا يَـحْيٰـى عَنْ يَـزِيْـدَ ابْنِ اَبِـيْ عُبَيْدٍ حَـدَّثَـنَا سَلَمَةُ بْنُ الْاَكْوَعِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِـرَجُلٍ مِـنْ اَسْـلَـمَ اَذِّنْ فِـيْ قَوْمِكَ اَوْفِـيْ الـنَّـاسِ يَوْمَ عَاشُوْرَاۤءَ اَنَّ مَنْ اَكَـلَ فَـلْيُتِمَّ بَـقِيَّةَ يَـوْمِـهٖ وَ مَنْ لَّمْ

۹۳۴ : مسـدد، يـحيـٰي، يـزيـد بـن ابـي عبيـد، سـلـمـه بـن اكـوع رضـي اللّٰـه عـنـه نـه روايت كوي. رسـول اللّٰـه صلّي الله عليه وسلّم د قبيله اسلم يو سړي تـه د، عـاشـورې پـه ورځ اوفـرمـائيـل، خپل قوم يا خلقو كښې اعـلان اوكـه، چـه چا څـه خوړلي وي، نو هغه دې بـــاقـــي ورځ روژه پـوره كـړي، او چـا چــه نــه وي خـوړلـي، نـو هـغــه لـه پـكـار دي، چـه نـن روژه

يَكُنْ اَكَلَ فَلْيَصُمْ.

باب ۴۹۲: وُصَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُفُوْدَ الْعَرَبِ اَنْ يُبَلِّغُوْا مَنْ وَّرَآءَهُمْ قَالَهُ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ.

۹۳۵: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ وَ حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقَ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ قَالَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُقْعِدُنِيْ عَلٰى سَرِيْرِهٖ فَقَالَ اِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا اَتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ الْوَفْدُ؟ قَالُوْا رَبِيْعَةُ قَالَ مَرْحَبًا بِالْوَفْدِ وَالْقَوْمِ غَيْرَ خَزَايَا وَ لَا نَدَامٰى. قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ فَمُرْنَا بِاَمْرٍ نَدْخُلُ بِهِ الْجَنَّةَ وَ نُخْبِرُ بِهٖ مَنْ وَّرَآءَنَا. فَسَاَلُوْا عَنِ الْاَشْرِبَةِ فَنَهَاهُمْ عَنْ اَرْبَعٍ وَ اَمَرَهُمْ بِاَرْبَعٍ اَمَرَهُمْ بِالْاِيْمَانِ بِاللّٰهِ، قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا الْاِيْمَانُ بِاللّٰهِ؟ قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ

کړي.

باب ۴۹۲: د عرب وفودو ته د نبي صلّي الله عليه وسلّم د وصيتونو بيان چه هغې خلقو ته ئې اورسوي، چه هغوي نه ورسته پاتے شوے دي. د مالک بن حويرث بيان کړلو.

۹۳۵: علي بن جعد (دويم سند) اسحٰق، نضر، شعبه، ابو جمره نه روايت کوي. ابن عباس رضي الله عنه به زه په تخت کينولم. ذ هغه بيان دے. کوم وخت چه د عبد القيس وفد راغے نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا کوم وفد دے. هغې خلقو اووے، ربيعه، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ذ هغې وفد او قوم راتلل دي مبارک وي، نه خو رسوا، دي، او نه شرمسار هغې خلقو عرض اوکه، يا رسول الله، خمونږ او ستاسو مينځ کښې مضر کفار حائل دي، نو تاسو مونږ ته د داسے خبرو حکم راکړئے، چه په هغې عمل کولو سره مونږ جنت کښې داخل شو، او مونږ پسے راتلونکو ته هم هغه اوښايو. هغې خلقو ذ څکلو څيزونو متعلق تپوس اوکه، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم ذ څلورو څيزونو نه منع کړل، او ذ څلورو خبرو حکم ئې ورکه هغوئ ته ئې په الله د ايمان راوړلو حکم ورکه. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، آيا تاسو پوهيږئے، چه ايمان بالله څه څيز دے. هغوي عرض اوکه الله او د هغه رسول ښه پوهيږي. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، هغه ذ دے خبرے شهادت کول دي، چه د الله نه سوا بل څوک معبود نشته، چه ايکي يو دے، ذ هغه څوک شريک نشته، او دا چه محمد د الله رسول دے.

وَ اَقَامُ الصَّلٰوةَ وَ اِيْتَاءِ الزَّكٰوةَ وَ اَطُّنُّ فِيْهِ صَيَامَ رَمَضَانَ، وَ تُؤْتُوْا مِنَ الْمَغَانِمَ الْخُمُسَ وَ نَهَاهُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ وَالنَّقِيْرِ وَ رُبَمَا قَالَ الْمُقَيَّرُ قَالَ اِحْفَظُوْا هُنَّ وَ اَبْلِغُوْهُنَّ مَنْ وَّرَآءَكُمْ.

او مونځ کول، زکوة ورکول. د، راوي بيان دے. خما ګمان دے، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم ذ رمضان د، روژو متعلق هم اوفرمائيل او مال غنيمت کښ خمس (پنځمه حصه) ورکول، او هغوئ ئے د، دُبّاء، حنتم، مزفت او نقير (د شرابو د جوړولو اوڅکلو مختلف لوښو) نه منع کړل. او کله ئے د مقير لفظ روايت کړلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا ياد ساتئے، او هغوي ته ئے اورسوے، چه تاسو نه ورستو پاتے شوے دي.

## بَابُ ۴۹۳: خَبَرِ الْمَرْأَةِ الْوَاحِدَةِ.

## باب ۴۹۳: د، يوے ښځے ذ خبر ورکولو بيان.

۹۳۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ تَوْبَةَ الْعَنْبَرِيِّ قَالَ قَالَ لِيَ الشَّعْبِيُّ اَرَاَيْتَ حَدِيْثَ الْحَسَنِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَاعَدْتُّ ابْنَ عُمَرَ قَرِيْبًا مِّنْ سَنَتَيْنِ اَوْ سَنَةٍ وَ نِصْفٍ فَلَمْ اَسْمَعْهُ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هٰذَا قَالَ كَانَ نَاسٌ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِمْ سَعْدٌ فَذَهَبُوْا يَأْكُلُوْنَ مِنْ لَحْمٍ فَنَادَتْهُمْ امْرَاَةٌ مِّنْ بَعْضِ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوْا اَوْ اَطْعَمُوْا فَاِنَّهُ حَلَالٌ او قَالَ لَا بَأْسَ بِهِ شَكَّ فِيْهِ وَ لٰكِنَّهُ لَيْسَ مِنْ طَعَامِيْ.

۹۳۶: محمد بن وليد، محمد بن جعفر، شعبه، توبه عنبري نه روايت کوي ذ هغه بيان دے، ماته شعبه اووے، آيا تا د حسن بصري حديث اوليدو، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه ئے (مرسلاً) روايت کوي، حالانکه زه حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه يو نيم يا دوه کاله پاتے شويم، ليکن ما د هغه نه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د دے حديث نه سوا بل هيڅ حديث روايت کول نه دي اوريدلے. ذ هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم صحابه رضي اللّٰه عنهم چه هغے کښ حضرت سعد هم وو، غوښه ئے خوړله. ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو تبير (بي بي) په زوره اووے، چه دا، د، سمسرے غوښه ده، نو هغه خلق لاس نيولے شو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خورئے، ځکه چه دا حلاله ده، يا، وے فرمائيل (راوي ته شک دے) چه دے کښ څه حرج نشته. ليکن دا خما خوراک نه دے.

# كِتَابُ الْاِعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ

# (كتاب او سنت مضبوطي سره ذ' نيولو بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع كوم په نامه د خدائے چه بخښونكے او مهربانه دے

۹۳۷ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مِسْعَرٍ وَّ غَيْرِهٖ عَنْ قَيْسِ ابْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُوْدِ لِعُمَرَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَوْ اَنَّ عَلَيْنَا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ: اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَ اَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَ رَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا لَاتَّخَذْنَا ذٰلِكَ الْيَوْمَ عِيْدًا، فَقَالَ عُمَرُ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ اَيَّ يَوْمٍ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ نَزَلَتْ يَوْمَ عَرَفَةَ فِيْ يَوْمِ جُمُعَةٍ سَمِعَ سُفْيَانُ مِنْ مِسْعَرٍ، وَ مِسْعَرٌ قَيْسًا وَ قَيْسٌ طَارِقًا.

۹۳۷ : حميدي، سفيان، مسعر وغيره، قيس بن مسلم، طارق بن شهاب نه رويت كوي، ذ هغه بيان دے. يهودو كښې يو سړي حضرت عمر رضي اللّٰه عنه ته اووے اَے امير المُؤمنين، كه په مونږ د آيت نازل شوے: چه نن مونږ تاسو د پاره ستاسو دين كامل كړلو، او ما په تاسو خپل نعمتونه پوره كړل، او ماتاسو د پاره دين اسلام خوښ كړلو: نو مونږ به دا ورځ د، آختر ورخ كرځولے وه. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه جواب وركه ماته معلومه ده، چه په كومه ورځ دا، آيت نازل شوے دے، دا، ذَ جُمعے په ورځ يوم عرفه كښ نازل شوے دے. سفيان د مسعر نه او مسعر، د قيس نه او قيس د، طارق نه اوريدلے دے.

۹۳۸ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ ابْنُ مَالِكٍ اَنَّهٗ سَمِعَ عُمَرَ الْغَدَ حِيْنَ بَايَعَ الْمُسْلِمُوْنَ اَبَابَكْرٍ وَّاسْتَوٰى عَلٰى مِنْبَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَشَهَّدَ قَبْلَ اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاخْتَارَ اللّٰهُ لِرَسُوْلِهٖ

۹۳۸ : يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، انس بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. په كومه ورځ چه مسلمانانو ذَ حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه بيعت اوكه. د هغې په دويمه ورځ مو، ذَ حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه واوريدل، هغه ذَ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په منبر كيناستلو، او ذَ حضرت ابوبكر رضي اللّٰه عنه نه ئې مخكښ خطبه اولوسته اوونيلے. امابعد (دے نه پس) اللّٰه تعالٰي د خپل رسول صلّي اللّٰه عليه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ عِنْدَهُ عَلَى الَّذِيْ عِنْدَكُمْ وَ هٰذَا الْكِتَابُ الَّذِيْ هَدَى اللّٰهُ بِهٖ رَسُوْلَكُمْ فَخُذُوْا بِهٖ تَهْتَدُوْا وَ اِنَّمَا هَدَى اللّٰهُ بِهٖ رَسُوْلَهٗ.

وسلّم د پاره د هغې څيز مقابله کښې چه تاسو سره دے هغه څيز غوره که، چه هغه سره دے. او دا کتاب هغه دے، چه د دے په ذريعه نے ستاسو رسول ته هدايت اوکه. نو دا (مضبوط) اونيسئ، چه هدايت بيامومئ. او اللّه د دے په ذريعه خپل رسول ته هدايت کړے دے.

۶۹۳۹: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ضَمَّنِيْ اِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اَللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ.

۶۹۳۹: موسٰي بن اسماعيل، وهيب، خالد، عکرمه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زه خپلے سينے مبارکے ته راجُخت کرم. او، وے فرمائيل، يا اللّٰه، ده ته دَ کتاب علم عطاء کړے.

ف: يا اللّٰه، د کتاب علم مونږ ته هم عطاء کړے. اللّٰهم آمين.

۶۹۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ عَوْفًا اَنَّ اَبَا الْمِنْهَالِ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا بَرْزَةَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يُغْنِيْكُمْ اَوْ نَعَشَكُمْ بِالْاِسْلَامِ وَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۶۹۴۰: عبد اللّٰه بن صباح، معمر، عوف، ابو المنهال، حضرت ابو برزه رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. هغه وئيلے. اللّٰه تعالٰي تاسو د، اسلام او محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذريعے سره غني کړے ئے، يا، تاسو ئے بلند کړے ئے.

۶۹۴۱: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ كَتَبَ اِلَى عَبْدِ الْمَلِكِ ابْنِ مَرْوَانَ يُبَايِعُهٗ وَ اُقِرُّ بِذٰلِكَ بِالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ عَلٰى سُنَّةِ اللّٰهِ وَ سُنَّةِ رَسُوْلِهٖ فِيْمَا اسْتَطَعْتُ.

۶۹۴۱: اسماعيل، مالک، عبد اللّٰه بن دينار نه روايت کوي. حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه، عبد الملک بن مروان ته د بيعت خط اوليږه چه څومره مانه کيدے شي، اللّٰه او د هغه، د رسول په سنت به اوريدو او د، اطاعت کولو اقرار کوم.

## باب ۴۹۴: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ.

باب ۴۹۴: دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم، چه زه جوامع الکلم سره راليږلے شوے يم.

ف: جوامع الکلم: هغه کلام چه د هغې الفاظ لږ او مطلب ډېر زیات وي. قرآن شریف

۹۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ وَ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ وَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِيْ اُتِيْتُ بِمَفَاتِيْحِ خَزَائِنِ الْاَرْضِ فَوُضِعَتْ فِيْ يَدِيْ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقَدْ ذَهَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنْتُمْ تَلْغَثُوْنَهَا اَوْ تَرْغَثُوْنَهَا اَوْ كَلِمَةً تُشْبِهُهَا.

۹۴۲: عبد العزیز بن عبد الله، ابراهیم بن سعد، ابن شهاب، سعید بن مسیب، حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کوي، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. زه جوامع الکلم (قرآن شریف) سره رالیږلے شوے یم او د، رُعب په ذریعه خما مدد کړے شوے دے. او یو ځل زه اُوده ووم، نو ما خوب کښې اولیدل، چه ماته د، زمکے د خزانو قُنجیانے راکړے شوے دي. او خما لاس کښې ایښودے شوے دي، او حضرت ابو هریره رضي الله عنه اووے. حضور صلّي الله علیه وسلّم خو، تشریف یوړلو او تاسو هغه خزانے خپل تصرف کښې راولئ، یا، د هغې نه فائدے اخلئ، یا، دغه شان څه الفاظ ئے بیان کړل.

۹۴۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنَ الْاَنْبِيَاءِ نَبِيٌّ اِلَّا اُعْطِيَ مِنَ الْاٰيَاتِ مَا مِثْلُهُ اَوْ مَنَ اَوْ اٰمَنَ عَلَيْهِ الْبَشَرُ وَ اِنَّمَا كَانَ الَّذِيْ اُوْتِيْتُ وَحْيًا اَوْحَاهُ اللّٰهُ اِلَيَّ فَاَرْجُوْا اِنِّيْ اَكْثَرَهُمْ تَابِعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

۹۴۳: عبد العزیز بن عبد الله، لیث، سعید، حضرت ابو هریره رضي الله عنه، نبي صلّي الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلّي الله علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو. هر نبي ته چه څو مره آیتونه ورکړے شو. هغه هومره په هغه ایمان راوړے شو. یا هغه (هومره) خلقو ایمان راوړلو. او ماته خو وحي راکړے شوے ده، چه الله تعالیٰ مَا طرف ته رالیږلے ده. په دے وجه زه امید کوم، چه د قیامت په ورځ به خما پیروي کونکي خلق ډېر زیات وي.

باب ۴۹۵: اَلْاِقْتِدَاءِ بِسُنَنِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ اِمَامًا. قَالَ اَئِمَّةً نَقْتَدِيْ بِمَنْ قَبْلَنَا وَ

باب ۴۹۵: د، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم د، سنتو د، پیروي کولو بیان. او، د، الله تعالیٰ قول، او مونږ د، متقیانو امام جوړ کړے. مجاهد اووے، داسے امام، چه مونږ د، ځان نه ړ مخکښنو اقتدا، اوکړو. او مونږ

يقتدى بها من بعدنا و قال ابن عون: ثلاث احبهن لنفسي و لاخواني: هذه السنة ان يتعلموها و يسألوا عنها والقرآن ان يتفهموه و يسألوا عنه، و يدعوا الناس الا من خير.

نه ورسنو خلق خمونږ اقتدا او کړي او ابن عون اووے درے حبرے داسے دي، چه هغه زه خان او خپلو وروړو د پاره خوښوم، دا سنت زده کړنے. او د دے متعلق تپوس کونے. او قرآن باندے خان پو هـ کړنے او د دے متعلق ذ خلقو نه تپوس او کړنے، او خلقو سره بغير د نيک کار نه يو خائے کيدل پريږدئے.

٩٤٤: حدثنا عمرو بن عباس حدثنا عبد الرحمن حدثنا سفيان عن واصل عن ابى وائل قال جلست الى شيبة فى هذا المسجد قال جلس الى عمر فى مجلسك هذا فقال هممت ان لا ادع فيها صفرآء ولا بيضآء الا قسمتها بين المسلمين قلت ما انت بفاعل، قال لم؟ قلت لم يفعله صاحباك قال هما المرآن يقتدى بهما.

٩٤٤: عمرو بن عباس، عبد الرحمن، سفيان، واصل، ابو وائل رضي الله عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. زه شيبه سره دے جمات کښ ناست ووم، نو هغه اووے. ماسره حضرت عمر رضي الله عنه ستا د دے ناستے په خائے ناست وو. هغه اووے. زه غوارم، چه دلته سره سپين (زر) هيڅ پرے نه ږدم. بلکه دا مسلمانانو کښ تقسيم کړم. ما اووے، تاسو داسے نه شے کولے. هغه اووے. ولے ما ورته اووے، ستاسو دواړو ملګرو، داسے نه دي کړے. هغه جواب راکه، هغه دواړه داسے وو، چه ذ هغوئ اقتدا کولے شي.

٩٤٥: حدثنا علي بن عبد الله حدثنا سفيان قال سألت الاعمش فقال عن زيد بن وهب سمعت حذيفة يقول حدثنا رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الامانة نزلت من السمآء فى جذر قلوب الرجال و نزل القرآن فقرأوا القرآن و علموا من السنة.

٩٤٥: علي بن عبد الله، سفيان، اعمش، زيد بن وهب، حضرت حذيفه رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو آمانت د آسمان نه ذ خلقو د زړونو گهرائي کښ نازل کړے شوے دے. او قرآن نازل شو، نو خلقو قرآن اولوست او، د سنت علم ئے حاصل كه:

٩٤٦: حدثنا ادم ابن اياس حدثنا شعبة اخبرنا عمرو بن مرة

٩٤٦: ادم بن ابي اياس، شعبه، عمرو بن مره، مره همداني، حضرت عبد الله نه روايت كوي.

سَمِعْتُ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيَّ يَقُوْلُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ اِنَّ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتَابُ اللّٰهِ وَ اَحْسَنَ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَرَّ الْاُمُوْرِ مُحْدَثَاتُهَا وَ اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ وَ مَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ.

ذ هغه بيان دے، د ټولو نه ښه خبره د اللّٰه تعالىٰ كتاب دے، او د ټولو نه بهتره طريقه ذ حضرت محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم طريقه ده. او د ټولو نه خراب كار د بدعت كار دے او د كوم څيز چه تاسو سره وعده شوې ده، هغه به كيږي، او تاسو اللّٰه تعالىٰ عاجز كولے نه شئے.

۹۴۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ زَيْدِ ابْنِ خَالِدٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ، لَاَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللّٰهِ.

۹۴۷: مسدد، سفيان، زهري، عبيد اللّٰه، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه او زيد بن خالد رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. وائي مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره وو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زه به ستاسو مينځ كښ د كتاب اللّٰه مطابق فيصله كوم.

۹۴۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالُ ابْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كُلُّ اُمَّتِيْ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ اَبٰى قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ مَنْ يَّاْبٰى؟ قَالَ مَنْ اَطَاعَنِيْ دَخَلَ الْجَنَّةَ وَ مَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ اَبٰى.

۹۴۸: محمد بن سنان، فليح، هلال بن علي، عطاء بن يسار، ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، څما ټول اُمت به جنت كښ داخليږي، سوا د هغه نه، چه انكار اوكړي، خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، او څوک به انكار كوي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چا چه څما اطاعت اوكه، هغه به جنت كښ داخل شي، او چا چه څما نافرماني اوكړه نو هغه انكار اوكه.

۹۴۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَادَةَ اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ حَيَّانٍ وَّ اَثْنٰى عَلَيْهِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَآءَ حَدَّثَنَا اَوْ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ: جَآءَتْ مَلَآئِكَةٌ اِلَى

۹۴۹: محمد بن عباده، يزيد، سليمان بن حيان، سعيد بن ميناء، جابر بن عبد اللّٰه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے فريښتے نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم له راغلے دغه وخت حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اُوده وو. بعضو اووے، چه دے اُوده دے. او بعضو

النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ نَائِمٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ فَقَالُوا إِنَّ لِصَاحِبِكُمْ هٰذَا مَثَلًا فَاضْرِبُوا لَهُ مَثَلًا فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ فَقَالُوا مَثَلُهُ كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنَى دَارًا وَجَعَلَ فِيهَا مَأْدُبَةً وَبَعَثَ دَاعِيًا فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ فَقَالُوا أَوِّلُوهَا لَهُ يَفْقَهْهَا فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ فَقَالُوا فَالدَّارُ الْجَنَّةُ وَالدَّاعِي مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ أَطَاعَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ أَطَاعَ اللّٰهَ وَمَنْ عَصَى مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَمُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرْقٌ بَيْنَ النَّاسِ تَابَعَهُ قُتَيْبَةُ عَنْ لَيْثٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ عَنْ جَابِرٍ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اوري، سترګې یې اوده دي او قلب (زړه) یې بیدار دی. هغوی په خپل منځ کې ووییل: د دې (سړي) مثال دی، هغه مثال ورته بیان کړئ. ځینو ووییل: دی اوده دی، ځینو ووییل: سترګې یې اوده دي او زړه یې بیدار دی. نو هغوی ووییل: د دوی مثال د هغه سړي دی چې هغه یو کور جوړ کړو، او هلته یې دسترخوان خور کړو او یو بلونکی یې اولیږلو، چا چې د هغه بلونکي دعوت قبول کړ، نو هغه کور کښې داخل شو، او دسترخوان نه یې خوراک اوکړو او چا چې د بلونکي دعوت قبول نه کړ، نو نه هغه کور کښې داخل شو او نه یې د دسترخوان نه خوراک اوکړ. هغوی ووییل: د دې مطلب بیان کړئ چې پرې کښې یې راشي. نو ځینو ووییل: چې هغه خو اوده دی او ځینو ووییل: سترګې یې اوده دي او زړه یې بیدار دی. بیا یې ووییل: چې کور خو جنت دی او بلونکی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دی، نو چا چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم اطاعت اوکړ، هغه د الله اطاعت اوکړ او چا چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نافرماني اوکړه، نو هغه د الله نافرماني اوکړه او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د خلقو مینځ کښې جدا کونکی دی. قتیبه د لیث نه په واسطه د خالد، سعید بن ابي هلال، جابر د دې متابعت کښې روایت کړی: چې مونږ ته نبي صلی الله علیه وسلم تشریف راوړلو.

٩٥٠: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ

٩٥٠: ابو نعیم، سفیان، اعمش، ابراهیم، همام، حضرت حذیفه رضي الله عنه نه روایت

إِبْرَاهِيمَ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ يَا مَعْشَرَ الْقُرَّاءِ اسْتَقِيمُوا فَقَدْ سُبِقْتُمْ سَبْقًا بَعِيدًا فَإِنْ أَخَذْتُمْ يَمِينًا وَ شِمَالًا لَقَدْ ضَلَلْتُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا.

کوي. هغه اووې. اې د قراءُ جماعته، تاسو نيغه لار اختيار کړئې، ځکه چه تاسو ډېر ورستو پاتې شوې يئې، که تاسو ښي ګس ته واوړېدې، نو تاسو به هغه وخت د، لرې ګمراهي ښکار اوغرځيږي.

۱ ۹ ۵ ۱: حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّمَا مَثَلِي وَ مَثَلُ مَا بَعَثَنِيَ اللّٰهُ بِهِ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَتَى قَوْمًا فَقَالَ يَا قَوْمِ إِنِّي رَأَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنَيَّ وَ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ فَالنَّجَاءَ فَأَطَاعَهُ طَائِفَةٌ مِنْ قَوْمِهِ فَأَدْلَجُوا فَانْطَلَقُوا عَلَى مَهْلِهِمْ فَنَجَوْا وَ كَذَّبَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ فَأَصْبَحُوا مَكَانَهُمْ فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَأَهْلَكَهُمْ وَ اجْتَاحَهُمْ فَذٰلِكَ مَثَلُ مَنْ أَطَاعَنِي فَاتَّبَعَ مَا جِئْتُ بِهِ وَ مَثَلُ مَنْ عَصَانِي وَ كَذَّبَ بِمَا جِئْتُ بِهِ مِنَ الْحَقِّ.

۱ ۹ ۵ ۱: ابو کريب، ابو اسامه، بريد، ابو برده، ابو موسي، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زما او د هغې مثال چه اللّٰه ماته راکړې دې، د هغې سړي په شان دې، چه يو قوم له راشي ورته وائي اې زما قوم ما خپلو سترګو سره لښکر ليدلې دې، او زه تاسو لره ځرګند ويرونکې يم، نو د نجات ځائې تلاش کړئې. دَ هغه دَ قوم نه خلقو دَ هغه خبره اومنله، او شپه په شپه اووتل، او دَ خپل پناه ځائې ته لاړل، نو خلاص (نجات) ئې بيامند. او يوې ډلې هغه دروغجن اوګڼړلو، او په خپل ځائې پاتې شو. سحرته لښکر په هغوئ حمله اوکړله، او هغوي ئې هلاک کړل. او قتل و غارت ئې اوکه. نو دا، د هغې سړي مثال دې چا چه زما اطاعت اوکه، او څه چه ما راوړې دي، دَ هغې پيروي ئې اوکړله. او، دَ هغې سړي مثال، چا چه زما نافرماني اوکړه او څه چه ما راوړې دي؛ هغه ئې دروغ اوګڼړل.

۲ ۹ ۵ ۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ

۲ ۹ ۵ ۱: قتيبه بن سعيد، ليث، عقيل، زهري، عبيد اللّٰه، بن عبد اللّٰه بن عتبه، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، کوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم وفات شو او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه پس حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه خليفه شو. او د عربو

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتُخْلِفَ اَبُوْبَكْرٍ بَعْدَهُ وَ كَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ قَالَ عُمَرُ لِاَبِيْ بَكْرٍ كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ وَ قَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَمَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ عَصَمَ مِنِّيْ مَالَهُ وَ نَفْسَهُ اِلَّا بِحَقِّهِ وَ حِسَابُهُ عَلَى اللّٰهِ. فَقَالَ وَاللّٰهِ لَاُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ فَاِنَّ الزَّكٰوةَ حَقُّ الْمَالِ وَاللّٰهِ لَوْ مَنَعُوْنِيْ عِقَالًا كَانُوْا يُؤَدُّوْنَهُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلٰى مَنْعِهٖ. قَالَ عُمَرُ فَوَاللّٰهِ مَا هُوَ اِلَّا اَنْ رَاَيْتُ اللّٰهَ قَدْ شَرَحَ صَدْرَ اَبِيْ بَكْرٍ لِلْقِتَالِ فَعَرَفْتُ اَنَّهُ الْحَقُّ قَالَ ابْنُ بُكَيْرٍ وَّ عَبْدُ اللّٰهِ عَنِ اللَّيْثِ عَنَاقًا وَّ هُوَ اَصَحُّ.

کوم خلق چه کافر کيدل، هغوئ کافر شو، نو حضرت عمر، ابوبکر رضي الله عنه ته اووے، چه تاسو به خلقو سره جهاد څنګه کوئے، حالانکه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، ماته حکم شوے دے، چه خلقو سره جنګ او کړم، تر دے چه هغوي: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووائي، نو چا چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه: اووے هغه مانه خپل ځان او مال ماسوا، د هغوئ د حق نه، بچ کړلو او د هغه حساب په اللّٰه دے. حضرت ابو بکر رضي الله عنه اووے. په خدائے م دے قسم وي، زه به هغے سړي سره جنګ کوم، چا چه مونځ او زکٰوة کښې تفريق او که، ځکه چه زکٰوة د مال حق دے. په خدائے م دے قسم وي، که دے خلقو يورسئ هم ايساره کړه (را ئے نه کړله) چه هغوئ د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم په زمانه کښې ورکوله، نو زه به د هغے په نه ورکولو هغوئ سره جنګ کوم. د حضرت عمر رضي الله عنه بيان دے. ما دا خيال او که، چه اللّٰه تعالي د حضرت ابوبکر رضي الله عنه سينه جنګ د پاره پرانستے ده. نو په پو ه شوم، چه دا حق خبره ده. ابن بکير او عبد اللّٰه د، ليث نه (د، عقال په ځائے) د، عناق لفظ روايت کړے دے. او دا زيات صحيح دے.

۹۵۳ : حَدَّثَنِيْ اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَدِمَ عُيَيْنَةُ بْنُ حِصْنِ بْنِ حُذَيْفَةَ بْنِ بَدْرٍ

۹۵۳ : اسماعيل، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، عبيد اللّٰه بن عبد الله بن عتبه، عبد الله بن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے، عيينه بن حصن بن حذيفه بن بدر راغے، او خپل وراره حر بن قيس بن حصن سره کوز شولو او دے هغے خلقو کښې وو چه حضرت عمر رضي الله عنه به ځان سره قريب ساتل او

فَنَزَلَ عَلٰى ابْنِ اَخِيهِ الْحَرِّ بْنِ قَيْسِ بْنِ حِصْنٍ وَ كَانَ مِنَ النَّفَرِ الَّذِيْنَ يُدْنِيْهِمْ عُمَرُ وَ كَانَ الْقُرَّآءُ اَصْحَابُ مَجْلِسِ عُمَرَ وَ مَشَاوَرَتِهٖ كُهُوْلًا كَانُوْا اَوْ شُبَّانًا فَقَالَ عُيَيْنَةُ لِابْنِ اَخِيْهِ يَا ابْنَ اَخِيْ هَلْ لَكَ وَجْهٌ عِنْدَ هٰذَا الْاَمِيْرِ فَتَسْتَأْذِنَ لِيْ عَلَيْهِ؟ قَالَ سَاَسْتَأْذِنُ لَكَ عَلَيْهِ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَاسْتَأْذَنَ لِعُيَيْنَةَ فَلَمَّا دَخَلَ قَالَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَاللّٰهِ مَا تُعْطِيْنَا الْجَزْلَ وَمَا تَحْكُمُ بَيْنَنَا بِالْعَدْلِ، فَغَضِبَ عُمَرُ حَتّٰى هَمَّ بِاَنْ يَّقَعَ بِهٖ، فَقَالَ الْحُرُّ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَالَ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَاَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ وَ اِنَّ هٰذَا مِنَ الْجَاهِلِيْنَ فَوَاللّٰهِ مَا جَاوَزَهَا عُمَرُ حِيْنَ تَلَاهَا عَلَيْهِ، وَ كَانَ وَقَّافًا عِنْدَ كِتَابِ اللّٰهِ.

قراء (قاریان) خواه هغه به بوډاګان وو یا ځلمي، ذ حضرت عمر رضي الله عنه د مجلس ملګري او د هغه مشران به وو عیینه خپل وراره ته اووے، اے وراره، آیا امیر المؤمنین ته ستا رسائي شته، ته خما د پاره اجازت اخستے شے هغه ورته اووے زه به عنقریب ستا د پاره اجازت واخلم. ذ ابن عبّاس بیان دے. هغه ذ عیینه ذ اجازت وَاخستلو. کوم وخت چه هغه دننه راغے، نو ونیلے، اے ذ خطاب خویه په خدائے م دے قسم وي، ته خو، نه مونږ ته زیات مال راکوے، او نه خمونږ مینځ کښ عدل سره فیصله کوے. حضرت عمر رضي الله عنه ته په دے خبره غصه ورغله، نزدے وه، چه لاس ورواچوري. خو، حر، ورته اووے اے امیر المؤمنین، الله تعالي خپل نبي صلّي الله علیه وسلّم ته فرمائیلے دي. معافي قبوله کړه او د نیکو حکم ورکوه. او جاهلانو ته معافي اوکړه. او دا سړے ذ جاهلانو نه دے. په خدائے م دے قسم وي. کوم وخت چه دا، آیت د حضرت عمر رضي الله عنه مخکښ اولوستے شو. نو هغه د دے آیت خلاف اونه کړلو. او په کتاب الله به ئے ډیر زیات عمل کولو.

۹۵۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ عَنْ اَسْمَآءَ ابْنَةِ اَبِيْ بَكْرٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهَا قَالَتْ اَتَيْتُ عَآئِشَةَ حِيْنَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ وَالنَّاسُ قِيَامٌ وَّ هِيَ قَآئِمَةٌ تُصَلِّيْ فَقَالَتْ مَا لِلنَّاسِ فَاَشَارَتْ

۹۵۴ : عبد الله بن مسلمه، مالک، هشام بن عروه، فاطمه بنت منذر اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنه نه روایت کوي. ذ هغے بیان دے. زه بي بي عائشے له راغلم، هغه وخت نمر تندر نیولے وو. او هغے خلقو مونځ کولو. او هغه هم ولاړه وه مونځ ئے کولو. ما، اووے، ذا خلق څه کوي هغے خپل لاس سره آسمان طرف ته اشاره اوکړه. او وئیلے سبحان الله، ما تپوس

بِيَدِهَا نَحْوَ السَّمَآءِ فَقَالَتْ سُبْحَانَ اللّٰهِ، فَقُلْتُ اٰيَةٌ؟ قَالَتْ بِرَاْسِهَا اَنْ نَعَمْ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ لَمْ اَرَهُ اِلَّا وَ قَدْ رَاَيْتُهُ فِيْ مَقَامِيْ حَتَّى الْجَنَّةَ وَالنَّارَ وَ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّكُمْ تُفْتَنُوْنَ فِي الْقُبُوْرِ قَرِيْبًا مِّنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ فَاَمَّا الْمُؤْمِنُ اَوِ الْمُسْلِمُ لَآ اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءِ فَيَقُوْلُ مُحَمَّدٌ جَآءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ فَاَجَبْنَا وَ اٰمَنَّا فَيُقَالُ نَمْ صَالِحًا عَلِمْنَا اَنَّكَ مُوْقِنٌ، وَ اَمَّا الْمُنَافِقُ اَوِ الْمُرْتَابُ. لَا اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَتْ اَسْمَآءُ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ شَيْئًا فَقُلْتُهُ.

او که آیا څه نښه ده؟ هغې اشارې سره اووې او. کوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ مانځه نه فارغ شو، نو د اللّٰه تعالىٰ حمد و ثنا ئې بيان کړه. بيائې اوفرمائيل څه څيز داسې نشته، چه ما دلته اونه ليدو تر دې چه جنت او دوزخ هم. او ماته وحي شوې ده، چه تاسو خلق به قبرونو کښې د دجّال د فتنو قريب زمانه کښې ازمائيلې شئې. مؤمن يا مسلم (د بي بي اسماء بيان دې ماته ياد نه دي، مؤمن يا مسلم ئې اوفرمائيل) وائي به، محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته احکام راوړل. مونږ هغه قبول کړل. او ايمان مو، راوړلو. بيا به ورته وئيلې شي چه آرام سره اوده شه. مونږ ته معلومه وه، چه يقين لرونکې ئې. او منافق يا مرتاب (بي بي اسماء اووې، ماته ياد نه دي، چه دې دواړو کښې ئې څه اوفرمائيل) وائي به، ماته نه ده معلومه، څه چه مِ د خلقو نه اوريدلې وو، هغه ماهم اووې.

۹۵۵ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَعُوْنِيْ مَا تَرَكْتُكُمْ اِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِسُؤَالِهِمْ وَاخْتِلَافِهِمْ عَلٰى اَنْبِيَآئِهِمْ فَاِذَا نَهَيْتُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَاجْتَنِبُوْهُ وَ اِذَا اَمَرْتُكُمْ بِاَمْرٍ فَأْتُوْا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ.

۹۵۵ : اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج، ابو هريره، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو ما پريږدئې، څو پورې چه زه تاسو پريږدم (يعني بې ضرورته مانه تپوس مه کوې) ستاسو نه مخکښې قومونه د، دې تپوسونو او، انبياؤ سره ذ، اختلاف په سبب هلاک شو. هر کله چه زه تاسو د، يو څيز نه منع کړم، نو د هغې نه پرهيز کوئې، او د څه خبرې چه تاسو ته حکم درکړم. نو هغه کوئې، څومره چه تاسو نه کيدې شي.

باب ۲۹۲ : مَا يُكْرَهُ مِنْ كَثْرَةِ السُّؤَالِ وَ تَكَلُّفِ مَا لَا يَعْنِيْهِ، وَ قَوْلِهٖ

باب ۲۹۲ : د، ډيرو تپوسونو او بې فائدې تکلّف د، کراهت بيان. او د اللّٰه تعالىٰ قول، چه د څه

تَعَالَىٰ: لَا تَسْئَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ.

٦٥٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يَزِيْدَ الْمُقْرِئُ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ ابْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَعْظَمَ الْمُسْلِمِيْنَ جُرْمًا مَّنْ سَاَلَ عَنْ شَيْءٍ لَّمْ يُحَرَّمْ فَحُرِّمَ مِنْ اَجْلِ مَسْئَلَتِهٖ.

٧٥٩: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عَفَّانُ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ سَمِعْتُ اَبَا النَّضْرِ يُحَدِّثُ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ حُجْرَةً فِي الْمَسْجِدِ مِنْ حَصِيْرٍ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهَا لَيَالِيَ حَتّٰى اجْتَمَعَ اِلَيْهِ نَاسٌ ثُمَّ فَقَدُوْا صَوْتَهٗ لَيْلَةً فَظَنُّوْا اَنَّهٗ قَدْ نَامَ فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يَتَنَحْنَحُ لِيَخْرُجَ اِلَيْهِمْ فَقَالَ، مَا زَالَ بِكُمُ الَّذِيْ رَاَيْتُ مِنْ صَنِيْعِكُمْ حَتّٰى خَشِيْتُ اَنْ يُّكْتَبَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ كُتِبَ عَلَيْكُمْ مَا قُمْتُمْ بِهٖ فَصَلُّوْا

خيز متعلق زيات تپوسونه مه کوے' که درته ظاهر کړے شي' نو تاسو ته به بدمعلوم شي.

٦٥٩: عبد اللّٰه بن يزيد مقري' سعيد' عقيل' ابن شهاب' عامر بن سعد بن ابي وقاص' سعد بن ابي وقاص نه روايت کوي' ۮ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' مسلمانانو کښ ۮ ټولو نه زيات مجرم هغه سړے دے' چه هغه ۮ يو داسے خيز متعلق تپوس اوکه' چه حرام نه وو' او ۮ هغه ۮ تپوس کولو په وجه حرام کړے شو.

٧٥٩: اسحٰق' عفان' وهيب' مُوسٰي بن عقبه' ابو النضر' بسر بن سعيد زيد بن ثابت رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي ۮ هغه بيان دے' نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم جمات کښ د' پوزکو يوه حجره (کړه) تياره کړه او هغے کښ رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم څو شپے مونځ اوکه' تر دے چه خلق ۮ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ځلور طرف ته جمع شو (او مونځ ئے کولو) بيا يوه شپه خلقو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم آواز وانه ريدلو' نو خيال ئے اوکه' چه شايد حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوده شوے دے' نو بعضو ۮ مرئ تازه کولو (ۮ ټوخي آواز ايستلو) سره خبردارے ورکول شروع کړل' چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم بهرته تشريف راوړي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ما برابر کتل' چه تاسو څه کول' تر دے چه ماسره خوف شو' چه چرته تاسو باندے فرض نشي' اوکه تاسو باندے دا (مونځ) فرض شوے وے' نو تاسو په دے قائم نه شوئے پاتے

اَيُّهَا النَّاسُ فِيْ بِيُوْتِكُمْ فَاِنَّ اَفْضَلَ صَلَاةِ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهٖ اِلَّا الصَّلٰوةَ الْمَكْتُوْبَةَ.

کيدے، په دے وجه، اے خلقو، تاسو خپل خپل کورونو کښ مونځونه کوئ. ځکه چه ذ سړي خپل کور کښ، ذ فرض مونځ نه سوا، مونځ کول بهتر دي.

۹۵۸ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَشْيَآءَ كَرِهَهَا فَلَمَّا اَكْثَرُوْا عَلَيْهِ وَالْمَسْئَلَةَ غَضِبَ وَ قَالَ: سَلُوْنِيْ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَبِيْ قَالَ اَبُوْكَ حُذَافَةُ ثُمَّ قَامَ اٰخَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَبِيْ فَقَالَ اَبُوْكَ سَالِمٌ مَوْلٰى شَيْبَةَ فَلَمَّا رَاٰى عُمَرُ مَا بِوَجْهِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْغَضَبِ قَالَ اِنَّا نَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ.

۹۵۸ : يوسف بن موسٰي، ابو اسامه، بريد بن ابي برده، ابو برده، ابو موسٰي اشعري رضي الله عنه نه روايت کوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه ذ يو څو څيزونو متعلق يو سړي تپوس اوکه، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم هغه خوښ نه کړلو. کوم چه د تپوسونو، کثرت شو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم له غصه ورغله. اووے فرمائيل، مانه تپوس کوئے. (څه چه دِ مو خوښه وي) يو سړے اوريد، او عرض ئے اوکه، يا رسول الله، څما پلار څوک دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ستا پلار، ابو حذافه دے. بيا يو بل سړے اودريد، او تپوس ئے اوکه، يا رسول الله، څما پلار څوک دے. وے فرمائيل ستا پلار سالم د شيبه آزاد کړده غلام دے. کوم وخت چه حضرت عمر رضي الله عنه د غضب آثار اوليدل، چه د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د مخ مبارک نه ظاهريدل، نو هغه اووے. مونږ الله بزرګ و برتر طرف ته رجوع کوو.

۹۵۹ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ وَرَّادٍ كَاتِبِ الْمُغِيْرَةِ قَالَ كَتَبَ مُعَاوِيَةُ اِلَى الْمُغِيْرَةِ اُكْتُبْ اِلَيَّ مَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَتَبَ اِلَيْهِ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۹۵۹ : موسٰي ابو عوانه، عبد الملک، وراد (د مغيره کاتب) نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے. حضرت معاويه رضي الله عنه مغيره ته اوليکل، مَاته اوليکه، چه تا د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه اوريدلے دي. نو حضرت مغيره رضي الله عنه ورته اوليکل. حضور صلّي الله عليه وسلّم به هر مونځ پسے دا، فرمائيل: د، الله نه سوا بل معبود نشته، هغه اِيکي يو دے، ذ هغه شريک

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَ لَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَ لَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ وَ كَتَبَ اِلَيْهِ اِنَّهٗ كَانَ يَنْهٰى عَنْ قِيْلَ وَ قَالَ وَ كَثْرَةِ السُّؤَالِ وَ اِضَاعَةِ الْمَالِ وَ كَانَ يَنْهٰى عَنْ عُقُوْقِ الْاُمَّهَاتِ، وَ وَأْدِ الْبَنَاتِ، وَ مَنْعٍ وَّ هَاتِ.

نشته، هغه لره بادشاهي ده، او هغه له ټوله تعريف دے. او هغه په هر څيز قادر دے. اے الله، ته چه چاله ورکړه کوے، ذ هغے څوک منع کونکے نشته، او ته چه چاله نه ورکوے نو ذ هغے څوک ورکونکے نشته، او هيڅ بزرګي واله ته ستا نه ذ هغه بزرګي نفع نشي ورکولے او، وے ليکل، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم به قيل و قال (بحث) ډير تپوسونه کولو او مال ضائع کولو نه منع فرمائيله. او د، ميندود، نافرمانئ، او د لونړو ژوندئے ښخولو (زنده درگور کرنا) او د حقوقو نه ادا کولو او بے ضرورته د غوښتلو نه منع فرمائيله.

٩٦٠: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ عُمَرَ فَقَالَ نُهِيْنَا عَنِ التَّكَلُّفِ.

٩٦٠: سليمان بن حرب، حماد بن زيد، ثابت، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي. مونږ حضرت عمر رضي الله عنه سره ناست وو، نو هغه اووے چه مونږ تکلّف نه منع کړے شوے يو.

٩٦١: حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ حِيْنَ زَاغَتِ الشَّمْسُ فَصَلَّى الظُّهْرَ فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَذَكَرَ السَّاعَةَ وَ ذَكَرَ اَنَّ بَيْنَ يَدَيْهَا اُمُوْرًا عِظَامًا ثُمَّ قَالَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّسْاَلَ عَنْ شَيْءٍ فَلْيَسْاَلْ عَنْهُ فَوَاللّٰهِ لَا تَسْاَلُوْنِيْ عَنْ شَيْءٍ اِلَّا اَخْبَرْتُكُمْ بِهٖ مَا دُمْتُ فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا،

٩٦١: ابو اليمان، شعيب، زهري، (دويم سند) محمود، عبد الرزاق، معمر، زهري، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ذ نمر د، زوال کيدو نه پس تشريف راوړلو. او د ماسپخين مونځ ئے اوکه. چه سلام ئے اوګرځولو، نو په منبر اوددريدلو. او ذ، قيامت ذکر ئے اوفرمائيلو. چه د هغے نه مخکښ ډير لوئے لوئے اُمور دي. بيائے اوفرمائيل کوم سړے چه څه تپوس کول غواړي، هغه دے تپوس اوکړي، په خدائے م دے قسم وي، څو پورے چه زه په ځهل دے ځائے يم، نو څه چه تاسو ماله تپوس کوئے، نو زه به ذ هغے جواب درکوم. ذ حضرت انس رضي الله عنه بيان دے. خلق ډير زيات په

قَالَ اَنَسٌ فَاَكْثَرَ النَّاسُ الْبُكَاءَ وَ اَكْثَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّقُوْلَ سَلُوْنِيْ فَقَالَ اَنَسٌ فَقَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ فَقَالَ اَيْنَ مَدْخَلِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ النَّارُ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ حُذَافَةَ فَقَالَ مَنْ اَبِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَبُوْكَ حُذَافَةُ قَالَ ثُمَّ اَكْثَرَ اَنْ يَّقُوْلَ سَلُوْنِيْ، سَلُوْنِيْ فَبَرَكَ عُمَرُ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ فَقَالَ: رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَّ بِالْاِسْلَامِ دِيْنًا وَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُوْلًا قَالَ فَسَكَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ عُمَرُ ذٰلِكَ. ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَقَدْ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ اٰنِفًا فِيْ عُرْضِ هٰذَا الْحَائِطِ وَ اَنَا اُصَلِّيْ فَلَمْ اَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ.

زړا شو او رسول الله صلّي الله عليه وسلّم به بار بار دغه فرمائيل، چه مانه تپوس او كړئ. د انس رضي الله عنه بيان دے. يو سړے د حضور صلّي الله عليه وسلّم مخے ته اودريدو. او تپوس ئے اوكه، يا رسول الله، خما د، داخليدو كوم خائے دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دوزخ. بيا عبد الله بن حذافه اودريدلو. او تپوس ئے اوكه، يا رسول الله، خما پلار څوك دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ستا پلار حذافه دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم بيا برابر دغه فرمائيل، چه مانه تپوس اوكړئ، مانه تپوس اوكړے، نو حضرت عمر رضي الله عنه په زنګونو اودريدلو اووئيلے: رضينا بالله رَبًّا وَّ بالْاِسْلام دينًا و، بحمد صلّي الله عليه وسلّم رسولًا، هر كله چه حضرت عمر رضي الله عنه داسے اووے، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خاموش شولو، بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل قسم دے په هغه ذات چه دَ هغه قبضه كښ خما ساه ده، خما مخكښ جنت او دوزخ اوس د دے ديوال مخكښ پيش كړے شو، هغه وخت ما مونځ كولو، ما د نن په شان خير و شر هيڅ كله نه دے ليدلے.

۶۶۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنِيْ مُوْسَى بْنُ اَنَسٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ مَنْ اَبِيْ قَالَ اَبُوْكَ فُلَانٌ، وَ نَزَلَتْ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْئَلُوْا عَنْ اَشْيَاءَ الْاٰيَةَ.

۶۶۲ : محمد بن عبد الرحيم، روح بن عباده، شعبه، موسٰي بن اَنس، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے. يو سړي تپوس اوكه، اے د، الله نبي، خما پلار څوك دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ستا پلار فلانے دے، او دا، آيت: چه اے ايماندارو، د، داسے څيزونو متعلق تپوس مه كوئ: آخر آيت پورے.

۶۹۶۳: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَبْرَحَ النَّاسُ سَيَتَسَاءَ لُوْنَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا هٰذَا اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَمَنْ خَلَقَ اللّٰهَ.

۶۹۶۳: حسن بن صباح شبابه، ورقاء، عبد الله بن عبد الرحمن، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، خلق به دريافت کوي، تر دے چه وائي به الله خو، د ټولو څيزونو پيدا کونکے دے. ليکن الله تعالیٰ چا پيدا کړے.

۶۹۶۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُوْنٍ حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَرْثٍ بِالْمَدِيْنَةِ وَهُوَ يَتَوَكَّأُ عَلٰى عَسِيْبٍ فَمَرَّ بِنَفَرٍ مِنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ سَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا تَسْأَلُوْهُ لَا يُسْمِعُكُمْ مَا تَكْرَهُوْنَ فَقَامُوْا اِلَيْهِ فَقَالُوْا يَا اَبَا الْقَاسِمِ حَدِّثْنَا عَنِ الرُّوْحِ فَقَالَ سَاعَةً يَنْظُرُ فَعَرَفْتُ اَنَّهُ يُوْحٰى اِلَيْهِ، فَتَاَخَّرْتُ عَنْهُ حَتّٰى صَعِدَ الْوَحْيُ، ثُمَّ قَالَ وَ يَسْاَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ.

۶۹۶۴: محمد بن عبيد بن ميمون، عيسي بن يونس، ابراهيم، علقمه ابن مسعود نه روايت کوي. زه نبي صلّي الله عليه وسلّم سره دَ مدينے يو پټي (کهيت) کښې ووم. دغه وخت حضور صلّي الله عليه وسلّم دَ قجورے يو ښاخ سره سهارا اخستے وه. بيا د يهودو په جماعت تير شولو، نو هغوئ کښې بعضے يو بل ته اووے، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم نه د، روح متعلق تپوس اوکړئے. او بعضو اووے تپوس ترے مه کوئے ځکه چه هغه به تاسو ته داسے خبره واوروي، چه ستاسو به ناخوښه وي. نو هغه خلق حضور صَلّي الله عليه وسلّم ته مخے ته اودريدل، او وئيلے، اَے ابو القاسم (صلعم) مونږ ته د، روح متعلق بيان اوکړه. حضور صلّي الله عليه وسلّم لږ ساعت ولاړ، وو، کتل ئے، تر دے چه ماته معلومه شوه، چه په حضور صلّي الله عليه وسلّم وحي نازليږي. زه ورستو شوم، حتّي چه وحي پورته اوخته، بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: خلق تانه د، روح متعلق تپوس کوي، ورته اووايه چه روح خما د، رب دَ حکم نه دے.

باب ۷ ۹ ۴: اَلْاِقْتِدَآءِ بِاَفْعَالِ

باب ۷ ۹ ۴: د نبي صلّي الله عليه وسلّم د،

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

العالو، دَ اقتداءِ کولو بيان.

۶۹۶۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اِتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ فَاتَّخَذَ النَّاسُ خَوَاتِيْمَ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِنِّيْ اتَّخَذْتُ خَاتَمًا مِّنْ ذَهَبٍ فَنَبَذَهٗ وَ قَالَ اِنِّيْ لَنْ اَلْبَسَهٗ اَبَدًا، فَنَبَذَ النَّاسُ خَوَاتِيْمَهُمْ.

۶۹۶۵: ابو نعيم، سفيان، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، سرو، زرو، يوه گوته جوړه کړه، نو خلقو هم د، سرو گوتے جوړے کړے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. ما د سرو يوه گوته جوړه کړے وه. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه اوغرځوله. اووے فرمائيل، بيا به دا زه هيڅ کله وانه چوم. دے ليدو سره خلقو هم خپلے گوتے اوغُرځولے.

باب ۴۹۸: مَا يُكْرَهُ مِنَ التَّعَمُّقِ وَالتَّنَازُعِ فِي الْعِلْمِ وَالْغُلُوِّ فِي الدِّيْنِ وَالْبِدَعِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ وَ لَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ.

باب ۴۹۸: د دے امر بيان، چه علم کښې خپلو کښې جګړه، او دے کښې تعمق او دين کښې غلو، او بدعت مکروه دے، ځکه چه اللّٰه تعالي اوفرمائيل، اے اهل کتابو، خپل دين کښې د حد نه تجاوز مه کوئے، او په اللّٰه د حق نه سِوا، نور څه مه وائيے.

۶۹۶۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُوَاصِلُوْا قَالُوْا اِنَّكَ تُوَاصِلُ قَالَ اِنِّيْ لَسْتُ مِثْلَكُمْ اِنِّيْ اَبِيْتُ يُطْعِمُنِيْ رَبِّيْ وَ يَسْقِيْنِيْ فَلَمْ يَنْتَهُوْا عَنِ الْوِصَالِ، قَالَ فَوَاصَلَ بِهِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَيْنِ اَوْ لَيْلَتَيْنِ ثُمَّ رَاَوُا الْهِلَالَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۶۹۶۶: عبد اللّٰه بن محمد، هشام، معمر، زهري، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو صوم وصال مه نيسئے. خلقو عرض اوکه تاسو خو، صوم وصال نيسئے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، زه ستاسو په شان نه يم، په ما خما خپل رب خوروي او څکوي. ليکن خلق دَ هغې نه منع نه شو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ سره دوه (۲) ورځے يا دوه (۲) شپے روژه اونيوله. بيا خلقو مياشت اوليده، نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د تنبيه کو ، په شان

لَوْ تَأَخَّرَ الْهِلَالُ لَزِدْتُكُمْ كَالْمُنَكِّلِ لَهُمْ.

اوفرمائيل، که مياشت ليدلے شوے نه وے، نو ما به تاسو سره نورے روژے نيولے وے.

٩٦٧ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنِيْ إِبْرَاهِيْمُ التَّيْمِيُّ حَدَّثَنِيْ أَبِيْ قَالَ خَطَبَنَا عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَلٰى مِنْبَرٍ مِّنْ آجُرٍّ وَّ عَلَيْهِ سَيْفٌ فِيْهِ صَحِيْفَةٌ مُّعَلَّقَةٌ فَقَالَ وَاللّٰهِ مَا عِنْدَنَا مِنْ كِتَابٍ يُّقْرَأُ إِلَّا كِتَابُ اللّٰهِ وَ مَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ فَنَشَرَهَا فَإِذَا فِيْهَا أَسْنَانُ الْإِبِلِ وَ إِذَا فِيْهَا الْمَدِيْنَةُ حَرَمٌ مِّنْ عَيْرٍ إِلٰى كَذَا فَمَنْ أَحْدَثَ فِيْهَا حَدَثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ مِنْهُ صَرْفًا وَّ لَا عَدْلًا وَ إِذَا فِيْهِ ذِمَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَاحِدَةٌ يَّسْعٰى بِهَا أَدْنَاهُمْ فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ مِنْهُ صَرْفًا وَّ لَا عَدْلًا، وَ إِذَا فِيْهَا مَنْ وَّ الٰى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيْهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ مِنْهُ صَرْفًا وَّلَا عَدْلًا.

٩٦٧ : عمر بن حفص بن غياث، حفص بن غياث، اعمش، ابراهيم تيمي، ذَ خپل پلار نه روايت کوي. د هغه بيان دے، حضرت علي رضي اللّٰه عنه مونږته د ښختو په منبر خطبه اولوسته. هغه سره يوه توره وه، هغے سره يوه صحيفه آويزانده وه. هغه، هغه پرانسته، نو هغے کښې د، اُوښانو د، ديت احکام وو. هغے کښې دا هم وو، چه مدينه د، عير، نه واخله فلاني مقام پورے حرم دے، چا چه دے کښې څه نوے خبره پيدا کړه (يعني بدعت نے اوکړه) نو په هغه د، اللّٰه تعالىٰ او ذَ فريښتو او ذَ ټولو خلقو لعنت دے. د هغه به نه څه فرض عبادت او نه نفل عبادت قبول وي او هغے کښې دا هم ليکلے وو، چه ذَ مسلمانانو ذمه يوه ده، هغوي کښې يو ادنى سړے هم دا کولے شي، کوم سړي چه يو مسلمان سره عهد مات کړلو، نو د، اللّٰه تعالىٰ، او ذ فريښتو او ذَ ټولو خلقو په هغه لعنت دے. ذَ هغه به نه فرض او نه نفل عبادت مقبول وي. او چا چه يو قوم سره ذَ خپلو مالکانو د، اجازت نه بغير دوستي جوړ کړه، نو په هغه د، اللّٰه تعالىٰ او فريښتو او د ټولو خلقو لعنت دے، نه به ذَ هغه فرض او نه نفل عبادت مقبول وي.

٩٦٨ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ

٩٦٨ : عمرو حفص، حفص، اعمش، مسلم، مسروق، بي بي عائشے نه روايت کوي، د هغے بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم څه کار اوکړه، او

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، صَنَعَ النَّبِيُّ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا تَرَخَّصَ وَ تَنَزَّهَ عَنْهُ قَوْمٌ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ قَالَ: مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَتَنَزَّهُوْنَ عَنِ الشَّيْءِ أَصْنَعُهُ فَوَاللّٰهِ إِنِّيْ أَعْلَمُهُمْ بِاللّٰهِ وَ أَشَدُّهُمْ لَهُ خَشْيَةً.

خلقو ته لې ذ هغې اجازت اوکه. ليکن څه خلقو د هغې نه پرهيز اوکه. حضور صَلّي اللّٰه عليه وسلّم چه خبر شو، نو د، اللّٰه تعالىٰ تعريف ئې بيان که، او ې فرمائيل، د خلقو څه حال دې، چه هغې څيزونو نه بچ کيږي، کوم چه زه کوم. په خدائې م ذ قسم وي، زه اللّٰه ذ هغوئ نه زيات پيژنم او هغوي نه زيات (د، اللّٰه نه) ويريدونکې يم.

۹۶۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنْ نَافِعِ بْنِ عُمَرَ عَنِ ابْنِ أَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ: كَادَ الْخَيِّرَانِ أَنْ يَهْلِكَا أَبُوْ بَكْرٍ وَ عُمَرُ لَمَّا قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفْدُ بَنِيْ تَمِيْمٍ أَشَارَ أَحَدُهُمَا بِالْأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ الْحَنْظَلِيِّ أَخِيْ بَنِيْ مُجَاشِعٍ وَ أَشَارَ الْآخَرُ بِغَيْرِهٖ، فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ لِعُمَرَ إِنَّمَا أَرَدْتَ خِلَافِيْ فَقَالَ مَا أَرَدْتُ خِلَافَكَ فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلَتْ يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْا أَصْوَاتَكُمْ إِلٰى قَوْلِهٖ عَظِيْمٍ. قَالَ ابْنُ أَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَكَانَ عُمَرُ بَعْدُ. وَ لَمْ يَذْكُرْ ذٰلِكَ عَنْ أَبِيْهِ يَعْنِيْ أَبَا بَكْرٍ إِذَا حَدَّثَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحَدِيْثٍ

۹۶۹: محمد بن مقاتل، وکيع، نافع بن عمر، ابن ابي مليکه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دې. دوه (۲) سړي چه د ټولو نه بهتر وو، يعني حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه او حضرت عمر رضي اللّٰه عنه هلاک شوې وو، کوم وخت چه د بني تميم وفد ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښې حاضر شو. نو هغوي کښې يو کس د بني مجاشع ورور، اقرع بن حابس حنظلي ته اشاره اوکړه. او بل، هغې بل طرف ته اشاره اوکړه. حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه اووې، چه تا خما د مخالفت اراده کړې وه. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه اووې، خما اراده ستا د مخالفت نه وه، ذ هغوئ اوازونه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره نزدې اوچت شو. نو دا، آيت نازل شو: اې ايمان والو، خپل آوازونه مه اوچتوئې. اخر آيت: عظيم پورې. ابن ابي مليکه اووې. د، ابن زبير رضي اللّٰه عنه بيان دې، چه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه به نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره څه خبره کوله، نو دومره رو به ئې کوله، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به اوريدې نه شوه، څو پورې چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به بيا درېافت نه وو کړې.

خَدِّثُهُ كَأَخِي السِّرَارِ لَمْ يُسْمِعْهُ حَتَّى يَسْتَفْهِمَهُ.

او ابن زبير رضي الله عنه د خپل نيکه (نانا) حضرت ابوبکرؓ ذکر اونه کړلو.

۹۷۰ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي مَرَضِهِ مُرُوا أَبَا بَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ، قَالَتْ عَائِشَةُ قُلْتُ إِنَّ أَبَا بَكْرٍ إِذَا قَامَ فِي مَقَامِكَ لَمْ يُسْمِعِ النَّاسَ مِنَ الْبُكَاءِ فَمُرْ عُمَرَ فَلْيُصَلِّ فَقَالَ: مُرُوا أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ لِحَفْصَةَ قُولِي أَنَّ أَبَا بَكْرٍ إِذَا قَامَ فِي مَقَامِكَ لَمْ يُسْمِعِ النَّاسَ مِنَ الْبُكَاءِ فَمُرْ عُمَرَ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَفَعَلَتْ حَفْصَةُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكُنَّ لَأَنْتُنَّ صَوَاحِبُ يُوسُفَ مُرُوا أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ لِلنَّاسِ فَقَالَتْ لِعَائِشَةَ مَا كُنْتُ لِأُصِيبَ مِنْكِ خَيْرًا.

۹۷۰ : اسماعيل، مالک، هشام بن عروه، عروه، ام المؤمنين بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خپلے بيمارۍ کښ اوفرمائيل ابوبکر رضي الله عنه ته حکم ورکړئے، چه خلقو ته مونځ ورکړي. د بي بي عائشےؓ بيان دے. ما عرض اوکه، که ابوبکر رضي الله عنه ستاسو په ځائے اودريږي، نو خلق به ذَ هغه د، ژړا په سبب د هغه اواز واونه ريدے شي، نو تاسوؐ حضرت عمر رضي الله عنه ته حکم ورکړئے، چه مونځ ورکړي. حضور صلّي الله عليه وسلّم بيا ورته اوفرمائيل، ابوبکر رضي الله عنه ته اووايه، چه خلقو ته مونځ ورکړي. د بي بي عائشےؓ بيان دے. ما بي بي حفصےؓ ته اووے، چه ته حضور صلّي الله عليه وسلّم ته عرض اوکړه، چه ابوبکر رضي الله عنه ستاسو په ځائے اودريږي، نو ذَ هغه د، ژړا په سبب به خلق ذَ هغه آواز واونه ريدے شي، نو عمر رضي الله عنه ته حکم اوکړئے، چه خلقو ته مونځ ورکړي. بي بي حفصےؓ دغسے اوکړل، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو د يوسف عليه وسلّم د ملګرو ښځو په شان ئے. ابوبکر رضي الله عنه ته حکم ورکړئے، چه خلقو ته مونځ ورکړي. بي بي حفصےؓ، بي بي عائشے ته اووے، مَا هيڅ کله تانه څه ښيګړه بيانه مُنده.

۹۷۱ : حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ جَاءَ عُوَيْمِرٌ

۹۷۱ : ادم، ابن ابي ذِئب، زهري، سهل بن سعد ساعدي نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے، عويمر، عاصم بن عدي له راغے، او تپوس ئے اوکه، اوښايه، که يو سړے

اِلٰى عَاصِمِ ابْنِ عَدِيٍّ فَقَالَ: اَرَاَيْتَ رَجُلًا وَجَدَ مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا فَيَقْتُلُهُ اَتَقْتُلُوْنَهُ بِهٖ سَلْ لِيْ يَا عَاصِمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَاَلَهُ فَكَرِهَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ وَ عَابَ، فَرَجَعَ عَاصِمٌ فَاَخْبَرَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَرِهَ الْمَسَائِلَ فَقَالَ عُوَيْمِرٌ وَاللّٰهِ لَاٰتِيَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ وَ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى الْقُرْاٰنَ خَلْفَ عَاصِمٍ، فَقَالَ لَهٗ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْكُمْ قُرْاٰنًا فَدَعَا بِهِمَا فَتَقَدَّمَا فَتَلَاعَنَا، ثُمَّ قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَفَارَقَهَا وَ لَمْ يَاْمُرْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفِرَاقِهَا، فَجَرَتِ السُّنَّةُ فِي الْمُتَلَاعِنَيْنِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُنْظُرُوْهَا فَاِنْ جَآءَتْ بِهٖ اَحْمَرَ قَصِيْرًا مِثْلَ وَ حَرَةٍ فَلَآ اُرَاهُ اِلَّا قَدْ كَذَبَ وَ اِنْ جَآءَتْ بِهٖ اَسْحَمَ اَعْيَنَ ذَا اَلْيَتَيْنِ فَلَا اَحْسِبُ اِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا فَجَآءَتْ بِهٖ عَلَى الْاَمْرِ الْمَكْرُوْهِ.

خپلے ښځے سره بل سړے اووینې او هغه قتل کړي، نو آیا تاسو خلق به هغه قتلوئے. اے عاصمٔ، رسول الله صلّي الله علیه وسلّم نه څما د پاره تپوس اوکه. هغه د، حضور صلّي الله علیه وسلّم نه تپوس اوکه نو نبي صلّي الله علیه وسلّم دا تپوس مکروه او بـداوګنړلو. عاصم واپس راغے. او عویمر ته ئے بیان اوکه، چه نبي صلّي الله علیه وسلّم دا تپوس مکروه اوګنړلو. عویمر اووے، قسم په خدائے، زه به ضرور نبي صلّي الله علیه وسلّم له ورځم. نو هغه حاضر شو. او الله پاک عاصم پسے آیت نازل که. رسول الله صلّي الله علیه وسلّم عویمر ته اوفرمائیل، ستاسو دواړو (ښځه خاوند) متعلق الله پاک قرآن نازل کړلو، نو حضور صلّي الله علیه وسلّم دواړه راوغوښتل. بیا هغوي راغلل. نو لعان ئے اوکه. بیا عویمر اووے، یا رسول الله، زه به دروغجن یم، که زه دا (ښځه) ځان سره اوساتم، نو بیا هغه ترے جدائي اختیار کړله، حالانکه نبي صلّي الله علیه وسلّم د جدائي حکم نه وو کړے. دے نه پس دَ لعان کونکو متعلق دا طریقه جاري شوه. او نبي صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دے ښځے ته ګورئے، که دے د، وحره په شان سُر او وړوکے بچے راوړلو، نو زه به اوګنړم، چه دے سړي دروغ وئیلے دي، او که هغے تور رنګے، غټ ګناټو او غټو سترګو واله بچے راوړلو، نو زه به اوګنړم، چه دے سړي د دے ښځے متعلق صحیح اووے، نو د هغے ښځے هغه شان د مکروه شکل بچے پیدا شو.

۲۷۹۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ

۲۷۹۷: عبد الله بن یوسف، لیث، عقیل، ابن شهاب، مالک بن اوس نصري نه رویت کوي (محمد

حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَوْسٍ النَّصْرِيُّ وَ كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ ذَكَرَ لِيْ ذِكْرًا مِّنْ ذٰلِكَ، فَدَخَلْتُ عَلٰى مَالِكٍ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ انْطَلَقْتُ حَتّٰى اَدْخُلَ عَلٰى عُمَرَ اَتَاهُ حَاجِبُهُ يَرْفَا فَقَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عُثْمَانَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالزُّبَيْرِ وَ سَعْدٍ يَسْتَأْذِنُوْنَ؟ قَالَ نَعَمْ فَدَخَلُوْا فَسَلَّمُوْا وَ جَلَسُوْا. فَقَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ فَاَذِنَ لَهُمَا قَالَ الْعَبَّاسُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ الظَّالِمِ، اِسْتَبَّا فَقَالَ الرَّهْطُ عُثْمَانُ وَاَصْحَابُهُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنَهُمَا وَ اَرِحْ اَحَدَهُمَا مِنَ الْاٰخَرِ فَقَالَ اتَّئِدُوْا اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ الَّذِيْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ هَلْ تَعْلَمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرِثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفْسَهُ، قَالَ الرَّهْطُ قَدْ قَالَ ذٰلِكَ، فَاَقْبَلَ عُمَرُ عَلٰى عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ

بن جبير بن مطعم هم د دے ذکر کړے وو. چه زه مالک له ورغلم هغه نه مې تپوس او کړ نو هغه (اووے) زه روان شوم چه حضرت عمر رضي الله عنه له ورشم (زه اورسيدم نو) د هغه دربان يرفاء راغے. او تپوس ئے او کړ، آيا حضرت عثمان رضي الله عنه او عبد الرحمن رضي الله عنه او زبير رضي الله عنه او سعد رضي الله عنه ته دننه د راتلو اجازت ورکوے هغه اووے او (راځي دے) نو دا خلق دننه راغلل. سلام ئے اوکړ او کيناستل. بيا يرفاء اووے. حضرت علي رضي الله عنه او عباس رضي الله له اجازت ورکوے. هغے دوارو ته ئے هم دننه د راتلو اجازت ورکړ. حضرت عباس رضي الله عنه اووے اے امير المؤمنين، خما او د ظالم په مينځ کښې فيصله اوکړئے. بيا هغے دوارو يو بل ته بدرد اووے. حضرت عثمان رضي الله عنه او د هغه ملګرو اووے. اے امير المؤمنين د دے دوارو مينځ کښې فيصله اوکړئے، او يو د بل نه خلاص کړئے. حضرت عمر رضي الله عنه هغوي ته اووے. صبر کوه، زه تاسو ته د الله واسطه درکوم، او تپوس درنه کوم، چه د هغه حکم سره اسمان او زمکه قائم دي. آيا تاسو ته معلومه ده. چه حضور صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي، چه مونږ هيڅوک وارث نشته، او مونږ نه چه څه پاتے شي، هغه صدقه ده. او دا حضور صلّي الله عليه وسلّم صرف د خپل ذات متعلق فرمائيلے وو. هغې خلقو اووے او. حضور صلّي الله عليه وسلّم دغسے فرمائيلے دي. بيا حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت علي رضي الله عنه او عباس رضي الله عنه طرف ته متوجه شو. اوونيلے، چه

فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذٰلِكَ؟ قَالَا نَعَمْ قَالَ عُمَرُ فَاِنِّيْ مُحَدِّثُكُمْ عَنْ هٰذَا الْاَمْرِ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ خَصَّ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْمَالِ بِشَيْءٍ لَمْ يُعْطِهِ اَحَدًا غَيْرَهُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ اَلْاٰيَةَ فَكَانَتْ هٰذِهٖ خَالِصَةً لِّرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ وَاللّٰهِ مَا اَحْتَازَهَا دُوْنَكُمْ وَ لَا اسْتَأْثَرَ بِهَا عَلَيْكُمْ وَ قَدْ اَعْطَاكُمُوْهَا وَ بَثَّهَا فِيْكُمْ حَتّٰى بَقِيَ مِنْهَا هٰذَا الْمَالُ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلٰى اَهْلِهٖ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هٰذَا الْمَالِ، ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ مَالِ اللّٰهِ فَعَمِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذٰلِكَ حَيَاتَهٗ، اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمُوْنَ ذٰلِكَ؟ فَقَالُوْا نَعَمْ، ثُمَّ قَالَ لِعَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ اَنْشُدُكُمَا اللّٰهَ هَلْ تَعْلَمَانِ ذٰلِكَ؟ قَالَا نَعَمْ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ نَبِيَّهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زه تاسو ته د خدائے واسطه درکوم، تپوس درنه کوم. آیا حضور صلّي اللّه عليه وسلّم دا فرمائیلے دي. هغوي اووے او. حضرت عمر رضي اللّه عنه اووے زه تاسو خلقو ته د دے حقیقت بیان کرم، چه اللّه خپل رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم ته د دے مال نه یو مخصوص حصه عطا کړله، چه د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم نه علاوه ئے بل چاته نه ورکړے. ځکه چه اللّه تعالیٰ فرمائي: مَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلٍ مِنْهُمْ فَمَا اَوْجَفْتُمْ: الخ نو دا خاص رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم د پاره وه. بیا قسم په خدائے، رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم تاسو خلق پریښودو سره خپل خان د پاره څه جمع نه کړل، او نه ئے خپل خان له په تاسو ترجیح ورکړله، بلکه دا، ئے تاسوله درکړلو. او په تاسو، ئے تقسیم کړلو، حتّي چه هغے کښ دا مال باقي پاتے شو. او نبي صلّي اللّه عليه وسلّم د خپل کوروالو د پاره د، یو کال خرچ، د دے مال نه اخستلو. بیا باقي به ئے د، اللّه د مال په شان خرچ کولو. نبي صلّي اللّه عليه وسلّم ټول عمر په دے عمل اوکه. زه تاسو خلقو ته دَ خدائے واسطه درکولو سره تپوس درنه کوم، آیا تاسو ته دا معلومه ده. هغوئ اووے. او. بیا اللّه پاک خپل نبي صلّي اللّه عليه وسلّم وفات کړلو، نو حضرت ابوبکر رضي اللّه عنه اووے. زه د، رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم ولي (جانشین. خلیفه) یم، نو هغه په دے مال قبضه اوکړله. او څنګه چه رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم کول، هغه شان هغه هم اوکړل. او حضرت علي رضي اللّه عنه عباس رضي اللّه عنه ته متوجه شو. ورته ئے اووے، چه تاسو دواړه هغه وخت موجود وئے. او

فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ اَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَضَهَا اَبُوْبَكْرٍ فَعَمِلَ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ فِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنْتُمَا حِيْنَئِذٍ. وَ اَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ تَزْعُمَانِ اَنَّ اَبَابَكْرٍ فِيْهَا كَذَا وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّهُ فِيْهَا صَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ اَبَابَكْرٍ فَقُلْتُ اَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ، فَقَبَضْتُهَا سَنَتَيْنِ اَعْمَلُ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبُوْبَكْرٍ ثُمَّ جِئْتُمَانِيْ وَ كَلِمَتُكُمَا عَلٰى كَلِمَةٍ وَّاحِدَةٍ وَّ اَمْرُكُمَا جَمِيْعٌ جِئْتَنِيْ تَسْاَلُنِيْ نَصِيْبَكَ مِنْ اِبْنِ اَخِيْكَ، وَ اَتَانِيْ هٰذَا يَسْاَلُنِيْ نَصِيْبَ امْرَاَتِهٖ مِنْ اَبِيْهَا فَقُلْتُ اِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا عَلٰى اَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللّٰهِ وَ مِيْثَاقَهُ تَعْمَلَانِ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِمَا عَمِلَ فِيْهَا اَبُوْبَكْرٍ وَّ بِمَا عَمِلْتُ فِيْهَا مُنْذُ وَلِيْتُهَا وَ اِلَّا فَلَا تُكَلِّمَانِيْ فِيْهَا فَقُلْتُمَا ادْفَعْهَا اِلَيْنَا بِذٰلِكَ فَدَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا بِذٰلِكَ اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا اِلَيْهِمَا بِذٰلِكَ؟ قَالَ الرَّهْطُ نَعَمْ، فَاَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَّ

تاسو دواړو دا ګمان کولو، چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه داسې او داسې دے، حالانکه الله پوهيږي، چه هغه دے معامله کښې ريښتنے (په حقه) وو، نيک وو، په راستۍ وو. د حق تابع وو. بيا الله پاک حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفات کړلو. نو ما اووے، زه، د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ولي يم. ما دا دوه (۲) کاله خپل قبضه کښې اوساته. او دے کښې م داسې تصرف کولو، څنګه چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او حضرت ابوبکر رضي الله عنه کولو. بيا تاسو ماته راغلئے. او ستاسو د، دواړو خبره يوه وه. او کار هم يو وو ته د خپل وراره د مال نه حصّه غوښتلوله راغلے. او دے د خپلے ښځے حصّه د خپل پلار د مال نه غوښتلو له راغے. نو ماورته اووے، که تاسو دواړه غواړئے، نو زه ئے په دے شرط درته درکوم، چه تاسو به د، الله د عهدو ميثاق مطابق دے کښې عمل کوئے، څنګه چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او حضرت ابوبکر رضي الله عنه کولو، او څنګه چه زه قبضه کښې د، اخستو د، وخت نه عمل کوم، کني بيا دے معامله کښې ماسره خبرے مه کوئے. نو تاسو دواړو اووے، چه مونږ ته ئے په دے شرط راکړه. بيا ماتاسوته درکړلو. بيا نورو خلقو ته متوجه شو، وے فرمائيل، زه تاسو خلقو ته د خدائے واسطے درکولو سره تپوس درنه کوم، آيا ما دا (مال) دے دواړو ته ورکړے وو. هغے خلقو اووے. او. بيا حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عباس رضي الله عنه طرف ته متوجه شو، وے فرمائيل. زه تاسو خلقو ته د خدائے واسطه درکوم، تپوس درنه کوم. آيا ما دا (مال) تاسو خلقو ته درکړے

عَبَّاسٍ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا إِلَيْكُمَا بِذٰلِكَ؟ قَالَا نَعَمْ، قَالَ اَفَتَلْتَمِسَانِ مِنِّيْ قَضَآءً غَيْرَ ذٰلِكَ، فَوَالَّذِيْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ لَا اَقْضِيْ فِيْهَا قَضَآءً غَيْرَ ذٰلِكَ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ فَاِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهَا فَادْفَعَاهَا اِلَيَّ فَاَنَا اَكْفِيْكُمَاهَا.

وو. هغوئ اووے. او. حضرت عمر رضي الله عنه اووے تاسو خما نه د دے نه علاوه څه فيصله غواړئ، نو په هغه ذات م دے قسم وي، چه د هغه حکم سره آسمان او زمکه قائم دي، زه به د دے نه علاوه د قيامته پورے بله فيصله اونه کړم، که تاسو، د دے انتظام نه شئ کولے، نو ماته ئے واپس کړئ، چه زه ئے ستاسو د طرف نه انتظام اوکړم.

**بَابٌ ۴۹۹: اِثْمِ مَنْ اٰوٰى مُحْدِثًا رَوَاهُ عَلِيٌّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۴۹۹:** د هغے سړي د ګناه بيان، چه هغه يو بدعتي له پناه ورکړه. حضرت عليؓ دا، د، نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کړے دے.

۹۷۳: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ قُلْتُ لِاَنَسٍ اَحَرَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ؟ قَالَ نَعَمْ مَا بَيْنَ كَذَا اِلٰى كَذَا، لَا يُقْطَعُ شَجَرُهَا، مَنْ اَحْدَثَ فِيْهَا حَدَثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ، قَالَ عَاصِمٌ فَاَخْبَرَنِيْ مُوْسَى ابْنُ اَنَسٍ اَنَّهٗ قَالَ اَوْ اٰوٰى مُحْدِثًا.

۹۷۳: موسٰي بن اسماعيل، عبد الواحد، عاصم نه روايت کوي. د هغه بيان دے. ما د حضرت انس رضي الله عنه نه تپوس اوکه، آيا رَسُول الله صلّي الله عليه وسلّم مدينه حرم ګرځولے ده. هغه اووے. او. د فلاني مقام نه فلاني مقام پورے اُونه، د نشي وهلے، چا چه دے کښې څه بدعت اوکه، نو په هغه د، الله او فريښتو او د ټولو خلقو لعنت دے د، عاصم بيان دے، ماته موسٰي بن انس بيان اوکه، چه انسؓ د: او اوي: الفاظ بيان کړل.

**بَابٌ ۵۰۰: مَا يُذْكَرُ مِنْ ذَمِّ الرَّأْيِ وَتَكَلُّفِ الْقِيَاسِ. وَلَا تَقْفُ لَا تَقُلْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ.**

**باب ۵۰۰:** د، رائے مذمّت او، قياس کښې د تکلّف د، کراهت بيان. او د، الله تعالٰي قول چه "هغه څيز مه کوه، چه د هغے درته علم نه وي".

۹۷۴: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ تَلِيْدٍ حَدَّثَنِيْ اِبْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ شُرَيْحٍ وَغَيْرُهٗ عَنْ اَبِي الْاَسْوَدِ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ حَجَّ عَلَيْنَا

۹۷۴: سعيد بن تليد، ابن وهب، عبد الرحمٰن بن شريح وغيره ابو الاسود، عروه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. موبږ سره عبد الله بن عمرو حج اوکه. د هغه نه ئے واوريدل. ما د نبي صلّي الله عليه وسلّم

عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ عَمْرٍو فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: اِنَّ اللّٰهَ لَا يَنْزِعُ الْعِلْمَ بَعْدَ اَنْ اَعْطَاهُمُوْهُ اِنْتِزَاعًا وَ لٰكِنْ يَنْتَزِعُهُ مِنْهُمْ مَعَ قَبْضِ الْعُلَمَاءِ بِعِلْمِهِمْ فَيَبْقٰى نَاسٌ جُهَّالٌ يُسْتَفْتُوْنَ فَيُفْتُوْنَ بِرَاْيِهِمْ فَيَضِلُّوْنَ فَحَدَّثْتُ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عَمْرٍو حَجَّ بَعْدُ فَقَالَتْ يَا ابْنَ اُخْتِيْ اِنْطَلِقْ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ فَاسْتَثْبِتْ لِيْ مِنْهُ الَّذِيْ حَدَّثَنِيْ عَنْهُ فَجِئْتُهُ فَسَاَلْتُهُ فَحَدَّثَنِيْ بِهٖ كَنَحْوِ مَا حَدَّثَنِيْ فَاَتَيْتُ عَائِشَةَ فَاَخْبَرْتُهَا فَعَجِبَتْ فَقَالَ وَاللّٰهِ: لَقَدْ حَفِظَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو.

نه واوريدل، اللّٰه تعالٰي به علم نه اوچتوي، د هغے نه پس چه تاسو ته ئے عطاء كه، ليكن اللّٰه تعالٰي به علم داسے اوچتوي، چه علماء به د هغوئ علم سره اوچت كړي، نو جاهل خلق به باقي پاتے شي. د هغوئ نه به مسئله پښتلے شي، نو هغوئ به ئے خپلے رائے سره فتوئ وركوي، نور خلق به گمراه كړي، او خپله به هم گمراه وي. ما دا حديث د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم تېر بي بي عائشےؓ ته بيان كه. بيا عبد اللّٰه بن عمرو دے نه پس حج اوكه. نو بي بي عائشےؓ اووے اے خما خوريه، ته عبد اللّٰه له ورشه او ما د پاره د هغه نه هغه حديث ياد كړه، چه تا ماته بيان كه. زه هغه له ورغلم او تپوس مِ ترے اوكه، هغه ماته داسے بيان اوكه. څنگه چه بيان ئے كړے وو. بيا زه بي بي عائشےؓ له راغلم او هغے ته مے بيان اوكه، نو هغے تعجب اوكه. اوونيلے، په خدائے چه، عبد اللّٰه بن عمرو دا ياد ساتلے دے.

**۹۷۵** : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حَمْزَةَ سَمِعْتُ الْاَعْمَشَ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا وَائِلٍ هَلْ شَهِدْتَ صِفِّيْنَ؟ قَالَ نَعَمْ، فَسَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ يَقُوْلُ ح وَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ قَالَ قَالَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ يَآ اَيُّهَا النَّاسُ اتَّهِمُوْا رَاْيَكُمْ عَلٰى دِيْنِكُمْ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ يَوْمَ اَبِيْ جُنْدَلٍ وَ لَوْ اَسْتَطِيْعُ اَنْ اَرُدَّ

**۹۷۵** : عبدان، ابو حمزه، اعمش نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. ما د، ابو وائل نه تپوس اوكه. آيا ته صفين كښ موجود وے. هغه اووے. او. بيا مِ دَ سهل بن حنيف نه واوريدل (دويم سند) موسٰي بن اسماعيل، ابو عوانه، اعمش، ابو وآئل نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، چه سهل بن حنيف اووے، اے خلقو خپله رائے د خپل دين مقابله كښ حقيره اوگنړئے ما خپل خان د، ابو جندل (حديبيه) په ورځ اوليد، كه ما د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د حكم نه سرتابي كولے شوے، نو ضرور به مِ كړے وه. او مونږ په خپله اوږه (كاندھے پر) توره

اَمْرَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَرَدَدْتُهُ، وَ مَا وَضَعْنَا سُيُوْفَنَا عَلٰى عَوَاتِقِنَا اِلٰى اَمْرٍ يُفْظِعُنَا اِلَّا اَسْهَلْنَ بِنَا اِلٰى اَمْرٍ نَعْرِفُهُ غَيْرَ هٰذَا الْاَمْرِ قَالَ وَ قَالَ اَبُوْ وَآئِلٍ شَهِدْتُ صِفِّيْنَ وَ بِئْسَتْ صِفُّوْنَ.

دے د پاره نه ده ايښے، چه مونږ خوف كښ اوغرځوي، بلكه دے د پاره چه مونږ ته څه داسے خبره كښ سهولت اورسوي، چه په هغے مونږ پوهيږو، نه چه هغے كار طرف ته، چه هغے كښ دا، وخت مونږ يو. د، ابو وائل بيان دے. زه صفين كښ شريک ووم. او د صفين جنګ ډير خراب وو.

بَاب ۱۰۵: مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْئَلُ مِمَّا لَمْ يُنْزَلْ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ اَوْلَمْ يُجِبْ حَتّٰى يُنْزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ اَوْلَمْ يُجِبْ حَتّٰى يُنْزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ، وَ لَمْ يَقُلْ بِرَأْيٍ وَّ لَا بِقِيَاسٍ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: بِمَا اَرَاكَ اللّٰهُ، وَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرُّوْحِ فَسَكَتَ حَتّٰى نَزَلَتْ.

باب ۱۰۵: نبي صلّي الله عليه وسلّم نه چه به د، داسے څيز متعلق تپوس اوشو چه د هغے متعلق به په حضور صلّي الله عليه وسلّم وحي رانغله، نو فرمائيل به ئے. زه نه پوهيږم، (يعني ماته نه ده معلومه) يا جواب به ئے نه وركولو، څو پورے چه به په حضور صلّي الله عليه وسلّم به وحي نه وه نازله شوے. او خپلے رائے او قياس نه به ئے څه نه فرمائيل، ځكه چه الله تعالٰي اوفرمائيل. بِمَا اَرَاكَ اللّٰهُ: چه اللّٰه تعالٰي تاسو ته اوښودل او د، ابن مسعود بيان دے، نبي صلّي الله عليه وسلّم نه د، روح متعلق تپوس اوشو نو حضور صلّي الله عليه وسلّم خاموش شولو، تر دے چه آيت نازل شولو.

۶۷۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ مَرِضْتُ فَجَآءَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ هُمَا مَاشِيَانِ فَاَتَانِيْ وَ قَدْ اُغْمِيَ عَلَيَّ فَتَوَضَّاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَبَّ وَضُوْءَهٗ عَلَيَّ فَاَفَقْتُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ

۶۷۹: علي بن عبد اللّٰه، سفيان، ابن منكدر، حضرت جابر بن عبد الله نه روايت كوي. د هغه بيان دے، زه ناروغه شوم، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم او حضرت ابوبكرؓ خما تپوس له راغلل، دواړه پياده وو. كوم وخت چه ماله راغلل، نو هغه وخت په ما بے هوشي خوره شوے وه، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اودس اوكه. بيا د خپل اودس اُوبه ئے په ما، اُونوستے. زه هوش كښ راغلم، ما عرض اوكه، يا رسول الله (او سفيان د: يا رسول اللّٰه: په ځائے: د، اي رسول الله: لفظ بيان كړے

اللّٰهِ وَ رُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ فَقُلْتُ اَیْ رَسُوْلَ كَيْفَ اَقْضِیْ فِیْ مَالِیْ؟ كَيْفَ اَصْنَعُ فِیْ مَالِیْ؟ قَالَ فَمَا اَجَابَنِیْ بِشَیْءٍ حَتّٰی نَزَلَتْ اٰيَةُ الْمِيْرَاثِ.

دے) زه څه مال کښې څنګه حکم او کړم او زه څه مال کښې څنګه او کړم. د جابر رضي الله عنه بیان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم هیڅ جواب ورنه کړلو. حتّي چه د میراث آیت نازل شولو.

باب ۵۰۲: تَعْلِيْمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمَّتَهُ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ مِمَّا عَلَّمَهُ اللّٰهُ لَيْسَ بِرَاْيٍ وَ لَا تَمْثِيْلٍ.

باب ۵۰۲: نبي صلّي الله عليه وسلّم به د خپل اُمت سړو او ښځو ته تعليم رائے او تمثيل سره نه ورکولو. بلکه هغے سره چه الله تعالي ورته ښودلے وو.

۹۷۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُوَانَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ الْاَصْبَهَانِيِّ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِیْ سَعِيْدٍ جَآءَتْ امْرَاَةٌ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيْثِكَ فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا نَّاْتِيْكَ فِيْهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا عَلَّمَكَ اللّٰهُ فَقَالَ اِجْتَمِعْنَ فِیْ يَوْمِ كَذَا وَ كَذَا فِیْ مَكَانِ كَذَا وَ كَذَا فَاجْتَمَعْنَ فَاَتَاهُنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَّمَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَهُ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ: مَا مِنْكُنَّ امْرَاَةٌ تُقَدِّمُ بَيْنَ يَدَيْهَا مِنْ وَلَدِهَا ثَلَاثَةً اِلَّا كَانَ لَهَا حِجَابًا مِّنَ النَّارِ فَقَالَتْ امْرَاَةٌ مِنْهُنَّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اثْنَيْنِ قَالَ فَاَعَادَتْهَا مَرَّتَيْنِ ثُمَّ قَالَ: وَاثْنَيْنِ وَ اثْنَيْنِ وَاثْنَيْنِ.

۹۷۷: مسدد، ابو عوانه، عبد الرحمٰن بن اصبهاني، ابو صالح ذكوان، ابو سعيد نه روايت كوي، د هغه بيان دے. يوه ښځه د حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه. او عرض ئے اوکه، يا رسول اللّٰه، سړي خو ستاسو خبرے واوري، لاړ شي، نو تاسو مونږ د پاره يوه ورځ مقرر کړئے، چه مونږ هم ستاسو خدمت کښې حاضريږو. او تاسو مونږ ته تعليم راکړئے، چه اللّٰه تعالي تاسو ته ښودلے دے. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، په فلانئے فلانئے ورځ، فلاني فلاني ځائے کښې حاضرے شئ، نو هغه ښځے جمع شوے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم هغوئ ته تشريف راوړلو او هغوئ ته ئے هغه اوښودل، څه چه الله تعالي ورته ښودلي وو. بيائے اوفرمائيل، تاسو کښې د کومے ښځے چه درے (۳) بچي مړه شوے وي، نو هغه به هغے د پاره د جهنم نه حجاب وي. هغے ښځو کښې يوے ښځے اووے يا رسول الله، دوه (۲) هم، دا كلمات هغے دوباره اووے. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، او دوه هم، دوه هم، دوه هم.

**باب ۵۰۳: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِّنْ أُمَّتِيْ ظَاهِرِيْنَ عَلَى الْحَقِّ يُقَاتِلُوْنَ وَ هُمْ اَهْلُ الْعِلْمِ.**

**باب ۵۰۳:** دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد، خـو د، امت نـه بـه څـه خلق هميشـه د حق پـه وجـه غـالـب وي، او هـغـوئ بـه جـنـګ کـوي، دا خلق اهلِ علم وي.

**۹۷۸: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَزَالُ طَائِفَةٌ مِّنْ أُمَّتِيْ ظَاهِرِيْنَ حَتّٰى يَأْتِيَهُمْ اَمْرُ اللّٰهِ وَ هُمْ ظَاهِرُوْنَ.**

**۹۷۸:** عبيـد اللّٰـه بـن موسٰي، اسماعيل، قيس، مغيره بـن شعبه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي حضور صَلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو څما د، امت نـه څـه خـلق به هميشه غالب وي، تر دے چه د، اللّٰه تعالٰي حکم راشي (يعني قيامت) او هغه خلق به غالب وي.

**۹۷۹: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدٌ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ اَبِيْ سُفْيَانَ يَخْطُبُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُّفَقِّهُهُ فِي الدِّيْنِ وَ اِنَّمَا اَنَا قَاسِمٌ وَّ يُعْطِي اللّٰهُ وَ لَنْ يَّزَالَ اَمْرُ هٰذِهِ الْاُمَّةِ مُسْتَقِيْمًا حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ اَوْ حَتّٰى يَأْتِيَ اَمْرُ اللّٰهِ.**

**۹۷۹:** اسـمـاعيـل، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، حـمـيـد، معـاويـه بـن ابـي سـفـيـانؓ نـه روايـت کـوي، هـغـه نـه ئـے خـطبه کښې واوريدل هغے کښې هغه اووے. ما دَ حـضـور صـلّـي الـلّٰـه علـيـه وسلّم نـه اوريدلے دي، چـاسـره چـه الـلّٰـه تـعـالٰي د، ښېګړے اراده اوکړي، نو هـغـه تـه ديـن کـښې پوهـه ورکړي، او زه تقسيمونکے يم، او الـلّٰـه تـعـالٰي ورکـونکے دے. او د دے امت معامله بـه هـميشـه درسـتـه وي تـر دے چـه قيـامـت شـي يـا، (دا، ئـے اوفـرمـائـيـل) تـر دے چـه قـيـامـت راشي.

**باب ۵۰۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى: اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا.**

**باب ۵۰۴:** د، اللّٰـه تـعالٰي فرمان، چه يا به تاسو فرقے فرقے جوړے کړي.

**۹۸۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو وَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ لَمَّا نَزَلَ عَلٰى رَسُوْلِ**

**۹۸۰:** علي بن عبد اللّٰه، سفيان، عمرو، حضرت جابر بن عبد اللّٰهؓ نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰـه صـلّي اللّٰه عليه وسلّم باندے چه دا، آيت نازل شو اُووايـه، چـه هغه په دے خبره قادر دے، چه ستاسو د پاسه

اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ قَالَ اَعُوْذُ بِوَجْهِكَ، اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ قَالَ اَعُوْذُ بِوَجْهِكَ، فَلَمَّا نَزَلَتْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَّ يُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ قَالَ هَاتَانِ اَهْوَنُ اَوْ اَيْسَرُ.

عذاب راوليږي' نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' زه ستا د' ذات پناه غواړم. بيا يا ستاسو' د پښو د' لاندې نه: الفاظ نازل شولو. نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' زه ستا د' ذات پناه غواړم. بيا چه: يا تاسو فرقې فرقې جوړې کړي' او په يو بل عذاب اوڅکوي: نازل شو. نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' دا' دواړه خبرې آسانې دي.

## بَابٌ ٥٠٥: مَنْ شَبَّهَ اَصْلًا مَّعْلُوْمًا بِاَصْلٍ مُّبَيَّنٍ قَدْ بَيَّنَ اللّٰهُ حُكْمَهَا لِيَفْهَمَ السَّآئِلُ.

## باب ٥٠٥: د هغې سړي بيان' چه د سائل پوهيدلو د پاره اصل معلوم ته اصل ظاهر سره تشبيه ورکړي' چه د هغې حکم الله تعالیٰ بيان کړې.

١٩٨١: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ بْنُ الْفَرَجِ حَدَّثَنِيْ اِبْنُ وَهْبٍ عَنْ يُّوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ اِعْرَابِيًّا اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: اِنَّ امْرَاَتِيْ وَلَدَتْ غُلَامًا اَسْوَدَ وَ اِنِّيْ اَنْكَرْتُهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ لَكَ مِنْ اِبِلٍ؟ قَالَ نَعَمْ، قَالَ فَمَا اَلْوَانُهَا؟ قَالَ حُمْرٌ، قَالَ هَلْ فِيْهَا مِنْ اَوْرَقَ؟ قَالَ اِنَّ فِيْهَا لَوُرْقًا، قَالَ فَاَنّٰى تَرٰى ذٰلِكَ جَآءَهَا، قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ عِرْقٌ نَزَعَهَا قَالَ وَ لَعَلَّ هٰذَا عِرْقٌ

١٩٨١: اصبغ بن فرج' ابن وهب' يونس' ابن شهاب' ابو سلمه بن عبد الرحمٰن' حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي' يو سړې د' رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئې اوکه. خما د ښځې تور بچې پيدا شوې دې. او زه ذَ هغه د خپل خوئې کيدونه انکار کوم. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' آيا تاسره اوښان شته هغه جواب ورکه. او. جي. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ذَ هغوئ څه رنګ دې. هغه اووې. سره (سرخ) دي حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل' آيا هغې کښې څه خړبوجن هم شته. هغه اووې. جي او. هغې کښې څه خړبوجن هم شته. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اُوفرمائيل' نو بيا ته څه خيال کوې' چه هغه د کوم خائې نه پيدا شو. هغه عرض اوکه' يا رسول الله' څه رګ به هغه راښکلې وي. نو حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل بيا دغه شان دا' به هم څه رګ

نَــزَعَــهُ وَ لَــمْ يُــرَخِّــصْ لَــهُ فِــي الْإِنْتِفَاعِ مِنْهُ.

رابنـكلے وي. او هغه ته ئے د خپل بچي نه د' انكار كولو اجازت ورنه كه.

۹۸۲ : حَــدَّثَــنَــا مُسَــدَّدٌ حَــدَّثَــنَــا اَبُــوْ عُــوَانَةَ عَــنْ اَبِــيْ بَشْرٍ عَــنْ سَــعِيْــدِ بْــنِ جُبَيْــرٍ عَــنِ ابْــنِ عَــبَّــاسٍ اَنَّ امْــرَاَةً جَــآءَتْ اِلَــى الــنَّبِــيِّ صَــلَّــى الــلّٰــهُ عَلَيْــهِ وَسَــلَّــمَ فَقَــالَــتْ: اِنَّ اُمِّــيْ نَذَرَتْ اَنْ تَــحُــجَّ فَــمَــاتَــتْ قَبْــلَ اَنْ تَــحُــجَّ اَفَــاَحُــجَّ عَــنْهَــا؟ قَــالَ: نَــعَمْ حُجِّــيْ عَــنْهَــا اَرَاَيْــتِ لَــوْ كَــانَ عَــلٰــى اُمِّكِ دَيْــنٌ اَكُــنْــتِ قَــاضِيَتَــهُ قَــالَــتْ نَعَمْ، فَــقَــالَ فَــاقْــضُــوا الَّــذِي لَهُ فَاِنَّ اللّٰــهَ اَحَقُّ بِالْوَفَآءِ.

۹۸۲ : مسدد' ابو عوانه' ابو بشر' سعيد بن جبير' ابـن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. يوه ښځه دَ نبي صلّـي اللّٰـه عـليـه وسـلّـم خدمت كښ حاضره شوه. او عـرض ئـے اوكـه. څما مور د حج نذر منلے وو. خو هغه حج كـولو نه مخكښ مړه شوله نو آيا زه دَ هغے د طرف نـه حـج اوكـړم' حـضـور صـلّـي اللّٰـه عليـه وسلّم ورتـه اوفـرمـائـيل' او' تـه د هغے د طرف نه حج اوكړه. اووايه' كـه سـتـا په مور څه قرض وے' نو آيا تا به دَ هغے دَ طرف نـه' نـه ادا كولو' هغے اووے' جي' او. (ادا كولو به م). نو حـضـور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' په هغے چه څـه قـرض دے هـغـه ادا كـړه' ځكه چه اللّٰه تعالٰي د دے خبرے زيات مستحق دے' چه دَ هغه حق ادا كړے شي.

بــاب ۵۰۲ : مَــا جَــآءَ فِيْ اِجْــتِــهَــادِ الْــقُــضَــاةِ بِــمَــا اَنْــزَلَ اللّٰهُ تَــعَــالٰــى لِــقَــوْلِــهٖ وَ مَــنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا اَنْــزَلَ الــلّٰــهُ فَــاُولٰٓـئِكَ هُــمُ الظّٰلِمُوْنَ' وَ مَــدَحَ الــنَّبِــيُّ صَــلَّــى الــلّٰــهُ عَــلَيْــهِ وَسَــلَّــمَ صَــاحِــبَ الْحِكْمَةِ حِيْــنَ يَقْضِيْ بِهَا وَ يُعَلِّمُهَا لَا يَتَكَلَّفُ مِنْ قِــبَــلِــهٖ وَ مُــشَــاوَرَةِ الْــخُــلَــفَــاءِ وَ سُؤَالِهِمْ اَهْلَ الْعِلْمِ.

باب ۵۰۲ : څه چه اللّٰه تعالٰي نازل كړے دي' دَ هـغے مطابق د' قاضيانو د' اجتهاد بيان ځكه چه اللّٰه تعالٰي اوفـرمائيل' چاچه د هغے مطابق فيصله اونه كړه' كوم چه اللّٰـه حـكم نازل كړے دے' نو داسے خلق ظالِمَان دي او نبي صـلّـي اللّٰـه عـليه وسلّم دَ هغے حكمت واله تعريف كـړے دے' چـه حـكـمـت سره فيصله اوكړي' او د هغے تعليم اوكړي' او د خپل طرف نه څه تكلّف اونه كړي' او د خـلـفـاؤ د' مشـورے او دَ هغوئ د' اهلِ علم نه د تپوس كولو بيان.

۹۸۳ : حَــدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ عَبَّادٍ حَــدَّثَــنَــا اِبْــرَاهِيْــمُ بْــنُ حُــمَيْــدٍ عَــنْ اِسْــمَــاعِيْــلَ عَــنْ قَيْــسٍ عَــنْ

۹۸۳ : شهـاب بـن عـبـاد' ابـراهيـم بـن حـمـيـد' اسـمـاعيـل' قيـس' حـضـرت عـبـد الـلّٰـه رضي اللّٰه عنه نه روايـت كـوي. دَ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه

عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَسَدَ اِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَسُلِّطَ عَلٰى هَلَكَتِهٖ فِي الْحَقِّ وَاٰخَرُ اٰتَاهُ اللّٰهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَيُعَلِّمُهَا.

وسلّم اوفرمائيل د' دوو (۲) سړو نه علاوه بل چا سره حسد نشته (يعني پسخيدل ورته نه دي پكار) يو هغه چه اللّٰه تعالىٰ مال ورکړے وي' او هغه له ئے د' اللّٰه لار کښ د خرچ کولو قدرت ورکړے وي. او دويم هغه چه هغه ته اللّٰه تعالىٰ حکمت عطاء کړي' او هغه ذَ هغې په ذريعه فيصله کوي' او ذَ هغې تعليم کوي.

۹۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ الْمُغِيْرَةَ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ سَاَلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَنْ اِمْلَاصِ الْمَرْاَةِ هِيَ الَّتِيْ يُضْرَبُ بَطْنُهَا فَتُلْقِيْ جَنِيْنًا فَقَالَ اَيُّكُمْ سَمِعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ شَيْئًا؟ فَقُلْتُ اَنَا' فَقَالَ مَا هُوَ؟ قُلْتُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: فِيْهِ غُرَّةٌ عَبْدٌ اَوْ اَمَةٌ' فَقَالَ لَا تَبْرَحْ حَتّٰى تُجِيْئَنِيْ بِالْمَخْرَجِ فِيْمَا قُلْتَ فَخَرَجْتُ فَوَجَدْتُ مُحَمَّدَ بْنَ مَسْلَمَةَ فَجِئْتُ بِهٖ فَشَهِدَ مَعِيَ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ غُرَّةٌ عَبْدٌ اَوْ اَمَةٌ. تَابَعَهُ ابْنُ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنِ الْمُغِيْرَةِ.

۹۸۴: محمد' ابو معاويه' هشام' ذَ خپل پلار نه' هغه د' مغيره بن شعبه نه روايت کوي. حضرت عمر بن خطاب د ښځے د' املاص کولو متعلق تپوس او که. او املاص دا دے' چه د' يوے ښځے خيټه په کانړي اولږي' او د هغې صدمے نه ذَ هغې د خيټے بچے اوغرځيږي' مړشي. هغه اووے' تاسو کښ چا د دے متعلق ذَ نبي اکرم صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه څه اوريدلے دي. ما اووے' ما اوريدلے دي هغه تپوس او که' هغه څه دي. ما اووے' ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے دي' چه دے کښ يو غلام يا' وينزه د تاوان په طور ورکول ضروري دي. عمر رضي اللّٰه عنه اووے' ته دلته اوسه' تر دے چه ته ماته ذَ خپل نجات ذريعه (ګواه) په دے پيش کړے څه چه تاوئيلے دي. زه بهرته اووتلم' نو ما محمد بن مسلمه بيامند. هغه م ځان سره راوستلو' نو هغه ماسره ګواهي ورکړه' چه هغه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دغسے اوريدلے دي' چه دے کښ يو غلام يا وينزه به تاوان کښ ورکوي. ابن ابي الزناد' د خپل پلار نه' هغه د عروه نه' هغه د مغيره نه د دے متابعت کښ روايت او که.

باب ۵۰۷: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى

باب ۵۰۷: د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد'

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ.

چه تاسو به د خان نه د مخکښې امتونو د طريقو پيروي راواخلئ.

۹۸۵ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْنُ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَأْخُذَ اُمَّتِيْ بِاَخْذِ الْقُرُوْنِ قَبْلَهَا شِبْرًا بِشِبْرٍ وَّ ذِرَاعًا بِذِرَاعٍ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَفَارِسَ وَالرُّوْمِ فَقَالَ وَ مَنِ النَّاسُ اِلَّا اُولٰٓئِكَ.

۹۸۵ : احمد بن يونس، ابن ابي ذئب، مقبري، ابو هريره رضي الله عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. قيامت به هغه وخته پورې نه راځي، څو پورې چه څما اُمت تېرولو خبرو كښې د مخكنو امتونو بالكل داسې برابر نشي، څنګه چه يو، لېشت، د، لېشت برابر، او يو ګز، د، ګز برابر وي چاتپوس اوكه، يا رسول اللّٰه، آيا، د، روم او فارس په شان. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا دَ هغوئ نه علاوه نور څوک شته دې؟

۹۸۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدُ الْعَزِيْزِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُمَرَ الصَّنْعَانِيُّ مِنَ الْيَمَنِ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَتَتْبَعُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ شِبْرًا شِبْرًا وَّ ذِرَاعًا بِذِرَاعٍ حَتّٰى لَوْ دَخَلُوْا حُجْرَضَبٍّ تَبِعْتُمُوْهم قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰى قَالَ فَمَنْ.

۹۸۶ : محمد بن عبد العزيز، ابو عمر صنعاني، زيد بن اسلّم، عطاء بن يسار، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي د هغه بيان دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. تاسو به دَ مخكنو امتونو داسې پيروي راواخلئ، څنګه چه لېشت، د، لېشت برابر، او ګز، د ګز برابر وي، تر دې كه هغه خلق كه سمسرې (ګوه) په سوړه (سوراخ) كښې ننوتې وي، نو تاسو به دَ هغوي پيروي كوئې. مونږ خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، آيا د يهودو، او نصارئ پيروي به كوو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، نور څوک كيدې شي.

بَاب ۵۰۸ : اِثْمِ مَنْ دَعَا اِلٰى ضَلَالَةٍ اَوْ سَنَّ سُنَّةً سَيِّئَةً لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ مِنْ اَوْزَارِ الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهُمْ الْاٰيَةَ.

باب ۵۰۸ : د هغې سړي د ګناه بيان، چه هغه ګمراهي طرف ته بلنه اوكړه، يا څه خرابه طريقه ئې ايجاد كړه. ځكه چه د، اللّٰه تعالٰي قول دې، د هغوئ نه به د ګناهونو بوج اوچتوي، څوک چه ګمراه كوي.

۹۸۷ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ

۹۸۷ : حميدي، سفيان، اعمش، عبد اللّٰه بن مره،

حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ مِنْ نَفْسٍ تُقْتَلُ ظُلْمًا اِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ الْاَوَّلِ كِفْلٌ مِّنْهَا وَ رُبَّمَا قَالَ سُفْيَانَ مِنْ دَمِهَا لِاَنَّهُ اَوَّلُ مَنْ سَنَّ الْقَتْلَ اَوَّلًا.

مسروق، حضرت عبد الله رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي، كوم سړے چه ظلمًا قتل كړے شي، نو دَ هغے قتل د گناه يوه حصه به دَ حضرت آدم عليه السّلام په وړمبني خوئ قابيل وي. او سفيان كله: مِنْ دَمِهَا: (يعني دَ هغه دَ خون يوه حصه) الفاظ بيان كړل. ځكه چه هغه وړمبنے سړے دے، چه هغه دَ قتل طريقه ايجاد كړله.

## الحمد لله والشكر لله

## يوكم ديرشمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۳۰


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-20

# تاج البخاري پاره ۳۰ دمضامينو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۰۹. | دَ منبر او قبر آثار وغيره | ۳۵۳۳ |
| ۵۱۰. | اے نبي كريم صلي الله عليه وسلّم تاته اختيار نيشته | ۳۵۴۱ |
| ۵۱۱. | انسان د ټولونه زيات جګړے مار دے | ۳۵۴۲ |
| ۵۱۲. | په دا شان مِ اُمت وسط جوړ كړئ | ۳۵۴۴ |
| ۵۱۳. | دَ عامل يا حاكم اجتهاد | ۳۵۴۴ |
| ۵۱۴. | د حاكم ثواب | ۳۵۴۵ |
| ۵۱۵. | د خلقو خلاف دليل | ۳۵۴۶ |
| ۵۱۶. | د نبي كريمؐ انكار كول | ۳۵۴۸ |
| ۵۱۷. | كوم احكام چه دلائلو سره پيژندلے كيږي | ۳۵۴۸ |
| ۵۱۸. | اهل كتابونه تپوس مه كوئ | ۳۵۵۲ |
| ۵۱۹. | دَ جهګړے مكروه كيدل | ۳۵۵۴ |
| ۵۲۰. | د څه څيز نه خلق منع كول | ۳۵۵۵ |
| ۵۲۱ | په خپلو كښے مشورے سره معاملات فيصله كول | ۳۵۵۷ |
| | كتاب التوحيد | |
| ۵۲۲. | د توحيد په باره كښے | ۳۵۶۱ |
| ۵۲۳. | الله رابلئ | ۳۵۶۴ |
| ۵۲۴. | روزي وركونكے | ۳۵۶۵ |
| ۵۲۵. | په غيبو پوهيدونكے | ۳۵۶۵ |
| ۵۲۶. | الله سلامتي وركونكے دے | ۳۵۶۶ |
| ۵۲۷. | د خلقو بادشاه | ۳۵۶۷ |
| ۵۲۸. | هم هغهٔ غالب او حكمت والا دے | ۳۵۶۸ |
| ۵۲۹. | چا چه اَسمان او زمكه پيدا كړل | ۳۵۶۹ |
| ۵۳۰. | الله ډير اوريدونكے دے | ۳۵۷۰ |
| ۵۳۱. | ته اُوايه چه هم هغهٔ قدرت والا دے | ۳۵۷۱ |
| ۵۳۲. | زړونو لړه كرځونكے دے | ۳۵۷۲ |
| ۵۳۳. | د الله يو كم سل نومونه دي | ۳۵۷۳ |
| ۵۳۴. | د الله د نعامو په ذريعه الله نه غوښتل | ۳۵۷۳ |
| ۵۳۵. | د الله تعالي ذات | ۳۵۷۷ |
| ۵۳۶. | الله تاسو د خپل ځان نه يَروي | ۳۵۷۸ |
| ۵۳۷ | د الله تعالي نه سوا ټول څيرونه ختميدونكي دي | ۳۵۷۹ |
| ۵۳۸ | خما د سترګو مخكښے دِ پرورش اوشي | ۳۵۷۹ |
| ۵۳۹. | الله د هر څيز پيدا كونكے دے | ۳۵۸۰ |
| ۵۴۰. | څوك چه ما په خپل لاس سره پيدا كړو | ۳۵۸۱ |
| ۵۴۱. | د الله تعالي نه زيات غيرتي هيڅوك نيشته | ۳۵۸۶ |
| ۵۴۲. | د شهادت په اعتبار سره كوم څيز لوئے دے | ۳۵۸۶ |
| ۵۴۳. | عرش په اوبو باندے وو | ۳۵۸۷ |
| ۵۴۴. | فرشتے او روح القدس هغهٔ طرفته خيژي | ۳۵۹۲ |
| ۵۴۵. | بعضے مخونه به تروتازه وي | ۳۵۹۶ |
| ۵۴۶. | بيشكه د الله رحمت نزدے دے | ۳۶۱۳ |
| ۵۴۷. | بيشكه الله اَسمانونه ټينګ كړي دي | ۳۶۱۵ |
| ۵۴۸. | دَ اسمان او زمكے پيدائش | ۳۶۱۵ |
| ۵۴۹. | زمونږ خبره مخكښے نه شوے ده | ۳۶۱۶ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۰۰. | "اِنّما قَوْلُنَا لِشَیْءٍ" | ۳۶۱۹ |
| ۵۰۱. | که چرې سمندر خما د رب کلماتو د پاره سیاهي جوړ شي | ۳۶۲۱ |
| ۵۰۲. | د خدائے تعالیٰ مشیت | ۳۶۲۲ |
| ۵۰۳. | د چا سفارش به کار نه ورکوي | ۳۶۳۱ |
| ۵۰۴. | جبرئیل علیه السلام سره د اللّٰه کلام | ۳۶۳۳ |
| ۵۰۵. | اللّٰه تعالیٰ په علم سره نازل کړو | ۳۶۳۵ |
| ۵۰۶. | دوئ غواړي چه د اللّٰه کلام بدل کړي | ۳۶۳۶ |
| ۵۰۷. | انبیاؤ وغیره سره کلام کول | ۳۶۴۵ |
| ۵۰۸. | اللّٰه موسیٰ علیه السلام سره خبرے او کړے | ۳۶۵۱ |
| ۵۰۹. | جنت والؤ سره کلام | ۳۶۵۷ |
| ۵۱۰. | بندگان د اللّٰه تعالیٰ دِ حکم په ذریعه یادوؤل | ۳۶۵۹ |
| ۵۱۱. | اللّٰه سره شریک مه جوړوئ | ۳۶۶۰ |
| ۵۱۲. | د ویرے نه گناه پټول | ۳۶۶۱ |
| ۵۱۳. | هره ورځے هغهٔ په یو شان کښیے دے | |
| ۵۱۴. | دے سره ژبے له حرکت مه ورکوه | ۳۶۶۳ |
| ۵۱۵. | اللّٰه تعالیٰ د زړه په خبرو خبردار دے. | ۳۶۶۴ |
| ۵۱۶. | کوم سړي له چه اللّٰه قرآن ورکړو | ۳۶۶۵ |
| ۵۱۷. | تاسوَ اوڕسوئ | ۳۶۶۷ |
| ۵۱۸. | تورات راوړئ او تلاوت ئے اوکړئ | ۳۶۶۹ |
| ۵۱۹. | مونځ ته ئے عمل اووے | ۳۶۷۱ |
| ۵۲۰. | انسان ډیر ناقلاره پیدا کړے شوے دے | ۳۶۷۱ |
| ۵۲۱. | د خپل رب نه روایت بیانؤل | ۳۶۷۲ |
| ۵۲۲. | د تورات وغیره تفسیر | ۳۶۷۴ |
| ۵۲۳. | د قرآن ماهر به نیکوکارو سره وي | ۳۶۷۶ |
| ۵۲۴. | د قرآن آسانه حصه تلاوت کوئ | ۳۶۷۸ |
| ۵۲۵. | قرآن مجید د نصیحت د پاره آسان کړے شوے دے | ۳۶۷۹ |
| ۵۲۶. | قرآن په لوح محفوظ کښې محفوظ دے | ۳۶۸۰ |
| ۵۲۷. | تاسو اللّٰه پیدا کړي يئ | ۳۶۸۲ |
| ۵۲۸. | د فاسق او منافق قرأت | ۳۶۸۵ |
| ۵۲۹. | تله به انصاف سره کیښودے شي | ۳۶۸۷ |


تمت

# دیرشمه سیپاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

باب ۵۰۹: مَا ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَضَّ عَلٰى اِتِّفَاقِ اَهْلِ الْعِلْمِ، وَ مَا اَجْمَعَ عَلَيْهِ الْحَرَمَانِ مَكَّةُ وَالْمَدِيْنَةُ وَ مَا كَانَ بِهَا مِنْ مَشَاهِدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَ مُصَلَّى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والْمِنْبَرِ وَالْقَبْرِ.

۹۸۸: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ السَّلَمِيِّ اَنَّ اَعْرَابِيًّا بَايَعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْاِسْلَامِ فَاَصَابَ الْاَعْرَابِيَّ وَعْكٌ بِالْمَدِيْنَةِ فَجَآءَ الْاَعْرَابِيُّ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَقِلْنِيْ بَيْعَتِيْ فَاَبٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ جَآءَهٗ فَقَالَ اَقِلْنِيْ بَيْعَتِيْ فَاَبٰى ثُمَّ جَآءَهٗ فَقَالَ اَقِلْنِيْ بَيْعَتِيْ فَاَبٰى فَخَرَجَ الْاَعْرَابِيُّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا الْمَدِيْنَةُ

شروع کوم په نامه دَ خدای چه بخښونکې او مهربان دے

باب ۵۰۹: د نبي صلّي اللّه عليه وسلّم اَهلِ علمو ته' په اتفاق' د' رغبت ورکولو بيان او د دے امر بيان' چه په هغې حرمين (د مکې او مدينې علماء) متفق شي. او هغه چه د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم او مهاجرينو او انصارو (رضوان اللّه عليهم اجمعين) متبرک مقامات دي' او د حضور صلّي اللّه عليه وسلّم د مونځ کولو ځائې. او د منبر او قبر بيان.

۹۸۸: اسماعيل' مالک' محمد بن منکدر' حضرت جابر بن عبد اللّه رضي اللّه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے' يو اعرابي د نبي صلّي اللّه عليه وسلّم نه په اسلام بيعت اوکه. هغه ته مدينه کښ بخار راغې' نو د نبي صلّي اللّه عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او عرض ئې اوکه' يا رسول اللّه ځما بيعت فسخ کړئې. رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم انکار اوکه. بيا هغه حضور صلّي اللّه عليه وسلّم له راغې. او عرض ئې اوکه' ځما بيعت فسخ کړئې. نو بيا ورته هم حضور صلّي اللّه عليه وسلّم انکار اوکړلو. بيا هغه حضور صلّي اللّه عليه وسلّم له راغې. اوْوئيلې. ځما بيعت فسخ کړئې. نو حضور صلّي اللّه عليه وسلّم انکار اوکړلو هغه اعرابي (بانديسې) لاړ. نو رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. مدينه د بهټۍ په شان ده' چه ميل کچيل

كَالْكِيْرِ تَنْفِيْ خَبَثَهَا وَ يَنْصَعُ طِيْبُهَا.

(خيرې) لرې كوي' او پاكيزه ساتي.

٩٨٩ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ أُقْرِئُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ فَلَمَّا كَانَ اٰخِرُ حَجَّةٍ حَجَّهَا عُمَرُ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بِمِنًى لَوْ شَهِدْتَ اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَتَاهُ رَجُلٌ قَالَ اِنَّ فُلَانًا يَقُوْلُ لَوْ مَاتَ اَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ لَبَايَعْنَا فُلَانًا فَقَالَ عُمَرُ لَاَقُوْمَنَّ الْعَشِيَّةَ فَاُحَذِّرَ هٰؤُلَاءِ الرَّهْطَ الَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَغْصِبُوْهُمْ قُلْتُ لَا تَفْعَلْ فَاِنَّ الْمَوْسِمَ يَجْمَعُ رِعَاعَ النَّاسِ يَغْلِبُوْنَ عَلٰى مَجْلِسِكَ فَاَخَافُ اَنْ لَا يُنَزِّلُوْهَا عَلٰى وَجْهِهَا فَيَطِيْرُ بِهَا كُلُّ مُطِيْرٍ فَاَمْهِلْ حَتّٰى تَقْدَمَ الْمَدِيْنَةَ دَارَ الْهِجْرَةِ دَارَ السُّنَّةِ فَتَخْلُصَ بِاَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ فَيَحْفَظُوْا مَقَالَتَكَ وَ يُنَزِّلُوْهَا عَلٰى وَجْهِهَا فَقَالَ وَاللّٰهِ لَاَقُوْمَنَّ بِهٖ فِيْ اَوَّلِ مَقَامٍ اَقُوْمُهُ بِالْمَدِيْنَةِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٩٨٩ : موسى بن اسماعيل' عبد الواحد' معمر' زهري' عبيد الله بن عبد الله' حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي دَ هغه بيان دے. مَا عبد الرحمٰن بن عوف ته (قران) ښودلو' كوم وخت چه حضرت عمرؓ اخري حج اوكه' نو عبد الرّحمٰن منٰي كښې اووے كاش چه ته امير المؤمنين ته حاضر شوے وے' هغه له يو سړے راغلے' او بيان ئے اوكه' فلانے والي' كه امير المُؤمنين وفات شي نو مونږ به د فلاني په لاس بيعت اوكړو' حضرت عمر رضي الله عنه اووے. زه به نن ماښام اودريږم' دا خلق به اويروم چه دَ مسلمانانو حق غصب كول غواړي. ما ورته اووے' تاسو داسې مه كوئے' ځكه چه دَ حج موسم دے. ستاسو مجلس كښې زيات تر عام خلق وي. ماسره يره وه' چه هغوئ دا' واوري' نو په صحيح مقام به ئے اونه كړي. او هر طرف ته به ئے والوځوي (يعني د دے اشاعت به اوكړي) نو تاسو انتظار اوكړئے' تر دے چه دار الهجره' او دار السنة يعني مدينې ته اورسئے او صرف د' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اصحاب يعني مهاجرين او انصار راجمع كړئے' ورته ئے اووائے. هغه خلق به ستاسو خبرے يادې اوساتي' او په صحيح مقام به ئے اوكړي. حضرت عمر رضي الله عنه اووے. په خدائے م قسم وي' زه چه مدينې ته اورسم' نو ورمبے به دا' وائم' دَ حضرت ابن عبّاس رضي الله عنه بيان دے. مونږ خلق مدينې ته اورسيدو' حضرت عمر رضي الله عنه خطبه كښې اوفرمائيل' الله تعالٰي' محمد صلّي الله عليه وسلّم حق سره مبعوث كړے دے' او په هغه ئے

بِالْحَقِّ وَ اَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ فَكَانَ فِيْمَا اُنْزِلَ اٰيَةُ الرَّجْمِ.

كتاب نازل كړے دے. او كوم ايتونه چه نازل شوے دي. هغے كښې دَ سنګسارولو آيت هم دے.

۶۹۹۰ : حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ مُمَشَّقَانِ مِنْ كَتَّانٍ فَتَمَخَّطَ فَقَالَ بَخٍ بَخٍ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يَتَمَخَّطُ فِي الْكَتَّانِ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ وَ اِنِّيْ لَاَخِرُّ فِيْمَا بَيْنَ مِنْبَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى حُجْرَةِ عَآئِشَةَ مَغْشِيًّا عَلَيَّ فَيَجِيْءُ الْجَآئِيْ فَيَضَعُ رِجْلَهُ عَلٰى عُنُقِيْ وَيُرٰى اَنِّيْ مَجْنُوْنٌ وَ مَا بِيْ مِنْ جُنُوْنٍ مَابِيْ اِلَّا الْجُوْعُ.

۶۹۹۰ : سليمان بن حرب، حماد، ايوب، محمد (بن سيرين) نه روايت دے، د هغه بيان دے. مونږ ابو هريره رضي الله عنه سره ناست وو. نو هغه كېسر كښې رنګ شوے دوه (۲) دكتان كپړے اغوستے وے. هغه پوزه صافه كړه. اوويلے، واه، واه. ابو هريرهؓ په كتان پوزه صفا كوي. حالانكه ما خپل ځان ليدلے دے. چه د رسول الله صلّي الله عليه وسلّم دَ منبر او بي بي عائشےؓ د حجرے (كوټكۍ) مينځ كښې (د لوږے) د بيهوشۍ نه راغرځيدلے ووم. راتللونكو به خپله پښه خما په ګردن ايښودله. او خيال به لے كولو، چه زه ليونے شوے يم حالانكه زه ليونے نه ووم، صرف د لوږے د وجے نه مِ دغه حال وو.

ف: كتان: يو قسم باريكه كپړه چه د هغے متعلق د بعضے خلقو خيال دے، چه د سپوږمۍ مخے ته راتللو سره شليږي.

۶۹۹۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ قَالَ سُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَشَهِدْتَّ الْعِيْدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ وَلَوْلَا مَنْزِلَتِيْ مِنْهُ مَا شَهِدْتُّهُ مِنَ الصِّغَرِ فَاَتَى الْعَلَمَ الَّذِيْ عِنْدَ دَارِ كَثِيْرِ بْنِ الصَّلْتِ فَصَلّٰى ثُمَّ خَطَبَ وَلَمْ يَذْكُرْ اَذَانًا

۶۹۹۱ : محمد بن كثير، سفيان، عبد الرحمٰن بن عابس رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه چا تپوس اوكه، آيا تاسو نبي صلّي الله عليه وسلّم سره اختر كښې موجود پاتے شوے يئے. هغه اووے. او. كه، خما حضور صلّي الله عليه وسلّم سره رشته داري نه وے، نو د كم عمرۍ په وجه ورسره زه شريكيدے نه شوم. حضور صلّي الله عليه وسلّم هغے نشان ته تشريف راوړلو، چه د كثير بن صلت مكان سره وو. حضور صلّي الله عليه وسلّم مونځ اوكړلو. بيائے خطبه واوروله. او د اذان او اقامت ذكر

وَلَا إِقَامَةٌ ثُمَّ أَمَرَ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلَ النِّسَاءُ يُشِرْنَ إِلَى آذَانِهِنَّ وَحُلُوقِهِنَّ فَأَمَرَ بِلَالًا فَأَتَاهُنَّ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه اونه کړلو. نو ښځو خپلو غوږونو او غاړے طرف ته لاس وروړاندے کړلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم بلال رضي الله عنه ته حکم اوکه، نو هغه، هغے ښځو له راغے او (څیزونه ئے واخستل) نبي صلّي الله عليه وسلّم پله واپس لاړلو.

۹۹۲: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْتِي قُبَاءَ مَاشِيًا وَرَاكِبًا.

۹۹۲: ابو نعیم، سفیان، عبد الله بن دینار، حضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه نه روایت کوي. د هغه بیان دے. حضور صلّي الله علیه وسلّم به مسجد قبا ته کله پیاده او کله په سورلئ تشریف اوړلو.

۹۹۳: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ ابْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَتْ مَعَ صَوَاحِبِيْ وَلَا تُدْفِنِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْبَيْتِ فَإِنِّيْ أَكْرَهُ أَنْ أُزَكَّى وَعَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ عُمَرَ أَرْسَلَ إِلَى عَائِشَةَ ائْذَنِيْ لِيْ أَنْ أُدْفَنَ مَعَ صَاحِبَيَّ فَقَالَتْ إِيْ وَاللّٰهِ قَالَ وَكَانَ الرَّجُلُ إِذَا أَرْسَلَ إِلَيْهَا مِنَ الصَّحَابَةِ قَالَتْ لَا وَاللّٰهِ لَا أُوْثِرُهُمْ بِأَحَدٍ أَبَدًا.

۹۹۳: عبید بن اسماعیل، ابو اسامه، هشام، عروه، بي بي عائشے رضي الله عنها نه روایت کوي. هغې عبد الله بن زبیر رضي الله عنه ته وصیت اوکه، چه ما خپلو بنو (سوکنون) سره دفن کړه نبي صلّي الله عليه وسلّم سره حجره (کوټه) کښ م مه دفن کوه، ځکه چه زه نه خوښوم، چه ځما دے تعریف اوکړے شي. او هشام دَ خپل پلار نه روایت کوي. حضرت عمر رضي الله عنه بي بي عائشےؓ ته پیغام اولیږلو، ماته اجازت راکړه، چه زه خپلو دواړو ملګرو سره دفن کړے شم. نو هغے اووے، او، په خدائے م دے قسم وي، او صحاباؤ کښ چه چا به هغے ته (د، دفن کولو متعلق) وئیلے، نو هغې به جواب ورکولو، نه. قسم په خدائے، زه هیچاله په هغه ترجیح نه ورکوم.

۹۹۴: حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا أَبُوْبَكْرِ بْنُ أَبِيْ أُوَيْسٍ عَنْ سُلَيْمَانَ ابْنِ بِلَالٍ عَنْ

۹۹۴: ایوب بن سلیمان، ابو بکر بن ابي اویس، سلیمان بن بلال، صالح بن کیسان، ابن شهاب، حضرت انس بن مالکؓ نه روایت

صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْعَصْرَ فَيَأْتِي الْعَوَالِيَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ وَّ زَادَ اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ وَ بُعْدُ الْعَوَالِيْ اَرْبَعَةُ اَمْيَالٍ اَوْ ثَلٰثَةٌ.

کوي' د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم به د ماز يگر مونځ او کړلو. بيا به عوالي ته راتللو. نو' لمر به هغه وخت اوچت ولاړ وو' او ليث د' يونس نه دومره زيات روايت کړے دے' چه د' عوالي لرے والے (د مدينے نه) څلور (۴) يا درے (۳) ميله وو.

**٦٩٩٥:** حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ الْجُعَيْدِ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ يَقُوْلُ كَانَ الصَّاعُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُدًّا وَّ ثُلُثًا بِمُدِّكُمُ الْيَوْمَ وَ قَدْ زِيْدَ فِيْهِ.

**٦٩٩٥:** عمرو بن زراره' قاسم بن مالک' جعيد' حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه نه روايت کوي. هغه به وئيلے د حضور صلّي الله عليه وسلّم زمانه کښ به صاع يو مُد او يو تهائي (۱/۳ مد) وو. او اوس دے کښ زياتے کړے شوے دے.

**٦٩٩٦:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحَاقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ مِكْيَالِهِمْ وَ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ صَاعِهِمْ وَمُدِّهِمْ يَعْنِيْ اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ.

**٦٩٩٦:** عبد الله بن مسلمه' مالک' اسحاق بن عبد الله بن ابي طلحه' حضرت انس بن مالک نه روايت کوي. د هغه بيان دے' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' اے الله' د دے خلقو يعني اهل مدينه پيمانو کښ برکت واچوے. او د' دوي صاع او مُد کښ برکت واچوے.

**٦٩٩٧:** حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ الْيَهُوْدَ جَآءُوْا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ وَّامْرَاَةٍ زَنَيَا فَاَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا قَرِيْبًا مِّنْ حَيْثُ تُوْضَعُ الْجَنَائِزُ عِنْدَ

**٦٩٩٧:** ابراهيم بن منذر' ابو ضمره' موسي بن عقبه' نافع' حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. يهودو' د نبي صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښ يو سړے او يوه ښځه راوسته' چه هغوي زنا کړے وه' نو حضور صلّي الله عليه وسلّم د هغوي د سنگسارولو حکم اوکه. هغه دواړه د هغے ځائے قريب سنگسار کړے شو' کوم ځائے چه جُمات سره جنازے

الْمَسْجِدِ.

ابنـو دلے شي.

**٩٩٨ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَعَ لَهٗ اُحُدٌ فَقَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهٗ اَللّٰهُمَّ اِنَّ اِبْرَاهِيْمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَ اِنِّيْ اُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا تَابَعَهٗ سَهْلٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اُحُدٍ.**

٩٩٨ : اسماعيل، مالک، عمرو (د، مطلب مولى) انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت كوي. نبي صلّي الله عليه وسلّم ته اُحد غر ښكاره شولو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا غر موږ سره محبت كوي، او موږ ده سره محبت كوو، يا اللّه، حضرت ابراهيم عليه السّلام مكه حرم جوړه كړے وه او زه د مدينے د، دواړو كالړويجنو غاړو ذ مينځ حصّه حرم گرځوم. د، اُحد متعلق سهل ذ نبي صلّي الله عليه وسلّم نه د دے متابعت كښ روايت كړے دے.

**٩٩٩ : حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ اَنَّهٗ كَانَ بَيْنَ جِدَارِ الْمَسْجِدِ مِمَّا يَلِي الْقِبْلَةَ وَ بَيْنَ الْمِنْبَرِ مَمَرُّ الشَّاةِ.**

٩٩٩ : ابن ابي مريم، ابو غسّان، ابو حازم، حضرت سهل نه روايت كوي. د هغه بيان دے. ذ جُمات قبلے طرف ته ديوال او د ممبر مينځ كښ دومره فاصله وه، چه چيلئے پرے تيره شي.

**١٠٠٠ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ خُبَيْبِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ بَيْتِيْ وَ مِنْبَرِيْ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّيَاضِ الْجَنَّةِ وَ مِنْبَرِيْ عَلٰى حَوْضِيْ.**

١٠٠٠ : عمرو بن علي، عبد الرحمٰن بن مهدي، مالک، حبيب بن عبد الرحمٰن، جفص بن عاصم، حضرت ابو هريره رضي اللّه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول اللّه صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل، څما د حجرے او منبر مينځ كښ د جنت باغونو نه يو باغ دے. او څما منبر څما په حوض دے.

**١٠٠١ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَابَقَ النَّبِيُّ صَلَّى**

١٠٠١ : موسٰي بن اسماعيل، جويريه، نافع، حضرت عبد اللّه نه روايت كوي ذ هغه بيان دے. نبي صلّي اللّه عليه وسلّم د، اسونو مينځ كښ د، منډے مقابله

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنَ الْعَمَلِ فَأُرْسِلَتِ الَّتِيْ ضُمِّرَتْ مِنْهَا وَ اَمَدُهَا مِنَ الْحَفْيَاءِ اِلٰى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ وَالَّتِيْ لَمْ تُضَمَّرْ اَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ اِلٰى مَسْجِدِ بَنِيْ زُرَيْقٍ وَّ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ كَانَ فِيْمَنْ سَابَقَ.

او كړه (يعني كهوړ دوړ' ئے او كه) كوم آسونه چه تيار كړے شوے وو' هغه پريښودے شو. او د' دوړ (منلوے) انتها د' حفياء نه ثنية الوداع پورے وه. او كوم آسونه چه دے شرط د پاره نه وو تيار كړے شوے د' هغوي دوړ د' ثنية الوداع نه مسجد بني زريق پورے وو. او عبد اللّٰه هم خلقو كښ وو' چه هغوي مقابله كړے وه.

۱۰۰۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ لَيْثٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ح وَ حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عِيْسٰى وَابْنُ اِدْرِيْسَ وَابْنُ اَبِيْ غُنِيَّةَ عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ عَلٰى مِنْبَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۰۲ : قتيبه' ليث' نافع' حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه (دويم سند) اسحٰق' عيسٰي او' ابن ابي غنيه' ابو حيان' شعبي' حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. ما ذ حضرت عمر رضي اللّٰه عنه نه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم په منبر خطبه واوريده.

۱۰۰۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِي السَّائِبُ بْنُ يَزِيْدَ سَمِعَ عُثْمَانَ ابْنَ عَفَّانَ خَطَبَنَا عَلٰى مِنْبَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۰۳ : ابو اليمان' شعيب' زهري' حضرت سائب بن يزيد رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. هغه د حضرت عثمان بن عفان رضي اللّٰه عنه نه ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په منبر خطبه واوريده.

۱۰۰۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ اَنَّ هِشَامَ بْنَ عُرْوَةَ حَدَّثَهُ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ يُوْضَعُ لِيْ وَلِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا الْمِرْكَنُ فَنَشْرَعُ فِيْهِ جَمِيْعًا.

۱۰۰۴ : محمد بن بشار' عبد الاعلٰي' هشام بن حسان' هشام بن عروه' عروه نه روايت كوي. د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنها بيان دے' ما د پاره او رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د پاره به دا لگن ايښودلے شو' او مونږ دواړو به دے نه لاس شروع كړل.

۱۰۰۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۱۰۰۵ : مسدد' عباد بن عباد' عاصم' احول'

عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا عَاصِمُ الْأَحْوَلُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ حَالَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْأَنْصَارِ وَ قُرَيْشٍ فِي دَارِي الَّتِي بِالْمَدِينَةِ وَقَنَتَ شَهْرًا يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ.

حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوي، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، انصارو او قريشو مينځ كښې خما دے كور كښې ورور ولي جوړه كړه، چه مدينه كښې دے. او حضور صلّي الله عليه وسلّم د، يو مياشت پورے دعائے قنوت اولوستو چه هغے كښې ذ بني سلمم قبيلو ته بددُعا اوكړله.

۱۰۰٦ : حَدَّثَنِي أَبُو كُرَيْبٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدٌ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَلَقِيَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ فَقَالَ لِي انْطَلِقْ إِلَى الْمَنْزِلِ وَأَسْقِيَكَ فِي قَدَحٍ شَرِبَ فِيهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تُصَلِّيَ فِي مَسْجِدٍ صَلَّى فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ فَسَقَانِي سَوِيقًا وَ أَطْعَمَنِي تَمْرًا وَ صَلَّيْتُ فِي مَسْجِدِهِ.

۱۰۰٦ : ابو كريب، ابو اسامه، بريد، ابو برده رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي د هغه بيان دے، زه مدينے ته راغلم، نو ماسره عبد اللّٰه بن سلام يو ځائے شولو، او مخته ئے اووے، خه چه خما كورته ځو، زه به په تا هغے پيالئے كښې اوڅكوم، چه هغے كښې رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم څكلے وو، او هغه ځائے كښې به مونځ اوكړے، كوم ځائے چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونځ كړے دے، زه هغه سره لاړم. نو هغه په ماستوان اوڅكول. او قجورے ئے رابانلدے اوخوړولے. او ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ مانځه په ځائے ما مونځ اوكړلو.

۱۰۰۷ : حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ حَدَّثَنِي عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ عُمَرَ حَدَّثَهُ قَالَ حَدَّثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتٍ مِنْ رَبِّي وَ هُوَ بِالْعَقِيقِ أَنْ صَلِّ فِي هٰذَا الْوَادِي الْمُبَارَكِ وَ قُلْ عُمْرَةٌ وَ حَجَّةٌ وَ قَالَ هٰرُونُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ

۱۰۰۷ : سعيد بن ربيع، علي بن مبارك، يحيٰي بن ابي كثير، عكرمه، حضرت ابن عباس، حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ماته نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ماته د شپے خما د، پروردگار د طرف نه يو فريښته راغله. هغه وخت حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم عقيق كښې وو، (هغے فريښتے اووے) دے مبارك وادي كښې مونځ اوكه، او، اووايه، چه ذ عمرے او حج نيت كوم. او هارون بن اسماعيل اووے ماته علي بن مبارك بيان اوكه، نو هغے كښې عمرة في حجة (حج

عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ.

کښې د عمرې نیت کوم) الفاظ نقل کړل.

**۱۰۰۸**: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ وَقَّتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرْنًا لِأَهْلِ نَجْدٍ وَالْجُحْفَةَ لِأَهْلِ الشَّامِ وَ ذَا الْحُلَيْفَةِ لِأَهْلِ الْمَدِيْنَةِ قَالَ سَمِعْتُ هٰذَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَلَغَنِيْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ لِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ وَ ذُكِرَ الْعِرَاقُ فَقَالَ لَمْ يَكُنْ عِرَاقٌ يَوْمَئِذٍ.

**۱۰۰۸**: محمد بن یوسف، سفیان، عبد الله بن دینار، حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت کوي. نبي صلّي الله علیه وسلّم اهل نجد د پاره قرن، اهل شام د پاره جُحفه، اَهل مدینه د پاره ذي الحلیفه میقات مقرر کړلو. دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه بیان دے، چه دا ما دَ نبي صلّي الله علیه وسلّم نه اوریدلے دي، او زه خبر شوے یم، حضور صلّي الله علیه وسلّم فرمائیلے دي، چه اهل یمن د پاره یلملم دے. د عراق ذکر اوشو، نو هغه اووے، چه هغه زمانه کښې عراق نه وو (یعني هغه زمانه کښې لا عراق نه وو فتح شوے).

**ف**: میقات: د حج د، احرام تړلو ځائے. او دا پنځه (۵) مقامات دي (۱) ذوالحلیفه (۲) ذات عرق (۳) جحفه (۴) قرن (۵) یلملم.

**۱۰۰۹**: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ اُرِيَ وَ هُوَ فِيْ مُعَرَّسِهٖ بِذِي الْحُلَيْفَةِ فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّكَ بِبَطْحَآءَ مُبَارَكَةٍ.

**۱۰۰۹**: عبد الرحمٰن بن مبارک، فضیل، موسي بن عقبه، سالم بن عبد اللّٰه، حضرت عبد اللّٰه، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ذي الحلیفه کښې کوز شوے وو، چه حضور صلّي الله علیه وسلّم ته خوب کښې اروئیلے شو. چه ته برکت والا میدان کښې ئې.

**باب ۱۰۵**: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ.

**باب ۱۰۵**: د، اللّٰه تعالٰي قول، چه تاته څه امر کښې هیڅ دخل نشته.

**۱۰۱۰**: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

**۱۰۱۰**: احمد بن محمد، عبد اللّٰه، معمر، زهري، سالم، حضرت عبد الله بن عمر رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، هغه دَ سحر مونځ کښې د، رکوع نه د سر اوچتولو په وخت

وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ قَالَ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ فِي الْاٰخِرَةِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَّ فُلَانًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ.

واوریدل: اللّٰهم ربنا و لک الحمد فِی الاخیرۃ. بیانے اوفرمائیل اَے اللّٰه' په فلاني فلاني لعنت اوکړے' نو اللّٰه تعالٰي دا' ایت نازل کړلو: لیس لک من الامر شیء : الخ یعني تاته دے امر کښې هیڅ دخل نشته' چه اللّٰه تعالٰي یاد دے خلقو توبه قبوله کړي' یا عذاب ورکړي' ځکه چه دا خلق ظالمان دي.

باب ۱۱۵: قَوْلِهٖ تَعَالٰي وَ كَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا وَّ قَوْلِهٖ تَعَالٰي وَلَا تُجَادِلُوْٓا اَهْلَ الْكِتَابِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ.

باب ۱۱۵: د' اللّٰه تعالٰي قول' چه انسان د ټولو نه زیات جګړمار دے. او د اللّٰه تعالٰي قول' اهل کتابو سره داسے جګړه کوئے چه بهتره وي.

۱۱۰۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا عَتَّابُ بْنُ بَشِيْرٍ عَنْ اِسْحٰقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَقَهُ وَ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُمْ اَلَا تُصَلُّوْنَ فَقَالَ عَلِيٌّ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّمَا اَنْفُسُنَا بِيَدِ اللّٰهِ فَاِذَا شَآءَ اَنْ يَبْعَثَنَا بَعَثَنَا فَانْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ لَهُ ذٰلِكَ وَلَمْ يَرْجِعْ اِلَيْهِ شَيْئًا ثُمَّ سَمِعَهُ وَ هُوَ

۱۱۰۱: ابو الیمان' شعیب' زهري' ح' محمد بن سلام' عتاب بن بشیر' اسحاق' زهري' علي بن حسین' حسین بن علي' حضرت عليؓ بن ابي طالب نه روایت کوي. د هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم یوه شپه هغه او بي بي فاطمے لور' د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم له تشریف راوړلو' نو هغوي ته ئے اوفرمائیل' آیا تاسو مونځ نه کوئ. د حضرت عليؓ بیان دے. ما عرض اوکه' یا رسول اللّٰه' ځمونږ نفسونه د' اللّٰه په لاس کښې دي' چه هغه غواړي' نو مونږ پاسوي' چه حضرت علي رضي اللّٰه عنه دا' اووے' نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم واپس شولو. او هیڅ جواب ئے ورنه که. بیا موترے واوریدل' چه خپل پتون باندے ئے لاس راخلاصولو اوفرمائیل ئے' انسان د ټولو نه زیات جګړمار دے (امام بخاريؒ) اووے.

مُنِيرٌ يَضْرِبُ فَنَجِدُهُ وَهُوَ يَقُولُ وَ كَانَ الْإِنْسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا مَا أَتَاكَ لَيْلًا فَهُوَ طَارِقٌ فَيُقَالُ الطَّارِقُ النَّجْمُ الثَّاقِبُ الْمُضِيءُ يُقَالُ أَثْقِبْ نَارَكَ لِلْمُوقِدِ.

۱۰۱۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْطَلِقُوا إِلَى يَهُودَ فَخَرَجْنَا مَعَهُ حَتَّى جِئْنَا بَيْتَ الْمِدْرَاسِ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَادَاهُمْ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ يَهُودَ أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا فَقَالُوا بَلَّغْتَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ قَالَ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ أُرِيدُ أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا فَقَالَ قَدْ بَلَّغْتَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ أُرِيدُ ثُمَّ قَالَهَا الثَّالِثَةَ فَقَالَ اعْلَمُوا أَنَّمَا الْأَرْضُ لِلّٰهِ وَرَسُولِهِ وَ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُجْلِيَكُمْ مِنْ هٰذِهِ الْأَرْضِ فَمَنْ وَجَدَ مِنْكُمْ بِمَالِهِ شَيْئًا فَلْيَبِعْهُ وَ إِلَّا فَاعْلَمُوا أَنَّمَا الْأَرْضُ لِلّٰهِ وَرَسُولِهِ.

كوم سړے چه د شپې راشي، هغه ته "طارق" ونيلے شي. او د بعضو قول دے، چه طارق نه مراد ستورے دے او ثاقب معنٰي روښانه، لكه اور روښانه (بلونكي) كوونكي ته ونيلے شي چه: اثقب نارك: (خپل اور روښانه كړه).

۱۰۱۲ : قتيبه، ليث، سعيد (ابو سعيد كيسان) حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. يو ځل مونږ جُمات كښې وو، نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم بهرته تشريف راوړلو. اووے فرمائيل خيئے چه يهودو له ورشو. مونږ خلق حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره روان شو، تر دے چه مونږ بيت المدراس ته اورسيدو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو. او هغے خلقو ته ئے آواز اوكړو، چه اے د يهودو جماعته، تاسو اسلام راوړئے، نو محفوظ به شئے. يهودو اووے. اے ابو القاسم، تا (پيغام) راورسولو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زما مقصد هم دغه وو. بيائے اوفرمائيل، تاسو مسلمانان شئے، نو محفوظ به شے. يهودو اووے اے ابو القاسم، تا، راورسولو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، زما دغه مقصد وو. بيا په دريم ځل حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دغه كلمات اووے. اووے فرمائيل، تاسو پو ه شئے، چه زمكه د، اللّٰه او د هغه رسول ده. او زه اراده كوم، چه تاسو د دے زمكے نه لرے كړم، نو تاسو كښې چه كوم سړے د خپل مال په عوض كښې څه قيمت بيامندے شي نو هغه دے خرڅ كړي. كني تاسو پو ه شے، چه زمكه د، اللّٰه او د هغه د، رسول ده.

باب ۵۱۲: قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ كَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا وَ مَا اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلُزُوْمِ الْجَمَاعَةِ وَهُمْ اَهْلُ الْعِلْمِ.

۱۰۱۳: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجَآءُ بِنُوْحٍ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيُقَالُ لَهٗ هَلْ بَلَّغْتَ فَيَقُوْلُ نَعَمْ يَا رَبِّ فَتُسْئَلُ اُمَّتُهٗ هَلْ بَلَّغَكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ مَا جَآءَنَا مِنْ نَّذِيْرٍ فَيَقُوْلُ مَنْ شُهُوْدُكَ فَيَقُوْلُ مُحَمَّدٌ وَ اُمَّتُهٗ فَيُجَآءُ بِكُمْ فَتَشْهَدُوْنَ ثُمَّ قَرَءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا قَالَ عَدْلًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا وَّ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَوْنٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

باب ۵۱۲: د' اللّٰه تعالٰي قول' چه مونږ تاسو دا شان مينځومانه اُمت جوړ کړلئے. او د دے بيان' چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ جماعت لازم نيولو حکم فرمائيلے دے. جماعت نه مراد علم واله دي.

۱۰۱۳: اسحاق بن منصور' ابو اسامه' اعمش' ابو صالح' حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل حضرت نوح عليه السّلام به د قيامت په ورځ راوستے شي' نو هغه ته به اوونيلے شي' آيا تا حکم الٰهي رسولے وو. هغه به وائي' او' اے پروردګاره بيا به د هغه د' امت نه تپوس اوشي' چه ده څما احکام تاسو ته رسولے وو' نو هغوئ به وائي' مونږ ته هيڅوک ويرونکے نه وو راغلے. اللّٰه به فرمائي' ستا ګواه څوک دے هغه به وائي' محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم او د هغه امت' نو تاسو خلق به راوستے شئے' او ګواهي به ورکړئے. بيا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا' آيت تلاوت کړلو. وَ كَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآء عَلَى النَّاسِ وَ يَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا: وَسَطًا نه مراد' درميانه دے جعفر بن عون نه په واسطه دَ اعمش' ابو صالح' حضرت ابو سعيد خدري حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه دا حديث روايت کړے دے.

باب ۵۱۳: اِذَا اجْتَهَدَ الْعَامِلُ اَوِ الْحَاكِمُ فَاَخْطَاَ خِلَافَ الرَّسُوْلِ مِنْ غَيْرِ عِلْمٍ فَحُكْمُهٗ مَرْدُوْدٌ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

باب ۵۱۳: که څوک عامل يا حاکم اجتهاد اوکړي' او د بے علمئ په وجه د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د حکم خلاف وي' نو دَ هغه حکم مردُوْد' دے څکه چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چاچه

مَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ اَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ.

داسې كار اوكړ، چه د هغې موږ حكم نه دې وركړې نو هغه مردود دې.

۱۰۱۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ عَنْ اَخِيهِ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ بْنِ سُهَيْلِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهُ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يُحَدِّثُ اَنَّ اَبَا سَعِيدِ الْخُدْرِيَّ وَ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَاهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ اَخَا بَنِي عَدِيٍّ الْاَنْصَارِيَّ وَاسْتَعْمَلَهُ عَلٰى خَيْبَرَ فَقَدِمَ بِتَمْرٍ جَنِيبٍ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا قَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّا لَنَشْتَرِى الصَّاعَ بِالصَّاعَيْنِ مِنَ الْجَمْعِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَفْعَلُوا وَلٰكِنْ مِثْلًا بِمِثْلٍ اَوْ بِيعُوا هٰذَا وَاشْتَرُوا بِثَمَنِهِ مِنْ هٰذَا وَ كَذٰلِكَ الْمِيزَانُ.

۱۰۱۴: اسماعيل، برادر اسماعيل، سليمان بن بلال، عبد المجيد بن سهيل بن عبد الرحمن بن عوف، سعيد بن مسيب، حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه او ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د دې دواړو بيان دې رسول الله صلى الله عليه وسلم د، بني عدي انصاري وروړ، د خيبر عامل مقرر كه، نو هغه د ښه قسم قجورې راوړې. هغه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، آيا د خيبر ټولې قجورې دا شان دي. هغه عرض اوكه، نه، يا رسول الله، موږ يو صاع قجورې د، دوه (۲) صاعو په بدله كښې اخلو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، داسې مه كوئې، بلكه برابر برابر خرڅوئې، يا دا خرڅې كړئې، او د دې د قيمت په عوض هغه واخلئې. او دا حكم د هغې څيزونو دې، چه تول سره خرڅيږي او اخستلې شي.

## باب ۵۱۴: اَجْرِ الْحَاكِمِ اِذَا اجْتَهَدَ فَاَصَابَ اَوْ اَخْطَأَ.

## باب ۵۱۴: د، حاكم د، اجر بيان، هر كله چه هغه اجتهاد اوكړي، او اجتهاد كښې غلطي يا صحت وي.

۱۰۱۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا حَيْوَةُ حَدَّثَنِيْ يَزِيدُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْهَادِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيمَ ابْنِ الْحَارِثِ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ اَبِيْ قَيْسٍ مَوْلٰى عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَنَّهُ

۱۰۱۵: عبد الله بن يزيد، حيوة، يزيد بن عبد الله بن الهاد، محمد بن ابراهيم بن حارث، بسر بن سعيد، ابو قيس (د عمرو بن عاص ازاد كرده غلام) حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه نه روايت كوي. هغه د، رسول الله صلى الله عليه وسلم

سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ اَصَابَ فَلَهٗ اَجْرَانِ وَ اِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ اَخْطَاَ فَلَهٗ اَجْرٌ قَالَ فَحَدَّثْتُ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَبَابَكْرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ فَقَالَ هٰكَذَا حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَقَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ الْمُطَّلِبِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ.

نه واوریدل. هر کله چه حاکم د څه خبرے فیصله اوکړي، او هغے کښې د، اجتهاد نه کار واخلي. او صحیح وي، نو هغه د پاره دوه (۲) ثوابه دي. او که حکم اوکړي. او هغے کښې د، اجتهاد نه کار واخلي، او غلط وي، نو هغه ته به یو ثواب رسي. د، یزید بن عبد الله بیان دے. ما دا حدیث ابو بکر بن عمرو بن حزم ته بیان که، نو هغه اووے، چه ابو سلمه بن عبد الرحمٰن په واسطه د، ابو هریره رضي الله عنه دا شان بیان کړے دے. او عبد العزیز بن مطلب، عبد الله بن ابي بکر نه هغه د، ابو سلمه نه هغه د حضور صلّي الله علیه وسلّم نه د دے په مثل نقل کړے دے.

ف: اجتهاد: کوشش کول. د، زړه سوچ سره یوه خبره راوښکل. قران حدیث او اجماع باندے قیاس سره شرعي مسائل استنباط کول. (راوښکل)

**بَابُ ۵۱۵: اَلْحُجَّةُ عَلٰى مَنْ قَالَ اِنَّ اَحْكَامَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ ظَاهِرَةً وَّ مَا كَانَ يَغِيْبُ بَعْضُهُمْ مِّنْ مَّشَاهِدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُمُوْرِ الْاِسْلَامِ.**

**باب ۵۱۵:** دَ هغه سړي خلاف دلیل، چه د دے قائل دے، چه د نبي صلّي الله علیه وسلّم احکام ظاهر وو (یعنې ټولو صحابهؓ ته معلوم وو) او د دے بیان چه بعضے صحابه رضي الله عنه دَ حضور صلّي الله علیه وسلّم نه غائب او د، اسلام د، اُمورو نه غائب او بے خبره اوسیدل.

**۱۰۱۶:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ حَدَّثَنِيْ عَطَآءٌ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ قَالَ اسْتَاْذَنَ اَبُوْ مُوْسٰى عَلٰى عُمَرَ فَكَاَنَّهٗ وَجَدَهٗ مَشْغُوْلًا فَرَجَعَ فَقَالَ عُمَرُ اَلَمْ اَسْمَعْ صَوْتَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ اِئْذَنُوْا

**۱۰۱۶:** مسدد یحیٰي، ابن جریج، عطاء، عبید بن عمیر نه روایت کوي. حضرت ابو موسٰي رضي الله عنه دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه دننه د راتلو اجازت اوغوښتلو څه جواب رانغے، نو دا خیال ئے اوکه، چه څه کار کښې به مشغول وي، واپس لاړ. حضرت عمر رضي الله عنه اووے، آیا ما د عبد الله بن قیس آواز نه وو، آوریدلے. هغه ته اجازت ورکړئ. هغه راوغښتلے شو.

لَهُ فَدُعِيَ لَهُ فَقَالَ مَا حَمَلَكَ عَلٰى مَا صَنَعْتَ فَقَالَ اِنَّا كُنَّا نُؤْمَرُ بِهٰذَا قَالَ فَأْتِنِيْ عَلٰى هٰذَا بِبَيِّنَةٍ أَوْ لَأَفْعَلَنَّ بِكَ فَانْطَلَقَ اِلٰى مَجْلِسٍ مِّنَ الْأَنْصَارِ فَقَالُوْا لَا يَشْهَدُ اِلَّا أَصَاغِرُنَا فَقَامَ أَبُوْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيُّ فَقَالَ قَدْ كُنَّا نُؤْمَرُ بِهٰذَا فَقَالَ عُمَرُ خَفِيَ عَلَيَّ هٰذَا مِنْ أَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلْهَانِيَ الصَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ.

نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته اووے' ته څه څيز په دے حركت اماده كړے. او موسٰي اووے. مونږ ته د دے حكم راكولے شو. حضرت عمر رضي الله عنه اووے' په دے گواه راوله' كني زه تاله سزا دركوم. ابو موسٰي' د' انصارو يو مجلس ته ورغے' نو هغے خلقو اووے مونږ كښ به وركوټے گواهي وركړي' نو ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه اودريدلو او حضرت عمر رضي الله عنه ته ئے بيان اوكه چه مونږ خلقو ته به دغه حكم راكولے شو. حضرت عمر رضي الله عنه اووے' د نبي صلّي الله عليه وسلّم دا حكم مانه پټ پاتے شوے وو. بازار كښ خريد و فروخت زه د دے نه بے خبره اوساتلم.

٧١٠١ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ الزُّهْرِيُّ أَنَّهُ سَمِعَهُ مِنَ الْأَعْرَجِ يَقُوْلُ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ إِنَّكُمْ تَزْعُمُوْنَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ يُكْثِرُ الْحَدِيْثَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهُ الْمَوْعِدُ إِنِّيْ كُنْتُ امْرَأً مِسْكِيْنًا أَلْزَمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى مِلْءِ بَطْنِيْ وَكَانَ الْمُهَاجِرُوْنَ يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ وَكَانَتِ الْأَنْصَارُ يَشْغَلُهُمُ الْقِيَامُ عَلٰى أَمْوَالِهِمْ فَشَهِدْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ وَقَالَ مَنْ يَبْسُطُ رِدَاءَهُ حَتّٰى أَقْضِيَ مَقَالَتِيْ ثُمَّ يَقْبِضَهُ فَلَنْ

٧١٠١ : علي' سفيان' زهري' اعرج' حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. هغه نه ئے واوريدل' تاسو وائے' چه ابو هريره (رضي الله عنه) د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم متعلق كثرت سره حديث بيان كوي. دَ خدائے مخكښ يو ځل تلل دي. زه يو مسكين سړے يم' صرف خيټے ډكولو سره به د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په صحبت كښ هروخت موجود ووم مهاجرين به بازار كښ خريد و فروخت كښ مشغول وو. او انصار به د خپل مال انتظام كښ مصروف وو. يو ورځ زه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم سره حاضر ووم' حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. كوم سړے چه خپل څادر څما دَ خبرو ختمولو پورے خور كړي بيا راغنډ كړي' نو څه چه مانه اوري هغه به ترے هيڅكله نه هيريږي. په ما چه كوم څادر وو. هغه ما خور كړلو. په هغه ذات م د قسم وي'

يَنْسٰى شَيْئًا سَمِعَهُ مِنِّىْ فَبَسَطْتُ بُرْدَةً كَانَتْ عَلَىَّ فَوَ الَّذِىْ بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا نَسِيْتُ شَيْئًا سَمِعْتُهُ مِنْهُ.

چه حضور صلّي الله عليه وسلّم نے حق سره رالیږلے دے. څه چه ما د حضور صلّي الله عليه وسلّم نه واوريدل هغے نه م هيڅ هم هير نه کړل.

بـاب ۶ ۱ ۵: مَـنْ رَأَى تَـرْكَ النَّكِيْرِ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُجَّةً لَا مِنْ غَيْرِ الرَّسُوْلِ.

باب ۶ ۱ ۵: د هغے سړي بيان، چه هغه خيال او کړ، چه د نبيّ انکار نه کول حجت دے او حضورؑ نه علاوه د بل چا عدم انکار حجت نه دے.

۸ ۱ ۰ ۱: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ حُمَيْدٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا أَبِىْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ رَأَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَحْلِفُ بِاللّٰهِ أَنَّ ابْنَ الصَّائِدِ الدَّجَّالُ قُلْتُ تَحْلِفُ بِاللّٰهِ قَالَ إِنِّىْ سَمِعْتُ عُمَرَ يَحْلِفُ عَلٰى ذٰلِكَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُنْكِرْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸ ۱ ۰ ۱: حماد بن حميد، عبيد الله بن معاذ، معاذ، شعبه، سعد بن ابراهيم، محمد بن منکدر نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے، ما حضرت جابر بن عبد اللهؓ قسم خوړلو سره اوليدو، چه ابن صائد دجّال دے، ما ورته اووے، ته په الله قسم خورے. هغه اووے، ما حضرت عمر رضي الله عنه، د نبي صلّي الله عليه وسلّم مخکښ په دے خبره په قسم خوړلو سره ليدلے دے. او حضور صلّي الله عليه وسلّم د دے نه انکار نه دے کړے.

بـاب ۷ ۱ ۵: اَلْأَحْكَامِ الَّتِىْ تُعْرَفُ بِالدَّلَائِلِ وَ كَيْفَ مَعْنَى الدَّلَالَةِ وَ تَفْسِيْرُهَا وَقَدْ أَخْبَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْرَ الْخَيْلِ وَغَيْرِهَا ثُمَّ سُئِلَ عَنِ الْحُمُرِ فَدَلَّهُمْ عَلٰى قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ وَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الضَّبِّ فَقَالَ لَآ اٰكُلُهٗ وَلَا اُحَرِّمُهٗ وَ اُكِلَ عَلٰى

باب ۷ ۱ ۵: ذ هغے احکامو بيان، چه د، دلائيلو په ذريعه پيژندلے شي. او د، دلالت معنی او د هغے تفسير څنګه دے. او نبي صلّي الله عليه وسلّم ذ، اَس وغيره احکام بيان کړل. بيا ذ حضور صلّي الله عليه وسلّم نه د، خرونو متعلق تپوس اوشو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم دا، آيت اولوستلو: فمن يّعمل مثقال ذرّة خيرًا يّره (چا چه ذره قدرے نيکي او کړه، نو هغه به اوويني) او نبي صلّي الله عليه وسلّم نه د سمسرے (ګوه) متعلق تپوس اوشو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه زه دا خورم، او، نه ورته حرام وايم.

مَائِدَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الضَّبُّ فَاسْتَدَلَّ بْنُ عَبَّاسٍ بِأَنَّهُ لَيْسَ بِحَرَامٍ.

۹ ۱ ۰ ۱ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ لِثَلٰثَةٍ لِرَجُلٍ اَجْرٌ وَلِرَجُلٍ سِتْرٌ وَ عَلٰى رَجُلٍ وِزْرٌ فَاَمَّا الَّذِيْ لَهُ اَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاَطَالَ فِيْ مَرْجٍ اَوْ رَوْضَةٍ فَمَآ اَصَابَتْ فِيْ طِيْلِهَا ذٰلِكَ مِنَ الْمَرْجِ وَالرَّوْضَةِ كَانَ لَهُ حَسَنَاتٍ وَلَوْ اَنَّهَا قَطَعَتْ طِيَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا اَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ اٰثَارُهَا وَ اَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ لَهُ وَ لَوْ اَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهْرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَ لَمْ يُرِدْ اَنْ يُسْقِيَ بِهٖ كَانَ ذٰلِكَ حَسَنَاتٍ لَهُ وَهِيَ لِذٰلِكَ الرَّجُلِ اَجْرٌ وَّ رَجُلٌ رَبَطَهَا تَغَنِّيًا وَ تَعَفُّفًا وَلَمْ يَنْسَ حَقَّ اللّٰهِ فِيْ رِقَابِهَا وَلَا ظُهُوْرِهَا فَهِيَ لَهُ سِتْرٌ وَرَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَّ رِيَاءً فَهِيَ عَلٰى ذٰلِكَ وِزْرٌ وَّسُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ قَالَ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيَّ فِيْهَا اِلَّا هٰذِهِ الْاٰيَةَ

او د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم په دستر خوان سمسره اوخوړے شوه. دے نه حضرت ابن عبّاس رضي الله عنه دا، استدلال اې كه، چه سمسره خوړل حرام نه دي.

۹ ۱ ۰ ۱ : اسماعيل، مالک، زيد بن اسلم، ابو صالح سمان، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اس د، درے قسمه خلقو د پاره دے. يو قسم سړي د پاره د، اجر ذريعه ده دويم قسم سړي د پاره پرده پوشئ ذريعه ده، او دريم سړي د پاره د عذاب سبب دے. چا د پاره چه ذَ ثواب باعث دے، نو هغه، هغه سړے دے، چه هغه د، الله په لار كښ اس اُوتړلو، او د هغه رسئ ئے باغ يا ورشو (چراگاه) كښ سسته پريښوده، نو ذَ هغے لمبائي كښ د دے ورشو يا باغ كومے حصے ته چه هغه اورسي، د هغے، هغے سړي ته ثواب رسي. او كه هغه رسئ ئے اوشلوله، او يو يا دوه (۲) زغل هغه اوكړل. نو ذَ هغه ذ قدمونو او، خاشنړو (ليد) په عوض كښ به هغه ته نيكئ رسي. او كه په يو نهر تيريږي، او ذَ هغے نه اُوبه اوڅكي، حالانكه د اُوبو څكولو اراده ئے نه وه، نو هم هغه ته به نيكئ حاصليږي. اَس داسے سړي د پاره د، اجر باعث دے. او چا چه اَس بے نيازي ظاهرولو او سوال نه بچ كيدو د پاره اوتړلو (يعني اوساتلو) او د هغه گردن اوشا (پيټه) كښ ئے د، الله حق هير نه كړلو، نو دا هغه د پاره د، پرده پوشئ ذريعه ده او څوک چه دا فخر، غرور او نمائش د پاره ساقي نو دا هغهٔ د پاره د عذاب ذريعه ده. او نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د، خرونو، متعلق تپوس اوشو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د

الْفَاذَّةَ الْجَامِعَةَ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهُ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهُ.

دے متعلق ماباندے دے باره کښں د دے جامع او بے نظیر آیت نه سوا بل څه آیت نه دے نازل شوے: فمن يعمل مثقال ذرة خيرًا يّره. وَ مَنْ يعمل مثقال ذرة شرًّا يّره.

**۷۰۲۰ :** حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ مَّنْصُوْرِ بْنِ صَفِيَّةَ عَنْ أُمِّهٖ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ ابْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ النُّمَيْرِيُّ الْبَصَرِيُّ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ شَيْبَةَ حَدَّثَتْنِيْ أُمِّيْ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحَيْضِ كَيْفَ تَغْتَسِلُ مِنْهُ قَالَ تَأْخُذِيْنَ فِرْصَةً مُّمَسَّكَةً فَتَوَضَّئِيْنَ بِهَا قَالَتْ كَيْفَ أَتَوَضَّأُ بِهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّئِيْ قَالَتْ كَيْفَ أَتَوَضَّأُ بِهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّئِيْنَ بِهَا قَالَتْ عَائِشَةُ فَعَرَفْتُ الَّذِيْ يُرِيْدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَذَبْتُهَا إِلَيَّ فَعَلَّمْتُهَا.

**۷۰۲۰ :** يحيٰي' ابن عيينه' منصور بن صفيه' د منصور مور (صفيه) بي بي عائشې نه روايت كوي. ذ هغې بيان دے .يو ښځې ذ حضورّ صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكه (دوئيم سند) محمد بن عقبه فضيل بن سليمان نميري بصري' منصور بن عبد الرحمٰن بن شيبه' ذ خپلې مور نه هغه ذ بي بي عائشې نه روايت كوي. د هغې بيان دے. يوے ښځے ذ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ حيض باره كښں تپوس اوكه' چه د دے غسل څنګه اوكړي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' چه مشک لړيدلے يوے كپړے سره د دے پاكي اوكړي. هغې عرض اوكه يا رسول اللّٰه' زه څنګه دے سره پاكي اوكړم' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' چه پاكي حاصله كړه. هغې عرض اوكه' يا رسول اللّٰه' زه دے سره څنګه پاكي حاصله كړم حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل دے سره پاكي حاصله كړه. د بي بي عائشې بيان دے چه زه د رسول اللّٰه په مقصد پو ه شوم' نو ما هغه ښځه خپل خان طرف ته راښكله او پو ه م كړله.

**۷۰۲۱ :** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ أَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ

**۷۰۲۱ :** موسٰي بن اسماعيل' ابو عوانه' ابو بشر' سعيد بن جبير' حضرت ابن عبّاس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان. اُمّ حفيد بنت حارث بن حزن

عَبَّاسٍ اَنَّ اُمَّ حُفَيْدٍ بِنْتَ الْحَارِثِ بْنِ حَزْنٍ اَهْدَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمْنًا وَّ اَقِطًا وَّا اَضُبًّا فَدَعَا بِهِنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُكِلْنَ عَلٰى مَآئِدَتِهٖ فَتَرَكَهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَالْمُتَقَذِّرِ لَهٗ وَلَوْ كُنَّ حَرَامًا مَّآ اُكِلْنَ عَلٰى مَآئِدَتِهٖ وَلَا اَمَرَ بِاَكْلِهِنَّ.

ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ غوړي، پنير، او سمسره هدية اوليږل. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا خيزونه راوغښتل او د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په دستر خوان اوخوړلے شو. ليكن حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د نفرت په وجه اونه خوړل. كه دا خيزونه حرام وے، نو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په دسترخوان به نه خوړے كيدل. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د هغے د خوړلو حكم نه ور كولو.

**۱۰۲۲ :** حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءُ بْنُ اَبِيْ رَبَاحٍ عَنْ جَابِرِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَكَلَ ثُوْمًا اَوْ بَصَلًا فَلْيَعْتَزِلْنَا اَوْ لِيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا وَلْيَقْعُدْ فِيْ بَيْتِهٖ وَ اِنَّهٗ اُتِيَ بِبَدْرٍ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ يَعْنِيْ طَبَقًا فِيْهِ خَضِرَاتٌ مِّنْ بُقُوْلٍ فَوَجَدَ لَهَا رِيْحًا فَسَاَلَ عَنْهَا فَاُخْبِرَ بِمَا فِيْهَا مِنَ الْبُقُوْلِ فَقَالَ قَرِّبُوْهَا فَقَرَّبُوْهَا اِلٰى بَعْضِ اَصْحَابِهٖ كَانَ مَعَهٗ فَلَمَّا رَاٰهُ كَرِهَ اَكْلَهَا قَالَ كُلْ فَاِنِّيْ اُنَاجِيْ مَنْ لَّا تُنَاجِيْ وَقَالَ ابْنُ عُفَيْرٍ

**۱۰۲۲ :** احمد بن صالح ابن وهب، يونس، ابن شهاب، عطاء بن ابي رباح، حضرت جابر بن عبد اللّٰه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل كوم سړے چه اوګه (لہسن) يا پياز اوخوري، نو هغه دے مونږ نه جدا اوسي. يا، دائے، اوفرمائيل. چه څمونږ ذ جماعت نه دے جدااوسي. او خپل كور كښ دے كيني. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته يو لوښے راوړے شو. ابن وهب وائي. چه طباق راوړلے شو، چه هغے كښ ساګ، سبزئ وے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته د هغے نه بُوئ معلوم شو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغے متعلق تپوس اوكه، نو كوم ساګ او سبزئ چه هغے كښ وے، د هغے متعلق حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان اوكړے شو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه دا فلاني له يوسئے. خلقو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو صحابي له يوړل. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره به وو. كوم وخت چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه صحابي اوليد، چه دا خوراک ئے خوښ نه كه، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. چه ته

عَنِ ابْنِ وَهْبٍ بِقِدْرٍ فِيْهِ خَضِرَاتٌ وَلَمْ يَذْكُرِ اللَّيْثُ وَ اَبُوْ صَفْوَانَ عَنْ يُوْنُسَ قِصَّةَ الْقِدْرِ فَلَا اَدْرِيْ هُوَ مِنْ قَوْلِ الزُّهْرِيِّ اَوْفِي الْحَدِيْثِ.

ئے اوخوره. زه چه چاسره سرګوشي (غوږ کښې خبرے) کوم، هغه سره تـه سرګوشي نه کوے. او ابن عفير، د وهب نه روايت کوي، کټوے (ہانڈی) راوړے شوه، چه هغے کښې ساګ وو. او ليث او، ابو صفوان د کټوے قصه بيان نه کړله. ماته نه ده معلومه، چه دا، د، زهري قول دے، يا حديث کښې داخل دے.

**١٠٢٣ :** حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ وَعَمِّيْ قَالَا حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ اَبِيْهِ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرٍ اَنَّ اَبَاهُ جُبَيْرَ مُطْعِمٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ امْرَاَةً اَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَتْهُ فِيْ شَيْءٍ فَاَمَرَهَا بِاَمْرٍ فَقَالَتْ اَرَءَ يْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ لَّمْ اَجِدْكَ قَالَ اِنْ لَّمْ تَجِدِيْنِيْ فَأْتِيْ اَبَابَكْرٍ زَادَ الْحُمَيْدِيُّ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ سَعْدٍ كَاَنَّهَا تَعْنِي الْمَوْتَ.

**١٠٢٣ :** عبيد اللّٰه بن سعد بن ابراهيم، دَ خپل پلار او تره (چچا) نه روايت کوي، د هغے د، وراره بيان دے. خـمـا پـلار د خپل پلار نه، هغه د محمد بن جبير نه روايت کـوي دَ جبيـر بـن مـطـعم بيان دے. يوه ښځه د، رسـول الـلّٰـه صـلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضره شوه او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ئې د څه څيز متعلق خبرے اترے او کړے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغے تـه څه حکم ورکه، نو هغے عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، اوښائے، که زه تاسو بيانه مومم (نو بيا څه اوکړم) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل که ته ما بيانه مومے، نو بيا ابو بکر رضي اللّٰه عنه له راشه. حميدي د، ابراهيم بن سعد نه نقل اوکه، چه دے نه دَ هغے ښځے مقصد دا، وو، که تاسوَ وفات شئے (نو بيا څه اوکړم).

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع کوم په نوم دَ لوئے اللّٰه مهربان چه ډير رحم والا دے

## بابٌ ٥١٨ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْاَلُوْا اَهْلَ الْكِتٰبِ عَنْ شَيْءٍ

وَ قَالَ اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ يُحَدِّثُ

## باب ٥١٨ : دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، چه د اهل کتابو نه دَ هيڅ څيز متعلق تپوس مه کوے.

ابو اليمان په واسطه د، شعيب، زهري، حميد بن عبد الرحمٰن نقل او که، چه حميد د معاويه نه دَ قريشو د څه خلقو نه، چه مدينه کښې وو، روايت کول واوريدل. او د کعب احبار ذکر، ئے اوکه نو هغه اوورے، چه دے

رَهْطًا مِّنْ قُرَيْشٍ بِالْمَدِيْنَةِ وَ ذَكَرَ كَعْبَ الْاَحْبَارِ فَقَالَ اِنْ كَانَ مِنْ اَصْدَقِ هٰؤُلَاءِ الْمُحَدِّثِيْنَ الَّذِيْنَ يُحَدِّثُوْنَ عَنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَ اِنْ كُنَّا مَعَ ذٰلِكَ لَنَبْلُوْا عَلَيْهِ الْكَذِبَ.

هغې محدثينو کښې د ټولو نه زيات رېښتنې وو، چه اهل کتابو نه ئې روايت کولو. ليکن د دې باوجود مونږ د هغه روايت کښې غلطه خبره بيامونده له (په دې وجه نه چه هغه قصدًا دروغ وې) بلکه اهل کتابو ذ تحريف په سبب هغې کښې غلط روايتونه شامل کړې شوې وو.

**۱۰۲۴** : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ اَهْلُ الْكِتَابِ يَقْرَءُوْنَ التَّوْرٰةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ وَ يُفَسِّرُوْنَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُصَدِّقُوْٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ وَلَا تُكَذِّبُوْهُمْ وَ قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ مَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ الْاٰيَةَ.

**۱۰۲۴** : محمد بن بشار، عثمان بن عمر، علي بن مبارک، يحيى بن ابي کثير، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي ذ هغه بيان دې، چه اهل کتابو به تورات عبراني ژبه کښې لوستلو. او اهل اسلام د پاره به ئې ذ هغې تفسير عربئ کښې بيانولو. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، چه د، اهلِ کتابو مه خو تصديق کوئې، او، مه ئې تکذيب کوئې. او، وايئې چه: اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَ مَا اُنْزِلَ عَلَيْكُمْ الخ (يعني وائې) چه مونږ په الله تعالى او په هغه څيز ايمان راوړې دې، چه مونږ طرف ته نازل شوې دې، او په هغه څيز چه ستاسو طرف ته نازل شوې دې، آخر پورې.

**۱۰۲۵** : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ اَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ كَيْفَ تَسْاَلُوْنَ اَهْلَ الْكِتَابِ عَنْ شَيْءٍ وَّ كِتَابُكُمُ الَّذِيْ اُنْزِلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْدَثُ تَقْرَءُوْنَهُ مَحْضًا لَمْ يُشَبْ وَقَدْ حَدَّثَكُمْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتَابِ بَدَّلُوْا كِتَابَ اللّٰهِ وَ غَيَّرُوْهُ وَ كَتَبُوْا

**۱۰۲۵** : موسى بن اسماعيل، ابراهيم، ابن شهاب، عبيد الله نه روايت کوي، ابن عبّاس رضي الله عنه اووې، تاسو خلق د، اهلِ کتابونه د څه څيز متعلق ولې تپوس کوئې، حالانکه ستاسو کتاب هغه دې، چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم باندې تازه تازه نازل شوې دې. دا تاسو، لره، خالص دې. دې کښې هيڅ اميزش (ګډون) نشته او دې کتاب تاسو ته بيان کړې دې، چه اهلِ کتابو خپل کتاب بدل کړې دې. او هغې کښې ئې تغير اوکه. هغې خلقو به خپل لاس سره کتاب ليکلو. او وئيل به ئې، چه دا، د، الله ذ طرف نه دې، د

بِـأَيْـدِيْهِمُ الْكِتَابَ وَقَالُوْا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰـهِ لِيَشْتَـرُوْا بِـهٖ ثَـمَـنًـا قَلِيْلًا اَلَا يَنْهَاكُمْ مَّا جَآءَ كُمْ مِّنَ الْعِلْمِ عَنْ مَّسْئَلَتِهِمْ لَا وَ اللّٰهِ مَا رَأَيْنَا مِنْهُمْ رَجُلًا يَسْـأَلُـكُـمْ عَـنِ الَّذِيْ اُنْـزِلَ عَلَيْكُمْ.

پاره د دے چه د دے په ذریعه څه لږ قیمت وصول کړي، چـه د هغې علم تاسو ته راغلے دے، نو آیا د دے متعلق د سوال کولو نه هغه تاسو منع کوئ. په خدائے مِ دے قسم وي، دے اهـلِ کتـابو نه هیڅوک داسے نه وینم، چه تاسو نـه د هغې څیز متعلق تپوس اوکړي، چه تاسو باندے نازل شوے دے.

## باب ۱۹ ۵: كَرَاهِيَةِ الْخِلَافِ.

## باب ۱۹ ۵: د، جګړے د مکروه کیدو بیان.

۱۰۲۶: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْـمٰنُ بْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ سَلَّامِ بْـنِ اَبِـيْ مُـطِيْـعٍ عَـنْ اَبِـيْ عِـمْـرَانَ الْجَـوْنِـيِّ عَـنْ جُـنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ اقْـرَءُ وا الْـقُـرْاٰنَ مَا ائْتَلَفَتْ قُلُوْبُكُمْ فَاِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُوْمُوْا عَنْهُ.

۱۰۲۶: اسـحـاق، عبـد الـرحـمٰن بـن مهـدي، سـلام بـن ابـي مـطيع، ابو عمران جوني، حضرت جندب بـن عـبـد الـلّٰـه نـه روایت کوي د هغه بیـان دے، رسول الـلّٰـه صـلّـي الـلّٰـه علیـه وسلّم اوفرمـائیل، تـاسو قران شـریف هـغـه وختـه پـورے لولے، چـه ستاسو زړونـه یو خـائے وي. کـلـه چـه تـاسو اختلاف راواخلئے، نو دے نه اودریږئے.

۱۰۲۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عَبْـدُ الـصَّمَدِ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عِـمْرَانَ الْجَوْنِيُّ عَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ الـلّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ قَالَ اقْرَؤُا الْقُرْاٰنَ مَا ائْتَلَفَتْ عَلَيْهِ قُلُوْبُكُمْ فَاِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُوْمُوْا عَـنْـهُ وَ قَـالَ يَـزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ الْاَعْوَرِ حَـدَّثَـنَـا اَبُوْ عِمْرَانَ عَنْ جُنْدُبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۲۷: اسـحاق، عبد الصمد، همام، ابو عمران جونـي، حـضـرت جـنـدب بـن عبد اللّٰـه رضي اللّٰـه عنـه نـه روایـت کـوي. دَ هـغـه بیـان دے. نبي صلّـي اللّٰـه علیـه وسـلّـم اوفـرمـائیـل تـاسو قران لولئے، څو پورے چـه ستـاسـو زړونـه پـه دے یو ځـائے وي. او کلـه چـه تـاسو اختلاف راواخلئے، نو دے نه اودریږئے. او یزید بن هـارون د، هـارون اعـور نـه نـقـل کـړے دے، چه ماته ابو عـمران، هغه دَ حضرت جندب نه، هغه د حضور صلعم نه روایت کړے دے.

۱۰۲۸: حَـدَّثَـنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُـوْسٰـيٰ اَخْـبَـرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الـزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ

۱۰۲۸: ابراهیم بن موسـي، هشام، معمر، زهري، عبیـد الـلّٰه بن عبدا للّٰه، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نـه روایـت کـوي، د هـغـه بیان دے. دَ نبي صلّي اللّٰه علیه

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا حُضِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَفِي الْبَيْتِ رِجَالٌ فِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ قَالَ هَلُمَّ اكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ قَالَ عُمَرُ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَلَبَهُ الْوَجَعُ وَعِنْدَكُمُ الْقُرْآنُ فَحَسْبُنَا كِتَابُ اللّٰهِ وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْبَيْتِ وَاخْتَصَمُوا فَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ قَرِّبُوا يَكْتُبْ لَكُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ مَا قَالَ عُمَرُ فَلَمَّا أَكْثَرُوا اللَّغَطَ وَالِاخْتِلَافَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُومُوا عَنِّي قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ أَنْ يَكْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْكِتَابَ مِنِ اخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ.

وسلّم د وفات وخت چه قريب شو، نو هغه وخت كور كښې ډير خلق موجود وو، چه هغې كښې حضرت عمرؓ بن خطاب هم وو، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د ليكلو سامان راوړئې، چه زه ستاسو د پاره يو تحرير اوليكلم، چه ذ هغې نه پس به هيڅ كله ګمراه نه شئې. حضرت عمر رضي اللّٰه عنه اووې، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته سخت تكليف دې او تاسو خلقو سره قرآن شته، او مونږ د پاره د اللّٰه كتاب كافي دې، كوروالو كښې اختلاف شو. هغه خلق په جګړه شو. چابه وئيلې، ذ ليكلو سامان راوړئې، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم تاسو د پاره داسې تحرير اوليكي، چه ذ هغې نه پس تاسو ګمراه نه شئې. او بعضو به هغه وئيلې، څه چه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه وئيلې. څه وخت چه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مخكښې شور زيات شو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، څما نه پاسئې (لرې شئې). د عبد اللّٰه بيان دې. ابن عباس رضي اللّٰه عنه به وئيلې. ټول مصيبت هغه څيز وو، چه د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم او ذ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ ليكلو په مينځ كښې حائل شو، يعني ذ هغې خلقو جګړه او شور كول.

## بَابٌ ۵۲۰: نَهْيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّحْرِيمِ إِلَّا مَا تُعْرَفُ إِبَاحَتُهُ وَكَذٰلِكَ أَمْرُهُ نَحْوَ قَوْلِهِ حِينَ أَحَلُّوا أَصِيبُوا مِنَ النِّسَآءِ وَقَالَ جَابِرٌ وَلَمْ يَعْزِمْ عَلَيْهِمْ

باب ۵۲۰: د دې امر بيان، چه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم منع فرمائيل، د تحريم سبب دې، ماسوا، د هغې نه، چه ذ هغې مباح كيدل معلوم وي، او، دا حال د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د امر هم دې، لكه خلقو ته كوم وخت چه هغوئ د حج نه فارغ شو، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا فرمائيل، چه خپلو بيبيانو له لاړشئې، جابر اووې، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم، صحبت

وَلٰكِنْ اَحَلَّهُنَّ لَهُمْ وَ قَالَتْ اُمُّ عَطِيَّةَ نُهِيْنَا عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَازَةِ وَلَمْ يُعْزَمْ عَلَيْنَا.

هغې خلقو د پاره فرض نه كه، بلكه هغې خلقو د پاره لې حلال كه. او اُمّ عطيه رضي الله عنه اووے، چه مونږ ښځې جنازے پسے د تلو نه منع كړے شو. ليكن حرام نه كړے شو.

۱۰۲۹ : حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ فِيْ اُنَاسٍ مَّعَهُ قَالَ اَهْلَلْنَا اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِى الْحَجِّ خَالِصًا لَيْسَ مَعَهُ عُمْرَةٌ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ فَقَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُبْحَ رَابِعَةٍ مَّضَتْ مِنْ ذِى الْحَجَّةِ فَلَمَّا قَدِمْنَا اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نَّحِلَّ وَ قَالَ اَحِلُّوْا وَ اَصِيْبُوْا مِنَ النِّسَآءِ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ وَّ لَمْ يَعْزِمْ عَلَيْهِمْ وَلٰكِنْ اَحَلَّهُنَّ لَهُمْ فَبَلَغَهُ اَنَّا نَقُوْلُ لَمَّا لَمْ يَكُنْ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ عَرَفَةَ اِلَّا خَمْسٌ اَمَرَنَا اَنْ نَحِلَّ اِلٰى نِسَآئِنَا فَنَاْتِىْ عَرَفَةَ تَقْطُرُ مَذَاكِيْرُنَا الْمَذْىَ

۱۰۲۹ : مكي بن ابراهيم، ابن جريج، عطاء، حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت كوي (دويم سند) امام بخاري په واسطه د واسطه دَ محمد بن بكر، ابن جريج، عطاء نه روايت كوي. ما د جابر بن عبد الله نه واوريدل او هغه وخت هغه سره څه خلق نور هم وو هغه اووے، مونږ د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم صحابه وَ صرف د حج احرام اوتړلو. هغې سره د، عمرے نيت نه وو. دَ عطاء بيان دے. جابر اووے، نبي صلّي الله عليه وسلّم د، ذي الحجه په څلورم تاريخ مدينے ته تشريف راوړلو. كوم وخت چه مونږ خلق راغلو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم مونږ ته حكم راكه چه احرام پرانزو. او، وے فرمائيل، چه احرام پرانزئے، او خپلو بيبيانوله لاړ شے. د، عطاء بيان دے. حضرت جابر رضي الله عنه اووے. حضور صلّي الله عليه وسلّم په هغې خلقو فرض نه كه، بلكه ښځے، سرو د پاره حلال كړے شوے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ته دا خبر اورسيد، چه مونږ خلق داسے وايو، چه هر كله څمونږ او د عرفه مينځ كښې صرف پنځه ورځے باقي پاتے شوے دي، حضور صلّي الله عليه وسلّم مونږ له اجازت راكوي، چه مونږ خپلو بيبيانو سره صحبت كولے شو. او مونږ به عرفے ته داسے حال كښې اورسو، چه څمونږ د، ذكر نه به مذي څاڅي. د عطاء بيان دے، چه جابر خپل لاس سره اشارے كولو

قَالَ وَ يَقُوْلُ جَابِرٌ بِمَنِهٖ هٰكَذَا وَ حَرَّكَهَا فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قَدْ عَلِمْتُمْ اَنِّيْ اَتْقَاكُمْ لِلّٰهِ وَاَصْدَقُكُمْ وَ اَبَرُّكُمْ وَ لَوْلَا هَدْيِيْ لَحَلَلْتُ كَمَا تَحِلُّوْنَ فَحِلُّوْا فَلَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ اَمْرِيْ مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا اَهْدَيْتُ فَحَلَلْنَا وَ سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا.

سره هغه خوزولو سره اووے دے اوريدو سره حضور صلّي الله عليه وسلّم اودريدلو' اووے فرمائيل' چه زه د' الله نه تاسو ټولو کښې زيات ويريدونکے' زيات ريښتينے اونيکوکاريم' که ماسره د قربانئے خناور نه وے' نو مابه احرام پرانستے وو' څنګه چه تاسو پرانزئے' نو تاسو احرام پرانزئے' که ماته دَ مخکښې دا معلومه وے' څه چه راتـه ورستـو معلـوم شـو' نـو مـابـه د' قـربانئے خناور نه راوستلے' نو مونږ احرام پرانستلو. او مونږ واوريدل' او اطاعت مو' اوکه.

۱۰۳۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ الْمَزَنِيُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلُّوْا قَبْلَ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ كَرَاهِيَّةَ اَنْ يَّتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً.

۱۰۳۰: ابو معمر' عبد الوارث' حسين' ابن بريده' حضرت عبد الله مزني' نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. د ماښام د مانځه نه مخکښې دوه (۲) رکعاته (نفل) اوکرئے. په دريم ځل حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' دا هغے چا دپاره دي' چه غواړي حضور صلّي الله عليه وسلّم دائے مکروه اوګڼړل' چه چرته خلق دا سنت جوړنه کړي.

باب ۱۵۲۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ وَ شَاوِرْهُمْ فِي الْاَمْرِ وَ اَنَّ الْمُشَاوَرَةَ قَبْلَ الْعَزْمِ وَالتَّبَيُّنِ لِقَوْلِهٖ فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَاِذَا عَزَمَ الرَّسُوْلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ لِبَشَرٍ التَّقَدُّمُ عَلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ شَاوَرَ النَّبِيُّ صَلَّى

باب ۱۵۲۱: دَ الله تعالي قول' چه د هغوئ معاملات خپلو کښې مشورے سره فيصله کيږي. او هر کار کښې دے خلقو نه مشوره اخله. او د دے امر بيان' چه مشوره عزم دے' او د' اصل حال ظاهريدو نه مخکښې دے' ځکه چه الله تعالي اوفرمائيل' کوم وخت چه ته عزم (يعني پخه اراده) اوکړے' نو په الله بهروسه کوه. هر کله چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم عزم اوکړي' نو هيڅ بشر تـه داحق نشته' چه د' الله او' رسول خلاف اوکړي' او نبي صلّي الله عليه وسلّم د جنګ په ورځ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابَهُ يَوْمَ
اُحُدٍ فِي الْمُقَامِ وَالْخُرُوْجِ
فَرَاَوْا لَهُ الْخُرُوْجَ فَلَمَّا لَبِسَ
لَاْمَتَهُ وَعَزَمَ قَالُوْا اَقِمْ فَلَمْ
يَمِلْ اِلَيْهِمْ بَعْدَ الْعَزْمِ وَقَالَ
لَا يَنْبَغِيْ لِنَبِيٍّ يَلْبَسُ لَاْمَتَهُ
فَيَضَعُهَا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ وَ
شَاوَرَ عَلِيًّا وَّ اُسَامَةَ فِيْمَا رَمٰى
اَهْلُ الْاِفْكِ عَائِشَةَ وَسَمِعَ مِنْهُمَا
حَتّٰى نَزَلَ الْقُرْاٰنُ فَجَلَدَ الرَّامِيْنَ
وَلَمْ يَلْتَفِتْ اِلٰى تَنَازُعِهِمْ
وَلٰكِنْ حَكَمَ بِمَا اَمَرَهُ اللّٰهُ وَ
كَانَتِ الْاَئِمَّةُ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
يَسْتَشِيْرُوْنَ الْاُمَنَاءَ مِنْ اَهْلِ
الْعِلْمِ فِي الْاُمُوْرِ الْمُبَاحَةِ
لِيَاْخُذُوْا بِاَسْهَلِهَا فَاِذَا وَضَحَ
الْكِتَابُ اَوِ السُّنَّةُ لَمْ يَتَعَدَّوْهُ
اِلٰى غَيْرِهِ اقْتِدَاءً بِالنَّبِيِّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَاٰى
اَبُوْ بَكْرٍ قِتَالَ مَنْ مَنَعَ
الزَّكَاةَ فَقَالَ عُمَرُ كَيْفَ
تُقَاتِلُ وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ
حَتّٰى يَقُوْلُوْا لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

خپلو صحابهٔ و سره مدينه کښې ايسار شو، او د جنګ
کولو او جنګ د پاره د، وتلو متعلق ئې مشوره اوکړله
خلقو جنګ د پاره وتل مناسب اوګڼړل، کوم وخت چه
حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپله زغره واغستله، او
اراده ئې اوکړله، نو خلقو اووې، مدينه کښې پاتې کېدل
مناسب دي. ليکن حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د عزم
کولو نه پس هغوئ طرف ته توجّه اونه کړله او
فرمائيل، هيڅ يو نبي د پاره مناسب نه دي، چه زغره
واغندي او بيائې کوزه کړي څو پورې چه اللّٰه تعالیٰ
حکم ورنه کړي. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم،
حضرت علي کرم اللّٰه وجهه او حضرت اسامه رضي اللّٰه
عنه سره د بي بي عائشې د تهمت لږولو په سلسله کښې
مشوره اوکړله حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د هغوئ
خبرې واورېدې، تر دې چه قرآن (يعني متعلقه آيتونه)
نازل شو، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم تهمت لږونکو
ته کوړې او لږولې، او د هغوئ اختلاف طرف ته متوجه
نه شو، بلکه هغه فيصله ئې اوکړله، چه د هغې اللّٰه،
حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته حکم ورکړلو. او نبي
صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه پس به ائمه (خلفاؤ) د، ايماندارو
اهل علمو نه مباح اُمورو کښې مشوره اخستله، د پاره د
دې چه هغې کښې کوم آسان وي، هغه اختيار کړي.
اوکه کتاب يا سنت به هغه واضح کولو نو د نبي صلّي
اللّٰه عليه وسلّم اقتدا به ئې کوله، نورو خلقو ته به نه
متوجه کېدل، او حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه هغې
خلقو سره د، جهاد اراده اوکړه، چه هغوئ زکوٰة ورکول
بند کړي وو. نو حضرت عمر اووې، تاسو څنګه جهاد

فَإِذَا قَالُوْا لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ عَصَمُوْا مِنِّيْ دِمَاءَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ إِلَّا بِحَقِّهَا فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ وَ اللّٰهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ مَا جَمَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَابَعَهُ بَعْدُ عُمَرُ فَلَمْ يَلْتَفِتْ اَبُوْ بَكْرٍ اِلٰى مَشُوْرَةٍ اِذَا كَانَ عِنْدَهُ حُكْمُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا بَيْنَ الصَّلٰوةِ وَالزَّكَاةِ وَاَرَادُوْا تَبْدِيْلَ الدِّيْنِ وَاَحْكَامِهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ بَدَّلَ دِيْنَهُ فَاقْتُلُوْهُ وَ كَانَ الْقُرَّاءُ اَصْحَابَ مَشُوْرَةِ عُمَرَ كُهُوْلًا كَانُوْا اَوْ شُبَّانًا وَّ كَانَ وَقَّافًا عِنْدَ كِتَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

کوي، هر کله چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي، ماته حکم راکړے شوے دے، چه زه خلقو سره جهاد او کړم، تر دے چه هغوئ: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووائي. هر کله چه هغوي: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه: اووائي، نو هغے خلقو خمونږ نه خپل خون (وینه) او مال محفوظ کړلو، سِوا دَ حق اسلام نه، نو حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه اووے په خدائے م دے قسم وي، زه به هغے چاسره جهاد کوم، چا چه د هغے څیز مینځ کښې تفریق او کړ، چه هغه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم جمع کړے دے. سا حضرت عمر رضي اللّٰه عنه هم د هغه هم خیال شولو، حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه مشورے طرف ته متوجه نه شو، ځکه چه هغه سره د هغے خلقو متعلق، چه هغوي مونځ او زکٰوة کښې فرق او کړ، او دین او د هغے احکام ئے بدلول اوغوښتل، د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم حکم موجود وو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، چا چه خپل دین بدل کړ، نو هغه قتل کړئے، او قراء (قاریان) خواه هغه بوډاګان وو، یا ځلمي، دَ حضرت عمر رضي اللّٰه عنه، مشیران وو، او د، اللّٰه بزرګ و برتر د کتاب د حکم په مخکښې هغهٔ سمدستي حصاریدونکے وو.

١٠٣١ : حَدَّثَنَا الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ وَّ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ عَائِشَةَ حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ قَالَتْ

١٠٣١ : اویسي، ابراهیم، صالح ابن شهاب، عروه بن مسیب او علقمه بن وقاص او عبید اللّٰه، بي بي عائشے نه روایت کوي رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم، علي بن ابي طالب او اسامه بن زید رضي اللّٰه عنه راوغوښتل، څه وخت چه وحي راتلو کښې تاخیر اوشو، چه د هغے دوارو نه تپوس او کړي، حضور صلّي اللّٰه علیه

وَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ وَ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ حِيْنَ اسْتَلْبَثَ الْوَحْيُ يَسْأَلُهُمَا وَ هُوَ يَسْتَشِيْرُ هُمَا فِيْ فِرَاقِ اَهْلِهٖ فَاَمَّا اُسَامَةُ فَاَشَارَ بِالَّذِيْ يَعْلَمُ مِنْ بَرَآءَةِ اَهْلِهٖ وَ اَمَّا عَلِيٌّ فَقَالَ لَمْ يُضَيِّقِ اللّٰهُ عَلَيْكَ وَالنِّسَاءُ سِوَاهَا كَثِيْرٌ وَسَلِ الْجَارِيَةَ تَصْدُقْكَ فَقَالَ هَلْ رَأَيْتِ مِنْ شَيْءٍ يُرِيْبُكِ قَالَتْ مَا رَاَيْتُ اَمْرًا اَكْثَرَ مِنْ اَنَّهَا جَارِيَةٌ حَدِيْثَةُ السِّنِّ تَنَامُ عَنْ عَجِيْنِ اَهْلِهَا فَتَأْتِيَ الدَّاجِنُ فَتَأْكُلُهُ فَقَامَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ مَنْ يَّعْذِرُنِيْ مِنْ رَّجُلٍ بَلَغَنِيْ اَذَاهُ فِيْ اَهْلِيْ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلٰى اَهْلِيْ اِلَّا خَيْرًا فَذَكَرَ بَرَآءَةَ عَائِشَةَ وَ قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ.

وسلّم د دې دواړو نه د خپلې بي بي د جدا کولو متعلق مشوره اخستله، حضرت اسامةؓ خو په هغې بناء، چه هغه ته معلومه وه، د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د بي بي د پاکدامني مشوره ورکړله. ليکن حضرت علي رضي اللّٰه عنه اووے. اللّٰه تعالٰي په تاسوٙ تنګي نه ده راوستے د دې نه علاوه ډيرې ښځې شته خو تاسو د، (خپلې) وينزې نه تپوس اوکړئے. هغه به تاسو ته ريښتيا ريښتيا اووائي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د هغې نه تپوس اوکه، آيا تا هغې کښ څه داسې خبره ليدلې ده، چه تا، شک شبهه کښ واچوي. هغې (وينزې) ورته اووے، ما ددې نه زيات څه په کښ نه دي ليدلې، چه هغه کم عمره (جينئ) ده. د خپل کور اوړه واغيږي، اُوده شي. چيلئې راشي، هغه اوخوري. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په منبر اُودريدلو، او، وې فرمائيل. اے مسلمانانو، څوک داسې شته، چه هغې سړي ته سزا ورکولو سره څما مدد اوکړي، چه هغه ماته څما د بي بي متعلق تکليف راکه. په خدائې چه زه د خپلې بي بي متعلق سِوا، د نيکئ نه بل څه نه وينم بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د بي بي عائشےؓ د پاکدامني بيان اوکه. او ابو اسامه د هشام نه نقل که.

۲ ۰ ۳ ۲ ا : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ زَكَرِيَّاءَ الْغَسَّانِيُّ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ النَّاسَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ وَ قَالَ مَا تُشِيْرُوْنَ عَلَيَّ فِيْ قَوْمٍ يَّسُبُّوْنَ اَهْلِيْ مَا

۲ ۰ ۳ ۲ ا : محمد بن حرب، يحيٰي بن ابي زکريا غساني، هشام، عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خلقو ته خطبه واوروله، نو د، اللّٰه تعالٰي حمد و ثنا، ئے بيان کړه. اووے فرمائيل، تاسو ماته د هغې خلقو متعلق څه مشوره راکوئے، چه څما کوروالا پسې بدردٙ وائي، حالانکه ما هغې کښ هيڅ خرابي نه ده

عَلِمْتُ عَلَيْهِمْ مِنْ سُوْءٍ قَطُّ وَ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ لَمَّآ اُخْبِرَتْ عَائِشَةُ بِالْاَمْرِ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتَأْذَنُ لِيْ اَنْ اَنْطَلِقَ اِلٰى اَهْلِيْ فَاَذِنَ لَهَا وَ اَرْسَلَ مَعَهَا الْغُلَامَ وَ قَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ سُبْحَانَكَ مَا يَكُوْنُ لَنَا اَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا سُبْحَانَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عِظِيْمٌ.

ليدلے' او عروه نه روايت دے. ذ هغه بيان دے. كوم وخت بي بي عائشهؓ د دے تهمت نه خبر شوه' نو هغے عرض او كه' يا رسول الله' تاسو ماته اجازت را كړئے' چه خپل كور والو (يعني مور پلار) له لاړه شم. حضورؐ اجازت ور كړلو. او هغے سره ئے يو غلام اوليږلو انصارو كښې يو سړي اووے: سُبْحٰنك ما يكونُ لنا ان نتكلّم بهٰذا سُبْحَانَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ.

# كِتَابُ التَّوْحِيْدِ وَالرَّدِّ عَلَى الْجَهْمِيَّةِ وَغَيْرِهِمْ

# د' توحيد' او د جهميه وغيره د' ردّ بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ○

شروع كوم په نامه ذ خدائے چه بخښونكے او مهربان دے

**باب ۵۲۲: مَا جَآءَ فِيْ دُعَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمَّتَهُ اِلٰى توحِيْدِ اللّٰهِ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى.**

**باب ۵۲۲: د' نبي صلّي الله عليه وسلّم خپل اُمت د' اللّٰه تبارک و تعالٰي' توحيد طرف ته د' بدل بيان.**

**۱۰۳۳**: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ اِسْحٰقَ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ اَبِيْ مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا اِلَى الْيَمَنِ وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اُمَيَّةَ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ صَيْفِيٍّ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا مَعْبَدٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍؓ يَقُوْلُ لَمَّا

**۱۰۳۳**: ابو عاصم' زكريا بن اسحاق' يحيٰي بن عبد اللّٰه بن صيفي' ابو معبد' حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه روايت كوي. ذ هغه بيان دے' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم معاذ رضي اللّٰه عنه يمن طرف ته اوليږلو (دويم سند) عبد اللّٰه بن ابي اسود' فضل بن علاء اسماعيل بن اميه' يحيٰي بن عبد اللّٰه بن محمد بن صيفي' ابو معبد (د' ابن عباس رضي اللّٰه عنه آزاد كړه غلام) حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. ذ هغه نه ئے واوريدل' نبي صَلّي اللّٰه عليه وسلّم چه معاذ رضي اللّٰه عنه يمن طرف ته اوليږلو' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم

بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَاذًا نَحْوَ الْيَمَنِ قَالَ لَهُ اِنَّكَ تَقْدَمُ عَلٰى قَوْمٍ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ فَلْيَكُنْ اَوَّلَ مَا تَدْعُوْهُمْ اِلٰى اَنْ يُّوَحِّدُوْا اللّٰهَ تَعَالٰى فَاِذَا عَرَفُوْا ذٰلِكَ فَاَخْبِرْهُمْ اَنَّ اللّٰهَ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِيْ يَوْمِهِمْ وَلَيْلَتِهِمْ فَاِذَا صَلُّوْا فَاَخْبِرْهُمْ اَنَّ اللّٰهَ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ زَكَاةً فِيْ اَمْوَالِهِمْ تُؤْخَذُ مِنْ غَنِيِّهِمْ فَتَرَدُّ عَلٰى فَقِيْرِهِمْ فَاِذَا اَقَرُّوْا بِذٰلِكَ فَخُذْ مِنْهُمْ وَ تَوَقَّ كَرَآئِمَ اَمْوَالِ النَّاسِ.

ورته اوفرمائيل، ته يو داسې قوم له ورځې، چه اهل كتاب دي په دې وجه د ټولو نه وړمبنې څيز چه هغې ته، ته بلنه وركوې، دادې، چه هغه خلق خدائې يو اوګنړي. چه هغوئ دا خبره اومني، نو هغوئ ته اوښايه چه اللّٰه په هغوي ورځ او شپه كښې پنځه مونځونه (په وخت) فرض كړې دي هر كله چه هغوئ مونځ كوي، نو هغوئ ته اوښايه، چه اللّٰه تعالٰي په هغوئ دَ هغوئ مالونو كښې زكٰوة فرض كړې دې، چه د هغوي د مالدارو نه به اخستلې شي، او د هغوئ فقراؤ ته به وركولې شي. هر كله چه هغه خلق د دې اقرار اوكړي، نو د هغوئ نه زكٰوة آخله، او دَ خلقو د ښه مال نه پرهيز كوه.

۱۰۳۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ حَصِيْنٍ وَّ الْاَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ سَمِعَا الْاَسْوَدَ بْنِ هِلَالٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مُعَاذُ اَتَدْرِى مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلَى الْعِبَادِ قَالَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ اَنْ يَّعْبُدُوْهُ وَ لَا يُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا اَتَدْرِيْ مَا حَقُّهُمْ عَلَيْهِ قَالَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ اَنْ لَّا يُعَذِّبَهُمْ.

۱۰۳۴: محمد بن بشار، غندر، شعبه، ابو حصين او، اشعث بن سليم، اسود بن هلال حضرت معاذ جبل نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلَم اوفرمائيل. اې معاذ، آيا تاته معلومه ده، چه د، اللّٰه په بنده څه حق دې. معاذ رضي اللّٰه عنه اووې، اللّٰه او د هغه رسول ښه پوهيږي حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم اوفرمائيل، هغه دا چه د، اللّٰه عبادت اوكړي، او هغه سره څوک شريک نه كړي. بيائې اوفرمائيل تاته معلومه ده، چه د بنديانو په اللّٰه تعالي څه حق دې. هغه اووې اللّٰه او، د هغه رسول زيات پوهيږي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم ورته اوفرمائيل، هغه دا چه، اللّٰه پاک هغوئ لره، عذاب ورنه كړي.

۱۰۳۵: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ

۱۰۳۵: اسماعيل، مالک، عبد الرحمن بن عبد اللّٰه بن عبد الرّحمن بن صعصعه، د خپل پلار نه، هغه د،

بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ يُرَدِّدُهَا فَلَمَّا اَصْبَحَ جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ لَهُ ذٰلِكَ وَ كَانَ الرَّجُلَ يَتَقَالُّهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّهَا لَتَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْاٰنِ زَادَ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَخْبَرَنِيْ اَخِيْ قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت کوي. يو سړي د يو کس نه بار بار: قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَد: لوستل واوريدل. څه وخت چه صبا شو، نو هغه سړے د حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شو. او حضور صلّي الله عليه وسلّم ته ئے د هغے داسے تذکره اوکړه گويا هغه دا، ډير کم گنړلو. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، په هغه ذات م دے قسم وي، د چا لاس کښ چه څما ساه ده بيشکه دا، د تهائي (۱/۳) قران برابر دے. اسمٰعيل بن جعفر په واسطه د، مالک، عبد الرحمٰن، د، عبد الرّحمٰن د پلار، ابو سعيد رضي الله عنه دے زيات الفاظو سره روايت اوکه، چه ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه اووے، ماته څما ورور قتاده بن نعمان د نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت اوکه.

۷۰۳۶ ا : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنِ ابْنِ اَبِيْ هِلَالٍ اَنَّ اَبَا الرِّجَالِ مُحَمَّدُ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ كَانَتْ فِيْ حَجْرِ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا عَلٰى سَرِيَّةٍ وَّ كَانَ يَقْرَءُ لِاَصْحَابِهٖ فِيْ صَلَاتِهٖ فَيَخْتِمُ بِقُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ فَلَمَّا رَجَعُوْا ذَكَرُوْا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَلُوْهُ لِاَيِّ شَيْءٍ

۷۰۳۶ ا : محمد، احمد بن صالح، ابن وهب، عمرو، ابن ابي هلال، ابو الرجال محمد بن عبد الرحمٰن، عمره بنت عبد الرحمٰن (چه د بي بي عائشے تبر د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم پرورش کښ وه) د بي بي عائشے رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي د هغے بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو سړے د، يو لښکر سردار (امير) مقرر کړلو کله چه به هغه خپل ملگرو له مونځ ورکولو، نو په قل هو الله احد: به ئے ختمولو. کوم وخت چه خلق واپس شو، نو دا خبره ئے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته بيان کړه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ده نه تپوس اوکړئے، چه داسے ولے کوي. خلقو د هغه نه تپوس اوکه. نو

يَصْنَعُ ذٰلِكَ فَسَاَلُوْهُ فَقَالَ لِاَنَّهَا صِفَةُ الرَّحْمٰنِ وَ اَنَا اُحِبُّ اَنْ اَقْرَاَبِهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبِرُوْهُ اَنَّ اللّٰهَ يُحِبُّهٗ.

هغه اووې، چه دا د رحمٰن (خدائے تعالٰي) صفت دے . او ځما دا خوښه ده، چه زه دا لولم. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ده له خبر ورکړئ، چه اللّٰه تعالٰي ده سره محبت کوي.

**باب ۵۲۳ : قَوْلِ اللّٰهِ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ اَيًّامَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى.**

**باب ۵۲۳ :** د اللّٰه تعالٰي قول، اے پيغمبره، ته ورته اووايه، د اللّٰه نوم سره يا، د رحمٰن نوم سره کوم سره ئے چه ياد کړئے، د هغه ښکلي ښکلي نومونه دي.

**۷۰۳۷ ا :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعٰوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ وَ اَبِيْ ظَبْيَانَ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْحَمُ اللّٰهُ مَنْ لَّا يَرْحَمُ النَّاسَ.

**۷۰۳۷ ا :** محمد، ابو معاويه، اعمش، زيد بن وهب او، ابي ظبيان، حضرت اجرير بن عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي په هغه سړي رحم نه کوي، چه هغه په خلقو رحم نه کوي.

**۷۰۳۸ ا :** حَدَّثَنَا اَبُوْ النُّعْمَانِ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَاصِمٍ الْاَحْوَلِ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ جَآءَهٗ رَسُوْلُ اِحْدٰى بَنَاتِهٖ يَدْعُوْهُ اِلٰى ابْنِهَا فِي الْمَوْتِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْجِعْ فَاَخْبِرْهَا اَنَّ لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَلَهٗ مَا

**۷۰۳۸ ا :** مُحمد، ابو معاويه، حماد بن زيد، عاصم احول، ابو عثمان نهدي، حضرت اسامه بن زيد رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے، مونږ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو. دے کښې دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د بوتلو د پاره راغے، چه د هغې ځوئے مرګ ته نزدے دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، لاړشه، هغې ته اووايه، د اللّٰه څيز دے، هغه واخستلو، او د هغه دي، څه چه هغه ورکړي، او د اللّٰه په نزد، د هر څيز موده مقرره ده، په دے وجه هغې ته اووايه، چه صبر کوئ، او دا د ثواب کار اوګنړي. دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم لور بي بي، بيا اَستازے راوليږلو، لاړشه ورته اووايه چه هغه قسم درکولو سره وائي، چه

اُعۡطٰى وَ كُلُّ شَيۡءٍ عِنۡدَهٗ بِاَجَلٍ مُّسَمًّى فَمُرۡهَا فَلۡتَصۡبِرۡ وَالۡتَحۡتَسِبۡ فَاَعَادَتِ الرَّسُوۡلَ اَنَّهَا اَقۡسَمَتۡ لَتَاۡتِيَنَّهَا فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وَ قَامَ مَعَهٗ سَعۡدُ بۡنُ عُبَادَةَ وَ مُعَاذُ بۡنُ جَبَلٍ فَدُفِعَ الصَّبِيُّ اِلَيۡهِ وَنَفۡسُهٗ تَقَعۡقَعُ كَاَنَّهَا فِيۡ شَنٍّ فَفَاضَتۡ عَيۡنَاهُ فَقَالَ لَهٗ سَعۡدٌ يَا رَسُوۡلَ اللّٰهِ مَا هٰذَا قَالَ هٰذِهٖ رَحۡمَةٌ جَعَلَهَا اللّٰهُ فِيۡ قُلُوۡبِ عِبَادِهٖ وَ اِنَّمَا يَرۡحَمُ اللّٰهُ مِنۡ عِبَادِهِ الرُّحَمَآءَ.

تاسوٌ تشريف راوړے. نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اودريدلو او حضور صلّي الله عليه وسلّم سره سعد بن عباده او، معاذ بن جبل رضي الله عنه هم اُودريدل (هلته اورسيدل) نو هغه ماشوم بچے دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم غيږه کښ کيښودلے شو. هغه وخت د هغه ساه په ختو، وه، څنګه چه د زوړ مشک حال وي، دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم سترګو مبارکو کښ اوښکے راغلے (بهيدلے ترے) سعد رضي الله عنه عرض اوکه يا رسول الله، دا څه دي. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. دا مهرباني ده چه الله ئے دَ خپل بنديانو زړه کښ غرخوي، او الله صرف هغے بنديانو باندے مهرباني کوي، چه هغوي نورو خلقو باندے مهرباني کوي.

**باب ۵۲۴: قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الۡقُوَّةِ الۡمَتِيۡنُ.**

**باب ۵۲۴: د' اللّٰه تعالیٰ قول، چه هم زه روزي رسان او د لوئے قوت خاوند يم.**

**۱۰۳۹:** حَدَّثَنَا عَبۡدَانُ عَنۡ اَبِيۡ حَمۡزَةَ عَنِ الۡاَعۡمَشِ عَنۡ سَعِيۡدِ بۡنِ جُبَيۡرٍ عَنۡ اَبِيۡ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنۡ اَبِيۡ مُوۡسَى الۡاَشۡعَرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَا اَحَدٌ اَصۡبَرُ عَلٰى اَذًى سَمِعَهٗ مِنَ اللّٰهِ يَدَّعُوۡنَ لَهُ الۡوَلَدَ ثُمَّ يُعَافِيۡهِمۡ وَ يَرۡزُقُهُمۡ.

**۱۰۳۹:** عبدان، ابو حمزه، اعمش، سعيد بن جبير، عبد الرحمٰن سلمٰي، حضرت ابو موسٰي اشعري نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هيڅوک تکليف ده خبره آوريدو سره د' الله نه زيات صبر کونکے نه د' چه خلق هغه د پاره د' اولاد دعويٰ کوي، بيا هغه، هغوئ له عافيت ورکوي او رزق ورته عطاء کوي.

**باب ۵۲۵: قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالٰى عَالِمِ الۡغَيۡبِ فَلَا يُظۡهِرُ عَلٰى غَيۡبِهٖٓ اَحَدًا وَّ اِنَّ اللّٰهَ عِنۡدَهٗ عِلۡمُ السَّاعَةِ وَ اَنۡزَلَهٗ بِعِلۡمِهٖ وَ مَا تَحۡمِلُ مِنۡ اُنۡثٰى وَ لَا**

**باب ۵۲۵: دَ الله تعالیٰ قول، چه هغه غيب دان دے، خپل غيب باندے هيڅوک نه خبروي او، آيت: چه الله سره د قيامت علم دے هغه ئے خپل علم سره نازل که، او څه چه ښځه اوچتوي، او هغه بچے د هغهٔ علم سره**

تَضَعُ اِلَّا بِعِلْمِهٖ اِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ قَالَ يَحْيَى الظَّاهِرُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا وَّالْبَاطِنُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا.

پيدا كيږي. هغه پله د قيامت علم گرځي. يحيي اووے. ذ علم د، اعتبار نه په هر څيز ظاهر دے، او هر څيز باندے د علم د، اعتبار نه باطن دے.

۱۰۴۰ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَفَاتِيْحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا اللّٰهُ لَا يَعْلَمُ مَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا يَعْلَمُ مَا فِيْ غَدٍ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا يَعْلَمُ مَتٰى يَأْتِي الْمَطَرُ اَحَدٌ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا تَدْرِيْ نَفْسٌ بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا يَعْلَمُ مَتٰى تَقُوْمُ السَّاعَةُ اِلَّا اللّٰهُ.

۱۰۴۰ : خالد بن مخلد، سليمان بن بلال، عبد اللّٰه بن دينار، حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل د غيب ڤنجيانے پنځه دي، چه هغه بغير ذ خدائے نه چاته نه دي معلومے. د اللّٰه تعالٰي نه سِوا هيڅوک نه پوهيږي، چه ذ ښځے په رحم كښ څه دي، او د خدائے نه سوا هيڅوک نه پوهيږي، چه صباله څه كيدونكي دي، اونه د خدائے نه سوا څوک پوهيږي، چه باران به كله وي، او نه يے ذ خدائے نه چاته معلومه ده، چه سړے به په كومه زمكه مري، او نه د خدائے نه بغير چاته معلومه ده چه قيامت به كله وي.

۱۰۴۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكَ اَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَبَّهٗ فَقَدْ كَذَبَ وَ هُوَ يَقُوْلُ لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ وَمَنْ حَدَّثَكَ اَنَّهٗ يَعْلَمُ الْغَيْبَ فَقَدْ كَذَبَ وَ هُوَ يَقُوْلُ لَا يَعْلَمُ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ.

۱۰۴۱ : محمد بن يوسف، سفيان، اسماعيل، شعبي، مسروق، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي هغے اووے، تـه كه څوک سړے بيان اوكړي چه محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم خپل رب ليدلے دے نو هغه دروغجن دے. اللّٰه پاک فرمائي، چه ستر گے هغه نشي ليدلے. كوم سړے چه تا تـه وائي، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ غيب په خبرو پوهيدلو، نو هغه دروغجن دے. اللّٰه تعالٰي فرمائي، چه د غيب علم بغير د، اللّٰه تعالٰي نه هيڅوک نه پيژني.

باب ۵۲٦: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ.

باب ۵۲٦: ذ اللّٰه تعالٰي قول، چه سلام مؤمن دے.

۱۰۴۲ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ

۱۰۴۲ : احمد بن يونس، زهير، مغير، شقيق

يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُغِيْرَةُ حَدَّثَنَا شَقِيْقُ بْنُ سَلَمَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كُنَّا نُصَلِّيْ خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَى اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّلَامُ وَلٰكِنْ قُوْلُوْا اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

بن سلمه، حضرت عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے مونږ به حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم پسے مونځ كولو، نو وئيل به مو، چه په اللّٰه دے سلام وي نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي خو خپله سلام دے، بلكه داسے وائے، چه، التّحيات لِلّٰهِ وَالصَّلٰوتُ وَالطَّيِّبات، السلام عليكَ ايّها النّبيّ و رحمة اللّٰه و بركاته، السلام علينا و على عباد اللّٰه الصّلحين، اشهد ان لا اِلٰه الا اللّٰه و اشهد ان محمدًا عبدهٗ وَ رسوله.

## بَابٌ ۵۲۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مَلِكِ النَّاسِ فِيْهِ بْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۵۲۷: دَ اللّٰه تعالٰي خپل ځان نه ملك النّاس (دَ خلقو بادشاه) وئيل. دے كښې دَ حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه روايت د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه منقول دے.

۱۰۴۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا اِبْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقْبِضُ اللّٰهُ الْاَرْضَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ يَطْوِى السَّمَآءَ بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ اَيْنَ مُلُوْكُ الْاَرْضِ وَ قَالَ شُعَيْبٌ وَالزُّبَيْدِيُّ وَابْنُ مُسَافِرٍ وَّ اِسْحٰقُ بْنُ يَحْيٰى عَنِ الزُّهْرِى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ.

۱۰۴۳: احمدبن صالح، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، سعيد، حضرت ابو هريره رَضي اللّٰه عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي به زمكه خپل موټي كښې واخلي، او اسمان به خپل لاس كښې راونغاړي بيا به فرمائي، چه زه بادشاه يم. د، زمكے بادشاهان چرته دي، او شعيب، زبيدي او ابن مسافر او اسحاق بن يحيٰي په واسطه د، زهري ابو سلمه نه روايت كه.

**باب ۴۵۲۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ لِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَمَنْ حَلَفَ بِعِزَّةِ اللّٰهِ وَ صِفَاتِهٖ وَ قَالَ اَنَسٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُوْلُ جَهَنَّمُ قَطْ قَطْ وَ عِزَّتِكَ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْقٰى رَجُلٌ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ اٰخِرُ اَهْلِ النَّارِ دُخُوْلًا الْجَنَّةَ فَيَقُوْلُ رَبِّ اصْرِفْ وَجْهِي عَنِ النَّارِ لَا وَ عِزَّتِكَ لَآ اَسْئَلُكَ غَيْرَهَا قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لَكَ ذٰلِكَ وَ عَشْرَةُ اَمْثَالِهٖ وَ قَالَ اَيُّوْبُ وَ عِزَّتِكَ لَاغِنٰى بِيْ عَنْ بَرْكَتِكَ.**

**باب ۴۵۲۸: د اللّٰه تعالي قول، چه هغه زبردست** حکمت واله دے، ستاسو رب پاک دے. دَ عزت مالک دے، اللّٰه او د هغه رسول د پاره عزت دے. او د هغې سرې بيان، چه د اللّٰه د، عزت او د هغه د، صفاتو قسم او خوري د، انس رضي اللّٰه عنه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، جهنم به وائي، ستا په عزت مِ دے قسم وي، بس بس او ابو هريره رضي اللّٰه عنه دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوکه، چه د جنت او دوزخ مينځ کښې به يو سړے باقي پاتے شي، چه جنت کښې داخليدونکے دوزخيانو کښې به دَ ټولو نه آخري وي. هغه به وائي. اے خما ربه خما مخ د، دوزخ د طرف نه واړوے ستا په عزت مِ دے قسم وي، زه به دے نه سِوا هيڅ نه غواړم. او سعيد اووے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّٰه عز و جلّ به فرمائي، ستا د پاره دا، او د دے په شان لس (۱۰) نور. او حضرت ايوب عليه السّلام دُعا اوکړه، ستا په عزت مِ دے قسم وي. زه ستا د برکت نه بے نيازه کيدے نشم.

**۱۰۴۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ الْمُعَلِّمُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ يَحْيٰى بْنِ يَعْمَرَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ اَعُوْذُ بِعِزَّتِكَ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ الَّذِيْ لَا يَمُوْتُ وَالْجِنُّ وَالْاِنْسُ يَمُوْتُوْنَ.**

**۱۰۴۴**: ابو معمر، عبد الوارث، حسين معلم، عبد اللّٰه بن بريده، يحيٰي بن يعمر، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، نبي عليه السّلام به فرمائيل زه ستا د عزت پناه غواړم، ته هغه ئے چه ستا نه سِوا هيڅوک معبود نشته او په تا مرګ نه راځي. ليکن تمامي جن او انس به مړه شي.

**۱۰۴۵: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ**

**۱۰۴۵**: ابن ابي الاسود، حرمي، شعبه، قتاده،

اَلْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا حَرَمِيٌّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُلْقٰى فِي النَّارِ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ ابْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ وَ عَنْ مُعْتَمِرٍ سَمِعْتُ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزَالُ يُلْقٰى فِيْهَا وَ تَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ حَتّٰى يَضَعَ فِيْهَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ قَدَمَهُ فَيَنْزَوِيْ بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ ثُمَّ تَقُوْلُ قَدْ قَدْ بِعِزَّتِكَ وَ كَرَمِكَ وَلَا تَزَالُ الْجَنَّةُ تَفْضُلُ حَتّٰى يُنْشِيءَ اللّٰهُ لَهَا خَلْقًا فَيُسْكِنَهُمْ فَضْلَ الْجَنَّةِ.

حضرت انس، حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، خلق به دوزخ كښې واچولې شي (دويم سند) خليفه، يزيد بن زريع، سعيد، قتاده، حضرت انس رضي الله عنه (دويم سند) معتمر، د معتمر پلار (سليمان) قتاده، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل خلق به دوزخ كښې اچولې شي. او جهنم به وائي، چه نور څه شته تر دې چه رب العالمين به دې كښې خپله پښه كيږدي، نو د دې بعضې حصّې به بعضې سره راغونډې شي. بيا به هغه وائي. بس بس. ستا په عزت او بزرګئ م دې قسم وي، او جنت كښې به ځائې باقي پاتې شي، تر دې چه الله تعالىٰ به هغې د پاره يو بل مخلوق پيدا كړي، او هغوئ به دَ جنت باقي ځائې كښې تيكاؤ كړي.

باب ۵۲۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ بِالْحَقِّ.

باب ۵۲۹: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، چه هغه ذات دې، چه اسمان او زمكه ئې حق سره پيدا كړل.

۱۰۴۲: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ طَاوِسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْا مِنَ اللَّيْلِ اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَنْ فِيْهِنَّ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ قَوْلُكَ الْحَقُّ وَ وَعْدُكَ الْحَقُّ

۱۰۴۲: قبيصه، سفيان، ابن جريج، سليمان، طاؤس، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د شپې دا، دُعا غوښتله، يا اللّٰه، ستا د پاره حمد دې، ته د، اسمانونو او زمكې رب ئې. ستا د پاره حمد دې، ته د، اسمانونو او زمكې او د دې مينځ كښې د څيزونو نګران ئې. ستا د پاره حمد دې. ته د، اسمانانو او زمكې رنړا، ئې. ستا قول حق دې. ستا وعده رښتني ده. تاسره پيشي حق ده. جنت

وَلِقَآءُكَ حَقٌّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ اَللّٰهُمَّ لَكَ اَسْلَمْتُ وَ بِكَ اٰمَنْتُ وَ عَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَ اِلَيْكَ اَنَبْتُ وَ بِكَ خَاصَمْتُ وَ اِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَ مَا اَخَّرْتُ وَ اَسْرَرْتُ وَ اَعْلَنْتُ اَنْتَ اِلٰهِيْ لَا اِلٰهَ لِيْ غَيْرُكَ.

حق دے. دوزخ حق دے. او قیامت حق دے، یا اللّٰه زه ستا مطیع شوم، او په تا م ایمان راوړلو. او په تا، م بهروسه اوکړه. او ستا پلے م رجوع اوکړه، ستا مدد سره ما د، دښمنانو مقابله اوکړه. ستا نه زه د، جګړے انصاف غواړم، ته خما مخکي، ورستي، ظاهر او پټ ګناهونه اوبښے. ته خما معبود، ئے. ستا نه سوا خما هیڅوک معبود نشته.

۷۰۴۷۱ : حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بِهٰذَا وَ قَالَ اَنْتَ الْحَقُّ وَ قَوْلُكَ الْحَقُّ.

۷۰۴۷۱ : مونږ ته ثابت بن محمد او هغه ته سفیان دغسے بیان اوکه. او دومره الفاظ ئے زیات کړل چه: انت الحق و قولک الحق.

باب ۵۳۰ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ كَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا وَّ قَالَ الْاَعْمَشُ عَنْ تَمِيْمٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ وَسِعَ سَمْعُهُ الْاَصْوَاتَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا.

باب ۵۳۰ : د، اللّٰه تعالٰي قول، چه اللّٰه سمیع او بصیر دے. او اعمش تمیم نه، هغه عروه نه، هغه د بي بي عائشےؓ نه روایت کوي هغے اووے، د خدائے شکر دے، چه ټول آوازونه اوري، نو اللّٰه تعالٰي په نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم دا، آیت نازل کړلو، چه اللّٰه د هغے ښځے خبره واوریده، چه تاسره دَ خپل خاوند متعلق جګړه کوي.

۷۰۴۸۱ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَكُنَّا اِذَا عَلَوْنَا كَبَّرْنَا فَقَالَ اَرْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ فَاِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَا غَآئِبًا تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا قَرِيْبًا ثُمَّ اَتٰى

۷۰۴۸۱ : سلیمان بن حرب، حماد بن زید، ایوب، ابو عثمان، ابو موسٰي نه روایت کوي. دَ هغه بیان دے. مونږ خلق نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم سره یو سفر کښ وو. مونږ چه به په بلندئ ختلو، نو تکبیر (اللّٰه اکبر) به مو، وئیلو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، په خان نرمي کوئے، تاسو څوک کوڼ او غیر حاضر نه بلئے، بلکه تاسو اوریدونکے، لیدونکے بلئے (پکارتے ہو) بیا حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ما، پله تشریف راوړلو،

عَلَيَّ وَ اَنَا اَقُوْلُ فِيْ نَفْسِيْ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ فَقَالَ لِيْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ قُلْ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ فَاِنَّهَا كَنْزٌ مِّنْ كُنُوْزِ الْجَنَّةِ اَوْ قَالَ اَلَا اَدُلُّكَ بِهٖ.

دغه وخت ما خپل زړه کښې: لا حول وَ لا قوة إلّا باللّٰه: ونيلے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائيل اے عبد اللّٰه بن قيس: ته: لا حول ولا قوة إلّا باللّٰه: وايه، ځکه چه دا، د جنت د خزانو نه يوه خزانه ده، يا، دا، ئے اوفرمائيل، آيا تاته (دَ جنت خزانه) اونه ښايم.

۱۰۴۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٰنَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو عَنْ يَزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو اَنَّ اَبَا بَكْرِ الصِّدِّيْقَ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ عَلِّمْنِيْ دُعَآءً اَدْعُوْا بِهٖ فِيْ صَلٰوتِيْ قَالَ قُلِ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَّ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ فَاغْفِرْلِيْ مِنْ عِنْدِكَ مَغْفِرَةً اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ.

۱۰۴۹: يحيٰي بن سليمان، ابن وهب، عمرو، يزيد، ابو الخير، عبد اللّٰه بن عمرو رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے حضرت اَبُو بكر صَدِيق رضي اللّٰه عنه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض او كه، يا رسول اللّٰه، ماته څه دعاء اوښايے، چه زه ئے مونځ کښې كوم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دا، وايه اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ: الخ يعني اے اللّٰه، ما په خان ډير ظلم او كه، او ستا نه سوا هيڅوك ګناه نه ښښي، نو ته ماته دَ خپل طرف نه مغفرت عطاء كړے، بيشكه ته ښښونكے مهربانه ئے.

۱۰۵۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَآئِشَةَ حَدَّثَتْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَادَانِيْ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ وَ مَا رَدُّوْا عَلَيْكَ.

۱۰۵۰: عبد اللّٰه بن يوسف، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، عروه، عائشے رضي اللّٰه عنها نه روايت كوي. د هغے بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، جبرائيل عليه السّلام ماته په اوچت آواز اووے، چه اللّٰه تعالٰي ستا د قوم خبره واوريده، او څه چه هغوي تاته جواب وركه، هغه ئے هُم واوريدلو.

## باب ۱۵۳۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى قُلْ هُوَ الْقَادِرُ.

## باب ۱۵۳۱: د اللّٰه تعالٰي قول، اووايه، چه هغه قدرت واله دے.

۱۰۵۱: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيْسٰى

۱۰۵۱: ابراهيم بن منذر، معن بن عيسي، عبد الرّحمٰن بن ابي الموالي، محمد بن منكدر، عبد

حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ الْمَوَالِيْ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ الْمُنْكَدِرِ يُحَدِّثُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الْحَسَنِ يَقُوْلُ اَخْبَرَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ السُّلَمِيُّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُ اَصْحَابَهُ الْاِسْتِخَارَةَ فِي الْاُمُوْرِ كُلِّهَا كَمَا يُعَلِّمُ السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْاٰنِ يَقُوْلُ اِذَا هَمَّ اَحَدُكُمْ بِالْاَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيْضَةِ ثُمَّ لِيَقُلْ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَ اَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَ اَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَ لَا اَقْدِرُ وَ تَعْلَمُ وَ لَا اَعْلَمُ وَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ اَللّٰهُمَّ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ هٰذَا الْاَمْرَ ثُمَّ يُسَمِّيْهِ بِعَيْنِهِ خَيْرًا لِّيْ فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَ اٰجِلِهٖ قَالَ اَوْفِيْ دِيْنِيْ وَ مَعَاشِيْ وَ عَاقِبَةِ اَمْرِيْ فَاقْدُرْهُ لِيْ وَ يَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيْهِ اَللّٰهُمَّ وَ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّهٗ شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَ مَعَاشِيْ وَ عَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْ قَالَ فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَ اٰجِلِهٖ فَاَصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَاقْدُرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ رَضِّنِيْ بِهٖ.

الله بن حسن، حضرت جابر بن عبد الله سلمي نه روايت كوي د هغه بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم به خپلو صحابهٌ ؤ ته ټولو اُمورو كښ د، استخارے تعليم داسے وركولو، څنګه چه د قرآن سورت به ئے ورته ښودلو حضور صلي الله عليه وسلم به فرمائيل، هر كله چه تاسو كښ يو سړے د څه كار اراده اوكړئ، نو دوه (٢) ركعاته مونځ دے اوكړي، چه فرض نه وي (نفل وي) بيا دے اووائي اے الله، زه ستا د علم په طفيل دے كار كښ خيريت غواړم، او ستا نه قدرت غواړم، ستا دَ قدرت په طفيل. او ستا فضل غواړم، ته قدرت لرونكے ئے. څما قدرت نشته. او ته علم لرے، څما علم نشته، ته د غيب په خبرو پوهيږے، يا الله، ته پوهيږے كه دا كار (دلته دے د خپل كار نوم واخلي) ما د پاره في الحال يا مخكښ د پاره بهتر وي، د راوي بيان دے. يا داسے ئے اوفرمائيل څما دين دنيا، او، انجام د پاره بهتر وي، نو دا څما قسمت (مقدر) كښ كړے. او دا، آسان كړے. بيا دے كښ بركت واچوے، يا الله، ته پوهيږے، كه دا كار څما دين او دُنيا او دنيا او آنجام د پاره خراب دے، يا، داسے ئے اوفرمائيل، في الحال يا مخكښ د پاره خراب دے، نو ته دا څما نه لرے كړے. او بيا چه كوم امر بهتر وي، چه كوم څائے وي، ما د پاره ئے مقدر كړے بيا په هغے ما راضي او خوشحاله لرے.

**ف:** يا الله، د دے دعاء د مخه مونږ خپلو ټولو دُنياوي او اُخروي اُمورو كښ تاته خير غواړو. اَللّٰهُمَّ آمين.

## بَاب ۲ ۵۳: مُقَلِّبُ الْقُلُوْبِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ نُقَلِّبُ اَفْئِدَتَهُمْ وَ

باب ۲ ۵۳: دَ الله تعالي د مقلب القلوب كيدو بيان، او د، الله تعالي قول، مونږ به دَ هغوي زړونه او

أَبْصَارُهُمْ.

سترګې او ګرځوو.

١٠٥٢: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ أَكْثَرُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْلِفُ لَا وَ مُقَلِّبِ الْقُلُوبِ.

١٠٥٢: سعيد بن سليمان، ابن مبارك، موسى بن عقبه، سالم، حضرت عبد الله رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. نبي صلّى الله عليه وسلّم به اكثر دا شان قسم خوړلو، قسم دے په هغه، ذات چه د، زړونو ګرځونكے دے.

باب ٥٣٣: إِنَّ لِلّٰهِ مِائَةَ اسْمٍ إِلَّا وَاحِدًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ذُو الْجَلَالِ الْعَظَمَةِ الْبَرُّ اللَّطِيفُ.

باب ٥٣٣: د دے امر بيان، چه د، الله تعالى يو كم سل (٩٩) نومونه دي. او ابن عباس رضي الله عنه اووے. ذو الجلال نه مطلب عظمت واله او: بر: نه مراد لطيف دے.

١٠٥٣: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ لِلّٰهِ تِسْعَةً وَّ تِسْعِينَ اسْمًا مِّائَةً إِلَّا وَاحِدًا مَّنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ أَحْصَيْنَاهُ حَفِظْنَاهُ.

١٠٥٣: ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول الله صلّى الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د، الله تعالى يو كم سل (٩٩) نومونه دي. څوك چه دا نومونه ياد كړي، هغه به جنت كښ داخليږي.

ف: احصيناه: معني: حفظناه: (يعني مونږ دا ياد كړے) دي.

باب ٥٣٤: اَلسُّؤَالِ بِأَسْمَاءِ اللهِ تَعَالَى وَالْاِسْتِعَاذَةِ بِهَا.

باب ٥٣٤: د، الله تعالى د نومونو په ذريعه د سوال كولو او د دے په ذريعه په پناه غوښتلو بيان.

١٠٥٤: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ

١٠٥٤: عبد العزيز بن عبد الله، مالك، سعيد بن ابي سعيد مقبري، حضرت ابو هريره رضي الله عنه، حضور صلّى الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّى الله عليه وسلّم اوفرمائيل هر كله چه تاسو كښ څوك خپلے بسترے له ورشي نو هغه

فِرَاشَهُ فَلْيَنْفُضْهُ بِصَنِفَةِ ثَوْبِهِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَلْيَقُلْ بِاسْمِكَ رَبِّ وَضَعْتُ جَنْبِيْ وَ بِكَ اَرْفَعُهُ اِنْ اَمْسَكْتَ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لَهَا وَ اِنْ اَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهٖ عِبَادَكَ الصّٰلِحِيْنَ تَابَعَهُ يَحْيٰى وَ بِشْرُ ابْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ زَادَ زُهَيْرٌ وَّ اَبُوْ ضَمْرَةَ وَ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّآءَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَوَاهُ ابْنُ عَجْلَانَ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ وَ اُسَامَةَ بْنُ حَفْصٍ.

له پکار دي، چه د خپلے کپړے په پلسکي هغه درے (۳) ځله او څنډي او داسے اووائي: بِاسْمِكَ رَب وضعت جنبي و بك ارفعه. اِنْ اَمْسَكْتَ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لَهَا وَ اِنْ اَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهٖ عِبَادَكَ الصَّالِحِيْنَ. يحيى او بشر بن مفضل د دے متابعت كښ عبيد اللّٰه نه هغه د سعيد نه، هغه د ابو هريرةؓ نه هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے. او زبير او حمزه او اسماعيل بن زكريا دا، دے زياتو الفاظ سره روايت كړے دے، چه عبيد اللّٰه د سعيد نه، هغه د خپل پلار نه، هغه د ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه، هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي او ابن عجلان، دا، د سعيد نه، هغه د، ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه، هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. او محمد بن عبد الرحمٰن، او، دراوردي او، اسامه بن حفص د دے متابعت كښ روايت كړے دے.

۱۰۵۵ : حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ رِّبْعِيِّ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَوٰى اِلٰى فِرَاشِهٖ قَالَ اَللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ اَحْيَا وَ اَمُوْتُ وَ اِذَآ اَصْبَحَ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَ اِلَيْهِ النُّشُوْرِ.

۱۰۵۵ : مسلم، شعبه، عبد المالک ربعي، حضرت حذيفه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه به بسترے ته تشريف اوړلو، نو فرمائيل به ئے: اللّٰهم باسمک احيا و اموت او هر كله چه به سحر شو، نو فرمائيل به ئے: الحمد للّٰه الذي احيانا بعد ما اماتنا و اليه النشور.

۱۰۵۶ : حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ رِّبْعِيِّ ابْنِ حِرَاشٍ عَنْ خَرَشَةَ بْنِ

۱۰۵۶ : سعد بن حفص شيبٰن، منصور، ربعي بن خراش، خرشه بن حُر حضرت ابو ذرؓ نه روايت كوي. د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه

الْحُرِّ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَاۤ اَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ بِاسْمِكَ نَمُوْتُ وَ نَحْيَا وَ اِذَا اسْتَيْقَظَ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَ مَاۤ اَمَاتَنَا وَ اِلَيْهِ النُّشُوْرُ.

وسلّم به د شپې چه د خوب خانې ته تشریف اوړلو، نو فرمائیل به ئې: باسمک نموت و نحیا (ستا په نوم مرو او ژوندي کیږو او چه بیدار به شولو، نو فرمائیل به ئې: الحمد اللّٰه الّذي احیانا بعد ما اماتنا و الیه النشور.

۱۰۵۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ اَنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَّاْتِيَ اَهْلَهُ فَقَالَ بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطٰنَ وَ جَنِّبِ الشَّيْطٰنَ مَا رَزَقْتَنَا فَاِنَّهُ اِنْ يُّقَدَّرْ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِيْ ذٰلِكَ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطٰنٌ اَبَدًا.

۱۰۵۷: قتیبه بن سعید، جریر، منصور، سالم، کریب، حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. ده هغه بیان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. که تاسو کښې څوک خپلې بي بي سره د صحبت کولو اراده اوکړي، نو او دے وائي: اللّٰهم جنبنا الشیطان و جنب الشیطان ما رزقتنا: که هغې صحبت نه څه اولاد، د هغې دواړو تقدیر کښې وي، نو شیطان ورته هیڅ کله ضرر نشي رسولے.

ف: یا اللّٰه، دا دُعا خمونږ او خمونږ د آل و آولاد په حق کښې هم قبوله کړې. اللّٰهم آمین

۱۰۵۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ حَدَّثَنَا فُضَيْلٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ اُرْسِلُ كِلَابِيَ الْمُعَلَّمَةَ قَالَ اِذَا اَرْسَلْتَ كِلَابَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَ ذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ فَاَمْسَكْنَ فَكُلْ وَ اِذَا رَمَيْتَ بِالْمِعْرَاضِ فَخَرَقَ فَكُلْ.

۱۰۵۸: عبد اللّٰه بن مسلمه، فضیل، منصور، ابراهیم، همّام، عدي بن حاتم رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. د هغه بیان دے. ما نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه تپوس اوکه، او عرض م اوکه، چه زه تربیت یافته (تړینلي) سپي ښکار د پاره پریګدم (د دے څه حکم دے) حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل هر کله چه ته آموخته سپې پریګدې، او تا د اللّٰه نوم اخستے وي. او هغې سپو هغه شکار اونیولو، نو خوره ئې. او هر کله چه ته معراض (تیر چه په هغې پر، نه وي) اُولې، او هغه د هغې جسم اوشلوي، نو هغه خوره.

۱۰۵۹ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ خَالِدِ الْاَحْمَرُ قَالَ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ عُرْوَةَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ هُنَا اَقْوَامًا حَدِيْثًا عَهْدُهُمْ بِشِرْكٍ يَأْتُوْنَا بِلُحْمَانٍ لَا نَدْرِيْ يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا اَمْ لَا قَالَ اذْكُرُوْا اَنْتُمْ اسْمَ اللّٰهِ وَ كُلُوْا تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ وَ اُسَامَةُ بْنُ حَفْصٍ.

۱۰۵۹ : يوسف بن موسیٰ، ابو خالد احمد، هشام بن عروه، عروه بي بي عائشہؓ نه روايت کوي. د هغې بيان دے خلقو عرض او که، يا رسول الله، څه خلق داسې وي، چه د هغوئ زمانه شرک ته نزدې ده (يعني نوې نوې مسلمانان شوې دي) هغوي مونږ له غوښه راوړي. او مونږ ته نه وي معلومه، چه هغوي په هغې د الله نوم آخلې يا نه. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو پرې د، الله نوم آخلئې او خورئې ئې، محمد بن عبد الرحمٰن او، دراوردي او، اسامه بن حفص د دې متابعت کښ روايت کړې دې.

۱۰۶۰ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ ضَحّٰى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ يُسَمِّيْ وَ يُكَبِّرُ.

۱۰۶۰ : حفص بن عمر، هشام، قتاده، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي، نبي صلّي الله عليه وسلّم دوه (۲) ګډان قرباني کړل، چه په هغې حضور صلّي الله عليه وسلّم بسم الله الله اکبر اووې.

ف : هر سړے چه ذبح کوي، نو: بسم الله الله اکبر: دې پرې وائي.

۱۰۶۱ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَسْوَدِ ابْنِ قَيْسٍ عَنْ جُنْدُبٍ اَنَّهُ شَهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ صَلّٰى ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ اَنْ يُصَلِّيَ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا اُخْرٰى وَ مَنْ لَمْ يَذْبَحْ فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللّٰهِ.

۱۰۶۱ : حفص بن عمر، شعبه اسود بن قيس، حضرت جندب رضي الله عنه نه روايت کوي. هغه اووې، چه هغه د نحر (قرباني) په ورځ نبي صلّي الله عليه وسلّم سره موجود وو. حضور صلّي الله عليه وسلّم مونځ اوکړلو. بيائې خطبه اولوسته. اووې فرمائيل. چاچه د مانځه نه مخکښ ذبح کړې وه. هغه دې د هغې په ځائې دويم څناور ذبح اوکړي. او چا چه ذبح نه ده کړې، هغه دې د، الله نوم واخلي، ذبح دې اوکړي.

۱۰۶۲ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ

۱۰۶۲ : ابو نعيم، ورقاء، عبد الله بن دينار، حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحْلِفُوْا بِاٰبَآئِكُمْ وَمَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ.

بيان دے، نبي صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل، د خپلو پلرونو قسم مه خورئے، او څوک چه خامخا قسم خوري نو هغه دے د، الله تعالي قسم خوري.

**باب ۵۳۵ : مَا يُذْكَرُ فِي الذَّاتِ وَالنُّعُوْتِ وَ اَسَامِي اللّٰهِ وَ قَالَ خُبَيْبٌ وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ الْاِلٰـهِ فَذَكَرَ الذَّاتَ بِاِسْمِهٖ تَعَالٰى.**

**باب ۵۳۵ : د، اللّه تعالي د، ذات و صفات او اسماء متعلق چه كوم ذكر كبري ذ هغے بيان، او خُبيب وئيلے دي: وَ ذٰلِكَ فِي ذاتِ الالٰهِ: هغه ذات د، الله اسم سره يو ځائے كړے ذكر اوكه.**

۱۰۶۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ بْنِ اُسَيْدِ بْنِ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ حَلِيْفٌ لِّبَنِيْ زُهْرَةَ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةً مِّنْهُمْ خُبَيْبُ الْاَنْصَارِيُّ فَاَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عِيَاضٍ اَنَّ ابْنَةَ الْحٰرِثِ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهُمْ حِيْنَ اجْتَمَعُوْا اسْتَعَارَ مِنْهَا مُوْسٰى يَسْتَحِدُّ بِهَا فَلَمَّا خَرَجُوْا مِنَ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوْهُ قَالَ خُبَيْبُ الْاَنْصَارِيُّ.

وَ لَسْتُ اُبَالِيْ حِيْنَ اُقْتَلُ مُسْلِمًا
عَلٰى اَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلّٰهِ مَصْرَعِيْ
وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ الْاِلٰهِ وَ اِنْ يَّشَأْ
يُبَارِكْ عَلٰى اَوْ صَالِ شِلْوٍ مُّمَزَّعِيْ

فَقَتَلَهُ ابْنُ الْحَارِثِ فَاَخْبَرَ

۱۰۶۳ : ابو اليمان، شعيب، زهري، عمرو بن ابي سفيان بن اسيد بن جاريه ثقفي (چه د، بني زهره حليف وو او ذ حضرت ابو هريره رضي اللّه عنه د ملگرو نه وو) حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم لس (۱۰) سړي اوليږل، چه هغے كښ حضرت خبيب انصاري رضي الله عنه هم وو. د، زهري بيان دے. ماته عبيد اللّه بن عياض بيان اوكه، هغه ته د، حارث نور خبر وركه. كوم وخت چه خلق د خُبيبؓ د قتل كولو د پاره جمع شو. نو خبيب د بنت حارث (د، حارث د لور) نه پاكي (استره) اوغوښتله، چه په هغے صفائي اوكړي (زير ناف ويښته لرے كړي) كوم وخت چه هغه خلق حرم نه د هغه د قتلولو، د پاره اووتل، نو خُبيب انصاريؓ، دا شعر اووے ــ

ترجمه: او هر كله چه زه ذ مسلمانئے په حالت كښ قتل شم نو خما هيڅ پرواه نشته، چه الله د پاره په كوم اړخ خما غرخيدل وي او خما د اوژل د، الله د، ذات د پاره وي او كه هغه غواړي نو ټكړے ټكړے شوے جوړونو كښ به بركت واچوي. نو، ابن حارث حضرت

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابَهُ خَبَرَهُمْ يَوْمَ اُصِيْبُوْا.

خُبیبؓ قتل کړلو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اصحابو ته د هغه خبر ورکه، په کومه ورځ چه دغه حضرات شهیدان کړې شو.

## بَابُ ۵۳۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ يُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهُ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَ لَا اَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِكَ.

باب ۵۳۶: دَ اللّٰه تعالٰي قول، اللّٰه تاسو د خپل ذات نه ویروي. او د، اللّٰه تعالٰي قول ته په هغه څیز پوهیږې چه څما زړه کښې دې، او زه نه پوهیږم، څه چه ستا زړه کښې دي.

۱۰۶۴: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ اَحَدٌ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ وَ مَا اَحَدٌ اَحَبُّ اِلَيْهِ الْمَدْحُ مِنَ اللّٰهِ.

۱۰۶۴: عمر بن حفص بن غیاث، اعمش، شقیق، عبد اللّٰه، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، هیڅوک د، اللّٰه تعالٰي نه زیات غیرت مند نشته. څکه هغه د، بې حیائي خبرې حرام کړې دي. او د، اللّٰه نه زیات دَ هیچا تعریف خوښ نه دې.

۱۰۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا خَلَقَ اللّٰهُ الْخَلْقَ كَتَبَ فِيْ كِتَابِهٖ هُوَ يَكْتُبُ عَلٰى نَفْسِهٖ وَ هُوَ وَضِعٌ عِنْدَهٗ عَلَى الْعَرْشِ اِنَّ رَحْمَتِيْ تَغْلِبُ غَضَبِيْ.

۱۰۶۵: عبدان، ابو حمزه، اعمش، ابو صالح، حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. کوم وخت چه اللّٰه تعالٰي مخلوق پیدا که. نو خپل کتاب کښې ئې اولیکل، هغه د خپل ذات متعلق لیکي، چه هغه سره پروت دې. هغې کښې لیکلې دي چه څما رحمت څما په غضب غالب دې.

ف: یا اللّٰه خمونږ ستا رحمت نصیب کړې. او ستا د غضب نه مو په آمان کړې اللّٰهم آمین

۱۰۶۶: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ

۱۰۶۶: عمر بن حفص، اعمش، ابو صالح، ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل اللّٰه فرمائي، زه د خپل

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى اَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِيْ بِيْ وَ اَنَا مَعَهُ اِذَا ذَكَرَنِيْ فَاِنْ ذَكَرَنِيْ فِيْ نَفْسِهٖ ذَكَرْتُهُ فِيْ نَفْسِيْ وَ اِنْ ذَكَرَنِيْ فِيْ مَلَاٍ ذَكَرْتُهُ فِيْ مَلَاٍ خَيْرٍ مِّنْهُمْ وَ اِنْ تَقَرَّبَ اِلَيَّ بِشِبْرٍ تَقَرَّبْتُ اِلَيْهِ ذِرَاعًا وَّ اِنْ تَقَرَّبَ اِلَيَّ ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ اِلَيْهِ بَاعًا وَ اِنْ اَتَانِيْ يَمْشِيْ اَتَيْتُهُ هَرْوَلَةً.

بنده گمان سره يم چه څما متعلق هغه ساتي' او زه هغه سره يم' هر كله چه هغه ما ياد كړي. كه هغه ما خپل زړه كښې يادوي' نو زه هم هغه خپل زړه كښې يادوم. او كه ما جماعت كښې يادوي' نو هم هغه جماعت كښې يادوم. او كه هغه ماته يو' ليشت رانزدې شي' نو زه يو' گز هغه ته ورنزدې شم او كه هغه يو گز رانزدې شي' نو زه هغه ته دَ دواړو لاسونو دَ خوريدلو' برابر ورنزدې شم. او كه هغه ماته په قدمونو راځي' نو زه ورته په منډه ورځم.

باب ۷۵۳۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ.

باب ۷۵۳۷: دَ اللّٰه تعالٰي قول' ټول څيزونه دَ هغه دَ مخ (ذات) نه بغير هلاكيدونكي دي.

۱۰۶۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعُوْذُ بِوَجْهِكَ فَقَالَ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعُوْذُ بِوَجْهِكَ قَالَ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا اَيْسَرُ.

۱۰۶۷: قتيبه بن سعيد' حماد' عمرو' جابر بن عبد اللّٰه نه روايت كوي' كوم وخت چه دا' آيت نازل شو: قل هو القادر: الخ (يعني ته ورته اووايه' چه هغه په دې خبره قادر دې' چه په تاسو' ستاسو دَ پاسه نه عذاب راوليږي) نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: اعوذ بوجهک: (زه ستا دَ مخ پناه غواړم) بيا اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل: اَوْ مِنْ تَحْتِ ارجلكم (يا ستاسو دَ پښو دَ' لاندې نه) نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: اعوذ بوجهک: اللّٰه پاک اوفرمائيل: او يلبسكم شيعا: (يا تاسو فرقه بندئ كښې آخته كړي) نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دا آسان دې.

باب ۵۳۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلِتُصْنَعَ عَلٰى عَيْنِيْ تُغَذّٰى وَقَوْلُهٗ جَلَّ ذِكْرُهٗ تَجْرِيْ بِاَعْيُنِنَا.

باب ۵۳۸: دَ' اللّٰه تعالٰي قول' چه څما دَ ستركو دَ' وړاندې ستا پرورش اوشي او دَ' اللّٰه بزرگ و برتر قول' چه هغه كشتي څمونږ دَ ستركو دَ' وړاندې روانه وه.

۱۰٦۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ذُكِرَ الدَّجَّالُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْكُمْ اِنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِاَعْوَرَ وَاَشَارَ بِيَدِهٖ اِلٰى عَيْنِهٖ وَ اِنَّ الْمَسِيْحَ الدَّجَّالَ اَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّ عَيْنَهٗ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ.

۱۰٦۸: موسىٰ بن اسماعيل، جويريه، نافع، حضرت عبد الله نه روايت كوي. د هغه بيان دے. د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مخكښ د، دجّال ذكر اوشو نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّٰه تعالیٰ په تاسو پټ نشي پاتے كيدلے، اللّٰه تعالیٰ كاڼړے (كانا) نه دے. او خپل لاس سره ئے خپلے ستركے ته اشارے كولو سره اوفرمائيل، چه مسيح دجال په ښئے ستركه كاڼړے دے. ګويا چه د هغه ستركه آنګور دے، چه هغے كښ نور نشته.

۱۰٦۹: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَعَثَ اللّٰهُ مِنْ نَّبِيٍّ اِلَّا اَنْذَرَ قَوْمَهُ الْاَعْوَرَ الْكَذَّابَ اِنَّهٗ اَعْوَرُ وَ اِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِاَعْوَرَ مَكْتُوْبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ.

۱۰٦۹: حفص بن عمر، شعبه، قتاده، حضرت انس رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّٰه تعالیٰ چه كوم نبيان راوليږل، هغوئ خپل قوم د، كاڼړا او دروغجن نه ويرولے دے. هغه (دجّال) كاڼړا دے. او ستاسو پروردګار كاڼړا نه دے، د هغه (يعني د دجّال) د، دواړو ستركو مينځ كښ به كافر ليكلے وي (يعني په دے نښه به پيژندے شي).

باب ۵۳۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ.

باب ۵۳۹: د، اللّٰه تعالیٰ قول، چه هم اللّٰه د، هر څيز پيدا كونكے، درست كونكے او صورتونه جوړونكے دے.

۱۰۷۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا عَفَّانُ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا مُوْسٰى هُوَ ابْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيٰى بْنُ حَبَّانَ عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيْزٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ فِيْ غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ اَنَّهُمْ اَصَابُوْا سَبَايَا فَاَرَادُوْا اَنْ يَّسْتَمْتِعُوْا بِهِنَّ وَ لَا

۱۰۷۰: اسحاق، عفان، وهيب، موسىٰ بن عقبه، محمد بن يحيي بن حبان ابن محيريز، حضرت ابو سعيد خدريؒ و غزوه بني مصطلق متعلق روايت كوي هر كله چه خلقو ته وينزے غنيمت كښ په لاس راغلے، نو صحبت ئے ورسره كول اوغوښتل ليكن داسے، چه حمل ئے نشي. خلقو د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د عزل متعلق تپوس اوكه.

يَحْمِلْنَ فَسَأَلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْعَزْلِ فَقَالَ مَا عَلَيْكُمْ اَنْ لَّا تَفْعَلُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ قَدْ كَتَبَ مَنْ هُوَ خَالِقٌ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ عَنْ قَزَعَةَ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدٍ فَقَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَتْ نَفْسٌ مَّخْلُوْقَةٌ اِلَّا اللّٰهُ خَالِقُهَا.

حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' كه تاسو عزل اونه كړئ' نو په تاسو هيڅ نقصان نشته خكه چه اللّٰه تعالٰي د هغې سړي نوم ليكلې دے چه قيامته پورے پيدا كيدونكے يے. مجاهد په واسطه د' قزعه نقل كوي. چه ما د حضرت ابو سعيد نه اوريدلے دي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هيڅ ذات پيدا كړے شوے نه دے' خو' دا چه اللّٰه تعالٰي دَ هغه پيدا كونكے دے.

**باب ۵۴۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَىَّ.**

**باب ۵۴۰: د' اللّٰه تعالٰي قول' " لِمَا خَلَقْتُ بِيَدِىَّ"** (چه هغه ما خپل لاس سره پيدا كه).

۱۷۰۱: حَدَّثَنِيْ مُعَاذُ ابْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كَذٰلِكَ فَيَقُوْلُوْنَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا اِلٰى رَبِّنَا حَتّٰى يُرِيْحَنَا مِنْ مَّكَانِنَا هٰذَا فَيَأْتُوْنَ اٰدَمَ فَيَقُوْلُوْنَ يٰاٰدَمُ اَمَا تَرَى النَّاسَ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ وَ اَسْجَدَ لَكَ مَلٰٓئِكَتَهٗ' وَ عَلَّمَكَ اَسْمَآءَ كُلِّ شَيْءٍ شَفِّعْ لَنَا اِلٰى رَبِّنَا حَتّٰى يُرِيْحَنَا مِنْ مَّكَانِنَا هٰذَا فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكَ وَ يَذْكُرُ لَهُمْ خَطِيْـئَتَهُ الَّتِيْ اَصَابَ وَلٰكِنِ ائْتُوْا نُوْحًا فَاِنَّهٗ اَوَّلُ رَسُوْلٍ بَعَثَهُ اللّٰهُ اِلٰى

۱۷۰۱: معاذ بن فضاله' هشام' قتاده' حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّٰه تعالٰي به د قيامت په ورځ مؤمنان داسے راجمع كړي' خلق به وائي' كاش چه مونږ خپل پروردګار ته څوك سفارش اوليږو' چه مونږ د دے خائے نه اوكاږي' آرام راكړي' نو هغه خلق به دَ حضرت آدم عليه السّلام خدمت كښې حاضر شي. او وائي به ورته' اے آدم عليه السّلام آيا تاسو د خلقو حالت نه وينئے. اللّٰه تاسو خپل لاس سره پيدا كړئے او په فريښتو ئے تاسو ته سجده اوكړه. او تاسو ته ئے د ټولو څيزونو' نومونه اوښودل. مونږ د پاره خمونږ رب ته سفارش اوكړه' چه دے موجوده حالت نه مونږ خلاصي بيامومو هغه به ورته وائي زه د دے قابل نه يم' او د هغوئ مخكښې به خپله غلطي بيان كړي' كومه چه ترے شوے وه. بلكه تاسو خلق حضرت نوح عليه السّلام له ورشئے' چه هغه د ټولو نه وړمبنے رسول دے' چه هغه اللّٰه پاك زمكے والو

اَهْلِ الْاَرْضِ فَيَأْتُوْنَ نُوْحًا فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهُ الَّتِيْ اَصَابَ وَ لٰكِنِ ائْتُوْا اِبْرَاهِيْمَ خَلِيْلَ الرَّحْمٰنِ فَيَأْتُوْنَ اِبْرَاهِيْمَ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ لَهُمْ خَطَايَاهُ الَّتِيْ اَصَابَهَا وَ لٰكِنِ ائْتُوْا مُوْسٰى عَبْدًا اٰتَاهُ اللّٰهُ التَّوْرَاةَ وَ كَلَّمَهُ تَكْلِيْمًا فَيَأْتُوْنَ مُوْسٰى فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ لَهُمْ خَطِيْئَتَهُ الَّتِيْ اَصَابَ وَلٰكِنِ ائْتُوْا عِيْسٰى عَبْدَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلَهُ وَ كَلِمَتَهُ وَ رُوْحَهُ فَيَأْتُوْنَ عِيْسٰى فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَلٰكِنِ ائْتُوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَ مَا تَاَخَّرَ فَيَأْتُوْنِيْ فَاَنْطَلِقُ فَاَسْتَاْذِنُ عَلٰى رَبِّيْ فَيُؤْذَنُ لِيْ عَلَيْهِ فَاِذَا رَاَيْتُ رَبِّيْ وَقَعْتُ لَهُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِيْ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّدَعَنِيْ ثُمَّ يُقَالُ لِيْ اِرْفَعْ مُحَمَّدُ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَ سَلْ تُعْطَهُ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَاَحْمَدُ رَبِّيْ بِمَحَامِدَ عَلَّمَنِيْهَا ثُمَّ اَشْفَعُ فَيَحُدُّلِيْ حَدًّا فَاُدْخِلُهُمْ

نه راليږلے دے نو هغوئ به حضرت نوح عليه السّلام له ورشي. هغه به ورته وائي' زه د دے قابل نه يم هغه به خپله غلطي ياده كړي' وائي به' تاسو د' اللّٰه خليل' ابراهيم عليه السّلام له ورشئ هغوئ به ابراهيم عليه السّلام له ورشي' نو هغه به هم ورته وائي. زه د دے لائق نه يم' اووائي به' تاسو موسىٰ عليه السّلام له ورشئ' اللّٰه پاک هغه له تورات وركړے دے. او هغه سره هم كلام شوے دے (خبرے ئے ورسره كړے دي) خلق به حضرت موسىٰ عليه السّلام له ورشي' نو هغه به هم وائي زه د دے لائق نه يم' او د خپلے غلطئ تذكره به اوكړي' ليكن حضرت عيسىٰ عليه السّلام له ورشئ' چه د' اللّٰه بنده او د هغه رسول دے' او كلمه او روح دے. نو خلق به حضرت عيسىٰ عليه السّلام له ورشي' هغه به ورته وائي. زه د دے لائق نه يم' تاسو حضرت محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم له ورشئ' هغه يو داسے بنده دے' چه د هغه مخكني ورستني ګناهونه معاف شوے دي. نو خلق به ماله راشي (حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي) زه به روان شم' او د خپل رب نه به د' حاضري اجازت اوغواړم. ماته به د حاضرئ اجازت راكړے شي' هر كله چه زه خپل پروردګار او وينم' نو په سجده به پريوځم' او اللّٰه تعالىٰ به ما داسے پريږدي څومره چه دے حال كښ ما پريښودل غواړي بيا به اللّٰه تعالىٰ اوفرمائي. اے محمّد سر اوچت كړه. وايه (چه څه وائے) اوريدے به شي. غواړه' دركولے به شي. او سفارش كوه' قبول به شي. زه به د خپل رب هغه حمد بيان كړم. چه څما پروردګار به ماته ښودلے وي. بيا به زه سفارش كوم. او ما د پاره به يو

الْجَنَّةَ ثُمَّ اَرْجِعُ فَاِذَا رَاَيْتُ رَبِّيْ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِيْ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّدَعَنِيْ ثُمَّ يُقَالُ اِرْفَعْ مُحَمَّدُ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَ سَلْ تُعْطَهُ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَاَحْمَدُ رَبِّيْ بِمَحَامِدَ عَلَّمَنِيْهَا رَبِّيْ ثُمَّ اَشْفَعُ فَيَحُدُّلِيْ حَدًّا فَاُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ اَرْجِعُ فَاِذَا رَاَيْتُ رَبِّيْ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِيْ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّدَعَنِيْ ثُمَّ يُقَالُ اِرْفَعْ مُحَمَّدُ قُلْ يُسْمَعْ وَ سَلْ تُعْطَهُ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَاَحْمَدُ رَبِّيْ بِمَحَامِدَ عَلَّمَنِيْهَا ثُمَّ اَشْفَعُ فَيَحُدُّلِيْ حَدًّا فَاُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ اَرْجِعُ فَاَقُوْلُ يَا رَبِّ مَا بَقِيَ فِي النَّارِ اِلَّا مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْاٰنُ وَوَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُوْدُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مِنَ الْخَيْرِ مَا يَزِنُ شَعِيْرَةً ثُمَّ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مِنَ الْخَيْرِ مَا يَزِنُ بُرَّةً ثُمَّ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مَا يَزِنُ مِنَ الْخَيْرِ ذَرَّةً.

حد مقرر كړي، نو زه به هغوئ جنت كښې داخل كړم. بيا به واپس شم. او د خپل رب ليدو سره به په سجده پريوځم. الله به ما، دې حال كښې پريږدي، څومره چه د هغه خوښه وي، بيا به اوونيلې شي. اې محمده سر اوچت كړه، وايه، اوريدې به شي. او غواړه، دركولې به شي، او سفارش كوه. منظوريږي به. بيا به زه د خپل رب داسې حمد (تعريف) كوم، څنګه چه ماته الله پاک ښودلې وي. بيا به زه سفارش اوكړم. الله پاک به ما د پاره يو حد مقرر كړي، زه به هغوئ جنت كښې داخل كړم. بيا به واپس شم. او د خپل پروردګار ليدو سره به په سجده ورته پريوځم، الله تعالى به ما، دې حال كښې پريږدي، څومره چه ورته منظوره وي، بيا به اوونيلې شي، اې محمدؐ، سر اوچت كړه. وايه، اوريدې به شي. او غواړه، دركولې به شي. او سفارش كوه، منظوريږي به. بيا به زه د خپل رب داسې حمد بيان كړم، چه الله پاک به ماته ښودلې وي. بيا به زه سفارش كوم، الله به ما د پاره، يو حد مقرر كړي، زه به هغوئ جنت كښې داخل كړم. بيا به واپس شم، عرض به اوكړم، اې ربه، دوزخ كښې څوک پاتې شُو چه هغه قرآن ايسار كړې دي، او په هغوئ هميشګي واجب شوې ده. نبي صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دوزخ نه به هغه سړې اوځي، چه هغه: لا اِلٰهَ اِلّا الله وئيلې وي، او دَ هغه زړه كښې د، يوې وربشې برابر ايمان وي. بيا به هغه سړې دوزخ نه اوځي، چا چه: لا اِلٰهَ اِلا الله: اووې، او د هغه زړه كښې د غنم (د، دانې) برابر ايمان وي. بيا به دوزخ نه هغه سړې اوځي، چه هغه: لَا اِلٰهَ اِلّا الله: وئيلې دي، او د هغه زړه كښې ذره قدرې ايمان وي.

۷۰۷۲ ا : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَدُ اللّٰهِ مَلْاٰى لَا يَغِيْضُهَا نَفَقَةٌ سَحَّاءُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَ قَالَ اَرَاَيْتُمْ مَا اَنْفَقَ مُنْذُ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فَاِنَّهُ لَمْ يَغِضْ مَا فِيْ يَدِهٖ وَ قَالَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَآءِ وَ بِيَدِهِ الْاُخْرَى الْمِيْزَانُ يَخْفِضُ وَ يَرْفَعُ.

۷۰۷۲ ا : ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، د الله تعالي لاس ډک دے، او هغه د شپے او ورځے بخشش هم کمولے نه شي. او حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، آيا تاسو خلقو اوليدل، د کوم وخت نه چه الله تعالي آسمانونه او زمکه پيدا کړے دي، څومره خرچ ئے کړے دے، او څه چه ده هغه لاس کښ دي، هغے کښ کمے نه دے شوے. او وے فرمائيل. دَ هغه عرش په اوبو وو، او د هغه په بل لاس کښ (ترازو) تله ده، چا د پاره هغه خکته کوي، او چا د پاره ئے اوچتوي.

۷۰۷۳ ا : حَدَّثَنَا مُقَدَّمُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمِّي الْقَاسِمُ بْنُ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يَقْبِضُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ الْاَرْضَ وَ تَكُوْنُ السَّمٰوٰتُ بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ رَوَاهُ سَعِيْدٌ عَنْ مَالِكٍ وَّ قَالَ عُمَرُ بْنُ حَمْزَةَ سَمِعْتُ سَالِمًا سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا وَ قَالَ اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْبِضُ اللّٰهُ الْاَرْضَ.

۷۰۷۳ ا : مقدم بن محمد، قاسم بن يحيي، عبد الله، نافع، حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالي به د قيامت په ورځ زمکه په خپل موټي کښ واخلي، او اسمانونه به دَ هغهٔ ښي لاس کښ وي. بيا به الله تعالي فرمائي، زه بادشاه يم، سعيد دا، د مالک نه روابت کړے دے او عمر بن حمزه اووے. ما د سالم نه واوريدل. هغه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه واوريدل. هغه د حضور صلي الله عليه وسلم نه دا، روايت کړه او ابو اليمان اووے، ماته شعيب په واسطه د، زهري، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه نقل اوکړه، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، الله به زمکه خپل موټي کښ واخلي.

۱۰۷۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ سَمِعَ يَحْيَى بْنَ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ وَّ سُلَيْمَانُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ يَهُوْدِيًّا جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّ اللّٰهَ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالْاَرْضِيْنَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالْجِبَالَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالشَّجَرَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالْخَلَآئِقَ عَلٰى اِصْبَعٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ ثُمَّ قَرَاَ وَ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ وَّ زَادَ فِيْهِ فُضَيْلُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَجُّبًا وَّ تَصْدِيْقًا لَّهٗ.

۱۰۷۴ : مسدد' يحيي بن سعيد' سفيان' منصور او' سليمان' ابراهيم' عبيده' حضرت عبد الله رضي الله عنه نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے' يو يهودي د حضرت صلي الله عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو. او ونيلے' اے محمد صلي الله عليه وسلم الله تعالي به اسمانونه په يوه گوته' او زمكے په يوه گوته او غرونه په يوه گوته او ټول مخلوقات په يوه گوته اوچت كړي' نو بيا به فرمائي' زه بادشاه يم' رسول الله صلي الله عليه وسلم او خاندل' تر دے چه ذ حضور صلي الله عليه وسلم آخري غاښونه مبارك ښكاره شو. بيا حضور صلي الله عليه وسلم دا' آيت تلاوت كړلو: وَ مَا قَدَرُو اللّٰه حق قدره (يعني د' الله قدر' ئے هغسے اونه كه څنگه چه هغه ذ قدروړ دے) يحيي بن سعيد اووے' دے كښې فضيل بن عياض د منصور نه' هغه د' ابراهيم نه' هغه د عبيده نه' هغه د حضرت عبد الله نه نقل اوكه' رسول الله صلي الله عليه وسلم متعجب شو او د هغه تصديق كولو سره په خندا شو.

۱۰۷۵ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ سَمِعْتُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ سَمِعْتُ عَلْقَمَةَ يَقُوْلُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ فَقَالَ يَا اَبَا الْقَاسِمِ اِنَّ اللّٰهَ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ عَلٰى اِصْبَعٍ وَّالْاَرْضِيْنَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالشَّجَرَ وَالثَّرٰى عَلٰى اِصْبَعٍ وَّالْخَلَآئِقَ عَلٰى

۱۰۷۵ : عمر بن حفص بن غياث' حفص بن غياث' اعمش' ابراهيم' علقمه نه روايت كوي' عبد الله نه ئے واوريدل' چه اهل كتابو كښې يو سړے د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښې حاضر شو. او' وئيلے' اے ابو القاسم (صلعم) الله تعالي به اسمانونه په يوه گوته' او زمكے په يوه گوته' او اُونے په يوه گوته' او ټول مخلوقات په يوه گوته اوچت كړي. بيا به فرمائي' زه بادشاه يم' زه بادشاه يم' نو ما حضور صلي الله عليه وسلم اوليدو' چه ورے

اِصْبَعٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ اَنَا الْمَلِكُ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ قَرَاَ وَ مَا قَدَرُوْا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ.

خاندل، تر دے چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم آخري غابنونه مبارک ښکاره شولو. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم (د هغې په تصديق کښ) دا آيت تلاوت كه: وَ مَا قدرو اللّٰه حق قدره: (يعني د الله قدر لے كما حقهٔ اونه كه).

**باب ۱۵۴۱: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا شَخْصَ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ وَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمْرٍ وَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكَ لَا شَخْصَ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ.**

**باب ۱۵۴۱:** د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا ارشاد، چه هيڅوک د الله تعالٰي نه زيات غيرت مند نه دے او عبيد اللّٰه بن عمرو، د عبد الملک نه نقل کړے دے. چه هيڅوک د اللّٰه تعالٰي نه زيات غيرت مند نه دے.

**۱۰۷۶:** حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ وَرَّادٍ كَاتِبِ الْمُغِيْرَةِ عَنِ الْمُغِيْرَةِ قَالَ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ لَوْ رَاَيْتُ رَجُلًا مَّعَ اِمْرَاَتِيْ لَضَرَبْتُهٗ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفَحٍ فَبَلَغَ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تَعْجَبُوْنَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ وَاللّٰهِ لَاَنَا اَغْيَرُ مِنْهُ وَاللّٰهُ اَغْيَرُ مِنِّيْ وَ مِنْ اَجْلِ غَيْرَةِ اللّٰهِ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَ مَا بَطَنَ وَ لَا اَحَدٌ اَحَبُّ اِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ اللّٰهِ وَ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ بَعَثَ الْمُبَشِّرِيْنَ الْمُنْذِرِيْنَ وَ لَا اَحَدٌ اَحَبُّ اِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللّٰهِ وَ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ وَعَدَ اللّٰهُ الْجَنَّةَ.

**۱۰۷۶:** موسٰي بن اسمٰعيل، ابو عوانه، عبد الملک، وراد (د مغيره كاتب) مغيره رضي الله عنه نه روايت كوي، چه سعد بن عباده رضي اللّٰه عنه اووے، كه زه خپلے ښځے سره څوک سړے اووينم، نو په نيغه توره به ئے قتل كړم. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه دے نه خبر شو، نو، وے فرمائيل تاسو، د سعدؓ غيرت باندے تعجب كوئے، په خدائے م دے قسم وي، زه د هغه نه زيات غيرت مند يم، او اللّٰه تعالٰي څما نه زيات غيرتي دے. او دَ غيرت په سبب اللّٰه تعالٰي د بے حيائي ظاهري او پټے خبرے حرام كړے دي. او عذر خواهي د اللّٰه تعالٰي نه زياته هيڅا ته هم محبوب نه ده. او په دے سبب خوشخبري اوورنكي او ويرونكي ئے راليږلے دي. او د اللّٰه تعالٰي نه زيات هيچاته خپل تعريف محبوب نه دے، او څكه اللّٰه تعالٰي د جنت وعده كړے ده.

**باب ۱۵۴۲: قُلْ اَيُّ شَيْءٍ**

**باب ۱۵۴۲:** (آيت) راته اووايه چه كوم څيز د

اَكْبَرُ شَهَادَةً وَ سَمّٰى اللّٰهُ تَعَالٰى نَفْسَهُ شَيْئًا قُلِ اللّٰهُ وَ سَمّٰى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْاٰنَ شَيْئًا وَّ هُوَ صِفَةٌ مِّنْ صِفَاتِ اللّٰهِ وَ قَالَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ.

شهادت د لحاظ نه لوئے دے او اللّٰه تعالٰي خپل ذات ته شئي (څيز) اوويے ورته اووايه چه "اللّٰه دے" او نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم قرآن ته شئي وليلے دي، حالانكه دا د خدائے د صفاتو نه يو صفت دے. او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، هر څيز د هغه د مخ (ذات) نه سوا هلاكيدونكے دے.

۱۰۷۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ اَمَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ شَيْءٌ قَالَ نَعَمْ سُوْرَةُ كَذَا وَ سُوْرَةُ كَذَا لِسُوَرٍ سَمَّاهَا.

۱۰۷۷ : عبد اللّٰه بن يوسف، مالك، ابو حازم، حضرت سهل بن سعدؓ نه روايت كوي. ذَ هغه بيان دے نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو سړي ته اوفرمائيل. آيا تاته د قرآن نه څه څيز يادے، هغه اووے جي. او. فلاني فلاني سورتونه م ياد دي، او د هغے نومونه ئے واخستل.

بَاب ۵۴۳ : قَوْلِهٖ وَ كَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ وَ هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ قَالَ اَبُو الْعَالِيَةِ اسْتَوٰى اِلَى السَّمَآءِ ارْتَفَعَ فَسَوّٰهُنَّ خَلَقَهُنَّ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اسْتَوٰى عَلَا عَلَى الْعَرْشِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْمَجِيْدُ الْكَرِيْمُ وَالْوَدُوْدُ الْحَبِيْبُ يُقَالُ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ كَاَنَّهٗ فَعِيْلٌ مِّنْ مَاجِدٍ مَحْمُوْدٌ مِّنْ حَمِيْدٍ.

باب ۵۴۳ : دَ اللّٰه تعالٰي قول: چه ذَ هغه عرش په اُوبو وو. او هغه ذَ لوئے عرش پروردګار دے. ابو العاليه اووے استوٰي الي السمآء: معني دي، آسمان طرف ته بلند شو. فَسَوّٰهُنَّ: معني: خلقهن: هغه ئے پيدا كړے دي. او مجاهد اووے، د: استوٰي: معنٰي دي: په عرش اوختلو او ابن عباسؓ اووے چه مجيد: معني كريمٌ ګويا "ماجد" نه د "فعيل" په وزن دے "محمود" د "حميد" نه مشتق دے.

۱۰۷۸ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ اِنِّيْ عِنْدَ النَّبِيِّ

۱۰۷۸ : عبدان، ابو حمزه، اعمش، جامع بن شداد، صفوان بن محرز، عمران حصين نه روايت كوي ذَ هغه بيان دے، زه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست ووم. دے كښ د بني تميم څه خلق د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو. حضور صلّي اللّٰه عليه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ قَوْمٌ مِّنْ بَنِي تَمِيمٍ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرٰى يَا بَنِي تَمِيمٍ قَالُوا بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا فَدَخَلَ نَاسٌ مِّنْ أَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرٰى يَآ أَهْلَ الْيَمَنِ إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ قَالُوا قَبِلْنَا جِئْنَاكَ لِنَتَفَقَّهَ فِي الدِّيْنِ وَ لِنَسْأَلَكَ عَنْ أَوَّلِ هٰذَا الْأَمْرِ مَا كَانَ قَالَ كَانَ اللّٰهُ وَ لَمْ يَكُنْ شَيْءٌ قَبْلَهُ وَ كَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَآءِ ثُمَّ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَ كَتَبَ فِي الذِّكْرِ كُلَّ شَيْءٍ ثُمَّ أَتَانِي رَجُلٌ فَقَالَ يَا عِمْرَانُ أَدْرِكْ نَاقَتَكَ فَقَدْ ذَهَبَتْ فَانْطَلَقْتُ أَطْلُبُهَا فَإِذَا السَّرَابُ يَنْقَطِعُ دُوْنَهَا وَ أَيْمُ اللّٰهِ لَوَدِدْتُّ أَنَّهَا قَدْ ذَهَبَتْ وَ لَمْ أَقُمْ.

وسلّم اوفرمائيل، اے بني تميم، خوشخبري قبوله کړئ. همغے خلقو اووے. تاسو خو مونږ ته خوشخبري راکړه، خو څه راته عطاء هم کړے. بيا د يمن نه څه خلق راغلل، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اے اهلِ يمن خوشخبري قبوله کړئ، څکه چه بني تميم دا قبوله نه کړله. هغوئ اووے مونږه قبوله کړه، مونږ ستاسو خدمت کښې دے د پاره حاضر شوے يو، چه د دين علم حاصل کړو، او تاسو نه د دے امر (دنيا) د ابتدا متعلق دريافت اوکړو چه دے نه مخکښې څه وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل د هغه نه مخکښې هيڅ څيز نه وو، او دَ هغه عرش په اوبو وو. بيائے آسمانونه او زمکه پيدا کړل. او لوح محفوظ کښې ئے ټول څيزونه اوليکل بيا ماله يو سړے راغے. اوونيلے. اے عمرانه، دَ خپلے اوښے خبر واخله هغه تښتيدلے ده، زه د هغے تلاش پسے اووتلم، نو او م ليدل، چه د سراب نه وتلے ده. او په خدائے م دے قسم وي، څما دا خوښه وه، که اُوښه لاړه شي، نو لاړه دے شي. ليکن زه دِ د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه اُونه خوزم.

۱۰۷۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ يَمِيْنَ اللّٰهِ مَلْأٰى لَا يَغِيْضُهَا نَفَقَةٌ سَحَّآءُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُنْذُ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فَإِنَّهُ

۱۰۷۹ : علي بن عبد اللّٰه، عبد الرزاق، معمر، همام، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د اللّٰه تعالٰي ښے لاس ډک دے، د شپے ورځے بخشش هغے کښې څه کمے نه کوي. اووايه، چه اسمانونه او زمکه چه اللّٰه کوم وخت نه پيدا کړے دي، څومره خرچ به ئے کړے وي. ليکن دے کښې هيڅ کمے رانغے، څه چه د هغه ښي لاس کښې دي، او د هغه عرش

لَمْ يَنْقُصْ مَا فِيْ يَمِيْنِهٖ وَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ وَ بِيَدِهِ الْاُخْرَى الْفَيْضُ يَرْفَعُ وَ يَخْفِضُ.

پـه اُوبـو دے، او د هغـه پـه بل لاس كښې تله ده، چـه اوچتوي او ښكته كوي ئے (اے الله مونږ اوچت كړے. اللّهم آمين).

۱۰۸۰: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ جَآءَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ يَشْكُوْا فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اتَّقِ اللّٰهَ وَ اَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ قَالَتْ عَآئِشَةُ لَوْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاتِمًا شَيْئًا لَكَتَمَ هٰذِهٖ قَالَ فَكَانَتْ زَيْنَبُ تَفْخَرُ عَلٰى اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُوْلُ زَوَّجَكُنَّ اَهَالِيْكُنَّ وَ زَوَّجَنِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى مِنْ فَوْقِ سَبْعِ سَمٰوٰتٍ وَّ عَنْ ثَابِتٍ وَّ تُخْفِيْ فِيْ نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ وَ تَخْشَى النَّاسَ نَزَلَتْ فِيْ شَأْنِ زَيْنَبَ وَ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ.

۱۰۸۰: احمد، محمّد بن ابي بكر مقدمي، حماد بن زيد، ثابت، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، زيد بن حارثه (د خپلے ښځے نه) په شكايت راغے، نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه نه اويريږه او خپله ښځه خان سره ايساره كړه بي بي عائشےؓ اووے، كه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ قرآن نه څه پټ ساتلے، نو دا، آيت به ئے پټ ساتلو. د حضرت انس رضي اللّٰه عنه بيان دے. بي بي زينبؓ به دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم په ټولو بيبيانو فخر كولو. او وئيل به ئے. ستاسو نكاح ستاسو كورونو والو اوكړله، او څما نكاح اللّٰه تعالٰي دا، اوو (۷) اسمانونو د پاسه اوكړله. او ثابت نه منقول دي، چه آيت: وَ تُخْفِي فِي نفسك ما اللّهُ مُبديه و تخشى النَاسَ: او تا خپل زړه كښې هغه خبره پټوله، كه مه چه اللّٰه ظاهروله او، ته دَ خلقو نه ويريدلے: د بي بي زينبؓ او زيد بن حارثهؓ شان كښې نازل شوے دے.

۱۰۸۱: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ طَهْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ ابْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ نَزَلَتْ اٰيَةُ الْحِجَابِ فِيْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَّ اَطْعَمَ عَلَيْهَا يَوْمَئِذٍ خُبْزًا وَّ لَحْمًا وَّ كَانَتْ تَفْخَرُ عَلٰى نِسَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَتْ تَقُوْلُ اِنَّ

۱۰۸۱: خلاد بن يحيٰي، عيسٰي بن طهمان، حضرت انس رضي اللّٰه عنه بن مالكؓ نه روايت كوي. دَ هغه نه ئے واوريدل، چه د حجاب آيت د بي بي زينب بنت جحش متعلق نازل شولو. او په هغه ورځ حضورؐ روټے او غوښه د هغے وليمه كښې په خلقو او خوړل. او د نبيّ په ټولو بيبيانو هغے فخر كولو او وئيل به ئے، چه اللّٰه تعالٰي څما نكاح

اللّٰهَ اَكْحَبِيُ فِي السَّمَآءِ.

په آسمان کښې کړے دے.

۱۰۸۲ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ لَمَّا قَضَى الْخَلْقَ كَتَبَ عِنْدَهُ فَوْقَ عَرْشِهٖ اِنَّ رَحْمَتِيْ سَبَقَتْ غَضَبِيْ.

۱۰۸۲ : ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰه عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي چه مخلوق پيدا كړلو، نو عرش د پاسه ئے ځان سره اوليكل. چه ځما رحمت ځما په غضب زيات شوے دے.

۱۰۸۳ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَدَّثَنِيْ هِلَالٌ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَ صَامَ رَمَضَانَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ اَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ هَاجَرَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ جَلَسَ فِيْ اَرْضِهِ الَّتِيْ وُلِدَ فِيْهَا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نُنَبِّئُ النَّاسَ بِذٰلِكَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ اَعَدَّهَا اللّٰهُ لِلْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ كُلُّ دَرَجَتَيْنِ مَا بَيْنَهُمَا كَمَا بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَاِذَا سَاَلْتُمُ اللّٰهَ فَاسْئَلُوْهُ الْفِرْدَوْسَ فَاِنَّهٗ اَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَ اَعْلَى الْجَنَّةِ وَ فَوْقَهٗ عَرْشُ الرَّحْمٰنِ وَ مِنْهُ تَفَجَّرُ اَنْهَارُ الْجَنَّةِ.

۱۰۸۳ : ابراهيم بن منذر، محمد بن فليح، فليح، هلال، عطاء بن يسار، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. چا چه اللّٰه تعالٰي او د هغه په رسول ايمان راوړلو. او مونځ ئے اوكه او روژه ئے اونيوله، نو په اللّٰه تعالٰي حق دے، چه هغه جنت كښې داخل كړي هغه د، اللّٰه تعالٰي لار كښې هجرت كړے وي، يا كومه زمكه كښې چه پيدا شوے وي، هلته پاتے شي. خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، آيا مونږ د دے خبرے نه خلق خبر نه كړو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، جنت كښې سل (۱۰۰) درجے دي، چه اللّٰه تعالٰي خپله لار كښې جهاد كونكو د پاره تيارے كړے دي. د، هرے درجے مينځ كښې دومره فاصله ده، څومره فاصله چه د، آسمان او زمكے مينځ كښې ده، تاسو چه د، اللّٰه نه غواړئے، نو فردوس ترے غواړئے، دا، د جنت درمياني درجه ده، او بلند ترين درجه ده، او دے د پاسه عرش خداوندي دے. او، دے نه د جنت نهرونه اوخي.

ف : يا اللّٰه، خمونږ هم جنت فردوس نصيب كړے. اَللّٰهُمَّ آمين.

۱۰۸۴ : حَدَّثَنَا يَحْيٰى

۱۰۸۴ : يحيٰي بن جعفر، ابو معاويه، اعمش،

بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا اَبُو مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ هُوَ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فَلَمَّا غَرَبَتِ الشَّمْسُ قَالَ يَا اَبَا ذَرٍّ هَلْ تَدْرِيْ اَيْنَ تَذْهَبُ هٰذِهٖ قَالَ قُلْتُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ قَالَ فَاِنَّهَا تَذْهَبُ تَسْتَاْذِنُ فِى السُّجُوْدِ فَيُؤْذَنُ لَهَا وَ كَاَنَّهَا قَدْ قِيْلَ لَهَا ارْجِعِيْ مِنْ حَيْثُ جِئْتِ فَتَطْلُعُ مِنْ مَغْرِبِهَا ثُمَّ قَرَاَ ذٰلِكَ مُسْتَقَرٌّ لَّهَا فِيْ قِرَآءَةِ عَبْدِ اللّٰهِ.

ابراهيم تيمي د، خپل پلار نه، هغه د، ابو ذر رضي الله عنه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے. زه جُمات كښ داخل شوم، دغه وخت رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ناست وو، څه وخت چه نمر ډوب شو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اَے ابوذره (رضي الله عنه) آيا تاته معلومه ده، چه دا نمر كوم خواځي. ما عرض اوكه، الله او دَ هغه رسول ښه پوهيږي حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل هغه ځي، او د سجدے اجازت غواړي، نو هغه ته د سجدے اجازت وركولے شي. او ګويا هغه ته اوونيلے شي، چه واپس شه، د كوم ځائے نه چه ته راغلے ئے، نو هغه به د مغرب نه طلوع شي. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم: ذلک مستقرّ لّها: (دا، د هغه مُستقر دے) چه د عبد الله (بن مسعود) په قرأت كښ دے: اولوستلو.

۱۰۸۵ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى عَنْ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عُبَيْدُ بْنِ السَّبَّاقِ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَّ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ السَّبَّاقِ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ حَدَّثَهٗ قَالَ اَرْسَلَ اِلَيَّ اَبُوْبَكْرٍ فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْاٰنَ حَتّٰى وَجَدْتُ اٰخِرَ سُوْرَةِ التَّوْبَةِ مَعَ اَبِيْ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيْ لَمْ اَجِدْهَا مَعَ اَحَدٍ غَيْرِهٖ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ حَتّٰى خَاتِمَةِ بَرَآءَةٌ.

۱۰۸۵ : موسٰي، ابراهيم، ابن شهاب، عبيد بن سباق، حضرت زيد بن ثابت (دويم سند) ليث، عبد الرحمٰن بن خالد، ابن شهاب ابن سباق، حضرت زَيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت كوي دَ هغه بيان دے. حضرت ابوبكر رضي الله عنه زه راوغستلم. نو مَا دَ قران تلاوت شروع كړلو تر دے چه د سورة توبه اخري آيت مَا، ابو خزيمه انصاريؓ سره بيامند، چه دَ هغه نه علاوه بل چاسره نه وو. هغه آيت: لقد جآءكم رسول من انفسكم: الخ (تاسو ته رسول تاسونه راغے) د، سورة براة اخير پورے وو.

۱۰۸۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ بِهٰذَا

۱۰۸۶ : يحيٰي بن بكير په واسطه د، ليث، يونسؓ نه روايت كه. اوونيلے چه ابو خزيمه انصاري سره (هغه

وَ قَالَ مَعَ اَبِىْ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ.

آيت بيامندے شو).

۱۰۸۷ : حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِى الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ عِنْدَ الْكَرْبِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ رَبُّ الْاَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ.

۱۰۸۷ : معلي بن اسد، وهيب، سعيد، قتاده، ابو العاليه، حضرت ابن عبّاس رضي اللّٰه عنه نه روايتکوي. د هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به دَ مصيبت په وخت دا، دُعا لوستله: لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ العليم الحكيم، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ رَبُّ الْاَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْم (د، اللّٰه تعالٰي نه سوا بل معبود نشته هغه پوهيدونکے، بردباره دے. د، اللّٰه نه سوا هيڅوک معبود نشته، دَ هغه د، لوئے عرش رب دے. د اللّٰه نه سوا بل معبود نشته. هغه د، آسمانونو او زمکے رب دے، او د عرش کريم رب دے.

۱۰۸۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ النَّاسُ يَصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَاِذَآ اَنَا بِمُوْسٰى اٰخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِّنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ وَ قَالَ الْمَاجِشُوْنَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْفَضْلِ عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ بُعِثَ فَاِذَا مُوْسٰى اٰخِذٌ بِالْعَرْشِ.

۱۰۸۸ : محمد بن يوسف، سفيان، عمرو بن، يحيٰي، حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: دَ قيامت په ورځ به ټول خلق بيهوشه شي. کوم وخت چه زه په هوش کښ راشم، نو او، به اووينم، چه حضرت موسٰي عليه وسلّم به د عرش يوه پايه نيولے وي. او ماجشون د عبد اللّٰه بن فضل نه، هغه د، ابو سلمه نه، هغه د حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه هغه دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه نقل اوکه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ټولو نه مخکښ به زه هوش کښ راشم، نو هغه وخت به اووينم، چه موسٰي عليه السّلام به عرش نيولے وي.

بَابٌ ۵۴۴ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ وَ قَوْلُهُ

باب ۵۴۴ : دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه فريښتے او روح هغه پله خيژي. او د، اللّٰه بزرګ و برتر قول، چه

جَلَّ ذِكْرُهُ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَ قَالَ اَبُوْ جَمْرَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ بَلَغَ اَبَا ذَرٍّ مَبْعَثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِاَخِيْهِ اِعْلَمْ لِيْ عِلْمَ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعُمُ اَنَّهُ يَأْتِيْهِ الْخَبَرُ مِنَ السَّمَآءِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ الْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُ الْكَلِمَ الطَّيِّبَ يُقَالُ ذِي الْمَعَارِجِ الْمَلٰٓئِكَةِ تَعْرُجُ اِلَى اللّٰهِ.

هغه طرف ته پاكيزه كلمے خيژي. او ابو جمره' حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه نقل او كه' حضرت ابو ذر رضي اللّٰه عنه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ډ پيغمبرئ نه خبر شو' نو خپل ورور ته ئے اووے' ما د پاره د هغے سړي متعلق معلومات حاصل كړه' چه دا' دعوئ كوي' چه هغه ته د' آسمان نه خبرو نه راځي. او مجاهد اووے' چه نيک كار' پاكيزه كلام اوچتوي. او بعضے وائي' چه: ذي المعارج: نه مراد فريښتے دي' چه اللّٰه طرف ته خيژي.

۱۰۸۹ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَتَعَاقَبُوْنَ فِيْكُمْ مَلٰٓئِكَةٌ بِاللَّيْلِ وَ مَلٰٓئِكَةٌ بِالنَّهَارِ وَ يَجْتَمِعُوْنَ فِيْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ وَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ ثُمَّ يَعْرُجُ الَّذِيْنَ يَأْتُوْا فِيْكُمْ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَ هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ فَيَقُوْلُ كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِيْ فَيَقُوْلُوْنَ تَرَكْنَاهُمْ وَ هُمْ يُصَلُّوْنَ وَ اَتَيْنَاهُمْ وَ هُمْ يُصَلُّوْنَ وَ قَالَ خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَصَدَّقَ بِعَدْلِ تَمْرَةٍ مِّنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ وَّ لَا يَصْعَدُ اِلَى اللّٰهِ اِلَّا الطَّيِّبُ فَاِنَّ اللّٰهَ

۱۰۸۹ : اسماعيل' مالک' ابو الزناد' اعرج' حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. ډ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' د شپے او ورځے فريښتے تاسوله يو بل پسے راځي او د مازيگر او سحر مونځ كښ دواړه يو بل سره يوځائے كيږي. بيا كومو فريښتو چه تاسو سره شپه تيره كړے وي. هغوئ پورته خيژي. اللّٰه تعالٰي ډ هغے فريښتو نه تپوس كوي' حالانكه هغه تاسو زيات پيژني فرمائي به' تاسو خما بنديان كوم حال كښ پريښودل. نو هغوئ به وائي' د مانځه حالت كښ مو' پريښودل (يعني مونځ ئے كولو). او كوم وخت چه ورغلي يو' نو هم مونځ ئے كولو او خالد بن مخلد په واسطه د عبد اللّٰه بن دينار' ابو صالح' ابو هريره رضي اللّٰه عنه نقل اوكه' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چا چه د پاكے گټے (كمائي) نه د يوے قجورے برابر هم صدقه كړه' او اللّٰه تعالٰي طرف ته صرف پاک څيز خيژي' نو اللّٰه تعالٰي هغه خپل ښي لاس

يَتَقَبَّلُهَا بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ يُرَبِّيْهَا لِصَاحِبِهٖ كَمَا يُرَبِّيْ اَحَدُكُمْ فَلُوَّهٗ حَتّٰى تَكُوْنَ مِثْلَ الْجَبَلِ وَ رَوَاهُ وَرْقَآءُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَا يَصْعَدُ اِلَى اللّٰهِ اِلَّا الطَّيِّبُ.

سره قبلوي. بیا د هغې د مالک د پاره د هغې پرورش کوي، څنګه چه تاسو کښې يو سړے د خپل سخي (بچړے) پرورش کوي، تر دے چه هغه خيرات د غر برابر جوړ شي. او، ورقاء دا، د عبد الله بن دينار نه، هغه د سعيد بن يسار نه، هغه دَ حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه، هغه د نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كه، چه الله طرف ته صرف پاكيزه څيزونه خيژي.

۱۰۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى ابْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُوْبِهِنَّ عِنْدَ الْكَرْبِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَظِيْمُ الْحَلِيْمُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ.

۱۰۹۰: عبد الاعلٰي بن حمّاد، يزيد بن زريع، سعيد، قتاده، ابو العاليه، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي د هغه بيان دے، حضور صلّي الله عليه وسلّم به دَ مصيبت په وخت دے الفاظو سره دُعا كوله: د اللّٰه نه سوا بل معبود نشته، لوئے دے، بردبار دے، هيڅوک معبود نشته، خو اللّٰه، چه د لوئے عرش رب دے. د هغه نه سوا هيڅوک معبود نشته. هغه د، آسمانونو او زمكے رب دے او دَ عرش كريم هم رب دے.

۱۰۹۱: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نُعْمٍ اَوْ اَبِيْ نُعْمٍ شَكَّ قَبِيْصَةُ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ بُعِثَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذُهَيْبَةٍ فَقَسَمَهَا بَيْنَ اَرْبَعَةٍ وَ حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نُعْمٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَعَثَ عَلِيٌّ وَ هُوَ بِالْيَمَنِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى

۱۰۹۱: قبيصه، سفيان، دَ سُفيَان پلار (سعيد بن مسروق) ابن ابي نعم (قبيصه ته شک دے) حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه روايت كوي د هغه بيان دے. دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښې لږ شان سره زر اوليږلے شو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم هغه څلورو سړو كښې تقسيم كړل (دويم سند) اسحاق بن نصر، عبد الرّزاق، سفيان، د خپل پلار نه، هغه د، ابن ابي نعم نه، هغه د، ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے حضرت علي رضي الله عنه كوم وخت چه يمن كښې وو. دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذُهَيْبَةٍ فِيْ تُرْبَتِهَا فَقَسَمَهَا بَيْنَ الْاَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ الْحَنْظَلِيِّ ثُمَّ اَحَدِ بَنِيْ مُجَاشِعٍ وَ بَيْنَ عُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ الْفَزَارِيِّ وَ بَيْنَ عَلْقَمَةَ بْنِ عُلَاثَةَ الْعَامِرِيِّ ثُمَّ اَحَدِ بَنِيْ كِلَابٍ وَّ بَيْنَ زَيْدِ الْخَيْلِ الطَّائِيِّ ثُمَّ اَحَدِ بَنِيْ نَبْهَانَ فَتَغَضَّبَتْ قُرَيْشٌ وَالْاَنْصَارُ فَقَالُوْا يُعْطِيْهِ صَنَادِيْدَ اَهْلِ نَجْدٍ وَّ يَدَعُنَا قَالَ اِنَّمَا اَتَاَلَّفُهُمْ فَاَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ نَاتِي الْجَبِيْنِ كَثُّ اللِّحْيَةِ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ مَحْلُوْقُ الرَّاْسِ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اتَّقِ اللّٰهَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ يُطِيْعُ اللّٰهَ اِذَا عَصَيْتُهُ فَيَاْمَنُنِيْ عَلٰى اَهْلِ الْاَرْضِ وَ لَا تَاْمَنُوْنِيْ قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ قَتْلَهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاهُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ فَمَنَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا وَلّٰى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هٰذَا قَوْمًا يَقْرَءُوْنَ الْقُرْاٰنَ لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الْاِسْلَامِ مُرُوْقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ يَقْتُلُوْنَ اَهْلَ الْاِسْلَامِ وَ يَدَعُوْنَ اَهْلَ الْاَوْثَانِ لَئِنْ اَدْرَكْتُهُمْ لَاَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ.

۱۰۹۲ : حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ

خدمت كښې نے كچه سره زر اوليږل نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغه اقرع بن حابس، چه د حنظل او بني مجاشع يو فرد وو، او عيينه بن بدر فزاري، او علقمه بن علاثه چه د، عامري او بني كلاب يو سړے وو، او زيد خيل چه د، طائي او بني نبهان يو فرد وو، كښې تقسيم كړلو. قريش او انصار غصه شو. او ونيلے چه د، اهلِ نجد سردارانو ته وركوي. او مونږ خلق پريږدي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زه د هغوئ تاليف قلوب كوم (يعني زړه ئے ساتم) يو سړے راغے، چه د هغه دواړه سترگې دننه ورننوتے وے (اندر دھنسی ہوئی تھیں) تندے (پیشانی) ئے راختلے وو. گنړه گيره، دواړه اننگي ئے بُق راوتے، او سر، ئے خريلے وو، هغه اووے. اَے محمد (صلعم)، اللّٰه نه ويريږه. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د، اللّٰه اطاعت به څوك كوي، كه زه دَ هغه نافرماني اوكړم، هغه زه په زمكه والو آمين جوړ كړے يم. او ته ما آمين نه گنړے د قوم يو سړي غالبًا خالد بن وليد د هغے سړي د قتلولو اجازت اوغوښتلو. ليكن حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم منع كړو كوم وخت چه هغه واپس لاړ، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. د دے سړي د نسل نه به څه خلق پيدا شي، چه قرآن به لولي، او قرآن به دَ هغوئ د حلق نه لاندے نه اوځي. او اسلام نه به داسے اُوځي، څنګه چه غشے دَ ښكار نه اوځي. هغه خلق به مسلمانان قتل كړي، او بُت پرست به پريږدي، كه زه د هغوي زمانه بيامومم، نو هغه خلق به د، عاد قوم په شان قتل كړم.

۱۰۹۲ : عياش بن وليد، وَكيع، اعمش، ابراهيم

الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهٖ وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا قَالَ مُسْتَقَرُّهَا تَحْتَ الْعَرْشِ.

تيمي، دَ خپل پلار نه، هغه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د، آيت: وَالشمسِ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرِّ لَهَا: متعلق تپوس اوكه، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل د هغه مستقر (د قراري ځائے) د عرش د لاندے لاندے دے.

باب ۵۴۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ.

باب ۵۴۵: دَ اللّٰه تعالٰي قول په هغه ورځ به بعضے مخونه تروتازه وي، خپل رب طرف ته به گوري.

۱۰۹۳: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ وَّ هُشَيْمٌ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا نَظَرَ اِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ قَالَ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ لَا تُضَامُّوْنَ فِيْ رُؤْيَتِهٖ فَاِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ لَّا تُغْلَبُوْا عَلٰى صَلٰوةٍ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ صَلٰوةٍ قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ فَافْعَلُوْا.

۱۰۹۳: عمرو بن عون، خالد او هشيم، اسماعيل، قيس، حضرت جرير نه روايت كوي. د هغه بيان دے مونږ خلق نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو. چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دَ څوارلسمے سپوږمۍ طرف ته اوكتل، نو وے فرمائيل چه عنقريب تاسو به خپل رب داسے وينئے، څنگه چه دا سپوږمۍ وينئے، او د دے په ليدو كښې تاسو ته هيڅ تكليف نه وي. نو كه تاسو د، نمر ختو او نمر پريوتو نه مخكښې په مونځ مغلوب نه كړے شئے (كه تاسو مونځ كولے شے، نو داسے كوئے (يعني مونځ كوئے).

۱۰۹۴: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ يُوْسُفَ الْيَرْبُوْعِيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ ابْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ عِيَانًا.

۱۰۹۴: يوسف بن موسٰي، عاصم بن يوسف يربوعي، ابو شهاب، اسمٰعيل بن ابي خالد، قيس بن ابي حازم، حضرت جرير بن عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه رژايت كوي. د هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، عنقريب تاسو به خپل رب خپلو دے سترگو سره ظاهري طور (د قيامت په ورځ) اووينے.

۱۰۹۵: حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ

۱۰۹۵: عبده بن عبد اللّٰه، حسين جعفي، زائده،

اللّٰهِ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ الْجُعْفِيُّ عَنْ زَآئِدَةَ حَدَّثَنَا بَيَانُ ابْنُ بِشْرٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْبَدْرِ فَقَالَ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا لَا تُضَآمُّوْنَ فِيْ رُؤْيَتِهٖ.

بيان بن بشر، قيس بن ابي حازم، حضرت جرير رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم مونږ پله د، څوارلسم تاريخ د شپے تشريف راوړلو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، عنقريب تاسو به خپل رب اووينئے، څنګه چه تاسو دا، وينئے، او د دے ليدو كښ تاسو ته تكليف نه وي.

۱۰۹۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّاسَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ نَرٰى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ تُضَارُّوْنَ فِي الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ فَقَالُوْا لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَهَلْ تُضَآرُّوْنَ فِي الشَّمْسِ لَيْسَ دُوْنَهَا سَحَابٌ قَالُوْا لَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاِنَّكُمْ تَرَوْنَهُ كَذٰلِكَ يَجْمَعُ اللّٰهُ النَّاسَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيَقُوْلُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ شَيْئًا فَلْيَتَّبِعْهُ فَيَتَّبِعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الشَّمْسَ الشَّمْسَ وَ يَتَّبِعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الْقَمَرَ الْقَمَرَ وَ يَتَّبِعُ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ

۱۰۹۶ : عبد العزيز بن عبد الله، ابراهيم بن سعد، ابن شهاب، عطاء بن يزيد ليثي، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي خلقو تپوس اوكه، يا رسول الله، آيا د قيامت په ورځ به مونږ خپل پروردګار وينو؟ نو رسول الله اوفرمائيل آيا تاسو ته دَ بدر په شپه سپوږمئ ليدو كښ څه تكليف وي. خلقو اووے، نه، يا رسول الله، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا دَ نمر ليدو كښ تاسو ته څه تكليف وي، هر كله چه وريځ حائله نه وي. خلقو اووے، نه، يا رسول الله به دا شان خپل رب وينئے، الله تعالٰي به دَ قيامت په ورځ خلق راجمع كړي. او فرمائي به، تاسو كښ چا چه د، څه څيز عبادت كولو. هغه دے هغے پسے شي، نو چا چه دَ نمر عبادت كولو، هغه به نمر پسے شي، او چا چه د سپوږمئ عبادت كولو، هغه به سپوږمئ پسے شي، او چا چه د، بتانو عبادت كولو، هغه به بتانو پسے شي. او دا، امت (محمدي) به باقي پاتے شي. چه هغے كښ به د دے شفاعت كونكي يا د دے منافق وي (ابراهيم ته شک شو) دوي له به الله تعالٰي راشي، او فرمائيل به، زه ستاسو رب يم، هغه خلق به وائي، مونږ خو، به دلته يو، څو پورے چه څمونږ رب

الطَّوَاغِيْتَ الطَّوَاغِيْتُ وَ تَبْقٰى
هٰذِهِ الْاُمَّةُ فِيْهَا شَافِعُوْهَا اَوْ
مُنَافِقُوْهَا شَكَّ اِبْرَاهِيْمُ فَيَاْتِيْهِمُ
اللّٰهُ فَيَقُوْلُ اَنَا رَبُّكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ
هٰذَا مَكَانُنَا حَتّٰى يَاْتِيَنَا رَبُّنَا
فَاِذَا جَآءَنَا رَبُّنَا عَرَفْنَاهُ فَيَاْتِيْهِمُ
اللّٰهُ فِيْ صُوْرَتِهِ الَّتِيْ يَعْرِفُوْنَ
فَيَقُوْلُ اَنَا رَبُّكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ اَنْتَ
رَبُّنَا فَيَتْبَعُوْنَهُ وَ يُضْرَبُ الصِّرَاطُ
بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ فَاَكُوْنُ اَنَا وَ
اُمَّتِيْ اَوَّلَ مَنْ يُجِيْزُهَا وَ لَا
يَتَكَلَّمُ يَوْمَئِذٍ اِلَّا الرُّسُلُ وَ
دَعْوَى الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ اَللّٰهُمَّ
سَلِّمْ سَلِّمْ وَ فِيْ جَهَنَّمَ
كَلَالِيْبُ مِثْلُ شَوْكِ السَّعْدَانِ
هَلْ رَاَيْتُمُ السَّعْدَانَ قَالُوْا نَعَمْ
يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاِنَّهَا مِثْلُ
الشَّوْكِ السَّعْدَانِ غَيْرَ اَنَّهُ لَا يَعْلَمُ
مَا قَدْرُ عِظَمِهَا اِلَّا اللّٰهُ تَخْطَفُ
النَّاسَ بِاَعْمَالِهِمْ فَمِنْهُمُ الْمُوْبَقُ
بَقِيَ بِعَمَلِهِ اَوِ الْمُوْثَقُ بِعَمَلِهِ وَ
مِنْهُمُ الْمُخَرْدَلُ اَوِ الْمُجَازٰى اَوْ
نَحْوُهٗ ثُمَّ يَتَجَلّٰى حَتّٰى اِذَا فَرَغَ
اللّٰهُ مِنَ الْقَضَاءِ بَيْنَ الْعِبَادِ وَ اَرَادَ
اَنْ يُخْرِجَ بِرَحْمَتِهِ مَنْ اَرَادَ مِنْ
اَهْلِ النَّارِ اَمَرَ الْمَلٰٓئِكَةَ اَنْ

رانشي، هر كله چه خمونږ رب راشي، نو مونږ به هغه
اوپيژنو، نو، اللّٰه تعالٰي به هغوئ ته داسې صورت كښې
راشي، چه هغوئ به ئې پيژني او فرمائي به، زه ستاسو رب
يم، نو خلق به وائي، چه ته خمونږ رب ئې. او دا خلق به
هغه پسې شي. او ذَ جهنم د پاسه به پُلِ صراط قائم شي،
نو، زه (حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي) او خما اُمت
به د ټولو نه مخكښې په هغې تيريږي. او په هغه ورځ به د
پيغمبرانو نه سوا هيڅوک خبره نشي كولې. او د
پيغمبرانو آواز به په هغه ورځ دا وي، چه اَے اللّٰه،
محفوظ مو، اوساتې محفوظ مو، اوساتې. (يعني په امان
مو، كړې) او جهنم كښې به د، سعدان د، آزغو پشان (د،
اوسپنې) كُنډې وي. آيا تاسو سعدان ليدلې دې. خلقو
جواب وركه. او. يا رسول اللّٰه. حضور صلّي اللّٰه عليه
وسلّم ورته اوفرمائيل هغه به د، سعدان د، آزغي په شان
وي، خو، دا چه دَ هغې د، لوئې والي مقدار د اللّٰه نه سوا
هيڅوك نه پيژني. هغه د، اُوسپنې كنډې (ټك) به
هغوي كښې ذَ هغوي د، اعمالو مطابق چُوكه كيږي.
هغوي كښې به بعضې داسې وي، چه هلاک به كړې شي،
خپل عمل سره به باقي شي. يا، دائې اوفرمائيل چه خپل
عمل سره به تړلې وي. او هغوئ كښې به بعضې ټكړې
ټكړې شي، يا بدله به وركړې شي، يا داشان څه الفاظ ئې
اوفرمائيل بيا به اللّٰه تعالٰي ظاهر شي، تر دې چه كوم
وخت بنديانو كښې د فيصلې كولو نه فارغ شي. او كوم
خلق چه خپل رحمت سره د، دوزخ نه اوبنكل غواړي،
نو فريښتو ته به حكم وركړي، چه هغه خلق دوزخ نه
اوكاږئې، چه اللّٰه سره ئې څوک نه شريكول چه په

يُخْرِجُوْا مِنَ النَّارِ مَنْ كَانَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا مِمَّنْ يَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَيَعْرِفُوْنَهُمْ فِي النَّار بِاَثَرِ السُّجُوْدِ تَاْكُلُ النَّارُ اِبْنَ اٰدَمَ اِلَّا اَثَرَ السُّجُوْدِ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ اَنْ تَاْكُلَ اَثَرَ السُّجُوْدِ فَيَخْرُجُوْنَ مِنَ النَّارِ قَدِ امْتُحِشُوْا فَيُصَبُّ عَلَيْهِمْ مَآءُ الْحَيٰوةِ فَيَنْبُتُوْنَ تَحْتَهُ كَمَا تَنْبُتُ الْحَبَّةُ فِيْ حَمِيْلِ السَّيْلِ ثُمَّ يَفْرُغُ اللّٰهُ مِنَ الْقَضَآءِ بَيْنَ الْعِبَادِ وَ يَبْقٰى رَجُلٌ مُقْبِلٌ بِوَجْهِهٖ عَلَى النَّارِ هُوَ اٰخِرُ اَهْلِ النَّار دُخُوْلًا الْجَنَّةَ فَيَقُوْلُ اَيْ رَبِّ اصْرِفْ وَجْهِيْ عَنِ النَّارِ فَاِنَّهُ قَدْ قَشَبَنِيْ رِيْحُهَا وَ اَحْرَقَنِيْ ذَكَآءُهَا فَيَدْعُو اللّٰهَ بِمَا شَآءَ اَنْ يَّدْعُوَهُ ثُمَّ يَقُوْلُ اللّٰهُ هَلْ عَسَيْتَ اِنْ اُعْطِيْتَ ذٰلِكَ اَنْ تَسْاَلَنِيْ غَيْرَهُ فَيَقُوْلُ لَا وَ عِزَّتِكَ لَا اَسْاَلُكَ غَيْرَهُ وَ يُعْطِيْ رَبَّهُ مِنْ عُهُوْدٍ وَّ مَوَاثِيْقَ مَا شَآءَ فَيَصْرِفُ اللّٰهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ فَاِذَا اَقْبَلَ عَلَى الْجَنَّةِ وَرَاٰهَا سَكَتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّسْكُتَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَيْ رَبِّ قَدِّمْنِيْ اِلٰى بَابِ الْجَنَّةِ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ اَلَسْتَ قَدْ اُعْطِيْتَ

هغوئ به الله تعالىٰ د' رحم اراده اوفرمائي. دا' به هغه خلق وي' چه هغوئ ګواهي ورکړے وي' چه د الله نه سِوا څوک معبود نشته. فريښتے به هغوي دوزخ کښ د سجدو نښو نه اوپيژني. د سجدے د ځائے نه علاوه د سړي باقي حصَه به اور اوخوري. الله پاک په اور د سجدے ځائے سوزول حرام کړي دي. نو هغه خلق به دوزخ نه سوزيدلي راوځي او په هغوئ به د' ژوند انه اوبه (آب وحيات) اونوستے شي' نو دَ هغے لاندے به هغوئ داسے تروتازه شي' څنګه چه دانه د' اوبو بهيدو ځائے کښ زرغنيږي. بيا به الله تعالىٰ دَ بنديانو دَ فيصلو نه فارغ شي نو يو سړے به داسے باقي پاتے بشي' چه د هغه رُخ به دوزخ طرف ته ري. دا سړے به دوزخيانو کښ جنت کښ دَ ټولو نه آخر کښ داخليږي' هغه به عرض اوکړي اَے ربه څما مخ د' دوزخ نه واوړے د دے هَوا زه پريشانه کړم. او د دے شعلے زه اوسوزولم' هغه به الله نه دعاء اوغواړي. څو پورے چه الله ته منظوره وي. بيا به الله فرمائي' که تاته در کړے شي' نو دے نه علاوه خو' به نور څه نه غواړے' هغه به وائي' ستا په عزت مِ دے قسم وي' دے نه سوا به درنه هيڅ نه غواړم او څومره چه خدائے ته منظوره وي' هغه سړے به دَ خپل پروردګار سره عهد و پيمان کوي' نو الله تعالىٰ به دَ هغه مخ د' دوزخ نه واړوي کوم وخت چه هغه جنت طرف ته مخ کړي او جنت اُوويني نو خاموش به وي څو پورے چه الله تعالىٰ ته منظوره وي بيا به عرض اوکړي. اے ربه' ما د جنت دروازے ته اورسوے. الله پاک به ورته فرمائي. آيا تا اقرار نه وو کړے' چه دے نه سوا به بل څيز نه

عُهُوْدَكَ وَ مَوَاثِيْقَكَ اَنْ لَا تَسْاَلَنِيْ غَيْرَ الَّذِيْ اُعْطِيْتَ اَبَدًا وَيْلَكَ يَا ابْنَ اٰدَمَ مَا اَغْدَرَكَ فَيَقُوْلُ اَيْ رَبِّ وَ يَدْعُوا اللّٰهَ حَتّٰى يَقُوْلَ هَلْ عَسَيْتَ اِنْ اُعْطِيْتَ ذٰلِكَ اَنْ تَسْاَلَ غَيْرَهٗ فَيَقُوْلُ لَا وَ عِزَّتِكَ لَا اَسْئَلُكَ غَيْرَهٗ وَ يُعْطِيْ مَا شَآءَ مِنْ عُهُوْدٍ وَّ مَوَاثِيْقَ فَيُقَدِّمُهٗ اِلٰى بَابِ الْجَنَّةِ فَاِذَا قَامَ اِلٰى بَابِ الْجَنَّةِ انْفَهَقَتْ لَهُ الْجَنَّةُ فَرَاٰى مَا فِيْهَا مِنَ الْحَبْرَةِ وَالسُّرُوْرِ فَيَسْكُتُ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّسْكُتَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَيْ رَبِّ اَدْخِلْنِيَ الْجَنَّةَ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ اَلَسْتَ قَدْ اَعْطَيْتَ عُهُوْدَكَ وَ مَوَاثِيْقَكَ اَنْ لَا تَسْاَلَ غَيْرَهَا اُعْطِيْتَ فَيَقُوْلُ وَيْلَكَ يَا ابْنَ اٰدَمَ مَا اَغْدَرَكَ فَيَقُوْلُ اَيْ رَبِّ لَا اَكُوْنَنَّ اَشْقٰى خَلْقِكَ فَلَا يَزَالُ يَدْعُوا حَتّٰى يَضْحَكَ اللّٰهُ مِنْهُ فَاِذَا ضَحِكَ مِنْهُ قَالَ لَهٗ ادْخُلِ الْجَنَّةَ فَاِذَا دَخَلَهَا قَالَ اللّٰهُ لَهٗ تَمَنَّهْ فَسَاَلَ رَبَّهٗ وَ تَمَنّٰى حَتّٰى اِنَّ اللّٰهَ لَيُذَكِّرُهٗ يَقُوْلُ كَذَا وَ كَذَا حَتّٰى انْقَطَعَتْ بِهِ الْاَمَانِيُّ قَالَ اللّٰهُ ذٰلِكَ لَكَ وَ مِثْلُهٗ مَعَهٗ قَالَ عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ وَ اَبُوْ

غواړې، ستا دې خرابي وي. اې بني آدمه، ته څومره عهد شکن (وعده ماتونکې) يې. نو هغه به وائي. اې ربه. اې ربه، او الله نه به دُعا غواړي، تر دې چه الله پاک به اوفرمائي، که ستا دا خواست منظور کړې شي، نو دې نه پس به څه دويم څيز خو نه غواړې. هغه به وائي، ستا په عزت م دې قسم وي. دې نه پس به زه هيڅ څيز نه غواړم او څومره چه خدائې تعالٰي ته منظوره وي، هغه سړې به عهد پيمان اوکړي. اللّٰه تعالٰي به ئې هغه د جنت دروازې ته اورسوي. کوم وخت چه هغه د جنت په دروازه اودريږي. نو جنت به ورته مخې ته په نظر راشي. او د هغې خوشحالي او آرام به اوويني او څومره چه الله تعالٰي ته منظوره وي، هغه سړې به خاموش وي. بيا به عرض اوکړي. اې ربه. مَا جنت کښې داخل کړې. اللّٰه تعالٰي به فرمائي، آيا تا وعده نه وه کړې، چه دې نه سوا به بل څيز نه غواړې. بيا به فرمائي، ستا دې خرابي وي، اې بني آدمه ته څومره وعده ماتونکې يې. هغه به عرض اوکړي اې پروردګاره. زه دې ستا مخلوق کښې دَ ټولو نه زيات بدبخت جوړنشم بيا به هغه سړې دُعاء کوي، تر دې چه اللّٰه پاک به ورته اوخاندي، نو هغه ته به حکم ورکړي، چه، جنت کښې داخل شه. څه وخت، چه جنت کښې داخل شي، نو اللّٰه تعالٰي به هغه ته فرمائي، څه خواهش اوکړه. نو هغه به خپل رب ته خواست کوي، او ارزو به کوي، تر دې چه الله تعالٰه به هغه ته وریاد کړي، او، ورته به فرمائي چه فلاني فلاني څيزونه اوغوړه، تر دې چه د هغه ټول ارمانونه به ئې پوره شي، نو اللّٰه پاک به ورته فرمائي چه دا څه تا اوغوښتل، تاله در کړې شو.

سَعِيْدِ الْخُدْرِيُّ مَعَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ لَا يُرَدُّ اِلَيْهِ مِنْ حَدِيْثِهِ شَيْئًا حَتّٰى اِذَا حَدَّثَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى قَالَ ذٰلِكَ لَكَ وَ مِثْلُهُ مَعَهُ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيُّ وَ عَشَرَةُ اَمْثَالِهِ مَعَهُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ مَا حَفِظْتُ اِلَّا قَوْلَهُ ذٰلِكَ لَكَ وَ مِثْلُهُ مَعَهُ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيُّ اَشْهَدُ اَنِّيْ حَفِظْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْلَهُ ذٰلِكَ لَكَ وَ عَشَرَةُ اَمْثَالِهِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَذٰلِكَ الرَّجُلُ اٰخِرُ اَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُوْلًا الْجَنَّةَ.

او د دې برابر نور هم. عطاء بن يزيد اووې، ابو سعيد خدري رضي الله عنه، ابو هريره رضي الله عنه سره هغه وخت موجود وو. د هغه د حديث څه حصې باندې نې اعتراض اونه که، تر دې چه ابو هريره رضي الله عنه بيان اوکه، الله پاک اوفرمائيل ذٰلِکَ لَکَ وَ مِثْلُهُ مَعَهُ: (دا، واخله او دومره نور هم) نو ابو سعيد خدري رضي الله عنه اووې، اے ابو هريرهؓ و عشرة امثاله معهٗ (او د دې لس (۱۰) چنده نور هم) حضور صلّي الله عليه وسلّم فرمائيلي وو. ابو هريره رضي الله عنه اووې، ما د حضور صلّي الله عليه وسلّم قول: "ذٰلِکَ لَکَ و مثله معه" ياد کړے دې. ابو سعيد خدري رضي الله عنه اووې، زه ګواهي کوم، چه ما د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه: ذٰلِکَ لَکَ و عشرة امثاله: ياد کړې دې ابو هريرهؓ اووې، دا سړے به اهلِ جنت کښې د ټولو نه آخر کښې جنت کښې داخليدونکے وي.

۷۰۹۱ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ هِلَالٍ عَنْ زَيْدٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ نَرٰى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ هَلْ تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَةِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ اِذَا كَانَتْ صَحْوًا قُلْنَا لَا قَالَ فَاِنَّكُمْ لَا تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ يَوْمَئِذٍ اِلَّا كَمَا

۷۰۹۱ : يحيٰي بن بکير، ليث، خالد بن يزيد، سعيد بن ابي هلال، زيد، عطاء بن يسار، ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. ډ هغه بيان دې. مونږ عرض اوکه، يا رسول اللّٰه، آيا مونږ خلق به خپل پروردګار د قيامت په ورځ ليدې شو. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا تاسو، ته د، نمر او سپوږمئ په ليدو کښې هر کله چه آسمان صاف وي، څه تکليف وي مونږ اووې، نه. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. په دغه ورځ به تاسو ته ډ خپل پروردګار په ليدو کښې دومره تکليف وي، څومره چه د دې دواړو (يعني نمر او سپوږمئ) په ليدو کښې وي. بيا حضور صلّي الله عليه

تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَتِهِمَا ثُمَّ قَالَ
يُنَادِيْ مُنَادٍ لِيَذْهَبْ كُلُّ قَوْمٍ اِلٰى
مَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ فَيَذْهَبُ
اَصْحٰبُ الصَّلِيْبِ مَعَ
صَلِيْبِهِمْ وَ اَصْحَابُ الْاَوْثَانِ
مَعَ اَوْثَانِهِمْ وَ اَصْحَابُ كُلِّ
اٰلِهَةٍ مَّعَ اٰلِهَتِهِمْ حَتّٰى يَبْقٰى
مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ مِنْ بَرٍّ اَوْ
فَاجِرٍ وَّ غُبَّرَاتٌ مِنْ اَهْلِ
الْكِتَابِ ثُمَّ يُؤْتٰى بِجَهَنَّمَ
تُعْرَضُ كَاَنَّهَا سَرَابٌ فَيُقَالُ
لِلْيَهُوْدِ مَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ
قَالُوْا كُنَّا نَعْبُدُ عُزَيْزَ بْنَ اللّٰهِ
فَيُقَالُ كَذَبْتُمْ لَمْ يَكُنْ لِلّٰهِ
صَاحِبَةٌ وَّ لَا وَلَدٌ فَمَا تُرِيْدُوْنَ
قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ تَسْقِيَنَا فَيُقَالُ
اَشْرَبُوْا فَيَتَسَاقَطُوْنَ فِيْ جَهَنَّمَ
ثُمَّ يُقَالُ لِلنَّصَارٰى مَا كُنْتُمْ
تَعْبُدُوْنَ فَيَقُوْلُوْنَ كُنَّا نَعْبُدُ
الْمَسِيْحَ ابْنَ اللّٰهِ فَيُقَالُ
كَذَبْتُمْ لَمْ يَكُنْ لِلّٰهِ صَاحِبَةٌ وَّ
لَا وَلَدٌ فَمَا تُرِيْدُوْنَ فَيَقُوْلُوْنَ
نُرِيْدُ اَنْ تَسْقِيَنَا فَيُقَالُ
اِشْرَبُوْا فَيَتَسَاقَطُوْنَ حَتّٰى
يَبْقٰى مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ مِنْ
بَرٍّ اَوْ فَاجِرٍ فَيُقَالُ لَهُمْ مَا

وسلم اوفرمائيل' يو آواز كونكے به آواز اوكړي' د' هر
جماعت خلق دے هغوي طرف ته لاړ شي' چه ذَ هغوئ به
ئے عبادت كولو صليب واله دے صليب سره' او د بتانو
عبادت كونكي دے خپلو بتانو سره او هر معبود واله به
خپلو معبودانو سره وي تر دے چه هغه خلق به پاتے شي'
چه د' اللّٰه عبادت ئے كولو' خواه هغه نيكوكار وي يا
بدكار. او د' اهل كتابو به هم باقيمانده خلق وي. بيا به
دوزخ د هغوي مخكښ پيش كړے شي' چه د سراب په
شان به په نظر راځي. يهودو نه به تپوس اوشي' تاسو' د
څه څيز عبادت كولو' هغوئ به وائي' د عزيز ابن اللّٰه
عبادت به مو' كولو. هغوي ته به اوونيلے شي' تاسو
دروغ اووے' د اللّٰه نه څه ښځه شته' او نه څه اولاد. اوس
تاسو څه غواړئے' هغوي به وائي' مونږ غواړو' چه مونږ
باندے اوبه اوڅكولے شي. او' به وئيلے شي' اوڅكئے.
بيا به هغوي دوزخ كښ اوغرځيږي' بيا به نصارٰي نه
تپوس اوشي' چه تاسو د چا عبادت كولو. جواب به
وركړي' د' مسيح ابن اللّٰه عبادت به مو كولو' ورته او' به
وئيلے شي' تاسو دروغ اووے' د' اللّٰه نه ښځه شته او نه
اولاد. اوس تاسو څه غواړئے' هغوئ به وائي' مونږ غواړو
چه اُوبه اوڅكو. او' به وئيلے شي' اوڅكئے بيا به هغوئ
دوزخ اوغرځيږي' تر دے چه هغه خلق به باقي پاتے شي'
چه د' اللّٰه عبادت به ئے كولو' خواه هغه نيكوكار' وي يا'
بدكار. هغوئ ته به اوونيلے شي' نور خلق خو' لاړل'
تاسو څه څيز دلته ايسار كړي يئے. هغوئ به وائي. مونږ
دوي نه هغه وخت جُدا شوے وو ... كله چه مونږ ته ذ
هغوئ زيات ضرورت وو. او مونږ د ... اعلان كونكي نه

يَحْبِسُكُمْ وَقَدْ ذَهَبَ النَّاسُ
فَيَقُولُونَ فَارَقْنَاهُمْ وَنَحْنُ
أَحْوَجُ مِنَّا إِلَيْهِ الْيَوْمَ وَإِنَّا
سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِيَلْحَقْ
كُلُّ قَوْمٍ بِمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ
وَإِنَّمَا نَنْتَظِرُ رَبَّنَا قَالَ فَيَأْتِيهِمُ
الْجَبَّارُ فِي صُورَةٍ غَيْرَ
صُورَتِهِ الَّتِي رَأَوْهُ فِيهَا
أَوَّلَ مَرَّةٍ فَيَقُولُ أَنَا رَبُّكُمْ
فَيَقُولُونَ أَنْتَ رَبُّنَا وَلَا
يُكَلِّمُهُ إِلَّا الْأَنْبِيَاءُ فَيَقُولُ
هَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ آيَةٌ
تَعْرِفُونَهُ فَيَقُولُونَ السَّاقُ
فَيَكْشِفُ عَنْ سَاقِهِ فَيَسْجُدُ
لَهُ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَيَبْقَى مَنْ
كَانَ يَسْجُدُ لِلَّهِ رِيَاءً وَ
سُمْعَةً فَيَذْهَبُ كَيْمَا يَسْجُدَ
فَيَعُودُ ظَهْرُهُ طَبَقًا وَاحِدًا
ثُمَّ يُؤْتَى بِالْجَسْرِ فَيُجْعَلُ
بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ قُلْنَا يَا
رَسُولَ اللَّهِ وَمَا الْجَسْرُ قَالَ
مَدْحَضَةٌ مَزِلَّةٌ عَلَيْهِ
خَطَاطِيفُ وَكَلَالِيبُ وَ
حَسَكَةٌ مُفَلْطَحَةٌ لَهَا شَوْكَةٌ
عُقَيْفَاءُ تَكُونُ بِنَجْدٍ يُقَالُ
لَهَا السَّعْدَانُ الْمُؤْمِنُ عَلَيْهَا

واوريدل، چه د، هر جماعت خلق دے هغے سره شي، چه
د هغوئ عبادت ئے كولو. او مونږ د خپل رب انتظار
كوو. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله به ذ
هغوي مخكښې د هغې صورت نه علاوه صورت كښې
راشي، چه هغې كښې به ئے په ورمبني ځل ليدلے وي الله
پاک به ورته فرمائي، زه ستاسو رب يم. هغوئ به وائي،
ته خمونږ رب ئے. په هغه ورځ به د، انبياؤ نه سوا
هيڅوک خبره نشي كولے. الله پاک به فرمائي، آيا
تاسو ته د هغه څه نښه معلومه ده، چه هغې سره تاسو هغه
پيژندے شئے. هغوئ به وائي، هغه پنډئ (پنډلی) ده، الله
تعالي به خپله پنډئ پرانزي، ذهغے ليدو سره به هر مؤمن
په سجده پريوځي. او هغه خلق به پاتے شي، چه د، ريا او
شهرت په غرض ئے الله ته سجده كوله. هغوئ به
غواړي، چه سجده اوكړي، ليكن د هغوئ شاگانے به د،
يوے تختے په شان شي، بيا به پُل صراط راوستے شي، او
د جهنم په شا، به كيښودے شي. مونږ اووے، يا رسول
الله، پُل صراط څه څيز دے. حضور صلّي الله عليه
وسلّم اوفرمائيل، د خويدو او غرځيدو ځائے، په هغې
آزغي او كنډے (کنډ) دي. او پلن آزغن تارونه دي. او
داسے كاږه آزغي دي، څنگه چه نجد كښې وي. هغې ته
سعدان وائي. مؤمنان به په دے د سترگے رپ كښې، د
بجلۍ، هَوا، تيز رفتاره آس او سورلو پشان تير شي. دوي
كښې به بعضے خو صحيح سلامت تير شي، او بعضے به
داسے حال كښې نجات بيامومي، چه د هغوئ اعضاء به د
جهنم اور سره سوزيدلے وي، تر دے چه ذ هغوئ اخري
سرے به راښكلو سره راوخي، تاسو مانه د حق مطالبه

كَالطَّرْفِ وَ كَالْبَرْقِ وَ كَالرِّيْحِ وَ كَاَجَاوِيْدِ الْخَيْلِ وَالرِّكَابِ فَنَاجٍ مُّسَلَّمٌ وَ نَاجٍ مَّخْدُوْشٌ وَ مَكْدُوْسٌ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ حَتّٰى يَمُرَّ اٰخِرُهُمْ يُسْحَبُ سَحْبًا فَمَا اَنْتُمْ بِاَشَدَّ لِيْ مُنَاشَدَةً فِي الْحَقِّ قَدْ تَبَيَّنَ لَكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِ يَوْمَئِذٍ لِلْجَبَّارِ وَ اِذَا رَاَوْ اَنَّهُمْ قَدْ نَجَوْا فِيْ اِخْوَانِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اِخْوَانُنَا كَانُوْا يُصَلُّوْنَ مَعَنَا وَ يَصُوْمُوْنَ مَعَنَا وَ يَعْمَلُوْنَ مَعَنَا فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى اِذْهَبُوْ فَمَنْ وَّجَدْتُمْ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالَ دِيْنَارٍ مِّنْ اِيْمَانٍ فَاَخْرِجُوْهُ وَ يُحَرِّمُ اللّٰهُ صُوَرَهُمْ عَلَى النَّارِ فَيَاْتُوْنَهُمْ وَ بَعْضُهُمْ قَدْ غَابَ فِي النَّارِ اِلٰى قَدَمِهٖ وَ اِلٰى اَنْصَافِ سَاقَيْهِ فَيُخْرِجُوْنَ مَنْ عَرَفُوْا ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ فَيَقُوْلُ اذْهَبُوْا فَمَنْ وَّجَدْتُمْ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالَ نِصْفِ دِيْنَارٍ فَاَخْرِجُوْهُ فَيُخْرِجُوْنَ مَنْ عَرَفُوْا ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ فَيَقُوْلُ اذْهَبُوْا فَمَنْ

كبښ' چه ستاسو د پاره ظاهر شوے دے' نن دومره سخت نه ئے' څومره چه مؤمن به په هغه ورځ د خدائے نه كوي' هر كله چه هغه خلق اووينې' چه د خپلو وروڼړو (جماعت) نه هغوئ ته نجات حاصل شوے دے' نو وائي به' اے خمونږ ربه' دا خمونږ وروڼړه دي' چه مونږ سره به ئے مونځونه كول' روژے به ئے نيولے. او مونږ سره به ئے كار كولو' نو اللّٰه پاک به فرمائي' ځئے' د چا زړه كبښ چه' يو دينار برابر ايمان بياموئے' هغه د' دوزخ نه راوكاږئے' او اللّٰه تعالي به دَ هغوئ صورتونه په اُور حرام كړي' نو هغه خلق به هغوئ له راشي' داسے حال كبښ چه بعضے خلق به د قدم پورے اونيمے پنډئ پورے اُور كبښ ډوب وي' چه كوم پيژني' هغه به د' دوزخ نه راوكاږي. بيا به دوباره راشي' نو اللّٰه پاک به فرمائي لاړشئے او د چا زړه كبښ چه د نيم دينار برابر ايمان بياموئے هغه د' دوزخ نه راوكاږئے. څوک چه پيژني هغه به راوكاږي. بيا به واپس راشي' اللّٰه پاک به فرمائي' لاړشئے' د چا زړه كبښ چه ذره قدرے ايمان بياموے' هغه راوكاږئے. نو څوک چه پيژني' هغه به راوكاږي. ابو سعيد اووے. كه تاسو ما رېښتنے نه ګڼړئے' نو دا آيت اولولئے: چه اللّٰه تعالي به يو ذره برابر كمي اونه كړي. او كه نيكي اوكړي' نو هغه به څو چنده كړي. نو هر كله چه نبي' فرېښتے او ايماندار سفارش اوكړي' نو اللّٰه تعالي به فرمائي' خما شفاعت لا باقي پاتے شوے دے او د جهنم نه به يو موټے ډک كړي' داسے خلق به راوكاږي' چه سكارۀ شوے به وي بيا به هغه خلق يو نهر كبښ چه د جنت په سر' دے' او هغے ته آبِ حيات وئيلے شي'

وَجَدْتُّمْ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ مِنْ اِيْمَانٍ فَاَخْرِجُوْهُ فَيُخْرِجُوْنَ مَنْ عَرَفُوْا قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ فَاِنْ لَمْ تُصَدِّقُوْنِيْ فَاقْرَؤُوْا اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ وَّ اِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضَاعِفْهَا فَيَشْفَعُ النَّبِيُّوْنَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ فَيَقُوْلُ الْجَبَّارُ بَقِيَتْ شَفَاعَتِيْ فَيَقْبِضُ قَبْضَةً مِّنَ النَّارِ فَيُخْرِجُ اَقْوَامًا قَدِ امْتُحِشُوْا فَيُلْقَوْنَ فِيْ نَهْرٍ بِاَفْوَاهِ الْجَنَّةِ يُقَالُ لَهٗ مَآءُ الْحَيٰوةِ فَيَنْبُتُوْنَ فِيْ حَافَّتَيْهِ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِيْ حَمِيْلِ السَّيْلِ قَدْ رَاَيْتُمُوْهَا اِلٰى جَانِبِ الصَّخْرَةِ اِلٰى جَانِبِ الشَّجَرَةِ فَمَا كَانَ اِلَى الشَّمْسِ مِنْهَا كَانَ اَخْضَرَ وَمَا كَانَ مِنْهَا اِلَى الظِّلِّ كَانَ اَبْيَضَ فَيَخْرُجُوْنَ كَاَنَّهُمُ اللُّؤْلُؤُ فَيُجْعَلُ فِيْ رِقَابِهِمُ الْخَوَاتِيْمُ فَيَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ فَيَقُوْلُ اَهْلُ الْجَنَّةِ هٰٓؤُلَآءِ عُتَقَآءُ الرَّحْمٰنِ اَدْخَلَهُمُ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ عَمَلٍ عَمِلُوْهُ وَلَا خَيْرٍ قَدَّمُوْهُ فَيُقَالُ لَهُمْ لَكُمْ مَّا

واچولے شي، نو دا خلق به داسے تروتازه شي، څنګه چه دانه، د، اوبو د بهيدو په ځائے زرغنيږي، چه هغه تا اونے يا کانړي سره ليدلے وي، چه نمر طرف ته وي، هغه شين (سبز) وي، او، چه سوري طرف ته وي، هغه سپين وي، هغه خلق به د موتي په شان پرقيدونکے راوځي د هغوي په کردنونو به مهرونه اولږولے شي. بيا به هغوي جنت کښ داخل شي، نو جنت واله به وائي، دا خلق د خدائے آزاد کرده دي، هغوئ الله تعالىٰ بغير دَ څه عمل او نيک کار نه جنت کښ داخل کړي دي. بيا به هغې خلقو ته اووئيلے شي، چه څه تاسو اوليدل، دومره نور هم ستاسو دي. او حجاج بن منهال په واسطه دَ، همام بن يحيٰي، قتاده، حضرت انس رضي الله عنه نه نقل اوکه، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د قيامت په ورځ به مؤمنان ايسار کړے شي، تر دے چه هغوئ به د دے په سبب غمگين شي، نو وائي به، چه مونږ خپل پروردګار ته سفارش اوکړو، چه دے ځائے نه مونږ نجات بيامومو، نو دا خلق به حضرت آدم عليه السّلام له راشي، اووائي به تاسو آدم. دَ خلقو پلار، ئے. الله تعالىٰ، تاسو خپل لاس سره پيدا کړے ئے، او تاسو له ئے جنت کښ ځائے درکه. او فريښتو بانديے ئے تاسو ته سجده کړے ده تاسوته ئے دَ ټولو څيزونو، نومونه او ښودل، نو تاسو خپل رب ته مونږ د پاره سفارش اوکړئ، چه مونږ د دے ځائے نه خلاص شو. حضرت آدم عليه السّلام به جواب ورکړي، زه نن د دے لائق نه يم، او هغه غلطي به رايادوه کړي، چه هغه نه شوے وه، يعني د هغے اونے (د ميوے) خوړل، چه د هغے نه منع کړے شوے وو. او وائي به،

رَأَيْتُمْ وَ مِثْلُهُ وَ مَعَهُ وَ قَالَ حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُحْبَسُ الْمُؤْمِنُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حَتّٰى يُهِمُّوْا بِذٰلِكَ فَيَقُوْلُوْنَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا إِلٰى رَبِّنَا فَيُرِيْحُنَا مِنْ مَكَانِنَا فَيَأْتُوْنَ اٰدَمَ فَيَقُوْلُوْنَ أَنْتَ اٰدَمُ أَبُو النَّاسِ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ وَ أَسْكَنَكَ جَنَّتَهُ وَ أَسْجَدَ لَكَ مَلٰٓئِكَتَهُ وَ عَلَّمَكَ أَسْمَآءَ كُلِّ شَيْءٍ لِتَشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّكَ حَتّٰى يُرِيْحَنَا مِنْ مَكَانِنَا هٰذَا قَالَ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ قَالَ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهُ الَّتِيْ أَصَابَ أَكْلَهُ مِنَ الشَّجَرَةِ وَ قَدْ نُهِيَ عَنْهَا وَ لٰكِنِ ائْتُوْا نُوْحًا أَوَّلَ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللّٰهُ إِلٰى أَهْلِ الْأَرْضِ فَيَأْتُوْنَ نُوْحًا فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهُ الَّتِيْ أَصَابَ سُؤَالَهُ رَبَّهُ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّ لٰكِنِ ائْتُوْا إِبْرَاهِيْمَ خَلِيْلَ الرَّحْمٰنِ قَالَ فَيَأْتُوْنَ إِبْرَاهِيْمَ فَيَقُوْلُ إِنِّيْ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ ثَلَاثَ كَلِمَاتٍ كَذَبَهُنَّ وَ لٰكِنِ ائْتُوْا مُوْسٰى عَبْدًا

تاسو حضرت نوح عليه السّلام له ورشئ' هغه ورمبنئ نبي وو' چه اللّٰه پاک د ټولو نه مخکښ زمکے والو ته راليږلے وو نو دا خلق به حضرت نوح عليه السّلام له ورشي' هغه به ورته وائي' زه نن د دے قابل نه يم' او خپله هغه غلطي به ياده کړي. چه هغه نه شوے وه' يعني خپل رب ته بغير د علم نه سوال کول (بيا به وائي) ليکن تاسو خلق حضرت ابراهيم عليه السّلام له ورشئ' هغه خلق به حضرت ابراهيم عليه السّلام ورشي' هغه به جواب ورکړي زه نن د دے لائق نه يم' او خپلے درے خبرے به يادے کړي' چه هغه کړے وے ليکن تاسو حضرت موسٰي عليه السّلام له ورشئ هغه داسے بنده دے' چه اللّٰه تعالٰي تورات ورکړے دے' او هغه سره ئے خبرے کړے دي. هغه ئے نزدے که' او غوږ کښ ئے ورسره خبرے اوکړے هغه به جواب ورکړي' نن زه د دے قابل نه يم' او د يو نفس د قتل به ياد کړي' وائي به' تاسو حضرت عيسٰي عليه السّلام له ورشے' چه د اللّٰه تعالٰي بنده او د هغه رسول دے' او دَ اللّٰه تعالٰي روح او د هغه کلمه دے. خلق به حضرت عيسٰي عليه السّلام له ورشي. هغه به جواب ورکړي. زه نن د دے قابل نه يم' تاسو حضرت محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم له ورشئ' هغه يو داسے بنده دے' چه اللّٰه تعالٰي د هغه مخکني ورستني ګناهونه معاف کړے دي' (حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي) هغه خلق به ماله راشي' او زه به د خپل رب نه د هغه په کور کښ د' داخليدو اجازت اوغواړم' ماته به اجازت راکړے شي' چه زه هغه اووينم' نو سجده کښ به اوغورځيږم' څومره چه اللّٰه تعالٰي ته

آتَاهُ اللّٰهُ التَّوْرَاةَ وَ كَلَّمَهُ وَ قَرَّبَهُ نَجِيًّا
قَالَ فَيَأْتُوْنَ مُوْسٰى فَيَقُوْلُ إِنِّيْ لَسْتُ
هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ خَطِيْئَتَهُ الَّتِيْ أَصَابَ
قَتْلَهُ النَّفْسَ وَ لٰكِنِ ائْتُوْا عِيْسٰى
عَبْدَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلَهُ وَ رُوْحَ اللّٰهِ وَ
كَلِمَتَهُ قَالَ فَيَأْتُوْنَ عِيْسٰى فَيَقُوْلُ
لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ لٰكِنِ ائْتُوْا مُحَمَّدًا
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدًا غَفَرَ
اللّٰهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَ مَا تَأَخَّرَ
فَيَأْتُوْنِيْ فَأَسْتَأْذِنُ عَلٰى رَبِّيْ فِيْ دَارِهٖ
فَيُؤْذَنُ لِيْ عَلَيْهِ فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ
سَاجِدًا فَيَدَعُنِيْ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ
يَدَعَنِيْ فَيَقُوْلُ ارْفَعْ مُحَمَّدُ وَ قُلْ
يُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَ سَلْ تُعْطَ قَالَ
فَأَرْفَعُ رَأْسِيْ فَأُثْنِيْ عَلٰى رَبِّيْ بِثَنَاءٍ
وَ تَحْمِيْدٍ يُعَلِّمُنِيْهِ فَيَحُدُّ لِيْ حَدًّا
فَأَخْرُجُ فَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ قَالَ قَتَادَةُ وَ
سَمِعْتُهُ أَيْضًا يَقُوْلُ فَأَخْرُجُ فَأُخْرِجُهُمْ
مِنَ النَّارِ وَ أُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ أَعُوْدُ
فَأَسْتَأْذِنُ عَلٰى رَبِّيْ فِيْ دَارِهٖ فَيُؤْذَنُ
لِيْ عَلَيْهِ فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا
فَيَدَعُنِيْ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَدَعَنِيْ ثُمَّ
يَقُوْلُ ارْفَعْ مُحَمَّدُ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَاشْفَعْ
تُشَفَّعْ وَ سَلْ تُعْطَ قَالَ فَأَرْفَعُ رَأْسِيْ
فَأُثْنِيْ عَلٰى رَبِّيْ بِثَنَاءٍ وَّ تَحْمِيْدٍ
يُعَلِّمُنِيْهِ قَالَ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِيْ حَدًّا

منظوره وي، ما به دے حال کښې پرېږدي، بیا به فرمائي محمد صلّي الله علیه وسلّم سر اُوچت کړه. او، وایه، آورېدے به شي. شفاعت کوه، قبلیږي به، اوغواړه، درکولے به شي. حضور صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، زه به خپل سر اوچت کړم، او د خپل رب حمد و ثنا به او کړم، چه الله به ئے ماته اوښائي. بیا به ما د پاره یو حد مقرر کړے شي. زه به لاړشم، هغه خلق به جنت کښې داخل کړم. او قتاده اووے. ما د، انس رضي الله عنه نه دا هم واورېدل، چه زه به لاړشم، هغوي به د، دوزخ نه راوکاږم. او جنت کښې به ئے داخل کړم. بیا به واپس راشم، او د، الله کور کښې به د، داخلے اجازت اوغواړم. ماته به اجازت راکړے شي، چه زه هغه اووینم، نو زه به په سجده پرېوځم. څومره وخته پورے چه الله تعالٰي ته منظوره وي. ما به په دے حال پرېږدي. بیا به فرمائي اے محمده، سر، اوچت کړه. وایه، آورېدے به شي. شفاعت کوه، قبلیږي به. غواړه درکولے به شي. حضور صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل زه به سر، اوچت کړم، او د خپل رب حمد و ثناء به کوم، چه هغه به ئے ماته اُوښائي. حضور صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. بیا به زه شفاعت کوم، او، ما د پاره به یو حد مقرر کړے شي. نو زه به لاړشم، هغوئ به جنت کښې داخل کړم. قتاده رضي الله عنه اووے. ما د انس رضي الله عنه نه واورېدل، چه زه به لاړشم، هغوي به د، دوزخ نه راوکاږم. او جنت کښې به ئے داخل کړم. بیا به په درېم ځل واپس راشم، او د خپل رب نه به د هغه کور کښې د، داخلېدو اجازت اوغواړم، ماته به اجازت راکړے شي هر کله چه زه هغه اووینم، نو

فَأُخْرِجُ فَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ قَالَ قَتَادَةُ وَ سَمِعْتُهُ اَيْضًا يَقُوْلُ فَاَخْرُجُ فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَ اُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ اَعُوْدُ الثَّالِثَةَ فَاَسْتَاْذِنُ عَلٰى رَبِّيْ فِيْ دَارِهٖ فَيُؤْذَنُ لِيْ عَلَيْهِ فَاِذَا رَاَيْتُهٗ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِيْ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّدَعَنِيْ ثُمَّ يَقُوْلُ ارْفَعْ مُحَمَّدُ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَ سَلْ تُعْطَهْ قَالَ فَاَرْفَعُ رَاْسِيْ فَاُثْنِيْ عَلٰى رَبِّيْ بِثَنَاءٍ وَّ تَحْمِيْدٍ يُعَلِّمُنِيْهِ قَالَ ثُمَّ اَشْفَعُ فَيَحُدُّلِيْ حَدًّا فَاَخْرُجُ فَاُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ قَالَ قَتَادَةُ وَ قَدْ سَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ فَاَخْرُجُ فَاُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَ اُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ حَتّٰى مَا يَبْقٰى فِي النَّارِ اِلَّا مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْاٰنُ اَيْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُوْدُ قَالَ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْاٰيَةَ عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا قَالَ هٰذَا الْمَقَامُ الْمَحْمُوْدُ الَّذِيْ وُعِدَهٗ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

زه بـه ورته په سجده پريوځم. او څو پورے چه الله تعالٰي تـه منظوره وي، مابه په دے حال پريږدي. بيا به فرمائي، اے محمد صلّي الله عليه وسلّم سر اوچت کړه، وايه، اوريدلے به شي، سفارش کوه، قبليږي به. غواړه، درکولے به شي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زه به سر اوچت کړم، او د خپل رب حمد و ثناء به کوم، چه ماته به اوښودلے شي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل بيا به زه شفاعت کوم، نو ما د پاره يو حد مقرر کړے شي، زه به لاړشم، هغوي به جنت کښې داخل کړم، قتادهؒ اووے، ما د انسؓ نه واوريدل، چه زه به هغوئ د دوزخ نه راوکاږم، جنت کښې به ئے داخل کړم، تر دے چه دوزخ کښې به هيڅوک باقي پاتے نشي، ماسوا، د هغوئ نه چه قرآن ايسار کړے وي، يعني د قرآن د، رو، نه چا بانديے چه دوزخ کښې هميشه اوسيدل واجب دي، د، انسؓ بيان دے. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم دا، آيت تلاوت کړلو: عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا: اووے فرمائيل. دا هغه مقام محمود دے، چه د هغے ستاسو نبي صلّي الله عليه وسلّم سره وعده شوے ده. (مقامِ محمود: د شفاعت مقام).

**١٠٩٨ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنِيْ عَمِّيْ حَدَّثَنَا اَبِيْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَ اِلَى الْاَنْصَارِ فَجَمَعَهُمْ فِيْ قُبَّةٍ وَ قَالَ لَهُمُ اصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوُا اللّٰهَ وَ**

**١٠٩٨** : عبيد الله بن سعد بن ابراهيم، د عبيد الله تره (يعقوب بن ابراهيم) د خپل پلار نه، هغه د، صالح، نه، هغه د، ابن شهاب نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. ماته انس بـه مالکؓ اووے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم انصار، راوغښتل او هغوئ ئے په يو خيمه کښې جمع کړل. او هغے خلقو ته ئے اوفرمائيل، تاسو صبر کوئے تر دے چه الله او د هغه رسول سره يو ځائے

رَسُوْلَهُ فَلِيَ عَلَى الْحَوْضِ.

١٠٩٩: حَدَّثَنِيْ ثَابِتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ سُلَيْمَانَ الْاَحْوَلِ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا تَهَجَّدَ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَ مَنْ فِيْهِنَّ وَ لَكَ الْحَمْدُ اَنْتَ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَ مَنْ فِيْهِنَّ اَنْتَ الْحَقُّ وَ قَوْلُكَ الْحَقُّ وَ وَعْدُكَ الْحَقُّ وَ لِقَآؤُكَ الْحَقُّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ اَللّٰهُمَّ لَكَ اَسْلَمْتُ وَ بِكَ اٰمَنْتُ وَ عَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَ اِلَيْكَ خَاصَمْتُ وَ بِكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَ مَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَ مَآ اَعْلَنْتُ وَ مَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَيْسُ بْنُ سَعْدٍ وَّ اَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ طَاوُسٍ قَيَّامُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَلْقَيُّوْمُ الْقَآئِمُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَ قَرَاَ عُمَرُ الْقَيَّامُ وَ كِلَاهُمَا مَدْحٌ.

شئے. زه به په حوض يم.

١٠٩٩: ثابت بن محمد، سفيان، ابن جريج، سليمان احول، طاوس، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه دَ شپے د تهجد مونځ كولو. نو فرمائيل به ئې، اے اللّٰه، څمونږ ربه، تالره تعريف دے، ته آسمانونه او زمكه قائم ساتونكے ئې. تالره تعريف دے، ته د، آسمانونو او زمكے، او څه چه دے كښې دي (د دے ټولو) رب ئې. تالره تعريف دے ته د، اسمانونو او زمكے نُور ئې، او څه چه دے كښې دي (د ټولو) ته ئې، ستا خبره حق ده ستا وعده حق ده او، ستا ملاقات حق دے. اے اللّٰه، ما ستا د پاره اسلام راوړلو، او په تا م ايمان راوړلو. او په تا م توكلّ اوكه، تا پلے خپله جګړه راوړم، او تا نه فيصله غواړم، ته څما مخكي، ورستي، پټ، ظاهر ګناهونه، او هغه (ګناه) چه ته ئې څما نه زياته پيژنې (تولې) راته اوبښے ستا نه سِوا هيڅوك معبود نشته. امام بخاريّ اووے، قيس بن سعد او ابو الزبير، طاؤس نه د "قيم" په ځائے د "قيام" لفظ بيان كه. او مجاهد اووے، د "قيوم" معنٰي هر څيز قائم ساتونكے دے. او حضرت عمر رضي اللّٰه عنه د "الحيّ القيوم" په ځائے "قيام" اولوستو. او دواړه الفاظ د مدح دي.

١١٠٠: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنِيْ الْاَعْمَشُ عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ

١١٠٠: يُوسف بن موسٰي، ابو اسامه، اعمش، خيثمه، عدي بن حاتم نه روايت كوي. د هغه بيان دے رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو كښې

حَاتِمٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اِلَّا سَيُكَلِّمُهُ رَبُّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهُ تَرْجُمَانٌ وَّ لَا حِجَابٌ يَحْجُبُهُ.

هیڅوک نشته، خو عنقریب هغه سره به د هغه پروردګار خبرې اوکړي داسې حال کښې، چه د هغه او د پروردګار مینځ کښې به هیڅ ترجمان نه وي، او نه به څه پرده حائله وي.

۱۱۰۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ اٰنِيَتُهُمَا وَ مَا فِيْهِمَا وَ جَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ اٰنِيَتُهُمَا وَ مَا فِيْهِمَا وَ مَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَ بَيْنَ اَنْ يَّنْظُرُوْا اِلٰی رَبِّهِمْ اِلَّا رِدَآءُ الْكِبْرِ عَلٰی وَجْهِهٖ فِيْ جَنَّةِ عَدْنٍ.

۱۱۰۱ : علي بن عبد الله، عبد العزیز بن عبد الصمد، ابو عمران، ابو بکر بن عبد الله بن قیس د خپل پلار نه، هغه د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، دوه (۲) جنتونه به داسې وي، چه دَ هغې لوښي او ټول څیزونه به د چاندئ وي او دوه جنتونه به داسې وي، چه د هغې لوښي او ټول څیزونه به دَ، سرو زرو، وي. او د خلقو مینځ کښې او د دې امر مینځ کښې چه هغوي به خپل پروردګار، جنت عدن کښې اووینې، د، اللّٰه تعالٰي په مخ به د، لویئې د، څادر نه سوا هیڅ څیز حائل نه وي.

۱۱۰۲ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ اَعْيَنَ وَ جَامِعُ ابْنُ اَبِيْ رَاشِدٍ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اقْتَطَعَ مَالَ امْرِئٍ مُّسْلِمٍ بِيَمِيْنٍ كَاذِبَةٍ لَقِيَ اللّٰهَ وَ هُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ثُمَّ قَرَاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِصْدَاقَهُ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ جَلَّ ذِكْرُهُ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ اَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ

۱۱۰۲ : حمیدي، سفیان، عبد الملک بن اعین او جامع بن اعین او جامع بن ابي راشد، ابو وائل، حضرت عبد اللّٰه نه روایت کوي. د هغه بیان دې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل کوم سړي چه د، یو مسلمان مال په دروغه قسم خوړلو سره هضم که، نو هغه به اللّٰه تعالٰي سره په داسې حال کښې ملاؤ شي چه وربانديې به غضب ناک وي د، عبد اللّٰه بیان دې بیا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم د دې د تصدیق په طور د، اللّٰه بزرګ و برتر د کتاب (قرآن پاک) دا، آیت مبارک تلاوت کړلو: اِنَّ الّذین یشترون بعهد اللّٰه و ایمانهم ثمنًا قلیلًا اُولٰئک لا خلاق لهم فی الْاٰخرة وَ لَا یکلّمهمُ اللّٰهُ

وَ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ الْاٰيَةِ.

يوم القيامة: اخر پورې.

۷۱۰۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلٰثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ لَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ رَجُلٌ حَلَفَ عَلٰى سِلْعَةٍ لَقَدْ اُعْطِيَ بِهَا اَكْثَرَ مِمَّا اُعْطِيَ وَ هُوَ كَاذِبٌ وَ رَجُلٌ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ وَ رَجُلٌ مَنَعَ فَضْلَ مَآءٍ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ الْيَوْمَ اَمْنَعُكَ فَضْلِيْ كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَالَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ.

۷۱۰۳: عبد الله بن محمد، سفيان، عمرو، ابو صالح، حضرت ابو هريره رضي الله عنه، حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، د قيامت په ورځ به الله تعالیٰ درې سړو سره خبرې اونه کړي، او نه به هغوي طرف ته اوګوري، يو هغه سړے، چه هغه دَ خپل څه سامان متعلق قسم خوړلو سره اووے، چه هغه ته د دے نه زيات قيمت حاصلے دلو، خومره چه ده ورکه. او هغه دروغجن وي. دويم هغه چه هغه دَ مازيګر نه پس په دروغه قسم اوخوړ، د پاره د دے چه د، يو مسلمان مال هضم کړي، دريم هغه، چه هغه د، ضرورت نه زياتے اُوبه ايسارے کړے (بل چاته ئے ورنه کړے) نو الله پاک به د قيامت په ورځ فرمائي، چه نن زه تانه خپل فضل بندوم، څنګه چه تا د ضرورت نه زياتے اُوبه بندے کړے، چه ستا لاسونو نه وے جوړے کړے.

۷۱۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزَّمَانُ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلٰثٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذوا الْقَعْدَةِ وَ ذُو الْحَجَّةِ

۷۱۰۴: محمد بن مثنیٰ، عبد الوهاب، ايوب، محمد، ابن ابي بکرة، حضرت ابو بکره رضي الله عنه نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل زمانه په دے هيئت چکر کولو سره راغله، چه په هغه ورځ وه چه الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه پيدا کړل کال کښې دولس مياشتے وي، چه هغے کښې څلور، د حرام (عزت مياشتے) دي. درے، خو پرله پسے دي: ذي القعده، ذي الحجه، محرم او، رجب مضر، چه د جمادي الثاني او شعبان مينځ کښې ده (بيائے اوفرمائيل) دا کومه مياشت ده. مونږ اووے، الله او د هغه رسول ښه پوهيږي. حضور صلّي الله عليه وسلّم

وَالْمُحَرَّمُ وَ رَجَبُ مُضَرَ
الَّذِيْ بَيْنَ جُمَادٰى وَ شَعْبَانَ
اَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ
وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ وَ سَكَتَ
حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهٗ يُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ
اِسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ ذَا الْحَجَّةِ
قُلْنَا بَلٰى قَالَ اَيُّ بَلَدٍ هٰذَا
قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ
فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهٗ
سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِهٖ قَالَ
اَلَيْسَ الْبَلْدَةَ قُلْنَا بَلٰى قَالَ
فَاَيُّ يَوْمٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ
وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى
ظَنَنَّا اَنَّهٗ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ
اِسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ
قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَاِنَّ
دِمَآءَكُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ قَالَ
مُحَمَّدٌ وَّ اَحْسِبُهٗ قَالَ وَ
اَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ
كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ
بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ
هٰذَا وَ سَتَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ
فَيَسْأَلُكُمْ عَنْ اَعْمَالِكُمْ اَلَا فَلَا تَرْجِعُوْا
بَعْدِيْ ضُلَّالًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ
بَعْضٍ اَلَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَلَعَلَّ
بَعْضَ مَنْ يُبَلِّغُهٗ اَنْ يَكُوْنَ اَوْعٰى مِنْ

خاموش شولو. تر دې چه مونږ خيال اوكه. حضور صلّي
اللّٰه عليه وسلّم به د دې څه بل نوم كيږدي. حضور صلّي
اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا دا، د، ذالحجه مياشت نه
ده. مونږ اووې. جي. او. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم
اوفرمائيل، دا كوم ښار، دې. مونږ اووې، اللّٰه او د هغه
رسول ښه پوهيږي. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم
خاموش وو، تر دې چه مونږ خيال اوكه. چه حضور
صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د دې څه بل نوم كيږدي. حضور
صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا ښار (مكه) نه ده مونږ
اووې. جي. او. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل.
دا كومه ورځ ده. مونږ اووې اللّٰه او د هغه رسول ښه
پوهيږي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خاموش وو، حتي
چه مونږ خيال اوكه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به د
دې څه بل نوم كيږدي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم
اوفرمائيل، آيا د يوم نحر (د قربانۍ ورځ) نه ده. مونږ
اووې، جي، او. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل،
ستاسو نفسونه او ستاسو مال. او محمد (بن سيرين)
اووې، څما خيال دې، چه ابوبكر دا هم اووې، چه
ستاسو ابرو (عزت) په تاسو حرام دې، څنګه چه ستاسو،
دا، نن ورځ، ستاسو دې ښار كښې، ستاسو دې مياشت
كښې حرام ده. او عنقريب تاسو به خپل رب سره يو
ځائې كيږئ، هغه به تاسو نه ستاسو د، اعمالو متعلق
تپوس كوي. واورئ، مانه پس چه ګمراه نه شئ، چه د
يو بل ګردنونه وهئ. او، واورئ، حاضر دې غائب ته
اورسوي اُميد دې، چه چاته اورسولې شي، هغوي به
بعضې داسې وي، چه د بعضې آوريدنكو نه به زيات ياد

بَعْضِ مَنْ سَمِعَهُ فَكَانَ مُحَمَّدٌ إِذَا ذَكَرَهُ قَالَ صَدَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ.

نسالونکے وي. او محمد (ابن سيرين) چه دا بيانونو' نو ونيل ئے حضور صلّي الله عليه وسلّم رښتيا فرمائيلے وو. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' واورے ما (د حق پيغام) اورسولو. واورے. ما اورسولو.

## باب ٥٤٦: مَا جَاءَ فِيْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى إِنَّ رَحْمَةَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ.

## باب ٥٤٦: د' اللّٰه تعالي قول' بيشکه د' اللّٰه رحمت نيک خلقو ته نزدے دے.

١١٠٥: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ أَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ قَالَ كَانَ ابْنٌ لِّبَعْضِ بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِيْ فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ أَنْ يَّأْتِيَهَا فَأَرْسَلَ إِنَّ لِلّٰهِ مَا أَخَذَ وَلَهُ مَا أَعْطَى وَكُلٌّ إِلَى أَجَلٍ مُّسَمًّى فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ فَأَقْسَمَتْ عَلَيْهِ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقُمْتُ مَعَهُ وَمَعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَّأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَّعُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ فَلَمَّا دَخَلْنَا نَاوَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّبِيَّ وَنَفْسُهُ تَقَلْقَلُ فِيْ صَدْرِهٖ حَسِبْتُهُ قَالَ كَأَنَّهَا شَنَّةٌ فَبَكَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

١١٠٥: موسي بن اسماعيل' عبد الواحد' عاصم' ابو عثمان' حضرت اسامه رضي الله عنه نه روايت کوي' د هغه بيان دے د نبي صلّي الله عليه وسلّم د' يوے لور (ماشوم) خوئے مرگ ته قريب وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے خبر اوکه' چه تشريف راوړي. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته جواب کښ اوورے' څه چه اللّٰه واخستل' هغه د هغه وو. او څه چه هغه ورکړے وو' هغه هم د هغه وو. او دَ هر سړي يو وخت مقرر دے' نو پکار دي' چه صبر کوي. او د ثواب کار' دے خيال کړي' لور بي بي قسم ورکولو سره حضور صلّي الله عليه وسلّم ته خبر اوليږه' چه تشريف راوړي' نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اودريدلو او معاذ بن جبل' او' ابي بن کعب او عباده بن صامت هم حضور صلي الله عليه وسلّم سره اودريدل' کوم وخت چه مونږ خلق دننه ورغلو' نو خلقو هغه بچے رسول الله صلّي الله عليه وسلّم له ورکړلو' هغه وخت دَ هغه ساه د هغه په سينه کښ په وتلو وه. زه خيال کوم' چه شايد دا' بيان ئے هم اوکه' چه گويا هغه زوړ (پړانې) مشک دے' نو رسول اللّٰه صلّي الله عليه وسلّم په ژړا شو. سعد بن

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدُ ابْنُ عُبَادَةَ اَتَبْكِيْ فَقَالَ اِنَّمَا يَرْحَمُ اللّٰهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَآءَ.

عباده عرض اوکه، آیا تاسو هم ژاړې. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل الله تعالٰي په خپلو هغه بندیانو رحم کوي، چه هغوئ په نورو رحم کوي.

٦٠١١ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اخْتَصَمَتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ اِلٰى رَبِّهِمَا فَقَالَتِ الْجَنَّةُ يَا رَبِّ مَا لَهَا لَا يَدْخُلُهَا اِلَّا ضُعَفَآءُ النَّاسِ وَ سَقَطُهُمْ وَ قَالَتِ النَّارُ يَعْنِيْ اُوْثِرْتُ بِالْمُتَكَبِّرِيْنَ فَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِلْجَنَّةِ اَنْتِ رَحْمَتِيْ وَ قَالَ لِلنَّارِ اَنْتِ عَذَابِيْ اُصِيْبُ بِكِ مَنْ اَشَآءُ وَ لِكُلِّ وَّاحِدٍ مِّنْكُمَا مِلْؤُهَا قَالَ فَاَمَّا الْجَنَّةُ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِنْ خَلْقِهٖ اَحَدًا وَّ اِنَّهٗ يُنْشِئُ لِلنَّارِ مَنْ يَّشَآءُ فَيُلْقَوْنَ فِيْهَا فَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ ثَلٰثًا حَتّٰى يَضَعَ فِيْهَا قَدَمَهٗ فَتَمْتَلِئُ وَ يُرَدُّ بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ وَّ تَقُوْلُ قَطْ قَطْ قَطْ.

٦٠١١ : عبيد الله بن سعد بن ابراهيم، يعقوب، د يعقوب پلار (ابراهيم)، صَالح بن کيسان، اعرج، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه حضرت نه روايت کوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، جنت او دوزخ دواړه خپل رب سره په جګړه شو. جنت عرض اوکه. اے پروردګاره، د ده (جنت) څه حال دے. دے کښې به هغه خلق داخليږي، چه کمزورے او غريب وي. او، دوزخ عرض اوکه، زه تکبر کونکو د پاره مخصوص کړے شوے يم. اللّٰه تعالٰي جنت ته اوفرمائيل، ته څما رحمت ئې. او دوزخ ته ئې اوفرمائيل، ته څما عذاب ئې، زه به ستا په ذريعه هغے چاته عذاب ورکوم، چه څوک غوارم، او تاسو دواړو کښې به هر يو ډک کړے شي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، جنت خو، دا شان، چه اللّٰه تعالٰي خپل مخلوق کښې په هيڅا ظلم نه کوي. او دوزخ د پاره، چه څوک غواړي، پيدا به کړي او هغوئ به دے کښې واچولے شي. دوزخ به درے ځله اووائي، چه څه نور هم شته، تر دے چه اللّٰه تعالٰي به هغے کښې خپل قدم کيږدي، نو دوزخ به ډک شي. او د هغے بعضے حصے به بعضو حصو سره يو ځائے شي. او دوزخ به وائي، بس، بس، بس.

٧٠١١ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

٧٠١١ : حفص بن عمر، هشام، قتاده، حضرت انس رضي اللّٰه عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيُصِيْبَنَّ أَقْوَامًا سَفْعٌ مِّنَ النَّارِ بِذُنُوْبٍ أَصَابُوْهَا عُقُوْبَةً ثُمَّ يُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ يُقَالُ لَهُمُ الْجَهَنَّمِيُّوْنَ وَ قَالَ هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خنے خلق به، د ګناهونو په سبب، چه هغوي کړے وي د سزا په طور اور کښې اُوسوزي. بيا به اللّٰه تعالٰي هغوي خپل فضل و رحمت سره جنت کښې داخل کړي، چه هغوئ ته به خلق جهنميان وائي. او همام اووے، مونږ ته قتاده بيان او که، چه مونږ ته حضرت انس رضي اللّٰه عنه اووے، او هغه ذَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت او که.

باب ۵۴۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى إِنَّ اللّٰهَ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ أَنْ تَزُوْلَا.

باب ۵۴۷: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، اللّٰه تعالٰي اسمانونه او زمکے ذَ، خوزيدو (اخوا ديخوا کيدو) نه ايسار (بند) کړي دي.

۱۱۰۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا أَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ جَآءَ حِبْرٌ إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللّٰهَ يَضَعُ السَّمَآءَ عَلٰى إِصْبَعٍ وَالْأَرْضَ عَلٰى إِصْبَعٍ وَّالْجِبَالَ عَلٰى إِصْبَعٍ وَالشَّجَرَ وَالْأَنْهَارَ عَلٰى إِصْبَعٍ وَّ سَائِرَ الْخَلْقِ عَلٰى إِصْبَعٍ ثُمَّ يَقُوْلُ بِيَدِهِ أَنَا الْمَلِكُ فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهِ.

۱۱۰۸: موسٰي، ابو عوانه، اعمش، ابراهيم، علقمه، حضرت عبد اللّٰه نه روايت کوي. ذَ هغه بيان دے. يو يهودي عالم د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، ونيلے. اے محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم اللّٰه به آسمانونه په يوه ګوته، او زمکه په يوه ګوته، او غرونه په يوه ګوته، اُونے او نهرونه په يوه ګوته، او ټول مخلوق په يوه ګوته کيږدي. بيا به خپل لاس سره اشارے کولو سره ئے اوفرمائيل، زه بادشاه يم رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په خندا شو. او آيت: وَ مَا قدرو اللّٰه حقّ قدره (دے خلقو د، اللّٰه هغسے قدر اونه که څنګه چه پکار وو) اولوستو.

باب ۵۴۸: مَا جَآءَ فِي تَخْلِيْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ غَيْرِهَا مِنَ الْخَلَائِقِ وَ هُوَ فِعْلُ الرَّبِّ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى وَ أَمْرُهُ فَالرَّبُّ بِصِفَتِهِ وَ فِعْلِهِ وَ

باب ۵۴۸: د، آسمانونو او زمکے او د دے نه علاوه ذَ نورو ټولو مخلوقاتو د، پيدا کيدو بيان. او تخليق د بزرګ و برتر پروردګار فعل او امر دے. نو پروردګار خپل صفات او

اَمْرِهٖ وَ هُوَ الْخَالِقُ هُوَ الْمُكَوِّنُ غَيْرُ مَخْلُوْقٍ وَّ مَا كَانَ بِفِعْلِهٖ وَ اَمْرِهٖ وَ تَخْلِيْقِهٖ وَ تَكْوِيْنِهٖ فَهُوَ مَفْعُوْلٌ مَّخْلُوْقٌ مُكَوَّنٌ.

فعل او، امر سره خالق مُكوّن غير مخلوق دے. او څه چه د هغه د فعل او، امر او تخليق او تكوين مسبب دے هغه مفعول مكوّن دے.

۱۱۰۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنِيْ شَرِيْكُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ فِيْ بَيْتِ مَيْمُوْنَةَ لَيْلَةً وَّالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا لِاَنْظُرَ كَيْفَ صَلٰوةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ فَتَحَدَّثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ اَهْلِهٖ سَاعَةً ثُمَّ رَقَدَ فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْاٰخِرُ اَوْ بَعْضُهٗ قَعَدَ فَنَظَرَ اِلَى السَّمَآءِ فَقَرَءَ اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلٰى قَوْلِهٖ لِاُولِي الْاَلْبَابِ ثُمَّ قَامَ فَتَوَضَّاَ وَاسْتَنَّ ثُمَّ صَلّٰى اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ اَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلٰوةِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلّٰى لِلنَّاسِ الصُّبْحَ.

۱۱۰۹: سعيد بن ابي مريم، محمد بن جعفر، شريک بن عبد اللّٰه بن ابي نمر، کريب، حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، زه يو شپه چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم، بي بي ميمونہؓ سره وو، بي بي ميمونہؓ کره پاتے شوم د پاره د دے چه زه د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د شپے د مونځ کيفيت اووينم حضورؐ لږ ساعت پورے خپلے بي بي سره خبرے اترے اوکړے. بيا اُوده شولو. بيا چه د شپے آخري تهائي (آخر پهر) يا څه حصّه راغله نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم کيناستلو او آسمان طرف ته کتلو سره ئے دا، آيت اولوستلو: اِنَّ فِي خلق السموت والْاَرْض لِاولي الباب: پورے. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو. اودس ئے اوکه، او مسواک ئے اوکه. بيا ئے يولس (۱۱) رکعاته اوکړل بيا حضرت بلال رضي اللّٰه عنه مانځه د پاره آذان اوکه، نو حضور صلّي دوه رکعاته مونځ اوکه (يعني د سحر سنت ئے اوکړل) بيائے بهرته تشريف راوړلو. او خلقو ته ئے د سحر مونځ ورکړلو.

بَابُ ۵۴۹: وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ.

باب ۵۴۹: دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه خمونږ د ليږلے شوے بنديانو متعلق خمونږ حکم د مخکښ نه شوے دے.

۱۱۱۰: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مٰلِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ

۱۱۱۰: اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ هغه

الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا قَضَى اللّٰهُ الْخَلْقَ كَتَبَ عِنْدَهٗ فَوْقَ عَرْشِهٖ اِنَّ رَحْمَتِيْ سَبَقَتْ غَضَبِيْ.

١١١١: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ مَسْعُوْدٍ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ اَنَّ خَلْقَ اَحَدِكُمْ يَجْمَعُ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا وَ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ يَكُوْنُ عَلَقَةً مِثْلَهٗ ثُمَّ يُبْعَثُ اِلَيْهِ الْمَلَكُ فَيُؤْذَنُ بِاَرْبَعِ كَلِمَاتٍ فَيَكْتُبُ رِزْقَهٗ وَ اَجَلَهٗ وَ عَمَلَهٗ وَ شَقِيٌّ اَمْ سَعِيْدٌ ثُمَّ يَنْفُخُ فِيْهِ الرُّوْحَ فَاِنَّ اَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى لَا يَكُوْنَ بَيْنَهَا وَ بَيْنَهٗ اِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُ النَّارَ وَ اِنَّ اَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ النَّارِ حَتّٰى مَا يَكُوْنُ بَيْنَهَا وَ بَيْنَهٗ اِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا.

١١١٢: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ سَمِعْتُ اَبِيْ يُحَدِّثُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ

بيان دے، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، کوم وخت چه الله تعالیٰ مخلوق پيدا کړلو، نو خان سره ئے عرش باندے اوليکل، خما رَحمت خما په غضب غالب راغلے دے.

١١١١: آدم، شعبه، اَعمس، زيد بن وهب، حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم چه صادق او مصدوق دے، وے فرمائيل تاسو کښې د هر يو نطفه دَ هغه د مور په خَيټه کښې څلويښت ورځے او څلويښت شپے جمع وي بيا دآ شان څکه وينه شي. بيا دا شان د غوښے يوه ټکره شي، بيا ورته فريښته راليګلے شي، چه هغے ته دَ څلورو خبرو حکم ورکولے شي. نو هغه د هغه روزي، د هغه عمر، دَ هغه عمل او د هغه بدبخت، يا نيک بخت کيدل ليکي. بيا هغه کښې روح پُوکلے شي. بيا تاسو کښې يو د جنتيانو په شان عمل کوي، تر دے چه د هغه او د جنت مينځ کښې صرف د، يو ګز فاصله پاتے شي، په هغه د تقدير ليک غالب شي، نو هغه د، دوزخيانو په شان عمل کوي او دوزخ کښې داخل شي. او تاسو کښې يو سړے د، دوزخيانو په شان عمل کوي، تر دے چه د هغه او دوزخ مينځ کښې د، يو ګز فاصله پاتے شي، نو د تقدير نوشته پرے غالبه شي، هغه دَ جنتيانو عمل راواخلي او جنت کښې داخل شي.

١١١٢: خلاد بن يحيیٰ، عمر بن ذر، ذر، سعيد بن جبير، حضرت ابن عبّاس رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے. حضور صَلّي الله

عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ یَا جِبْرِیْلُ مَا یَمْنَعُكَ اَنْ تَزُوْرَنَا اَکْثَرَ مِمَّا تَزُوْرُنَا فَنَزَلَتْ وَ مَا نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّكَ لَهٗ مَا بَیْنَ اَیْدِیْنَا وَ مَا خَلْفَنَا اِلٰی اٰخِرِ الْاٰیَةِ قَالَ هٰذَا کَانَ الْجَوَابُ لِمُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

علیه وسلّم اوفرمائیل. اے جبرائیلٌ تاکوم څیز د دې خبرې نه منع کوي، چه ته مونږ پله د دې نه زیات راشې، څومره چه ته راځې نو دا، آیت نازل شولو، چه: مونږ صرف ستا د، رب حکم سره راکوزیږو، څه چه څمونږ مخکښ او څمونږ ورستو دي، د هغه دي، دا، د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم، د تپوس جواب وو.

۱۱۱۳: حَدَّثَنَا یَحْیٰی حَدَّثَنَا وَکِیْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِیْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ کُنْتُ اَمْشِیْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِیْ حَرْثٍ بِالْمَدِیْنَةِ وَ هُوَ مُتَّکِیٌٔ عَلٰی عَسِیْبٍ فَمَرَّ بِقَوْمٍ مِّنَ الْیَهُوْدِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ لَا تَسْئَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ فَسَاَلُوْهُ فَقَامَ مُتَوَکِّئًا عَلٰی عَسِیْبٍ وَّ اَنَا خَلْفَهٗ فَظَنَنْتُ اَنَّهٗ یُوْحٰی اِلَیْهِ فَقَالَ وَ یَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّیْ وَ مَا اُوْتِیْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِیْلًا فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ قَدْ قُلْنَا لَکُمْ لَا تَسْئَلُوْهُ.

۱۱۱۳: یحیٰي، وکیع، اعمش، ابراهیم، علقمه، حضرت عبد اللّٰه نه روایت کوي. دَ هغه بیان دې، زه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم سره د مدینې یو پټي (کهیت) کښ روان ووم. او حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم د قجورې د، یو لرګي په تکیه تللو، چه د یهودو په یو جماعت تیر شولو، نو هغوئ یو بل ته اووې، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه د، روح متعلق تپوس او کړئ اوچا اووې، تپوس ترې مه کوې. لیکن هغوئ تپوس او که، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم د لرګي په زور اُودریدلو. او زه حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم پسې ووم. ما خیال او که، چه په حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم وحي نازلیږي، حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل: وَ یَسْئَلُوْنَکَ عَنِ الرُّوْحِ قل الرّوح من امر ربّی وَ مَا اُوتِیْتُمْ من الْعِلْمِ اِلّا قلیلا: (او خلق تانه د، روح متعلق تپوس کوي، ورته اووایه، چه روح څما د، رب اَمر دې، او تاسو ته لږ شان علم درکړې شوې دې. هغې یهودي یو بل ته اووې، چه مونږ وئیلې نه وو، چه ده نه تپوس مه کوئې.

۱۱۱۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِیْلُ حَدَّثَنِیْ مَالِكٌ عَنْ اَبِی الزِّنَادِ عَنِ

۱۱۱۴: اسماعیل، مالک، ابو الزناد، اعرج حضرت ابو هُرَیره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. دَ

الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَكَفَّلَ اللّٰهُ لِمَنْ جَاهَدَ فِيْ سَبِيْلِهٖ لَا يُخْرِجُهُ اِلَّا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِهٖ وَ تَصْدِيْقُ كَلِمَاتِهٖ بِاَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ اَوْ يَرْجِعَهُ اِلٰى مَسْكَنِهِ الَّذِيْ خَرَجَ مِنْهُ مَعَ مَا نَالَ مِنْ اَجْرٍ اَوْ غَنِيْمَةٍ.

هغه بيان دے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' چاچه د خدائے په لار کښې جهاد اوکه' او د هغه لار کښې د جهاد په غرض او د هغه د کلماتو د تصديق د پاره اووتلو' نو اللّٰه ذ' هغوئ د دے خبرے ضامن دے' چه هغه جنت کښې داخل کړي' يا' د کوم ځائے نه چه هغه وتلے دے' هغے ځائے ته ئے اجر يا غنيمت سره واپس کوي.

۵ ۱ ۱ ۱ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَجُلٌ يُقَاتِلُ حَمِيَّةً وَّ يُقَاتِلُ شُجَاعَةً وَّ يُقَاتِلُ رِيَآءً فَاَيُّ ذٰلِكَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُوْنَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۵ ۱ ۱ ۱ : محمد بن کثير' سفيان' اعمش' ابو وائل' حضرت ابو موسٰي نه روايت کوي' ذ هغه بيان دے' يو سړے د نبي صلّي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اوکه' چه يو سړے د' حميت د پاره جنګيږي' او بل د شجاعت د پاره جنګيږي' او څوک د نمائش (دکهاوے) د پاره جنګيږي. دوي کښې د' اللّٰه په لاره کښې څوک دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' چاچه دے د پاره جنګ اوکه' چه د' الله کله اوچته شي' نو هغه د' الله په لار کښې دے.

ف: حميت: غيرت. ننګ. شرم. حيا.

## باب ۵۵۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ.

## باب ۵۵۰: د' اللّٰه تعالٰي د قول: اِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ: بيان.

۶ ۱ ۱ ۱ : حَدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حُمَيْدٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَزَالُ مِنْ اُمَّتِيْ قَوْمٌ ظَاهِرِيْنَ عَلَى النَّاسِ حَتّٰى يَاْتِيَهُمْ اَمْرُ اللّٰهِ.

۶ ۱ ۱ ۱ : شهاب بن عباد' ابراهيم بن حميد' اسماعيل' قيس' مغيره بن شعبه رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي د هغه بيان دے. ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' ځما د' امت نه به يوه ډله په نورو ډلو غالبه راځي' تر دے چه د' اللّٰه امر (قيامت) راشي.

۱۱۱۷ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جَابِرٍ حَدَّثَنَا عُمَيْرُ بْنُ هَانِئٍ اَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَزَالُ مِنْ اُمَّتِيْ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ بِاَمْرِ اللّٰهِ مَا يَضُرُّهُمْ مَنْ كَذَّبَهُمْ وَ لَا مَنْ خَالَفَهُمْ حَتّٰى يَأْتِيَ اَمْرُ اللّٰهِ وَ هُمْ عَلٰى ذٰلِكَ فَقَالَ مُلِكُ بْنُ يُخَامِرَ سَمِعْتُ مُعَاذًا يَقُوْلُ وَ هُمْ بِالشَّامِ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ هٰذَا مُلِكٌ يَزْعُمُ اَنَّهُ سَمِعَ مُعَاذًا يَقُوْلُ وَهُمْ بِالشَّامِ.

۱۱۱۷ : حميدي، وليد بن مسلم، ابن جابر، عمير بن هاني، معاويه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل څما د امت نه به يو ډله هميشه د خدائے په حكم قائمه وي، او د هغوئ دروغجن كونكي او مخالفت كونكي به ورته نقصان نشي رسولے، تر دے چه د خدائے حكم (يعني قيامت) راشي. او هغه خلق به دے حال كښې وي. مالک بن يخامر اووے. ما د، معاذ نه واوريدل، دا خلق به شام كښې وي. معاويه اووے. د مالک بيان دے، ما د، معاذ نه واوريدل، دا خلق به شام كښې وي.

۱۱۱۸ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ ابْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ وَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى مُسَيْلَمَةَ فِيْ اَصْحَابِهٖ فَقَالَ لَوْ سَاَلْتَنِيْ هٰذِهِ الْقِطْعَةَ مَا اَعْطَيْتُكَهَا وَ لَنْ تَعْدُوَا اَمْرَ اللّٰهِ فِيْكَ وَ لَئِنْ اَدْبَرْتَ لَيَعْقِرَنَّكَ اللّٰهُ.

۱۱۱۸ : ابو اليمان، شعيب، عبد اللّٰه بن ابي حسين، نافع بن جبير، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مسيلمه كذّاب سره اودريدلو هغه وخت هغه خپلو ملګرو سره اوفرمائيل كه مانه دا ټكړه غواړے، نو زه به ئے ورنه كړم او ته د، اللّٰه تعالٰي د حكم نه وړاندے كيدے نه شے، چه هغه ستا متعلق كړے دے. او كه ته شا هم اوګرځوے، نو اللّٰه تعالٰي به تا هلاک كړي.

۱۱۱۹ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ بَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ حَرْثِ الْمَدِيْنَةِ وَ هُوَ يَتَوَكَّأُ

۱۱۱۹ : موسٰي بن اسماعيل، عبد الواحد، اعمش، ابراهيم، علقمه، ابن مسعود رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، يو ځل زه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره د مدينے يو پټي (كهيت) كښې روان ووم. هغه وخت حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم يو لرګي لړولو سره روان وو، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره وو. مونږ د يهودو په يو جماعت تيريدلو. هغوئ كښې بعضے، بعضو

عَلٰى عَسِيْبٍ مَعَهُ فَمَرَرْنَا عَلٰى نَفَرٍ مِنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا تَسْئَلُوْهُ يَجِيْئُ فِيْهِ بِشَيْءٍ تَكْرَهُوْنَهُ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَنَسْاَلَنَّهُ فَقَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَالَ يَا اَبَا الْقَاسِمِ مَا الرُّوْحُ فَسَكَتَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلِمْتُ اَنَّهُ يُوْحٰى اِلَيْهِ فَقَالَ وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَ مَا اُوْتِيْتُمْ مِنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا قَالَ الْاَعْمَشُ هٰكَذَا فِيْ قِرَاءَتِنَا.

نه اوويل، چه ده (حضورؐ) نه د روح متعلق تپوس اوكړئ. بعضو اوويل، تپوس ترې مه كوئ، داسې نه چه، څه داسې خبره اوكړي چه تاسو باندې بده اولږي. بعضو اوويل مونږ به ترې ضرور تپوس كوو، نو هغوئ كښې يو سړے د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم مخې ته اودريدلو. او وئيلے، اے ابو القاسم صلّي اللّٰه عليه وسلّم روح څه څيز دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم خاموش شولو، نو ما خيال اوكړ، په حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم وحي نازليږي. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا، آيت اولوستلو: وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قل الروح من امر ربى وَ مَا اوتيتم من العلم الّا قليلا. اعمش اوويل، څمونږ قرأت كښې دغه شان دے.

## باب ۱۵۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى

قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِكَلِمٰتِ رَبِّيْ لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّيْ وَ لَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ مَدَدًا وَ لَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَالْبَحْرُ يَمُدُّهُ مِنْ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمَاتُ اللّٰهِ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيْثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرَاتٍ بِاَمْرِهٖ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ تَبَارَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ.

باب ۱۵۵: د اللّٰه تعالى قول، ورته اووايه، كه سمندر څما د رب د كلماتو د پاره سياهي شي، نو څما د رب كلماتو نه به مخكښې سمندر ختم شي، اګر كه دومره (نور هم) مونږ د مدد د پاره راوړو. او زمكه كښې چه څومره اونې دي، هغه قلم او اوه (۷) سمندرونه سياهي جوړه شي، نو د اللّٰه كلمات به ختم نه شي. بيشكه ستاسو پروردګار هغه دے، چه آسمانونه او زمكه ئې شپږو (۶) ورځو كښې پيدا كړل. بيا په عرش قائم شو، شپه په ورځ پټوي د هغه طلب كښې دوړ كښې دي. او نمر او سپوږمۍ او ستوري د هغه د حكم تابع دي، واورے، چه خلق او امر هغه له دے. اللّٰه رب العالمين بابركته دے.

۱۱۲۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۱۱۲۰: عبد اللّٰه بن يوسف. مالك. ابو الزناد.

يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مٰلِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَكَفَّلَ اللّٰهُ لِمَنْ جَاهَدَ فِيْ سَبِيْلِهٖ لَا يُخْرِجُهٗ مِنْ بَيْتِهٖ اِلَّا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِهٖ وَ تَصْدِيْقُ كَلِمَتِهٖ اَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ اَوْ يَرُدَّهٗ اِلٰى مَسْكَنِهٖ بِمَا نَالَ مِنْ اَجْرٍ اَوْ غَنِيْمَةٍ.

اعرج. حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كوم سړي چه د الله په لار كښ جهاد اوكه، او صرف د خدائے لار كښې د جهاد په غرض او د هغه د كلمے دَ تصديق د پاره د كور نه اووتلو، نو الله تعالٰي هغه د پاره ددے خبرے ضامن شي چه هغه جنت كښ داخل كړي، يا هغه خپل كور طرف ته اجر يا غنيمت سره واپس كړي.

## بَاب ۲۵۵۲: فِي الْمَشِيَّةِ وَ الْاِرَادَةِ وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّا اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَلَا تَقُوْلَنَّ لِشَيْءٍ اِنِّيْ فَاعِلٌ ذٰلِكَ غَدًا اِلَّا اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ نَزَلَتْ فِيْ اَبِيْ طَالِبٍ يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ.

## باب ۲۵۵۲: دَ مشيت او، ارادے بيان او، آيت:

تاسونه غواړے مگر، څه چه الله غواړي او د، الله تعالٰي قول، چه ته ملك عطاء كوے چاته چه غواړے، او تاسو د، څيز متعلق دا مه وائے، چه زه به دا كار صباله كوم، خو دا چه الله اُغواړي، ته هغه په سمه لار كولے نشے، چاسره چه محبت كوے. سعيد بن مسيب دَ خپل پلار نه نقل اوكه، چه دا، آيت د، ابو طالب باره كښ نازل شوے دے الله تاسو سره ده آساني اراده لري، تاسو سره سختي كول نه غواړي.

۷۱۲۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَعَوْتُمُ اللّٰهَ فَاعْزِمُوْا فِي الدُّعَآءِ وَلَا يَقُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ اِنْ شِئْتَ فَاَعْطِنِيْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا مُسْتَكْرِهَ لَهٗ.

۷۱۲۱: مسدد. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انس رضي الله نه نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، چه هر كله تاسو الله نه دُعا غواړئے، نو عزم سره دُعا كوئے. او هيڅوك دے تاسو كښ دا، اونه وائي. كه ته غواړے، نو ماته عطاء كړه ځكه چه په الله څوك جبر كونكے نشته.

۷۱۲۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَبْدُ الْحَمِيْدِ عَنْ سُلَيْمَانَ

۷۱۲۲: ابو اليمان، شعيب، زهري (دويم سند) اسماعيل، عبد الحميد، سليمان، محمد بن ابي عتيق ابن شهاب، علي بن حسين رضي الله عنه حسين بن

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَقَهُ وَ فَاطِمَةَ بِنْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً فَقَالَ لَهُمْ اَلَا تُصَلُّوْنَ قَالَ عَلِيٌّ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّمَا اَنْفُسُنَا بِيَدِ اللّٰهِ فَاِذَا شَآءَ اَنْ يَبْعَثَنَا بَعَثَنَا فَانْصَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قُلْتُ ذٰلِكَ وَلَمْ يَرْجِعْ اِلَيَّ شَيْئًا ثُمَّ سَمِعْتُهُ وَهُوَ مُدْبِرٌ يَضْرِبُ فَخِذَهُ وَ يَقُوْلُ وَ كَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا.

علي، حضرت علي رضي اللّٰه عنه بن ابي طالب نه روايت كوي. هغه اووې، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم يوه شپه هغه او بي بي فاطمې د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم لور پله تشريف راوړلو. اووې فرمائيل. تاسو (د شپې) مونځ ولې نه كوئې. حضرت علي رضي اللّٰه عنه وائي، ما عرض اوكه، يا رسول اللّٰه، خمونږ نفسونه د اللّٰه پاک په اختيار دي، كله چه هغه مونږ پاسوي، نو پاسوي مو. چه ما داسې اووې نو رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم واپس شولو. او ځما د خبرې هيڅ جواب ئې رانه كړلو. بيا ما واوريدل، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم واپس كيدلو، نو په خپل پتون، ئې لاس راخلاصولو سره فرمائيل چه انسان د ټولو نه زيات جګړمار دې.

۷۴۲۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ خَامَةِ الزَّرْعِ يَفِيْءُ وَرَقُهُ مِنْ حَيْثُ اَتَتْهَا الرِّيْحُ تُكَفِّئُهَا فَاِذَا سَكَنَتْ اعْتَدَلَتْ وَ كَذٰلِكَ الْمُؤْمِنُ يُكَفَّأُ بِالْبَلَآءِ وَ مَثَلُ الْكَافِرِ كَمَثَلِ الْاَرْزَةِ صَمَّآءَ مُعْتَدِلَةً حَتّٰى يَقْصِمَهَا اللّٰهُ اِذَا شَآءَ.

۷۴۲۳ : محمد بن سنان، فليح، هلال بن علي، عطاء بن يسار، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي د هغه بيان دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د، مؤمن مثال داسې دې، لكه نرم فصل، چه هوا، زور سره چليږي، نو دا يو خوا بل خوا كږيږي. او بيا چه هوا اودريږي، نو اسم نيغ شي. دا شان مؤمن د، بلاګانو نه بچ كولې شي. ليكن د كافر مثال داسې دې، لكه د صنوبر نيغه او سخته اونه، كله چه خدائې غواړي نو د، ويخه (بيخه) ئې راوغرځوي.

۷۴۲۴ : حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ

۷۴۲۴ : حكم بن نافع، شعيب، زهري، سالم بن عبد اللّٰه، حضرت عبد اللّٰه بن عمر رضي اللّٰه عنه نه

الـزُّهْـرِيُّ أَخْبَـرَنِـيُّ سَـالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّـٰـهِ اَنَّ عَبْـدَ اللّـٰـهِ بْـنَ عُـمَـرَ قَـالَ سَمِعْـتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ وَ هُـوَ قَـائِمٌ عَلَـى الْمِـنْبَـرِ اِنَّـمَا بَقَآءُكُـمْ فِيْمَا سَـلَفَ قَبْـلَـكُمْ مِـنَ الْاُمَـمِ كَمَا بَـيْـنَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى غُرُوْبِ الـشَّـمْـسِ اُعْـطِـيَ اَهْـلُ الـتَّـوْرَاةِ التَّـوْرٰىةَ فَـعَـمِـلُـوْا بِهَـا حَتّٰـى انْتَـصَفَ الـنَّهَـارُ ثُـمَّ عَـجَزُوْا فَاُعْطُوْا قِيْـرَاطًـا قِيْـرَاطًـا ثُـمَّ اُعْطِـيَ اَهْلُ الْاِنْـجِيْـلِ الْاِنْـجِيْـلَ فَعَمِلُوْا بِهٖ حَتّٰى صَلٰوةِ الْعَـصْـرِ ثُـمَّ عَـجَزُوْا فَاُعْطُوْا قِيْـرَاطًـا قِيْـرَاطًـا ثُمَّ اُعْطِيْتُمُ الْقُرْاٰنَ فَـعَـمِـلْـتُـمْ بِـهٖ حَتّٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ فَـاُعْـطِـيْـتُـمْ قِيْـرَاطَـيْـنِ قِيْـرَاطَيْنِ قَالَ اَهْـلُ الـتَّـوْرَاةِ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ اَقَلُّ عَمَلًا وَ اَكْثَـرَ اَجْـرًا قَـالَ هَـلْ ظَـلَـمْـتُـكُمْ مِنْ اَجْرِكُمْ مِنْ شَيْءٍ قَالُوْا لَا فَقَالَ فَذٰلِكَ فَضْلِيْ اُوْتِيْهِ مَنْ اَشَآءُ.

روايت كوي د هغه بيان دے، ما د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه واوريدل. هغه وخت حضور صلّي الله عليه وسلّم په منبر وو. وے فرمائيل، د تيرو اُمتونو مقابله كښې ستاسو د، ژوند مثال داسے دے. لكه دَ مازيگر د مونځ نه دَ نمر ډوبيدو پورے وخت تورات والو ته تورات وركړے شو. هغوئ په دے عمل اوكه، تر دے چه د ماسپخين وخت راغے. بيا هغوي عاجزه شو، نو هغے خلقو ته يو، يو، قيراط اجر وركړے شو. بيا انجيل والو ته انجيل وركړے شو، هغوئ د مازيگر پورے په هغے عمل اوكه. بيا هغه خلق هم عاجزه راغلل. او دے خلقو ته هم يو. يو قيراط اجر وركړے شو. بيا تاسو خلقو ته قرآن عطا كړے شو، او تاسو د نمر ډوبيدو پورے په دے عمل اوكه نو تاسو خلقو ته دوه (۲) دوه (۲) قيراط دركړے شو. تورات والو عرض اوكه. اے خمونږ ربه دے خلقو عمل خو، كم كړے دے، او اجر زيات وركړے شوے دے اللّٰه تعالىٰ ورته فرمائي. آيا ستاسو مزدورئ (اجر) كښې ما څه كمے كړے دے هغه خلق به اووائي، نه. نو اللّٰه پاک به ورته فرمائي. دا خما فضل دے چاته چه غوارم، هغه ته وركوم (اللّٰه پاک دِ خمونږ هم د هغه فضل نصيب كړي. اللّٰهم آمين).

ف: قيراط: يو وزن چه نيم دانگ يعني دَ څلورو، وربشو برابر وي. كرين چه د نيمے رتي برابر وي.

۱۱۲۵: حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰـهِ الْمُسْنِدِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَـنْ اَبِيْ اِدْرِيْـسَ عَنْ عُبَـادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ بَايَعْتُ رَسُوْلَ اللّـٰهِ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ

۱۱۲۵: عبد اللّٰـه المسندي، هشام، معمر، زهري، ابو ادريس، عباده بن صامت رضي الله عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. مَا خو سرو سره د، رسول اللّٰه صلّي الله عليه وسلّم نه بيعت اوكه حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل زه تاسو نه په دے خبره بيعت

رَهْطٍ فَقَالَ اُبَايِعُكُمْ عَلٰى اَنْ لَا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَّ لَا تَسْرِقُوْا وَ لَا تَزْنُوْا وَ لَا تَقْتُلُوْا اَوْلَادَكُمْ وَ لَا تَاْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهُ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَ اَرْجُلِكُمْ وَ لَا تَعْصُوْنِيْ فِيْ مَعْرُوْفٍ فَمَنْ وَفٰى مِنْكُمْ فَاَجْرُهُ عَلَى اللّٰهِ وَ مَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَاُخِذَ بِهٖ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ لَهُ كَفَّارَةٌ وَّ طَهُوْرٌ وَّ مَنْ سَتَرَهُ اللّٰهُ فَذٰلِكَ اِلَى اللّٰهِ اِنْ شَآءَ عَذَّبَهُ وَ اِنْ شَآءَ غَفَرَلَهُ.

اَخلم، چه تاسو به الله سره څوک شريک نه جوړوئ. او نه به غلا کوئ، او نه به زنا کوئ، او نه به خپل آولاد قتلوئ، او نه به څه تهمت ذَ خپل لاس او ښپو تر مينځه پورته کوئ، او نه به څه نيک کار کښې ځما نافرماني کوئ. تاسو کښې چه کوم سړي دا پوره که، نو د هغه اجر به الله دے. او کوم سړے چه دے کښې د څه څيز مرتکب شو. او دُنيا کښې هغه نه د دے مواخذه اوشوه، نو دا هغه د پاره کفاره ده، او په چا، چه الله پرده واچوله، نو دا، د، الله اختيار کښې ده، که خوښه ئے وي، عذابُ به ورکوي، کني اُو، به ئے ښښي.

١١٢٦ : حَدَّثَنَا مَعَلّٰى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ سُلَيْمَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ لَهُ سِتُّوْنَ امْرَاَةً فَقَالَ لَاَطُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلٰى نِسَآئِيْ فَلَتَحْمِلْنَ كُلُّ امْرَاَةٍ وَلْتَلِدْنَ فَارِسًا يُّقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَطَافَ عَلٰى نِسَآئِهٖ فَمَا وَلَدَتْ مِنْهُنَّ اِلَّا امْرَاَةٌ وَّلَدَتْ شِقَّ غُلَامٍ قَالَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ سُلَيْمَانُ اسْتَثْنٰى لَحَمَلَتْ كُلُّ امْرَاَةٍ مِّنْهُنَّ فَوَلَدَتْ فَارِسًا يُّقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

١١٢٦ : معلّي بن اسد، وهيب، ايوب، محمد، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي. د، الله د نبي حضرت سليمان عليه السّلام شپيته (٦٠) بيبيانے وے، هغه اووے، زه به نن شپه خپلو ټولو ښځو له ورځم (يعني صحبت به ورسره کوم) هغے نه به هره ښځه حامله شي، او داسے بچے به راوړي، چه سور به شي د الله لار کښې به جنګ کوي، نو په هغه شپه خپلو ټولو بيبيانو له ورغے، چه هغے کښې صرف يوے ښځے يو نيمګړے (ناتمامه) بچے راوړلو، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، که سليمان عليه السّلام انشاء الله وئيلے وے. نو چه ذَ هغے نه هر يو ښځه وے حامله شوے به وے، او داسے بچي به ئے راوړے وو، چه سور شوے د خدائے په لار کښې به ئے جنګ کولو.

١١٢٧ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدُ الْحَذَّآءُ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ

١١٢٧ : محمد، عبد الوهاب ثقفي، خالد حذاء، عکرمه، حضرت ابن عبّاس نه روايت کوي، نبي صلّي الله عليه وسلّم د يو، اعرابي تپوس له

اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى اَعْرَابِيٍّ يَعُوْدُهٗ فَقَالَ لَا بَأْسَ عَلَيْكَ طَهُوْرٌ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ قَالَ قَالَ الْاَعْرَابِيُّ طَهُوْرٌ بَلْ هِيَ حُمّٰى تَفُوْرُ عَلٰى شَيْخٍ كَبِيْرٍ تُزِيْرُهُ الْقُبُوْرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَعَمْ اِذًا.

ورغے نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' خه د خوف خبره نشته' انشاء اللّٰه ذ ګناهونو نه به پاک شے. اعرابي (بانډيسي) اووے پاکي نشته' بلکه دا بخار دے' چه يو ډير بوډا' ئے راپه مخه کړے دے. اوپه هغه به د قبر زيات اوکړي' نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' بنه ده' نو دغسے به وي.

۱۱۲۸: حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ حِيْنَ نَامُوْا عَنِ الصَّلٰوةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ قَبَضَ اَرْوَاحَكُمْ حِيْنَ شَآءَ وَ رَدَّهَا حِيْنَ شَآءَ فَقَضَوْا حَوَائِجَهُمْ وَ تَوَضَّؤُا اِلٰى اَنْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَابْيَضَّتْ فَقَامَ فَصَلّٰى.

۱۱۲۸: ابن اسلام' هشيم' حصين' عبد اللّٰه بن ابي قتاده' ابو قتاده نه روايت کوي' چه خلق ذ مونځ نه اُوده شوے وو (يعني د خوب په سبب د سحر مونځ نزے قضا شوے وو) نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه اللّٰه ستاسو روحونه قبض کړي وو' چه ئے ووے غوښتل اوکله چه ئے اوغوښتل' نو هغه ئے واپس کړل' نو خلق د خپلو ضرورياتو نه فارغ شو' اودس ئے اوکه' تر دے چه نمر راوختلو' سپين شولو' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو' او مونځ ئے اوکړلو.

۱۱۲۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَالْاَعْرَجِ ح وَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ سَعِيْدِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ رَجُلٌ مِّنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ الْمُسْلِمُ وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُحَمَّدًا عَلٰى

۱۱۲۹: يحيٰي بن قزعه' ابراهيم' ابن شهاب' ابو سلمه او' اعرج (دويم سند) اسماعيل' برادر اسماعيل' سليمان' محمد بن ابي عتيق' ابن شهاب' ابو سلمه بن عبد الرّحمٰن او سعيد بن مسيب' حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي' ذ هغه بيان دے مسلمانانو کښې يو سړي او يهوديانو کښې يو سړي يو بل ته بدرد اوونيل' مسلمان قسم سره اوونيل' قسم دے په هغه ذات' چه هغه محمد (صلّي اللّٰه عليه وسلّم) په ټول عالم والو برګزيده کړے دے' نو هغے يهودي هم اووے' قسم دے په هغه ذات'

الْمُسْلِمِيْنَ فِيْ قَسَمٍ يُقْسِمُ بِهٖ فَقَالَ الْيَهُوْدِيُّ وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْعٰلَمِيْنَ فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ يَدَهٗ عِنْدَ ذٰلِكَ فَلَطَمَ الْيَهُوْدِيَّ فَذَهَبَ الْيَهُوْدِيُّ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهٗ بِالَّذِيْ كَانَ مِنْ اَمْرِهٖ وَ اَمْرِ الْمُسْلِمِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُخَيِّرُوْنِيْ عَلٰى مُوْسٰى فَاِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ يُّفِيْقُ فَاِذَا مُوْسٰى بَاطِشٌ بِجَانِبِ الْعَرْشِ فَلَا اَدْرِيْ اَكَانَ فِيْمَنْ صَعِقَ فَاَفَاقَ قَبْلِيْ اَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللّٰهُ.

چه موسٰي عليه السّلام په ټول دُنيا والو برګزيده کړے دے، مسلمان هغه وخت خپل لاس اوچت که، او هغه يهودي ئے په څپېړه اووهلو، هغه يهودي د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شولو. او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته ئے خپل او د مسلمان حال بيان که، څه چه تير شوے وو، نو نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. ماله په موسٰي عليه السّلام فضيلت مه راکوئے، ځکه چه خلق به د قيامت په ورځ بيهوشه شي، دَ ټولو نه مخکښې به زه هوش کښې راشم، او وينم به، چه هغه وخت به، موسٰي عليه السّلام د عرش يو ګټ (کونه) نيولے وي، زه نه پوهيږم، چه هغه به د بيهوشئ نه پس خمونږ نه مخکښې هوش کښې راغلے وي، يا اللّٰه به هغه د دے نه مستثنٰي کړے وي.

۱۱۳۰ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اَبِيْ عِيْسٰى اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةُ يَأْتِيْهَا الدَّجَّالُ فَيَجِدُ الْمَلٰٓئِكَةَ يَحْرُسُوْنَهَا فَلَا يَقْرَبُهَا الدَّجَّالُ وَ لَا الطَّاعُوْنُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ.

۱۱۳۰ : اسحٰق بن ابي عيسي، يزيد بن هارون، شعبه، قتاده، حضرت بن مالک رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، مدينے ته به دجّال راځي، نو اُو، به وينې، چه فرښتے د هغے حفاظت کوي، په دے وجه اِنشاءَ اللّٰه نه به دجّال دے ته نزدے راتلے شي، او نه به دے ته طاعون راځي.

۱۱۳۱ : حَدَّثَنَا اَبُوْ الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ فَاُرِيْدُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اَنْ اَخْتَبِئَ

۱۱۳۱ : ابو اليمان، شعيب، زهري، ابو سلمة بن عبد الرحمٰن، ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د هر نبي يو دُعا مقبوله وي، په دے وجه زه غواړم، که خدائے ته منظوره وي، نو خپله دُعا به د قيامت په ورځ د خپل اُمت د شفاعت

دَعْوَتِیْ شَفَاعَةً لِّاُمَّتِیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ.

د پاره مخفوظ اوساتم.

۱۱۳۲ : حَدَّثَنَا یَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ ابْنِ جَمِیْلِ اللَّخْمِیُّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِیْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنْ سَعِیْدِ بْنِ الْمُسَیَّبِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بَیْنَا اَنَا نَآئِمٌ رَاَیْتُنِیْ عَلٰی قَلِیْبٍ فَنَزَعْتُ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ اَنْزِعَ ثُمَّ اَخَذَهَا ابْنُ اَبِیْ قُحَافَةَ فَنَزَعَ ذَنُوْبًا اَوْ ذَنُوْبَیْنِ وَ فِیْ نَزْعِهٖ ضَعْفٌ وَاللّٰهُ یَغْفِرُ لَهٗ ثُمَّ اَخَذَهَا عُمَرُ فَاسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَلَمْ اَرَ عَبْقَرِیًّا مِّنَ النَّاسِ یَفْرِیْ فَرِیَّهٗ حَتّٰی ضَرَبَ النَّاسُ حَوْلَهٗ بِعَطَنٍ.

۱۱۳۲ : یسره بن صفوان بن جمیل لخمي، ابراهیم بن سعد، زهري، سعید بن مسیب، حضرت ابو هریره رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. ذ هغه بیان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، یو ځل زه اُوده ووم، نو ما خپل ځان یو کوهي سره اولیدلو، خدائے ته چه څومره منظوره وه، ما د هغے نه اُوبه راوښکلے. بیا هغه ډول ابن قحافه حضرت ابوبکر صدیق (رضي اللّٰه عنه) واخست. یو یا دوه (۲) ډول اُوبه ئے ترے راوښکلے، او ذ هغه په راوښکلو کښ کمزوري وه، اللّٰه دے اُوبښي. بیا هغه (بورقه) عمر (رضي اللّٰه عنه) واخسته، نو هغه بورقه د هغه په لاس کښ چرس (لویه بورقه) جوړه شوه. ما هیڅ پهلوان داسے اُوبه راوښکونکے نه دے لیدلے، تر دے چه خلقو ترے چاپیره د، څملوو د ترلو د پاره ځائے جوړ که. (ډول: بورقه: بالتي: چه اُوبه پرے راوښکلے شئ).

۱۱۳۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَیْدٍ عَنْ اَبِیْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِیْ مُوْسٰی قَالَ کَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَاهُ السَّآئِلُ وَ رُبَّمَا قَالَ جَآءَهُ السَّآئِلُ اَوْ صَاحِبُ الْحَاجَةِ قَالَ اشْفَعُوْا فَلْتُؤْجَرُوْا وَ یَقْضِی اللّٰهُ عَلٰی لِسَانِ رَسُوْلِهٖ مَا شَآءَ.

۱۱۳۳ : محمد بن علاء، ابو اُسامه، برید، ابو برده، حضرت ابو موسٰي رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. د هغه بیان دے نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته چه به کله څوک سائل راتلو (کله کله به ئے: اتاه السائل: جاءه السائل: وئیلے) یا څوک ضرورت واله به راتلو، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم به صحابه و رضي اللّٰه عنه ته فرمائیل، تاسو خلق سفارش کوئ! اجر به بیاموئے. او اللّٰه تعالٰي به ذ خپل رسول په ژبه هغه جاري کوي، څه چه هغه غواړي.

۱۱۳۴ : حَدَّثَنَا یَحْیٰی حَدَّثَنَا

۱۱۳۴ : یحیٰي، عبد الرزاق، معمر، همام،

عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُلْ اَحَدُكُمُ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ اِنْ شِئْتَ ارْحَمْنِيْ اِنْ شِئْتَ اُرْزُقْنِيْ اِنْ شِئْتَ وَلْيَعْزِمْ مَسْئَلَتَهُ اِنَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ لَا مُكْرِهَ لَهُ.

۱۱۳۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَفْصٍ عَمْرٌو وَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنِيْ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ تَمَارٰى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسِ ابْنِ حِصْنِ الْفَزَارِيُّ فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى اَهُوَ خَضِرٌ فَمَرَّبِهِمَا اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ الْاَنْصَارِيُّ فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ اِنِّيْ تَمَارَيْتُ اَنَا وَ صَاحِبِيْ هٰذَا فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى الَّذِيْ سَاَلَ السَّبِيْلَ اِلٰى لُقِيِّهٖ هَلْ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَاْنَهُ قَالَ نَعَمْ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَاْنَهُ يَقُوْلُ بَيْنَا مُوْسٰى فِيْ مَلَإٍ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اِذْ جَآءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمُ اَحَدٌ اَعْلَمُ مِنْكَ فَقَالَ مُوْسٰى لَا

حضرت ابو هریره رضي الله عنه، حضور صلّي الله علیه وسلّم نه روایت کوي حضور صلّي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. تاسو کښې دې څوک داسې نه وائي، چه اے اللّٰه ما اوبښې، که ته غواړې، په ما رحم اوکړې که ته غواړې، ماله رزق راکړې، که ته غواړې بلکار دي چه عزم سره اوغواړي، هغه چه غواړي، هغه کوي، په هغه څوک جبر کونکے نشته.

۱۱۳۵ : عبد اللّٰه بن محمد، ابو حفص عمرو، اوزاعي، ابن شهاب، عبید اللّٰه بن عبد اللّٰه بن عتبه بن مسعود، حضرت ابن عباس رضي الللّه عنه نه روایت کوي. او حر بن قیس بن حصن فزاري، د حضرت موسیٰ علیه السّلام دَ ملګري متعلق اختلاف کولو چه هغه خضر وو. یا بل څوک وو، نو حضرت ابي بن کعب په هغې دواړو تیر شو، هغه حضرت ابن عبّاس راوغښتلو، او، ویلې، زه او څما دا ملګرے د حضرت موسیٰ علیه السّلام د هغې ملګري متعلق اختلاف کوو، چه هغه سره د یو ځائے کیدو د پاره دلارے حضرت موسیٰ علیه السّلام تپوس کړے وو، تا د، رسول صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه د هغه حال بیانول اوریدلے دي. هغه اووے، او ما د، رسول صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلے دي. یو ځل حضرت موسیٰ علیه السّلام د بني اسرائیلو یو جماعت کښې ناست وو، یو سړے ورله راغے. او، وئیلې، ایا تاسو څوک داسې سړے پیژنئې، چه ستاسو نه زیات عالم وي، حضرت موسیٰ علیه السّلام ورته اووے، نه، حضرت موسیٰ علیه السّلام ته وحي اوشوه چه او، څمونږ یو بنده خضر دے (چه ستانه زیات عالم دے) موسیٰ علیه السّلام

فَأُوحِيَ إِلَى مُوسَى بَلَى عَبْدُنَا خَضِرٌ فَسَأَلَ مُوسَى السَّبِيلَ إِلَى لُقِيِّهِ فَجَعَلَ اللَّهُ لَهُ الْحُوتَ آيَةً وَ قِيلَ لَهُ إِذَا فَقَدْتَ الْحُوتَ فَارْجِعْ فَإِنَّكَ سَتَلْقَاهُ فَكَانَ مُوسَى يَتْبَعُ أَثَرَ الْحُوتِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ فَتَى مُوسَى لِمُوسَى أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَ مَا أَنْسَانِيهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ قَالَ مُوسَى ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خَضِرًا وَ كَانَ مِنْ شَأْنِهِمَا مَا قَصَّ اللَّهُ.

هغه سره د' يو ځائے کيدو د پاره د' لارے تپوس اوکه. الله تعالي هغه د پاره کب (مچھلی) نښنه اوګرځوله. او ورته اووئيلے شو' چه کله تاته کب ورک شي' نو واپس شه' ته به هلته خضر عليه السّلام سره يو ځائے شے حضرت موسٰي عليه السّلام د کب نښنه درياب کښ لټوله. نو د موسٰي عليه السّلام ملګري ورته اووے' آيا تاسو اونه ليدل' کوم وخت چه مونږ هغے ګټ (غټ کاڼري) سره دمه کوله' نو مانه کب هير شولو. او د هغے يادول مانه شيطان هير کړل' حضرت موسٰي عليه السّلام اووے. دغه خو' مونږ غوارو. بيا دواړه هغے ځائے ته واپس راغلل' نو خضرؑ ئے بيامندلو. او بيا هغه قصه اوشوه' چه الله پاک سورهٔ کهف کښ بيان کړے ده.

١١٣٦: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَنْزِلُ غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ بِخَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمُوا عَلَى الْكُفْرِ يُرِيدُ الْمُحَصَّبَ.

١١٣٦: ابو اليمان' شعيب' زهري' (دويم سند) احمد بن صالح' ابن وهب' يونس' ابن شهاب' ابو سلمه بن عبد الرحمٰن' حضرت ابو هريره رضي الله عنه' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' مونږ به انشاء الله صباله خيف بني کنانه کښ کوزيږو' کوم ځائے چه هغوئ (کفارو) په کفر قسمونه خوړلے وو دے نه د حضور صلّي الله عليه وسلّم مقصد محصب (د يو مقام نوم) وو.

١١٣٧: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ حَاصَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ الطَّائِفِ

١١٣٧: عبد الله بن محمد' ابن عيينه' عمرو' ابو العبّاس' حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے' حضور صلّي الله عليه وسلّم د' اهل طائف محاصره اوکره ليکن هغه ئے فتح نه که' حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' مونږ به

فَلَمْ يَفْتَحْهَا فَقَالَ إِنَّا قَافِلُوْنَ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَقَالَ الْمُسْلِمُوْنَ نَقْفُلُ وَ لَمْ يَفْتَحْ قَالَ فَاغْدُوْا عَلَى الْقِتَالِ فَغَدَوْا فَأَصَابَتْهُمْ جِرَاحَاتٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا قَافِلُوْنَ غَدًا إِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَكَانَ ذٰلِكَ أَعْجَبَهُمْ فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

انشاء اللّٰه صباله واپس شو' نو مسلمانانو اووے' بغیر فتح به مونږ واپس کیږو. حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. بیا صباته سحر کبن جنګ اوکړئ. نو سحر کبن هغے خلقو جنګ اوکه او ډیر مسلمانان زخمي شو. نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' چه صباله به انشاء اللّٰه مونږ واپس شو. دے سره مسلمانان خوشحاله شو. او رسول صلّي اللّٰه علیه وسلّم مُسکے شولو.

باب ۵۵۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهٗ حَتّٰى إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ وَ لَمْ يَقُلْ مَاذَا خَلَقَ رَبُّكُمْ وَ قَالَ جَلَّ ذِكْرُهٗ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ إِلَّا بِإِذْنِهٖ وَ قَالَ مَسْرُوْقٌ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ إِذَا تَكَلَّمَ اللّٰهُ بِالْوَحْيِ سَمِعَ أَهْلُ السَّمٰوٰتِ شَيْئًا فَإِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ وَ سَكَنَ الصَّوْتُ عَرَفُوْا أَنَّهُ الْحَقُّ وَ نَادَوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَ يُذْكَرُ عَنْ جَابِرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أُنَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَحْشُرُ اللّٰهُ الْعِبَادَ فَيُنَادِيْهِمْ بِصَوْتٍ يَسْمَعُهٗ مَنْ بَعُدَ كَمَا يَسْمَعُهٗ مَنْ قَرُبَ أَنَا الْمَلِكُ أَنَا الدَّيَّانُ.

باب ۵۵۳: دَ اللّٰه تعالٰي قول' اللّٰه سره شفاعت هیڅ کار نه کوي' خو' د چا باره کبن چه اجازت شوے وي' تر دے چه هر کله دَ هغوئ د' زړونو نه ېره لرے کړے شي' نو هغوئ به وائي. ستاسو پروردګار څه اوفرمائیل' هغوئ به وائي' حق ئے فرمائیلے دي، او هغه بلند او' بزرګ دے او دا' ئے او' نه وے' چه ستاسو رب څه پیدا کړل. او اللّٰه عز و جل او فرمائیل څوک دے' چه د هغه د' اجازت نه بغیر هغه ته سفارش اوکړي. او مسروق د' ابن مسعود نه نقل اوکه' هر کله چه اللّٰه د' وحي په ذریعه کلام کوي' نو آسمان واله څه اوري' کوم وخت چه د هغوئ د' زړونو نه ویره لرے شي' او آواز بند شي' نو هغوئ پوهه شي' چه دا حق دے. او هغه خلق یو بل له آواز ورکوي' چه ستاسو رب څه اُوفرمائیل' هغوئ ورته وائي' حق ئے فرمائیلے دي. او جابر نه په واسطه د عبد اللّٰه بن انیس منقول دي. هغه اووے' ما د' نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل' اللّٰه به بندیان راپاسوي' بیا به هغوئ ته داسے آواز اوکړي' چه هغه به لرے او نزدے ټول یو شان آوري' چه زه بدله اخستونکے بادشاه یم.

۱۱۳۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَضَى اللّٰهُ الْأَمْرَ فِي السَّمَآءِ ضَرَبَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ بِأَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهٖ كَأَنَّهُ سِلْسِلَةٌ عَلٰى صَفْوَانٍ قَالَ عَلِيٌّ وَقَالَ غَيْرُهُ صَفْوَانٍ يَنْفُذُهُمْ ذٰلِكَ فَإِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ قَالَ عَلِيٌّ وَحَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ بِهٰذَا قَالَ سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ حَدَّثَنَا أَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ عَلِيٌّ قُلْتُ لِسُفْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ لِسُفْيَانَ إِنَّ إِنْسَانًا رَوٰى عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ يَرْفَعُهُ أَنَّهُ قَرَأَ فُزِّعَ قَالَ سُفْيَانُ هٰكَذَا قَرَأَ عَمْرٌو فَلَا أَدْرِيْ سَمِعَهُ هٰكَذَا أَمْ لَا قَالَ سُفْيَانُ وَهِيَ قِرَآءَتُنَا.

۱۱۳۸ : علي بن عبد الله، سفيان، عمرو، عكرمه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه، هغه د نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هر كله چه الله تعالٰي آسمانونو كښې څه حكم جاري كوي، نو فريښتې د هغه د حكم مخكښې عاجزۍ سره وزرې ښوروهي. هغې نه داسې آواز راوخي، څنګه چه كانړي باندې زنځير وهلو سره راوخي. علي او نورو خلقو، صفوان، دفاء د فتحه نه روايت كړې دې، بيا هغه حكم فريښتو كښې جاري كوي څه وخت چه دَ هغې فريښتو د زړونو نه ويره لرې شي، نو هغوي يو بل ته وائي. چه ستاسو رب څه اوفرمائيل، هغوئ جواب وركوي هغه حق فرمائيلي دي. علي اووې، مونږ ته سفيان، هغه د عكرمه نه، هغه د ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه دا شان روايت اوكه سفيان اووې، عمرو اووې، مَا د عكرمه نه واوريدل. هغه اووې. مونږ ته ابو هريره رضي الله عنه بيان اوكه، د علي بيان دې، ما سفيان ته اووې عمرو بن دينار داسې اووې چه ما د عكرمه نه واوريدل، هغه د، ابو هريره رضي الله عنه نه، نو سفيان اووې. او. ما سفيان ته اووې، چه يو سړي په واسطه د، عمرو، عكرمه، ابو هريره رضي الله عنه مرفوعًا روايت اوكه، چه هغه، فُزِّع اولوست. سفيان اووې، عمرو داسې لوستې دي. ليكن زه نه پوهيږم، چه دا، ئې دا شان آوريدلې دې يا نه. سفيان اووې چه دا څمونږ قرات دې.

۱۱۳۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ

۱۱۳۹ : يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، ابو سلمه بن عبد الرّحمٰن، حضرت ابو

شِهَابٍ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَذِنَ اللّٰهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَغَنَّى بِالْقُرْآنِ وَ قَالَ صَاحِبٌ لَهُ يُرِيدُ أَنْ يَجْهَرَ بِهِ.

هريره رضي اللّٰه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالىٰ هيڅ داسے نه آوري، څنګه چه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم قرآن لوستل آوري او د هغه د، يو ملګري بيان دے چه، تـغنٰى بِالْقُرْآن" (يعني قرآن خوږ آواز سره لوستل) نه مقصد د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زور سره لوستل دي.

۱۱۴۰ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللّٰهُ يَا آدَمُ فَيَقُولُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ فَيُنَادِي بِصَوْتٍ إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُخْرِجَ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ بَعْثًا إِلَى النَّارِ.

۱۱۴۰ : عمر بن حفص بن غياث، حفص بن غياث، اعمش، ابو صالح، حضرت ابو سعيد خدري رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، حضور صَلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالىٰ به فرمائي، اے ادم، نو ادم عليه السّلام وائي: لَبَّيْکَ وَ سَعْدَيْکَ: بيا به آواز راشي، اللّٰه تعالىٰ تاته حكم دركوي، چه د خپل اَولاد نه يو ډله دوزخ ته ليږلو د پاره اوكاږه.

۱۱۴۱ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلَى امْرَأَةٍ مَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ وَ لَقَدْ أَمَرَهُ رَبُّهُ أَنْ يُبَشِّرَهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ.

۱۱۴۱ : عبيد بن اسماعيل، ابو اُسامه، هشام، د خپل پلار نه، هغه د بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، بي بي عائشے اوويے زه هيڅ ښځے ته دومره نه يم پسخيدلے، څومره چه بي بي خديجےؓ ته پسخيدلے يم حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته خپل پروردګار حكم وركولو چه بي بي خديجےؓ ته جنت كښ د كور خوشخبري واوروه.

باب ۵۵۴ : كَلَامِ الرَّبِّ مَعَ جِبْرِيلَ وَ نِدَاءِ اللّٰهِ الْمَلٰٓئِكَةَ وَ قَالَ مَعْمَرٌ وَ إِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْآنَ أَيْ يُلْقٰى عَلَيْكَ وَ تَلَقَّاهُ أَنْتَ أَيْ تَأْخُذُهُ عَنْهُمْ وَ مِثْلُهُ فَتَلَقّٰى آدَمُ مِنْ رَبِّهِ

باب ۵۵۴ : د پروردګار جبرائيل سره د كلام كولو، او د، اللّٰه فريښتو ته د آواز كولو بيان. او معمر اووے: وَ اِنَّکَ لتلقّٰى الْقران : نه مراد، دا دے چه قران په تا اچولے شي. او "تلقاه" نه مراد دادے، چه ته دا، د هغوئ نه آخلے: فَتَلقّٰى ادم من رّبّه كلماتٍ: (آدم ذ خپل

كَلِمَاتٍ.

١١٣٢ : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى اِذَا اَحَبَّ عَبْدًا نَادٰى جِبْرِيْلَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَبَّ فُلَانًا فَاَحِبَّهُ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيْلُ ثُمَّ يُنَادِيْ جِبْرِيْلُ فِي السَّمَاءِ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَبَّ فُلَانًا فَاَحِبُّوْهُ فَيُحِبُّهُ اَهْلُ السَّمَآءِ وَ يُوْضَعُ لَهُ الْقَبُوْلُ فِيْ اَهْلِ الْاَرْضِ.

١١٣٣ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَتَعَاقَبُوْنَ فِيْكُمْ مَلٰٓئِكَةٌ بِاللَّيْلِ وَ مَلٰٓئِكَةٌ بِالنَّهَارِ وَ يَجْتَمِعُوْنَ فِيْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ وَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ ثُمَّ يَعْرُجُ الَّذِيْنَ يَأْتُوْا فِيْكُمْ فَيَسْاَلُهُمْ وَ هُوَ اَعْلَمُ كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِيْ فَيَقُوْلُوْنَ تَرَكْنَاهُمْ وَ هُمْ يُصَلُّوْنَ وَ اَتَيْنَاهُمْ وَ هُمْ يُصَلُّوْنَ.

١١٣٣ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ

رب نه څو كلمات اخذ كړل) د دے په مثل دے.

١١٣٢ : اسحاق، عبد الصمد، عَبدُ الرّحمٰن بن عبد اللّٰه بن دينار، عبد اللّٰه بن دينار، ابو صالح، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تبارک و تعالٰي چه يو بنده سره محبت كوي، نو جبرائيل ته اوفرمائي، چه اللّٰه تعالٰي فلاني سره محبت كوي. نو ته هم هغه سره محبت كوه، نو جبرائيلً هم ورسره محبت راواخلي، نو بيا جبرائيل عليه السّلام آسمان والو كښې اعلان كوي، چه اللّٰه فلاني سره محبت كوي، په دے وجه تاسو هم هغه سره محبت كوئے نو اسمان والا ورسره محبت كوي. بيا زمكے والو كښې هغه د پاره قبوليت پيدا كړے شيْ.

١١٣٣ : قتيبه بن سعيد، مالک، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د شپے او ورځے فريښتے تاسو ته وار به وار راځي، او دوئ دَ مازيګر او د سحر دَ مونځ په وخت يو ځائے كيږي. بيا هغه فريښتے پورته لاړے شي، كومے چه تاسو سره د شپے شوي وي. اللّٰه تعالٰي دَ هغې فريښتو نه تپوس كوي (حالانكه هغه خپله ښه واقف دے) چه تاسو ځما بنديان كوم حالت كښې پريښودلے دي، فريښتے جواب وركوي، مونږ هغوي د مونځ كولو حالت كښې پريښے دي، او كوم وخت چه مونږ د هغوئ نه راتلو، هغه وخت هم هغوئ مونځ كولو.

١١٣٣ : محمد بن بشا، غندر، واصل، معرور،

بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاصِلٍ عَنِ الْمَعْرُوْرِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَانِيْ جِبْرِيْلُ فَبَشَّرَنِيْ أَنَّهُ مَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَ إِنْ سَرَقَ وَ إِنْ زَنٰى قَالَ وَ إِنْ سَرَقَ وَ إِنْ زَنٰى.

ابوذر، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ماته جبرائيل راغيے، او خوشخبري ئے راکړه، کوم سړے چه داسے حال کښې مړ شو، چه اللّٰه سره ئے څوک شريک جوړ نه کړلو، نو هغه به جنت کښې داخليږي. ما اووے، اګرکه هغه غلا (چوري) کړے وي، اګرکه هغه زنا کړے وي، حضور صَلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اګرکه غلا ئے کړے وي، اګرکه زنا ئے کړے وي.

بَاب ۵۵۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى أَنْزَلَهُ بِعِلْمِهِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ قَالَ مُجَاهِدٌ يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ بَيْنَ السَّمَآءِ السَّابِعَةِ وَالْأَرْضِ السَّابِعَةِ.

باب ۵۵۵: د اللّٰه تعالٰي قول، چه اللّٰه دَ اخپل علم سره نازل کړے دے. او فرښتے ګواه دي. مجاهد اووے. يتنزّل الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ: نه مراد دا دے، چه حکم دَ اووم (۷) آسمان او اووم (۷) زمکے مينځ کښې نازليږي.

۱۱۴۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحٰقَ الْهَمْدَانِيُّ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا فُلَانُ إِذَآ أَوَيْتَ إِلٰى فِرَاشِكَ فَقُلِ اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِيْٓ إِلَيْكَ وَ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ إِلَيْكَ وَ فَوَّضْتُ أَمْرِيْٓ إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِيْٓ إِلَيْكَ رَغْبَةً وَّ رَهْبَةً إِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَ لَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِيْٓ أَنْزَلْتَ وَ بِنَبِيِّكَ الَّذِيْٓ أَرْسَلْتَ فَإِنَّكَ إِنْ مِتَّ فِيْ لَيْلَتِكَ مِتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ وَ إِنْ أَصْبَحْتَ أَصَبْتَ أَجْرًا.

۱۱۴۵: مسدد، ابو الاحوص، ابو اسحاق همداني، حضرت براء بن عازب نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه اے فلانيه، چه ته خپلے بستره ته لاړشے، نو داسے وايه: اَللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ نَفْسِيْٓ اِلَيْکَ و وجهت امري اليک وَالجات ظهري اليک رغبةً و رهبةً اِليک لا ملجاءَ وَ لا منجا منک اِلَّا اليکَ امنت بکتابک الَّذِيْ انزلت و بنبيکَ الَّذِيْٓ ارسلت: بيا که ته به هغه شپه مړشے، نو فطرت (يعني دينِ اسلام) باندے به مړ شے او که سحر کړے (يعني ژوندے پاتے شوے) نو اجر ته به اورسے.

۷۳۴۶ ا : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْاَحْزَابِ اَللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيْعَ الْحِسَابِ اهْزِمِ الْاَحْزَابَ وَ زَلْزِلْ بِهِمْ زَادَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ خَالِدٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷۳۴۶ ا : قتيبه بن سعيد، سفيان، اسماعيل بن ابي خالد، عبد اللّٰه بن ابي اوفٰي نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د جنګِ احزاب په ورځ دا، دعاء اوكړله، اے اللّٰه، د كتاب نازلونكيه، زر حساب اخستونكيه دَ كافرو ډلے له شكست وركړے، او دَ هغوي پښے اوخويئے (ډګمګادے) او حميدي دومره زيات بيان اوكه مونږ ته سفيان اووے، مونږ ته ابن خالد بيان اوكه، چه ما دَ عبد اللّٰه نه واوريدل، هغه اووے، ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل.

۷۳۴۷ ا : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ هُشَيْمٍ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا قَالَ اُنْزِلَتْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَوَارٍ بِمَكَّةَ فَكَانَ اِذَا رَفَعَ صَوْتَهُ سَمِعَ الْمُشْرِكُوْنَ فَسَبُّوا الْقُرْاٰنَ وَ مَنْ اَنْزَلَهُ وَ مَنْ جَآءَ بِهٖ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلٰوتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلٰوتِكَ حَتّٰى يَسْمَعَ الْمُشْرِكُوْنَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا عَنْ اَصْحٰبِكَ فَلَا تُسْمِعُهُمْ وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا اَسْمِعْهُمْ وَ لَا تَجْهَرْ حَتّٰى يَأْخُذُوْا عَنْكَ الْقُرْاٰنَ.

۷۳۴۷ ا : مسدد، هشيم، ابو بشر، سعيد بن جبير، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه: آيت: وَ لَا تجهر بصلوتک و لا تخافت بها: متعلق روايت كوي. دَ هغه بيان دے، دا، ايت هغه وخت نازل شو، كوم وخت چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم مكه كښ پټ (پوشيده) وو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه به خپل آواز اوچت كړلو. او مشركينو به اوريدلو، نو قرآن او د هغے نازلونكي ته به ئے بدرد وئيلے، نو اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، خپل مونځ اوچت آواز سره مه كوه، او نه رو، رو، كوه، يعني دومره زور سره ئے مه كوه، چه مشركان ئے واوري، او نه دومره رو ئے كوه، چه ستا ملګري ئے هم وانه ريدے شي. د دے درميانه طريقه تلاش كړه، هغوئ ته آورره، چه هغوئ درنه قرآن زده كړي، دومره زور سره ئے مه وايه.

## باب ۵۵۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلَامَ اللّٰهِ لَقَوْلٌ

باب ۵۵۶: د، اللّٰه تعالٰي قول، دا خلق د، اللّٰه كلام بدلول غواړي. د قرآن د: قولٌ فصل: نه مراد دادے

فَصْلٌ حَقٌّ وَ مَا هُوَ بِالْهَزْلِ بِاللَّعِبِ.

چه دا حق دے. او د لوبو ټوقو خبرنه دے.

١١٤٨ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى يُؤْذِيْنِي ابْنُ اٰدَمَ يَسُبُّ الدَّهْرَ وَ اَنَا الدَّهْرُ بِيَدِيَ الْاَمْرُ اُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ.

١١٤٨ : حميدي، سفيان، زهري، سعيد بن مسيب، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي فرمائي، ماته بني آدم تكليف راكوي، چه زمانے ته كنځل كوي، حالانكه زمانه زه يم ځما لاس كښې ټول كارونه دي، شپے او، ورځے له زه ګردش وركوم.

١١٤٩ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نَعِيْمٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ الصَّوْمُ لِيْ وَ اَنَا اَجْزِيْ بِهٖ يَدَعُ شَهْوَتَهٗ وَ اَكْلَهٗ وَ شُرْبَهٗ مِنْ اَجْلِيْ وَالصَّوْمُ جُنَّةٌ وَّ لِلصَّائِمِ فَرْحَتَانِ فَرْحَةٌ حِيْنَ يُفْطِرُ وَ فَرْحَةٌ حِيْنَ يَلْقٰى رَبَّهٗ وَ لَخُلُوْفُ فَمِ الصَّآئِمِ اَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِّيْحِ الْمِسْكِ.

١١٤٩ : ابو نعيم، الاعمش، ابو صالح، حضرت ابو هريره، نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله عز و جل فرمائي. روژه ما د پاره ده، او زه به د هغے بدله وركوم، ځما په وجه هغه خپل خواهش او خوراک څكاک پريږدي. او روژه ډهال دے، او روژه دار د پاره دوه (٢) خوشحالي دي، يوه خوشحالي، كوم وخت چه هغه روژه ماتوي، او بله خوشحالي، كوم وخت چه هغه خپل رب سره ملاقات اوكړي، او د، روژه دار د خولے بوئ الله ته د مشكو د خوشبوئ نه هم زيات عزيز دے.

١١٥٠ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا اَيُّوْبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا خَرَّ عَلَيْهِ رِجْلُ جَرَادٍ مِّنْ ذَهَبٍ فَجَعَلَ يَحْثِيْ فِيْ ثَوْبِهٖ فَنَادٰى رَبُّهٗ يَا اَيُّوْبُ اَلَمْ اَكُنْ اَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرٰى قَالَ بَلٰى يَا

١١٥٠ : عبد اللّٰه بن محمد، عبد الرزّاق، معمر، همام، ابو هريره رضي الله عنه، نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، يو خل حضرت ايوب عليه السّلام بربنډ لامبل، نو د سرو زرو د ملخانو يو سيل په هغه راوغرځيدلو. هغه په خپله كپره كښې راټولول. نو د پروردګار نه پرے آواز اوشو، اے ايوبه، آيا ته ما، د دے نه مستغني كړے نه ئے، چه ته وينے. ايوب عليه السّلام اووے. او. اے ربه، ليكن زه ستا

رَبِّ وَ لٰكِنْ لَا غِنٰى بِيْ عَنْ بَرَكَتِكَ.

د بركت د طرف نه بې نيازه كيدې نشم.

۱۱۵۱ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَغَرِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَتَنَزَّلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى كُلَّ لَيْلَةٍ اِلَى السَّمَآءِ الدُّنْيَا حِيْنَ يَبْقٰى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْاٰخِرُ فَيَقُوْلُ مَنْ يَدْعُوْنِيْ فَاَسْتَجِيْبَ لَهٗ مَنْ يَسْاَلُنِيْ فَاُعْطِيَهٗ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِيْ فَاَغْفِرَ لَهٗ.

۱۱۵۱ : اسماعيل، مالک، ابن شهاب، ابو عبد الله اعز، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل څمونږ بركت ناک او بلند پروردګار هره شپه د دُنيا آسمان ته راكوزيږي، كوم وخت چه د شپې آخري تهائي حصه باقي وي (يعني آخري پهر كښې) بيا فرمائي، څوک شته، چه مانه دُعا اوغواړي، او زه ئې قبوله كړم، او څوک شته، چه مانه اوغواړي، او زه وركړم او څوک شته، چه مانه مغفرت اوغواړي او زۀ ئې اوبښم.

۱۱۵۲ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ الْاَعْرَجَ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ بِهٰذَا الْاِسْنَادِ قَالَ اللّٰهُ اَنْفِقْ اُنْفِقْ عَلَيْكَ.

۱۱۵۲ : ابو اليمان، شعيب، ابو الزناد، اعرج، ابو هريره رضي الله عنه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. مونږ دُنيا ته آخر كښې راتلونكي يو. او قيامت كښې به د ټولو نه مخكښې يو. او دې سند سره روايت دې، الله تعالٰي فرمائي، تاسو خرچ كوئې، زه به په تاسو خرچ كوم.

۱۱۵۳ : حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ فَقَالَ هٰذِهٖ خَدِيْجَةُ اَتَتْكَ بِاِنَآءٍ فِيْهِ طَعَامٌ اَوْ اِنَآءٍ فِيْهِ شَرَابٌ فَاَقْرِئْهَا مِنْ رَّبِّهَا السَّلَامَ وَ بَشِّرْهَا بِبَيْتٍ مِّنْ قَصَبٍ لَا صَخَبَ فِيْهِ وَ لَا نَصَبَ.

۱۱۵۳ : زهير بن حرب، ابن فضيل، عماره، ابو زرعه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي چه، جبرائيل عليه السّلام هغوي ته اووې چه دا، خديجه رضي الله عنها، چه تاته ئې لوښي كښې طعام يا اُوبه راوړې دي. دې ته دَ خپل رب دَ طرف نه سلام اووايه او دَ يو، موتي محل خوشخبري وركړه، چه هغې كښې به شور، نه وي، او نه به څه تكليف وي.

۱۱۵۴ : حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ اَسَدٍ

۱۱۵۴ : معاذ بن اسد، عبد الله، معمر، همام بن

أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ أَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِيْنَ مَالَا عَيْنٌ رَأَتْ وَ لَا أُذُنٌ سَمِعَتْ وَ لَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ.

منبه، حضرت ابو هريرهؓ حضور صلّي الله عليه وسلّم نه روايت كوي حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله پاک فرمائي، ما خپل نيكو بنديانو د پاره داسې څيزونه تيار كړي دي. چه هغه نه يو سترګې ليدلي دي، نو يو غوږ اوريدلي دي او نه د، يو سړي په زړه كښې تير شوي دي.

١١٥٥: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِيْ سُلَيْمَانُ الْأَحْوَلُ أَنَّ طَاوُسًا أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَهَجَّدَ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيِّمُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ مَنْ فِيْهِنَّ أَنْتَ الْحَقُّ وَ وَعْدُكَ الْحَقُّ وَ قَوْلُكَ الْحَقُّ وَ لِقَآءُكَ الْحَقُّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالنَّبِيُّوْنَ حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ حَقٌّ اَللّٰهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَ بِكَ اٰمَنْتُ وَ عَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَ إِلَيْكَ أَنَبْتُ وَ بِكَ خَاصَمْتُ وَ إِلَيْكَ حَاكَمْتُ فَاغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَ مَا أَخَّرْتُ وَ مَا أَسْرَرْتُ وَ مَا أَعْلَنْتُ أَنْتَ إِلٰهِيْ لَآ إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ.

١١٥٥: محمود، عبد الرزّاق، ابن جريج، سليمان احول، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دي، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چه به د شپې تهجد كول، نو دا، دُعا به ئې كوله، اې اللّٰه، تا لره تعريف دې، ته د، اسمانونو او زمكې نور ئې، او تا لره تعريف دې، ته د، اسمانونو او زمكې قائم لرونكې ئې، او څه چه دې كښې دي، د ټولو رب ئې، ته حق ئې، او ستا وعده حق ده، او، ستا وينا حق ده او، ستا ملاقات حق دې. او جنت حق دې. او دوزخ حق دې. او تمام نبيان حق دي. او قيامت حق دې، اې اللّٰه، ما ستا د پاره اسلام راوړلو. او په تا، م ايمان راوړلو. په تا، م بهروسه اوكړه او، ستا پلو م رجوع اوكړه. او ستا طرف نه م جګړه اوكړه او، تا نه م فيصله اوغوښته لېه ته څما مخكني ورستي او، پټ او، ظاهر ټول ګناهونه اوبښې (اې اللّٰه) ته څما مددګار، ئې. بغير تا نه بل څوک معبود نشته.

١١٥٦: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ

١١٥٦: حجاج بن منهال، عبد اللّٰه بن عمر نمير، يونس بن يزيد ايلي، زهري نه روايت

النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدَ الْاَيْلِيُّ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدَ ابْنَ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ حَدِيْثِ عَآئِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ مَا قَالُوْا فَبَرَّاَهَا اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا وَ كُلٌّ حَدَّثَنِيْ طَآئِفَةً مِّنَ الْحَدِيْثِ الَّذِيْ حَدَّثَنِيْ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ وَ لٰكِنْ وَاللّٰهِ مَا كُنْتُ اَظُنُّ اَنَّ اللّٰهَ يُنْزِلُ فِيْ بَرَاءَتِيْ وَحْيًا يُتْلٰى وَ لَشَاْنِيْ فِيْ نَفْسِيْ كَانَ اَحْقَرَ مِنْ اَنْ يَّتَكَلَّمَ اللّٰهُ فِيَّ بِاَمْرٍ يُتْلٰى وَ لٰكِنِّيْ كُنْتُ اَرْجُوْٓا اَنْ يَّرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ رُؤْيَا يُبَرِّئُنِيَ اللّٰهُ بِهَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْ بِالْاِفْكِ الْعَشْرُ الْاٰيٰتِ.

كوي. هغه اوږي' مَا دَ عروه بن زبير رضي اللّٰه عنه' سعيد بن مسيب' علقمه بن وقاص او عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه نه' د بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها د نبي صَلّي اللّٰه عليه وسلّم د' تېر د' افک د واقعې متعلق' چه دَ هغې نه اللّٰه پاک د هغې برات ظاهر کړې وو' دا حديث واورېدو. او هغوئ کښې هر يو د دې حديث يوه يوه حصه بيان کړه' چه هغوي ته د بي بي عائشې رضي اللّٰه عنها اوفرمائيل. په خدائې مِ دې قسم وي' ځما گمان هم نه وو' چه اللّٰه پاک به ځما برات (بَري کيدو) کښې څه وحي نازله کړي' چه لوستې به شي' او ما خپل زړه کښې خپل شان په دې حقله حقير گنړلو (يعني چه چرته ځما په حقله وحي نازليدل) چه اللّٰه تعالٰي به ځما متعلق داسې کلام اوفرمائي' چه قيامته پورې بَه لوستې شي بلکه ماته (بس) دا اُميد وو' چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم به څه خوب اوويني' چه دَهغې په ذريعه به اللّٰه تعالٰي ځما بَري کيدل ظاهر کړي' نو اللّٰه پاک لس (۱۰) آيتونه نازل کړل: انَّ الَّذِيْنَ جَآؤا بِالافک: الخ.

۷۱۵۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا الْمُغِيْرَةُ بْنُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُوْلُ اللّٰهُ اِذَا اَرَادَ عَبْدِيْ اَنْ يَّعْمَلَ سَيِّئَةً فَلَا تَكْتُبُوْهَا عَلَيْهِ حَتّٰى يَعْمَلَهَا فَاِنْ عَمِلَهَا فَاكْتُبُوْهَا بِمِثْلِهَا وَ اِنْ تَرَكَهَا

۷۱۵۷: قتيبه بن سعيد' مغيره بن عبد الرحمٰن' ابو الزناد' اعرج' ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّٰه تعالٰي فريښتو ته فرمائي' کله چه ځما بنده د گناه اراده اوکړي' نو څو پورې چه هغه په هغې عمل اونه کړي' دَ هغه گناه مه ليکئې' او که هغه په هغې عمل اوکړي' نو يوه گناه ئې اوليکئې' او که هغه' ځما په وجه هغه پرېږدي' نو هغه د

مِنْ أَجْلِيْ فَاكْتُبُوْهَا لَهٗ حَسَنَةً وَّ إِذَآ أَرَادَ أَنْ يَّعْمَلَ حَسَنَةً فَلَمْ يَعْمَلْهَا فَاكْتُبُوْهَا لَهٗ حَسَنَةً فَإِنْ عَمِلَهَا فَاكْتُبُوْهَا لَهٗ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا إِلٰى سَبْعِ مِائَةٍ.

پاره يو نيکي اوليکئ. او کله چه ذ نيکۍ اراده کوي، نو هغه د پاره يوه نيکي اوليکئ، او که هغه په هغې عمل اوکړي، نو د لس (۱۰) چنده نه تر اوه سوه (۷۰۰) چنده پورې ورله اوليکئ.

۱۱۵۸ : حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِيْ مُزَرِّدٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَلَقَ اللّٰهُ الْخَلْقَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ فَقَالَ مَهْ قَالَتْ هٰذَا مَقَامُ الْعَائِذِبِكَ مِنَ الْقَطِيْعَةِ فَقَالَ أَلَا تَرْضَيْنَ أَنْ أَصِلَ مَنْ وَّصَلَكِ وَ أَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ قَالَتْ بَلٰى يَا رَبِّ قَالَ فَذٰلِكِ لَكِ ثُمَّ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوْا فِي الْأَرْضِ وَ تُقَطِّعُوْآ أَرْحَامَكُمْ.

۱۱۵۸ : اسماعيل بن عبد الله، سليمان بن بلال، معاويه بن مزرد، سعيد بن يسار، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، نبي صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله تعالیٰ چه د مخلوق پيدا کولو نه فارغ شو، نو رَحم (رشته) اودريده، الله تعالیٰ اوفرمائيل. اودريږه، هغه (يعني رحم) عرض اوکه، چه دا، د قطع رحم نه ستا د پناه غوښتونکي مقام دے. الله تعالیٰ اوفرمائيل، آيا ته په دے خبره راضي نه يې، چه زه هغه چاسره يو ځائے شم، چه تاسره يو ځائے شي. او هغه چاسره تعلق پريکړم، چه تا قطع کړي هغه عرض اوکه. او. اے خما ربه الله تعالیٰ اوفرمائيل، چه ستا دا مقام دے. ابو هريره رضي الله عنه دا، آيت اولوست: څه عجيبه ده. که تاسو مالکان شئ، نو زمکه کښې به فساد خور کړئ، او رشته داري به قطع کړئ.

۱۱۵۹ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ صَالِحٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ مُطِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قَالَ اللّٰهُ أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِيْ كَافِرٌ بِيْ وَ مُؤْمِنٌ بِيْ.

۱۱۵۹ : مسدد، سفيان، صالح، عبيد الله، زيد بن خالد رضي الله عنه نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے، د حضور صلّي الله عليه وسلّم په زمانه کښې باران اوشو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله تعالیٰ اوفرمائيل. خما بعضے بنديان خما نه انکار کونکي او په ما ايمان راوړلو واله شو.

۱۱۶۰ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ

۱۱۶۰ : اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج،

حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ إِذَا أَحَبَّ عَبْدِيْ لِقَآءِ يْ أَحْبَبْتُ لِقَآءَهُ وَ إِذَا كَرِهَ لِقَآءِ يْ كَرِهْتُ لِقَآءَهُ.

حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل الله پاک فرمائي. كله چه خما بنده ماسره يو ځائے كيدل خوښه وي، نو زه هم هغه سره يو ځائے كيدل خوښوم. او كله چه هغه ماسره يو ځائے كيدل نه خوښوي، نو زه هم ورسره يو ځائے كيدل نه خوښوم.

۱۱۶۱ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِيْ بِيْ.

۱۱۶۱ : ابو اليَمَان، شَعَيب، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. الله تعالٰي فرمائي، زه د خپل بنده د هغے ګمان نزدے يم. چه هغه ئے خما متعلق كوي.

۱۱۶۲ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مٰلِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لَمْ يَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ فَإِذَا مَاتَ فَحَرِّقُوْهُ وَاذْرُوْا نِصْفَهُ فِي الْبَرِّ وَ نِصْفَهُ فِي الْبَحْرِ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ قَدَرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ لَيُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا لَا يُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِيْنَ فَأَمَرَ اللّٰهُ الْبَحْرَ فَجَمَعَ مَا فِيْهِ وَ أَمَرَ الْبَرَّ فَجَمَعَ مَا فِيْهِ ثُمَّ قَالَ لِمَ فَعَلْتَ قَالَ مِنْ خَشْيَتِكَ وَ أَنْتَ أَعْلَمُ. فَغَفَرَ لَهُ.

۱۱۶۲ : اسماعيل، مالک، ابو الزناد، اعرج، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل بني اسرائيلو كښې يو سړي وصيت اوكه، چه هغه هيڅ كله نيک كار نه دے كړے، كله چه هغه مړشي، نو هغه اوسوزوئے. او نيمه حصّه ئے خشكي كښې اونيمه حصّه ئے سمندر كښې اونولئے قسم په خدائے، كه خدائے په هغه قدرت بيامند، نو هغه له به داسے عذاب وركړي، چه دُنيا والو كښې به ئے هيچا له وي وركړے الله تعالٰي سمندر ته حكم اوكه، نو هغه، هغه حصّه چه هغه كښې وه، راجمع كړه او خشكي ته ئے حُكم اوكه، نو هغے هم هغه حصّه، چه هغے كښې وه، راجمع كړه. بيا الله تعالٰي ورته اوفرمائيل، تا داسے ولے اوكړل. هغه اووے، ستا د ويرے نه (م داسے وكړل) او تاته دا خبره ښه معلومه ده، نو الله پاک هغه وبخښلو.

۱۱٦۳ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اِسْحَاقَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِيْ عَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ عَبْدًا اَصَابَ ذَنْبًا وَ رُبَّمَا قَالَ اَذْنَبَ ذَنْبًا فَقَالَ رَبِّ اَذْنَبْتُ وَ رُبَّمَا قَالَ اَصَبْتُ فَاغْفِرْلِيْ فَقَالَ رَبُّهُ اَعَلِمَ عَبْدِيْ اَنَّ لَهُ رَبًّا يَّغْفِرُ الذَّنْبَ وَ يَاْخُذُ بِهٖ غَفَرْتُ لِعَبْدِيْ ثُمَّ مَكَثَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ اَصَابَ ذَنْبًا اَوْ اَذْنَبَ ذَنْبًا فَقَالَ رَبِّ اَذْنَبْتُ اَوْ اَصَبْتُ اٰخَرَ فَاغْفِرْهُ لِيْ فَقَالَ اَعَلِمَ عَبْدِيْ اَنَّ لَهُ رَبًّا يَّغْفِرُ الذَّنْبَ وَ يَاْخُذُ بِهٖ غَفَرْتُ لِعَبْدِيْ ثُمَّ مَكَثَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ اَذْنَبَ ذَنْبًا وَّ رُبَّمَا قَالَ اَصَابَ ذَنْبًا قَالَ قَالَ رَبِّ اَصَبْتُ اَوْ اَذْنَبْتُ اٰخَرَ فَاغْفِرْهُ لِيْ فَقَالَ اَعَلِمَ عَبْدِيْ اَنَّ لَهُ رَبًّا يَّغْفِرُ الذَّنْبَ وَ يَاْخُذُ بِهٖ غَفَرْتُ لِعَبْدِيْ ثَلٰثًا فَلْيَعْمَلْ مَا شَآءَ.

۱۱٦۳ : احمد بن اسحاق، عمرو بن عاصم، همّام، اسحاق بن عبد الله، عبد الرحمٰن بن ابي عمره، ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي، ما د نبي صلّي الله عليه وسلّم نه واوريدل، چه يو بنده گناه اوكړله. (كله حضور: اَصَابَ ذَنْبًا: اوفرمائيل، او كله: اذنب ذنبًا: اوفرمائيل هغه اووے، اے خما پروردگاره، مَا گناه اوكړله (كله ئے: اَذْنَبت: اوفرمائيل، او كله ئے: اصبت" اوفرمائيل، نو د هغه پروردگار اوفرمائيل، خما بنده پوهيږي، چه د هغه خوک پروردگار شته، چه گناهونه ببښي، او په هغے نيوكه (مواخذه) كوي ما خپل بنده اوبښلو. بيا څو پورے چه الله ته منظوره وه، هغه بنده ايسار وو. بيا گناه ته اورسيد. يا، وے فرمائيل گناه ئے اوكړله. نو عرض ئے اوكه اے خما پروردگاره بيا زه گناه ته اورسيدم، يا (وے فرمائيل) گناه م اوكړه، ته هغه اوبښے، نو الله تعالٰي اوفرمائيل. خما بنده پوهيږي، چه دَ هغه څوک رب شته، چه گناه ببښي، او په هغے مواخذه هم كوي، ما خپل بنده اُوبښلو، څو پورے چه الله ته منظوره وه، هغه بنده ايسار وو (يعني گناه ئے نه كوله) بيا هغه گناه اوكړه. او بعضے خل ئے اُوفرمائيل، گناه ته اورسيد. هغه اووے. اے خما ربه، زه گناه ته اورسيدم، يا گناه م اوكړله، ته هغه اوبښے، الله تعالٰي اوفرمائيل خما بنده پوهيږي، چه دَ هغه رب شته، چه گناه ئے ببښي، او په هغے مواخذه هم كوي. مَا خپل بنده اوبښه، درے (۳) خله ئے اوفرمائيل، نو چه څه غواړي، او، دے كړي.

۱۱٦۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ

۱۱٦۴ : عبد الله بن ابي الاسود، معتمر، د معتمر [illegible] (سليمان) قتاده عقبه بن عبد الغافر حضرت

سَمِعْتُ أَبِيْ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْغَافِرِ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ذَكَرَ رَجُلًا فِيْمَنْ سَلَفَ أَوْ فِيْمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ قَالَ كَلِمَةً يَعْنِيْ أَعْطَاهُ اللّٰهُ مَالًا وَّ وَلَدًا فَلَمَّا حَضَرَةُ الْوَفَاةُ قَالَ لِبَنِيْهِ أَيَّ أَبٍ كُنْتُ لَكُمْ قَالُوْا خَيْرَ أَبٍ قَالَ فَإِنَّهُ لَمْ يَبْتَئِرْ أَوْلَمْ يَبْتَئِزْ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرًا وَ إِنْ يَّقْدِرِ اللّٰهُ عَلَيْهِ يُعَذِّبْهُ فَانْظُرُوْا إِذَا مُتُّ فَأَحْرِقُوْنِيْ حَتّٰى إِذَا صِرْتُ فَحْمًا فَاسْحَقُوْنِيْ أَوْ قَالَ فَاسْحَكُوْنِيْ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ رِيْحٍ عَاصِفٍ فَأَذْرُوْنِيْ فِيْهَا فَقَالَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ مَوَاثِيْقَهُمْ عَلٰى ذٰلِكَ وَ رَبِّيْ فَفَعَلُوْا ثُمَّ أَذْرَوْهُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ فَقَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ كُنْ فَإِذَا هُوَ رَجُلٌ قَائِمٌ قَالَ اللّٰهُ أَيْ عَبْدِيْ مَا حَمَلَكَ عَلٰى أَنْ فَعَلْتَ مَا فَعَلْتَ قَالَ مَخَافَتُكَ أَوْ فَرَقٌ مِّنْكَ قَالَ قَالَ فَمَا تَلَافَاهُ أَنْ رَّحِمَهُ عِنْدَهَا وَ قَالَ مَرَّةً أُخْرٰى فَمَا تَلَافَاهُ غَيْرُهَا فَحَدَّثْتُ بِهِ أَبَا

ابو سعيد رضي اللّٰه عنه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د' تيرو خلقو نه د' يو سړي ذكر اوكه (يا' دا شان ئے اوفرمائيل' چه تاسو نه مخكښې كوم خلق وو) ذَ هغه متعلق حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم څه اوفرمائيل' يعني اللّٰه هغه له مال او' اولاد هر څه وركړي وو. كوم وخت چه ذَ هغه د مرګ وخت نزدے شو' نو هغه ذَ خپلو ځامنو نه تپوس اوكه' زه ستاسو څنګه پلار ووم' هغوئ جواب وركه' ډير ښه پلار. هغه ورته اووے' ما اللّٰه ته هيڅ نيكي نه ده ليږلے' كه اللّٰه تعالٰي په ما قدرت بيامند' نو ماله به عذاب راكړي. ګورے' كله چه زه مړشم' نو ما اوسوزوئے' تر دے چه زه سكاره (كوئله) شم' نو ما ميده كړئے: (فاسحقوني يا فاسحكوني: ئے اوفرمائيل) او' په كومه ورځ چه تيزه سيلئ راشي' هغے كښې مَا والوځوئے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل په خپل رب مِ قسم دے' چه هغه د خپلو ځامنو نه په دے خبره لوظ واخست' نو هغوئ دغسے اوكړل. او هغه ئے د تيزے هوا په ورځ هوا كښې والوځولو. بيا اللّٰه بزرګ و برتر اوفرمائيل: كُن: (اوشه) نو هغه سړے مخے ته ولاړ وو' اللّٰه اوفرمائيل. اے ځما بنده' دا څه چه تا اوكړل. دے ته څه څيز آماده كړے. هغه جواب وركه' ستا خوف (مخافتك يا فرق مِنكَ: ئے اوفرمائيل) حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' بيا چه اللّٰه تعالٰي ذَ هغه تلافي اوفرمائيله' هغه دا وو چه په ده ئے رحم اوكه. او دويم ځل ئے اوفرمائيل' چه دے نه سوا څه تلافي ئے اونه فرمائيله. د سليمان بيان دے. مَا ابو عثمان ته دا حديث بيان كه' نو هغه اووے'

عُثْمَانَ فَقَالَ سَمِعْتُ هٰذَا مِنْ سَلْمَانَ غَيْرَ اَنَّهُ زَادَ فِيْهِ اَذْرُوْنِيْ فِي الْبَحْرِ اَوْ كَمَا حَدَّثَ.

چه ما دا سليمان نه آوريدلي دي، خو، دا چه هغه دومره زيات بيان اوكه، چه: اذروني في البحر: يا څنګه چه بيان لې اوكه.

حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ وَ قَالَ لَمْ يَبْتَئِرْ وَ قَالَ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ وَ قَالَ لَمْ يَبْتَئِرْ فَسَّرَهُ قَتَادَةُ لَمْ يَدَّخِرْ.

موږ ته موسٰي په واسطه د معمر حديث بيان كه. هغې كښې لې د لم يبتئر: لفظ بيان كه. او خليفه اوويے، موږ ته معتمر حديث بيان كه، او هغه د: لم يبتئر: لفظ بيان كه. قتاده د دے تفسير: لم يدخر بيان كړے دے.

## بَاب ۵۵۷: كَلَامِ الرَّبِّ عَزَّ وَ جَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَعَ الْاَنْبِيَاءِ وَ غَيْرِهِمْ.

## بـاب ۵۵۷: د خـداے تـعـالٰـي د قيامت په ورځ انبياؤ وغيره سره د كلام كولو بيان.

۱۱۶۵: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ شُفِّعْتُ قُلْتُ يَا رَبِّ اَدْخِلِ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ خَرْدَلَةٌ فَيَدْخُلُوْنَ ثُمَّ اَقُوْلُ اَدْخِلِ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ اَدْنٰى شَيْءٍ فَقَالَ اَنَسٌ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى اَصَابِعِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۶۵: يوسف بن راشد، احمد بن عبد اللّٰه، ابوبكر بن عيّاش حميد، حضرت انس رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے، ما د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، ذ قيامت ورځ چه راشي، نو څما شفاعت به قبول كړے شي. زه به عرض اوكړم اے څما پروردګاره، هغه سړے اوبښے چه د هغه زړه كښ د، اوري (رائي) برابر هم ايمان وي، نو هغه خلق به جنت كښ داخل شي. بيا به زه عرض اوكړم، چه هغه جنت كښ داخل كړئے، د چا زړه كښ چه د، ذرے برابر هم ايمان وي، د، انس رضي اللّٰه عنه بيان دے، ګويا چه زه، د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ګوتے وينم (چه هغے سره اشارے كولو سره حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي وو).

۱۱۶۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا مَعْبَدُ بْنُ هِلَالٍ

۱۱۶۶: سليمان بن حرب، حماد بن زيد، معبد بن هلال عنزي نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے. موږ د بصرے څو سړي يو ځائے جمع شو. او. انس بن مالک

الْعَنَزِيُّ قَالَ اجْتَمَعْنَا نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ فَذَهَبْنَا إِلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَ ذَهَبْنَا مَعَنَا بِثَابِتٍ إِلَيْهِ يَسْأَلُهُ لَنَا عَنْ حَدِيثِ الشَّفَاعَةِ فَإِذَا هُوَ فِيْ قَصْرِهِ فَوَافَقْنَاهُ يُصَلِّي الضُّحٰى فَاسْتَأْذَنَّا فَأَذِنَ لَنَا وَ هُوَ قَاعِدٌ عَلٰى فِرَاشِهِ قُلْنَا لِثَابِتٍ لَا تَسْأَلْهُ عَنْ شَيْءٍ أَوَّلَ مِنْ حَدِيثِ الشَّفَاعَةِ فَقَالَ يَا أَبَا حَمْزَةَ هٰؤُلَاءِ إِخْوَانُكَ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ جَاءُوكَ يَسْأَلُوْنَكَ عَنْ حَدِيثِ الشَّفَاعَةِ فَقَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَانَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَاجَ النَّاسُ بَعْضُهُمْ فِيْ بَعْضٍ فَيَأْتُوْنَ اٰدَمَ فَيَقُوْلُوْنَ اشْفَعْ لَنَا إِلٰى رَبِّكَ فَيَقُوْلُ لَسْتُ لَهَا وَ لٰكِنْ عَلَيْكُمْ بِإِبْرَاهِيْمَ فَإِنَّهُ خَلِيْلُ الرَّحْمٰنِ فَيَأْتُوْنَ إِبْرَاهِيْمَ فَيَقُوْلُ لَسْتُ لَهَا وَ لٰكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُوْسٰى فَإِنَّهُ كَلِيْمُ اللّٰهِ فَيَأْتُوْنَ مُوْسٰى فَيَقُوْلُ لَسْتُ لَهَا وَ لٰكِنْ عَلَيْكُمْ بِعِيْسٰى فَإِنَّهُ رُوْحُ اللّٰهِ وَ كَلِمَتُهُ فَيَأْتُوْنَ عِيْسٰى فَيَقُوْلُ لَسْتُ لَهَا وَ لٰكِنْ

رضي اللّٰه عنه له ورغلو. خان سره مو، ثابت هم بوتلو، چه هغه د، انس رضي اللّٰه عنه نه مونږ د پاره د شفاعت د حديث متعلق تپوس اوکړي. هغه وخت حضرت انس رضي اللّٰه عنه خپل محل کښې وو مونږ د، ور داخليدو اجازت اوغښتلو هغه اجازت راکړلو، هغه وخت هغه په خپله بستره ناست وو. مونږ ثابت ته اووې، چه ده نه شفاعت د حديث نه مخکښې بل څه تپوس مه کوه. نو ثابت اووې، اے ابو حمزه، دا ستا ورونړه بصرے واله دي، او تاله دے د پاره راغلے دي، چه تانه دَ شفاعت حديث اوپښتي. هغه اووے. مونږ ته محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم بيان اوفرمائيلو، چه د قيامت ورځ شي، نو خلق به د درياب پشان موجو نه وهي. (ناقلاره به وي) دا خلق به حضرت آدم عليه السلام له راشي او، ورته به وائي. چه خپل پروردګار ته څمونږ شفاعت اوکه. هغه به ورته وائي. زه د دے اهل نه يم. ليکن تاسو حضرت ابراهيم عليه السّلام له ورشئے. هغه د اللّٰه خليل (دوست) دے. بيا به هغه خلق حضرت ابراهيم عليه السلام له راشي، هغه به ورته وائي زه د دے اهل نه يم، تاسو حضرت موسٰي عليه السلام له ورشئے. هغه د، اللّٰه کليم دے (اللّٰه سره ئے خبرے کړے دي). خلق به حضرت موسٰي عليه السّلام له ورشي. هغه به جواب ورکړي، زه د دے جوګه نه يم ليکن تاسو حضرت عيسٰي عليه السّلام له ورشئے، هغه د، اللّٰه روح او کلمه دے. دا خلق به حضرت عيسٰي عليه السّلام له راشي هغه به ورته وائي، زه د دے لائق نه يم، ليکن تاسو حضرت محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم له ورشئے. نو خلق به ماله راشي

عَلَيْكُمْ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَأْتُونِي فَأَقُولُ
أَنَا لَهَا فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي
فَيُؤْذَنُ لِي وَيُلْهِمُنِي مَحَامِدَ
أَحْمَدُهُ بِهَا لَا تَحْضُرُنِي الْآنَ
فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ
وَأَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ يَا
مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ يُسْمَعْ
لَكَ وَسَلْ تُعْطَ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ
فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُمَّتِي أُمَّتِي
فَيُقَالُ انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مِنْهَا
مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ
شَعِيرَةٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَنْطَلِقُ
فَأَفْعَلُ ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ
بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ ثُمَّ أَخِرُّ
لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ
رَأْسَكَ وَقُلْ يُسْمَعْ لَكَ وَ
سَلْ تُعْطَ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَقُولُ
يَا رَبِّ أُمَّتِي أُمَّتِي فَيُقَالُ
انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مِنْهَا مَنْ
كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ
أَوْ خَرْدَلَةٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَنْطَلِقُ
فَأَفْعَلُ ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ
بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ ثُمَّ أَخِرُّ
لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ
ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ يُسْمَعْ لَكَ

(حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم فرمائي) نو زه به وایم' زه د دې اهل یم' زه به خپل رب نه اجازت اوغواړم. ماته به اجازت اوشي او خما زړه کښې به د حمد (ثنا) داسې کلمات واچوي' چه اوس ماته یاد نه دي. او زه به هغې کلماتو سره د هغه حمد بیان کړم او په سجده به پریوځم. بیا به اوونیلې شي اې محمدً خپل سر اوچت کړه' وایه' اوریدې به شي غواړه' درکولې به شي شفاعت کوه' قبلیږي به' نو زه به عرض اوکړم. اې خما ربه' خما امت' خما امت حکم به اوشي' د چا زړه کښې چه د' وربشې برابر هم ایمان وي' هغه د' دوزخ نه اوکاږه' نو زه به لاړشم' او دغسې به اوکړم' بیا به واپس راشم' او دغې کلماتو سره به هغه حمد اوکړم. او په سجده به پریوځم' نو اُوبه وئیلې شي. اې محمدً سر اوچت کړه. وایه' اوریدې به شي' غواړه درکولې به شي. او شفاعت کوه' قبلیږي به. زه به عرض اوکړم' اې ربه' خما امت' خما امت' نو او' به وئیلې شي' لاړ شه' او دوزخ نه هغه سړې راوکاږه' چه د هغه زړه کښې ذرّه قدرې یا' د ،رږي برابر ایمان وي. زه به لاړشم او دغسې به اوکړم. بیا به واپس راشم او دغې کلماتو سره به ذَ هغه حمد بیان کړم' بیا به زه په سجده پریوځم' نو' او' به وئیلې شي. اې محمدّ سر اوچت کړه. وَایه اوریدې به شي' غواړه' درکولې به شي شفاعت کوه' قبلولې به شي. زه به عرض اوکړم اې خما ربه. خما اُمت' خما اُمت. اللّٰه تعالٰي به اوفرمائیل' هغه د' دوزخ نه راوکاږه' چه ذَ هغه زړهٔ کښې د' اُوري د' دانې هم کمّ (یعني ډیر کم) ایمان وي. زه به لاړشم او دغسې به

وَ سَلْ تُعْطَ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَقُوْلُ يَا رَبِّ أُمَّتِيْ أُمَّتِيْ فَيَقُوْلُ انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ أَدْنٰى أَدْنٰى أَدْنٰى مِثْقَالَ حَبَّةِ خَرْدَلٍ مِّنْ إِيْمَانٍ فَأَخْرِجْهُ مِنَ النَّارِ، فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ فَلَمَّا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِ أَنَسٍ قُلْتُ لِبَعْضِ أَصْحَابِنَا لَوْ مَرَرْنَا بِالْحَسَنِ وَ هُوَ مُتَوَارٍ فِيْ مَنْزِلِ أَبِيْ خَلِيْفَةَ فَحَدَّثْنَاهُ بِمَا حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ فَأَتَيْنَاهُ فَسَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَأَذِنَ لَنَا فَقُلْنَا لَهٗ يَا أَبَا سَعِيْدٍ جِئْنَاكَ مِنْ عِنْدِ أَخِيْكَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَلَمْ نَرَ مِثْلَ مَا حَدَّثَنَا فِي الشَّفَاعَةِ فَقَالَ هِيْهِ فَحَدَّثْنَاهُ بِالْحَدِيْثِ فَانْتَهٰى إِلٰى هٰذَا الْمَوْضِعِ فَقَالَ هِيْهِ فَقُلْنَا لَمْ يَزِدْ لَنَا عَلٰى هٰذَا فَقَالَ لَقَدْ حَدَّثَنِيْ وَ هُوَ جَمِيْعٌ مُنْذُ عِشْرِيْنَ سَنَةً فَلَا أَدْرِيْ أَنَسِيَ أَمْ كَرِهَ أَنْ تَتَّكِلُوْا فَقُلْنَا يَا أَبَا سَعِيْدٍ فَحَدِّثْنَا فَضَحِكَ وَ قَالَ خُلِقَ الْإِنْسَانُ عَجُوْلًا مَا ذَكَرْتُهٗ إِلَّا وَ أَنَا أُرِيْدُ أَنْ أُحَدِّثَكُمْ حَدَّثَنِيْ كَمَا حَدَّثَكُمْ بِهٖ قَالَ ثُمَّ أَعُوْدُ الرَّابِعَةَ فَأَحْمَدُهٗ بِتِلْكَ ثُمَّ أَخِرُّ لَهٗ سَاجِدًا فَيَقَالُ يَا مُحَمَّدُ

او کړم، ذ سعيدبيان دے، کوم وخت چه مونږ د حضرت انس رضي الله عنه ته اووتلو. نو ما خپلو بعضو ملګرو ته اووے کاش چه مونږ حسن بصري له ورځلے وے، چه هغه وخت د، ابو خليفه مکان کښ پټ شوے وو، او هغه ته لے هغه حديث بيانولو چه مونږ ته انس رضي الله عنه بيان کړلو. نو مونږ هغه له راغلو، هغه ته مو سلام اوکه. هغه دننه د، ورتلو اجازت راکه، مونږ هغه ته اووے. اے ابو سعيد، مونږ تاسو ته ستاسو د، ورور انس بن مالکؓ نه راغلي يو. د شفاعت متعلق څه رنګه حديث هغه بيان که، مونږ هغسے واونه ريدلو، هغه اووے، بيان که، مونږ ورته هغه حديث بيان که، چه هغے آخري مقام ته اورسيد، نو هغه اووے، نور بيان که. مونږ اووے، دے نه زيات هغه بيان اونه که، هغه اووے، انسؓ چه هوش و حواس کښ وو، شل (٢٠) کاله اوشو، چه ماته ئے دا حديث بيان کړے دے. زه نه پوهيږم، چه هغه نه هيز شولو، يا، به دے وجه د دے ذکر کول ئے خوښ نه کړل، چه خلق د دے په بهروسه کينني، او عمل پريږدي. مونږ اووے، اے ابو سعيد، مونږ ته ئے بيان کړه، نو هغه اوخاندل، اووئيلے، ريښتيا دي انسان جلد باز پيدا شوے دے، ما د دے ذکر صرف دے د پاره کړے وو څما اراده وه، چه زه تاسو ته هغه حديث بيان کړم. انس رضي الله عنه ماته داسے بيان که، څنګه چه ئے تاسو ته بيان که. بيائے اووے، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. زه به په څلورم ځل واپس راشم، او دغے کلماتو سره به د هغه حمد بيان کړم. بيا به په سجده پريوځم. نو فرمائي به، اے محمدﷺ خپل سر، اوچت کړه. وايه، اوريدے به شي. غواړه،

ارْفَعْ رَأْسَكَ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَ سَلْ تُعْطَهْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَقُوْلُ يَا رَبِّ ائْذَنْ لِيْ فِيْمَنْ قَالَ لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ فَيَقُوْلُ وَ عِزَّتِيْ وَ جَلَالِيْ وَ كِبْرِيَآئِيْ وَ عَظَمَتِيْ لَاُخْرِجَنَّ مِنْهَا مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

درکولے به شي. شفاعت کوه' قبلیږي به' زه به عرض اوکړم. اے ربه' ماته د هغے خلقو د' اوښکلو اجازت راکړے' چا چه لا اِلٰه اِلَّا اللّٰه' ویلے وي' نو اللّٰه تعالٰي به فرمائي' قسم دے خما په عزت او جلال او په عظمت او کبریائي' زه به د' دوزخ نه هغه هم اوکاږم' چه' لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه: ئے ویلے وي.

۷۱۱۶۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اٰخِرَ اَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُوْلًا الْجَنَّةَ وَ اٰخِرَ اَهْلِ النَّارِ خُرُوْجًا مِّنَ النَّارِ رَجُلٌ يَّخْرُجُ حَبْوًا فَيَقُوْلُ لَهٗ رَبُّهٗ اُدْخُلِ الْجَنَّةَ فَيَقُوْلُ رَبِّ الْجَنَّةُ مَلْاٰى فَيَقُوْلُ لَهٗ ذٰلِكَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَكُلُّ ذٰلِكَ يُعِيْدُ عَلَيْهِ الْجَنَّةُ مَلْاٰى فَيَقُوْلُ اِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا عَشْرَ مِرَارٍ.

۷۱۱۶۷ : محمد بن خالد' عبید اللّٰه بن موسٰي' اسرائیل' منصور' ابراهیم' عبیده' حضرت عبد اللّٰه نه روایت کوي د هغه بیان دے' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' اهلِ جنت کښ دَ ټولو نه ورستو داخلیدونکے' او دوزخ والو کښ' دوزخ نه دَ ټولو نه ورستووتونکے به یو سړے وي' چه خزېوسو سره به اُوځي د هغه پروردګار به هغه ته فرمائي' چه جنت کښ داخل شه. هغه به عرض اوکړي' اے پروردګاره: جنت خو' ډک دے. اللّٰه تعالٰي به درے (۳) ځله هغه ته دغسے اوفرمائي او هر ځل به هغه دغه جواب کوي' چه جنت ډک شوے دے. اللّٰه تعالٰي به ورته اوفرمائي' چه ستا د پاره د' دنیا په شان لس (۱۰) چنده دے.

۸۱۱۶۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ اَخْبَرَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ اِلَّا سَيُكَلِّمُهٗ رَبُّهٗ لَيْسَ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَهٗ تَرْجُمَانٌ فَيَنْظُرُ اَيْمَنَ مِنْهُ فَلَا يَرٰى اِلَّا مَا قَدَّمَ مِنْ عَمَلِهٖ وَ يَنْظُرُ اَشْاَمَ مِنْهُ

۸۱۱۶۸ : علي بن حجر' عیسٰي بن یونس' اعمش' خیثمه' عدي بن حاتم نه روایت کوي. د هغه بیان دے رسول اللّٰه صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل تاسو کښ به هر سړي سره د هغه رب داسے کلام کوي' چه د هغه او د خدائے مینځ کښ به هیڅ ترجمان نه وي. هغه به خپل ښي طرف ته اوګوري. نو هغه ته به د خپلو اعمالو نه سِوا هیڅ به نظر رانشي. اوګس طرف ته چه اوګوري' نو خپل اعمال به ورته په نظر راشي' خپلے

فَلَا يَرٰى اِلَّا مَا قَدَّمَ وَ يَنْظُرُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلَا يَرٰى اِلَّا النَّارَ تِلْقَآءَ وَجْهِهٖ فَاتَّقُوا النَّارَ وَ لَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ قَالَ الْاَعْمَشُ وَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ خَيْثَمَةَ مِثْلَهٗ وَ زَادَ فِيْهِ وَ لَوْ بِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ.

مخې تـه چه اوګوري' نو جهنم به ورته په نظر راشي' نو د' دوزخ نه بچ شئ' اګر که د قجورې د' يوې ټکړې په عوض وي' د اعمش بيان دې' ماته عمرو بن مره په واسطه' د خيثمه داسې نقل اوکه' او دې کښې دومره زيات دي' اګر که د ښې خبرې په ذريعه ولې نه وي.

۱۱۶۹ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَّنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ جَآءَ حِبْرٌ مِّنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ اِنَّهٗ اِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ جَعَلَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ عَلٰى اِصْبَعٍ وَّالْاَرْضِيْنَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَّالْمَآءَ وَالثَّرٰى عَلٰى اِصْبَعٍ وَّالْخَلَآئِقَ عَلٰى اِصْبَعٍ ثُمَّ يَهُزُّهُنَّ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ اَنَا الْمَلِكُ فَلَقَدْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ تَعَجُّبًا وَ تَصْدِيْقًا لِّقَوْلِهٖ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِلٰى قَوْلِهٖ يُشْرِكُوْنَ.

۱۱۶۹ : عثمان بن ابي شيبه' جرير' منصور' ابراهيم' عبيده' عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. دَ هغه بيان دې. دَ يهودو يو عالم حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له راغې' اوونيلې' چه کله د قيامت ورځ شي' نو اللّٰه تعالٰي به اسمانونه په يوه ګوته' او زمکې په يوه ګوته' او' اُوبه اوخته په يوه ګوته او نور ټول مخلوقات په يوه ګوته اوچت کړي. بيا به هغوئ ته خوزولو سره اوفرمائي' زه بادشاه يم' زه بادشاه يم' ما حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم وسلّم اوليدو' چه د دې خبرې خوښوولو او تصديق کولو سره ئې اوخاندل' تر دې چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم غاښونه مبارک ښکاره شولو. بيا حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا' ايت مبارک تلاوت کړلو: وَ مَا قدرو اللّٰه حق قدره ...... يشرکون: پورې.

۱۱۷۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ ابْنَ عُمَرَ كَيْفَ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِي النَّجْوٰى قَالَ يَدْنُوْٓا اَحَدُكُمْ مِّنْ رَّبِّهٖ حَتّٰى يَضَعَ كَنَفَهٗ عَلَيْهِ فَيَقُوْلُ اَعَمِلْتَ كَذَا وَ كَذَا

۱۱۷۰ : مسدد' ابو عوانه' قتاده' صفوان بن محرز نه رويت کوي يو سړي د' ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه تپوس اوکه' تا د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په غوږ کښې د خبرو متعلق څنګه اوريدلې دي. هغه اووې. تاسو کښې به يو سړې پروردګار ته قريب شي' تر دې چه اللّٰه تعالٰي به خپله پرده په هغه واچوي. بيا به فرمائي' تا فلاني فلاني کارونه کړې وو. هغه به عرض اوکړي.

فَيَقُوْلُ نَعَمْ وَ يَقُوْلُ عَمِلْتَ كَذَا وَ كَذَا فَيَقُوْلُ نَعَمْ فَيُقَرِّرُهُ ثُمَّ يَقُوْلُ اِنِّيْ سَتَرْتُ عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا وَ اَنَا اَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ وَ قَالَ اٰدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

جي. او. بيا به فرمائي. تا فلاني فلاني كارونه كړي وو هغه به عرض اوكړي. جي. او. او دا شان به په هغه اقرار اوكړي، نو فرمائي به، ما دنيا كښې ستا پرده پوشي كړې وه. نن زه هغه بښم. او د، آدم بيان دې. مونږ ته شيبان بيان اوكړه، هغه وائي، مونږ ته قتاده اووې، هغه اووې، مونږ ته صفوان اووې، هغه د، ابن عمر رضي الله عنه نه نقل كړه، چه ما د نبي صلى الله عليه وسلم نه واوريدلو.

## بَاب ۵۵۸: قَوْلِهٖ وَ كَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا.

باب ۵۵۸: دَ، اللّه تعالى قول، چه الله موسى عليه السّلام سره خبرې اوكړې.

۱۱۷۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ احْتَجَّ اٰدَمُ وَ مُوْسٰى فَقَالَ مُوْسٰى اَنْتَ اٰدَمُ الَّذِيْ اَخْرَجْتَ ذُرِّيَّتَكَ مِنَ الْجَنَّةِ قَالَ اٰدَمُ اَنْتَ مُوْسَى الَّذِي اصْطَفَاكَ اللّٰهُ بِرِسَالَاتِهٖ وَ كَلَامِهٖ ثُمَّ تَلُوْمُنِيْ عَلٰى اَمْرٍ قَدْ قُدِّرَ عَلَيَّ قَبْلَ اَنْ اُخْلَقَ فَحَجَّ اٰدَمُ مُوْسَى.

۱۱۷۱: يحيى بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، حميد بن عبد الرحمٰن، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل حضرت آدم عليه السّلام او حضرت موسى عليه السّلام. په بحث شو. موسى عليه السّلام ورته اووې، ته هغه آدمَ ئې، چه هغه خپل اولاد، دِ، جنت نه راوبنكلو حضرت آدم عليه السّلام ورته اووې، ته هغه موسى ئې. چه الله تعالى ته پيغمبرئ او خپل كلام سره برگزيده كړې ئې. بيا ته ما په هغه څيز ملامته كوې، چه څما حق كښې څما د پيدائش نه مخكښې ليكلې شوې دې، نو حضرت آدم عليه السّلام په حضرت موسى عليه السّلام بحث كښې غالب راغې.

۱۱۷۲: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجْمَعُ الْمُؤْمِنُوْنَ

۱۱۷۲: مسلم بن ابراهيم، هشام، قتاده، حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوي. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، مؤمنان به دَ قيامت په ورځ راجمع كړې شي، نو يو بل ته به وائي. كاش چه څمونږ دَ خپل رب بارگاه كښې شفاعت شوې وې، چه

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيَقُوْلُوْنَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا إِلٰى رَبِّنَا فَيُرِيْحُنَا مِنْ مَّكَانِنَا هٰذَا فَيَأْتُوْنَ آدَمَ فَيَقُوْلُوْنَ لَهٗ أَنْتَ آدَمُ أَبُو الْبَشَرِ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ وَ أَسْجَدَ لَكَ الْمَلٰٓئِكَةَ وَ عَلَّمَكَ أَسْمَآءَ كُلِّ شَيْءٍ فَاشْفَعْ لَنَا إِلٰى رَبِّنَا حَتّٰى يُرِيْحَنَا فَيَقُوْلُ لَهُمْ لَسْتُ هُنَاكُمْ فَيَذْكُرُ لَهُمْ خَطِيْئَتَهُ الَّتِيْ أَصَابَ.

مونږ ته ئې د دې ځائې نه نجات را کړې وې' نو دا خلق به حضرت آدم عليه السّلام له راشي ورته به وائي' تاسو د ټولو انسانانو پلار آدمؑ ئې' تاسو الله پاک خپل لاس سره پيدا کړې ئې. او په فرښتو ئې تاسو ته سجده اوکړله' او تاسوته ئې دَ ټولو څيزونو' نومونه اُوښودل' خپل رب ته مونږ د پاره شفاعت اوکړه. حضرت آدم عليه السّلام به جواب ورکړي' زه د دې لائق نه يم. او خپله غلطي به بيان کړي' چه ترې شوې وه.

۷۴۳ ا ا : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ شَرِيْكِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّهٗ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَّسْجِدِ الْكَعْبَةِ إِنَّهٗ جَآءَهٗ ثَلٰثَةُ نَفَرٍ قَبْلَ أَنْ يُّوْحٰى إِلَيْهِ وَ هُوَ نَآئِمٌ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فَقَالَ أَوَّلُهُمْ أَيُّهُمْ هُوَ فَقَالَ أَوْسَطُهُمْ هُوَ خَيْرُهُمْ فَقَالَ اٰخِرُهُمْ خُذُوْا خَيْرَهُمْ فَكَانَتْ تِلْكَ اللَّيْلَةَ فَلَمْ يَرَهُمْ حَتّٰى أَتَوْهُ لَيْلَةً أُخْرٰى فِيْمَا يَرٰى قَلْبُهٗ وَ تَنَامُ عَيْنُهٗ وَ لَا يَنَامُ قَلْبُهٗ وَ كَذٰلِكَ الْأَنْبِيَآءُ تَنَامُ أَعْيُنُهُمْ وَ لَا تَنَامُ قُلُوْبُهُمْ فَلَمْ يُكَلِّمُوْهُ حَتّٰى احْتَمَلُوْهُ

۷۴۳ ا ا : عبد العزيز بن عبد اللّٰه' سليمان' شريک بن عبد اللّٰه حضرت ابن مالکؓ نه روايت کوي' هغه نه ئې واوريدل' په کومه شپه چه د کعبې د جمات (مسجد کعبه) نه د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم معراج اوشو' نو د' وحي رسيدو نه مخکښې حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم له درې (۳) فرښتې راغلې' هغهٔ وخت سړي خانه کعبه کښې اُوده وو. يو اووې دوي کښې هغه کوم يو دې' چه مونږ دَ هغه په تلاش کښې وو. مينځني اشارې سره اوښودل' چه دې په دوي کښې د ټولو نه ښه دې' ورستې فرښتې اووې' چه دوي کښې کوم بهتر دې' هغه واخلئې. په هغه شپه داسې اوشولو بيا دويمې شپې راتلو پورې هغه فرښتې اونه ليدې' په دويمه شپه هغه فرښتې راغلې' دَ حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم زړه هغوئ ليدلې' او سترګې ئې اُودې وې. دَ' انبياؤ دا حال وي' چه سترګې ئې اُودې کيږي' او زړونه ئې نه اُوده کيږي هغې فرښتو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم سره څه خبره اونه کړله. حضورؐ ئې پورته کړلو' او چاه زمزم (د' زمزم کوهي) سره ئې کيښوډلو. جبرائيل عليه السّلام دا

فَوَضَعُوْهُ عِنْدَ بِئْرِ زَمْزَمَ فَتَوَلَّاهُ مِنْهُمْ جِبْرِيْلُ فَشَقَّ جِبْرِيْلُ مَا بَيْنَ نَحْرِهٖ اِلٰى لَبَّتِهٖ حَتّٰى فَرَغَ مِنْ صَدْرِهٖ وَ جَوْفِهٖ فَغَسَلَهٗ مِنْ مَّاءِ زَمْزَمَ بِيَدِهٖ حَتّٰى اَنْقٰى جَوْفَهٗ ثُمَّ اُتِيَ بِطَسْتٍ مِّنْ ذَهَبٍ فِيْهِ تَوْرٌ مِّنْ ذَهَبٍ مَّحْشُوًّا اِيْمَانًا وَّ حِكْمَةً فَحَشَا بِهٖ صَدْرَهٗ وَ لَغَادِيْدَهٗ يَعْنِيْ عُرُوْقَ حَلْقِهٖ ثُمَّ اَطْبَقَهٗ ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَضَرَبَ بَابًا مِّنْ اَبْوَابِهَا فَنَادَاهُ اَهْلُ السَّمَاءِ مَنْ هٰذَا فَقَالَ جِبْرِيْلُ قَالُوْا وَ مَنْ مَّعَكَ قَالَ مَعِيَ مُحَمَّدٌ قَالَ وَ قَدْ بُعِثَ قَالَ نَعَمْ قَالُوْا فَمَرْحَبًا بِهٖ وَ اَهْلًا فَيَسْتَبْشِرُ بِهٖ اَهْلُ السَّمَاءِ لَا يَعْلَمُ اَهْلُ السَّمَاءِ بِمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ بِهٖ فِي الْاَرْضِ حَتّٰى يُعْلِمَهُمْ فَوَجَدَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا اٰدَمَ فَقَالَ لَهٗ جِبْرِيْلُ هٰذَا اَبُوْكَ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَ رَدَّ عَلَيْهِ اٰدَمُ وَ قَالَ مَرْحَبًا وَّ اَهْلًا بِابْنِيْ نِعْمَ الْاِبْنُ اَنْتَ فَاِذَا هُوَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا

كار سنبال كړلو. هغه دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم د مرئ نه واخله د زړه لاندې پورې سينه اوڅيرله. او سينه او خيټه ئې (د خواهشاتونه) خالي كړه او ځپل لاس سره ئې د زمزم په اُوبو اووينځله د حضور صلّي الله عليه وسلّم خيټه مبارك ئې ښه صافه كړه. بيائې د سرو زرو يو تالې (طشت) راوړلو. چه هغې كښې د سرو زرو يو لوښې د ايمان او حكمته نه ډک وو دَ هغې نه ئې دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم سينه او د حلق رګونه ډک كړل. بيائې هغه برابر كړلو. بيائې حضور صلّي الله عليه وسلّم د دنيا آسمان پورې اوخيژولو او د هغې يوه دروازه ئې اوټكوله. آسمان والو تپوس اوكړ خوک دي. هغه جواب وركړ. جبرائيل دې هغوئ تپوس اوكړ تاسره خوک دي. وئيلې ماسره محمد صلّي الله عليه وسلّم دې. هغې خلقو تپوس اوكړ آيا راغوښتلې شوې دې. وئيلې او هغوي اووې. ډيره ښه ده هر كله راشې آسمان واله په دې خوشحالي وو اسمان واله فريښتو ته د دې خبر نه وي چه الله تعالٰي زمكه كښې څه كول غواړي تر څو پورې چه هغوئ ته اونه ښودلې شي حضور صلّي الله عليه وسلّم د دنيا آسمان كښې حضرت آدم عليه السّلام اوليدلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم ته جبرائيل عليه السّلام اووې چه دا ستاسو پلار دې ده ته سلام اوكه حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته سلام اوكړ نو هغه جواب وركړ. او وئيلې اې ځما خويه ستا راتلل دې مبارک وي ته ښه ځوئې يې. دغه وخت دَ حضور صلّي الله عليه وسلّم نظر په دوو (۲) نهرونو اوغرځيدلو چه هغه جاري وو هغوئ اوفرمائيل.

بِنَهْرَيْنِ يَطَّرِدَانِ فَقَالَ مَا هٰذَانِ النَّهْرَانِ يَا جِبْرِيْلُ قَالَ هٰذَا النِّيْلُ وَالْفُرَاتُ عُنْصُرُهُمَا ثُمَّ مَضٰى فِى السَّمَآءِ فَاِذَا هُوَ بِنَهْرٍ اٰخَرَ عَلَيْهِ قَصْرٌ مِّنْ لُؤْلُؤٍ زَبَرْجَدٍ فَضَرَبَ يَدَهٗ فَاِذَا هُوَ مِسْكٌ قَالَ مَا هٰذَا يَا جِبْرِيْلُ قَالَ هٰذَا الْكَوْثَرُ الَّذِىْ خَبَاَلَكَ رَبُّكَ ثُمَّ عَرَجَ اِلَى السَّمَآءِ الثَّانِيَةِ فَقَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ لَهٗ مِثْلَ مَا قَالَتْ لَهُ الْاُوْلٰى مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قَالُوْا وَ مَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا وَ قَدْ بُعِثَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قَالُوْا مَرْحَبًا بِهٖ وَ اَهْلًا ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى السَّمَآءِ الثَّالِثَةِ وَ قَالُوْا لَهٗ مِثْلَ مَا قَالَتِ الْاُوْلٰى وَالثَّانِيَةُ ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى الرَّابِعَةِ فَقَالُوْا لَهٗ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى السَّمَآءِ الْخَامِسَةِ فَقَالُوْا مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى السَّادِسَةِ فَقَالُوْا مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى السَّمَآءِ السَّابِعَةِ فَقَالُوْا لَهٗ مِثْلَ ذٰلِكَ كُلُّ سَمَآءٍ فِيْهَا اَنْبِيَآءُ قَدْ

اے جبرائیل، دا، دوه (۲) نهرونه څنګه دي. هغه ورته اووے. دا، د، نیل او فرات منبع ده بیا هم په دغه آسمان کښې هغوئ لره بوتلو حضور صلّي الله علیه وسلّم په یو نهر تیر شولو، چه په هغے د، موتي او زمرّد محلونه جوړ شوے وو. حضور صلّي الله علیه وسلّم چه لاس اووهلو، نو معلومه شوه، چه هغه مشک دي. حضور صلّي الله علیه وسلّم تپوس او که. اے جبرائیل علیه السّلام، دا څه دي. هغه اووے، دا کوثر دے، چه ستاسوّ د پاره ستاسو رب تیار کړے دے. بیا دویم آسمان ته لاړل، نو فریښتو هلته هم هغسے تپوس او که، څنګه چه مخکنو فریښتو کړے وو، چه څوک دے. هغه ورته اووے، جبرائیل دے. هغوئ تپوس او که. تاسره څوک دي، وئیلے، محمد صلّي الله علیه وسلّم دے. هغوئ تپوس او که، آیا راغوښتلے شوے دے. وئیلے. او. هغوئ اووے، ستا راتلل دے مبارک وي، بیائے دریم اسمان ته بوتلو. هغے فریښتو هم هغه تپوس او که، کوم چه د، وړمبني او دویم آسمان والو تپوس کړے وو، بیا څلوم ته ئے بوتلو نو هلته هم دغه شان خبرے اوشوے، بیا پنځم (۵) آسمان ته بوتلے شو، نو هلته هم فریښتو دغه شان خبرے او کړے. بیا شپږم آسمان ته بوتلے شو، نو هلته هم فریښتو دغه شان خبرے او کړے. بیا اووم (۷) آسمان نه بوتلے شو. هلته هم فریښتو دغه شان خبرے او کړے هر آسمان کښې انبیاؤ علیهم السّلام سره ملاقات اوشو. حضور صلّي الله علیه وسلّم دَ هغوئ نامے واخستے، هغوئ کښې ادریس علیه السّلام سره، دویم آسمان کښې، هارون علیه السّلام سره، څلورم آسمان کښې، پنځم آسمان کښې چا

سَمَّهُمْ فَأَوْعَيْتُ مِنْهُمْ اِدْرِيْسَ فِي الثَّانِيَةِ وَ هٰرُوْنَ فِي الرَّابِعَةِ وَ اٰخَرَ فِي الْخَامِسَةِ لَمْ اَحْفَظْ اسْمَهُ وَ اِبْرَاهِيْمَ فِي السَّادِسَةِ وَ مُوْسٰى فِي السَّابِعَةِ بِتَفْضِيْلِ كَلَامِ اللّٰهِ فَقَالَ مُوْسٰى رَبِّ لَمْ اَظُنَّ اَنْ يُرْفَعَ عَلَيَّ اَحَدٌ ثُمَّ عَلَا بِهٖ فَوْقَ ذٰلِكَ بِمَا لَا يَعْلَمُهٗ اِلَّا اللّٰهُ حَتّٰى جَآءَ سِدْرَةَ الْمُنْتَهٰى وَ دَنَا الْجَبَّارُ رَبُّ الْعِزَّةِ فَتَدَلّٰى حَتّٰى كَانَ مِنْهُ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى فَاَوْحَى اللّٰهُ فِيْمَآ اَوْحٰى اِلَيْهِ خَمْسِيْنَ صَلَاةً عَلٰى اُمَّتِكَ كُلَّ يَوْمٍ وَّ لَيْلَةٍ ثُمَّ هَبَطَ حَتّٰى بَلَغَ مُوْسٰى فَاَحْتَبَسَهٗ مُوْسٰى فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ مَاذَا عَهِدَ اِلَيْكَ رَبُّكَ قَالَ عَهِدَ اِلَيَّ خَمْسِيْنَ صَلَاةً كُلَّ يَوْمٍ وَّ لَيْلَةٍ قَالَ اِنَّ اُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيْعُ ذٰلِكَ فَارْجِعْ فَلْيُخَفِّفْ عَنْكَ رَبُّكَ عَنْهُمْ فَالْتَفَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى جِبْرِيْلَ كَاَنَّهٗ يَسْتَشِيْرُهٗ فِيْ ذٰلِكَ فَاَشَارَ اِلَيْهِ جِبْرِيْلُ اَنْ نَعَمْ اِنْ شِئْتَ فَعَلَا بِهٖ اِلَى الْجَبَّارِ

پيغمبر سره، چه د هغه نوم ماته ياد پاتے نه شو، او ابرهيم عليه السّلام سره شپږم (٦) آسمان کښ، او حضرت موسٰي عليه السّلام سره، په اووم (٧) آسمان کښ الله تعالٰي سره، د هم کلام کيدو. د فضيلت په بنا، ملاقات ماته ياد پاتے شو. موسٰي عليه السّلام عرض او که، اے خما پروردګاره. خما دا ګمان نه کيدلو چه خما نه به هم په زياته بلندي څوک سرے خيژي. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم د دے نه پورته اوخيژولے شو، چه د هغے علم بے د، الله تعالٰي نه بل چاته نشته، تر دے چه سدرة المنتهٰي ته اورسيدلو بيا الله رب العزت ته نزدے شولو. او دومره نزدے شولو، څنګه چه د، ليندے دوه (٢) ګټونه (دونوں کونے) وي، بلکه د دے نه هم زيات نزدے شولو. بيا الله تعالٰي حضور صلّي الله عليه وسلّم ته وحي اوليږله څه وحي ئے چه ليږله. هغے کښ دا هم وو، چه ستا په اُمت ورځ او شپه کښ پنځوس مونځونه فرض شو. بيا خکته راغے، حضرت موسٰيؑ ته رااورسيدلو، نو هغه، حضورؐ ايسار کړو ورته ئے وئيلے. اے محمده، ستا رب ستا، نه څه عهد واخستلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اُوفرمائيل، مانه ئے ورځ شپه کښ د پنځوس مونځونو کولو عهد واخستلو هغه ورته اووے، ستا اُمت د دے طاقت نه لري. په دے وجه واپس لاړشه، او خپل رب نه ځان د پاره او خپل اُمت د پاره دے کښ تخفيف اوغواړه. نبي صلّي الله عليه وسلّم جبرائيل عليه السّلام طرف ته رُخ کړلو، ګويا حضور صلّي الله عليه وسلّم د هغه نه مشوره اخستل غوښتل. جبرائيلؑ مشوره او کړه، چه، او، که ستاسو خواهش وي، نو جبرائيلؑ حضور صلّي

فَقَالَ وَهُوَ مَكَانَهُ يَا رَبِّ خَفِّفْ عَنَّا فَإِنَّ أُمَّتِيْ لَا تَسْتَطِيْعُ هٰذَا فَوَضَعَ عَنْهُ عَشْرَ صَلَوَاتٍ ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى مُوْسٰى فَاحْتَبَسَهُ فَلَمْ يَزَلْ يُرَدِّدُهُ مُوْسٰى إِلٰى رَبِّهِ حَتّٰى صَارَتْ إِلٰى خَمْسِ صَلَوَاتٍ ثُمَّ احْتَبَسَهُ مُوْسٰى عِنْدَ الْخَمْسِ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ وَاللّٰهِ لَقَدْ رَاوَدْتُ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ قَوْمِيْ عَلٰى أَدْنٰى مِنْ هٰذَا فَضَعُفُوْا فَتَرَكُوْهُ فَأُمَّتُكَ أَضْعَفُ أَجْسَادًا وَقُلُوْبًا وَأَبْدَانًا وَأَبْصَارًا وَأَسْمَاعًا فَارْجِعْ فَلْيُخَفِّفْ عَنْكَ رَبُّكَ كُلُّ ذٰلِكَ يَلْتَفِتُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى جِبْرِيْلَ لِيُشِيْرَ عَلَيْهِ وَلَا يَكْرَهُ ذٰلِكَ جِبْرِيْلُ فَرَفَعَهُ عِنْدَ الْخَامِسَةِ فَقَالَ يَا رَبِّ إِنَّ أُمَّتِيْ ضُعَفَاءُ أَجْسَادُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ وَأَسْمَاعُهُمْ وَأَبْدَانُهُمْ فَخَفِّفْ عَنَّا فَقَالَ الْجَبَّارُ يَا مُحَمَّدُ قَالَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ قَالَ إِنَّهُ لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ كَمَا فَرَضْتُ عَلَيْكَ فِيْ أُمِّ الْكِتَابِ قَالَ فَكُلُّ حَسَنَةٍ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا فَهِيَ خَمْسُوْنَ

اللّٰه عليه وسلّم اللّٰه تعالٰي ېله بوتلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به خهل ورمبني ځائے اُودرېدلو، عرض ئې اوكه، اَے ربه، مونځونو كښې به موږ كمے اوكړې. ځما اُمت د دې طاقت نه لري، نو اللّٰه تعالٰي لس (١٠) مونځونه كم كړل بيا حضرت موسٰي عليه السّلام له راغے. هغه ايسار كړلو. حضرت موسٰي عليه السّلام، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم دغسے خهل رب ېله لېږلو، حتٰي چه ېنځه (٥) مونځونه پاتے شو. بيا د ېنځو له پس هم حضرت موسٰي عليه السّلام ايسار كړلو، ورته ئې وئيلے، اے محمدؐ، ما خهل قوم بني اسرائيلو باندے د دے نه هم كم مونځونه كول غوښتل. ليكن هغوئ كمزوري شو، او هغه ئې هم پرېښودل. ستا اُمت خو، د جسم، زړه، بدن، سترگے او غوږ د، اعتبار نه ډېر ضعيف دے. نو واپس لاړشه، چه ستا رب ستا مونځونو كښې كمے اوكړي. هر ځل به نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم، جبرائيل عليه السّلام ته كتل، چه د هغه نه مشوره واخلي، او جبرائيل عليه السّلام دا خبره ناخوښه كوله نه (يعني خوښه وله ئې). نو په ېنځم ځل ئې هم حضورؐ بوتلو حضوز صلّي اللّٰه عليه وسلّم عرض اوكه، اَے ربه، ځما د اُمت بدنونه كمزوري دي، دَ هغوئ زړه، غوږونه او بدن كمزورے دي. نو په موږ تخفيف اوكړے. اللّٰه تعالٰي ورته اوفرمائيل، اَے محمدؐ، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: لبيك وَ سعْديك: اللّٰه تعالٰي ورته اوفرمائيل، ماسره خبره نه بدليږي، څه چه ما په تا فرض كړے وو. هغه اُم الكتاب (يعني لوحِ محفوظ) كښې دي. اللّٰه اوفرمائيل، د، هرے نيكي ثواب لس (١٠) چنده دے،

فِــيْ أُمِّ الْــكِتَـــابِ وَهِـــيَ خَــمْــسٌ عَــلَيْكَ فَـرَجَـعَ اِلٰـي مُـوْسٰـي فَـقَـالَ كَيْفَ فَعَلْـتَ فَـقَـالَ خَـفَّفَ عَـنَّـا اَعْـطَـانَـا بِـكُـلِّ حَسَـنَةٍ عَشْرَ اَمْثَـالِهَـا قَـالَ مُـوْسٰـي قَـدْ وَاللّٰـهِ رَاوَدْتُ بَـنِـيْ اِسْـرَائِيْلَ عَلٰـي اَدْنٰـي مِـنْ ذٰلِكَ فَتَـرَكُـوْهُ ارْجِـعْ اِلٰـي رَبِّكَ فَـلْيُـخَـفِّفْ عَـنْكَ اَيْـضًـا قَـالَ رَسُـوْلُ اللّٰـهِ صَـلَّـي اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ يَا مُـوْسٰـي قَـدْ وَاللّٰـهِ اسْتَحْيَيْتُ مِـنْ رَبِّـيْ مِـمَّـا اخْتَـلَـفْـتُ اِلَيْـهِ قَـالَ فَـاهْبِـطْ بِـاِسْـمِ اللّٰـهِ قَـالَ وَاسْتَيْـقَـظَ وَ هُـوَ فِـيْ مَسْـجِـدِ الْحَرَامِ.

پنخه مونځونه په تاسو فرض شو، لوحِ محفوظ کښې پنځوس (۵۰) دي. حضور صلّي الله عليه وسلّم، موسٰي عليه السّلام له راغے. موسٰي عليه السّلام ترے تپوس اوکه، تاسو څه اوکړل. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، څمونږ رب څمونږ مونځ کښې ډير کمے اوکه، د هرے نيکي لس (۱۰) چنده ثواب ئے راکه. حضرت موسٰي عليه السّلام اووے، په خدائے م دے قسم وي، ما د بني اسرائيلو نه د دے نه هم کمه مطالبه کړے وه. ليکن هغوئ هغه پريښودلو، نو خپل رب ته واپس لاړشه. چه دے کښې درته کمے اوکړي. خو، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اے موسٰي عليه السّلام، په خدائے م دے قسم وي. اوس ماله د خپل رب نه شرم راځي، څکه چه زه په بيا بيا هغه له ورغلے يم. حضرت موسٰي عليه السّلام اووے. بيا د، اللّه نوم سره، څه کوزشه. د، راوي بيان دے، چه حضور صلّي الله عليه وسلّم بيدار شولو، نو دغه وخت حضور صلّي الله عليه وسلّم مسجدِ حرام کښې وو.

## بـاب ۵۵۹: كَلَامِ الـرَّبِّ مَعَ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

## باب ۵۵۹: جنتيانو سره د، اللّٰه تعالٰي د خبرو کولو بيان.

۷۴۱۱: حَـدَّثَـنَـا يَحْيَي بْنُ سُلَيْمَانَ حَـدَّثَـنِـيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَـاءِ بْـنِ يَسَـارٍ عَـنْ اَبِـيْ سَعِيْدِ الْخُـدْرِيِّ قَـالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ لِاَهْلِ الْجَـنَّةِ يَـآ اَهْلَ الْجَنَّةِ فَيَقُوْلُوْنَ لَبَّيْكَ

۷۴۱۱: يحيٰي بن سليمان، ابن وهب، مالک، زيد بن اسلم، عطاء بن يسار، حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي به جنتيانو ته آواز کړي. اے جنتيانو، هغوئ به جواب ورکړي اے پروردګاره، مونږ حاضر يو، او خير ستا لاس کښې دے، اللّٰه به فرمائي، آيا تاسو خلق خوشحاله

رَبَّنَا وَ سَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ فَيَقُوْلُ هَلْ رَضِيْتُمْ فَيَقُوْلُوْنَ وَ مَا لَنَا لَا نَرْضٰى يَا رَبِّ وَ قَدْ اَعْطَيْتَنَا مَا لَمْ تُعْطِ اَحَدًا مِّنْ خَلْقِكَ فَيَقُوْلُ اَلَا اُعْطِيْكُمْ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ فَيَقُوْلُوْنَ يَا رَبِّ وَ اَيُّ شَيْءٍ اَفْضَلُ مِنْ ذٰلِكَ فَيَقُوْلُ اُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِيْ فَلَا اَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهٗ اَبَدًا.

ئـي. هغوئ به جواب ورکړي اې ربه، مونږ به ولې خوشحاله نه يو، هر کله چه تا مونږ ته داسې څيز راکړې دې، چه خپل مخلوق کښې دې، هيچا ته نه دې ورکړې، نو الله پاک به فرمائي، آيا زه تاسو ته د دې نه بهتر څيز درنه کړم. هغوئ به عرض اوکړي، د دې نه زيات به څه څيز، وي. الله تعالیٰ به ورته فرمائي، زه به په تاسو خپله رضامندي نازله کړم. اوس دې نه پس به زه هيڅ کله تاسو نه ناراضه نشم.

۷۵۱۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَوْمًا يُحَدِّثُ وَ عِنْدَهٗ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْبَادِيَةِ اَنَّ رَجُلًا مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ اسْتَاْذَنَ رَبَّهٗ فِي الزَّرْعِ فَقَالَ لَهٗ اَوَ لَسْتُ فِيْمَا شِئْتَ قَالَ بَلٰى وَ لٰكِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ اَزْرَعَ فَاَسْرَعَ وَ بَذَرَ فَتَبَادَرَ الطَّرْفَ نَبَاتُهٗ وَاسْتِوَاؤُهٗ وَاسْتِحْصَادُهٗ وَ تَكْوِيْرُهٗ اَمْثَالَ الْجِبَالِ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى دُوْنَكَ يَا ابْنَ اٰدَمَ فَاِنَّهٗ لَا يُشْبِعُكَ شَيْءٌ فَقَالَ الْاَعْرَابِيُّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا تَجِدُ هٰذَا اِلَّا قُرَشِيًّا اَوْ اَنْصَارِيًّا فَاِنَّهُمْ اَصْحَابُ زَرْعٍ فَاَمَّا نَحْنُ فَلَسْنَا بِاَصْحَابِ زَرْعٍ فَضَحِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۷۵۱۹: محمد بن سنان، فليح هلال، عطاء بن يسار، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دې، حضور صلّي الله عليه وسلّم يو ورځ خبرې کولې. هغه وخت حضور صلّي الله عليه وسلّم سره يو ديهاتي هم ناست وو، حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. جنتيانو کښې به يو سړې دَ خپل رب نه د، کاشتکاري کولو اجازت اوغواړي، الله تعالیٰ به ورته فرمائي، څه چه ته غواړې، آيا تاسره موجود نه دي هغه به وائي. جي او (يعني موجود، دي) ليکن زه غواړم، چه زميداري اوکړم، هغه به تادي کوي، نو د سترگې د، رپ نه مخکښې به دَ هغې فصل زرغنيدل، لوئيدل او ريبل هر څه اوشي، او د، غرونو په شان د غلې انبار به اولږي. الله تعالیٰ به فرمائي، اې بني آدمه ته دا، واخله، هيڅ څيز ستا خيټه نشي ډکولې. ديهاتي اووې، يا رسولُ الله صلّي الله عليه وسلّم، تاسو به هغه قريشي يا انصاري بيامومئې، ځکه چه دا خلق زميداري (کاشتکاری) کوي، مونږ خو زمينداري نه کوو. دې اوريدو سره حضور صلّي الله عليه وسلّم په خندا شولو.

باب ۲۰۵۶: ذِكْرِ اللّٰهِ بِالْاَمْرِ وَ ذِكْرِ الْعِبَادِ بِالدُّعَاءِ وَالتَّضَرُّعِ وَالرِّسَالَةِ وَالْاِبْلَاغِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى فَاذْكُرُوْنِيٓ اَذْكُرْكُمْ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ نُوْحٍ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَّقَامِيْ وَ تَذْكِيْرِيْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ فَاَجْمِعُوْٓا اَمْرَكُمْ وَ شُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ اَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ثُمَّ اقْضُوْٓا اِلَيَّ وَ لَا تُنْظِرُوْنَ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ وَ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ غُمَّةٌ هَمٌّ وَّ ضِيْقٌ قَالَ مُجَاهِدٌ اقْضُوْٓا اِلَيَّ مَا فِيْ اَنْفُسِكُمْ يُقَالُ افْرُقْ اِقْضِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ وَّ اِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلَامَ اللّٰهِ اِنْسَانٌ يَّاْتِيْهِ فَيَسْتَمِعُ مَا يَقُوْلُ وَ مَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ فَهُوَ اٰمِنٌ حَتّٰى يَاْتِيَهٗ فَيَسْمَعَ كَلَامَ اللّٰهِ وَ حَتّٰى يَبْلُغَ مَاْمَنَهٗ حَيْثُ جَآءَهُ النَّبَاُ الْعَظِيْمُ الْقُرْاٰنُ صَوَابًا حَقًّا فِي الدُّنْيَا وَ عَمَلٌ بِهٖ.

باب ۲۰۵۶: د اللّٰه تعالىٰ د خپلو بنديانو د حکم په ذريعه، او د بنديانو د دُعاء او تضرّع او رسالت او د خدائے د حکم د رسولو په ذريعه د يادولو بيان، په دے چه اللّٰه تعالىٰ اوفرمائيل، تاسو مَا يادولے، زه به تاسو يادوم، او ته د هغوئ مخکښ د نوح عليه السّلام خبر بيان کړه، کوم وخت چه هغه خپل قوم ته اووے، اے ځما قومه، که ځما اوسيدل او د اللّٰه د نښو يادول په تاسو سخت لږي، نو ځما په اللّٰه بهروسه ده، تاسو خپل شريکان راجمع کړئے. په خپل تجويز اتفاق اوکړئے، بيا داسے نه چه ستاسو کار ستاسو د پاره د غم سبب شي. بيا څه چه ځما په حق کښ کول غواړئے، نو هغه اوکړئے. او ماله مهلت مه راکوئے که تاسو مخ اوګرځولو، نو زه تاسو نه څه اجر نه غواړم، ځما اجر خو د اللّٰه په ذمه دے، او ماته حکم راکړے شوے دے، چه زه دے د مسلمانانو نه يم. "غمه" معنىٰ غم او تنګي ده. مجاهد اووے: اَقْضُوْا اِلَيَّ: معنىٰ دي، څه چه ستاسو زړه کښ راشي، هغه اوکړئے. "افرق" د "اقض" معنىٰ کښ ونيلے شي. او مجاهد اووے: وَ اِنْ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ استجارک فاجره حتّٰى يَسْمَعُ كَلَامَ اللّٰهِ: نه مراد، دے چه څه تاسو فرمائے، او څه تاسو باندے نازل شوے دي، که هغه څوک راشي، واوري، نو هغه، هغه وخته پورے آمن و آمان کښ دے، څو پورے چه هغه راځي، او د اللّٰه کلام آوري، او خپلے ټيکاؤنړے ته اورسي، کوم ځائے نه چه راغلے دے: نبأ عظيم: نه مراد قرآن دے. "صوابا" معنىٰ دي، چه دنيا کښ حقه خبره اوکړه، او په هغے ئے عمل اوکه.

باب ۲۱ ۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّ قَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَ تَجْعَلُوْنَ لَهٗ اَنْدَادًا ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ وَ قَوْلِهٖ وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَ لَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَ اِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَ لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ وَ كُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ وَ قَالَ عِكْرَمَةُ وَ مَا يُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَ هُمْ مُّشْرِكُوْنَ وَ لَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَهُمْ وَ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ فَذٰلِكَ اِيْمَانُهُمْ وَ هُمْ يَعْبُدُوْنَ غَيْرَهٗ وَ مَا ذُكِرَ فِيْ خَلْقِ اَفْعَالِ الْعِبَادِ وَ اَكْسَابِهِمْ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا وَّ قَالَ مُجَاهِدٌ مَّا تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ اِلَّا بِالْحَقِّ بِالرِّسَالَةِ وَالْعَذَابِ لِيَسْاَلَ الصّٰدِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمُ الْمُبَلِّغِيْنَ الْمُؤَدِّيْنَ مِنَ الرُّسُلِ وَ اِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ عِنْدَنَا وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ الْقُرْاٰنُ وَ صَدَّقَ بِهٖ الْمُؤْمِنُ يَقُوْلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ هٰذَا الَّذِيْ اَعْطَيْتَنِيْ عَمِلْتُ بِمَا فِيْهِ.

باب ۲۱ ۵: د اللّٰه تعالٰي قول چه د اللّٰه شريک مه جوړوئې. او د اللّٰه عز و جل قول تاسو هغه د پاره شريک جوړه وي هغه خو د ټول جهان رب دے. او د اللّٰه تعالٰي قول او کوم خلق چه اللّٰه سره بل معبود نه بلي او تاته او ذَ هغوي طرف ته چه ذَ تا نه مخکښ وو. وحي اوليږلے اوشوے که تا شرک اوکه نو ستا عمل به ضائع شي او ته به د تاوانيانو نه شے بلکه د اللّٰه عبادت کوے او شکر گزار جوړ شے. او عکرمه اووے "وَ مَا يُؤْمِن اکثرهم باللّٰه اِلَّا وَ هُمْ مشركون" تفسير دا دے که ته د هغوئ نه تپوس اوکړے چه هغوي چا پيدا کړے دي او آسمانونه او زمکه چا پيدا کړے دي نو هغوئ به يقينًا وائي چه اللّٰه پيدا کړے دي دا د هغوئ ايمان دے او هغه خلق عبادت د غير اللّٰه کوي (دا د هغوي شرک دے) او د بنديانو د افعال او د کسب د مخلوق کيدو بيان څکه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل چه هغوي ټول څيزونه پيدا کړل او ذَ هغے اندازه ئے مقرر کړه او مجاهد اووے: مَا تنزّل الْملٰٓئِكة اِلّا بِالْحَقِّ: کښ حق نه مراد رسالت او عذاب: يَسْاَل الصّٰادِقِيْنَ عَنْ صدقهم: کښ نه مراد پيغمبران دي چه د اللّٰه حکم رسونکي او ادا کونکي دي: وَ انّا لحافظون: نه مراد دا دے چه هغه مونږ سره. او: والّذِیْ جَآء بِالصّدق: کښ صدق نه مراد قران دے. او صدق به" نه مراد مؤمن دے چه د قيامت په ورځ به وائي دا هغه څيز دے چه تا ماته راکړے وو او دے کښ چه کوم احکام وو، ما په هغے عمل اوکه.

۱۱۷٦ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيْلَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الذَّنْبِ اَعْظَمُ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ اَنْ تَجْعَلَ لِلّٰهِ نِدًّا وَّ هُوَ خَلَقَكَ قُلْتُ اِنَّ ذٰلِكَ لَعَظِيْمٌ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ ثُمَّ اَنْ تَقْتُلَ وَ لَدَكَ تَخَافُ اَنْ يَّطْعَمَ مَعَكَ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ ثُمَّ اَنْ تَزْنِيَ بِحَلِيْلَةِ جَارِكَ.

۱۱۷٦ : قتيبه بن سعيد، جرير، منصور، ابو وائل، عمرو بن شرحبيل، عبد اللّٰه نه روايت كوي. د هغه بيان دے ما د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس او كه، د اللّٰه په نزد كومه گناه د ټولو نه لويه ده. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا چه ته اللّٰه سره شريک جوړ كړے، حالانكه هغه ته پيدا كړے ئے. ما اووے، بيشكه، دا خو ډيره لويه گناه ده. ليكن دے نه پس كومه يوه ده. وے فرمائيل، دا چه ته خپل اولاد، د دے خوف نه قتل كړے. چه تاسره به خوري. ما تپوس اوكه. بيا كومه، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، چه ته د خپل گاونډي ښځے سره زنا او كړے.

## بَاب ۵٦۲ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ مَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَ لَآ اَبْصَارُكُمْ وَ لَا جُلُوْدُكُمْ وَ لٰكِنْ ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ.

## باب ۵٦۲ : د اللّٰه تعالٰي قول، تاسو خپلے گناه د دے خوف نه، نه پټولے، چه ستاسو غوږونه، ستاسو ستركے او ستاسو څرمنے به ستاسو خلاف گواهي كوي، بلكه تاسو گمان كړے وو چه اللّٰه تعالٰي ستاسو، د اكثرو، اعمالونه خبر نه دے.

۱۱۷۷ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اجْتَمَعَ عِنْدَ الْبَيْتِ ثَقَفِيَّانِ وَ قُرَشِيٌّ اَوْ قُرَشِيَّانِ وَ ثَقَفِيٌّ كَثِيْرَةٌ شَحْمُ بُطُوْنِهِمْ قَلِيْلَةٌ فِقْهُ قُلُوْبِهِمْ فَقَالَ اَحَدُهُمْ اَتَرَوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْمَعُ مَا نَقُوْلُ قَالَ الْاٰخَرُ يَسْمَعُ اِنْ جَهَرْنَا وَ لَا يَسْمَعُ اِنْ اَخْفَيْنَا وَ قَالَ الْاٰخَرُ اِنْ كَانَ يَسْمَعُ اِذَا جَهَرْنَا فَاِنَّهٗ يَسْمَعُ اِذَا اَخْفَيْنَا

۱۱۷۷ : حميدي، سفيان، منصور، مجاهد، ابو معمر، عبد اللّٰه رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے. خانه كعبے سره دوه (۲) ثقفي او يو قريشي يا دوه (۲) قريشي او يو ثقفي يو ځائے شو. د هغوئ خيټه كښ چربي (وازده) ډيره زياته وه (ډير غټ وو) ليكن د زړونو پوهه ئے كمه وه. هغوئ كښ يو اووے. ستاسو څه خيال دے، څه چه مونږ وايو، اللّٰه تعالٰي دا، آوري. دويم اووے، كه مونږ زور سره څه وايو، نو هغه ئے آوري، او كه رو، وايو، نو هغه ئے نه آوري. دريم اووے، كه هغه دا، اوري، څه چه مونږ زور سره وايو، نو دا هم آوري، څه چه

فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی وَ مَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَ لَآ اَبْصَارُكُمْ وَ لَا جُلُوْدُكُمُ الْاٰيَةَ.

مونږ رو (آهسته) وایو په دې خبره دا' آیت نازل شو: وَ مَا کنتم تَسْتَتِرونَ اَنْ یشهد علیکم سمعکم وَ لَا ابصارکم وَ لَا جلودکُمْ.

باب ۵۶۳: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَاْنٍ وَ مَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰی لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا وَّ اَنَّ حَدَثَهٗ لَا يُشْبِهُ حَدَثَ الْمَخْلُوْقِيْنَ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰی لَيْسَ كَمِثْلِهٖ شَيْءٌ وَّ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ وَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ مِنْ اَمْرِهٖ مَا يَشَآءُ وَ اِنَّ مِمَّا اَحْدَثَ اَنْ لَّا تَكَلَّمُوا فِي الصَّلٰوةِ.

باب ۵۶۳: د اللّٰه تعالیٰ قول' چه هره ورځ هغه یو نوے کار کښې دے. او هغوئ ذَ هغوئ د' رب د طرف نه هیڅ نوے خبره نه راځي' او د' اللّٰه تعالیٰ قول' ډیره ممکنه ده' چه اللّٰه دے نه پس څه نوے خبره پیدا کړي' او' د هغه نوے خبره کول' د مخلوق د نوے خبرے پیدا کولو مشابه نه دي' ځکه چه اللّٰه تعالیٰ اوفرمائیل. چه د هغه په شان هیڅ څیز نشته' او هغه آوریدونکے' لیدونکے دے. او ابن مسعود' د حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت اوکه' چه اللّٰه تعالیٰ کوم نوے حکم غواړي' ورکوي' او هغے نوے حکمونو کښې یو دا دے چه تاسو مونځ کښې خبرے مه کوئ.

۷۱۷۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَيْفَ تَسْاَلُوْنَ اَهْلَ الْكِتَابِ عَنْ كُتُبِهِمْ وَ عِنْدَكُمْ كِتَابُ اللّٰهِ اَقْرَبُ الْكُتُبِ عَهْدًا بِاللّٰهِ تَقْرَءُوْنَهٗ مَحْضًا لَّمْ يُشَبْ.

۷۱۷۸: علي بن عبد اللّٰه' حاتم بن وردان' ایوب' عکرمه' حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي. هغه اووے' تاسو خلق د' اهل کتابونه د هغوئ د کتابونو متعلق' ولے تپوس کوئ' هر کله چه تاسو سره د' اللّٰه کتاب موجود' دے چه د' اللّٰه د تولو کتابونو نه نوے دے' تاسو' د هغے تلاوت کوئ. خالص دے. دے کښې هیڅ اَمیزش نشته.

۷۱۷۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍؓ قَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ كَيْفَ تَسْاَلُوْنَ اَهْلَ الْكِتَابِ عَنْ شَيْءٍ

۷۱۷۹: ابو الیمان' شعیب' زهري' عبید اللّٰه بن عبد اللّٰه' عبد اللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنه نه روایت کوي د هغه بیان دے. اے ذَ مسلمانانو تولیه تاسو د' اهلِ کتابونه د' یو څیز متعلق ولے تپوس کوئ' حالانکه ستاسو کتاب هغه دے' چه اللّٰه تعالیٰ

وَ كِتَابُكُمُ الَّذِيْ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْدَثُ الْاَخْبَارِ بِاللّٰهِ مَحْضًا لَمْ يُشَبْ وَ قَدْ حَدَّثَكُمُ اللّٰهُ اَنَّ اَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ بَدَّلُوْا مِنْ كُتُبِ اللّٰهِ وَ غَيَّرُوْا فَكَتَبُوْا بِاَيْدِيْهِمْ قَالُوْا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِذٰلِكَ ثَمَنًا قَلِيْلًا اَوَلَا يَنْهَاكُمْ مَّا جَآءَكُمْ مِّنَ الْعِلْمِ عَنْ مُسَآلَتِهِمْ فَلَا وَاللّٰهِ مَا رَاَيْنَا رَجُلًا مِّنْهُمْ يَسْاَلُكُمْ عَنِ الَّذِيْ اُنْزِلَ عَلَيْكُمْ.

ستاسو په نبي صلّي الله عليه وسلّم باندې نازل كړې دې. د اللّٰه تعالٰي د ټولو نه نوې كتاب دې. خالص دې .هيڅ آميزش په كښې نشته. او الله تعالٰي تاسو ته بيان كړې دې، چه اهل كتابو د الله كتابونه بدل كړې دي، هغوئ ئې خپلو لاسونو سره اوليكي، بيا وائي د، د اللّٰه د طرف نه دې، چه د دې په عوض هغوئ لږ قيمت وصول كړي تاسوته چه كوم علم راغلې دې. آيا د دې متعلق ذ هغې خلقو نه تپوس نه منع كوي، قسم په خدائې، ما، دې خلقو كښې هيڅوک اونه ليدل، چه تاسو نه د هغې څيزونو متعلق تپوس اوكړي، چه تاسو باندې باندې نازل شوې دې.

**باب ۵٦۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ وَ فِعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ يُنْزَلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اَنَا مَعَ عَبْدِيْ حَيْثُمَا ذَكَرَنِيْ وَ تَحَرَّكَتْ بِيْ شَفَتَاهُ.**

**باب ۵٦۴:** ذ اللّٰه تعالٰي قول، چه دې سره خپلې ژبې له حركت مه وركوه. او د وحي نازليدو په وخت ذ حضور صلّي الله عليه وسلّم د، دغسې كولو بيان، او حضرت ابو هريره رضي الله عنه د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت اوكه. الله تعالٰي اوفرمائيل، زه خپل بنده سره يم، څو پورې چه هغه ما يادوي، او، د هغه دوارو شونډې څما په ياد (ذكر) كښې خوزي. (اللّٰه، اللّٰه، اللّٰه).

**۱۱۸۰: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مُوْسَى بْنِ اَبِيْ عَائِشَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

**۱۱۸۰:** قتيبه بن سعيد، ابو عوانه، موسٰي بن ابي عائشه، سعيد بن جبير، حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د، اللّٰه تعالٰي د قول: لا تحرک به لسانَکَ: متعلق روايت كوي. د هغه بيان دې. نبي صلّي الله عليه وسلّم باندې به وحي نازليدو سره سخت بوج وو، او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به خپلې دواړه شونډې خوزولې. ماته ابن عباس اووې. زه خپلې دواړه شونډې ستا

يُعَالِجُ مِنَ التَّنْزِيْلِ شِدَّةً وَ كَانَ يُحَرِّكُ شَفَتَيْهِ فَقَالَ لِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ أُحَرِّكُهُمَا لَكَ كَمَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَرِّكُهُمَا فَقَالَ سَعِيْدٌ أَنَا أُحَرِّكُهُمَا كَمَا كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُحَرِّكُهُمَا فَحَرَّكَ شَفَتَيْهِ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَ قُرْاٰنَهُ قَالَ جَمْعَهُ فِيْ صَدْرِكَ ثُمَّ تَقْرَءُهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهُ قَالَ فَاسْتَمِعْ لَهُ وَ أَنْصِتْ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا أَنْ تَقْرَأَهُ قَالَ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَاهُ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ اسْتَمَعَ فَإِذَا انْطَلَقَ جِبْرِيْلُ قَرَأَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا أَقْرَأَهُ.

مخکښې خوزوم، څنګه چه به رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خپلې دواړه شونډې خوزولې. سعيد اووې، څنګه چه به حضرت ابن عباس رضي الله عنه خپلې دواړه شونډې خوزولې، هغه شان ئې زه هم ستاسو مخکښې خوزوم. اووې ونيلو هغه خپلې دواړه شونډې او خوزولې. ابن عباسؓ اووې، چه الله بزرګ و برتر، آيت: لَا تحرّک بِهٖ لِسَانَکَ لتعجل بِهٖ انَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَ قُرْاٰنَهٗ: نازل کړلو. هغه اووې "جمعه" نه مراد سينه کښې محفوظ کول دي، چه بيا هغه اولولي، بيا چه مونږ هغه اولولو، نو د هغې د لوستو پيروي کوه، يعني هغه بنه غوږ اينبودو سره آوره. او خاموش اوسه بيا دا څمونږ ذمه ده، چه ته دا اولولې، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم ته چه به جبرائيل عليه السّلام راتلو، نو حضور صلّي الله عليه وسلّم به اوريدل کول، او کوم وخت چه به جبرائيل عليه السّلام لاړلو، نو نبي صلّي الله عليه وسلّم به لوستلو، څنګه چه به ورته جبرائيل عليه السّلام آورولے وو.

## بَابُ ۵۶۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ أَسِرُّوْا قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوْا بِهٖ إِنَّهٗ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ وَ هُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ يَتَخَافَتُوْنَ يَتَسَارُّوْنَ.

## باب ۵۶۵: د الله تعالٰي قول، که تاسو خپله خبره رو، رو، کوئ، يا په زوره، بيشکه الله تعالٰي د، زړه په خبرو پوهيدونکے دے. آيا هغه په هغه څيزونو نه پوهيږي، چه هغه پيدا کړے دي. هغه باريک بين او خبردار دے. يتخافتون: معنٰي دي، چه هغوي خپلو کښې پټې پټې خبرې کوي.

۱۱۸۱: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ عَنْ هُشَيْمٍ أَخْبَرَنَا أَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ

۱۱۸۱: عمرو بن زراره، هشيم، ابو بشر، سعيد بن جبير، حضرت ابن عبّاس رضي الله عنه نه د، الله تعالٰي د قول: وَ لَا تجهر بصلاتک وَ لَا تخافت بِهَا:

ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا قَالَ نَزَلَتْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ مُخْتَفٍ بِمَكَّةَ فَكَانَ اِذَا صَلّٰى بِاَصْحَابِهٖ رَفَعَ صَوْتَهٗ بِالْقُرْاٰنِ فَاِذَا سَمِعَهُ الْمُشْرِكُوْنَ سَبُّوا الْقُرْاٰنَ وَ مَنْ اَنْزَلَهٗ وَ مَنْ جَآءَ بِهٖ فَقَالَ اللّٰهُ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ اَيْ بِقِرَاءَ تِكَ فَيَسْمَعَ الْمُشْرِكُوْنَ فَيَسُبُّوا الْقُرْاٰنَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا عَنْ اَصْحَابِكَ فَلَا تُسْمِعُهُمْ وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا.

متعلق روايت كوي. د هغه بيان دے. دا' آيت هغه وخت نازل شو' چه رسول الله صلّي الله عليه وسلّم به مكه كښ پټ اوسيدلو' خپلو صحابه ؓ ته چه به ئے مونځ وركولو' نو اوچت آواز سره به ئے قرآن لوستلو' چه مشركينو به واوريدلو' نو قرآن' د هغے نازلونكي او د هغے راوړونكي ته به ئے بدرد وئيلے. په دے وجه الله تعالي خپل نبي صلّي الله عليه وسلّم ته حكم وركړلو: وَ لَا تجهر بصلاتک: الخ يعني زور سره مه لوله' چه مشركين ئے واوري' او قرآن ته بدرد اووائي' اونه دومره په رو' ئے لوله' چه ستا ملګري ئے هم واونه ري. او د دے درمياني طريقه تلاش كړه (يعني مه دومره په زوره وايه' چه مشركان ئے واوري' او' مه دومره رو' چه ملګري دِ هم واونه ري.

۱۱۸۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا فِي الدُّعَآءِ.

۱۱۸۲: عبيد بن اسماعيل' ابو اسامه' هشام' خپل پلار نه' هغه د بي بي عائشے ؓ نه روايت كوي. دَ هغے بيان دے' دا' آيت: وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِکَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا: د' دعاء باره كښ نازل شوے دے.

۱۱۸۳: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَّمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْاٰنِ وَزَادَ غَيْرُهٗ يَجْهَرُ بِهٖ.

۱۱۸۳: اسحاق' ابو عاصم' ابن جريج' ابن شهاب' ابو اسامه' ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' كوم سړے چه خوش آوازي سره قرآن نه لولي' هغه خمونږ نه' نه دے' او نورو خلقو دومره زيات بيان اوكه' څوک ئے زور سره نه لولي.

باب ۵۶۶: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ

باب ۵۶۶: دَ نبي صلّي الله عليه وسلّم ارشاد' يو سړے چه هغه ته الله قرآن وركړے دے او هغه ئے شپه

الْقُرْاٰنَ فَهُوَ يَقُوْمُ بِهٖ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَ رَجُلٌ يَّقُوْلُ لَوْ اُوْتِيْتُ مِثْلَ مَا اُوْتِيَ هٰذَا فَعَلْتُ كَمَا يَفْعَلُ فَبَيَّنَ اللّٰهُ اَنَّ قِيَامَهُ بِالْكِتٰبِ هُوَ فِعْلُهُ وَ قَالَ وَ مِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَ اَلْوَانِكُمْ وَ قَالَ جَلَّ ذِكْرُهُ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ.

او ورځ لولي. بل سړے چه نے اووينې نو وائي کاش چه ماته هُم راکړے شوے وے، څنګه چه ده ته ورکړے شوے دے، نو ما به هم داسے کولے، څنګه چه دے کوي نو اللّٰه تعالیٰ اوفرمائيل، د دے کتاب لوستل د هغه فعل دے. اووے فرمائيل، د آسمانانو او زمکے پيدا کول او ستاسو د ژبو، او ستاسو رنګونو اختلاف دَ نښو نښانو نه دي، او اللّٰه بزرګ و برتر اوفرمائيل نيکي کوئے، د پاره د دے چه خلاصے بيامومئے.

۷۱۸۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحَاسُدَ اِلَّا فِيْ اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَهُوَ يَتْلُوْهُ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَ اٰنَآءَ النَّهَارِ فَهُوَ يَقُوْلُ لَوْ اُوْتِيْتُ مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ هٰذَا لَفَعَلْتُ كَمَا يَفْعَلُ وَ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يُنْفِقُهُ فِيْ حَقِّهٖ فَيَقُوْلُ لَوْ اُوْتِيْتُ مِثْلَ مَا اُوْتِيَ عَمِلْتُ فِيْهِ مِثْلَ مَا يَعْمَلُ.

۷۱۸۴ : قتيبه، جرير، اعمش، ابو صالح، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه رويت کوي، دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، حسد (رشک) صرف دوه (۲) سړو سره کيدے شي، يو هغه سړے چه هغه ته اللّٰه قرآن ورکړے وي، او هغه ئے شپه او ورځ تلاوت کوي، او بل څوک اووائي کاش چه ماته هم دا، راکړے شوے وے، نو ما به هم داسے کولے، څنګه چه هغه کوي، دويم هغه سړے چه هغه له اللّٰه مال ورکړے وي، او هغه ئے د، اللّٰه په لار کښې خرچ کوي. او بل څوک اووائي کاش چه ماته هم داسے راکړے شوے، نو مابه داسے کولے. څنګه چه دے کوي.

ف : حسد: دلته د حسد نه رشک يا پسخيدل مراد، دي.

۷۱۸۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا حَسَدَ اِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَهُوَ يَتْلُوْهُ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَ اٰنَآءَ النَّهَارِ وَ

۷۱۸۵ : علي بن عبد اللّٰه، سفيان، زهري، سالم، د خپل پلار نه هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل حسد (رشک، پسخيدل) صرف دوو (۲) سړو سره کيدے شي، يو هغه سړے چه هغه له اللّٰه قرآن ورکړے وي، او هغه ئے شپه او ورځ لولي، او دويم هغه سړے چه هغه له،

رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يُنْفِقُهُ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَ اٰنَآءَ النَّهَارِ سَمِعْتُ سُفْيَانَ مِرَارًا لَمْ اَسْمَعْهُ يَذْكُرُ الْخَبَرَ وَ هُوَ مِنْ صَحِيْحِ حَدِيْثِهٖ.

الله مال ور کړے وي او هغه ئے ورځ او شپه خرچ کوي' علي بن عبد الله اووے. ما د سفيان نه څو ځله واوريدل. ليکن د هغه نه م: اخبرنا: لفظ سره بيانول نه دي آوريدلے' حالانکه دا' د هغه د صحيح حديثونو نه دے.

## باب ۵۶۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی

يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ وَ اِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ وَ قَالَ الزُّهْرِيُّ مِنَ اللّٰهِ الرِّسَالَةُ وَ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَلَاغُ وَ عَلَيْنَا التَّسْلِيْمُ وَ قَالَ لِيَعْلَمَ اَنْ قَدْ اَبْلَغُوْا رِسٰلٰتِ رَبِّهِمْ وَ قَالَ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّیْ وَ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ سَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَ رَسُوْلُهٗ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ اِذَآ اَعْجَبَكَ حُسْنُ عَمَلِ امْرِئٍ فَقُلِ اعْمَلُوْا فَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَ رَسُوْلُهٗ وَالْمُؤْمِنُوْنَ وَ لَا يَسْتَخِفَّنَّكَ اَحَدٌ وَ قَالَ مَعْمَرٌ ذٰلِكَ الْكِتَابُ هٰذَا الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ بَيَانٌ وَّ دَلَالَةٌ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰی ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ هٰذَا حُكْمُ اللّٰهِ لَا رَيْبَ لَا شَكَّ تِلْكَ اٰيَاتُ يَعْنِيْ هٰذِهٖ اَعْلَامُ الْقُرْاٰنِ وَ مِثْلُهٗ حَتّٰى اِذَا كُنْتُمْ فِی الْفُلْكِ وَ جَرَيْنَ بِهِمْ يَعْنِيْ

باب ۵۶۷: د' اللّٰه تعالٰي قول' اے رسوله' اورسوه' څه چه په تا د خپل پروردگار دَ طرف نه نازل شوے دي او که تا داسے اونه کړل' نو تا دَ' هغه پيغام او' نه رسولو. او زهري اووے. د' اللّٰه د طرف نه پيغام راليږل دي' او په رسول الله صلّي الله عليه وسلّم د' هغے رسول دي. او په مونږ د هغه منل دي او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل' چه الله معلومه کړي' چه دے خلقو دَ خپل رب پيغام اورسولو. او' وے فرمائيل' زه تاسو ته د خپل رب پيغامات رسَوَم. او کعب بن مالک' چه هغه غزوه تبوک کښې' د نبي عليه السّلام نه ورستو پاتے شوے ؤ. وئيلے. عنقريب اللّٰه او د هغه رسول به ستاسو کار گوري. او بي بي عائشے اووے' هر کله چه ستاسو د چا عمل خوښ وي' نو وايئے' چه عمل کوه' عنقريب' اللّٰه' د هغه رسول او مؤمنان به ستاسو کار گوري. او تاسو دے څوک فريب کښې اونه غرځوي. او معمر اووے: ذٰلک الکتاب: نه مراد هٰذا القرآن: دے. هدي للمتقين (پرهيز گارو د پاره هدايت دے) کښې: هُدٰی: نه مراد بيان او' دلالت دے' څنګه چه د' اللّٰه تعالٰي دا قول دے' چه دا' د' اللّٰه حکم دے دے کښې هيڅ شک نشته: تلک آيات: نه مراد: هٰذِهِ اَعلام القرآن دے. او د دے مثال آيت: حتّٰي اِذا کنتم فِي الفلک وَ جرين بهم: دے' چه هغے کښې د: جرين بِهم: نه مراد: جرين بکم: دے:

بكُمْ وَ قَالَ اَنَسٌ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالَهُ حَرَامًا اِلٰى قَوْمِهٖ وَ قَالَ اَتُؤْمِنُوْنِيْ اُبَلِّغُ رِسَالَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يُحَدِّثُهُمْ.

او انس رضي الله عنه اووے حضور صلّي الله عليه وسلّم د هغه ماما، حرام، د هغه قوم ته اوليږلو هغه ورته اووے، تاسو په ما ايمان راوړئے، چه زه درته د حضور صلّي الله عليه وسلّم پيغام رسوم. بيا هغوئ سره ئے خبرے شروع کړلے.

۱۱۸۶: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ جَعْفَرٍ الرَّقِيُّ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ الثَّقَفِيُّ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُزَنِيُّ وَّ زِيَادُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ قَالَ الْمُغِيْرَةُ اَخْبَرَنَا نَبِيُّنَا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رِسَالَةِ رَبِّنَا اَنَّهٗ مَنْ قُتِلَ مِنَّا صَارَ اِلَى الْجَنَّةِ.

۱۱۸۶: فضل بن يعقوب، عبد اللّٰه بن جعفر (رقي)، معتمر بن سليمان، سعيد بن عبيد اللّٰه عبيد اللّٰه ثقفي، بكر بن عبد اللّٰه مزني، او زياده بن جبير بن حيّه، جبير بن حيّه، حضرت مغيره (بن شعبه) نه روايت کوي. د هغه بيان دے، خمونږ پيغمبر صلّي اللّٰه عليه وسلّم ڎ خدائے مونږ ته د خپل پروردګار د پيغام متعلق خبر راکه، چه مونږ کښې کوم سړے قتل کړے شو، هغه به جنت له خي.

۱۱۸۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكَ اَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَمَ شَيْئًا وَّ قَالَ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَّسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَمَ شَيْئًا مِنَ الْوَحْيِ فَلَا تُصَدِّقْهُ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى يَقُوْلُ يٰاَيُّهَا

۱۱۸۷: محمد بن يوسف، سفيان، اسماعيل، شعبي، مسروق، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. د هغے بيان دے، کوم سړے چه تاسو ته دا بيان کړي، چه محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، وحي نه څه پټ اوساتل (دويم سند) محمد، ابو عامر، عقدي، شعبه، اسماعيل بن ابي خالد، شعبي، مسروق، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. هغے اووے، کوم سړے چه تاسو ته دا اووائي، چه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د، وحي نه څه خان سره پټ ساتلے وي نو هغه ريښتنے مه ګڼړئے، ځکه چه اللّٰه تعالي فرمائي، اے رسوله ته اورسوه، څه چه ستا د، رب د طرف نه نازل شوے دي او که

الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ وَ اِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ.

۱۱۸۸ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جُرَيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ عَمْرِو ابْنِ شُرَحْبِيْلَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ رَجُلٌ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الذَّنْبِ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ اَنْ تَدْعُوْا لِلّٰهِ نِدًّا وَّ هُوَ خَلَقَكَ قَالَ ثُمَّ اَيُّ قَالَ ثُمَّ اَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ مَخَافَةَ اَنْ يَّطْعَمَ مَعَكَ قَالَ اَيُّ قَالَ اَنْ تَزَانِيَ حَلِيْلَةَ جَارِكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَصْدِيْقَهَا وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَ لَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ لَا يَزْنُوْنَ وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ الْاٰيَةَ.

باب ۵۶۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَاْتُوْا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوْهَا وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُعْطِيَ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ الْاِنْجِيْلَ فَعَمِلُوْا بِهٖ وَ اُعْطِيْتُمُ الْقُرْاٰنَ فَعَمِلْتُمْ بِهٖ وَ قَالَ اَبُوْ رَزِيْنٍ يَتْلُوْنَهُ يَتَّبِعُوْنَهُ وَ يَعْمَلُوْنَ بِهٖ حَقَّ عَمَلِهٖ يُقَالُ يُتْلٰى يَقْرَاُ حَسَنُ التِّلَاوَةِ حَسَنُ الْقِرَآءَةِ لِلْقُرْاٰنِ لَا يَمَسُّهُ لَا يَجِدُ طَعْمَهُ وَ نَفْعَهُ اِلَّا

تا داسے اونه کړل' نو بيا تا د هغه پيغام او' نه رسوو.

۱۱۸۸ : قتيبه بن سعيد' جرير' اعمش' ابو وائل' عمرو بن شرحبيل' عبد اللّٰه نه روايت کوي' يو سړي تپوس اوکه' يا رسول اللّٰه' کومه گناه د' اللّٰه په نزد' د تولو نه لويه ده. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دا چه' ته اللّٰه سره شريک جوړ کړے حالانکه هغه ته پيدا کړے ئے. تپوس ئے اوکه' بيا کومه' وے فرمائيل' دا چه ته خپل اولاد' د دے ويرے نه قتل کړے' چه تاسره به اوخوري (اُوځکي) تپوس ئے اوکه' بيا کومه وے فرمائيل' دا چه ته د خپل گاونډي ښځے سره زنا اوکړے' نو اللّٰه د هغے تصديق کبن دا' ايت نازل کړلو: او څوک چه اللّٰه سره بل معبود نه بلي' او نه يو نفس' چه هغه اللّٰه حرام کړے وي' په ناحقه قتلوي' او نه زنا کوي' او چا چه داسے اوکړل: الخ.

باب ۵۶۸: د' اللّٰه تعالٰي قول' ورته اووايه' تورات راوړے' او هغه اولولے د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم قول' تورات والو ته تورات ورکړے شو' هغوئ پرے عمل اوکه' او انجيل والو ته انجيل ورکړے شو' هغے خلقو پرے عمل اوکه' او تاسو خلقو ته قرآن درکړے شو' تاسو په هغے عمل اوکه او ابو رزين اووے: يتلونه: نه مراد دادے' چه هغه خلق د دے پيروي کوي' او ځنگه چه عمل کول پکار دي' په هغے عمل کوي. او "يُتلٰي" ونيلو نه دا' مراد اخلي' چه لوستے شي. د قرآن په ښه شان لوستو او تلاوت کولو ته ونيلے شي: لَا يَمَسّهُ معني دي' د دے مزه او نفع به هغه څوک بيامومي' چه په

مَنْ اٰمَنَ بِالْقُرْاٰنِ وَ لَا يَحْمِلُهُ بِحَقِّهٖ اِلَّا الْمُوْقِنُ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوْهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيَاتِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ وَ سَمّٰى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاِسْلَامَ وَالْاِيْمَانَ عَمَلًا قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبِلَالٍ اَخْبِرْنِىْ بِاَرْجٰى عَمَلٍ عَمِلْتَهٗ فِى الْاِسْلَامِ قَالَ مَا عَمِلْتُ عَمَلًا اَرْجٰى عِنْدِىْ اِنِّىْ لَمْ اَتَطَهَّرْ اِلَّا صَلَّيْتُ وَ سُئِلَ اَىُّ الْعَمَلِ اَفْضَلُ قَالَ اِيْمَانٌ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ثُمَّ الْجِهَادُ ثُمَّ حَجٌّ مَبْرُوْرٌ.

قرآن ايمان راوړي. او دابه د دے حق سره هغه څوک پوره کوي چه يقين لري. نو' الله پاک اوفرمائيل' په چا چه د تورات ذمه واري وه' هغوي هغه اذا نه کړله' ذ هغوئ مثال د' خر دے' چه کتابونه پرے پراته وي. (چارپائے برو کتابے چند) د هغے قوم خراب مثال دے' چه هغه د' الله ايتونه دروغ اوګڼړل. او الله ظالم قوم ته هدايت نه کوي. او نبي صلّي الله عليه وسلّم اسلام او ايمان ته عمل اوفرمائيلو. ابو هريره رضي الله عنه اووے. نبي صلّي الله عليه وسلّم' بلالؓ ته اوفرمائيل' ماته هغه عمل اوښايه' چه تا' د' اسلام حالت کښ په' ډير زيات اميد کړے وي. هغه اووے' ما هيڅ داسے کار نه دے کړے' چه خما په نزد د' زيات اُميد وي. بغير د دے نه چه کله څان پاک کړم نو مونځ کوم او حضور صلّي الله عليه وسلّم نه چا تپوس اوکه' چه کوم عمل د ټولو نه ښه دے. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' الله او د هغه رسول باندے ايمان راوړل. بيا جهاد کول بيا حج مقبول دے.

**۱۱۸۹ :** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِىْ سَالِمٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا بَقَآءُكُمْ فِيْمَنْ سَلَفَ مِنَ الْاُمَمِ كَمَا بَيْنَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ اُوْتِىَ اَهْلُ التَّوْرٰىةِ التَّوْرٰىةَ فَعَمِلُوْا بِهَا حَتّٰى انْتَصَفَ النَّهَارُ ثُمَّ عَجَزُوْا فَاُعْطُوْا قِيْرَاطًا

**۱۱۸۹ :** عبدان' عبد الله' يونس' زهري' سالم' ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي' رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ستاسو بقاء ذ تيرو اُمتونو مقابله کښ داسے ده' لکه د مازيګر د مونځ نه د' نمر ډوبيدو پورے وخت چه دے. تورات والو ته تورات ورکړے شو' هغوئ پرے عمل اوکه' تر دے چه ذ ماسپخين وخت شو. بيا هغه خلق عاجز شو' نو هغوئ ته يو قيراط ورکړے شو. بيا انجيل والو ته انجيل ورکړے شو' نو هغے

قِيرَاطًا ثُمَّ أُوتِيَ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ الْإِنْجِيلَ فَعَمِلُوا بِهِ حَتَّى صُلِّيَتِ الْعَصْرُ ثُمَّ عَجَزُوا فَأُعْطُوا قِيرَاطًا قِيرَاطًا أُوتِيتُمُ الْقُرْآنَ فَعَمِلْتُمْ بِهِ حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ فَأُعْطِيتُمْ قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ فَقَالَ أَهْلُ الْكِتَابِ هٰؤُلَاءِ أَقَلُّ مِنَّا عَمَلًا وَ أَكْثَرُ أَجْرًا قَالَ اللّٰهُ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا قَالُوا لَا قَالَ فَهُوَ فَضْلِي أُوتِيهِ مَنْ أَشَاءُ.

خلقو پرې عمل اوکه، تر دې چه د مازيګر مونځ اوشو. بيا هغوئ عاجزه شو، نو هغوئ ته هم يو، يو قيراط ورکړې شو. بيا تاسو خلقو ته قرآن درکړې شو، نو تاسو خلقو په هغې عمل اوکه، تردې چه نمر پريوتلو، نو تاسو خلقو ته دوه (۲)، دوه (۲) قيراطه درکړې شو اهل کتابو اووې. دې خلقو خمونږ نه کار لږ اوکه، او مزدوري ئې زياته واخسته. اللّٰه تعالیٰ اوفرمائيل، آيا ستاسو حق کښې ما څه کمې کړې دې. هغې خلقو اووې، نه نو اللّٰه پاک اوفرمائيل، دا څما فضل دې، چاته چه غواړم، ورکوم.

**بَاب ۵۶۹: وَ سَمَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلٰوةَ عَمَلًا وَ قَالَ لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَءْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ.**

**باب ۵۶۹:** د دې امر بيان، چه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم مونځ ته عمل اوفرمائيلو. اووې فرمائيل، د هغې سړي مونځ به کامل نه وي، چه هغه سورۀ فاتحه او نه لوسته.

**۷۱۹۰:** حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْوَلِيدِ وَ حَدَّثَنِي عَبَّادُ بْنُ يَعْقُوبَ الْأَسَدِيُّ أَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنِ الْوَلِيدِ ابْنِ الْعَيْزَارِ عَنْ أَبِيْ عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ قَالَ الصَّلٰوةُ لِوَقْتِهَا وَ بِرُّ الْوَالِدَيْنِ ثُمَّ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

**۷۱۹۰:** سليمان، شعبه، وليد (دويم سند) عباد بن يعقوب اسدي، عباد بن عوام، شيباني، وليد بن عيزار، ابو عمرو شيباني، حضرت ابن مسعودؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دې. يو سړي د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوکه، کوم عمل افضل دې. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل په وخت مونځ کول، او مور پلار سره نيکي کول. او د خدائې په لار کښې جهاد کول.

**بَابُ ۵۷۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى إِنَّ الْإِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا**

**باب ۵۷۰:** د اللّٰه تعالیٰ قول، چه انسان ډير، پريدونکې پيدا شوې دې، چه څه مصيبت پرې راشي، نو ژړا، انګوله شروع کړي، او چه څه خير ورته اورسي

وَ إِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوْعًا هَلُوْعًا ضَجُوْرًا.

نو نيک کارونه ېرېږدي. : هلوعًا: معني: ضجورًا: دے (ېرونکے، ېرېدونکے).

۱۱۹۱ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنِ الْحَسَنِ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ قَالَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالٌ فَاَعْطٰى قَوْمًا وَّ مَنَعَ اٰخَرِيْنَ فَبَلَغَهُ اَنَّهُمْ عَتَبُوْا فَقَالَ اِنِّيْ اُعْطِيْ الرَّجُلَ وَ اَدَعُ الرَّجُلَ وَالَّذِيْ اَدَعُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنَ الَّذِيْ اُعْطِيْ اُعْطِيْ اَقْوَامًا لِّمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ مِنَ الْجَزَعِ وَالْهَلَعِ وَ اَكِلُ اَقْوَامًا اِلٰى مَا جَعَلَ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مِنَ الْغِنٰى وَالْخَيْرِ مِنْهُمْ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ فَقَالَ عَمْرٌو مَّا اُحِبُّ اَنَّ لِيْ بِكَلِمَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُمْرَ النَّعَمِ.

۱۱۹۱ : ابو نعمان، جرير بن حازم، حسن، عمرو تغلب نه روايت کوي. د هغه بيان دے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته څه مال راغے، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم چاته ورکړلو، او چاته ئے ورنه کړلو. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم خبر شو. چه خلق ناراضه شوے دي، نو وے فرمائيل، زه چاته (مال) ورکوم، او چاته نه ورکوم، حالانکه چاته چه نه ورکوم، هغه ماته زيات محبوب دي، د هغے نه چه ورته ئے ورکوم. دغے خلقو له څکه مال ورکوم، چه د هغوي زړونو کښ ويره او بے چيني (بے اطمينانى) وي. او چاته چه نه ورکوم هغوئ هغے بے نيازي او نيکي ته حواله کوم، چه اللّٰه، هغوئ کښ اچولے ده. عمرو بن تغلب هم د هغوئ نه دے. عمرو، اووے، زه نه خوښوم، چه د رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم د دے کلمے په ځائے ماسره سرۀ اُوښان وي.

ف: دغے خلقو به سره اُوښان (سرخ اونٹ) ډير قيمتي او زړه پورے مال گنړلو.

باب ۱۷۵: ذِكْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رِوَايَتِهٖ عَنْ رَّبِّهٖ.

باب ۱۷۵: د، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د خپل پروردِګار نه د، ذکر او روايت کولو بيان.

۱۱۹۲ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا اَبُوْ زَيْدٍ سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْهَرَوِيُّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَّبِّهٖ قَالَ اِذَا تَقَرَّبَ الْعَبْدُ اِلَيَّ شِبْرًا تَقَرَّبْتُ اِلَيْهِ ذِرَاعًا وَّ اِذَا تَقَرَّبَ مِنِّيْ ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ

۱۱۹۲ : محمد بن عبد الرحيم، ابو زيد سعيد بن ربيع هروي، شعبه، قتاده، انس رضي اللّٰه عنه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه، حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د خپل رب نه روايت کوي، اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، کله چه بنده ماته، يو لويشت رانزدے شي، نو زه هغه ته يو ګز ورنزدے شم. او هر کله چه هغه ماته يو ګز رانزدے شي، نو زۀ ورته يو باع (د، دواړو لاسونو خوروالي برابر) ورنزدے

مِنْـهُ بَـاعًـا وَّ اِذَا اَتَـانِيْ مَشْيًا اَتَيْتُـهُ هَرْوَلَةً.

شم، او هـر كـلـه چـه هغه ماته (رو) راځي، نو زه ورته په منډه ورځم.

۱۱۹۳ : حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدُ عَنْ يَحْيٰى عَنِ التَّيْمِيِّ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ هُـرَيْرَةَ قَالَ رُبَّمَا ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا تَـقَـرَّبَ الْعَبْدُ مِنِّيْ شِبْرًا تَقَرَّبْتُ مِنْهُ ذِرَاعًـا وَّ اِذَا تَقَرَّبَ مِنِّيْ ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ مِنْهُ بَاعًا. اَوْ بُوْعًا قَالَ مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ سَـمِـعْتُ اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَّبِّهٖ عَزَّ وَ جَلَّ.

۱۱۹۳ : مسـدد، يـحيٰي، تيمي، انس بن مالک، ابـو هـريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي خو خله حضور صَـلّـي اللّـٰه عـليـه وسلّم ارشاد فرمائيلي دے، اللّٰه پاک اوفـرمـائيل، كله چه بنده ماته يو، ليشت رانزدے شي، نو، زه ورته يو گز ورنزدے شم. او كه هغه ماته يو گز رانزدے شـي، نـو زه ورتـه د، دواړو لاسـونـو د خوريدو بـرابـر ورنـزدے شـم. او مـعـتـمـر اووے مـا د خپل استـاد نـه واوريـدل، هـغـه اووے مـا د، انـس رضـي اللّٰـه عنـه نـه واوريـدل، هـغـه د نـبـي صـلّي اللّٰه عليه وسلّم نه او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم د خپل پروردگار نه روايت كوي.

۱۱۹۴ : حَـدَّثَـنَـا اٰدَمُ حَـدَّثَنَا شُعْبَةُ حَـدَّثَـنَـا مُحَـمَّدُ بْنُ زِيَادٍ قَالَ سَـمِـعْتُ اَبَـا هُـرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيْهِ عَنْ رَّبِّكُمْ قَـالَ لِـكُلِّ عَمَلٍ كَفَّارَةٌ وَّالصَّوْمُ لِيْ وَ اَنَـا اَجْـزِىْ بِـهٖ وَ لَخُلُوْفُ فَمِ الصَّآئِمِ اَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِيْحِ الْمِسْكِ.

۱۱۹۴ : آدم، شعبـه، مـحـمد بن زياد، ابو هريره رضـي اللّٰه عنه نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه. حضور صلّي اللّـٰه عـليـه وسلّم د خپل رب نه روايت كوي، اللّٰه پاک اوفـرمـائيل، هر عمل د پاره كفاره وي. او روژه ما د پاره ده او زه د هـغـے بـدلـه ور كـوم، او د، روژه دار د، خولے بُـوئ، اللّـٰه تـه د مشـكـو د خـوشبوئ نه هم زيات خوبن دے.

۱۱۹۵ : حَـدَّثَـنَـا حَفْصُ بْنُ عُمَـرَ حَـدَّثَـنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ وَ قَالَ لِيْ خَـلِيْـفَةُ حَـدَّثَـنَـا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَـنْ سَـعِـيْـدٍ عَـنْ قَـتَـادَةَ عَـنْ اَبِـي الْعَـالِيَةِ عَـنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَـلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا يَرْوِيْهِ عَنْ رَّبِّهٖ قَالَ لَا يَنْبَغِيْ لِعَبْدٍ اَنْ يَّقُوْلَ

۱۱۹۵ : حـفـص بـن عـمـر، شعبـه، قتـاده (دويم سـنـد) خـليفه، يزيد بن زريع، سعيد، قتاده، ابو العاليه، ابن عبـاس رضـي اللّـٰه عنه حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه او حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ذ خپل پروردگار نه چه كوم روايـت كـوي، هـغـے كښ فرمائي، اللّٰه پاک اوفرمائيل، هيڅ بنده د پاره مناسب نه دي، چه هغه دا، اووائي، چه زه (مـحـمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم) د يونس بن متٰي نه افضل

أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى وَ نَسَبَهٗ إِلٰى أَبِيْهِ.

يم. او يونس عليه السّلام ئے د هغه پلار طرف ته منسوب كړلو.

۱۱۹۶: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِيْ سُرَيْجٍ أَخْبَرَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ الْمُزَنِيِّ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ عَلٰى نَاقَةٍ لَهٗ يَقْرَأُ سُوْرَةَ الْفَتْحِ أَوْ مِنْ سُوْرَةِ الْفَتْحِ قَالَ فَرَجَّعَ فِيْهَا قَالَ ثُمَّ قَرَأَ مُعَاوِيَةُ يَحْكِيْ قِرَاءَةَ ابْنِ مُغَفَّلٍ وَ قَالَ لَوْلَا أَنْ يَّجْتَمِعَ النَّاسُ عَلَيْكُمْ لَرَجَّعْتُ كَمَا رَجَّعَ ابْنُ مُغَفَّلٍ يَحْكِيْ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِمُعَاوِيَةَ كَيْفَ كَانَ تَرْجِيْعُهٗ قَالَ آ آ آ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ.

۱۱۹۶: احمد بن سريج، شبابه، شبابه، معاويه بن قره، عبد الله بن مغفل مزني نه روايت كوي، ما رسول الله صلّي الله عليه وسلّم دَ مكے د فتح په ورځ په خپله اوښه سور اوليدلو. حضور صلّي الله عليه وسلّم سورهٔ فتح لوستلو. يا وئيلے، د سورهٔ فتح نه ئے لوستلو. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم دا، آيتونه په دوباره، درے باره اولوستل. د شعبه بيان دے. بيا معاويه د، ابن مغفل د قرأت نقل كولو سره اولوستلو او، وئيلے، كه خلق تاسو سره نه جمع كيدے نو ما به دا دوباره، درے باره لوستے څنګه چه ابن مغفل دوباره، درے باره لوستلو د شعبه بيان دے. ما د معاويه نه تپوس اوكه، هغه ترجيح څنګه كړے وه. هغه آ، آ، آ، درے ځله اوكړل.

بَابُ ۲۷۵: مَا يَجُوْزُ مِنْ تَفْسِيْرِ التَّوْرَاةِ وَ غَيْرِهَا مِنْ كُتُبِ اللّٰهِ بِالْعَرَبِيَّةِ وَ غَيْرِهَا لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَأْتُوْا بِالتَّوْرٰةِ فَاتْلُوْهَا إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سُفْيَانَ ابْنُ حَرْبٍ أَنَّ هِرَقْلَ دَعَا تَرْجُمَانَهٗ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَهٗ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ وَ

باب ۲۷۵: د تورات او نورو كتب الٰهيه عربي (پښتو) او نورو ژبو كښ دَ تفسير د جائز كيدو بيان، څنګه چه الله پاک اوفرمائيل، تورات راوړئے، او هغه اولولئے، كه تاسو رېښتنے ئے. او ابن عباسؓ اووے. ماته ابو سفيان بن حرب بيان اوكه: چه هرقل خپل مترجم راوغښتلو. بيائے د نبي صلّي الله عليه وسلّم خط راوړلو. هغه ئے اولوست هغے كښ ليكلے وو:

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ.

مِنْ محمد عبد الله و رسوله إلٰى هرقل وَ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تعالوا إلى كلمة سوآءٍ بيننا وَ بَيْنَكُمْ: الخ (د: الله د بنده او د هغه د، رسول محمد صلّي الله عليه

رَسُوْلِهٖ اِلٰى هِرَقْلَ وَ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ الْاٰيَةَ.

وسلّم) د طرف نه د هرقل په نوم.

اے اهل کتابو، تاسو هغے کلمے طرف ته راشئ، چه خمونږ او ستاسو مينځ کښې مشترک ده.

۱۱۹۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيٰى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ اَهْلُ الْكِتَابِ يَقْرَءُوْنَ التَّوْرٰىةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ وَ يُفَسِّرُوْنَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُصَدِّقُوْا اَهْلَ الْكِتٰبِ وَ لَا تُكَذِّبُوْهُمْ وَ قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ مَآ اُنْزِلَ الْاٰيَةَ.

۱۱۹۷ : محمد بن بشار، عثمان بن عمر، علي بن مبارک، يحيي بن ابي کثير، ابو سلمه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، اهل کتابو به تورات عبراني ژبه کښې ليکلو، او مسلمانانو د پاره به ئې د هغې تفسير عربي کښې ليکلو، نو رسول الله صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، د اهل کتابو مه تصديق کوئ، او، مه ئې تکذيب کوئ او داسے وايئ، چه مونږ په الله تعالٰي او په هغه څيز چه هغه نازل کړے دے، ايمان راوړے دے. الخ.

۱۱۹۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ وَّامْرَاَةٍ مِنَ الْيَهُوْدِ قَدْ زَنَيَا فَقَالَ لِلْيَهُوْدِ مَا تَصْنَعُوْنَ بِهِمَا قَالُوْا نُسَخِّمُ وُجُوْهَهُمَا وَ نُخْزِيْهِمَا قَالَ فَأْتُوْا بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوْهَا اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ فَجَآءُوْا فَقَالُوْا لِرَجُلٍ مِّمَّنْ يَرْضَوْنَ يَا اَعْوَرُ اقْرَاْ فَقَرَاَ حَتّٰى انْتَهٰى اِلٰى

۱۱۹۸ : مسدد، اسماعيل، ايوب، نافع، ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي نبي صلّي الله عليه وسلّم ته يو يهودي سړي او يوه يهودنړه راوستے شوه، چه هغوي زنا کړے وه. حضور صلّي الله عليه وسلّم يهودو ته اووے، تاسو دے دواړو سره څه کوئ هغې خلقو ورته اووے، مونږ د دوي مخ تور کړو، رسوائي کړو. حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تورات راوړئ، او هغه اولولئ، که تاسو ريښتني ئې، هغوئ تورات راوړلو، او يو سړي ته ئې اووے، چه هغوئ خوښولو، اے اعور، ته اولوله، هغه تورات لوستل شروع کړل. کوم وخت چه هغه متعلقه قيام ته اورسيد نو په هغه ځائے ئې خپل لاس کيښودلو حضور صلّي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل خپل لاس اوچت که. هغه خپل لاس اوچت که نو هلته کښې د رجم

مَـوْضِـعٍ مِـنْهَـا فَـوَضَـعَ يَـدَهُ عَـلَيْـهِ قَـالَ ارْفَعْ يَـدَكَ فَـرَفَعَ يَـدَهُ فَـإِذَا فِيْـهِ اٰيَةُ الـرَّجْـمِ تَـلُوْحُ فَـقَـالَ يَـا مُحَـمَّـدُ اِنَّ عَـلَيْهِـمَـا الـرَّجْـمَ وَ لٰـكِـنَّـا نُكَـاتِـمُـهُ بَيْنَنَا فَأَمَرَ بِهِـمَـا فَرُجِـمَـا فَرَاَيْتُهُ يُجَانِيءُ عَلَيْهَا الْحِجَارَةَ.

(سنګساريدلو) آيت وو، چه چمک ئې کولو، نو هغه اووے، دوئ رجم کول دي. ليکن موږ خپلو کښې دا (آيت) پټولو. بيا حضور صلّي الله عليه وسلّم حکم ورکړلو، نو هغه دواړه سنګسار کړے شو. ابن عمر رضي اللّٰه عليه اووے. ما اوليدل، چه هغه سړے په هغه ښځه ورتيټيدلو (چه د هغې ګزارهم دے اوخوري (يعني هغه ئې په خپل خيال کښې بچ کوله).

**باب ٥٧٣: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَاهِرُ بِالْقُرْاٰنِ مَعَ الْـكِـرَامِ الْـبَـرَرَةِ وَ زَيِّـنُـوْا الْـقُـرْاٰنَ بِاَصْوَاتِكُمْ.**

**باب ٥٧٣:** دَ نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد، چه ماهر قرآن به بزرګو او نيکو خلقو سره وي. او داچه قرآن له خپل آوازونو سره زينت ورکړئې.

**١١٩٩:** حَـدَّثَـنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَـمْـزَةَ حَـدَّثَـنِيْ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ هُـرَيْـرَةَ اَنَّـهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ يَقُوْلُ مَـآ اَذِنَ اللّٰـهُ لِشَيْءٍ مَـا اَذِنَ لِـنَبِيٍّ حَسَنِ الصَّوْتِ بِالْقُرْاٰنِ يَجْهَرُ بِهٖ.

**١١٩٩:** ابراهيم بن حمزه، ابن ابي حازم، يزيد، محمد بن ابراهيم، ابو سلمةؓ، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي، هغه د نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل چه الله تعالٰي هيڅ څيز (غوږ لږولو سره) نه آوري، څومره چه د خوش آواز نبي قرآن په اوچت آواز آوريدو سره آوري.

**١٢٠٠:** حَـدَّثَـنَـا يَحْيٰى بْنُ بُـكَيْرٍ حَـدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْـبَـرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدُ بْـنُ الْـمُسَيَّـبِ وَ عَـلْقَمَةُ بْنُ وَقَّـاصٍ وَ عُبَيْـدُ اللّٰـهِ عَنْ حَدِيْـثِ عَـائِشَةَ حِيْـنَ قَـالَ لَهَـا اَهْـلُ الْاِفْكِ مَا قَـالُـوْا و كُـلٌّ حَـدَّثَـنِـيْ طَـآئِفَةً مِّنَ الْحَـدِيْـثِ قَـالَتْ فَـاضْـطَجَعْتُ عَلٰى

**١٢٠٠:** يحيٰي بن بکير، ليث، يونس، ابن شهاب نه روايت کوي. د هغه بيان دے. ماته عروه بن زبير او سعيد بن مسيب او علقمه بن وقاص او عبيد اللّٰه بن عبد اللّٰه د بي بي عائشے د، اهل د، واقعے حديث بيان که. او هر يو ماته دَ حديث يوه ټکړه بيان کړه. د بي بي عائشےؓ بيان دے. زه خپله بستره باندے سملاستم. دغه وخت زه پوهيدم، چه زه پاکدامنه يم، او الله تعالٰي به ضرور خما برات

فِرَاشِيْ وَ اَنَا حِيْنَئِذٍ اَعْلَمُ اِنِّيْ بَرِيْئَةٌ وَ اَنَّ اللّٰهَ يُبَرِّءُ نِيْ وَ لٰكِنْ وَّاللّٰهِ مَا كُنْتُ اَظُنُّ اَنَّ اللّٰهَ يُنَزِّلُ فِيْ شَأْنِيْ وَحْيًا يُتْلٰى وَ لَشَأْنِيْ فِيْ نَفْسِيْ كَانَ اَحْقَرَ مِنْ اَنْ يَتَكَلَّمَ اللّٰهُ فِيَّ بِاَمْرٍ يُتْلٰى وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْاِفْكِ الْعَشْرَ الْاٰيَاتِ كُلَّهَا.

(بري کيدل) ظاهر کړي. ليکن په خدائے مې دے قسم وي، خما دا ګمان نه وو، چه اللّٰه تعالیٰ به خما شان کښې وحي نازله کړي، چه ذ هغې به تلاوت کيږي. خما په خيال خما مرتبه د دې نه ډيره لاندې وه، چه اللّٰه تعالیٰ به خما متعلق داسې خبره اوکړي، چه د هغې به خلق تلاوت کوي. او اللّٰه عزّوجلّ: اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوا بِالْاِفْكِ: اِلخ پوره لس (١٠) آيتونه نازل کړل:

**١٢٠١ :** حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ اُرَاهُ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِشَآءِ وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ فَمَا سَمِعْتُ اَحَدًا اَحْسَنَ صَوْتًا اَوْ قِرَآءَةً مِّنْهُ.

**١٢٠١ :** ابو نعيم مسعر، عدي بن ثابت (غالبًا) حضرت براء نه رويت کوي، وائي، ما د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ ماسختن مونځ کښې سورهٔ والتّين والزيتون لوستل اوريدلے دي. ما هيڅوک ذ حضور نه زيات خوش آوازه يا بهتر قرأت کونکے نه دے ليدلے.

**١٢٠٢ :** حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَوَارِيًا بِمَكَّةَ وَ كَانَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ فَاِذَا سَمِعَ الْمُشْرِكُوْنَ سَبُّوا الْقُرْاٰنَ وَ مَنْ جَآءَ بِهٖ فَقَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَا تَجْهَرْ بِصَلٰوتِكَ وَ لَا تُخَافِتْ بِهَا.

**١٢٠٢ :** حجاج بن منهال، هشيم، ابو بشر، سعيد بن جبير، حضرت ابن عباس رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. د هغه بيان دے، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم به مکه کښې پټ وو. او خپل آواز به ئې اوچتولو. مشرکينو چه به واوريدلو قرآن او ذ هغې راوړونکي ته به ئې بد رَد، وئيلے، نو اللّٰه تعالیٰ، نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته اوفرمائيل، مانځه کښې خپل آواز مه ډير اوچتوه او، مه ئې ډير رو. کوه.

**١٢٠٣ :** حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ

**١٢٠٣ :** اسماعيل، مالک، عبد الرَّحمٰن بن عبد اللّٰه بن عبد الرَّحمٰن بن ابي صعصعه ذ خپل پلار نه، هغه د ابو سعيد خدريؓ متعلق روايت

صَعْصَعَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ الْخُدْرِيَّ قَالَ لَهُ اِنِّيْ اَرَاكَ تُحِبُّ الْغَنَمَ وَالْبَادِيَةَ فَاِذَا كُنْتَ فِيْ غَنَمِكَ اَوْ بَادِيَتِكَ فَاَذَّنْتَ لِلصَّلٰوةِ فَارْفَعْ صَوْتَكَ بِالنِّدَآءِ فَاِنَّهُ لَا يَسْمَعُ مُدٰى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَّ لَا اِنْسٌ وَّ لَا شَيْءٌ اِلَّا شَهِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ سَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

كوي، هغه اوويے، زه وينم، چه چيلئے او خنكل ستا ډير خوښ دي، نو كله چه ته خپلو چيلو يا خنګل كښې ئے، نو مانځه د پاره آذان او كړه، او خپل آواز اذان كښې اوچت كړه، ځكه چه ذ مؤذن آذان كوم ځائے پورې اورسي، او جن او، انس او كوم څيز چه ئے آوري، د قيامت په ورځ به ګواهي وركوي. حضرت ابو سعيد اوويے. ما دا، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي.

۱۲۰۴ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اُمِّهٖ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ وَ رَاْسُهٗ فِيْ حَجْرِيْ وَ اَنَا حَآئِضٌ.

۱۲۰۴ : قبيصه، سفيان، منصور، ذَ خپلے مورنه، هغه د بي بي عائشه رضی الله عنها نه روايت كوي. ذ هغې بيان دے. حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم به قرآن لوستلو، او هغه وخت به ذ حضور صلّي الله عليه وسلّم سر مبارک څما غيږ كښې وو، او زه به حائضه ووم.

باب ۵۷۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

باب ۵۷۴: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، قرآن لولئے، څومره چه تاسو نه آساني سره كيدے شي.

۱۲۰۵ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَبْدِ الْقَارِيِّ حَدَّثَاهُ اَنَّهُمَا سَمِعَا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيْمٍ يَقْرَاُ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ فِيْ حَيَاةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَمَعْتُ لِقِرَآءَتِهٖ فَاِذَا هُوَ يَقْرَاُ عَلٰى حُرُوْفٍ كَثِيْرَةٍ لَمْ يُقْرِئْنِيْهَا رَسُوْلُ

۱۲۰۵ : يحيٰي بن بكير، ليث، عقيل، ابن شهاب، عروه، مسور بن مخرمه او عبد الرحمٰن بن عبد القادري، دواړه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه نه روايت كوي. د هغه نه ئے واوريدل، ما هشام بن حكيم نه سورهٔ فرقان د، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم په ژوند كښې لوستل واوريدل، ما اوليدل، چه هغه داسې ډيرو حروفو سره لوستلو، چه رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ماته هغسې نه وو ښودلے. نزدے وه، چه ما مانځه كښې په هغه حمله كړے وے. ليكن ما صبر اوكه، تر دے چه هغه سلام اوګرځولو، مَا د هغه په

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكِدْتُ أُسَاوِرُهُ فِي الصَّلٰوةِ فَتَصَبَّرْتُ حَتّٰى سَلَّمَ فَلَبَّبْتُهُ بِرِدَآئِهٖ فَقُلْتُ مَنْ اَقْرَاَكَ هٰذِهِ السُّوْرَةَ الَّتِيْ سَمِعْتُكَ تَقْرَاُ قَالَ اَقْرَاَنِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ كَذَبْتَ اَقْرَاَنِيْهَا عَلٰى غَيْرِ مَا قَرَاْتَ فَانْطَلَقْتُ بِهٖ اَقُوْدُهُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ اِنِّيْ سَمِعْتُ هٰذَا يَقْرَاُ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ عَلٰى حُرُوْفٍ لَمْ تُقْرِئْنِيْهَا فَقَالَ اَرْسِلْهُ اقْرَاْ يَا هِشَامُ فَقَرَاَ الْقِرَآءَةَ الَّتِيْ سَمِعْتُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذٰلِكَ اُنْزِلَتْ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَاْ يَا عُمَرُ فَقَرَاْتُ الَّتِيْ اَقْرَاَنِيْ فَقَالَ كَذٰلِكَ اُنْزِلَتْ اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ اُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ.

غاړه کښې څادر واچولو' ورته م وئيلې' تاته دا سورت چا ښودلے دے' هغه' اووے ماته رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم ښودلے دے ما ورته اووے' دروغ وائے' ځکه چه ته لولې ماته خو' داسے نه دے ښودلے شوے. نو ما هغه په راښکلو' راښکلو د' رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر کړلو او ما عرض اوکه' چه ما' د ده نه سورهٔ فرقان په دے طريقو آوريدلے دے' چه هغسے تاسو ماته نه دے ښودلے' حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دے پريږده. بيائے اوفرمائيل' اے هشامه اولوله' ځنګه چه ما د هغه نه لوستل اوريدلے وو' هغسے هغه اولوستلو. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه قرآن داسے نازل شوے دے. بيا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: اے عمرؓ ته اولوله' ځنګه چه ماته حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ښودلے وو' هغسے م اولوستلو. نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه قرآن داسے نازل شوے دے او دا قرآن په اوو (۷) طريقو نازل شوے دے' نو کوم چه آسانئے سره لوستے شي' هغه لوله.

## باب ۵۷۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلٌّ مُيَسَّرٌ لِّمَا خُلِقَ لَهُ يُقَالُ مُيَسَّرٌ مُهَيَّأٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ بِلِسَانِكَ هَوَّنَّا قِرَآءَتَهُ عَلَيْكَ وَقَالَ

## باب ۵۷۵: د' اللّٰه تعالٰي قول' چه' مونږ قرآن

نصيحت د پاره آسان کړے دے. او نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هر سړے چه کوم کار د پاره پيدا شوے دے' هغه د پاره هغه آسان کړے شوے (خوشحال خان خټک هم د دے قول نه استفاده کړے ده' چه وئيلے دي: هر سړے پيدا دے خپل خپل کار لره کنه) او' وئيلے شي' چه: ميّسر: معني دي' مهيا: يعني تيار کړے شوے. او مجاهد اووے: يسرنا القرآن بِلسانک: معني

مَطَرُ الْوَرَّاقُ وَ لَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ قَالَ هَلْ مِنْ طَالِبِ عِلْمٍ فَيُعَانُ عَلَيْهِ.

دي، چه مونږ د هغې قرات په تا آسان کړے دے. او مطر وراق وئيلے دي: وَ لَقَد يسرنا القراٰن لِلذكر فهل من مدكر: معني دي. چه څوک د علم طلبګار شته، چه ډَ هغه مدد اوکړے شي.

**ف**: يا الله د علم طلب کښې څمونږ هم مدد اوکړے، آمين يَا رَبَّ الْعٰالمين.

۱۲۰۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ يَزِيْدُ حَدَّثَنِيْ مُطَرِّفُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عِمْرَانَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فِيْمَا يَعْمَلُ الْعَامِلُوْنَ قَالَ كُلٌّ مُيَسَّرٌ لِّمَا خُلِقَ لَهٗ.

۱۲۰۶: ابو معمر، عبد الوارث، يزيد، مطرف بن عبد الله، عمران نه روايت کوي. دَ هغه بيان دے. ما عرض اوکه، يا رسول الله صلّي الله عليه وسلّم، بيا څه د پاره عمل واله عمل کوي. حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هر سړي د پاره هغه کار آسان دے، چه هغے د پاره پيدا شوے دے.

۱۲۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ وَّالْاَعْمَشِ سَمِعَا سَعْدَ ابْنَ عُبَادَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ كَانَ فِيْ جَنَازَةٍ فَاَخَذَ عُوْدًا فَجَعَلَ يَنْكُتُ فِي الْاَرْضِ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اِلَّا كُتِبَ مَقْعَدُهٗ مِنَ النَّارِ اَوْ مِنَ الْجَنَّةِ قَالُوْا اَلَا نَتَّكِلُ قَالَ اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى الْاٰيَةَ.

۱۲۰۷: محمد بن بشار، غُندر، شعبه، منصور او، اعمش، سعد بن عبيده، عبد الرّحمٰن، حضرت علي، نبي صلّي الله غليه وسلّم نه روايت کوي حضور صلّي الله عليه وسلّم يو جنازه کښې وو، نو يو لرګے ئے واخست، او هغے سره ئے زمکه کروله. وے فرمائيل، تاسو کښې هيڅوک سړے داسے نشته، چه د هغه ټيکاؤنړه جنت يا دوزخ کښې نه وي ليکلے شوے. خلقو عرض اوکه بيا دے مونږ بهروسه ولے اونه کړو حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل هر سړي ته هغے کښې آساني ورکړے شوے ده (څه د پاره چه پيدا شوے دے) بيائے دا، آيت اولوست: فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى الخ.

## بَاب ۵۷۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ مَّجِيْدٌ فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ وَّالطُّوْرِ وَ كِتَابٍ مَّسْطُوْرٍ قَالَ قَتَادَةُ مَكْتُوْبٌ يَّسْطُرُوْنَ يَخُطُّوْنَ

باب ۵۷۶: دَ الله تعالٰي قول، بلکه هغه بزرګ قرآن دے، چه لوحِ محفوظ کښې دے او آيت: والطور و كتاب مسطور: قتاده اووے مسطور نه مراد مكتوب دے: يَسطرون: معني ليکي: اُم الكتاب: نه مراد اصل او

فِيْ أُمِّ الْكِتَابِ جُمْلَةِ الْكِتَابِ وَ اَصْلِهٖ مَا يَلْفِظُ مَا يَتَكَلَّمُ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا كُتِبَ عَلَيْهِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُكْتَبُ الْخَيْرُ وَالشَّرُّ يُحَرِّفُوْنَ يُزِيْلُوْنَ وَ لَيْسَ اَحَدٌ يُزِيْلُ لَفْظَ كِتَابٍ مِّنْ كُتُبِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ وَ لٰكِنَّهُمْ يُحَرِّفُوْنَهٗ يَتَاَوَّلُوْنَهٗ عَلٰى غَيْرِ تَاْوِيْلِهٖ دِرَاسَتُهُمْ تِلَاوَتُهُمْ وَاعِيَةٌ حَافِظَةٌ وَ تَعِيَهَا تَحْفَظُهَا وَ اُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ يَعْنِيْ اَهْلَ مَكَّةَ وَ مَنْ بَلَغَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ فَهُوَ لَهٗ نَذِيْرٌ وَّ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ بْنُ خَيَّاطٍ. حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْ رَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا قَضَى اللّٰهُ الْخَلْقَ كَتَبَ كِتَابًا عِنْدَهٗ غَلَبَتْ اَوْ قَالَ سَبَقَتْ رَحْمَتِيْ غَضَبِيْ فَهُوَ عِنْدَهٗ فَوْقَ الْعَرْشِ.

مجموعي كتاب دے. ما يلفظ: يعني هر څه خبره چه كوي، هغه ليكلے شي. او ابن عباسؓ اووے، چه خير او شر ليكلے شي: يحرفون: معني: لرے كوي. او داسے هيڅ سړے نشته، چه د، الله كتاب زائل كړي ليكن هغه خلق تحريف كوي. او داسے تاويلونه كوي، چه د هغے د، منشاء خلاف وي. دراستهم: يعني د هغوئ تلاوت كول: واعيه محفوظ ساتونكے. تعيها: هغه محفوظ ساتي. او ما طرف ته قرآن وحي كړے شوے دے، چه د هغے په ذريعه زه تاسو يعني اهلِ مكه اويروم. او چاته چه دا قرآن اُورسي رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم هغه ويروي او ماته خليفه بن خياط په واسطه د معمر، ابو قتاده، ابو رافع، ابو هريره رضي الله عنه، نبي صلّي الله عليه وسلّم نه روايت او كه حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل الله پاک چه مخلوق پيدا كه، نو خان سره ئے يو تحرير كيښودلو، چه څما رحمت څما په غضب غالب راغے، يا، وے فرمائيل سبقت ئے اوكړلو، او دا، تحرير اللّٰه سره د عرش د پاسه (ليكلے پروت) دے.

۱۲۰۸ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ ابْنُ اَبِيْ غَالِبٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ اَنَّ اَبَا رَافِعٍ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ اَنْ يَخْلُقَ الْخَلْقَ اِنَّ رَحْمَتِيْ سَبَقَتْ

۱۲۰۸ : محمد بن ابي غالب، محمد بن اسماعيل، معتمر، د معتمر پلار (سليمان) قتاده، ابو رافع، حضرت ابو هريره رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، د هغه بيان دے. ما د، رسول الله صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل د مخلوق پيدا كولو نه مخكښ اللّٰه تعالي يو تحرير اوليكه، چه څما رحمت څما د غضب نه سبقت يوړلو (يعني غالب شو، پرے) او هغه تحرير اللّٰه تعالي سره د عرش د

فَهُوَ مَكْتُوْبٌ عِنْدَهٗ فَوْقَ الْعَرْشِ.

پاسه ليکلے دے.

**باب ۷۷۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى** وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ وَ مَا تَعْمَلُوْنَ اِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ وَّ يُقَالُ لِلْمُصَوِّرِيْنَ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرَاتٍ بِاَمْرِهٖ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ تَبَارَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ بَيَّنَ اللّٰهُ الْخَلْقَ مِنَ الْاَمْرِ لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ وَ سَمَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاِيْمَانَ عَمَلًا قَالَ اَبُوْ ذَرٍّ وَّ اَبُوْ هُرَيْرَةَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْاَعْمَالِ اَفْضَلُ قَالَ اِيْمَانٌ بِاللّٰهِ وَ جِهَادٌ فِيْ سَبِيْلِهٖ وَ قَالَ جَزَآءً بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ وَ قَالَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْنَا بِجُمَلٍ مِّنَ الْاَمْرِ اِنْ عَمِلْنَا بِهَا دَخَلْنَا الْجَنَّةَ فَاَمَرَهُمْ بِالْاِيْمَانِ وَالشَّهَادَةِ وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءِ الزَّكَاةِ فَجَعَلَ ذٰلِكَ كُلَّهٗ عَمَلًا.

**باب ۷۷۵: د' اللّٰه تعالٰي قول'** چه اللّٰه تعالٰي تاسو' او څه چه تاسو پيدا کوړے' پيدا کړل. مونږ هر څيز آندازے سره پيدا که' او تصوير اوښکونکو ته به وئيلے شي' څه چه تاسو پيدا کړے دي. هغے کښ روح واچوئے' بيشکه ستاسو رب اللّٰه دے' چه هغه اسمانونه او زمکه شپږو ورځو کښ پيدا کړل. بيا عرش قائم شو شپه ورځے سره پټوي' دواړه يو بل پسے په منډه راځي. او نمر' سپوږمئ او ستوري ئے پيدا کړل' چه د هغه د حکم تابع دي واورئے: خلق او' امر: هغه د پاره دے اللّٰه بابرکته دے' چه د ټول جهان رب دے. او ابن عيينه اووے' اللّٰه: خلق او امر: جدا کړے بيان کړل. او آلا لَهُ الْخلق والامر: ئے فرمائيل. او نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم د' ايمان نوم عمل ايښے دے. ابو ذرؓ او ابو هريرهؓ اووے. نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه چا تپوس اوکه' کوم عمل ټولو کښ ښه دے حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل په اللّٰه ايمان راوړل' او د هغه په لاره کښ جهاد کول. او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل: جزآءً بِمَا كَانوا يعملون (دا' دَ هغوي د' ايمان بدله ده) او' وفد عبد القيس نبي صلّي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه' چه مونږ ته څو جامع احکام اوښائے' چه مونږ په هغے عمل اوکړو. او جنت کښ داخل شو' نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ ته د' ايمان او شهادت' دَ مونځ کولو او زکٰوة ورکولو حکم اوکړلو. او دا ټولے خبرے ئے عمل اوګرځولے.

**۱۲۰۹**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ

**۱۲۰۹**: عبد اللّٰه د' عبد الوهاب' عبد الوهاب'

بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عَبْدُ
الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي
قِلَابَةَ وَالْقَاسِمِ التَّمِيمِيِّ عَنْ
زَهْدَمٍ قَالَ كَانَ بَيْنَ هٰذَا الْحَيِّ
مِنْ جَرْمٍ وَ بَيْنَ الْأَشْعَرِيِّينَ
وُدٌّ وَ إِخَاءٌ فَكُنَّا عِنْدَ أَبِي
مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ فَقُرِّبَ إِلَيْهِ
الطَّعَامُ فِيهِ لَحْمُ دَجَاجٍ وَ عِنْدَهُ
رَجُلٌ مِنْ بَنِي تَيْمِ اللّٰهِ كَأَنَّهُ
مِنَ الْمَوَالِي فَدَعَاهُ إِلَيْهِ فَقَالَ
إِنِّي رَأَيْتُهُ يَأْكُلُ شَيْئًا
فَقَذِرْتُهُ فَحَلَفْتُ لَا آكُلُهُ فَقَالَ
هَلُمَّ فَلْأُحَدِّثْكَ عَنْ ذَاكَ إِنِّي
أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فِي نَفَرٍ مِنَ الْأَشْعَرِيِّينَ
نَسْتَحْمِلُهُ قَالَ وَاللّٰهِ لَا أَحْمِلُكُمْ
وَ مَا عِنْدِي مَا أَحْمِلُكُمْ فَأُتِيَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
بِنَهْبِ إِبِلٍ فَسَأَلَ عَنَّا فَقَالَ أَيْنَ
النَّفَرُ الْأَشْعَرِيُّونَ فَأَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ
ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرٰى ثُمَّ انْطَلَقْنَا قُلْنَا
مَا صَنَعْنَا حَلَفَ رَسُولُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحْمِلُنَا
وَ مَا عِنْدَهُ مَا يَحْمِلُنَا ثُمَّ
حَمَلَنَا تَغَفَّلْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِينَهُ وَاللّٰهِ لَا نُفْلِحُ

ایوب، ابو قلابه او قاسم تیمي، زهدم نه روایت کوي، چه
د جرم قبیلے او اشعریانو مینځ کښ دوستي او ورورولي
وه. مونږ خلق ابو موسٰی اشعري سره ناست وو. هغه ته
ډوډي (طعام) راوړے شو، هغے کښ د چرګ غوښه وه
هغه وخت هغه سره د، بني تیمیم اللّٰه، یو سړے ناست
وو. هغه د، موالي، نه معلومیده هغه ته ئے ډ ډوډئ ست
اوکه، نو هغه اووے ما دا، په داسے څیز خوړلو لیدلے
دے، چه د هغه نه ماته کرکه راځي. نو ما قسم اوخوړو،
چه زه به دا هیڅ کله اونه خورم، ابو موسٰی اووے. راشه،
چه زه تاته د دے متعلق یو حدیث بیان کړم، زه نبي صلّي
اللّٰه علیه وسلّم ته د، اَشعریانو، یو جماعت ته حاضر شوم،
چه ډ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه سورلۍ اوغواړو.
حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، په خدائے م دے
قسم وي، چه زه به تاسو له سورلي درنه کړم، اونه ماسره
څه شته، چه سورلۍ د پاره ئے درکړم. بیا نبي صلّي اللّٰه
علیه وسلّم ته د غنیمت څه اُوښان راوستے شو، نو
حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم خمونږ متعلق تپوس اوکه،
اووے فرمائیل، د، اشعریانو جماعت چرته دے. بیائے
مونږ د پاره د پنځه (۵) غټ تازه او اعلٰي اوښانو راکولو
حکم اوکه مونږ هغه روان کړل خپلو کښ مو اووے دا
مونږ څه اوکړل، نبي صلّي اللّٰه علیه وسلّم خو قسم
خوړلے وو، چه مونږ له به سورلي نه راکوي. شاید د
حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم نه خپل قسم هیر شوے وي،
په خدائے چه مونږ هیڅکله خلاصے نه شو، بیامندے، نو
مونږ حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم ته واپس راغلو، او
عرض مو، اوکه، نو حضور صلّي اللّٰه علیه وسلّم

أَبَدًا فَرَجَعْنَا اِلَيْهِ فَقُلْنَا لَهُ فَقَالَ لَسْتُ أَنَا اَحْمِلُكُمْ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ حَمَلَكُمْ اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَآ اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِّنْهَا اِلَّا اَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ مِّنْهُ وَ تَحَلَّلْتُهَا.

اوفرمائيل ما تاسوله سورلئ نه دي دركړے، بلكه الله دركړي دي. په خدائے چه، كله زه په يوه خبره قسم اوخورم، او بهتري د هغے خلاف خبره كښې اووينم، نو هغه كوم، چه هغے كښې نيكي وي. او د خپل قسم كفاره وركوم.

• ۱۲۱۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ جَمْرَةَ الضَّبَعِيُّ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ وَّ قَالَ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا اِنَّ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكَ الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ مُّضَرَ اِنَّا لَا نَصِلُ اِلَيْكَ اِلَّا فِيْ اَشْهُرٍ حُرُمٍ فَمُرْنَا بِجُمَلٍ مِّنَ الْاَمْرِ اِنْ عَمِلْنَا بِهٖ دَخَلْنَا الْجَنَّةَ وَ نَدْعُوْا اِلَيْهَا مَنْ وَّرَآءَنَا فَقَالَ اٰمُرُكُمْ بِاَرْبَعٍ وَّ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اٰمُرُكُمْ بِالْاِيْمَانِ بِاللّٰهِ وَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا الْاِيْمَانُ بِاللّٰهِ شَهَادَةُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءُ الزَّكٰوةِ وَ تُعْطُوْا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ وَ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ لَّا تَشْرَبُوْا فِي الدُّبَّآءِ وَالنَّقِيْرِ وَالظُّرُوْفِ الْمُزَفَّتَةِ وَالْحَنْتَمَةِ.

• ۱۲۱۰: عمرو بن علي، ابو عاصم، قرة بن خالد، ابو جمره ضبعي نه روايت كوي. ما ابن عباس رضي الله عنه ته د، يو حديث بيانولو اووے، نو هغه اووے، دَ عبد القيس وفد د، رسول الله صلّي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو نو عرض ئے اوكه. څمونږ او ستاسو مينځ كښې كفار مضر حائل دي. په دے وجه مونږ تاسو ته صرف د، حرمت مياشتو كښې حاضريدے شو، نو تاسو مونږ ته داسے جامع احكام اوښايئے، كه په هغے مونږ عمل اوكړو، نو جنت كښې به داخل شو. او هغے طرف ته به هغے خلقو له هم دعوت وركړو، چه مونږ نه ورستو پاتے شوے دي. حضور صلّي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، زه تاسو ته د څلورو (۴) خبرو حكم دركوم، او د څلورو خبرونه مو، منع كوم. زه تاسو ته په الله د، ايمان راوړلو حكم دركوم، او تاسو پوهيږئے، چه په الله ايمان راوړل څه څيز دے، هغه د دے خبرے ګواهي ده، چه د، الله نه سِوا بل معبود نشته. او مونځ كول او زكٰوة وركول او د غنيمت مال كښې پنځمه حصّه وركول. او زه تاسو د څلورو (۴) خبرو نه منع كوم. دباء، نقير، مزفت او، حنتمه لوښو كښې مه څكئے (څكه چه دا، لوښي شراب جوړولو اوڅكلو كښې استعماليدل).

۱۲۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ

۱۲۱۱: محمد بن علاء، ابن فضيل، عماره،

الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذَهَبَ يَخْلُقُ كَخَلْقِيْ فَلْيَخْلُقُوْا ذَرَّةً اَوْ لِيَخْلُقُوا حَبَّةً اَوْ شَعِيْرَةً.

ابو زرعه، ابو هريره رضي اللّه عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دے ما د نبي صلّي اللّه عليه وسلّم نه واوريدل اللّٰه تعالىٰ اوفرمائيل. دَ هغے سړي نه زيات ظالم څوک دے، چه څما په شان پيدا كول غواړي، كه داسے وي، نو هغه دے يو، جوار يا يوه دانه يا يوه وربشه پيدا كړي. اُو، دے بنائي.

باب ۵۷۸ : قِرَآءَةِ الْفَاجِرِ وَالْمُنَافِقِ وَ اَصْوَاتُهُمْ وَ تِلَاوَتُهُمْ لَا تُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ.

باب ۵۷۸ : د، فاجر او منافق د، قرآن لوستو بيان، او دا چه اوازونه او تلاوت د هغوئ د خلق نه لاندے نه ځي.

۱۲۱۲ : حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا اَنَسٌ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِيْ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَالْاُتْرُجَّةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَالَّذِيْ لَا يَقْرَاُ كَالتَّمْرَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ وَ لَا رِيْحَ لَهَا وَ مَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِيْ يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الرَّيْحَانَةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَّ طَعْمُهَا مُرٌّ وَّ مَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِيْ لَا يَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ وَّ لَا رِيْحَ لَهَا.

۱۲۱۲ : هدبه بن خالد، همام، قتاده، انس رضي اللّٰه عنه، حضرت ابو موسٰي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل د، مؤمن مثال چه قرآن لولي. د، چكوترے (يو قسم غټ ليمبو) په شان دے، چه د هغے مزه ښه ده او دَ هغے بُوئ هم خوشكوار دے. او دَ هغے سړي مثال چه قرآن نه لولي، د قجورے په شان دے، چه د هغے مزه خو، ښه ده، ليكن خوشبوئ پكښ نشته. او دَ هغے بدكار مثال، چه قرآن لولي، د، ريحان (كشمالو) پشان دے، چه هغے كښ خوشبوئ خو شته. ليكن دَ هغے مزه ترخه ده. او د هغے بدكار مثال، چه قرآن نه لولي، د، اندرائن (ترخه منره دے) چه د هغے مزه هم ترخه ده. او خوشبوئ هم پكښ نشته.

۱۲۱۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقٰسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ

۱۲۱۳ : قتيبه بن سعيد، نافع، قاسم بن محمد، بي بي عائشے نه روايت كوي د هغے بيان دے، رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ يُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ.

اوفرمائيل، د دے صورتونو (بتانو) جوړونكو ته به د قيامت په ورځ عذاب وركولے شي او هغوئ ته به وئيلے شي، چه دے كښې روح واچوئې.

۱۲۱۴: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَصْحَابَ هٰذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ يُقَالُ لَهُمْ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ.

۱۲۱۴: ابو النعمان، حماد بن زيد، ايوب، نافع، حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے. نبي صَلَّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل د دے صورتونو جوړونكو ته به د قيامت په ورځ عذاب وركولے شي او، ورته به وئيلے شي، چه تاسو څه پيدا كړے دي، هغے كښې روح واچوئې.

۱۲۱۵: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى بْنُ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ سَمِعَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ قَالَتْ عَائِشَةُ سَاَلَ اُنَاسٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْكُهَّانِ فَقَالَ اِنَّهُمْ لَيْسُوْا بِشَيْءٍ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاِنَّهُمْ يُحَدِّثُوْنَ بِالشَّيْءِ يَكُوْنُ حَقًّا قَالَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ فَيُقَرْقِرُهَا فِيْ اُذُنِ وَلِيِّهٖ كَقَرْقَرَةِ الدَّجَاجَةِ فَيَخْلِطُوْنَ فِيْهِ اَكْثَرَ مِنْ مِّائَةِ كِذْبَةٍ.

۱۲۱۵: علي، هشام، معمر، زهري، ح، احمد بن صالح، عنبسه، يونس، ابن شهاب، يحيٰي بن عروه بن زبيرؓ، عروه بن زبير، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. د هغے بيان دے. بعضے خلقو د حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم نه د، كاهنانو متعلق تپوس اوكه، نو حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا خلق هيڅ نه دي (يعني دوئ له هيڅ اعتبار نشته) خلقو عرض اوكه، يا رسول اللّٰه صلّي اللّٰه عليه وسلّم دا خلق كله داسے خبره اوكړي، چه ريښتيا اوخيژي حضور صلّي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل دا خبره د خدائے د طرف نه ده، چه هغه شيطان (واوري نو) ياده ئے كړي. او هغه د خپل دوست غوږ كښې كټ كټ كولو سره اوغرخوي څنګه چه چرګه كټ كټ (يا كټ كټ يا قت قت) كوي. بيا دے سره د سلو (۱۰۰) نه زيات دروغ يو ځائے كړي.

۱۲۱۶: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ

۱۲۱۶: ابو النعمان، مهدي بن ميمون، محمد

حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُوْنٍ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ سِيْرِيْنَ يُحَدِّثُ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ نَاسٌ مِّنْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْاٰنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ ثُمَّ لَا يَعُوْدُوْنَ فِيْهِ حَتّٰى يَعُوْدَ السَّهْمُ اِلٰى فُوْقِهٖ قِيْلَ مَا سِيْمَاهُمْ قَالَ سِيْمَاهُمُ التَّحْلِيْقُ اَوْ قَالَ التَّسْبِيْدُ.

بن سيرين، معبد بن سيرين، حضرت ابو سعيد خدري نبي صلّي اللّه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل. د مشرق طرف نه به څه خلق راوځي، او قرآن به لولي، چه د هغوئ د، ګروي ډ هډوكي نه به لاندې نه كوزيږي دغه خلق به د، دين نه داسې اوځي، څنګه چه غشې د، ښكار نه اوځي. بيا به هغه خلق دين ته واپس نه راځي، څو پورې چه تير خپل ځائې ته واپس رانشي. چا تپوس اوكه د هغې نښه څه ده، حضور صلّي اللّه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، چه سر، خريل (حضور صلّي اللّه عليه وسلّم تحليق يا تسبيد اوفرمائيل، راوي ته شک دې).

**باب ۹۷۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ نَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ وَ اَنَّ اَعْمَالَ بَنِيْ اٰدَمَ وَ قَوْلَهُمْ تُوْزَنُ قَالَ مُجَاهِدُ الْقِسْطَاسُ الْعَدْلُ بِالرُّوْمِيَّةِ وَ يُقَالُ الْقِسْطُ مَصْدَرُ الْمُقْسِطِ وَ هُوَ الْعَادِلُ وَ اَمَّا الْقَاسِطُ فَهُوَ الْجَآئِرُ.**

**باب ۹۷۵:** د، اللّه تعالٰي قول، چه مونږ به تله (ترازو) ټيک ټيک ساتو. او د دې امر بيان، چه د خلقو اقوال او، افعال څو، به تللې شي (تولے جائيں گے) او مجاهد اووې: قسطاس: رومي ژبه كښ عدل ته وئيلې شي او، وئيلې شي، چه: قسط: د: مُقْسِط: مصدر دې، چه د هغې معني دي: عادل. او: قاسط. ظالم ته وئيلې شي.

۷۱۲۱: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ اَشْكَابٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَتَانِ حَبِيْبَتَانِ اِلَى الرَّحْمٰنِ خَفِيْفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيْلَتَانِ فِي الْمِيْزَانِ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيْمِ.

۷۱۲۱: احمد بن اشكاب، محمد بن فضيل، عماره بن قعقاع، ابو زرعه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوي. د هغه بيان دې حضور صلّي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دوه (۲) كلمې داسې دي، چه ذ خدائے تعالٰي ډيرې خوښې دي، په ژبه ډيرې اسانې دي، خو تله كښ ډيرې درنې دي. هغه كلمات دا دي: سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيْمِ.

